لَقَدْ كَانَ فِيْ قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ

بیشکه د دوی په قصو کښې (لوئې) عبرت دے پوهیدونکو د پاره ـ ایه ۵۵

پښتو

# حِکَایَاتِ صَحَابَه رضی اللہ عنہم

جمع کوونکے

حضرت مولانا الحافظ الحاج محمد زکریا نور اللہ مرقدہ شیخ الحدیث مدرسہ مظاہر علوم سہارنپور

ترجمه کوونکے

میاں محمد شفیق غفرلہ (چارسدہ)

خوروونکے

کتب خانه فیضی لاهور پاکستان

# فهرست د مضامینو د حکایاتِ صحابه رضی الله عنهم پښتو

# تمهيد

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ، نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ وَنُسَلِّمُ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ وَاٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَاَتْبَاعِهِ الْحُمَاةِ لِلدِّيْنِ الْقَوِيْمِ

**اَمَّا بَعْدُ** د الله تعالىٰ ديو غوره بنده (يعنى حضرت مولانا شاه عبدالقادر رائپورى رحمة الله عليه) چې ما تربيت كوونكى او احسان كوونكى ارشاد سنه ۱۳۵۳ھ كښ ماته اوشو چه اصحابو كرامو رضى الله عنهم اجمعين شو قصے خصوصاً د كم عمره صحابو رضى الله عنهم او دزنانو د دينداري څه حالات په اردو كښ اوليكلے شى ځكه چه كوم خلق د قصو شوقيان دى هغوى اخوا ديخوا د دروغو قصو په ځائ كه چرے دا اوكورى نو د هغوى د پاره به د دينى ترقئ سبب شى او د كور زنانه كه چرے په شپو كښ ماشومانو ته د دروغو قصو په ځائ دا اوروى نو د بچو په زړه كښ به د صحابو رضى الله عنهم محبت او عظمت سره دينى كارونو طرف ته رغبت پيدا شى. ځما د پاره د دے ارشاد منل ډير ضرورى وو چه د دوى په احسانا تو كښ ډوب يم. د دے نه علاوه د الله تعالىٰ د دوستانو رضا په دواړه جهانه كښ د كاميابئ سبب گرزى. خو د دے سره د خپلے كم علمئ نه م دا اميد اونه شو چه څه به دا خدمت د مرضئ موافق ادا كړے شم. څلور كاله م بيا بيا دا ارشاد اوريدهٔ او د خپلے نالائقئ نه به شرميدم. چه صفر سنه ۱۳۵۷ھ كښ ديو مرض په وجه څو ورځو د پاره د دماغى كار نه بند كړے شوم. نو خيال م شو چه دا وزگارے ورځے د دے بركتناكه مشغله كښ تيرے كړم. كهٔ دا پاڼرے قبولے نهٔ كړے شوے. نو بيا هم ځما د خالى وخت به بهترين او بركتناكه مشغله كښ خو به تير شى.

په دے كښ شك نشته چه د الله تعالىٰ د دوستانو قصے ، د هغوى حالات يقيناً د دے قابل دى چه د هغے تحقيق او لټون اوشى او د هغے نه سبق حاصل كړے شى خصوصاً د اصحابو كرامو رضى الله عنهم اجمعين جماعت چه هغوى له الله جل شانهٗ د خپل نبيا زبين نبى او خوږ رسول صلى الله عليه وسلم ملگرتيا

دپاره خوښ کړل، د دے حقدارډي چه دهغوی تابعداري اُوکړے شي. د دے نه علاوه دالله تعالیٰ دَوَلیانوپه ذکرد الله تعالیٰ رحمت نازلیږي. دصوفیانو سردار حضرت جُنَیدْ بَغْدَادِي رحمۃ اللہ علیہ ارشاد دے چه قصے دالله تعالیٰ په لښکرو کښ یولښکردے چه په دے سره دمُریدانو زړونو ته طاقت حاصلیږي. چا پوښتنه اُوکړه چه د دے څۀ دلیل هم شته؟ وې فرمایل اَو، د الله تعالیٰ ارشاد دے وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ وَجَاءَكَ فِي هَٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَذِكْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ (سورۂ ہود) (ترجمه) اُو دپیغمبرانو دقصونه مونږ داټولے قصے تاته بیانوُو چه دهغے په ذریعه مونږ ستا زړۀ ته طاقت ورکوُو. (یوه فائده خوداشوه) اوپه دے قِصوکښ تاته دا سے مضمون رَسي چه په خپله هم درُست اوواقعي دے اومسلمانانو دپاره نصیحت دے (او دښۀ کارکوُلو) وریادوُل دي.»(بیان القرآن)

یو ضروري خبره داهم په زړۀ کښ دکینوُلو ده چه دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم حدیثونه وي یا دبزرګانو حالات، دغسے که دمسئلوکتابونه وي یا دمُعتبر خلقو وعظ او ارشادات. دا داسے څیزونه نۀ دي چه یو وارے کتلونه پس دهمیشه دپاره ختم کړے شي بلکه دخپل حالت او طاقت موافق یے بیابیا کتل پکاردي. اَبُوسُلَیمَان دَارَانِي رحمۃ اللہ علیہ یوبزرګ دے، هغه فرمائي چه څۀ دیو واعظ مجلس کښ حاضرشوم. دهغۀ وعظ څما په زړۀ اَثر اُوکړو خو چه کله وعظ ختم شو نو هغه اثر هم ختم شو. څۀ دویاره دهغۀ په مجلس کښ حاضرشوم، نو دهغے وعظ اثر فارغ کیدونه پس دکورپه لاره کښ هم وو. دریم ځل بیا حاضرشوم نو دهغے اثر کورته رسیدلونه پس هم وو. کورته ورتلوسره دالله تعالیٰ دنافرمانئ چه کوم اسباب وُو، ټول م مات کړل او دالله تعالیٰ لاره م اختیار کړه. دغسے ددیني کتابُونو هم حال دے چه صِرف په سَرسَرِي طور یو وارے دهغے لوستلوسره اثر کم وي. په دِے وجه کله ناکله لوستل یے پکار دي. دلوستونکو د آسانئ اود مضامینو زړۀ کښ کینولو په خیال سره ما دا رساله په دولس بابُونو اوپه یوه خاتمه تقسیم

کړے دہ۔

① اول باب:۔ د دين له خاطره سختئ تيرَول تکليفونه او مُشقّتونه زغمل۔

② دويم باب:۔ د الله جَلَّ جَلَالُهٗ نه خوف او ويَره چه د اصحابو کرامو رضي الله عنهم خاص عادت وو۔

③ دريم باب:۔ د اصحابو کرامو رضي الله عنهم د زاهدانه او فقيرانه ژوند نمونه۔

④ څلورم باب:۔ د اصحابو کرامو رضي الله عنهم د تقوىٰ او پرهيز گارئ حالت۔

⑤ پنځم باب:۔ د مونځ شوق او د هغے اهتمام۔

⑥ شپږم باب:۔ همدردی او ځان نورو له ورانه ے کول او د الله تعالىٰ په لاره کښں خرڅ کول۔

⑦ اووم باب:۔ بهادری او زړهٔ ورتوب او همّت او شجاعت او د مرګ شوق۔

⑧ اتم باب:۔ علمی مشغلے او د علمی محنت نمونے۔

⑨ نهم باب:۔ د نبی اکرم صلى الله عليه وسلم د ارشاداتو تعميل۔

⑩ لسم باب:۔ د زنانو دينی جذبه او بهادری او د نبی اکرم صلى الله عليه وسلم د اولاد بيان۔

⑪ يولسم باب:۔ د بچو دينی شوق او په وړوکوالی کښں د دين اهتمام۔

⑫ دولسم باب:۔ د نبی اکرم صلى الله عليه وسلم سره د محبت نمونه۔

خاتمه:۔ د اصحابو کرامو رضي الله عنهم حقونه او د هغوی مختصر فضيلتونه۔



# اول باب

## دَدین له خاطره سختئ تیرَوَل تکلیفونه او مُشقتونه زغمل

نبی اکرم ﷺ او اصحابو کرامو رضی الله عنهم دَدین په خورَولو کښې چه څومره تکلیفونه او مُشقتونه تیر کړی دی د هغې تیرَوَل خو لیو خوا د هغې اراده کول هم زمونږ په شان نالائقو ته گرانه ده۔ دتاریخ کتابونه ددے واقعاتو نه ډک دی۔ په هغې عمل کوَل خو جُدا (خبره) ده، مونږ د هغې دمعلومولو تکلیف هم نهٔ کوُو۔ په دے باب کښې څو قصے دنمونے په طور ذکر کوَل دی۔ په دے کښې دټولو نه رومبے په خپله دنبی اکرم ﷺ یو قصے نه شروع کوُم چه دنبی علیه الصلوٰة والسلام ذکر دبرکت ذریعه ده۔

### ① دنبی اکرم ﷺ دطائف دسفر قِصه

نبوّت ملاویدو نه پس نهه کاله نبی کرم ﷺ مَکه مُکرّمه کښې تبلیغ کوُلو او دقوم دهدایت او اصلاح کوشش یے کوُلو۔ خو دَلږے غوندے ډلے نه سِوا چه مسلمانان شوی وُو او لږ غوندے داسے خلق چه مسلمانان نهٔ وُو خو دَ نبی علیه الصلوٰة والسلام امداد به یے کوُلو۔ اکثرو دمکے مُکرّمے کافرانو نبی علیه الصلوٰة والسلام او دِ دوی اصحابو کرامو رضی الله عنهم ته هر قِسمه تکلیفونه رسَوُل، تو قے به یے وریبورے کوُلے او څهٔ چه به ترے کیدلے شو اِیْلَه یے پرے نهٔ کوُله۔ دنبی علیه الصلوٰة والسلام تره اَبُو طالب هَم هغے نیکِ له خلقو کښې وو چه مسلمان نهٔ وو، خو دَ نبی علیه الصلوٰة والسلام به یے هر قِسمه امداد کوُلو۔ (دنبوّت) په لسم کال چه اَبُو طالب هُم وفات شو نو کافرانو ته نوره هَم د هر قِسمه په اَزادئ د اسلام نه دمنع کوُلو او مسلمانانو ته دتکلیف رسَوُلو موقع په لاس ورَغله۔ نبی اکرم ﷺ په دے خیال طائف ته تشریف یورِهٔ چه هلته د ثقیف قبیله لویه ډله ده۔ که چرے دغه قبیله مُسلمانه شی نو مسلمانانو ته به ددے تکلیفونو نه خلاصے او ددین دخوریدلو

بنیاد به قائم شی. هلته رسیدلو نه پس د قبیلې د رې سردارانو سره چه د لوئ درجې ګڼړلې شو، خبرې اترې اوکړې او د الله تعالیٰ دین طرفته یې رااوبلل او د الله رسول یعنې خپل مدد طرف ته یې متوجه کړل. خو دې خلقو په ځائې د دې چه د دین خبره یې قبوله کړې وې، یا کم نه کم د عربو د مشهورې میلمستیا په لحاظ د یو نوی راغلی میلمه یې خاطر مدارکړې وې صفا جواب یې ورکړو او ډیر په بې رُخئ او بد اخلاقئ سره پیش راغلل. هغوی دا هم خوښه نه کړه چه نبی ﷺ دلته پاتې شی. کوم خلق یې چه سرداران ګڼړلې وُو او ورسره یې خبرې کړې وې چه دوی به شریفان وی او په ادب به خبرې اوکړی په هغوی کښې یو اووې چه اوهو! بس هم ته الله نبی جوړکړې او رالیږلې یې. دویم اووې چه الله ستا نه سوا نور څوک نه مُوندل چه هغه یې رسول رالیږلې وې. دریم اووې چه زه تا سره خبرې کول نه غواړم ځکه که چرې ته واقعی نبی یې څنګه چه ستا دعوی ده نو ستا خبرې نه انکار کول د مصیبت نه خالی نه دی او که چرې دروغ وی نو څه داسې سړی سره خبرې کول نه غواړم. د دې نه پس د دې خلقو نه ناامیده کیدو سره نبی اکرم ﷺ نورو خلقو سره د خبرو کولو اراده اوکړه ځکه چه دوی خود همت او استقلال غرونه، خو هیچا قبوله نه کړه بلکه په ځائې د قبلولو یې نبی ﷺ ته اووې، څو ښار د ښهر نه زر اوزه او چرته چه ستا د خوښې ځائې وی هلته لاړشه. نبی اکرم ﷺ هر کله چه د هغوی نه ناامیده شو او واپس کیدو نو دې خلقو د ښهر هلکان ورپسې کړل چه ورپورې پوقې اوکړی لاموُنه ورپسې اوُېږ قوی، په کانړو یې اوُلی، تر دې چه د نبی ﷺ دواړه پیڅې د وینې په وتلو رنګ بنګ شوې. نبی اکرم ﷺ هم په دې حالت کښې واپس شو. کله چه په لار کښې یو ځائې د دې شریرانو نه په امن شو نو نبی ﷺ دا دعا اوغوښتله.

اَللّٰهُمَّ اِلَيْكَ اَشْكُوْ ضُعْفَ قُوَّتِيْ وَقِلَّةَ حِيْلَتِيْ وَهَوَانِيْ عَلَى النَّاسِ

اے الله تعالیٰ! تا ته شکایت کوُمه څه د خپلې کمزورئ او بې وسئ او په خلقو کښې د ذلت

يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ أَنْتَ رَبُّ الْمُسْتَضْعَفِينَ وَأَنْتَ رَبِّي إِلَى مَنْ تَكِلُنِي إِلَى بَعِيدٍ يَتَجَهَّمُنِي أَمْ إِلَى عَدُوٍّ مَلَّكْتَهُ أَمْرِي إِنْ لَمْ يَكُنْ بِكَ عَلَيَّ غَضَبٌ فَلَا أُبَالِي وَلَكِنْ عَافِيَتُكَ هِيَ أَوْسَعُ لِي أَعُوذُ بِنُورِ وَجْهِكَ الَّذِي أَشْرَقَتْ لَهُ الظُّلُمَاتُ وَصَلُحَ عَلَيْهِ أَمْرُ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ مِنْ أَنْ تُنْزِلَ بِي غَضَبَكَ أَوْ يَحِلَّ عَلَيَّ سَخَطُكَ لَكَ الْعُتْبَى حَتَّى تَرْضَى وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِكَ.

(كذا في سيرة ابن هشام قلت و اختلفت الروايات في الفاظ الدعا كما في قرة العيون)

او رسوائئ۔ اے أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ! ته د ضعيفانو رَب يې او ته خما پروردګار يې ته ما چا ته حواله کوے۔ چا اجنبي ته چه ما اُووينی تندے تريو کړی، يا چا دشمن ته چه هغهٔ ته تا په ما قابو ورکړهٔ۔ اے الله تعالیٰ! کهٔ چرے ته ما نه ناراضه نهٔ يې نو ما ته د هيڅ پرواه نشته۔ ستا حفاظت ماله بس دے۔ خهٔ ستا د مخ د هغې رڼړا په طفيل په کومے سره چه تولے تيارے روښانه شوے او په کومے سره چه د دُنيا او اخرت ټول کارونه سميږی، د دے خبرے نه پناه غواړم چه په ما باندے دِ ستا غُصه وی يا ته ما نه ناراضه يې۔ ستا ناراضتيا تر هغه وخته پورے لرے کول ضروری دی ترڅو چه ته راضی شوے نهٔ يې۔ ستا نه سوا نه څهٔ طاقت شته نهٔ قوّت۔

د مَالِكُ الْمُلْك شانِ قَهَّارِیُ ته په دے باندے جوش راتلل وُو چه حضرت جبرئيل عليه السلام راغے۔ د سلام نه پس يې عرض اُوکړهٔ چه الله تعالیٰ ستا د قوم هغه خبرے چه تا سره اُوشوے، واوريدے او د هغوی جوابُونه يې هم واوريدل او يو ه فرښته چه د هغې متعلق د غرُونو خدمت دے تا سو ته راليږلے د ه چه تاسو څنګه غواړئ نو دِے ته حُکم ورکړئ۔ د ے نه پس هغې فرښتے سلام اُوکهٔ او عرض يې اُوکړهٔ چه څهٔ تا سو ارشاد فرمائی څهٔ د هغې تعميل اُوکړم۔ کهٔ چرے ارشاد وی نو د دواړو طرفونو غرُونه به يو ځائ کړم چه په هغې به دا ټول په مينځ کښ چخنړی شی۔ او کهٔ نور ه څهٔ سزا تاسو تجويز کوئ اُوفرمائی۔ د نبی عليه الصلوٰة والسلام رحيم او کريم ذات جواب ورکړهٔ چه

حَقُّ دالله تعالیٰ نه ددے اُمید لرم . که چرے دوی مسلمانان نهٔ شو نو ددوی په اولاد کښې به داسے خلق پیدا شی چه دالله تعالیٰ بندګی او عبادت به کوی .

**فائده** :۔ دا دی اخلاق دهغه کریم ذات چه دچا مونږ خلق نوم اخلو . مونږ په لږ غوندے تکلیف یا دچا معمولی غوندے کنځل کولو سره داسے داُورپه شان لمبه شو چه بیا تول عُمر دهغے بدله نهٔ خلاصیږی ظُلم دپاسه ظُلم په هغهٔ باندے کوُو او دعوی کوُو دخپل مُحمّدی کیدو او دنبی دتابعدارئ . نبی اکرم ﷺ سره ددے دومره سخت تکلیف او مُشقت نهٔ خیرے کوی او نهٔ حَقهٔ بدله اخلی .

## ② دحضرت اَنَسْ بن نَضَر رضی الله عنه دشهادت قِصه

حضرت اَنَسْ بنِ نَضَر رضی الله عنه یو صحابی وو چه دبَدر په جنګ کښې شریک شوے نهٔ وو ، هغهٔ ته ددے څیز سخت غم او درد وو . په دے به یے خپل نفس مَلامته کولو چه داِسلام رُومبے عظیمُ الشّان جنګ او ته په هغے کښې شریک نهٔ شوے . دا یے ارزو وه که چرته بل جنګ شو نو ارمان به پوره کرم . اِتفاقًا د اُحد جنګ پیښ شو چه په هغے کښې دے په لویه بهادرئ او زړه وَرتیا سره شریک شو . د اُحد په جنګ کښې اول اول خو مُسلمانانو ته فتح اُوشوه خو په آخر کښې دیو غلطئ په وجه مسلمانانو ته شکست اُوشو . هغه غلطی دا وه چه نبی اکرم ﷺ څهٔ کسان په یو خاص ځائ مُقرر کړی وُو چه تا سو به ددے ځائ نه تر څو چه ما درته وئیلی نهٔ وی ، نهٔ خوزَئ چه له دغه طرفه ددُشمن دحملے وَیره وه . هرکله چه مسلمانانو ته په شروع کښې فتح اُوشوه او کافران یے په تیخته اُولیدل . نو دوی خپل ځائ په دے خیال پریخودهٔ چه اُوس جنګ ختم شو . تختیدونکو کافرانو پسے تلل پکار دی چه دغنیمت مال حاصل کړے شی . ددے ټولګی سردار منع هُم کړل چه د نبی علیه السلام مُمانعت دے چه تاسو دے ځائ نه مهٔ خوزئ خو دغے خلقو دا خیال اُوکړو چه دنبی علیه السلام ارشاد صِرف دجنګ دوخت دپاره وو . دغه

ځائې نه لرې شول اوميدان ته اُورسيدل۔ تختيدونکو کافرانو داځائې خالي اُوليدو نوله دغه طرفه راغلل حمله یې اُوکړه۔ مسلمانان بې فکره وُو، دِې ناګهاني دبې خبرئ حملې سره بابيلونکې شول اوله دواړو طرفو د کافرانو په مينځ کښې راغلل په دِې وجه اخوا دیخوا پريشانه تختيدل حضرت اَنَس رضي الله عنه اُوليدل چه مخامخ يوبل صحابي حضرت سَعْد بن مُعَاذ رضي الله عنه راروان دې هغهٔ ته یې اُوویل اې سَعْدَه! چرته ځې؟ په الله تعالیٰ م دِ قسم وي دجنت خوشبوئي داُحد دَغرنه راځي۔ دا یې اُووې اوتوره خو یې په لاس کښې وه۔ دکافرانو په ګڼړه کښې ورننوتهٔ، ترڅو چه شهيد شوې نهٔ وُو واپس نهٔ شو۔ دشهادت نه پس دهغهٔ بدن اُوکتلې شونوغلبيل شوې وو۔ داتيا وُنه زيات زخمونه دغشي او دتورې یې په بدن باندې وو۔ خور دې دګوتو په بندُ ونُو سره اُوپيژندهٔ۔

**فائده**:۔ کوم خلق چه په اخلاص اورېښتني طلب سره دالله تعالیٰ په کارکښې اُولګي هغوی ته په دُنيا کښې دجنت مزه راځي۔ دِې حضرت اَنَس رضي الله عنه په ژوندانهٔ د جنت خوشبوئي بوئوله۔ کهٔ چرې اخلاص په سړي کښې راشي نوپه دُنيا کښې ورته دجنت مزې راځي۔ ماديومُعتبرسړي نه چه دحضرت مولانا شاه عبدالرحيم صاحب رائپوري رحمۃ الله علیه مخلص خادم وو، دحضرت مَقوله يعنی وينا اَوريدلې ده چه "دجنت مزه راځي" په فضائلِ رمضانؒ کښې م داقصه ليکلې ده۔

## (۳) صُلحِ حُدَيبِيَه او دابُوجَندَل اوابُوبَصِير رضي الله عنهما قِصه

سنه ۶ھ کښې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم دعُمرې په اراده مکې مکرمې ته تشريف اُوړهٔ۔ دمکې کافران په دې خبرشو۔ اوهغوی داخبرخپل سپکاوې اُوګڼړهٔ۔ په دې وجه یې مُقابله اُوکړه۔ اوپه حُدَيبِيَه کښې نبي علیه الصلوٰۃ والسلام ايسار شو۔ جانثار صحابه ورسره وُو چه په نبي علیه الصلوٰۃ والسلام یې ځان قُربانول خپل فخرګڼړهٔ، جنګ ته تيار شو۔ خونبي علیه الصلوٰۃ والسلام دمکې والوله خاطره دجنګ اراده اُونهٔ کړه اودصُلح کوشش یې اُوکړهٔ۔ سره ددې چه اصحاب رضي الله عنهم په پوره بهادرئ جنګ

ته تیار وُو خو نبي اکرم ﷺ د کافرانو دومره رعایت اُوکړهٔ چه د هغوی هریو شرط یے قبول کړهٔ۔ اصحابو رضي الله عنهم ته داسے د زور لاندے صلح کول خوښ نهٔ وُو. خو د نبي اکرم ﷺ د اِرشاد مخکښ څهٔ کیدے شو چه جان نثار وُو او فرمانبردار. څکه د حضرت عمر رضي الله عنه په شان بهادرانو هم اُومنله. په صلح کښ چه کوم شرطونه فیصله شو په هغے کښ یو شرط دا هم وو چه د کافرانو نه کهٔ څوك مُسلمان شي او هجرت اُوکړي (مدینے ته لاړشي) مُسلمانان به هغه مکے ته واپس کوي او مسلمانانو نه الله مهٔ کړه کهٔ څوك مُرتَد شي (مکے ته راشي) نو هغه به واپس کولے نهٔ شي. دا صُلح نامه لا پوره لیکلے شوے نهٔ وه چه حضرت اَبُوجَندَل رضي الله عنه یو صحابي وو چه د اِسلام راوړلو په وجه یے قِسما قِسم تکلیفونه تیرَوُل او په زنځیرونو کښ یے تړلے وو. په دے حالت کښ غورزیدو پریوتو د مُسلمانانو لښکر ته په دے اُمید را اُورسیدهٔ چه دوی به څما امداد اُوکړي او دے مُصیبت نه به خلاص شم. د هغهٔ پلار سُهَیل چه په دے صلحنامه کښ د کافرانو له طرفه وکیل وو او دغه وخته پورے مسلمان شوے نهٔ وو. بیا فتحِ مکه کښ مُسلمان شو. دهٔ خپل خوئ په څپیړو اُووههٔ او په واپس بوتلو یے اِصرار اُوکړهٔ. نبي علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه لا تر اُوسه صُلحنامه لیکلے شوے هم نهٔ ده نو پابندي د څهٔ خبره. خو هغهٔ اصرار اُوکړهٔ. بیا نبي علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل چه یو سړے ما ته څما په خواست راکړئ خو هغه خلق په ضد وُو وے نهٔ منل. اَبُوجَندَل مُسلمانانو ته چغے اُووَهلے فریادیے اُوکړهٔ چه څهٔ مسلمان شوے یم او راغلے یم. څومره مصیبتونه مِ اُوچت کړل، اُوس څهٔ واپس کولے شم. دغه وخت د مسلمانانو په زړونو چه څهٔ تیریدل، بس الله تعالیٰ ته معلومه ده خو د نبي علیه الصلوٰة والسلام په ارشاد سره واپس شو. نبي علیه الصلوٰة والسلام ورته تسلي ورکړه او د صَبر کولو حُکم یے ورکړهٔ او وے فرمایل چه زر به الله جلّ شانهٗ ستا د پاره لار را اُوباسي. د صلحنامے مُکمل کیدو نه پس یو بل صحابي اَبُوبَصِیر رضي الله عنه هم مُسلمان شو او مدینے مُنورے ته را اُورسیدهٔ. کافرانو د هغهٔ واپس راوستو د پاره دوه سړي اُولیږل. نبي اکرم ﷺ د وعدے مطابق واپس کړهٔ۔

اَبُوبَصِیر رضی اللہ عنہ عرض هَم اُوکړهٔ، اے دالله رَسُولَه! څهٔ مسلمان شوے راغلے یم تا سو ما د کافرانو پنجے ته بیا لیږئ. نبی علیه الصلاة والسلام دهٔ ته هم د صبر کولو ارشاد اُوفرمایهٔ. او ورته فرمایل چه اِنْشَاءَ الله ډیر زر به ستا د پاره لاره پرانستے شی. دا صحابی هغه دواړو کافرانو سره واپس شو. لاره کښې د هغوی نه یے تپوس اُووے "یار داستا توره خو ډیره ښائسته معلومیږی". تعریف خوښونکے سړے په لږه خبره (د خوشحالئ نه) چاموکښې نهٔ ځائیږی. هغهٔ زر د تیکی نه توره را اُوایستله، ورته ویل اَو. ما په ډیرو خلقو د دے تجربه کړے ده. دا یے اُوویل او توره یے هغه ته ورکړه. هغهٔ هم په دهٔ باندے د هغے تجربه اُوکړه. (یعنی مړ یے کړهٔ) دویم ملګری چه دا اُولیدل چه یو خو یے ختم کړهٔ اُوس څما نمبر دے، په تیښته مدینے ته راغے او د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو عرض یے اُوکړهٔ چه څما ملګرے قتل شو اُوس څما نمبر دے دے نه پس ابُوبصیر رضی الله عنه اُورسیدهٔ عرض یے اُوکړهٔ، اے دالله رَسُوله! تا سو خپله وعده پوره کړه چه څهٔ دِ واپس کړم او ما سره د دے خلقو څهٔ وعده نشته چه د هغے ذمه داری وی. دوی ما د خپل دین نه اړوی څکه ما داسے اُوکړل. نبی علیه الصلاة والسلام اُوفرمایل د جنګ تازه کوونکے دے. ارمان! څوک د دهٔ مرسته کوونکے ملګار وے. هغه په دے خبره پوهه شو چه اُوس هم څما په طلب کښې څوک راشی نو څهٔ به واپس کړے شم. په دے وجه هغه د دغه ځائ نه لاړو، د سمندر په غاړه یے یو ځائ ډیره واچوله. د مکے خلقو ته د دے قصے حال معلوم شو نو ابُوجَنْدَل رضی الله عنه هم چه د هغهٔ قصه اُوس تیره شوه، په پټه هغه ځائ ته اُورسیدهٔ. د غسے چه څوک به مسلمانیده هغهٔ به دوی سره ملاویدهٔ. څو ورځو کښې دا یو مختصر ټولګے جوړ شو. ځنګل کښې د غلته نهٔ د خوراک څهٔ انتظام نهٔ هلته څهٔ باغونه او ابادی وے چه په دے خلقو به څهٔ تیر شوی وی هغه خو الله تعالیٰ ته معلومه ده خو د کوم ظالمانو د ظلمونه چه دوی پریشانه شوی وو او تختیدلی وو د هغوی لاره یے بنده کړه. کومه قافله چه به اخوا تله، هغوی سره به یے مقابله او جنګ کولو. تر دے چه کافران پریشانه

شول۔ د نبي عليه الصلوٰة والسلام په خدمت کښې یې سرېے اُو لیږۀ۔ د الله تعالیٰ او د خپلو نبي واسطه یې ورکړه۔ په عاجزۍ او په منت یې ورته عرض اُوکړۀ چه دا بې سرَه تو لګے خپل ځان ته راوُبله چه دوی خوهم په مُعاهده کښې داخل شي او څوننږ پیاره د تلو راتلو لاره پرانستلے شي۔ لیکې چه د نبي عليه الصلوٰة والسلام اجازت نامه کله چه دے حضراتو ته اُورسیده نو ابُوبصیر رضی الله عنه د مرګ په حالت کښې وو۔ د نبي عليه الصلوٰة والسلام خط یې په لاس کښې وو چه په دې حالت کښې وفات شو۔ رضی الله عنه وارضاه (بخاري فتح)

**فائده:-** سرېے کۀ چرے په خپل دین کښې پوخ وی په شرط د دې چه دین هم ریښتنے وی نو لوئ نه لوئ طاقت هغه نشي اړولے او د مُسلمان د مدد کولو خود الله تعالیٰ وعده ده په شرط د دے چه هغه مسلمان وی۔

## ⑭ د حضرتِ بِلال حَبَشيُ رضی الله عنه اِسلام او مُصیبتونه

حضرتِ بِلال حَبَشي رضی الله عنه مشهور صحابي دے چه د مسجدِ نبوی همیشه مُوَذِن پاتے شوے دے۔ په شروع کښې د یو کافر غُلام وو، اسلام یې راوړۀ چه د هغې په وجه قِسما قِسم تکلیفونه ورکولے شُو۔ اُمَیَّه بنِ خَلَف چه د مسلمانانو سخت دُشمن وو۔ دۀ به حضرت بلال رضی الله عنه په سخته ګرمئ کښې د غرمے په مخت پر تو دو شګو ستونے ستغ سملاوۀ او په سینه به یې ورته لوئ ګټ کېخودۀ چه اُونۀ خوَځي او ورته به یې ویل۔ یا په دے حالت کښې مړشه او کۀ ژوند غواړې نو د اسلام نه واوړه خو هغۀ به په دے حالت کښې هُم اَحَد اَحَد ویل یعنې د عبادت لائق صِرف یو دے۔ د شپے به یې په زنځیرونو کښې اُوتړۀ او په کرُوړو به یې وهلو۔ بیا د ورځې به یې په دے زخمي حالت کښې په زمکه ولېولو نو زیات به زخمي کوُلے شو چه بے قراره شي د اسلام نه واوړي یا تا قلارئ کښې لتو تکولو سره مړشي۔ عذاب ورکونکي په سترې شُو کله به د ابُوجهَل نمبر راتۀ، کله د اُمیَّه بنِ خَلَف، کله د نورو۔ او هر سړي به د دې کوشش کولو چه په تکلیف رسَولو کښې زور ختم کړي۔ حضرت ابُوبکر صِدّیق رضی الله عنه په دے حالت کښې اُولیدۀ نو په بیعه یې واخِستۀ آزاد یې کړو۔

**فائدہ:** دعربو بُت پرستو به خپلو بُتانو ته خدایان ویل۔ ددے په مقابله کښ داِسلام تعلیم دتوحید وو۔ په دے وجه دحضرت بلال رضی اللہ عنہ په ژبه صرف یو دے یو دے بار بار وظیفه وه۔ دا تعلق او دعِشق خبره ده۔ مونږ د دروغو محبتونو کښ وینو چه چا سره محبت شی دهغهٔ نوم اخستلو کښ مزه راځی بے فائدے هغه بیا بیا ویلے شی۔ نو د اللہ تعالیٰ د محبت به څهٔ وایے چه په دین دُنیا دواړو ځایونو کښ په کار راتلونکے دے۔ هم دا وجه ده چه حضرت بلال رضی اللہ عنہ به هر قِسمه کړولے شو، سختو نه سخت تکلیفونه به ورته رسولے شو۔ دمکے هلکانو ته به یے حواله کړه چه هغوی ورله په لار و کوڅو کښ چکرے ورکړی او دے و وچه یو هم یو دے وظیفه به یے باربار کوله۔ ددے ورته دا بدله ورکړے شوه چه بیا دنبی علیہ الصلوٰۃ والسلام په دربار کښ مؤذن شو۔ سفر او مُقام کښ همیشه داذان خدمت دهٔ ته اُوسپارلے شو۔ دنبی علیہ الصلوٰۃ والسلام دوفات نه پس مدینه مُنوره کښ اُوسیدل او دنبی علیہ الصلوٰۃ والسلام ځای خالی لیدل ورته مشکل شو۔ په دے وجه یے اراده اُوکړه چه دخپل ژوند څو مره وُرځے چه دی، جهاد کښ تیرے کړم۔ جهاد کښ د شرکت په نیت روان شو۔ څهٔ مودے پورے مدینے مُنورے ته واپس رانغے۔ یو وارے یے دنبی علیہ الصلوٰۃ والسلام په خوب کښ زیارت اُوکړهٔ۔ نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام ورته اُوفرمایل، اے بلاله! دا څهٔ ظلم دے ماته چرته نهٔ راځے۔ دخوب نه پاسید و سره مدینے مُنورے ته لار و۔ حضرت حسن حسین رضی اللہ عنہما ورته داذان فرمائش وُکړهٔ۔ د نیازبینو فرمائش داسے نهٔ وو چه پکښ دا نکار ځائی وے۔ آذان یے شروع کړهٔ او مدینه کښ دنبی علیہ الصلوٰۃ والسلام د زمانے آذان غوږونو کښ پریوتل وُچه یو شور او غوغا شوه۔ زنانه هم دکورونو نه په ژړا راأوتلے۔ څو ورځے ایسار یدو نه پس واپس شو او سنه ۲۰ هـ ته نزدے دمِشق کښ وفات شو۔ (اسد الغابہ)

## ⑤ دحضرت ابوذر غفاری رضی اللہ عنہ اسلام

حضرت ابوذر غفاری رضی اللہ عنہ مشهور صحابی دے۔ رستو دلویو زاهدانو او لویو عالمانو نه شو۔ دحضرت علی کرم اللہ وجهه ارشاد دے چه ابوذر رضی اللہ عنہ داسے

عِلم حاصل کړے دے چه دهغے نه خلق عاجزدی خو هغوی هغه محفوظ ساتلے دے۔ هرکله چه دهٔ ته د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د نبوّت په ړومبی حَل خبر اُورسید لو، دهٔ خپل رور د حالاتو د تحقیق دپاره مکے ته اُولیږهٔ چه څوك دا دعوی کوی چه ما ته وحی راځی، اسمانی خبرونه راځی، د دهٔ حالات معلوم کړه او د هغهٔ خبرے په غور واوره۔ هغه مکے مکرّمے ته راغے او حالات معلوم کړلو نه پس رورته ورغے او وے ویل چه ما هغوی د ښو عادتونو او ښو اخلاقو په حکم کولو اُولیدهٔ۔ او د اسے کلام مِ ترے واوریدهٔ چه نهٔ شعر دے او نهٔ د کاهنانو رجادُوګرو) خبرے دی۔ دابُوذر رضی الله عنه په دے مختصره خبره تسلی اُونهٔ شوه۔ په خپله یے دسفر سامان تیار کړهٔ او مکے ته اُورسیدهٔ او نیغ مسجدِ حرام ته لاړو نبی علیه الصلوٰۃ والسلام یے نهٔ پیژندهٔ او د چانه پوښتنه یے د مصلحت نه خلاف اُوګڼڵه۔ د ماښامه پورے په دے حال کښ وو۔ ماښام حضرت علی کرّم الله وجهه اُولیدهٔ چه یو نااشنا مُسافر دے۔ د مسافرانو، غریبانانو، بے وطنو خبرګیری د هغوی ضرورتونه پوره کول د دے حضراتو په کُهتی کښ پراته وُو۔ خپل کورته یے راوست، میلمستیا یے اُوکړه خو د پوښتنے یے ترے څهٔ ضرورت اُونهٔ ګڼړه چه څوك یے څنګه راغلے یے، مُسافر هم څه ظاهره نهٔ کړه۔ صبا بیا جُمات ته راغ او تول ورځ یے په دے حال کښ تیره شوه۔ چه په خپله ورته پته اُونهٔ لګیدا او پوښتنه یے د چا نه اُونهٔ کړه۔ غالباً د دے وجه به دا وه چه نبی علیه الصلوٰۃ والسلام سره دَ دُشمنئ قصے ډیرے مشهورے وے۔ نبی علیه الصلوٰۃ والسلام او دوی سره ملاویدونکو ته هر قِسمه تکلیفونه ورکولے شو۔ د دهٔ به دا خیال وو چه صحیح حال به معلوم نشی او دید ګمانئ په وجه به په ما نوکښ تکلیف اُوچت کړم۔ د ویمه ورځ ماښام بیا حضرت علی رضی الله عنه ته خیال اُوشو چه بے وطنه مُسافر دے په ظاهر کښ چه څهٔ غرض دپاره راغلے دے هغه پوره نهٔ شو ځکه یے بیا کور ته راوست۔ دشپے یے ورے خوراك او خوب اُوکړو خو د پوښتنے ترے په دے شپه هم وار رانغے۔ دریمے شپے ته بیا هُم دا حالت شو۔ نو حضرت علی رضی الله عنه ترے پوښتنه اُوکړه چه تاسو څهٔ کار د پاره راغلی یئ؟ څهٔ دِ غرض دے؟ نو حضرت ابُوذر رضی الله عنه

اول هغهٔ ته قَسَم ورکړهٔ وعده یې ترې واخسته چه صمیم حال به بنا ئې
دې نه پس یې ورته خپل غرض اُوښودلو. حضرت علی کرّم الله وجهه اُوفرمایل
چه بیشکه هغه د الله رَسُول دے. اوصبا چه کله څهٔ څُم نو ته هم راسره لاړ شه
هلته به دِ اُورَسَوُم. خود مخالفت زور دے. د دې دپاره په لاره کښې کهٔ چرې
ما ته څوك داسې سړے مخې ته راغے چه د هغهٔ نه ستا څما سره په تلو څهٔ ویره
وی نو څهٔ به ورېږ بولو ته کینم یا به خپله پېزره سَمَوُم، ته نیغ روان اُوسه
ما سرهِ مهٔ اُودرېږه. په دې وجه چه ستا څما سره تلل معلوم نشی. دغه
شان سَحَر د حضرت علی کرّم الله وجهه رُستو رُستو د نبی علیه الصلوٰة والسلام خدمت کښې اُورسیدهٔ
خبرې اترې اُوشوې. سمدستی مسلمان شو. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د هغهٔ دَ
تکلیف په خیال اُوفرمایل چه خپل اسلام اُوس مهٔ ښکاره کوه. پټ خپل
قوم ته لاړ شه هرکله چه څمونږ غلبه شی هغه وخت راشه. هغهٔ عرض اُوکړهٔ
اے د الله رَسُوله! (صلی الله علیه وسلم) په هغه ذات مِ دِ قَسَم وی د چا په قبضه کښې چه څما ساه
ده چه د اکلمهٔ توحید به د دغې بې ایمانانو په مینځ کښې په زوره وایمه. هغه
وخت یې مسجدِ حرام ته تشریف یوړهٔ او یه اُوچت آواز یې اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا
اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ اُووے. بیا څهٔ وُو د څلورو اړو طرفونه
خلق ورپاسیدل او د ومره یې اُووَهٔ چه زخمی شو، مرګ ته نزدې شو. دَ نبی
علیه السلام تره حضرت عبّاس رضی الله عنه چه تر دغې وخته پورې مسلمان شوې نهٔ
وو، د هغهٔ د پاسه د بچ کولو دپاره سملاسته اوخلقو ته یې اُووے چه څهٔ ظلم
کوئ. دا سړے د قبیله غِفار دے او دا قبیله د ملك شام په لاره کښې پرته ده
ستاسو تجارت وغیره ټول ملك شام سره دے کهٔ چرې دے مړ شو نو شام ته
به تلهٔ راتلهٔ بند شی. په دې خبره د دغې خلقو ته هم خیال پیدا شو چه د ملك
شام نه څمونږ ټول ضرورتونه پوره کیږی د دغه لاره بندیدل مُصیبت دے
په دې وجه یې هغه پرېخودهٔ. دویمه وُرځ بیا دغه شان مسجدِ حرام ته لاړو او
یه اُوچت آواز یې کلمه اُوویله. خلقو د دې کلمې د آوریدو طاقت اُونهٔ لرلو او
پرې وَر مَخې شو. دریمه وُرځ بیا حضرت عبّاس رضی الله عنه هغه شان هغوی

پوهه کړل اولړے یے کړل چه ستا سود. آرت لاړه به بنده شی.

**فائده:** دنبی علیه السلام دد ے ارشاد سره چه خپل اسلام پټ ساته، دهغه دا کار دحق ښکاره کولو تو جوش او جذبه وه چه هر کله دا دین حق دے، نو د چا د پلاره څهٔ تپیکه ده چه دهغهٔ دویرے د پټ کړے شی. او د نبی علیه السلام منع کول د شفقت له وجے وو چه کیدے شی تکلیفونه اُونهٔ زغملے شی. کنی د نبی علیه السلام د حکم نه خلاف دا صحابو کرامو رضی الله عنهم دا مجال اړو وُو نهٔ. د دے څهٔ نمونه مستقل باب کښ راروانه ده. چونکه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په خپله دین خورَوَلو کښ هر قِسمه تکلیفونه زغمَل یه د ے وجه حضرت اَبُوذر رضی الله عنه په اسانتیا باندے عمل کولو په ځائے د نبی علیه السلام تابعداری غوره کړه. همُ دا یو خیز وو چه دَ دے په وجه هر قِسمه ترقی دِینی او دُنیَوی دا صحابو کرامو رضی الله عنهم قدمُو نه ښکلول او هر یو میدان دهغوی په قبضه کښ وو چه چا به یو وارے کلمهٔ شهادت اُووَیله، د اِسلام د جهنډے لاندے به راغے نو لوئی نه لوئی طاقت به هغه تهٔ شو منع کولے او نهٔ لوئی نه لوئی ظُلم به هغه د دین دخورَوَلو نهٔ لرے کولے شو.

## ⑥ دحضرت خَبَّاب بنِ الاَرَتّ رضی الله عنه تکلیفونه

حضرت خَبَّاب بنِ الاَرَتّ رضی الله عنه دهغهٔ مُبارکو هستونه دے چه چا دا امتحان دپاره خپل ځان وَراندے کړے وو او د الله تعالیٰ په لار کښ یے سختو نه سخت تکلیفونه تیر کړی وُو. په شروع کښ د پنځو شپږو سړو نه پس مسلمان شوے وو ځکه یے ډیرے زمانے پورے تکلیفونه اُوچت کړل. دا وُ سپینے زغره به یے ورته وا غوستوله او غرمو کښ به یے اُوغور زَوُلو چه د ډیرے گرمئ او تاؤ په وجه خَوَلو باندے خوَلے به ترے بهیدلے. اکثر وختونو کښ به بالکل ستونے سته په گرمو شگو سملاوُلے شو چه دهغهٔ په وجه یے دَ ملا غوښه وُرسته شوے اُوغور زیده. دِ دے دیو ے ښځے غلام وو هغه خبر شوه چه د ے د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سره ملاویږی. د دے په سزا کښ به یے

اُوسپینه کړمه کړه او په سر به یې داغ ورکوُلو. حضرت عمر رضی الله عنه یو ځل
څهٔ موده پس په خپله زمانهٔ خلافت کښې دحضرت خبّاب رضی الله عنه نه د هغې
تکلیفونو تفصیل تپوس اُوکړهٔ چه کوم دهٔ ته رسیدلی وُو. دهٔ عرض اُوکړهٔ
چه ځما ملا اُوګوره. حضرت عمر رضی الله عنه د دهٔ ملا اُوکتله. وے فرمایل چه
داسے ملا خو ما اَو دچا لیدلے نهٔ ده. دهٔ عرض اُوکړهٔ چه ځهٔ به یې د اَور په
سرُو ټکو واچولم، او زَایه یې خکلم. ځما د ملا وازګے او وینې سره به هغه
اُور مړ شو. سره د دے حالاتو کله چه د اِسلام ترقی شوه او دفتوحاتو دروازه
پرانستلے شوه نو په دے به یې ژړل چه الله مکره چرته ځمونږ د تکلیفونو
بدله په دُنیا کښې خو ملاؤ نهٔ شوه. حضرت خبّاب رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل
نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د عادت نه خلاف ډیر اُوږد مونځ اُوکړهٔ. اصحابو کرامو د هغې
باره کښې تپوس اُوکړهٔ. نبی علیه الصلوة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه دا د رَغبت او د ویرے
مونځ وو. ما په دے کښې د الله تعالیٰ نه درے دُعاګانے اُوکړے. دوه پکښې
قبولے شوے او دیوے نه یې انکار اُوفرمایلو. ما دا دُعا اُوکړه چه ځما ټول
اُمت په قحط هلاک نشی. دا قبوله شوه. دویمه م دا دُعا اُوکړه چه په دوی
دِ داسے دُشمن مقرر نشی چه دوی بیخی ختم کړي، دا هم قبوله شوه. دریمه
م دا دُعا اُوکړه چه د دوی دِ په خپل مینځ کښې جنګ جهګړه نهٔ وی. دا خبره
منظوره نهٔ شوه. دحضرت خبّاب رضی الله عنه وفات د اُوهٔ دیرش کالو په عمر کښې
اُوشو او په کوفه کښې دټولو نه رُومبے صحابی هم دے دَفن شو. دهٔ د وفات نه
پس حضرت علی کرم الله وجهه دهٔ په قبر تیریدهٔ نو ارشاد یې اُوفرمایهٔ الله تعالیٰ
دِ په خبّاب رحم اُوکړي. په خپله خوښه مُسلمان شو او په خوشحالئی یې
هجرت اُوکړهٔ او په جهاد کښې یې ژوند تیر کړهٔ او مصیبتونه یې تیر کړل.
مُبارک دے هغه کس چه قیامت یاد ساتی او د حساب کتاب تیاری کوی او
د ګذارے قابل مال باندے صبر کوی او خپل مَولیٰ (یعنی الله تعالیٰ)
راضی کړي. (اُسدُ الغابه)

**فائده:-** په حقیقت کښې د مولیٰ راضی کول هم د دغه خلقو حصه وه چه د دوی

دژوند هر یو کار د مولیٰ د رضا د پاره وو.

## ⑦ حضرت عمّار رضی اللہ عنہ او د هغهٔ د مور پلار ذِکر

حضرت عمّار رضی اللہ عنہ او د هغهٔ مور پلار ته هُم سختو نه سخت تکلیفونه رسولے شوی وُو. دمکے مکرّمے سخته گرمه شگلنه زمکه باندے به دوٴ ته عذاب ورکولے شو. او د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم به چه کله هغهٔ طرف ته تیریدهٔ نو د صبر تلقین به یے ورته اُوکرهٔ او د جنت زیرے به یے ورکرهٔ. اخر د دوٴ پلار حضرت یاسر رضی اللہ عنہ هم د دے تکلیف په حالت کښ وفات شو. ظالمانو تر مرگه پورے ارام ته پرے نخودهٔ او د دوٴ مور حضرت سُمَیّه رضی اللہ عنہا په شرمگاه کښ ابوجهل لَعِیْن په نیزه اُووهله او شهیده شوه خو د اسلام نه اُونهٔ گرزیده. حال دا چه بوډۍ وه ضعیفه وه خو دے بد نصیبه د هیڅ څیز خیال اُونهٔ ساتهٔ. په اسلام کښ د ټولو نه رُومبے شهادت د دے شوے دے او په اسلام کښ د ټولو نه رُومبے جُمات (قُبا کښ) حضرت عمّار رضی اللہ عنہ جوړ کړے دے. کله چه نبی کرم صلی اللہ علیہ وسلم هجرت اُوکرهٔ مدینے مُنورے ته یے تشریف یوړهٔ نو حضرت عمّار رضی اللہ عنہ اُوویل چه د نبی علیہ السلام د پاره یو مکان د سوری جوړول پکار دی چه پکښ تشریف بېدی، د غرمے پکښ ارام کوی او مونځ هم په سوری کښ کوی نو به قُبا کښ حضرت عمّار رضی اللہ عنہ اول کانړی راجمع کړل او بیا یے جُمات جوړ کړهٔ. په جنگ کښ به ډیر په جوش سره شریکیدهٔ. یو وارے په مزه کښ راغے، وے ویل چه اُوس به خو دوستانو سره به ملاویږو، محمّد صلی اللہ علیہ وسلم او د هغهٔ د ډلے سره به ملاویږو. په دے کښ تږے شو، د چانه یے اُوبهٔ اُوغوختلے هغهٔ ورته پئی مخکښ کړل. هغه یے اُوڅکل، وے ویل چه ما د نبی علیہ السلام نه اوریدلی وُو چه ته به په دُنیا کښ د ټولو نه اخری څیز پئی څکے. دے نه پس شهید شو. دَغه وخت یے عُمر شپږ نوی کم سل کاله وو. بعضو یو کال نیم کم بنودلے دے. (اُسدُ الغابہ)

## ⑧ د حضرت صُهَیب رضی اللہ عنہ اِسلام

حضرت صُہَیب رضی اللہ عنہ هم دحضرت عمّار رضی اللہ عنہ سره مُسلمان شوے وو.
نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم دحضرت اَرْقَم رضی اللہ عنہ مکان کښې تشریف فرما وو چه دا دواړه
جُدا جُدا په خدمت کښې حاضر شو. او دمکان په دروازه دواړه اتفاقًا یوځائ
شو. هریو دبل غرض معلوم کړو نو یو غرض دِ اسلام راوړل او دنبی صلی اللہ علیہ وسلم دفیض
نه فائده اخستل د دواړو مقصود وو، اسلام یے راوړه او د اسلام راوړلو نه پس
کوم څه چه په دےغ زمانه کښې دے لږے کمزورے ډلے ته ورپیښېدل وُهغه
ورپیښې شو. هر قسمه کړاونه او تکلیفونه ورته اُورسَوَلے شو. آخر تنګ شو او
دهجرت اراده یے اُوکړه. نو کافرانو دا خیز هُم نهٔ خوښوُو چه دا خلق دِ بل
ځائ ته لاړشی او د آرام ژوند دِ تیر کړی. په دے وجه چه دچا دهجرت حال
به ورته معلوم شو نو دهغهٔ دنیولو کوشش به یے کوُلو چه دتکلیفونو نه خلاص
نهٔ شی. نو صُهَیب رضی اللہ عنہ پسے هُم شوُ او یوه دله دده دَ نیولو دپاره لاړه. ده خپل
تَرکَش راواُویستهٔ چه په هغے کښې غشی وُو او دِے خلقو ته یے اُوویل چه ګورئ
تاسو ته ښهٔ معلومه ده چه څهٔ تاسو کښې دټولو نه زیات غشی وِیشتونکے یم.
ترڅو چه یو غشے ما سره پاتے وی، تاسو خلق ما ته نهٔ شئ رارسیدلے او کله چه
یو غشے هم پاتے نشی نو څهٔ به په خپله توره مقابله کومه تر دے چه توره هُم
ځما په لاس کښې پاتے نشی. دے نه پس څهٔ چه تاسو نه کیږی کوئ خو که تاسو
غواړئ نو د خپل ځان په بدله کښې دخپل مال پته خودلے شم کوم چه په مکه
کښې دے اُو دوه وینځے هم دی هغه ټول واخلئ. په دے هغه خلق راضی
شُو او خپل مال یے ورکړهٔ او ځان یے خلاص کړهٔ. په دے باره کښې آیتِ پاک

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ
(البقرة) نازل شو (درمنثور) (ترجمه) بعض خلق داسے دی چه د الله تعالیٰ درضا دَ
پاره خپل ځان په بیعه اَخلی او الله تعالیٰ په بندګانو باندے مهربانه دے.
نبی صلی اللہ علیہ وسلم دغه وخت په قبا کښې تشریف فرما وو چه صُهَیب رضی اللہ عنہ یے اُولیدهٔ
ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه تا دَ نفع تجارت وُکړهٔ. صُهیب رضی اللہ عنہ فرمائی چه نبی
صلی اللہ علیہ وسلم دغه وخت کهجورے خوړلے او ځما ستر که خوږه وه. ما هُم ورسره

په خوراك شروع اُوكړو. نبي صلی الله علیه وسلم اُوفرمايل چه سترګه خو دِ خوږه ده او كهجورے خورے. ما عرض اُوكړو چه حضورﷺ سترګے طرف ته خورم چه كومه روغه ده. نبي صلی الله علیه وسلم دِے جواب اَورېدو لوسره اُوخندل. حضرت صُهيب رضی الله عنه ډير خرچ كونكے وو. تردے چه حضرت عمر رضی الله عنه ده ته اُوفرمايل چه ته فضول خرچي كوے. دوی عرض اُوكړو چه ناحقه چرته خرچ نه كوُم. حضرت عمر رضی الله عنه چه كله وفات كيدو نو دوی ته يے دجنازے مونځ كولو وصيت فرمايلے وو. (اُسد الغابه)

## ⑨ دحضرتِ عُمَر رضی الله عنه داِسلام راوړلو قصه

حضرت عُمَر رضی الله عنه چه دكوم پاكه نامه باندے نن هم مُسلمانانو ته فخر دے. دهغهٔ دايمانی جوش نه نن ديارلس سوه كاله پس هُم دكافرانو په زړهٔ كښ وَيره ده. اسلام راوړلو نه مخكښ دمسلمانانو مقابله او تكليف رسَولو كښ هم مشهور وو. دنبي اكرم صلی الله علیه وسلم قتل پسے ګرځيدلے وو. يوه ورځ كافرانو دمشورے جرګه قائمه كړه چه څوك شته؟ چه مُحمّدﷺ قتل كړی. عُمر اُووئيل چه زهٔ به ئے قتل كړم. خلقو اُووئيل بيشكه تهٔ يے كولے شے. عُمر توره واخسته او روان شو. په دے فكر كښ تلو چه يو صاحب دزُهره قبيلے چه دهغهٔ نوم حضرت سَعد بن اَبي وَقّاص رضی الله عنه دے او بعضو وئيل صاحب بل كَس دے، مخے ته راغے هغهٔ ترے تپوس اُوكړو چه عُمَره! چرته ځے؟ وِے وئيل چه دمُحمّدﷺ دقتلولو په فكر كښ يم (نعوذ بالله) سَعد رضی الله عنه اُووے چه ته دبَنُو هاشم او بَنُو زُهره او بَنُو عَبد مَناف نه څنګه بے فكره شوے؟ هغوی به تا په بدله كښ قتل كړی. په دے جواب غصه شو او وے وئيل چه معلوميږی ته هم بے دينه (يعني مُسلمان) شوے يے. راځه چه رُومبے خو تا ختم كړم. دا يے اُووے او توره يے راُوخكله او حضرت سَعد رضی الله عنه هُم دا اُووے چه آو اځهٔ مسلمان شوے يم، توره يے راُوخكله. دواړه طرفونه تورے چليدونكے وے چه حضرت سَعد اُووے چه رُومبے خو دخپل كور خبر واخله، ستا خور او اَوښے دواړه مُسلمانان شوی دی. دا اَورېدل وُو چه دغُصے نه ډك شو او نيغ دخور كور ته لاړو. هلته

حضرت خبّاب رضی اللہ عنہ چه دهغهٔ ذکر شپږم نمبر قصه کښ تیر شو) دروازه بنده کړے وه. دِے دوارو ښځے اوخاوند ته یے قرآن شریف خودلو. عمرؓ دروازه اُووَهله. دهغهٔ د آوازنه حضرت خبّاب رضی اللہ عنہ خو زر دَننه پټ شو او هغه سیپاره په جلتئ کښ بهر پاتے شوه چه په کومه د قرآن شریف آیتونه لیکلی وُو. خور یے دروازه پرانستَه. دعمر په لاس کښ څهٔ څیز وو چه د خور سَر یے پرے اُووَهلو دهغے د سرنه وینه روانه شوه او وِے ویل، د خپل ځان دُشمنے، ته هم بے دینه (یعنی مُسلمانه) شوے یے. دِینه پس کور ته دَننه وَرَغے او تپوس یے اُوکړه چه څهٔ موکوَل؟ او دا آواز د چا وو، اَوخی ورته اُووے چه خبرے اترے موکوَلے. عمر اُوویل چه آیا تا خپل دین پریښے دے او بل دین دِ اختیار کړے دے. اَوخی اُووے کهٔ بل دین حق وی نو بیا؟ دعمر دا اُوریدل وُو چه د اَوخی ګیره یے اُونیوله، راِیے خکله او ټهد ستی پړے ورپریوت او په زمکه یے را اُوغورزَوُو بنهٔ یے اُووَههٔ. خور یے دخلاصولو کوشش اُوکړهٔ نو هغه یے په مخ یو څپیړه داسے په زوره اُووَهله چه وینه ترے را اُووَتله. هغه هُم آخر دعمر خور وه، وِے ویل، اے عُمره مونږ ځه په دے وجه وَهلے شُو چه مونږ مسلمانان شوی یُو. بیشکه مونږ مُسلمانان شوی یُو څهٔ چه تا نه کیږی تهٔ اُوکړه. دے نه پس دعمرؓ نظر په هغې سیپاره پریوت کومه چه په جلتئ کښ بهر پاتے شوے وه. او دَ غُصے جوش یے هم په دے وَهلو ټکولو سړه کم شوے وو. او دخور وینه ډیره بهیدل یے اُولیدَه، شرم ورغلو، وِے ویل چه بنهٔ ده ما ته اُوښایه دا څهٔ دی؟ خور یے اُووے چه تهٔ ناپاک یے او ناپاک دِے ته لاس نشی لګولے. هر څومره چه هغهٔ اصرار اُوکړهٔ خو خور یے بے اَودسه او بے غُسله ورکولو ته تیاره نهٔ شوه. عُمر غُسل اُوکړو او هغه پاڼره یے واخِسته وِے لوُستهٔ. په هغې کښ سورة طٰهٰ لیکلے وو. هغهٔ یے لوستل شروع کړهٔ او چه إِنَّنِیٓ أَنَا ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعْبُدْنِی وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِذِكْرِیٓ پورے اُولوستلو نو حالت یے بدل شو. وِے ویل چه بنه ده ما هم محمد صلی اللہ علیہ وسلم خدمت ته بوزئ. دِے الفاظو اَوریدو سره حضرت خبّاب رضی اللہ عنہ دَ دننه نه را اُووَتلو، اَو وِے ویل چه اے عُمره! تا ته زیرے درکوم

چه پرون د زیارت په شپه نبی اکرم ﷺ دُعا غوښتلې وه چه اے الله! عُمر او اَبُوجهل کښې چه کوم تا ته زیات خوښ وی په هغهٔ سره اسلام ته قوّت ورکړے (د دواړو په قوّت کښې مشهور وُو) معلومیږی چه د نبی ﷺ دُعا ستا په حق کښې قبوله شوه. د ے نه پس د نبی ﷺ خدمت کښې حاضر شو او د جُمعے په سحر مُسلمان شو. (خصا ص)

(د حضرت عُمر رضی الله عنه) مسلمانیدل وُو چه د کافرانو حوصلے په پړیو تو شروع شوے. خو بیا هم دا ډیر مختصر تولګے وو او کافران ټوله مکه بلکه ټول عرب وُو. په د ے وجه پکښې نور هم جوش پیدا شو او جلسے او مشورے به یے کولے. او د د ے حضراتو د ختمولو کوشش او قسما قِسم تدبیرُونه به یے کول خو دومره ضرور اُوشوه چه د حضرت عُمر رضی الله عنه په اسلام راوړلو مسلمانانو د مکے په جماعت (حَرم شریف) کښې مونځ په ښکاره کول شروع کړهٔ. حضرت عبد الله بن مَسْعُود رضی الله عنه فرمائی چه د عُمر رضی الله عنه اسلام راوړل د مسلمانانو فتح وه او د هغهٔ هجرت د مسلمانانو مدد وو او د هغهٔ خلافت رحمت وو. (اُسد الغابه)

## ⑩ د مُسلمانانو د حبشے هجرت او شِعبِ اَبی طالب کښې قید یدل

مسلمانانو او د هغوی سردار فخرِ دوعالم ﷺ ته هر کله چه د کافرانو نه تکلیفونه رسیدل او هره ورځ په ځائ د کمی په کښې زیاتے کیدلو نو نبی اکرم ﷺ اصحابو کرامو رضی الله عنهم ته اجازت ورکړهٔ چه تاسو د د ے ځائ نه بل ځائ ته لاړ شئ. نو ډیرو حضراتو حبشے ته هجرت اُوکړهٔ. د حبشے بادشاه اګرچه نصرانی یعنی عیسائی وو او تر د غے وخته پورے مسلمان شوے نهٔ وو خو رحمدل او مُنصف مزاجه مشهور وو. د نبوّت په پنځم کال د رجب (یعنی بزرګه) میاشت کښې رُومبی د له دیَوُلسو یا دولسو سړو او څلور و یا پنځو زنانو حبشے ته هجرت اُوکړهٔ. د مکے خلق ورپسے هم شو چه لاړ نشی خو د اخلق په لاس ورنهٔ رغلل. هلته چه اُورسیدل نو خبر شو چه د مکے خلق ټول مسلمانان شول او اسلام غالب شو. په د خبر دا حضرات ډیر خوشحاله شو او واپس خپل وطن ته راتلل خو چه مکے مکرّمے ته

نزدے را اُورسیدل، ورته معلومه شوه چه دا خبر غلط وو او د مکے خلق هم هغسے بلکه د هغے نه هم زیات په دُشمنئ او تکلیفونو رسَولو کښ لګیا دی. نو ډیر غفه شو. د دوی نه بعضِ حضرات د دغه ځائ نه بیرته واپس شو او بعضو د چا پناه واخسته، مکے مکرمے کښ داخل شو. دے ته د حبشے رُومبئ هجرت ویلے شی. د دے نه پس یوه لویه ډله چه د دے اتیا سړی او اتلس زنانه خو د لے شی جُدا جُدا هجرت یے اُوکړو. دے ته د حبشے دویم هجرت وائی. بعضو اصحابو کرامو دواړه هجرتونه اُوکړل او بعضو یو. کافرانو چه کله اُولیدل چه دا خلق په حبشه کښ د ارام ژوند تیروی نو د وی ته نوره غصه ورغله او ډیرے تحفے او ډالئ یے واخستے د حبشے بادشاه نجاشی ته ئے یو وفد اُولیږو چه د بادشاه دپاره یے هم ډیرے تحفے یوړے او د هغهٔ د خاصو کسانو پادریانو دپاره یے هَم ډیرے تحفے ځان سره واخستے. هلته چه اُورسیدل نو اول یے د حاکمانو او پادریانو سره اُولیدل او ډالئ یے ورکړے او د هغوی نه یے بادشاه سره د خپل سفارش وعدہ واخِسته. او بیا د بادشاه په خدمت کښ دا وفد حاضر شو. اول یے بادشاه ته سجده اُوکړه، بیا یے تحفے پیش کړے او ورسره یے درخواست هم پیش کړه. او رشوت خورو حاکمانو یے طرفداری اُوکړه. دوی اُووے اے بادشاه! زمونږ د قوم یو څو ناپوهه هلکانو خپل زوړ دین پریخے دے، یو نوی دین کښ داخل شوی دی چه نهٔ یے مونږ پیژنو او نهٔ یے تاسو پیژنئ. او ستاسو مُلک ته راغلی دی او سیږی. مونږ د مکے شریفانو او د دغے خلقو پلارانو، تړونو او خپلوانو رالیږلی یو چه دوی واپس بوزو. تاسو دوی مونږ ته اُوسپارئ. بادشاه اُووے چه کوم خلقو زما پناه نیولے ده بغیر تحقیقه هغوی تاسو ته حواله کولے نشم. اول به هغوی را اُوغوارم معلومات به ترے اُوکړم. که چرے دا صحیح شوه نو حواله به یے کړم. مسلمانان یے را اُوغوختل. په اول کښ خو مسلمانان ډیر پریشانه شو چه څهٔ به کړو وخو د الله تعالیٰ فَضل مدد اُوکړو او په هِمّت یے دا فیصله اُوکړه چه تلل پکار دی او صَفا خبره ویل پکار دی. بادشاه ته چه ورغلل اول یے سلام اُوکړو. چا اعتراض اُوکړو چه دوی دشاهی ادا بو

موافق بادشاه ته سجده اُونهٔ کړه. دوی ورته اُووے چه مونږ ته خپل نبی ﷺ د الله تعالیٰ نه سوا بل چا ته د سجدے کولو اجازت نهٔ دے راکړے. دې نه پس بادشاه د هغوی نه د حالاتو پوښتنه اُوکړه. حضرت جعفر رضی الله عنه وړاندې شو، وے فرمایل چه مونږ خلق په جهالت کښې پراتهٔ وُو. نهٔ مو الله پیژندهٔ، نهٔ د هغهٔ د رسولانو نه خبر وُو. د کاڼو عبادت به مو کولو، مُردارے به مو خوړلے ناکارے به مو کولے. خپلولئ مو پریخودے وے، مونږ کښې زورَوَر به کمزورے وژلو. مونږ په دے حالت کښې وُو چه الله تعالیٰ خپل یو رسول رالُولیږهٔ چه د هغهٔ نسب، د هغهٔ صداقت، د هغهٔ ایمانداری، پرهیزګاری مونږ ښهٔ پیژنُو. هغهٔ مونږ ه د یو الله وَحْدَهٗ لَاشَرِیْكَ لَهٗ عبادت ته رااُوبللو. او د کاڼو او بُتانو د عبادت نه یے منع کړو. هغهٔ مونږ ته د ښو کارُونو حکم راکړهٔ، د بدو کارُونو نه یے منع کړو. هغهٔ مونږ ته د رښتیا ویلو حکم راکړهٔ، د امانت اداﺉ حکم یے راکړهٔ، د صله رحمیٰ حکم یے راکړهٔ، د ګاونډی سره د ښهٔ مُعاملے کولو حکم یے راکړهٔ، مونځ، روژه، صدقے، خیرات حکم یے راکړهٔ، او د ښهٔ اخلاقو تعلیم یے راکړهٔ. زِنا، بدکاری، دَرُوغ ویل، د یتیم مال خوړل، په چا تُهمت لګول او د دے قِسمه بدو عملونو نه یے منع کړو. مونږ ته یے د قرآنِ پاك تعلیم راکړهٔ. مونږ په هغهٔ ایمان راؤړهٔ او د هغهٔ حکمونه مو اُومنل. په دے خپل قوم خپل دُشمنان شو او مونږ ته یے هر قِسمه تکلیفونه رارسَول شروع کړل. مونږ مجبوره شو ستاسو په پناه کښې د خپل نبی په ویناراغلی یُو. بادشاه اُووے کوم قرآن چه ستاسو نبی راوړے دے هغه ما ته څهٔ واوروئ. حضرت جعفر رضی الله عنه د سُورةِ مَرْیَم رُومبنی آیتونه اُولوستل. هغه یے چه واوریدهٔ، بادشاه هم په ژړا شو او د هغهٔ پادریان هم چه ډیر (د غلته) موجود وُو. تولو دومره ډیر اُوژړل چه ږیرے یے لُوندے شوے. بیا نه پس بادشاه اُووے، په الله تعالیٰ مِ قَسَم وی دا کلام او کوم کلام چه حضرت موسیٰ علیه السلام راؤړے دے د یو نُور نه وتلی دی. او هغې خلقو ته یے صفا انکار اُوکړو چه څهٔ دوی تاسو ته حواله کولے نشم هغه خلق ډیر پریشانه شو، ډیر ذلیله او سپک شو. په خپل مینځ کښې یے صلاح

اُوکړه- یو یکښې اُووے چه صبا به څهٔ داسے تدبیر اُوکړم چه بادشاه به د دوی جرړے پریکړی- ملګرو ورته اُووے داسے نه دی کول پکار- داخلق اګرچه مسلمانان شوی دی خو بیا هم خپلوان دی خو هغهٔ اُو نهٔ منله- دویمه ورځ بیا بادشاه ته لاړل اُو وے ویل چه داخلق دحضرت عیسیٰ علیہ السلام په شان کښې بے ادبی کوی- هغه د الله تعالیٰ ځوی نهٔ مَنِي- بادشاه بیا مُسلمانان راأوغوښتل- صحابه رضی اللہ عنہم فرمائی چه دویمه ورځ بلنے سره مونږ نور هم زیات پریشانه شو- بهرحال لاړو- بادشاه تپوس اُوکړهٔ چه تاسو دحضرت عیسیٰ علیہ السلام باره کښې څهٔ وایئی- دوی عرض اُوکړهٔ هغه وایُو کوم چه خمونږ نبی بانده دهغهٔ په شان کښې نازل شوی دی چه هغه د الله تعالیٰ بنده دے، دهغهٔ رسُول دے، دهغهٔ رُوح دے اود هغهٔ کلِمه ده- هغهٔ لره الله تعالیٰ بیغلے (بے واده) پاکے بی بی مریم علیہا السلام طرف ته واچولو (اود هغې نه پیدا شو) نجاشی اُووے چه حضرت عیسیٰ علیہ السلام هم دردے نه سِوا نور څهٔ نهٔ دی فرمایلی- پادریانو خپلو کښې بک بک اُوکړل (یعنی خبرے یے وارولے) خو نجاشی اُوویل ستاسو چه څهٔ خوښه وی وایئی (خو حقیقت هم دغه دے) بِے نه پس نجاشی دهغوی تحفے واپس کړے اومسلمانانو ته یے اُووے، تاسو په امن یئی- څوک چه تاسو ته تکلیف رسوی هغوی به تاوان ورکوی- اود دے اعلان یے هم اُوکړو څوک چه دوی ته تکلیف رَسوی هغوی به تاوان ورکوی- (خمیس)

په دے وجه دغه ځائے دمُسلمانانو عزت نور هم زیات شو او هغه وَفد ذلیله اُورسوا واپس شو- نو بیا دمکے دکافرانو غُصے چه به څومره جوش کُولو بنکاره دے- دے سره دحضرت عمر رضی اللہ عنہ اسلام راوړلو هغوی نور هم سوزولی وو- اوهر وخت به په دے فکرکښې وُو چه دخلقو دوی سره لیدل کتل بند شی اود اسلام ډیوه په څهٔ چَل مړه شی- دِے دپاره دمکے دسردارانو یوے دلے په خپل مینځ کښې مشوره اُوکړه چه اُوس په ښکاره بهره محمّد (صلی اللہ علیہ وسلم) قتل کړے شی خو قتلوُل یے هم څهٔ اسان کار نهٔ وو ځکه چه بَنُوهاشم هم لوئی خاندان وو اود اُوچتے درجے خلق شمارِ لے شُو- هغوی اګرچه اکثر مسلمانان

شوے نهٔ وُو لیکن چه کوم مُسلمانان نهٔ وُو هغوی هم د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم قتلولو ته تیار نهٔ وُو۔ په دے وجه دے ټولو کافرانو په جمع یوه مُعاهده اُوکړه چه د ټولو بَنُو هَاشِم او بَنُو الْمُطَّلِبْ دِ بائیکاټ اُوکړے شی چه نهٔ به یے څوك ځان خان سره کیناستو ته پریږدی، نهٔ به ورسره څوك اَخستل خرڅول کوی، نهٔ به ورسره خبرے اترے کوی۔ نهٔ به یے څوك کورته ځی، نهٔ به یے څوك خپل کورته راولی۔ او تر هغے به ورسره صُلح نهٔ شی کولے ترڅو چه هغوی نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د قتل دپاره حواله نهٔ کړی۔ دا مُعاهده د خُلے په خبرو ختمه نهٔ شوه بلکه یکم مُحرّم سنه نبوی کښ یے یوه معاهده تحریری اُولیکله۔ بَیْتُ الله (یعنی خانه کعبه) کښ یے اُوېزانده کړه چه هر څوك د دے احترام او قدر کوی او د پوره کولو کوشش یے کوی۔ د دے مُعاهدے په وجه دریو کالو پورے دا ټول حضرات د دوه غرونو ترمینځه یوه سخته دَرّه کښ (شِعْبِ اَبِیْ طَالِبْ) کښ نظربند وُو چه نهٔ څوك دوی سره ملاویدے شو، نهٔ دوی چا سره ملاویدے شُو۔ نهٔ دوی د مکے د چا سره نه څهٔ خیز په بیعه اخستے شو۔ نهٔ د بهر نه راتلونکی چا سودا گر سره ملاویدے شو که څوك به بهر ته راوتلونو وهلے به شو۔ او که چا ته به یے څهٔ ضرورت بنکاره کړهٔ نو صفا جواب به ورکولے شو (چه نهٔ شُو کولے) معمولی غوندے سامان غلّه وغیره کومه چه دوی سره وه ترکومے پورے به یے کار ورکولو، آخر په لوږه وباندے لوږے به پرے تیریدلے۔ زنانه اَو بچی د لوږے نه ناقلاره شو۔ ژړل به یے او چغے به یے وهلے او د دوی خپلوانو ته به د خپلو لوږو او تکلیفونو نه زیات د بچو تکلیفونو پریشانه کوُل۔ آخر د رے کاله پس د الله تعالیٰ په فضل سره هغه (دمُعاهدے) پاڼره وَینُو اُوخوړله او د دے حضراتو دا مُصیبت لرے شو۔ د دریو کالو زمانه دا سے سخت بائیکاټ او نظربندئ کښ تیره شوه۔ او په داسے حالت کښ به په دے حضراتو باندے چه کوم تکلیفونه تیرشوی وی هغه بنکاره دی۔ خو د ے سره صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین په دِینِ اِسْتِقْلَالْ سَرَه په خپل دین باندے کلك وُو بلکه هغه به یے نورو ته ډلو۔

**فائده:** د تکلیفونه او مُشقتونه هغے خلقو اُوچت کړی دی۔ دَ

کوموږ. نن موږ، نوم اخستونکی ویلے شو او خپل ځان دهغوی تابعدار ښایو او
ګڼړو. موږ، خلق د ترقئ په میدان کښ د اصحابو کرامو رضی اللہ عنہم اجمعین په شان د
ترقئ خوبونه وینو، خو څه وختے داغور فکر او سوچ هم کوُل بکار دی چه دغې
حضراتو څومره قربانئ ورکړی دی او موږ، د دین په خاطر، د اسلام په خاطر،
دمذهب په خاطر څه اوکړل. کامیابی همیشه د کوشش او محنت مناسب کیږی
موږ، خلق غوارُوچه په عیش او ارام، بے دینئ او دُنیا طلب کښ د کافرانو اوږه په
اوږه روان یُو او د اسلام ترقی د موږ، سره وی، دا چرته کیدے شی. ؎

ترسم نہ رسی بکعبہ اے اعرابی ❊ کیں رہ کہ تو میروی بترکستان است

ویریږم با نه رسیږے اوبه نهٔ رسے کعبے ته ❊ دا لار چه پرے روان یے نیغه تلے ترکستان ته

---

# دویم باب

## د الله جَلَّ جَلَالُهٗ وَعَمَّ نَوَالُهٗ نه خوف او ویره

صحابو رضی اللہ عنہم د دین سره دهغې قربانئ او محنت باوجود چه دهغې قصے اوس تیرے شوے
او دین د پاره خپل ځان او مال او عزت ټول هر څهٔ فنا کول نه پس چه د هغې
نمونه اوس تا سو اولیده، د الله جل شانهٗ خوف او ویره څومره قدرے چه په
دے حضراتو کښ مُوندلے شوه، الله دِ اُوکړی دهغې څهٔ معمولی حصه موږ،
ګنهګارانو ته هم نصیب شی. د مثال په طور د دے هم څو قصے لیکلے شی.

### ① د سیلئ په وخت کښ د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم طریقه

حضرت عائشه رضی اللہ عنہا فرمائی چه کله به ورېځ، سیلئ وغیره شوه نو د نبی اکرم
صلی اللہ علیہ وسلم په مخ مبارک به دهغې اثر ښکاریده او د مخ مبارک رنګ به بے بدل شو او د
ویرے له وجے به بے کله د ننه تشریف اوړهٔ، کله به بے باهر تشریف راوړهٔ
او دا دُعا به بے ویله اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ خَیْرَهَا وَخَیْرَ مَا فِیْهَا وَخَیْرَ مَا اُرْسِلَتْ

بِهٖ وَ اَعُوْذُبِكَ مِنْ شَرِّهَا وَ شَرِّ مَا فِيْهَا وَ شَرِّ مَا اُرْسِلَتْ بِهٖ (ترجمه) "اے الله! ځۀ درے هَوا خیر غواړم او ځۀ چه په دے هَوا کښې دی باران وغیره د هغې خیر غواړم او کوم غرض دپاره چه دا رالیږلے شوے ده د هغې خیر غواړم. اے الله تعالیٰ! ځۀ درے هَوا د شر نه پناه غواړم او کوم څیز چه په دیکښې دے او د کوم غرض دپاره چه دا رالیږلے شوے ده د هغې د شر نه پناه غواړم." او هر کله چه به باران شروع شو نو په مخ به یے خوشحالی ښکاره شوه. ما عرض اُوکړۀ اے د الله رَسُوله! ﷺ ټول خلق چه کله وُرېځ اُووینی نو خوشحاله شی چه د باران اثرات ښکاره شُو خو تاسو باندے یو قِسم پریشانی ښکاریږی. نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایۀ اے عائشې! ما له درے ځۀ تسلّی ده چه په دے کښې چرته عذاب نۀ وی. قومِ عَاد ته په هَوا سره عذاب ورکړے شوے وو. هغوی به چه وُرېځ اُولیده خوشحاله به شُو چه په دے وُرېځ کښې به څمونږ دپاره اُوبۀ را اُووَرَوُلے شی حال دا دے چه په هغې کښې به عذاب وو. (دُرِّ منثور) د الله جل شانهٗ ارشاد دے فَلَمَّا رَاَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ اَوْدِيَتِهِمْ الآية (سورة الاحقاف) (ترجمه) هغې خلقو (یعنی قومِ عاد) چه کله وُرېځه د خپلو زمکو مخامخ راتلونکے اُولیده نو وے ویل، دا وُرېځه خو په مونږ باران وَرَوُنکے ده. (د الله تعالیٰ ارشاد اُوشو چه) نه. وَرَوُنکے نۀ ده بلکه دا هغه عذاب دے چه تاسو زر غوښتلو (او نبی ته مو ویل که ته رښتینے یے نو په مونږ عذاب راوله) یوه سیلئ ده چه پکښې دردناك عذاب دے. هر څیز به د خپل رب په حُکم سره هلاك کړی. پس هغه خلق د هغې سیلئ په وجه دا سے تباه شُو چه د مکانانو نه سوا هیڅ نۀ ښکاریدل او مونږ مُجرمانو ته دغه شان عذاب ورکوُو. (بیان القرآن)

**فائده:-** د ا د الله تعالیٰ نه دویرے حال د هغې پاك ذات دے چه د هغۀ سَيِّدُ الْاَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ کیدل په خپله د هغۀ د اِرشاد نه ټولو ته معلومه ده. په خپله کلامِ پاك کښې دا ارشاد دے چه "الله تعالیٰ به دا سے نۀ کوی چه هغوی ته ستا سو په موجودګئ کښې عذاب ورکړی." د ے د الله تعالیٰ وعدے سره بیا د نبی اکرم ﷺ د الله تعالیٰ نه دویرے دا حال وو چه وُرېځ او سیلئ به یے وَلیده

نو دُرُوبنو قومُونو عذابِ الٰهی به ورته را په یاد شو. دے سره یو نظر په خپل حال باندے هم کول پکار دی چه مونږ خلق هر وخت په گناهُونو کښې لگیا وُ، سُو زلزلے او نور قسمه عذابُونه چه اُورېږُو په خائ درګے چه دهغې نه اثر واخلو، توبه او اِستِغفار، مونځ وغیره کښې مشغول شوُ، نور وقِسما قِسم فضول تحقیقاتو کښې لگیا شو.

## ⑦ په تیارهٔ کښې دحضرت اَنسؓ رضی الله عنه عمل

نضر بن عبدالله رضی الله عنه فرمائی چه دحضرت اَنسؓ رضی الله عنه په ژوند کښې یو ځل په ورځ کښې تیارهٔ خوَرَه شوه. څهٔ دحضرت اَنسؓ رضی الله عنه خدمت کښې حاضر شوم او عرض مِ اُوکړه چه دنبی علیه السلام په زمانه کښې به هم درے قِسمه څیزونه راتلل؟ هغوی اُوفرمایل، الله تعالیٰ دِ پناه راکړی. دنبی علیه السلام زمانه کښې چه لږه شان هَوا تیزه شوه نو مونږ به دقیامت دراتلو دَوېرے نه جُماتونو ته منډے کړے. یو بل صحابی ابُوالدّرداءؓ رضی الله عنه فرمائی چه دنبی علیه السلام معمول وو چه کله به سیلئ راوالوتله نو نبی علیه السلام به اُووېرېدهٔ جُمات ته به یے تشریف یورهٔ. (درجمع الفوائد)

**فائده:**- نن دلوئ نه لوئ واقع، مُصیبت او بلا کښې هم جُمات ته تلل چاته یاد یږی؟ عوام خو پرېږده 'ایا خواصو کښې درے اهتمام بهٔ ته مُوند ے شی؟ تاسو په خپله درے جواب په خپل زړهٔ کښې سوچ کړئ.

## ③ نمر تندر نیوُلو په وخت کښې دنبی علیه السلام عمل

دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې به چه نمر تندرا اُونیوُلو. اصحابو کرامو سره به فکر شو چه په دے موقع به نبی علیه السلام څهٔ عمل کوی. ددے تحقیق اُوکړے شی. کوم حضرات چه خپلو خپلو کارُونو کښې مشغول وُو هغه یے پرېخودل او په منډه راغلل. دنوی عمر هلکانو دغشو وِیشتلو مشق کُولو هغه یے پرېخودهٔ په جلتئ راغلهٔ چه اُوګوری چه نبی علیه السلام به دا وخت څهٔ کوی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دوه رکعته دکسُوف (نمر تندر نیوُلو) مونځ اُوکړهٔ. دومرهٔ اُوږد وو چه خلق بے هوشه شوے پرېوتل. په مانځهٔ کښې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ژړل او فرمایل یے، اے ربه!

ایا تا ما سره د دے وعده نهٔ ده کړے چه تاسو به دے خلقو ته څما په موجودګئ کښې عذاب نهٔ ورکوئ۔ او په داسے حالت کښې به یے هم نهٔ عذابوئ چه دوی استغفار کوی۔ (سورة انفال کښې الله جل شانه دا د دے وعده کړے ده) وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ فِيْهِمْ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ○ بیا نبی علیه السلام خلقو ته نصیحت اُوفرمایهٔ چه کله داسے موقع راشی او نمر یا سپوږمئ تندرا اُونیسی نو اُویرېږئ او مانځه طرف ته مُتوجه شئ۔ څهٔ چه کوم د اخرت حالات وینم، که چرے تاسو ته معلوم شی نو خندا به کمه کړئ او ژړا به ډیره کړئ کله چه داسے حالت پیښ شی نو مونځ کوئ، دُعا غواړئ، صدقه ورکوئ۔

## ④ د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ټوله شپه ژړا کښې تیرول

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو ځلے ټوله شپه ژړل او تر سحره یے په مانځه کښې دا ایت تلاوت فرمایلو۔ اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۚ وَاِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿ (ترجمه) "اے الله! که چرے تهٔ دوی ته سزا ورکړے نو ستا اختیار دے چه دوی ستا بندګان دی او تهٔ د دوی مالک یے او مالک ته حق دے چه بندګانو ته په جرمونو سزا ورکړی۔ او که چرے تهٔ دوی مُعاف کړے نو هم تا ته اختیار دے۔ تهٔ زبردست قدرت خاوند یے په مُعافئ هم قدرت لرے او د حِکمت خاوند یے نو معافی به هم د حِکمت موافق وی" (بیان القرآن) د امام اعظم (ابو حنیفه) رحمة الله علیه متعلق نقل کړے شوی دی چه هغهٔ یو ځلے ټوله شپه وَامْتَازُوا الْيَوْمَ اَيُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ ○ لوسته او ژړل یے۔ د ایتِ شریفه مطلب دا دے چه د قیامت په ورځ به مجرمانو ته حُکم اُوشی چه په دُنیا کښې تول ګډ وډ اُوسیدئ خو نن مجرمان تول جُدا شئ او غیر مجرمان جُدا۔ دا حُکم چه واوری څومره چه اُوژړلے شی لږ دے چه نهٔ ده معلومه چه څما شمار به مجرمانو کښې وی یا فرمانبردارو کښې۔

## ⑤ په حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د الله تعالیٰ ویره

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه چه په اِجماع د اهلِ سُنتو د نبیانو نه علاوه

دتولې دُنیا دبنیادمونه بهتر دے او دهغهٔ جنتی کیدل یقینی دی. په خپله نبیٔ کرم ﷺ دجنتی کیډو زیرے ورکړے دے بلکه دجنتیانو دزړو سردارے خودلے دے او دجنت دتولو دروازونه دبللو خوشخبری یے ورکړے ده. او دا یے هم فرمایلی دی چه زما په اُمت کښ به دتولونه وړومبے اَبُوبکر صدیق رضی الله عنه جنت کښ داخلیږی. دے تولو رفضیلتونو) سره به اَبُوبکر صدیق رضی الله عنه فرمایل. اَرمان! چه څهٔ وُنه وے چه پریکړے شوے وے. کله به یے فرمایل. اَرمان! څهٔ واخهٔ وے چه څاروی خوړلے وے. کله به یے فرمایل - ارمان! څهٔ دچامؤمن دبدن وېختهٔ وے. یو وارے یو باغ ته یے تشریف یوړهٔ - یو څناورے ناست اُولیدهٔ. یخ اَسویلے یے اُوکړهٔ، وے فرمایل چه ته څومره په مزو کښ یے. خورے څښکے، دوُنو سورو کښ ګرزے او په اخرت کښ په تا هیڅ حساب کتاب نشته. ارمان! اَبُوبکر هم ستا په شان وے. (تاریخ الخلفاء)

رَبِیعَه اَسلَمِیُ رضی الله عنه فرمائی چه یو ځلے په څهٔ څیز زما او دحضرت ابوبکر رضی الله عنه په مینځ کښ څهٔ خبره زیاته شوه او هغوی ما ته څهٔ سخت لفظ اُووے چه په ما بَد اُولګیدهٔ. زر ورته خیال راغے. ما ته یے اُوفرمایل، ته هم ما ته اُوایه چه بدله خلاصه شی. ما دَویلو نه انکار اُوکړهٔ. نو وے فرمایل چه اُووایه کنی نبی ﷺ ته به ورشم عرض به اُوکرم. په دے م هم جوابی لفظ ویلو نه انکار اُوکړهٔ. نو پاسیدو لاړلو. دبنُو اَسلَم څهٔ خلق راغلهٔ اُووے ویل. دا هم بنهٔ (عجیبه) خبره ده چه په خپله یے زیاتے هم اُوکړهٔ او بیا نبی ﷺ ته شکایت هم په خپله کوی. ما اُووے تاسو پیژنئ دا څوک دے؟ دا اَبُوبکر صدیق رضی الله عنه دے. که چرے دے خفه شو نو د الله تعالیٰ نیازبین رَسول به زما نه خفه شی او دهغهٔ په خفګان به الله جل شانه ناراضه شی نو درَبِیعَه په هلاکت کښ څهٔ شک دے؟ دے نه پس دنبی ﷺ خدمت کښ حاضر شوم او قِصه م عرض کړه، نبی ﷺ اُوفرمایل بنهٔ دِ اُوکړهٔ تا ته په جواب او بدله کښ ویل نهٔ وُو بکار. البته دهغے په بدله کښ دا سے اُووایه چه اے اَبُوبکره! الله تعالیٰ دِ تا معاف کړی.

**فائده:-** داده د الله تعالیٰ ویره. یو معمولی شان خبره کښ حضرت

اَبُوبَکر صدّیق رضی الله عنه ته د بدلے د ومره قدر ے فکراو اهتمام اُوشو چه اول یے په خپله درخواست اُوکړهٔ او بیا د نبی صلی الله علیه وسلم په واسطه سره یے ددے اراده اُوفرمایله چه رَبِیعَه رضی الله عنه بدله واخلی. نن مونږ په سوؤنو خبرے یو بل ته کوُو، ددے خیال هم نهٔ راځی چه ددے به آخرت کښې بدله اخستلے شی یا حساب کتاب به هم کیږی۔

## ⑥ دحضرت عُمَر رضی الله عنه حالت او دَ حَرَّه واقعه

حضرت عُمَر رضی الله عنه به اکثرو ختونو کښې یو خس لاس کښې واخِست اُو به یے فرمایل، اَرمان! څهٔ دا خس وَے. کله به یے فرمایل، اَرمان! څهٔ خپلے مور زیګولے نهٔ وے. یو وارے په څهٔ کار کښې مشغول وو. یو کس راغے وِے ویل چه فلانی سړی په ما ظلم کړے دے تاسو لاړ شئ ماله دهغهٔ نه بدله واخلئ. دوی هغه په یَوه دُرَّه اُووَهۀ (وِے ویل)، چه کله څهٔ دِے کار دپاره کینم هغه وخت خو راځئ نه، کله چه څهٔ په نورو کارونو کښې مشغول شم نو راشئ، واے چه بدله راله واخله. هغه کس لاړو، دوی ورپسے سړے اُولیږهٔ، راوِے غوختلو او دُرَّه یے ورکړه وِے فرمایل چه بدل واخله. هغهٔ عرض اُوکړهٔ چه ما د الله تعالیٰ دپاره معاف کړے. کور ته یے تشریف راوُړهٔ دوه رکعته مونځ یے اُوکړهٔ. دِے نه پس خپل ځان ته مُخاطِب شو. وِے فرمایل، اے عُمَره! ته خکته وے الله تعالیٰ اُوچت کړے، ته گُمراه وِے الله تعالیٰ تا ته هدایت درکړهٔ، ته ذلیله وے هغهٔ تا ته عزت درکړهٔ. بیا یے دخلقو بادشاه جوړ کړے. اُوس یو کس راغے وائی چه ماله دظُلم بدله واخله نو ته هغه وَهے. صبا به دقیامت په وَرځ خپل رَب ته څهٔ جواب ورکوے. ډیر ساعته پورے یے دغه شان خپل ځان ملامته کولو۔ (اُسد الغابہ)

دحضرت عُمَر رضی الله عنه غلام حضرت اَسْلَم رضی الله عنه وائی چه څهٔ یو وارے حضرت عُمَر رضی الله عنه سره حَرَّه طرف ته تلَمه. یو ځائی په ځنګل کښې اُور په نظر راغے. حضرت عُمَر رضی الله عنه اُوفرمایل. شاید دا څهٔ قافله ده چه دشپے په وجه ښهر ته ننه نهٔ شوه تلے با هر ایساره شوه. ځهٔ چه خیر خَبر یے واخلو. دشپے دَ

حفاظت انتظام یے اُوکړو. هلته چه اُورسیدۀ وے لیدل چه یوه زنانه ده، یو
څو بچي ورسره دي، ژاړي او چیغې وهي. یو دیګچے په نغرۍ پروت دے چه داُوبو
نه ډک دے او لاندے ترے اُور بلیږي. دوی ورته سلام اُوکړو. او د نزدے
ورتلو اجازت یے واخسته، ورغے او تپوس یے ترے اُوکړه، دا بچي ولے ژاړي؟
زنانه اُووے چه دلوږے نه ناقلاره شوي دي ژاړي. پوښتنه یے ترے اُوکړه
چه په دے دیګچي کښ څۀ دي؛ زنانه اُووے دَاُوبو نه م ډک کړے دے. دغلَوَلو
دپاره م په اُور ایخے دے چه ددوی تسلي اُوشي او اُوده شي. اَمیرُ الْمُؤمِنِین عُمرؓ
او ځما به د الله تعالیٰ څخه فیصله وي چه ځما دے تنګسیا خبر نۀ اَخلي. حضرت
عُمرؓ په ژړا شو او وے فرمایل الله تعالیٰ دِ په تا رحم اُوکړي، عُمرته ستا
دحال څۀ خبر دے. هغې اُووے چه هغه ځمونږ امیر جوړ شوے دے او ځمونږ
دحاله ځان نۀ خبروي. اَسلمؓ وائي چه څۀ حضرت عُمرؓ دځان سره
ستون کړم او یو بورۍ کښ دَبَیْتُ الْمَال نه څۀ اُوړۀ کهجورے، وازګه او څۀ
کپړے او څۀ رُوپئي واخستے. غرض دا چه دغه بورۍ یے بنۀ ډکه کړه. او
وے فرمایل چه دا ځما په ملا باندے کیده. ما عرض اُوکړۀ چه څۀ به یے یوسم
وے فرمایل نه. ځما په ملا باندے کیده. دوه درے ځله چه ما اصرار اُوکړۀ
نو وے فرمایل چه آیا قیامت کښ به هم ځما بوجهته اُوچتوے. دا به څۀ
اُوچتوم ځکه چه قیامت کښ به ما نه ددے تپوس کیږي. څۀ مجبوره شوم
بورۍ م دهغوي په ملا باندے کیخوده. هغوی ډیر په تندۍ سره هلته
تشریف یوړۀ. څۀ هم ورسره وُم. هلته چه اُورسیدو، په هغې دیګچي کښ
اُوړۀ او څۀ وازګه او کهجورے یے واچولے او لړل یے شروع کړۀ. او نغرۍ کښ یے
په خپله پوکي وهل شروع کړل. اَسلمؓ وائي چه ددوی دمُبارکے کنړے
کپیرے نه لوګے وتل ما لیدۀ تر دے چه شُیره غوندے تیاره شوه. دے نه
پس په خپل لاس مُبارک یے را اُووبیستله، په هغې بچو یے اُوخوړوله. هغوی
بنۀ ماړۀ شو. خندا او لوبو کښ مشغول شو. او چه څۀ پاتے شوه هغه یے د
بل وخت دپاره هغوی ته حواله کړه. هغه زنانه ډیره خوشحاله شوه او

وے ویل اللہ تعالیٰ ما تہ دخیر بدلہ درکړی۔ تہٗ دے حقدار وے چہ دَ حضرت عمر رضی اللہ عنہ پہ ځائی تہٗ خلیفہ جوړ کړے شوے وے۔ حضرت عمر رضی اللہ عنہ هغۂ تہ تسلّی ورکړہ اَو وے فرمایل چہ کلہ تہٗ خلیفہ تہ ورشے نو ما بہ هم هلتہ بیا مومے۔ حضرت عمر رضی اللہ عنہ دهغۂ نزدے لږ اخوا پہ زمکہ کینا ستو، اولږ ساعت ناستے نہ پس راوان شو اَو وے فرمایل چہ څۂ ځکہ ناست وَم چہ ما دا ځئی پہ ژړالیدلی وُو، خما زړۂ اُوغوښتل چہ لږ ساعت دوی پہ خندا هُم اُووینم۔ (اشہر مشاہیر منتخب کنزالعمال) دسحر پہ مانځہ کښې بہ یے اکثر سورۃ کہف، طٰہٰ وغیرہ لوئی سورتُونہ لوستل اوژړل بہ یے چہ څو څو صفونو پورے بہ یے آواز رسیدۂ۔ یو وارے دسحر پہ مانځہ کښې یے سورۃ یُوسف لوستۂ اِنَّمَآ اَشْکُوْا بَثِّیْ وَحُزْنِیْٓ اِلَی اللّٰہِ تہ چہ اُورسیدۂ نو دژړا لہ وَجے یے آواز نۂ راختلو۔ دتہجّد وپہ مانځہ کښې بہ ځنے وارے پہ ژړا کښې پرېوتۂ او نا جوړہ بہ شو۔

**فائدہ:**۔ دادہ داللہ تعالیٰ نہ ویرہ دهغے کس چہ دهغۂ دنوم نہ بہ لوئی لوئی مشہور بادشاهان وریدل رپیدل. نن هم دیارلس نیم سوۂ کالہ زمانے پورے دهغۂ دَبدبہ شان وشوکت منلے شوے دے۔ نن څوک بادشاہ نہ، حاکم نہ څوک معمولی شان اَمیرهم دخپل رعیّت سرہ داسے مُعاملہ کوی؟

## ⑦ دحضرت اِبنِ عبّاس رضی اللہ عنہ نصیحت

وَهَبْ بن مُنَبِّہؒ فرمائی چہ دحضرت عبداللہ بن عبّاس رضی اللہ عنہ دَ سترګو ظاهری نظر ختم شونو ما هغہ خانہ کعبے تہ بوتلو۔ هلتہ چہ وُرسیدۂ۔ دیوے ګنړے نہ څۂ دجهګړے آواز راتلو۔ ماتہ یے اُوفرمایل چہ ما دغ ګنړے طرف تہ بوزہ۔ ما هلتہ بوتلو۔ رسید وسرہ یے سلام اُوکړۂ. هغے خلقو دکینا ستو درخواست اُوکړۂ، دوی انکار اُوکړۂ اَو وے فرمایل چہ تاسو تہ معلومہ نۂ دہ چہ داللہ تعالیٰ دخاصو بندګانو ډلہ هغہ خلق دی چہ دهغۂ ویرے هغوی خاموشہ کړی دی حال دادے چہ نۂ هغوی عاجزہ دی اونۂ ګونګیان، بلکہ فصیح (ژبانہ) خلق دی، ویُونکی دی، پوهہ دی خو داللہ تعالیٰ دلوئیٔ ذکر

دهغوی عقلونه حیران کړی دی او د دغې وجې نه دهغوی زړونه مات وی او دې بې خاموشه وی او کله چه په دې حالت هغوی ته پوخوالے حاصل شی نو بیا په نیک کارونوکښې جلتی کوی نو تاسو خلق دهغوی نه ولې لرې شوئ. وَهب رحمۃ اللہ علیہ فرمائی چه دے نه پس ما ده سړی هم یوځائ جمع اُونه لیدل ـ

**فائده:** حضرت ابنِ عباس رضی اللہ عنہ په دالله تعالیٰ دویرے نه دومره ژړل چه په مخ یے هر وخت اُوښکو بهید وسره دوه لیکے دنالو په شان جوړے شوے وے. پورتنئ قصه کښې حضرت ابنِ عباس رضی اللہ عنہ په نیک کارونو د اهتمام یوه اسانه نسخه اُوخودله چه دالله دعظمت او دهغهٔ دلوئې سوچ دِ اُوکړے شی. دِدے نه پس هر قسمه نیک عَمل اسان دے. او بیا هغه یقیناً دِ اخلاص نه ډک وی. دښځے وړځے خلیر لیشت کهیتو کښې که چرے لږ شان وخت هم مونږ خلق ددے سوچ دپاره اُوباسو نو څهٔ ګران نه ده؟

## ⑧ دتبوک په سفر کښې دقومِ ثمود په کلی تیریدَ نه

دتبوک غزا مشهوره غزاده او دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم اخری غزاده. نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ته خبر ورکړے شو چه د رُوم بادشاه په مدینه مُنوّره دحملے کولو اراده لری. او لوئی لښکر ورسره دے. دشام په لاره مدینے ته راځی. په دے خبر په تاریخ دَ پنځم رَجب (بزرگے میاشتے) سنه ۹ هجری دزیارت په ورځ نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم دهغوی دَ مقابلے دپاره دمدینے مُنورے نه روان شو. چونکه زمانه دسختے ګرمئ وه او مقابله هم سخته وه. دِدے دپاره نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم صَفا اعلان اُوکړهٔ چه د رُوم دبادشاه مقابلے دپاره تلل دی، تیاری اُوکړئ. نبی علیہ السلام پخپله دهغے دپاره چنده کول شروع کړهٔ. داهغه جنګ دے چه په دِے کښې حضرت ابُوبکر صِدّیق رضی اللہ عنہ د کور ټول سامان راوړهٔ. او کله چه ترے تپوس اُوشو چه دکور خلقو دپاره دِ څهٔ پریخودل نو دے فرمایل چه دهغوی دپاره مِ الله تعالیٰ او دهغهٔ رسُول صلی اللہ علیہ وسلم پریخوده. حضرت عُمر رضی اللہ عنہ دکور دټول سامان نه نیم راوړهٔ چه دهغے قِصه شپږم باب څلورم نمبر کښې راځی. او حضرت عُثمانِ غنی رضی اللہ عنہ د دریمے حصے دلښکر پوره

سلمان ورکړهٔ او غه شان هر یو کس د خپل حیثیت نه زیات راوړهٔ. سره د دې چونکه عام طور تنګسیا وه نو لس لس سړی به په یو اُوښ باندې وار په وار سوریدل. په دې وجه د دې جنګ نوم (جَیْشُ الْعُسْرَةِ) د تنګئ لښکر وو. دا جنګ ډیر سخت وو او سفر هم دلرې وو. او موسم هم د ومره سخت وو چه د ګرمئ څهٔ اندازه نهٔ وه. او دې سره مدینه منوره کښې د کهجورو پخیدو زمانه وه چه ټول باغونه پاخهٔ ولاړ وُو او په کهجورو باندې د مدینې منورې د خلقو ډېر زیات دارومدار وو چه د ټول کال د روزئ جمع کولو ګویا دا زمانه وه. په دې حالاتو کښې دا وخت سخت د امتحان وو چه یو خوا د الله تعالیٰ نه ویره، د نبی ﷺ ارشاد چه دهغې په وجه بغیر د تلو رغیدَ نهٔ وه او بل خواته دا ټول تکلیفونه چه هر وخت د نهٔ تلو مستقل عذر وو. خصوصاً د ټول کال محنت او پخې شوې وَنې دغسې بې یارومدد کار پریخودل چه څومره مشکل وُو هغه ښکاره ده. خو د ټولو سره سره د الله تعالیٰ ویره په دې حضراتو غالبه وه. ځکه سوا د مُنافقانو نه او معذورینو نه چه په هغې کښې ماشومان او زنانه هم داخلې دي او هغه خلق هم چه د ضرورت د پاره مدینه منوره کښې پریخودلے شوی وُو یا د سورلئ د نشتوالی په وجه په ډېر ژړا پاتې شوی وُو چه دهغوی باره کښې آیت تَوَلَّوْا وَّاَعْیُنُهُمْ تَفِیْضُ مِنَ الدَّمْعِ (التوبۃ) نازل شو. نور ټول حضرات (نبی کریم ﷺ سره) روان شو. البته درې کسان بغیر عذره شریک نهٔ وُو چه دهغوی قصه راروانه ده. په لاره کښې د قومِ ثمود په کلی تیریدل اُوشو نو نبی اکرم ﷺ په لمنه خپل مخ مُبارك پټ کړهٔ او اُوښه یې تیزه کړه. او اصحابو کرامو ته یې هم حکم اُوفرمایهٔ چه د دې ځائ نه په تیزئ سره اُوزئ او د ظالمانو په کلو کښې په ژړا تیرشئ او په دې ویره تیریږئ چه نشته الله مهٔ کړه هغه عذاب چرته په تاسو نازل نهٔ شي کوم چه په هغوی نازل شوے وو. (اسلام خمیس)

**فائده:-** د الله تعالیٰ خوږ نبی او نیازبین رسول ﷺ د عذاب د ځائ نه په ویره او خوف تیریږی او خپل جان نثار دوستانو ته کوم چه د دې سختې مجبورئ په وخت کښې هم د خپلې جان نثارئ ثبوت ورکوی په ژړا د تلو

حُکم ورکوی چه الله مهٔ کړه هغه عذاب چرته په دوی نازل نشی. مونږ خلق چرته په کلی کښې زلزله راشی نو هغه د سیل ځائ جوړ وُو. د ورانو شوُو آباد و سیل ته ورځو ژړاخو نه وخوا د ژړا خیال هم په زړهٔ کښې نهٔ راوَلُو.

## ⑨ تبُوک کښې د حضرت کعب رضی الله عنه غیر حاضری او توبه

د دے تبُوک په جنګ کښې د مَعذُورینو نه علاوه د اَتیاوُ نه زیات خو مُنافقان د انصَارونه وُو او دغه هومره تقریبًا بدُ وِی دکلو بانډو خلق وو. دے نه علاوه یوه لویه ډله د بهر د خلقو داسے وه چه شریکه شوے نهٔ وَه. او (صرف) دومره نه بلکه دوی به نورو خلقو ته هُم لَا تَنْفِرُوْا فِي الْحَرِّ ویل او منع کول به ئے چه په ګرمئ کښې مهٔ اُوزئ) الله جلَّ شانُهٗ فرمائ چه د دُوزخ د اُور ګرمی ډیره سخته ده. دوی نه علاوه د رے ریښتنی پاخهٔ مسلمانان هم داسے وُو چه بغیر د څهٔ قوی عُذر نه په دے جنګ کښې شریک شوی نهٔ وُو. یو کعب بن مالک، دویم هِلال بن اُمَیّه، دریم مُرَارَه بن رَبیع. دا درے واړه حضرات نفاق یا دعُذر په وجه ایسار شوی نهٔ وُو بلکه خوشحالی ئے د پاتے کیدو سبب جوړ ؤ. کعب رضی الله عنه خپل حالات کوم چه ورته په دے موقع پیښ شوُ په تفصیل اَوَروِی کوم چه مخکښې راځی. د مُرَارَه بن رَبیع رضی الله عنه باغ بنهٔ دمیوے نه ډک وو. خیال ئے اُوشو که چرے څهٔ لاړشم نو دا به ټول ضائع شی. همیشه په جنګونو کښې شریک شوے یم کهٔ دا وار ے پاتے شم نو څهٔ باک دے. څکه پاتے شو. خو کله چه ورته زُورنه ورکړے شوه نو چونکه باغ ئے د پاتے کیدو سبب شوے وو هغه ټول ئے د الله تعالیٰ په لار کښې صَدقه کړهٔ.

د هِلال رضی الله عنه بال بچ او خپلوان چرته تلی وُو. اِتفاقًا په دے موقع ټول جمع شو هغهٔ هم دا خیال اُوکړهٔ چه همیشه شریک شوے یم کهٔ چرے په دے موقع لاړنشم نو څهٔ نقصان دے څکه پاتے شو خو د زُورنے نه پس ئے ټولو سره د تعلقاتو ختمولو اراده اُوکړهٔ چه دا تعلقات په دے جنګ کښې د نهٔ شریکیدو سبب شول.

دحضرت کعبؓ قِصه په حدیثونو کښې په کثرت سره راغلې ده. هغه خپل حالات ډیر په تفصیل سره اَوَروِي. فرمائي چه څهٔ د تبوك نه مخکښې هیڅ یو جنګ کښې دومره قوي او مالدار نهٔ وَم څومره چه د تبوك په وخت کښې وَم. دغه وخت ماسره خپلې ذاتي دوه اُوښې وې. دې نه وړاندې چرې دوه اُوښانې ماسره نهٔ وې. دنبي کرم ﷺ عادتِ شریفه همیشه دا وو چه کوم طرف ته به یې دجنګ اراده کوله دهغې اظهار به یې نهٔ کولو بلکه دنورو اړخونو حالات به یې پوښتل. خو دې جنګ کښې چونکه ګرمي سخته وه او سفر هم ډلرې وو. دې نه علاوه دَ دُشمنانو لښکر هم ډیر لوئی وو څکه یې ښکاره اعلان اُوکړو چه خلق تیارې اُوکړي په دې وجه دمسلمانانو دومره لوئیه ډله دنبي ﷺ سره شوه چه په رجسټر کښې دهغوی نومونه لیکل مُشکل شو. اود مجمع دډیروالي په وجه کهٔ چا ځان پټولې چه لاړ نشم او پته اُونهٔ لګی نو هیڅ ګرانه نهٔ وه. دې سره میوې بالکل پخې وې. ما به دسحر نه دسفر سامان دتیارئ اراده اُوکړه خو مابنام به شو او هیڅ قِسمه تیاري به اُونهٔ شوه. خو ما به خپل زړهٔ کښې خیال کولو، ماسره خو هر څه موجود دي چه اراده پخه اُوکړم زر به اُوشي تردې چه نبي اکرم ﷺ روان شو او مسلمانان هم ورسره. خو څما دسفر سامان تیار نهٔ شو. بیا مې هُم دا خیال وو چه یو دوه وَرځو کښې به ځان تیار کړم، ورپسې شم. دغه شان مې نن صبا کول تردې چه دنبي ﷺ هلته دَرسیدو زمانه تقریباً رانزدې شوه هغه وخت هم ما کوشش اُوکړو خو سامان اُونهٔ شو. اُوس چه مدینه منوره کښې اُخوا دیخوا اُوګورم نو صرف هغه خلق وینم چه په چا دنفاق بَدْ داغ لګیدلے وو یا مَعْذُوره وو. نبي ﷺ چه تبوك ته اُورسیدهٔ پوښتنه یې اُوکړه چه کعب نهٔ ښکاري څهٔ خبره اُوشوه. یو صاحب اُووے اے دالله رَسُوله! هغه دخپل مال او جمال مستئ ایسار کړو. حضرت مُعاذ رضی الله عنه اُووے چه غلطه دِ اُووے. مونږ ته چه څومره معلومه ده هغه ښهٔ سړے دے خو نبي ﷺ بیخي خاموشي اُوفرمایله. هیڅ یې اُونهٔ وئېل تردې چه په څو وَرځو کښې ما د واپسئ خبر واُوریدهٔ نو ډیر غمژن شوم او ډیر فکرمند شوم په زړهٔ کښې مې د دروغو دروغو عُذرونه راتلل

چه دغه وخت به په څهٔ فرضی عُذر د نبی علیه الصلوٰة والسلام د غصے نه ځان بچ کړم. بیا به څهٔ وخت د مُعافئ درخواست اُوکړم. او په دے باره کښې م د خپلے کورنئ هر یو هه سری سره مشوره کوله خو چه کله را ته معلومه شوه چه نبی علیه الصلوٰة والسلام تشریف راوړهٔ نو خما زړهٔ فیصله اُوکړه چه رښتیا نه بغیر هیڅ څیز خلاصے نهٔ ورکوی او ما د رښتیا عرض کولو پخه اراده اُوکړه. د نبی علیه الصلوٰة والسلام عادتِ شریفه دا وو چه کله به یے د سفر نه تشریف راوړهٔ نو اول به یے جُمات ته تشریف یوړهٔ او دوه رکعته تحیة المسجد مونځ به یے اُوکړهٔ او هلته به یے لږ ساعت تشریف کیخوډهٔ چه خلقو سره ملاقات اُوکړی. د غے د معمول مطابق نبی علیه الصلوٰة والسلام تشریف فرما شو او مُنافقان به راتلل او د دروغو عُذر ونه به یے کول او قسمونه به یے خوړل. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به د هغوی ظاهری حال قبلوو او پټ حال به یے الله تعالیٰ ته سپارلو. په دے کښې زهٔ هم حاضر شوم، سلام م اُوکړو. نبی علیه الصلوٰة والسلام د ناراضتیا په انداز کښې مسکے شو او اِعراض یے اُوکړو یعنی مخ یے واړولو. ما عرض اُوکړهٔ اے د الله نبی صلی الله علیه وسلم تاسو اِعراض اُوفرمایهٔ. په الله تعالیٰ م دِ قسم وی نهٔ زهٔ مُنافق یم نهٔ خما په ایمان کښې څهٔ شک دے. ارشاد یے اُوفرمایهٔ، دِ غه وار اشه. زهٔ ورنزدے شوم کیناستم. نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل، ته څهٔ څیز ایسار کړے؟ آیا تا اُوښکنے په بیعه نهٔ وے اَخستے. ما عرض اوکړهٔ اے د الله رَسُوله! کهٔ چرے زهٔ چا دُنیادار سره دا وخت وے نو ما ته دا یقین دے چه ما به د هغهٔ د قهر غصے نه په مُناسب عُذر ځان خلاص کړے وے چه ما ته د خبرو کولو طریقه الله تعالیٰ راکړے ده. خو ستاسو په باره کښې ما ته معلومه ده. کهٔ چرے نن په دروغو تاسو راضی کړم نو نزدے ده چه الله جل جلالہ به ما نه ناراضه شی. او کهٔ چرے تاسو ته صفا صفا عرض اُوکړم نو تاسو به غُصه شئ. خو نزدے ده چه د الله تعالیٰ پاک ذات به ستاسو خفګان لرے کړی. ځکه رښتیا عرض کومه چه وَالله ما ته هیڅ عُذر نهٔ وو او څو مره فارغ او شتهٔ منا، چه څهٔ په دِے زمانه کښې وُم هیڅ زمانه کښې د دے نه وړاندے نهٔ وُم شوے. نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه دا رښتیا اُووے. بیا یے اُوفرمایل، بنه پا سه ستا فیصله به الله جل شانهٔ کوی. زهٔ د هغه ځائ نه

یا سیدم نو ځما د قوم ډیرو خلقو ځهٔ ملامته کړم چه تا دے نه وُړاندے ځهٔ گناه نهٔ وه کړے. کهٔ چرے تا عُذر کړے وے او نبی علیه السلام ته دِ دَ اِستغفار (د بخښنے) درخواست کړے وے نو د نبی علیه السلام استغفار به تا دپاره کافی شوے وو. ما د هغوی نه تپوس اُوکړو چه څوك بل هم داسے کس شته چه هغهٔ سره دا معامله شوے وی خلقو اُووے چه دوه کسانو نورو سره هم داسے معامله شوے ده چه هغوی هم داسے خبرے اُوکړے چه کومے تا اُوکړے. او د غسے جواب هغوی ته ورکړے شو چه کوم تا ته درکړے شو. یو هلال بن اُمیه دویم مُرَارَه بن رَبیع (رضی الله عنهما) ما اُولیدل چه دوه نیکان کسان چه دواړه بدری[1] دی هغوی هم ځما په شان دے حال کښ شریك دی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم مونږ درے واړو سره دخبرو نه منع اُوکړه چه هیڅوك به مونږ سره خبرے نهٔ کوی. دا د قاعدے خبره ده چه غُصه په هغه چا راځی چا سره چه تعلق وی، زوَرنه هغه چا ته ورکولے شی په چا کښ چه د هغے اَهلیت وی او په چا کښ چه د اِصلاح او صَلاح قابلیت دسَرَه نهٔ وی هغهٔ ته زوَرنه څوك ورکوی. کَعب رضی الله عنه فرمائی چه د نبی علیه السلام په منع کولو خلقو مونږ سره خبرے پرېخودے او مونږ نه یے ډډه کوله. گویا (څمونږ) دُنیا بدَله شوه. ترد ے چه زمکه سره دخپلے فراخئ په مونږ تنگه معلومه شوه. ټول خلق پردی شو. دَر او دیوار نا اشنا شو. ما سره د ټولو نه زیات دد ے فکر وو کهٔ ځهٔ په دے حال کښ مړ شوم نو نبی علیه السلام به مې د جنازے مونځ هم نهٔ کوی. او الله مهٔ کړه کهٔ د نبی علیه السلام وفات اُوشو نو همیشه همیشه دپاره به د غسے پاتے شم چه نهٔ به راسره څوك خبرے کوی، نهٔ به راباندے (د جنازے) مونځ کوی. ولے چه د نبی علیه السلام د ارشاد نه خلاف څوك کولے شی. غرض مونږه پنځوس وَرځے په دے حال کښ تیرے کړے. ځما دوه ملگری خو د شروع نه په کورونو کښ پټ ناست وُو، ځهٔ په ټولو کښ قوی ځوَان وم، گرزیدم راگرزیدم به، بازار ته به تلم، ما ځهٔ کښ به شریکیدم خو ما سره به چا خبرے نهٔ کولے. د نبی علیه السلام مجلس

[1] بدری هغه خلقو ته ویلے شی کوم چه د بدر په جنگ کښ شریك شوی وُو. د دوی بزرگی او لوئی منلے شوے ده په حدیثونو کښ هم د دوی فضیلت راغلے دے. ډیرو حدیثونو کښ د دوی مغفرت او د الله تعالیٰ رضا د دوی نه د خوشحالیه وزیری راغلی دی. از الهامش من الشیخ.

ته به لاړم، سلام به مې اُوکړو او ډیر په فکر به مې خیال کولو چه د نبي ﷺ شونډې مبارکې د جواب د پاره اُوخوزیدې او که نه. ما ځه نه پس به د نبي ﷺ نزدې اُودریدلم مونځ به مې پوره کولو او پټ پټ به مې کتل چه نبي ﷺ ما ته ګوري که نه. کله چه به ځهٔ ما ځه کښې مشغول شوم نو نبي ﷺ به ما ته کتل او کله چه به ځهٔ هغوی ته مُتوجّه شوم نو نبي ﷺ به مخ واړوو او ځما نه به يې اعراض اُوفرمايهٔ. غرض د غسې حالت تيريدلو او د مسلمانانو خبرې اترې بنديدل په ما باندې ډير بوجهل شو نو ځهٔ د ابو قتاده رضی اللہ عنہ په ديوال باندې اُوختلم، هغه ځما په رشته کښې د تره ځوئې وو او ما سره يې تعلقات هم ډير زيات وُو. ځهٔ پورته اُوختلم، سلام مې اُوکړهٔ هغهٔ د سلام جواب رانهٔ کړهٔ. ما هغهٔ ته قسم ورکړهٔ او تپوس مې ترې اُوکړهٔ چه آيا تا ته معلومه نهٔ ده چه ځما د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسُول ﷺ سره محبّت دے. هغهٔ د دے جواب هُم رانهٔ کړهٔ. ما دوباره قسم ورکړهٔ او پوښتنه مې ترې اُوکړه هغه بيا هم چُپ پاتے شو. ما دريم وارے بيا قسم ورکړهٔ او تپوس مې ترې اُوکړهٔ، هغهٔ اُووے الله تعالیٰ او د هغهٔ رسُول ﷺ بنهٔ پوهيږي. دا خبره مې واوريدهٔ نو ځما د سترګو نه اوښکې رَوانے شوے او د هغه ځائ نه واپس راغلم. په دے دوران کښې ځهٔ يو وارے د مدينے په بازار کښې تيريدم چه يو قبطي چه عيسائي وو او د شام ملک نه مدينے منورے ته خپله غله خرڅولو د پاره راغلے وو. دا مې ترے واوريدل چه څوک ما ته د کعب بن مالک پته اُوښائي. خلقو ورته ځما طرف ته اشاره اُوکړه. هغه ما ته راغے او د غسّان کافر بادشاه خط يې ماله راکړهٔ. په هغے کښې يې ليکلي وُو. مونږ ته معلومه شوه چه ستا آقا په تا باندے ظلم کړے دے، تا د الله د ذلت په ځائ اُونساتي او نهٔ د ضائع کړي. ته ځما خوا ته راشه مونږ به ستا مدد اُوکړو. (د دُنيا قاعده ده چه د مشر له طرفه کشرانو ته تنبيه زورنه د آدب د پاره کيږي. نو د هغهٔ لمسونکی نور د هغهٔ د ضائع کولو کوشش کوي او خير خواه يې جوړشي د د قسمه الفاظو سره يې نور اُوچتوي) کعب رضی اللہ عنہ فرمائي چه ما دا خط اُولوستهٔ. إِنَّا لِلّٰه مې اُووے چه ځما حالت دے پورے اُورسيدهٔ چه کافر هم ځما نه طمع کوي

اوځما دِ اسلام نه دلرے کوُلو ته بیرُونه کوی. دا یو بل مُصیبت راغے او هغه خطرِم په یو تنُور کښ اُوسوزوُو او لاړم نبی صلی الله علیه وسلم ته م عرض اُوکړو چه اے دَ الله رَسُوله! ستاسو دِ اعراض له وجے ځما دا حالت شو چه کافر په ما کښ طمع کوی. په دے حالت کښ خلوینت ورځے په مونږ تیرے شوے وے چه د نبی صلی الله علیه وسلم قاصد ما ته د نبی صلی الله علیه وسلم دا ارشاد راوړو چه خپله ښځه هم پریږده. ما پوښتنه اُوکړه، څهٔ غواړی چه طلاق ورکړم؟ وے وئیل نه بلکه جُدا ئی اختیار کړه. او ځما دوارو ملګرو ته هم د دے قاصد په واسطه دا حُکم اُورسولے شو. ما خپلے ښځے ته اُووے چه ته خپلے پلار کَنَیٔ کره لاړه شه تر هغے چه الله تعالیٰ د دے مُعاملے فیصله اُوکړی. هلته اُوسه. دهِلال بن اُمَیّه رضی الله عنه ښځه د نبی صلی الله علیه وسلم خدمت کښ حاضره شوه او دا عرض یے اُوکړو چه هِلال یعنی بوډا سړے دے که څوک خبر اخستونکے یے نهٔ وی نو مړ به شی. که تاسو اجازت کوئ او ستاسو په طبیعت ګرانی نهٔ وی نو څهٔ به د هغهٔ څهٔ کار خدمت کومه. نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل پروا نشته خو چه کوروالے اُونهٔ کړی. هغے عرض اُوکړو اے د الله رَسُوله! د دے خیز طرف ته خو هغه اَرو خواهش نشته. دکومے وُرځے نه چه دا واقعه پیښه شوے ده تر نن وُرځے پورے د هغهٔ وخت په ژړا کښ تیریږی. کعب[1] رضی الله عنه فرمائی ما ته هم اُووئیلے شو چه د هِلال په شان ته هم که د ښځے د خدمت اجازت واخلے نو کیدے شی چه درکړے شی. ما اُووئیل هغه بوډا دے، څهٔ ځوان یم. نهٔ ده معلومه ما ته به څهٔ جواب راکوی څکه زړهٔ وَرتیا نهٔ کوم. غرض په دے حال کښ لس وَرځے نورے تیرے شوے چه مونږ سره خبرے اُترے کَلهُون پریخودلے شوے وو. پوره پنځوس وُرځے تیرے شوے پنځوسمه وَرځ د سحر مونځ مِ دخپل کور په چَهت اُوکړو او ډیر غمژن ناست وُمه. زمکه په ما یعنی تنګه وه او ژوندم په تکلیف کښ وو چه (ناڅاپه) د سَلع غر د سوکے نه یو چغه وهِستونکی په زوره آواز اُوکړو چه کَعبه! تا ته دِ خوشخبری وی

---

[1] ممکنه ده ښځے ورته وئیلی وی چه د ښځو نه د جُدا والی حکم لا ترا اُوسه نه دے شوے. یا چا بل یا منافق ورته وئیلی وی ځکه چه ٦ اصحابو خو ورسره خبرے نه کولے ۱۲ هٰذا الحاشیة من الشیخ.

مادومره واؤریدل او په سجده کښې پرېوتم او ډېرے خوشحالئ نه په ژړا شوم او پوهه شوم چه تنګی لرے شوه. نبی اکرم ﷺ د سحر مانځه نه پس شونږ د معافئ اعلان اُوفرمایهٔ چه په دے یوسرے په غرٔ اُوختلو په زوره یے آواز ورکړهٔ چه هغه آواز د ټولونه زومبے راؤرسیدهٔ. دے نه پس یو صاحب په آس باندے سور په منډه راغے. ما چه کومے جامے اغوستے وے هغه مے اُوویستلے او زیری ورکوُنکی ته مے ورکړے. په الله تعالیٰ مے د قسم وی، د دے دوه جامونه سِوا نوره هیڅ جامه دغه وخت خما په مَلکِیَت کښې نهٔ وه. دِینه پس مادوه جامے (پچانه) اُوغوختے وامے غوستلے او د نبی ﷺ خدمت کښې حاضر شوم. دا رنګے خما دوهٔ ملګرو ته هُم خلقو زیرے یوړهٔ. کله چه مسجدِ نبوی ته حاضر شوم نو کوم خلق چه د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر وُو ماته مُبارکی راکوُلو د پاره یے راستړه کړهٔ او د ټولونه زومبے ابُوطَلحَه رضی اللہ عنہ راځغلېښ شو مُبارکی یے راکړه او لاس یے راسره مِلاوُکړهٔ چه همیشه به مے یاد وی. څهٔ د نبی ﷺ دربار ته لاړم، سلام مے اُوکړهٔ نو مخ مُبارک یے خوشحاله خندان وو او د خوشحالئ رڼړا یے د مخ نه ښکاره کیدله. د نبی اکرم ﷺ مخ مُبارک به د خوشحالئ په وخت د سپوږمئ په شان ځلیدهٔ. ما عرض اُوکړهٔ چه اے د الله رَسُوله! خما د توبے پوره والے دا دے چه خما څومره جائید اد دے هغه ټول د الله تعالیٰ په لاره کښې صدقه دے (چه دا مالداری د دے مُصیبت سبب جوړ شوے وو) نبی ﷺ اُوفرمایل چه په دے کښې به در ته تنګسیا اُوشی څهٔ حصه پخپل ځان ځنګه هم اُوساته. ما عرض اُوکړهٔ چه ښهٔ ده د خیبر حِصه د پرېښودے شی ما ته رښتیا ویلو خلاصے راکړهٔ. په دے وجه ما لوظ اُوکړهٔ چه همیشه به رښتیا وایم. (درمنثور. فتح الباری)

**فائده**: دا ده د آصحابو کرامو رضی اللہ عنہم د اطاعت او دینداری او د الله تعالیٰ نه دویرے نمونه چه همیشه به په جنګ کښې د احضرات شریک وُو یو وارے په غیر حاضرئ څهٔ څهٔ زوړنے ورته اُوشوے او هغه ئے په څومره

ؔ اګرچه د جامو نه سوا نور مال موجود وو خو دغه وخت عام ټرونه دا وُو چه فضول څیزونه به زیات نهٔ وو نو جامے یے دوه وے. کذا فی بذل المجھود من الشیخ ۱۲-

فرمانبرداریٔ سره برداشت کړے چه پنځوس ورځے یے په ژړا کښې تیرے کړے او د کوم مال په وجه چه دا واقعه پیښه شوه هغه یے هُم صدقه کړهٔ. او کافرانو طمع ورکړه نو په ځائ د غصے تیزیدو نور زیات پښیمانه شو، او دا یے هم د الله تعالیٰ زورنه او د نبی علیه السلام د ناراضتیا وجه اُوګڼړله چه ځما د دین کمزورتیا دے درجے ته اُورسیده چه کافرانو ته د دے طمع اُوشوه چه هغوی ما بے دینه کړی. مونږ خلق هم مُسلمانان یُو، د الله تعالیٰ او د هغهٔ د پاك رسُول صلی الله علیه وسلم ارشادات هم مونږ مخکښې دی. د لوئ نه لوئ حُکم د مانځه واخله چه د ایمان نه پس د دے برابر هیڅ یو څیز نشته. څومره (مسلمانان) دی چه دا حُکم پُوره کوی. او څوك یے چه کوی هغه هُم ښګله کوی. د دے نه پس د زکوٰة او حج په ځائے تپوس کوے چه په دے کښې خو مال هم خرڅ کیږی.

## ⑩ د اَصحابُو کرامو رضی الله عنهم په خندا د نبی علیه السلام تنبیه او د قبر یاد

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو وارے د مانځه د پاره تشریف راوړهٔ نو یو تو لګے یے اُولیدهٔ چه هغوی خندل او د خندا په وجه یے غاښُونه ښکاریدل. نبی علیه السلام ارشاد اُوفرمایهٔ، که چرے مرګ ډیر ډیر یادوئ نو کوم حالت چه زهٔ وینم دا به نهٔ پیدا کیږی. په دے وجه مرګ ډیر ډیر یادوئ. په قبر باندے هیڅ یوه ورځ داسے نهٔ تیریږی چه په هغے کښې هغه دا آواز نهٔ کوی چه زهٔ د تنهائی کور یم، زهٔ د تنهائی کور یم، د خاورو کور یم د چینجو کور یم. کله چه مؤمن قبر کښې کیخودلے شی نو هغه قبر ورته وائی، ستا راتلهٔ دِ مُبارك وی ډیر ښهٔ دِ اُوکړهٔ چه راغلے. څومره بنیادم چه په زمکه باندے ګرزیدل ته په هغوی ټولو کښې ځما ډیر خوښ وے. نن ځما خوا ته راغلے نو ځما بهترین سُلوك به اُوګورے. د دے نه پس هغه قبر تر کومے پورے چه د مړی نظر رسی هغے پورے اَرت شی. او یوه دروازه په هغے کښې د جنت په طرف کیدلے شی چه په هغے کښې د هغه ځائ هوا او خوشبوئ ده ته راځی. او کله چه څوك بدعمله په قبر کښې کیخودلے شی نو هغه قبر ورته وائی، ستا راتلهٔ دِ نا مُبارك وی. بد دِ اُوکړهٔ چه ته راغلے. په زمکه باندے چه څومره بنیادم ګرزیدل په هغه

تو لوکښې لتا نه څمازیاته کرکه وه. نن کله چه ته څما حواله شوې نو څما معامله به هم اُووینې. دے نه پس دا ځکه هغهٔ ته زور ورکوی چه ښتني یې په خپلوکښې یو بل کښې ننوزی او اویا اژدها گانے په هغهٔ دا سے مقرر کړے شی که چرے یوه هم په زمکه پوکے اُووهی نو د هغے د اثرنه به په زمکه وابنهٔ قدرپاتے نشی او دغه تر قیامته پورے چیچی. دے نه پس نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه قبر یا د جنت یو باغ دے یا د دوزخ یوه کنده. (مشکوٰة)

**فائده:-** دالله تعالیٰ نه ویره ډیره ضروری او اهم څیز دے. هم دا وجه ده چه نبی اکرم ﷺ به اکثر څهٔ زورسوچ کښې وو. او د مرګ یادول دے دپاره فائده مند دی ځکه نبی اکرم ﷺ دا شخه ارشاد اُوفرمایله چه کله کله مرګ یادول ډیر ضروری او فائده مند دی.

## (۱۱) حضرت حنظله رضی اللہ عنہ ته د نفاق ویره.

حضرت حنظله رضی اللہ عنہ فرمائی چه یو وارے مونږه خلق د نبی ﷺ مجلس کښې وُو. نبی اکرم ﷺ وعظ اُوفرمایهٔ چه په هغے سره زړونه نرم شو. او سترګونه اُوښکے اُوبهیدے او خپل حقیقت په مونږه ښکاره شو. د نبی ﷺ مجلس نه راپاسیدم. چه کورته راغلم، ښځه، بچی راته راغلهٔ او څهٔ د دُنیا خبرے اترے شروع شوے او بچو سره خندا خبرے، ښځے سره توقے شروع شوے او هغه حالت لاړو کوم چه د نبی ﷺ په مجلس کښې وو. ناڅاپه م خیال راغے چه څهٔ رُومبے په کوم حالت کښې وُم اُوس څهٔ اُوشو، ما خپل زړهٔ کښې اُووے چه ته خومُنافق شوے چه په ظاهره د نبی ﷺ مخکښې د هغه حال وو، اُوس چه کورته راغلے نو دا حالت د شو. ما په دے افسوس او غم کولو او دا م ویل کورنه را اُووتلم چه حنظله خومُنافق شو. مخا مخ حضرت ابُوبکر صدیق رضی اللہ عنہ تشریف راوړهٔ. ما هغهٔ ته عرض اُوکړهٔ چه حنظله خومُنافق شو. هغهٔ چه دا اُوریدل، وے فرمایل سُبحان الله څهٔ وایے، هیڅ کله نهٔ. ما حال بیان کړهٔ چه مونږ خلق کله چه د نبی ﷺ په خدمت کښې یُو او نبی ﷺ د دوزخ

اود جنت ذکر فرمائي نو مونږ خلق داسې شو ګويا هغه د واړه څمونږ مخکښ دي. او کله چه د نبي ﷺ د خوا نه راشو، نو ښځې بچو او جائداد وغيره ګمونو کښ اوګخلو، هغه هرڅه هير کړو. حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اوفرمايل چه دا خبره خو ماته هم پيښيږي. دې دپاره دواړه د نبي ﷺ خدمت کښ حاضر شو. او حنظله رضي الله عنه عرض اوکړه چه اے دالله رسوله اځه خو منافق شوم. نبي ﷺ اوفرمايل څه خبره اوشوه؟ حنظله رضي الله عنه عرض اوکړه چه کله مونږ خلق ستاسو په خدمت کښ حاضر شو او تاسو د جنت او دوزخ ذکر فرمائي نو مونږ ه داسې شو ګويا هغه څمونږ مخکښ دي خو چه کله ستاسو مجلس نه لاړ شو او د ښځې بچو او د کور په غمونو کښ لګيا شو نو هر څه هير شي. نبي ﷺ ارشاد اوفرمايه چه په هغې ذات م د قسم وي دچا په قبضه کښ چه څما ساه ده. که چرې ستاسو هر وخت دغه حال پاتې شي څنګه چه څما مخکښ وي نو فرښتو به تاسو سره په بستره او لاروکښ لاس ملاوَوَلو خو حنظله خبره داده کله کله کله. (احياء مسلم)

**فائده:**- يعني انسان سره انساني ضرورتونه هم لګيدلي دي چه د هغې پوره کول هم ضروري دي. خوړل، څکل، ښځه، بچي او د دوي خير خبر لګستل دا هم ضروري څيزونه دي. په دې وجه داسې قسمه حالات کله کله حاصليږي هر وخت دانه حاصليږي او نه د دې اُميد ساتل پکار دي. دا د فرښتو شان دے چه دهغوي څه بل کار فکر نشته. نه ښځه، نه بچي، نه د ګذران فکر نه دُنيوي قصے. او انسان سره چونکه بشري ضروريات لګيدلي دي نو د دې هر وخت په يو حالت نشي پاتې کيدے. خو د غور وفکر خبره داده چه اصحابو کرامو رضي الله عنهم ته دخپل دين څومره فکر وو چه لږ شان خبرے سره چه د نبي ﷺ مخکښ کوم حالت څمونږ وو هغه رُستونه پاتې کيږي، په دې دخپل مُنافق کيدو ورسره فکر شو. "عشق است وهزار بد ګماني". عشق دے او په زړګونو بد ګماني دي. چا سره چه عشق شي د هغه په باره کښ په زرګونو قسمه بد ګماني او فکر پيدا شي. خوږ سره مينه وي او هغه

چرته په سفر لاړشي بيا کوڅې هر وخت دخيريت دخبر فکر وي او که دا معلومه شي چه هلته طاعون (مرض) ده يا فساد شوے دے بيا خو الله تعالیٰ ته معلومه ده چه څومره خطونه او تارونه به ليږي.

## تکميل ـــ دَ الله تعالیٰ نه دويرے مُتفرِّق حالات

دقران شريف ايتونو او دنبي کريم صلی الله عليه وسلم حديثونو او دبزرګانو واقعاتو کښې د الله جلّ شانه نه دويرے متعلق څومره څه چه ذکر شوي دي دهغې راجمع کول خو ګران دي خو په مختصر طور دومره ځان پوهول پکار دي چه ددين دهر يو کمال بوږي دالله تعالیٰ نه ويره ده. دنبي کريم صلی الله عليه وسلم ارشاد دے چه دحکمت جرړه دالله تعالیٰ نه ويره ده.

حضرت ابنِ عمر رضی الله عنه به ډير ژړل چه په ژړا ژړا يے سترګے بيکاره شوے. چا يو وارے اوليده نو هغه ته يے اوويل چه ته څه ژړا ته حيران يے دالله تعالیٰ دويرے نه نمر ژاړي. يو وارے دا سے قصه راغله نو ويے فرمايل چه د الله تعالیٰ دويرے نه سپوږمئ ژاړي.

يو ځوان صحابي پاندے نبي عليه الصلوٰة تيريدو. هغه (قران) لوسته کله چه فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ته اورسيدو نو ديدان ويخته يے اودريدل او په ژړا ژړا يے ساه په سلګو شوه او ويل يے، او افسوس هغه ورځ چه اسمان اوچوي (يعني دقيامت په ورځ) څما به څه حال وي. هائے! څما بربادي. نبي عليه الصلوٰة ورته اوفرمايل ستا د دے ژړا په وجه فرښتے هم په ژړا شوے.

يو انصاري رضی الله عنه دتهجّد (مونځ) اوکړه، بيا کيناست ډير يے اوژړل ويل يے، الله تعالیٰ ته فرياد کوم ددوزخ دا اور. نبي عليه الصلوٰة ورته اوفرمايل چه تا نن فرښتے اوژړولے.

عَبد الله بنِ رَواحه رضی الله عنه يو صحابي دے. ژړل يے ښځے چه دهغه دا حالت اوليدو هغه هم په ژړا شوه. ده ترے تپوس اوکړو چه ولے ژاړے؟

وِرے ویل چه دکومے وجے نه ته ژاړے۔ عَبدُالله بنِ رَوَاحه رضی الله عنه اُو فرمایل چه خو په دے وجه ژاړم چه په دُوزخ باندے خوتیریدل دی۔ نهٔ ده معلومه چه خلاصے به اُوشی که هلته به پاتے شم۔ (قیام اللیل)

زُرَارَه بنِ اَوفیٰ رحمة الله علیه یو جُمات کښ مونځ ورکولو۔ فَاِذَا نُقِرَ فِی النَّاقُورِ الایة د اُودلو نه چه کله اُورسیدهٔ نو زر پریوت او وفات شو۔ (رحمه الله) خلقو اُومیت کرهٔ کور ته یے راوړهٔ۔

حضرت خُلَیدُ رحمة الله علیه یو واره مونځ کولو۔ کُلُّ نَفسٍ ذَائِقَةُ المَوتِ (آل عمران) ته چه اُورسیدهٔ نو دا یے بیابیا وے۔ لږ ساعت کښ دکور د یو کوټ نه آواز راغے چه څو پورے به دا وایے۔ ستا په دے بیابیا ویلو سره څلور پیریان مړهٔ شو۔

د یو صاحب قِصه یے لیکلے ده چه (قران شریف یے) لُوستهٔ لوستهٔ۔ کله چه وَرُدُّوْا اِلَى اللهِ مَوْلٰهُمُ الْحَقِّ ته اُورسیدهٔ نو یوه چغه یے اُوویستله۔ لتے یے اُوټکولے مړشو۔ نور هم د دے قسمه واقعات ډیر تیر شوی دی۔

حضرت فُضَیل رحمة الله علیه یو مشهور بزرګ دے فرمائی چه د الله تعالیٰ نه ویرهٔ د هر خیر طرف ته لارهٔ ښائی۔

د حضرت شِبلی رحمة الله علیه د نوم نه ټول خبر یئ۔ هغه فرمائی کله چه څهٔ د الله تعالیٰ نه ویریدلے یم۔ د هغې په وجه په ما د حِکمت او عبرت داسے دروازه پرانستے شوے ده چه د دے نه مخکښ نه وه پرانستے شوے۔

حدیث شریف کښ راغلی دی چه الله جل شانهٔ فرمائی چه څهٔ په خپلو بندګانو دوه ویرے نهٔ جمع کوم او دوه بے فِکرئ نهٔ ورکوم۔ که چرے په دُنیا کښ ما نه بے فکره شی نو به په قیامت کښ ئے ویروم۔ او که دُنیا کښ ما نه ویریږی نو آخرت کښ بے فکری ورکوم۔

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څوک د الله تعالیٰ نه ویریږی د هغهٔ نه هر یو څیز ویریږی او چه څوک د غیرالله نه ویریږی هغهٔ لره هر یو څیز ویروی۔

یحیٰی بن مُعَاذ رحمة الله علیه فرمائی چه سړے که چرے د دُوزخ نه دومره ویریږی څومره چه د غریبئ نه ویریږی نو نیغ به جنت ته لاړ شی۔

ابو سُلیمان دَارَانی رحمة الله علیه فرمائی د کوم زړهٔ نه چه د الله تعالیٰ ویرهٔ

لاره هغه برباد شو۔

دنبی اکرم ﷺ ارشاد دے۔ دکوم سترګے نه چه دالله تعالیٰ دویرے نه لږ اوښکے اوځی که اګر که د مچ د سر برابر وے نو هغه وی اوزی او په مخ پریوزی نو الله تعالیٰ دغه مخ په اور حرام وی۔

دنبی اکرم ﷺ یو بل ارشاد دے چه کله دمسلمان زړه دالله تعالیٰ دویرے نه رپی نو دهغه ګناهونه داسے رژی څنګه چه دونو پاڼے دوریږی۔

حما دنبی ﷺ یو بل ارشاد دے چه څوك دالله تعالیٰ دویرے نه اوژاړی دهغه اورته تلل داسے مشکل دی څنګه چه دپیو تیو نو کښے واپس تلل۔

، حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه یو صحابی دے۔ ده دنبی ﷺ نه تپوس اوکړو چه دخلاصی لاره کومه ده۔ هغوی مبارك ورته اوفرمایل چه خپله ژبه په قابو کښے ساته، په کور کښے کینه او په خپلو ګناهونو ژاړه۔

حضرت عائشے رضی الله عنها یو وارے دنبی ﷺ نه پوښتنه اوکړه چه ستا سو په امت کښے څوك داسے هم شته چه بے حسابه بے کتابه به جنت کښے داخل شی۔ نبی ﷺ اوفرمایل، هو! چه څوك خپل ګناهونه یادوی او ژاړی۔

حما اقا ﷺ یو بل ارشاد دے چه الله تعالیٰ ته د دوه څاڅکو نه زیات بل څاڅکے خوښ نه دے۔ یو د اوښکے هغه څاڅکے چه دالله تعالیٰ دویرے نه راوتلے وی۔ دویم دوینے هغه څاڅکے چه دالله تعالیٰ په لاره کښے تویٔ شی۔

یو ځائ ارشاد دے چه دقیامت په ورځ اوه کسان داسے دی چه هغوی ته به الله جل شانه دخپل عرش سورے ورکړی یو هغه کس دے چه په تنهائی کښے الله تعالیٰ یادکړی او ددے په وجه یے دسترګونه اوښکے اوبهیږی۔

دحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ارشاد دے چه څوك ژړلے شی هغه دِ اوژاړی او چاته چه ژړا نه ورځی هغه دِ د ژړا شکل جوړکړی۔

محمد بن منکدر رحمة الله علیه چه به کله ژړل نو اوښکے به یے په خپل مخ او ږیره راښکلے او ویل به یے چه ماته دا روایت را رسیدلے دے چه د دوزخ اور به په هغه ځائ نه لګی کوم ځائ ته چه اوښکے رسیدلے وی۔

د ثابت بُنانی رحمة الله علیه سترګې خوږ شوې. طبیب ورته اُووې، دیوې خبرې وعده اُوکړه سترګې به دې ښې شي چه ژاړه مه. وې ویل چه په سترګه کښې هیڅ خوبي نشته که هغه اُونه ژاړي.

یَزِید بن مَیسَره رحمة الله علیه وائي چه ژړا د اُوو وجهونه کیږي. خوشحالي، لیونتوب، درد، ویریدل، ریاکاري، نشه او د الله تعالیٰ دویرے نه. هم دا ده هغه ژړا د کومے چه یوه اُوښکه هم د اُور سمندر مړ کوي.

کَعب اَحبَار رحمة الله علیه فرمائي چه په هغې ذات م د قسم وي د چا په قبضه کښې چه ځما ساه ده. که څه د الله تعالیٰ د ویرے نه اُوژاړم او اُوښکے ځما په ننګو باندے اُوبهیږي دا ماته د دے نه زیاته خوښه ده چه د غر برابر سره زر صدقه کړم.

د دے نه علاوه نور هم په زرګونو ارشادات دي چه د هغې نه معلومیږي چه د الله تعالیٰ په یاد کښې او د خپلو ګناهونو په فکر کښې ژړل کیمیا ده او ډیره ضروري او فائده مند ده. او په خپلو ګناهونو نظر کولو سره د احالت پیدا کول ضروري دي. د یکسره دا هم ضروري ده چه د الله تعالیٰ د فضل او د هغهٔ د رحمت اُمید کښې هم کمی نهٔ وي. یقیناً د الله تعالیٰ رحمت د هر څهٔ نه فراخه دے.

د حضرت عمر رضي الله عنه ارشاد دے که چرے قیامت کښې دا اعلان اُوشي چه د یو کس نه سِوا ټول دوزخ کښې داخل کړئ نو ځما د الله تعالیٰ د رحمت نه دا اُمید دے چه هغه کس به زهٔ یم. او که چرے دا اعلان اُوشي چه د یو کس نه سِوا ټول جنت کښې داخل کړئ نو ما ته د خپلو اعمالونه دا ویره ده چه هغه کس چرته زهٔ نهٔ یم. په دے وجه د واړه څیزونه جُدا جُدا کنړل، پرے ځان پوهول او خیال یے ساتل پکار دي. خصوصاً د مرګ په وخت کښې د اُمید معامله زیاته پکار ده. د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه د تاسو نه هیڅوک نهٔ مري خو چه په الله تعالیٰ سره حُسنِ ظَن یعنې ښهٔ ګمان ساتي.

د امام اَحمد بنِ حَنبَل رحمة الله علیه چه کله وفات کیدهٔ نو خپل خوي ته یے راوُغوښتهٔ ورته یے اُوفرمایل چه دا سے حدیثونه ما ته وا اُوروه چه په هغې سره الله تعالیٰ باندے اُمید زیاتیږي.

# دریم باب

## دَ صَحابُ کرامو رضي الله عنهم اجمعین دَ زُهد اَو دَ فَقَر یعنی مُحتاجئ غریبئ په بیان کښې

په دے باره کښې په خپله دَ نبي اکرم صلی الله علیه وسلم خپل معمول او دَ هغوی واقعات چه په دے حال باندے دَلالت کوي چه دا څیز نبي صلی الله علیه وسلم په خپله اختیار کړے او خوښ کړے وو. دومره ډیر دَ حدیثونو په کتابونو کښې مونده شي چه دَ هغے مثال په طور جمع کول هم مشکل دي.

دَ نبي صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه فقر دَ مؤمن تحفه ده.

### ① دَ نبي اکرم صلی الله علیه وسلم غرونو لره سره زر جوړولو نه انکار

دَ نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه ځما رب په ما دا پیش کړه چه ځما دَ پاره دَ مکے غرونه دَ سرو زرو جوړ کړي. ما عرض اُوکړه اے الله تعالی! ما ته خو دا خوښه ده چه یوه ورځ په مړه ګیډه اُوخورم نو دویمه ورځ اُوږے یم چه تا ته زاري اُوکړم او ستا یاد کړم او کله چه موړ شم نو ستا شکر ادا کړم، ستا تعریف اُوکړم. (ترمذي)

**فائده:-** دا دَ هغے پاک ذات حال دے دچا چه مونږ نوم اخستونکي یُو او دَ هغه په اُمت کښې کیدو باندے ځمونږ فخر دے چه دَ هغهٔ هره خبره ځمونږ دَ پاره دَ تابعدارئ قابله ده.

### ② دَ حضرت عمر رضي الله عنه دُنیوي فراخي طلب کولو باندے تنبیه او دَ نبي صلی الله علیه وسلم دَ ګذاره حالت

دَ بیبیانو بعضے زیاتو باندے یو وارے نبي اکرم صلی الله علیه وسلم قسم خوړلے وو چه دَ یو میاشتے پورے به دوی ته نهٔ ورځم چه ورته زوَر نه اُوشي. او ځان له یے بیل په یوه کوټه کښې قیام فرمایلے وو. په خلقو کښې دا مشهوره شوه چه نبي صلی الله علیه وسلم

تولو بیبیانو ته طلاق ورکړهٔ. حضرت عمر رضی الله عنه دغه وخت خپل کورکښ وو چه داخبره یے واورېده نو په منډه یے تشریف راوړهٔ په جمات کښ یے اُولیدل چه خلق ځان له ځان له ناست دی. د نبی صلی الله علیه وسلم د غم او د غصے په وجه ژاړی. بیبیانے هم تولے په خپلو کورونو کښ ژاړی. خپلے لور حضرت حفصے رضی الله عنها ته ورغے، هغے هم په کور کښ ژړل. ورته یے اُویل، اُوس ولے ژاړے. آیا ما به همیشه درته نهٔ وېروُلے چه د نبی صلی الله علیه وسلم د خفګان هیڅ خبرهٔ اُونکړے. دے نه پس یے جمات ته تشریف یوړهٔ. هلته یوه ډله منبر سره ناسته وه ژړل یے. لږ ساعت هلته کیناست خو د سخت غم د وجے صبر نهٔ شو. نبی صلی الله علیه وسلم چه کوم ځائی تشریف فرما وو، هغه خوا ته یے تشریف یوړهٔ او حضرت رَباح رضی الله عنه یو غلام په ذریعه یے چه د بیتهك په دروازه یے پښے زوړند ے کړے وے ناست وو، د ننه د حاضرئ اجازت اُوغوښتلو. هغه خدمت کښ حاضر شو او د حضرت عمر رضی الله عنه د پاره یے اجازت اُوغوښتو. خو نبی صلی الله علیه وسلم خاموشه شو هیڅ جواب یے ورنهٔ کړهٔ. حضرت رَباح رضی الله عنه راغے هم دا جواب یے حضرت عمر رضی الله عنه ته ورکړهٔ چه ما عرض اُوکړهٔ خو هیڅ جواب یے رانکړو. حضرت عمر رضی الله عنه نا اُمیده شو. منبر څنګ ته راغے کیناستو. خو صبر یے اُونهٔ کړے شو او لږ ساعت پس بیا حاضر شو او د حضرت رَباح رضی الله عنه په ذریعه یے اجازت اُوغوښتهٔ. دغسے دریے وارے اُوشو چه دهٔ په بے قرارئ سره د غلام په ذریعه د حاضرئ اجازت غوښتهٔ او د هغوی له طرفه به جواب کښ خاموشی وه. دریم وارے چه کله واپس کیدهٔ نو حضرت رَباح رضی الله عنه اواز ورکړهٔ چه تا ته د حاضرئ اجازت اُوشو. حضرت عمر رضی الله عنه خدمت کښ حاضر شو نو وے لیدل چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په یوه پوزکی ملاست دے چه څهٔ څیز پرے غوړیدلے نهٔ دے. په دے وجه پاك وجود باند ے یے د پوزکی نښے جوړے شوے وے. په ښکلی وجود نښے صفا ښکاری. او سر مبارك ته یے د څرمنے یو بالښت دے چه د کهجورے د وُنے پوټکی نه ډك شوے دے. ما سلام اُوکړهٔ او د ټولو نه اول مے ترے دا تپوس اُوکړهٔ چه آیا تاسو بیبیانو ته طلاق ورکړے دے. وے فرمایل نه. دے نه پس ما د خوش طبعئ په طور

عرض اوکړه اے د الله رسوله! مونږ قریشي خلق په ښځو زور اور وُو. خو چه کله مدینے ته راغلو نو اومولیدل چه د انصارو ښځے په سړو زوراورے دي. دوي ته یے چه اوکتل نو د قریشو ښځو ترے هم اثر واخستو. دے نه پس یوه ورځ ما خپله بي بي ته خبره ورکړه هغه هم اوکړه چه په هغه سره نبي اکرم ﷺ مسکے غوندے شو. ما اولیدل چه د کور ټول سامان دا وو. درے څرمنے چه رنګ شوے نه وے او یو مُوټے اوربشے چه په یو کوټ کښ پرتے وے. ما اخوا دیخوا نظر واچولو. نور مے نه سوا نور هیڅ نه وُو. ما چه دا اولیدل په ژړا شوم. نبي ﷺ اوفرمایل ولے ژاړے؟ ما عرض اوکړه اے د الله رسوله! ولے به نه ژاړم چه د بوریٰ نښے ستاسو په وجود مبارك باندے جوړے شوے دي او د کور ټول سامان دا دے کوم چه څما مخکښ دے. بیا ما عرض اوکړه اے د الله رسوله! دعا اوکړئ چه ستاسو په اُمت هم دُنیوي فراخي اوشي. دا روم او فارس والا سره د بے دینئ چه د الله تعالیٰ عبادت نه کوي په هغوي خو دا فراخي، د اقیصر او کسریٰ خو د باغونو او نهرونو په مینځ کښ وي. او تاسو د الله تعالیٰ رسول ﷺ یئ او د هغه خاص بنده یئ او دا حالت دے. نبي اکرم ﷺ ډډه وهلے وه. د حضرت عمر رضي الله عنه دا خبره یے چه واورېده نو کېنا ستو او وے فرمایل چه عمره! آیا تۀ لا تر اوسه په شك کښ پروت یے. واوره. د اخرت فراخي د دُنیا د فراخئ نه ډیره بهتره ده. دے کافرانو ته طیبات او ښۀ څیزونه په دُنیا کښ ملاؤ شوي څو ځو ځمونږ د پاره اخرت کښ دي. حضرت عمر رضي الله عنه عرض اوکړه اے د الله رسوله! ما د پاره بخښنه اوغواړه چه واقعي ما غلطي اوکړه. (فتح)

**فائده:-** دا د دِین دُنیا د بادشاه او د الله تعالیٰ د نیازبین رسول ﷺ طرزِ عمل دے چه په بوریٰ یے هیڅ څیز غوړېدلے نۀ دے. نښے یے په بدن جوړے شوے دي. د کور د ساز و سامان حال یے هم معلوم شو. په دے کښ یو کس د دعا درخواست اوکړو نو تنبیه یے اوفرمایله. حضرت عائشے رضي الله عنها نه چا تپوس اوکړه چه ستا په کور کښ د نبي ﷺ بستره څنګه وه؟ وے فرمایل یوه څرمنه وه چه د کهجورو (د ونے) پوټکي نه ډکه شوے وه. حضرت حفصے رضي الله عنها

نه هم چا تپوس اُوکړو چه ستا په کور کښې د نبی ﷺ بستره څنګه وه؟ اُوې فرمایل
چه د بوجئ کپړه وه چه هغه به مو برغه کړے د نبی ﷺ لاندے اُوغوړوله
یو ورځے م خیال اُوشو که چیرے څلور برغه ئے اُوغوړوم نو زیاته به نرمه
شی نو دا ئے م اُوکړل. نبی ﷺ اُوفرمایل چه د شپے دِ څه غوړولی وُو؟ ما
عرض اُوکړو چه هم هغه کپړه وه څلور برغه م کړے وه. وې فرمایل هم هغے
له کړه څنګه چه رومبے وه د هغے نرمی د شپے پاسیدو کښې منع کونکے جوړیږی (شمائل)
اُوس د مونږ خلق خپلو نرمو نرمو دمالوچو تولیانو ته اُوګورو چه الله
تعالیٰ خومره فراخی کړے ده او بیا هم په ځائی د شکر هر وخت په ژبه د
تنګسیا شکایتونه کوو.

## ⑶ د حضرت اَبُوهُرَیرَه رضی اللہ عنہ په لوږه کښې حالت

حضرت اَبُوهُرَیرَه رضی اللہ عنہ یو ځلے د بوسکی په کپړه پوزه پاکه کړه، وې فرمایل
څه به وایے د اَبُوهُرَیرَه ! نن د بوسکی په کپړه پوزه پاکوی حال دا چه هغه
زمانه ماته یاده ده، کله چه به څه د نبی اکرم ﷺ د منبر او د کوټے تر مینځه
بے هوشه پروت ومه او خلقو به لیونے ګڼړلم، ښپه به ئے راله په سټ ایخوده
زور به ئے راکولو حال دا چه لیونتوب به نهٔ وو، لوږه به وه.

**فائدہ:** یعنی د لوږے د وجے به څو څو ورځے نهرے تیریدلے.
بے هوشی به کیدله. خلقو به داګڼړل چه لیونے شو. ویلے شی. مخکښې زمانه
کښې به د لیونتوب علاج سټ ته په ښپه زور ورکولو سره کولے شو. حضرت
اَبُوهُرَیرَه رضی اللہ عنہ ډیر صابره او قانع خلقو کښې وو. څو څو وخته به پرے نهرے
تیریدے. د نبی ﷺ نه پس الله تعالیٰ فتوحات اُوکړل نو مالداری راغله.
خوسره د دے لوئی عابد وو. یوه تهیلئی ورسره وه چه د کهجورو د هډوکونه
به هر وخت ډکه وه په هغے به ئے تسبیح یعنی وظیفه کوله. کله چه به هغه توله
تهیلئی خالی شوه نو وینځے به بیا ډکه کړه، ورته به ئے کیخوده. دا ئے معمول
وو چه ځپله او ښځه او خادم درے تنو به د شپے درے حصے کولے او غبر واریه

یو کس د دریونه په عبادت کښې مشغول اُوسیدهٔ۔ (تذکرة الحفاظ)

ما دخپل پلار صاحب رحمۃ اللہ علیہ نه اَوریدلی دی چه حماد نیکهٔ صاحب رحمۃ اللہ علیہ هم تقریبًا دا معمول وو چه د شپې تر یوې بجې پلار صاحب به مطالعه کښې مشغول اُوسیدهٔ۔ بیا به یوه بجه به نیکهٔ صاحب د تهجد د پاره راپاسیدهٔ او پلار صاحب به بیا اُوده کړهٔ او په خپله به تهجد وکښې مشغول شو۔ او د سحر نه تقریبًا دوه پاوه مخکښې حما ترهٔ صاحب رحمۃ اللہ علیہ به بیا د تهجد د پاره راپاسو او په خپله به بیا د سُنتو په تابعداری کښې آرام اُوفرمایهٔ۔ اَللّٰهُمَّ اَرْزُقْنِی اِتِّبَاعَهُمْ۔

## ④ د حضرت اَبُوبَکر صِدِّیق رضی اللہ عنہ د بیتُ المَال نه وظیفه

حضرت اَبُوبکر صِدِّیق رضی اللہ عنہ به دکپړې تجارت کولو او په دے به یې گذران وو۔ کله چه خلیفه جوړ کړې شو نو د معمول مطابق یې سحر څو څادرُونه په لاس واخستل او بازار ته د خرڅولو د پاره یې تشریف یوړهٔ۔ په لاره کښې حضرت عُمر رضی اللہ عنہ مخې له وَرغے، تپوس یې اُوکړهٔ کوم خوا ځې؟ وے فرمایل بازار ته ځم۔ حضرت عُمر عرض اُوکړهٔ، که چرے ته تجارت کښې مشغول شے نو د خلافت د کار به څهٔ کیږی؟ وے فرمایل چه په بال بچ به د کومه خوړوم۔ عرض یې اُوکړهٔ چه اَبُوعُبَیدَه رضی اللہ عنہ چه هغهٔ ته نبی صلی اللہ علیہ وسلم د امین یعنی امانتگر لقب ورکړے دے هغهٔ ته به لاړ شو هغه به تاسو د پاره د بیتُ المال نه څهٔ مقرر کړی۔ دواړهٔ حضرات هغهٔ ته ورغلل۔ هغهٔ ورله هغومره مقرر کړهٔ څومره چه یو مهاجری ته اُوسطًا ورکولے شوه نهٔ کمه نهٔ زیاته۔ یو واره بی بی صاحبې ورته درخواست اُوکړهٔ چه څهٔ خوږ شیز خوراك ته مې زړهٔ کیږی۔ حضرت اَبُوبکر صِدِّیق رضی اللہ عنہ اُوفرمایل چه ما سره خو رقم نشته چه واخلم۔ بی بی عرض اُوکړهٔ چه څهٔ به د هرې ورځې د خوراك نه لږ لږ بچ کومه۔ څو ورځې کښې به دغومره مقدار جوړ شی۔ دوی ورته اجازت ورکړهٔ۔ بی بی صاحبې په څو ورځو کښې لږ غوندے پیسے جمع کړے۔ حضرت اَبُوبکر صِدِّیق رضی اللہ عنہ اُوفرمایل چه د تجربې نه دا معلومه شوه چه دومره مقدار مونږ ته د بیتُ المال نه زیات راکولے شی۔

نو چه کوم پیسے بی بی صاحبے جَمع کړے وے هغه یے هُم په بَیتُ المَال کښ جَمع کړے او د مخکښ رپاره هغومره مقدار خومره چه دے روزانه جَمع کړے وے دخپلے تنخواه نه کمے کړے.

**فائده:-** دومره لوئ خلیفه اوبادشاه چه دړومبے نه یے خپل تجارت کولو او هغه دضرورپاتو دپاره کافی هُم وو څنګه چه د هغے اعلان نه معلومیږی کوم چه بُخاری شریف کښ دحضرتِ عائشے نه روایت دے چه کله ابُوبکر رضی الله عنه خلیفه جوړ کړے شو نو وے فرمایل چه څما قوم ته دا خبره معلومه ده چه څما پیشه دتجارت څما دبال بچ دپاره کافی وه. خو اُوس دخلافت په وجه دمُسلمانانو په کاروبار کښ مشغولتیا ده، په دے وجه دبیتُ المال نه به څما دبال بچ دپاره خوراك مُقرر کیږی. سره ددے چه دحضرت ابُوبکر صِدیق رضی الله عنه وفات کیدهٔ نو حضرت عائشے رضی الله عنها ته یے وصیت اُوکړهٔ چه څما ضرورتو کښ کوم څیزونه دبیتُ المال دی هغه دِ څما نه پس راتلونکی خلیفه ته حواله کړے شی. حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه دوی سره څهٔ اشرفئ رُوپئ نه وے یوه دپیو اُوښه، یوه پیاله، یو خادم وو. بعضو روایاتو کښ یوه برستن، یوه لوټا ئی هُم راغلی دی. دا څیزونه کله چه حضرت عُمر رضی الله عنه ته په نیابت کښ اُورسیدل نو وے فرمایل چه الله تعالیٰ دِ په ابُوبکر رضی الله عنه رحم اُوکړی چه دهٔ خپل رُستو خلق په مُشقت کښ واچول. (فتح)

## ⑤ دحضرتِ عُمرِ فارُوق رضی الله عنه دبَیتُ المَال نه وظیفه

حضرت عُمَر رضی الله عنه هم تجارت کولو. کله چه خلیفه جوړ کړے شو. نو دَ بیتُ المال نه یے وظیفه مُقرر شوه. مدینه مُنوّره کښ یے خلق جَمع کړل ارشاد یے اُوفرمایئ چه ما به تجارت کولو، اُوس تاسو په دے کښ مشغول کړم. په دے وجه اُوس به م دګذارے څهٔ ذریعه وی. خلقو مختلف مقدارونه تجویز کړل. حضرت علی کرم الله وجهه چُپ ناست وو. حضرت عُمر رضی الله عنه ترے پوښتنه اُوکړه، ستا څهٔ رائے ده؟ وے فرمایل چه میانه حال سره چه ستا او ستا دَ

کور دخلقو دپاره کافی شی. حضرت عُمر رضی اللہ عنہ دا رائے خوښه او قبوله کړه.
درمیانه حال مقدار تجویز شو. دے نه پس یو ځلے یو مجلس کښې چه پکښې
حضرت علی رضی اللہ عنہ هم وو او حضرت عُثمان، حضرت زُبیر، حضرت طلحه رضی اللہ عنہم
شریک وُو دا خبره راغله چه د عُمر رضی اللہ عنہ وظیفه زیاتول پکار دی چه په گذاره
کښې یے تنگسیا ده خو هغه ته د عرض کولو د چا همت اُونه شو. په دے وجه د
هغوی لور حضرت حَفصه رضی اللہ عنہا چه د نبی صلی اللہ علیہ وسلم بی بی صاحبه کیدو په وجه
اُمُّ الْمُؤْمِنِیْن یعنی د مؤمنانو مور هم وه، د هغې په خدمت کښې دے حضرات تو
تشریف یوړه او د هغې په ذریعه یے د حضرت عُمر رضی اللہ عنہ نه د اِجازت او د رائے
معلومولو کوشش اُوکړه او ورسره یے دا هم اُووے چه څوک زمونږ نومونه ورته
معلوم نشی. حضرت حفصے رضی اللہ عنہا کله چه حضرت عُمر رضی اللہ عنہ ته دا خبره اُوکړه
نو په مخ یے د غُصے اثرات ښکاره شول. حضرت عُمر رضی اللہ عنہ ترے د نومونو
پوښتنه اُوکړه. حضرت حفصے رضی اللہ عنہا عرض اُوکړه چه رُومبے ستاسو رائے معلومه
شی. حضرت عُمر رضی اللہ عنہ اُوفرمایل که ما ته د هغوی نومونه معلوم شوے وے
نو د هغوی مخونه به مے بدل کړی وُو یعنی دا سے سزا کانے به مے ورکړے وے چه
په مخ به یے نښے راغلے وے. ته اُوښایه چه د نبی صلی اللہ علیہ وسلم ښه نه ښه جامه ستا په
کور کښې څه وه؟ هغې عرض اُوکړه چه دوه کپړے د گیرُو رنگ په شان زیړ رنگ چه
نبی صلی اللہ علیہ وسلم به د جُمعے په ورځ یا څه وَفد راتلو په وجه اغوستلے. بیا یے
اُوفرمایل چه کوم خوراک یے تا کره ښه نه ښه خوړلے دے؟ عرض یے اُوکړه
چه څمونږ خوراک د اوربشو ډوډئ وه. مونږ گرمه گرمه ډوډئ با ندے د
غوړو د ډبلی لاندے پاتے شوے شلوم راوا ړووُ، او هغه مونږ یو وارے
غوړه کړه نو نبی صلی اللہ علیہ وسلم په خپله هم ښه په مزے اُوخوړله او په نورو یے هم
اُوخوړله. بیا یے اُوفرمایل چه تا کره به یے ښه بستره کومه غوړولے. عرض
یے اُوکړه چه یو غټه شان کپړه وه. په گرمئ کښې به یے څلور برخه غوړوُله
او په یخنئ کښې به یے نیمه لاندے خوره کړه او نیمه به یے پورته واغوستله
بیا یے فرمایل، اے حَفصے! هغې خلقو ته دا خبره اُورسوه چه نبی صلی اللہ علیہ وسلم خپل

طرزِ عمل سره یوه اندازه مقرره کړه او په اُمید د (آخرت) باندے بسولے اُوکړهٔ - خکه به هم د نبی علیه الصلوٰة والسلام تابعداری کوُمه - خما مثال او ستاسو د دوؤ ملګرو د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم او د حضرت ابُوبکر صِدّیق رضی الله عنه مثال د هغه دریو کسانو په شان دے چه په یوه لاره روان شو - رُومبی کس یوه توښه واخسته لاړو او مقصد ته اُورسید هٔ - دویم د رُومبی تابعداری اُوکړه او په هغه طریقه باندے لاړو، هغه هم رومبی ځخه اُورسیدهٔ - بیا دریم کس تلل شروع کړل - که چرے هغه د دواړو په طریقه لاړو نو هغوی سره به یوځائے شی او که چرے د هغوی د طریقے نه خلاف لاړو نو هیڅ کله به هم هغوی سره یوځائے نشی - (اَشهر)

**فائدہ:-** دا د هغه سړی حال دے چه د هغهٔ نه به د دُنیا بادشاهان ویریدل او رپیدل - څنګه زاهدانه ژوند سره یے عمر تیر کړهٔ - یو وارے یے خطبه لوُستله او په لنګ کښ یے دولس پیوندُونه وُو چه په هغے کښ یو د څرمنے وو - یو وارے د جُمعے مانځه د پاره راتلو کښ تاخیر اُوشو - نو چه راغے ، مَعذرت یے اُوکړهٔ چه خما د خپلو جامو اینځلو کښ وخت اُولګیدهٔ او د دے جامو نه علاوه م نورے جامے نهٔ وے - (اَشهر) یو وارے حضرت عُمر رضی الله عنه ډوډۍ خوړله - غلام راغے عرض یے اُوکړهٔ چه عُتبه بن اَبِی فَرقَدُ راغلے دے - دوی ورته د ننه د راتلو اجازت ورکړهٔ او ډوډۍ ته یے را اُوبللو - هغه شریک شو نو داسے زیګه ډوډۍ وه چه تیره یے نهٔ شوه - هغهٔ عرض اُوکړهٔ چه د چاڼړ شوی اُوړو ډوډۍ خو هم کیدے شی - دوی ورته اُوفرمایل چه ایا ټول مُسلمانان میده خوړے شی - عرض یے اُوکړهٔ چه ټول خو نهٔ شی خوړے - وے فرمایل چه افسوس ! ته دا غواړے چه څهٔ خپل ټول لذتونه په دُنیا کښ ختم کړم (اَسد الغابه)

درے قِسمه په سوَونو نه، په زرګونو نه بلکه په لکهونو واقعات د دے حضراتو کرامو دی - د دوی تابعداری نهٔ اوس کیدے شی نهٔ هر چا ته کوُل پکار دی چه قوّتونه کمزوری دی چه د هغے برداشت هم په دے زمانه کښ ګران دے - په دے وجه دے زمانه کښ د تصَوّف بزرګان د داسے مجاهدو اجازت نهٔ ورکوی چه په هغے سره ضُعف پیدا شی چه قوّتونه د رومبی نه ضعیف او کمزوری دی

راغ حضرات ته الله جل شانهٗ توفیق ورکړی وُو. خو دا ضروری ده چه د تابعداری خواهش او اراده ضرور ساتل پکار دی چه د دے په وجه آرام طلبئ کښې څه کمی اُوشی. او نظر خو څۀ خکته شی او د دے زمانے مناسب میانه رَوی پیدا شی. چه مونږ خلق هر وخت د دُنیا په لذتونو کښې مخ په وړاندے غواو هر څوك د ځان نه زیات مال او دولت والا ته گوری او په دے افسوس کښې مری چه فلانے کس شمانه زیات مالدار دے.

## ⑥ د حضرت بلال رضی الله عنه د نبی صلی الله علیه وسلم د پاره د یو مُشرك نه قرض اَخستل

حضرت بلال رضی الله عنه نه یو صاحب تپوس اُوکړو چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د خرڅ خوراك به څۀ انتظام وو. حضرت بلال رضی الله عنه اُوفرمایل چه نبی صلی الله علیه وسلم سره به څۀ جمع خو پاتے کیده نه. دا خدمت ما ته سپارلے شوے وو چه د هغے انتظام داوو چه څوك مسلمان اُوږے به راغے، نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به ما ته ارشاد اُوفرمایۀ ما به د چرته نه قرض واخستۀ په هغۀ به مې خوراك اُوکړو. څوك بربنډ به راغے نو ما ته به یے ارشاد اُوفرمایۀ، ما به د چا نه قرض واخستۀ. هغۀ ته به مې پړے جامے واغوستولے. دا انتظام به داسے چلیدو. یو وارے یو مُشرك را ته ملاؤ شو. ما ته یے اُووے چه زۀ مالدار دولت مند یم. ته د چا نه قرض مۀ اَخله. کله چه درته ضرورت پیښیږی ما نه قرض اخله. ما اُووے د دے نه به بهتره څۀ وی. د هغۀ نه مې قرض اخستل شروع کړۀ. کله چه به ارشادِ عالی اُوشو، د هغۀ نه به مې قرض راؤړلو او حکم به مې پوره کړلو. یو وارے مې اودس اُوکړۀ، اذان ویلو د پاره اُودریدمه چه هغه مُشرك یو ډلے سره راغے او وے ویل، اے حبشی اخۀ هغۀ ته مُتوجه شوم. نو سمدستی یے کنځل شروع کړل او بد رَدیے څۀ چه په خُلے ورتلل وے ویل. بیا یے اُووے چه میاشته ختمیدو کښې څو ورځے باقی دی. ما اُووے ختمیدو ته نزدے ده. وے ویل چه څلور ورځے پاتے دی. که میاشت ختمیدو پورے دِ خما ټوله قرضه ادا نۀ کړه نو تا به په خپله قرضه کښې غلام کړم او هغسے به چیلئ څروے څنګه چه به دِ پړومبے څرولے

دا یې اُووې لاړو. په ما چه ټوله ورځ څهٔ تیریدل پکار وُو هغه تیر شو.
ټوله ورځ غم او تکلیف کښ وم. د ماسخوتن د مانځه نه پس د نبی ﷺ
خدمت کښ یو ازې حاضر شوم او ټوله قصه مې ورته واورَوله. او عرض مې
اُوکړهٔ چه اے د الله رسُوله! نه تا سو سره دا وخت د اَدا کولو فوری څه انتظام
شته او نهٔ څهٔ سمدستی څه انتظام کولے شم. هغه به مې ذلیله کوی او
شرموی نو کهٔ اجازت وی. د قرضے ادا کولو انتظام پورے به څهٔ چرته پټ
شم. کله چه تا سو سره چرته نه څهٔ راشی، څهٔ به حاضر شم. دا مې عرض اُوکړهٔ
کور ته راغلم. توره، ډال او پېزار مې واخستے. دا مې ټول د سفر سامان وو. او د
سحر کیدو انتظار مې کولو چه د سحر نزدے به چرته لاړ شم. سحر نزدے وو چه
یو صاحب په منډه راغے چه د نبی ﷺ خدمت کښ زر ورشه. څهٔ خدمت
کښ حاضر شوم نو څلور اُوښې مې اُولیدے چه په هغې باندے سامان بار کړے
شوے وو، ناستے دی. نبی ﷺ اُوفرمایل، د خوشحالئی خبره درته واورَوم چه
الله تعالیٰ ستا د قرضے ادا کولو انتظام اُوکړهٔ. دا اُوښې او ددے ټول سامان
تا ته حواله دے. د فدک رئیس دا په تحفه کښ ما ته رالیږلی دی. ما د
الله تعالیٰ شکر ادا کړهٔ او په خوشحالئ خوشحالئ مې هغه واخستے لاړم او ټوله
قرضه مې ادا کړه. واپس راغلم. نبی ﷺ په جُمات کښ انتظار کولو څه واپس
راغلم او عرض مې اُوکړهٔ، اے د الله رسُوله. د الله تعالیٰ شکر دے چه الله تعالیٰ
د ټولے قرضے نه ستاسو اُوګے سپکے کړے او اُوس هیڅ څیز قرضه کښ باقی
پاتے نهٔ شو. نبی ﷺ پوښتنه اُوکړه، د سامان نه هم څهٔ باقی شته؟ ما عرض
اُوکړهٔ، اُوجی، څهٔ باقی دے. نبی ﷺ اُوفرمایل چه هغه هم تقسیم کړه.
چه ما ته راحت حاصل شی. څهٔ به کور ته هغې وخته پورے نهٔ ځم، ترڅو چه
دا تقسیم شوے نهٔ وی. ټوله ورځ تیره شوه، د ماسخوتن مونځ فارغیدو نه
پس نبی ﷺ پوښتنه اُوکړه چه هغه پاتے شوے مال تقسیم شو کهٔ نه؟ ما
عرض اُوکړهٔ چه څهٔ موجود دے. ضرورتمند راغلی نهٔ دی نو نبی ﷺ په جُمات
کښ ارام اُوفرمایه. دویمه ورځ ماسخوتن نه پس بیا نبی ﷺ اُوفرمایل چه

وایه چې څه شته؟ ما عرض اُوکړه چې الله جل شانهٔ تاسو ته راحت درکړه چې هغه ټول خلاص شو. نبي صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله حمد وثنا اُوفرمایله. نبي صلی الله علیه وسلم ته دا ویره اُوشوه چې الله مکره مرګ راشي او دمال څه حصه ځما په ملکیت کښ پاتې وي. دې نه پس ئې کور ته تشریف یوړو او بیا نو سره ئې ملاقات اُوکړو (رزین)

**فائده:-** دالله تعالی دولیانو داهم خواهش وي چې د دوی په ملکیت کښ مال اوسامان هیڅ پاتې نهٔ وي. بیا دَ نبي اکرم صلی الله علیه وسلم به څهٔ تپوس کوې چه د ټولو نبیانو سردار او د ټولو ولیانو دَ سر تاج دے دوی به دا خواهش ولې نهٔ وو. چه څهٔ دُنیا نه بیخي فارغه لاړ شم. ما په مُعتبر ذریعو سره آوریدلي دي، چه حضرت مولانا شاه عبدُ الرّحیم صاحب رائپوري (الله تعالی دِ په قبر نُور کړي) معمول دا وُو چه کله به دَ ندرانو رقم څهٔ جمع شو نو به پابندۍ به ئې را اُوغوښتلو، ټول به ئې تقسیم کړلو او د وفات نه مخکښ خو د خپلو اَغوستو جامې وغیره ئې هم خپل خاص خادم حضرت مولانا شاه عبدُ القادر صاحب (رحمة الله علیه) ته ورکړې وې او ورته ئې فرمایلي وُو چه بس اُوس به ئې تا نه مُستعار یعني وقتي فائده اخستلو دپاره اَخلم اَغوندم به. او خپل پلار (رحمة الله علیه) م دیر ځلې اُولیده چه د ما ښام نه پس روپئ به ورځخه پاتې وې هغه به ئې قرض خواله ورکړې ځکه چه څو زره روپئ قرض دار ې وو او دا به ئې فرمایل چه دا دَ جهګړې شیز څهٔ د ښې ځان څخه نهٔ ساتم. د دې قسمه دیر حالات د بزرګانو شته دے خو دا ضروري نهٔ ده چه د هر یو بزرګ دِ یو قسم رَنګ وي، د بزرګانو رنګونه مختلف وي او د چمن په ګلونو کښ د هر یو ګل شکل وسیرت جُدا جُدا وي۔

## ⑦ دحضرت ابُوهُریره رضی الله عنه په لوږه کښ دمسئلې پوښتنه کول

حضرت ابُوهریره رضی الله عنه فرمائي چه تاسو خلقو هغه وخت ځمونږ حالت لیدلې وې چه مونږ کښ به بعضو څو څو ورځې دومره خوراک نهٔ مونده چه په هغې ئې ملا نیغه کړې وې. ما به د لوږې له وجې ځیګر زمکې سره پیوست

له دوی ۲۶ ربیع الثاني ۱۳۴۶ هـ کښ وفات شو دی ۳ له دو ۱۳ ربیع الاول ۱۳۳۲ هـ په الهٔ کښ وفات شو۔

کړو اوکله به کیږه په زمکه اچولے پروت وُم اوکله به مې په ګیډه پسور ے کانړی تړل. یو واری څهٔ په هغې لاره کښې کیناستم په کومه لاره چه د دغو حضراتو لاره وه. اول حضرت اَبُوبَکرصِدِّیق رضي الله عنه تیرشو. ما د هغهٔ نه د څهٔ خبرې پوښتنه کول شروع کړهٔ. خیال مې وو چه دا خبره به کوم کور ته به مې بوزی او بیا به د عادت موافق څهٔ چه موجود وی په هغې به مې میلمستیا اوکړی. خو هغوی داسے اونهٔ کړل. شاید خیال یے اونهٔ شو، یا د کور حال ورته معلوم وو چه هلته هم څهٔ نشته. دے نه پس حضرت عُمَر رضي الله عنه تشریف راوړهٔ هغهٔ سره هم دا حالت پیښ شو. بیا نبی اکرم صلى الله عليه وسلم تشریف راوړهٔ. څهٔ یے اولیدم نو مُسکے شو. زما حالت او په غرض پوهه شو. ارشاد یے اوفرمایهٔ، اَبُوهُرَیرَه! ما سره راځه. څهٔ ورسره شوم نبی صلى الله عليه وسلم کور ته تشریف یوړهٔ. ما د ننه د تلو اجازت واخستهٔ حاضر شوم. په کور کښې یوه پیاله د پیو پرته وه چه خدمت کښې پیش کړے شوه. پوښتنه یے اوکړهٔ چه د کومه راغلے ده. عرض اوشو چه د فلانی ځائی نه تاسو د پاره هدیه کښې راغلے ده. نبی صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمایهٔ، اَبُوهُرَیرَه لاړ شه اَهْلِ صُفَّه راوُغواړه. اَهْلِ صُفَّه د اسلام میلمانهٔ شمارلے شو. دا هغه خلق وُو چه د دوی نهٔ کور وو نهٔ دَر، نهٔ ځائی ځائیږے، نهٔ د خوراک څهٔ مُستقل انتظام وو. د دے حضراتو تعداد به کم او زیات کیدهٔ خو د دے قصے په وخت اویا وو. د نبی صلى الله عليه وسلم معمول دا هم وو چه د دوی نه به یے دوه دوه، څلور څلور د چا مالدار صحابی میلمانهٔ کول. او خپل معمول یے دا وو چه د چرته نه به صدقه راغله نو دوی ته به یے ټوله اولیږله او په خپله به یے په هغې کښې شرکت نهٔ کولو او کهٔ د چرته نه به څهٔ هدیه راغله نو نبی صلى الله عليه وسلم به په هغې کښې په خپله هَم شرکت کولو. نبی صلى الله عليه وسلم در ابلنے حکم راکړهٔ په طبیعت مې ګرانه خو شوه چه د دے پیو مقدار څهٔ دے چه ټول را اوُغواړم. د ټولو به پرے بنیګړه څهٔ اوشی یو کس ته به هم په مشکله پوره شی. او بیا را بلنے نه پس به ما ته د څکولو حکم وی. نو په دے به مې وار اخیر کښې راځی چه پکښې به څهٔ پاتے شوی نهٔ وی. خو د نبی صلى الله عليه وسلم د حکم منلو نه بغیر علاج نهٔ وو. څهٔ لاړم ټول مې راوستل. نبی صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمایهٔ چه

واخله په دوی اوڅکوه. ما به يو يو کس ته پياله ورکوله. هغهٔ به بنهٔ په مړه
پيالا اوڅکله او پياله به يې ما ته واپس راکړه. دغسې په ټولوم اوڅکول او ټول
ماړهٔ شو. نو نبی ﷺ پياله په لاس مُبارک کښې واخسته، ما ته يې اوکتل او
مسکے شو. بيا يې اوفرمايل چه ټس اوس خوځهٔ اوته پاتے يو. ما عرض اوکړو چه
ښځکله. وې فرمايل واخله اوڅکه. ما اوڅکل. ارشاد يې اوفرمايهٔ نور اوڅکه.
ما نور اوڅکل. آخر ما عرض اوکړو، اے د الله رسُوله! اوس څه نور نشم څکلے.
دے نه پس نبی ﷺ د ټولو نه پاتے شوی په خپله اوڅکل.

## ⑧ د نبی اکرم ﷺ د اصحابو رضی اللہ عنہم نه د دوؤ کسانو باره کښې سوال

د نبی اکرم ﷺ خدمت کښې څهٔ خلق حاضر وُو. يو کس مخامخ تير شو.
نبی ﷺ پوښتنه اوکړه چه د دے کس باره کښې ستاسو څهٔ رائے ده؟ عرض
يې اوکړو، اے د الله رسُوله! شريفو خلقو کښې دے. والله د دے قابل دے کهٔ
چرته د نکاح پيغام ورکړی نو قبول به شی. د چا سفارش اوکړی نو او به منلے شی
نبی ﷺ وا اوريدو چُپ شو. د دے نه پس يو بل صاحب مخامخ تير شو. نبی ﷺ
د هغهٔ متعلق هم سوال اوکړو. خلقو اوويل. اے د الله رسُوله! يو مسلمان
غريب دے. کهٔ چرته کوږدن کوی نو څوک لور خورنهٔ ورکوی. کهٔ چرته سفارش
کوی نو نهٔ قبليږی. خبره کوی څوک ورته توجُه نهٔ ورکوی. نبی ﷺ ارشاد اوفرمايهٔ
چه دغه روموبی په شان نه کهٔ چرے ټوله دُنيا ډکه شی نو د هغه ټولو نه دا کس بهتر دے.

**فائده:** مطلب دا دے چه صرف دُنيوی شرافت د الله تعالیٰ په نزد
هيڅ عزت نهٔ لری. يو مسلمان غريب چه د هغهٔ په دُنيا کښې هيڅ هُم عزت نهٔ
وی، د هغهٔ خبره چرته نشی اوريدلے. د الله تعالیٰ په نزد د سوونو هغه شريفانو
نه بهتر دے چه د چا خبرے ته دُنيا کښې ډيره په عزت سره کتلے شی. او هر څوک
د هغهٔ خبرے اوريدلو او منلو ته تيار وی. خو د الله تعالیٰ په نزد د هغهٔ هيڅ
عزت نشته. د دُنيا وجود د الله والو په برکت سره دے. دا خو حديث کښې په
خپله موجود دی چه په کومه ورځ دُنيا کښې د الله تعالیٰ نُوم اخستونکی پاتے

نشي، قيامت به راشي او دُنيا وجود به ختم كړې شي. د الله تعالىٰ د پاک نام د ا برکت دے چه د دُنيا دا ټول نظام قائم دے.

## ⑨ نبي اكرم ﷺ سره محبت كوُنكي باندے د غريبئ راتلل

يو صحابي د نبي اكرم ﷺ خدمت كښې حاضر شو او عرض يې اُوكړو چه اے د الله رسُوله! ځما تا سو سره محبت دے. نبي ﷺ ورته اُوفرمايل. اُوكوره څۀ وايې؟ هغۀ بيا دا عرض اُوكړو چه ځما تا سو سره مُحبت دے. نبي ﷺ بيا دغه ارشاد اُوفرمايۀ. هركله چه درې وارې دا سوال جواب اُوشو نو نبي ﷺ اُوفرمايل، كۀ چرې تۀ په خپله خبره كښې رښتينے يې نو غريبي قبلولو د پاره تيار شه ځكه په ما سره محبت ساتونكو باندے غريبي دا سې په تيزئ سره راځي لكه څنگه چه اُوبۀ د پورته نه ښكته په تيزئ سره بهيږي.

فائده:- دغه وجه ده چه حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم اجمعين به هر وخت په غريبئ او لوږه كښې وُو. اكابر (يعني لوئ) مُحدّثين، اكابر صوفيان، اكابر فقهاء هُم مالدار كښې زيات نۀ دي پاتے شوي.

## ⑩ سَرِيَّةُ الْعَنْبَرْ كښې د غريبئ حالت

نبي اكرم ﷺ په مياشت د رجب (ب ز ر گ ے) سنه ۸ هجري كښې د سمندر په غاړه يو لښكر د درې سوو كسانو په په دوي باندے يې حضرت ابُوعُبيده رضي الله عنه امير جوړ كړے وو، اُوليږه. نبي اكرم ﷺ په يوه تهيلئ كښې د كهجورو توښه دوي ته وركړه. پنځلس ورځې درے حضرات تو هلته ايسار يدل وُو. او توښه ختمه شوه. حضرت قيس رضي الله عنه چه په دے قافله كښې وو، مدينه منوره كښې د قيمت ادا كولو په وعده قافلے والو ته اُوښان په بيعه اخستل حلالول يې شروع كړل او درے اُوښان به يې هره ورځ حلالول. خو د ريمه ورځ د قافلے اميريه دے خيال سره چه سورلئ به ختمے شي نو واپسي به گرانه شي، حلالول يې منع كړل. او ټولو خلقو ته څه خپلے خپلے كومے كهجورے څه موجودے وې جمع يې

کړے، په یو تهیلئ کښ یے واچوِلے، او یوه یوه کهجوره به یے روزانه تقسیموُله. هغه به دوی چوُپله او اوبهٔ به یے پرے اوڅښلے. تر شپے پورے به هم دغه خوراك وو. په ویلوکښ خو ورهٔ خبره ده خو د جنگ په موقع هرکله چه د قوت او طاقت هم ضرورت وی، په یوه کهجوره توله ورځ گذاره کول د ډیر اوچت همت خبره ده. کله چه حضرت جابر رضی الله عنه دا قصه خلقو ته د نبی علیه السلام نه پس واوَروُله نو یو شاگرد عرض اوکړهٔ چه حضرت یوے کهجورے به څهٔ کار ورکوُو. هغوی اوفرمایل د هغے قدر هله معلوم شو چه هغه یوه هُم پاتے نهٔ شوه. بیا سِوا د لوږے نه هیڅ نهٔ وُو. د ونو اوچے پاڼے به مورا سنهلے، په اوبوکښ به مو لوَندے کړے خوړلے. مجبوری هرڅهٔ کوی او دهرے تنگسیانه پس د الله جل شانه له خوا آسانی کیږی. الله جل شانه د دے تکلیفونو او مُشقتونو نه پس د سمندر نه یو کب د دے خلقو ته راأوویستو چه هغهٔ ته عَنبَر وائی. د و مره غټ وو چه اتلس وَرځو پورے د دے حضراتو د هغے نه خوراك کوُو او مدینے منورے ته رسیدو پورے د هغے غوښه په توښه دانو کښ ورسره وه. د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په مخکښ کله چه د سفر تفصیلی قِصه واوَروُلے شوه نو هغوی مُبارك ارشاد اوفرمایهٔ چه دا د الله تعالیٰ یو رِزق وو چه تاسو طرف ته یے راأولیږهٔ.

**فائده**:- مُشقتونه او تکلیفونه په دے دُنیا کښ ضروری دی او په الله والو خصوصًا راځی. په دے وجه د نبی علیه السلام ارشاد دے چه انبیا علیهم السلام د خلقو نه زیات په تکلیفونو کښ ساتلے شی، بیا چه په خلقو کښ زیات بهتر وی، بیا ورپسے چه پاتے شو کښ بهتر وی. د سړی آزمیښت د هغهٔ د دینی مرتبے مُناسب کیږی. او د هر تکلیف نه پس الله تعالیٰ په خپلے مهربانیٔ او فضل سره آسانی راولی. دا هم سوچ کوئ چه څمونږ په مشرانو څهٔ تیر شوی دی او دا ټول د دین په خاطر وُو. د دے دین په خوَروُلو کښ چه هغه نن مونږ په خپلو لاسونو ضائع کوُو، د دے حضراتو لوږے تندے تیرے کړے پاڼے یے اوخوړلے، خپلے وینے یے اوبهَوُلے او دین یے خورکړهٔ چه هغه

نن مونږ. باقي هم نهٔ شُوساتلے.

# شلورم باب

## دا صحابۂ کرامو رضي الله عنهم د تقوىٰ په بيان کښې

د حضرات اَصحابۂ کرامو رضي الله عنهم هر عادت، هر خوئ د دے قابل دے چه هغه اختيار کړے شي. او د هغې تابعداري اُوکړے شي. او ولے به نهٔ وي چه الله جلّ شانهٗ د خپل نيازبين او محبوب رسول صلى الله عليه وسلم د ملګرتيا د پاره دا جماعت خوښ کړهٔ او چاڼ کړے کړهٔ. د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد دے چه څهٔ د بنيا دم په بهترين قَرن او زمانه کښې را اُوليږلے شوم. (شِفاء) په دے وجه هر اعتبار سره دا زمانه د خير وه. او د زمانے بهترين خلق د نبي عليه السلام په صُحبت کښې اُوساتلے شو.

### (۱) د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د يو جنازے نه واپسي او د يوے زنانه بلنه

نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د يوے جنازے نه واپس راتلو، چه يوے زنانه د ډوډۍ ته د بلنے درخواست اُوکړهٔ. نبي عليه السلام د خادمانو سره تشريف يوړهٔ. ډوډۍ ورته مخکښې کيښودے شوه نو خلقو اُوليدل چه نبي اکرم صلى الله عليه وسلم په نمړۍ شخوند وهي خو تيريږي نه. نبي عليه السلام اُوفرمايل، دا سے معلوميږي چه د دے چيلئ غوښه د مالک د اجازت نه بغير اَخستلے شوے ده. هغې زنانه عرض اُوکړهٔ اے د الله رسوله! ما د کنډک نه د چيلئ په بيعه اخستلو د پاره سړے ليږلے وو هلته ملاؤ نهٔ شوه. ګاونډي م چيلئ اخستے وه، ما هغهٔ ته قيمت ور اُوليږهٔ هغه خونهٔ وو خو د هغهٔ ښځے چيلئ را اُوليږله. نبي عليه السلام اُوفرمايل چه په قيديانو يے اُوخوروئ. (ابوداؤد)

**فائده:-** د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د لوئي شان په مقابله کښې يو مُشتبه د شک څيز په مړۍ کښې اِغتنل څهٔ اَهمه خبره نهٔ ده چه د نبي عليه السلام اَدنىٰ غلامانو ته

هم د دے قسمه واقعات پېښیږی.

## ② دنبی اکرم ﷺ د صدقے د کهجورو د ویرے نه تبوله شپه شوګیره

یو واری نبی اکرم ﷺ ټوله شپه ویښ وو، او اړخونه یے بدلول. بیبیانو کښې ورته چا عرض اوکړو چه اے د الله رسوله! نن خوب نه درځی. ارشاد یے اوفرمایو چه یوه کهجوره پرته وه، ما راواخسته کړه او م خوړه چه ضائع نشی. اوس راسره فکر دے چه چرته هغه د صدقے نه وه.

**فائده:-** زیاته صحیح خو دا ده چه هغه کهجوره به د نبی علیه الصلوٰة خپله وه خو چونکه د صدقے مال به هم نبی علیه الصلوٰة ته راتلو. د دے شک په وجه ټوله شپه ورته خوب رانغی چه الله مکړه که هغه د صدقے وه نو په دے حالت کښې به د صدقے مال خوړلے شوے وی. دا خو د اقا حال دے چه صرف د شک په وجه ټوله شپه یے اړخونه بدلول او خوب نه ورتله. اوس د غلامانو حال او ګورئ چه د رشوت، سود، غلا، د اکه هر قسمه ناجائز مال خومره په زړه ورتیا سره خوری. او په فخر سره خپل ځان د محمد ﷺ په غلامانو کښې شماری.

## ③ د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د یو کاهن (فالګر) د خوراک نه قے کول

د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه یو غلام وو چه د غلے په طور د خپلے ګټے نه به یے حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته ورکوله. یو ځل هغه څه خوراک راوړو او حضرت هغه نه یوه نمړئ اوخوړله. غلام عرض اوکړو چه تاسو روزانه ما نه پوښتنه کوله چه په کومه ذریعه دے ګټلے ده، نن مو تپوس اونه کړو. هغوی اوفرمایل چه د سختے لوږے په وجه م تپوس اونه کړو. اوس اووایه. عرض یے اوکړو چه د جاهلیت په زمانه کښې په یو قوم تیریدم. په هغوی م منتر ویلے وو. هغوی ما سره وعده کړے وه. نن څه هغه خوا تیریدم هغوی کره واده وو. نو ما ته یے

---

ځ غلام باندے څه مقدار مقرر کړے شی چه د ومره هره ورځ یا هره میاشت ما ته راکوه. باقی چه څه او ګټے هغه ستا ..... ے ته غله والی دا جائز ده. د ډیرے د اصحابو کرامو رضی الله عنهم په زمانه کښې به هم په غلامانو مقرر تیا ..... لے شوه. خذ الباسا ..... من الشیخ

د اخوراک راکړهٔ ـ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه اُوفرمایل چه تا خهٔ هلاک کړم. دے نه پس یے په حلق کښ لاس ورکړهٔ او د قے کولو کوشش یے اُوکړهٔ خو یَوه نمرئ چه هغه هم د سختے لوږے په حالت کښ خوړلے شوے وه را اُونه وتله چا عرض اُوکړهٔ چه اُوبو سره په قے را وتلے شی. یوه لویه پیاله د اُوبو یے راؤغوښتله او اُوبهٔ به یے څښلے او قے به یے کولو، تردے چه هغه نمرئ یے را اُوویستله. چا عرض اُوکړهٔ چه الله تعالیٰ دِ په تا سو رحم اُوکړی. دا ټول تکلیف دِ د دے یوے نمرئ په وجه برداشت کړهٔ. وے فرمایل که چرے ځما د ساه سره دا نمرئ را وتلے نو هُم به ما دا را ایستله. ما د نبی صلی الله علیه وسلم نه اورید لی دی چه کوم بدن په حرام مال اُوپالے شی، اور د هغهٔ د پاره بهتر دے. ما ته دا ویره اُوشوه چه ځما د بدن څهٔ حصه په دے نمرئ سره پالنه بیانهٔ مومی. (منتخب کنز العمال)

**فائده**:- حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته دا قسمه واقعے څو وارے پیښے شوے وے چه په طبیعت کښ یے احتیاط زیات وو چه لږ غوندے شک به یے پیدا شو نو قے به یے کولو. بخاری شریف کښ یوه بله قصه د دے قسمه ده چه یو غلام د جاهلیت په زمانه کښ څهٔ کهانت یعنی د غیبو خبرے د نجومیانو په طور چا ته خودلے وه. هغه اتفاقاً صحیح شوه هغے خلقو دے غلام ته څهٔ ورکړل چه هغهٔ په خپل مقرر رقم کښ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته ورکړل. هغوی اُوخوړل او بیا یے چه څهٔ په کیفیت کښ وُو ټول یے قے کړل. په دے واقعاتو کښ د غلامانو مال ضروری نهٔ دے چه تا روا دِ وی. د وارهٔ کمانه پکښ شته خو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د ډیر احتیاط په وجه د شک مال هم خوښ نهٔ کړو.

## (۲) د حضرت عُمر رضی الله عنه د صدقے د پیو نه قے

حضرت عُمر رضی الله عنه یو وارے پئ اُوڅکل چه د هغے خوند ورته څهٔ عجیبه غوندے معلوم شو. کوم صاحب چه راوړی وُو د هغهٔ نه یے پوښتنه اُوکړه چه دا پئ څنګه دی؟ چرته نه راغلی دی؟ هغهٔ عرض اُوکړهٔ چه فلانی ځنګل کښ د صدقے اُوښان څریدل. څهٔ هلته لاړم نو هغے خلقو پئ اُولوشل د هغے نه

بے مانه هم راکړل. حضرت عُمر رضی الله عنه په خُلهٔ کښې لاس ورواچولو او ټول بے قے کړل. (موطا امام مالک رحمه الله تعالیٰ)

**فائده:-** دے حضراتو سره به همیشه فکر وو چه د شک شُبهے مال مو هم د بدن حصه جوړه نشي. دا یے لاځهٔ کوے چه یعنی حرام مال وی لکه څنګه چه څمونږ په دے زمانه کښې عام شوے دے.

## ⑤ د حضرت اَبُوبَکر صِدّیق رضی الله عنه احتیاطاً باغ وقف کول

ابن سیرین رحمة الله علیه فرمائی چه کله د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د وفات وخت نزدے راغے نو هغوی حضرت عائشے رضی الله عنها ته اُوفرمایل چه څما زړه نه غوختل چه د بیت المال نه څهٔ واخلم خو عُمر رضی الله عنه اُونهٔ منل چه تکلیف به وی او ستاسو په تجارت کښې مشغولید وسره به د مسلمانانو نقصان اُوشی. په دے مجبورئ م واخستله. نو اُوس د څما فلانے باغ د دے په بدله کښې ورکړے شی. هر کله چه حضرت اَبُوبکر رضی الله عنه وفات شو نو حضرت عائشے رضی الله عنها حضرت عُمر رضی الله عنه ته سړے اُولیږهٔ او د پلار د وصیت موافق یے هغه باغ ورکړهٔ. حضرت عُمر رضی الله عنه اُوفرمایل چه الله جل شانهٔ دِ ستا په پلار رحم اُوکړی هغوی دا اُوغوختل چه چا ته د خُلے پرانستو موقع ورنهٔ کړی. (کتاب الاموال)

**فائده:-** د فکر کولو خبره ده چه اول خو هغه مقدار لاځهٔ وو کوم چه اَبُوبکر صِدّیق رضی الله عنه اخستلو. د دے نه پس اخستل یے هم د مشورے والو په اصرار سره وو. او د مسلمانانو د فائدے په وجه سره وو. په هغے کښې هم چه څومره مُمکن نه مُمکن احتیاط کیدلے شو، د هغے اندازه د دریم باب خلورم قصے نه معلومه شوه چه بی بی یے تنګسیا سره څهٔ رقم خوږ څیز د پاره جمع کړو، نو هغه یے هم بیت المال کښې داخل کړو. او هغومره مقدار یے مستقل کم کړهٔ. د دے ټولو نه پس دا یے آخری کار اُوکړهٔ چه څهٔ یے اخستے وُو د هغے یے هُم بدله داخله کړه.

## ⑥ د حضرت علی بن معبدؒ د کرائے د مکان په خاورې سره خط اُچول

علی بن معبد رحمة الله علیه یو محدث دے فرمائی چه ما یو د کرائے په مکان کښې اُوسیدم. یو وارے ما خط اُولیکل او د هغې د اُوچولو د پاره د خاورې ضرورت شو. لیچه دیوال وو، ما ته خیال راغے چه د دے نه لږه غوندے را اُوګروم او په خط واچوم. بیا خیال راغے چه مکان د کرائے دے رچه د اُوسیدو د پاره په کرائے اخستے شوے دے نه د خاورے اخستو د پاره) خو ورسره م دا خیال راغے چه د دومره لږه خاورے کښې څه باک دے، معمولی څیز دے. ما خاوره واخسته او د شپے م په خوب کښې اُولیدل چه یو صاحب ولاړ دے او دا فرمائی چه صبا تیات کښې به درته پته اُولګی چه "معمولی خاوره ده څه څیز دے".

**فائده**:- "صبا به معلومه شی" په ظاهر کښې مطلب یے دا دے چه د تقوی درجے دیرے زیاتے دی. کامله درجه یے یقیناً دا ده چه د دے نه هم ځان اُوساتلے شی. اګرچه په عام حالاتو کښې معمولی څیز شمار وو او د جائز کید و په حد کښې وو. (احیاء)

## ⑦ د حضرت علی کرم الله وجهه په یو قبر تیریدَنه ❦

کُمیل رضی الله عنه فرمائی چه مونږ یو وارے حضرت علی کرم الله وجهه سره روان وُمه. هغه یو ځنګل ته اُورسیدو. بیا یو مقبرے طرف ته یے مخ کړو، وے فرمایل اے مقبرے والو! اے وراسته شوی خلقو! اے دویرے او بیراځے والی خلقو! څه خبر دے؟ څه حال دے؟ بیا یے ارشاد اُوفرمایه، څمونږ خبر خو دا دے چه ستاسو نه پس ستاسو مالونه تقسیم شول، اولاد مو یتیمان شول، ښځو مو نور خاوندان اُوکړل. دا خو څمونږ خبر دے، څه خپل هم اُوائیئ. بیا نه پس ما طرف ته یے اُوکتل، وے فرمایل. کُمیله! که چرے دے خلقو ته د ویلو اجازت وے او دوی ویلے شوے نو دوی به په جواب کښې ویل چه بهترینه توښه تقوی ده. دا یے اُوویل په ژړا شو او وے فرمایل، اے کُمیله! قبر د عمل صندوق

دے او د مرګ په وخت به خبره معلومه شی۔ (منتخب کنز)

**فائدہ:**۔ یعنی بنیادم چه کوم ښهٔ یا بَد کار کوی هغه په دغې قبر کښ محفوظ ساتلے شی لکه چه په صندوق کښ (یو څیز محفوظ وی)۔

په کنزو حدیثونو کښ دا مضمون راغلے دے چه نیک عملونه به د ښهٔ سړی په شکل کښ وی چه د مړی زړهٔ خوشحالولو او محبت پیدا کولو د پاره به ورسره وی او دهغهٔ د پاره ګیرنه به کوی۔ او بَد عملونه به په بَد شکل کښ بَد بُو دار راځی چه نور به د مړی د تکلیف سبب ګرزی۔ په یو حدیث کښ راغلی دی چه سړی سره درے څیزونه قبرهٔ پورے ځی۔ د هغهٔ مال لکه څنګه چه په عربو کښ دستور وو۔ د هغهٔ خپلوان او عملونه۔ دوه څیزونه مال او خپلوان به تر دفن کولو نه پس واپس راځی، عمل به ورسره پاتے شی۔ نبی اکرم ﷺ یو وارے صحابه کرامو رضی اللہ عنہم ته ارشاد اُوفرمایهٔ چه تاسو ته معلومه ده چه ستاسو مثال او ستاسو د بال بچ او د عملونو مثال څهٔ دے؟ دا صحابو رضی اللہ عنہم په پوښتنه نبی علیہ السلام ارشاد اُوفرمایهٔ۔ د دے مثال داسے دے لکه چه د یو سړی درے رُونړه وی او هغه مرکیږی۔ دغه وخت یو رور را اُوبلی او تپوس ترے اُوکړی چه رُوره! تا ته خپل حال معلوم دے چه په ما څهٔ تیریږی، دا وخت به ته څما څهٔ مدد اُوکړے؟ هغه جواب ورکوی چه ستا د اُرودرمل، علاج او هر قسمه خدمت به اُوکړم، کله چه ته مړشے، غسل به درکړم، کفن به درته واغوندؤم او په اوږه به دِ اُوچت کړم یو به دِ سم۔ او دفن کولو نه پس به ستا ذکرِ خیر کوم۔ نبی علیہ السلام اُوفرمایل، دا رور بال بچ دے۔ بیا هغه دویم رورنه هم دغسے سوال کوی۔ هغه ورته وائی چه څما او ستا تعلق د ژوندهٔ پورے دے۔ کله چه ته مړشے نو څهٔ به بل ځائ ته لاړ شم۔ دا رور مال دے۔ بیا هغه دریم رور راؤ بلی، تپوس ترے اُوکړی۔ هغه ورته وائی چه څهٔ به په قبر کښ ستا ملګرے یم۔ دَ ویرے په ځائ کښ به ستا زړهٔ خوشحالوم، کله چه ستا حساب کتاب کیږی نو د نیکئ په چابړی کښ به کینم، هغه به درنوم، دا رور عمل دے۔ نبی علیہ السلام اُوفرمایل اُوس اُوښائی کوم رور فائده مند شو۔ صحابه کرامو رضی اللہ عنہم

عرض اُوکړه، اے د الله رسوله! بس دا رور فائده مند دے ګرومبنی
دواړه خو بے فائدے شو. (ایضاً)

## ⑧ د نبی ﷺ ارشاد چه چا خوراک څکاک حرام وی د هغه دُعا نه قبلیږی

د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه الله تعالیٰ په خپله پاک دے او پاک مال قبلوی. مُسلمانانو ته یے د هغه څیز حُکم ورکړهٔ د کوم یے چه خپلو رسُولانو ته حُکم ورکړے دے. څنګه چه قرآن شریف کښ ارشاد دے. یَاأَیُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ○ (سورة مؤمنون) "اے رسُولانو! پاک څیزونه خورئ او نیک عمل کوئ څه ستاسو د عملونو نه خبر داره یم." دویم ځائ ارشاد دے. یَاأَیُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ. (سورة بقره) "اے ایمان والو! څمونږ درکړے شوے پاک رزق خورئ. دے نه پس نبی علیه السلام دیو کس ذکر اُوکړهٔ چه اُوږده اُوږده سفرونه کوی (او دُعا قبلیږی.) او دے سره خواره واره ږغنو والا، د دوړے جامو والا (یعنی پریشان حاله) دواړه لاسونه یے اسمان ته اُوچت کړی لګیا دے، اے الله! اے الله! خوخوراک یے د حرام و دے څکاک یے حرام دی، جامے حرامه ده، همیشه یے حرام خوړلی دی نو د دهٔ دُعا چرته قبلیږی. (جمع الفوائد)

**فائده:** خلقو سره همیشه فکروی چه د مسلمانانو دُعا نه قبلیږی خو ځالانو اندازه د دے حدیث شریف نه کیدے شی. اګرچه الله جل شانه په خپل فضل سره کله د کافر دُعا هم قبلوی. نو فاسق لا څه دے؟ خو د متقی دُعا اصل څیز دے. ځکه د متقیانو نه د دُعا اُمید کولے شی. کوم خلق چه غواړی چه څمونږ دُعا کانی دِ قبولے شی، هغوی دپاره ډیره ضروری ده چه د حرام مال نه ځان ساتی او دا سے څوک دے چه دا غواړی چه څما دُعا دِ قبوله نه شی.

## ⑨ د حضرت عُمر رضی الله عنه خپلے بی بی ته د مشک تللو نه انکار

د حضرت عُمر رضی الله عنه په خدمت کښ یو ځلے د بحرین نه مُشک راغلهٔ.

ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه څوك به دا اُوتلي چه په مسلمانانو کښې یے تقسیم کړي.
بي بي حضرت عائشه رضی الله عنها عرض اُوکړهٔ چه څهٔ به یے اُوتلم. دوی
وارید ل چُپ شو. لږ ساعت پس یے بیا دا ارشاد اُوفرمایهٔ چه څوک دا تللے وے
چه زهٔ یے تقسیم کړم. بي بي یے بیا عرض اُوکړهٔ دوی چُپ شو. دریم وار یے
ارشاد اُوفرمایهٔ، څهٔ دا نهٔ خوښوم چه ته دا په خپل لاس د تللے په چاپړي
کښې کیدے او بیا هغه لاسونه په خپل بدن را کاږدے او د دومره مقدار
زیاتے ما ته حاصل شي.

**فائده:-** دا کامل احتیاط وو او خپل ځان د تهمت ځائی نه بچ کول
وُو. کني څوك یے چه تلي د هغه لاسونو پورے به خوشامحا لګي. نو د دے
په جائز کیدو کښې هیڅ شك نهٔ وو خو بیا هم حضرت عمر رضی الله عنه د خپلے
بي بي دپاره دا خوښه نهٔ کړه.

حضرت عُمر بن عبدُالعزیز رحمة الله علیه چه ورته عُمرِ ثاني هم وائي، د هغهٔ په
زمانه کښې یو ځلے مُشك تللے شو. نو هغوی خپله پوزه پټه کړه او ارشاد یے
اُوفرمایهٔ چه د مُشکو فائده خو خوشبوئي بُویول دي. (احیاء)

**فائده:-** دا د احتیاط د صحابو رضی الله عنهم او د تابعینو رحمهم الله او څمونږ د مشرانو او رهبرانو.

## (۱۰) د حضرت عُمر بن عبدُالعزیز رحمة الله علیه د حجّاج حاکم لره حاکم نهٔ جوړول

حضرت عُمر بن عبدُالعزیز رحمة الله علیه یو کس د څهٔ ځائي حاکم جوړ کړه. چا
ورته عرض اُوکړهٔ چه دا صاحب د حجّاج بن یُوسف په زمانه کښې د هغهٔ
له طرفه هم حاکم پاتے شوے وو. عُمر بن عبدُالعزیز رحمة الله علیه هغه لرے کړهٔ.
هغهٔ عرض اُوکړهٔ چه ما خو حجّاج بن یُوسف سره لږه زمانه کار کړے وو.
عُمر بن عبدالعزیز رحمة الله علیه اُوفرمایل چه بدئ دپاره دغه هم بس دے چه ته
هغهٔ سره یوه وُرځ یا دوه نه هُم کم پاتے شوے یے. (احیاء)

**فائده:-** مطلب دا دے چه د بُرے سره د پاتے کیدو اثر ضرور کیږي.
څوك چه مُتقیانو سره اُوسي په هغهٔ باندے زبردست غیر محسوس طریقے

سره د تقوىٰ اثر کيږي. او څوک چه بد عملو سره اوسي، په هغه باندے ز
بد عمل اثر کيږي. په دے وجه د بد مجلس نه منع کوُلے شي. بنيادم خوږيږي
چه د ځناورو سره د اوسيدو اثرات هم پريوزي. د نبي ﷺ ارشاد دے چه
فخر او لويئ د اوښانو او د اسونو خاوندانو کښ وي او عاجزي د چيلو
خاوندانو کښ وي. (بخاري)

د نبي ﷺ ارشاد دے چه نيک سړي سره د ناستو کسانو مثال د هغه
کس په شان دے چه څوک مُشکو والو سره ناست وي، که چرے مُشک ورته
ملاؤ نشي، بيا هم د هغه په خوشبوئي سره به يے دماغ خوشحاله شي او د بد ملګري
مثال د اور د بهټئ والا په شان دے که د اور لمبه پريونه څي نو لوګے خو يے
چرته تلے نه دے. (جمع الفوائد)

# پنځم باب

## د مونځ شوق او محبت او په ديکښ خشوع او خضوع

مونځ په ټولو عبادتونوکښ د ټولو نه زيات ضروري څيز دے. قيامت کښ
به د ايمان نه پس د ټولو نه ړومبے هم د مونځ سوال کيږي. د نبي ﷺ ارشاد دے
چه د کفر او د اسلام ترمينځه هم مونځ فرق کوُنکے دے. دے نه علاوه نور ډير ارشادات
په دے باره کښ راغلي دي چه ځنو يو بل رسالے (فضائلِ نماز) کښ بيان شوي دي.

### ① د الله تعالىٰ ارشاد د نفل کوُنکي په حق کښ

الله تعالىٰ ارشاد فرمائي څوک چه ځما ولي يعني دوست سره دُشمني کوي ځما
له طرفه هغهٔ ته اعلانِ جنګ دے او هيڅوک ځما نزديکت د هغه څيز په نسبت
زيات نشي حاصلولے کوم چه ما په هغهٔ فرض کړے دے. يعني د ټولو نه زيات
قُرب او نزديکت ما ته په فرائضو ادا کولو سره حاصليږي. او د نفلو په وجه بنده

ما ته ځان راتلونکے کوی ترڅو چه څه هغه خپل محبوب جوړ کړم. نو بیا څه د هغه غوږ شم چه په هغې سره هغه آوری او د هغه سترګه جوړه شم چه په هغې سره هغه وینی. او د هغه لاس جوړ شم چه په هغې سره هغه څه څیز نیسی او هغه پښه جوړه شم چه په هغې سره هغه ګرزی. که چرے هغه ما نه څه غواړی نو څه هغه ته ورکوم او که د څه څیز نه پناه غواړی نو پناه ورکوم. (جمع الفوائد)

**فائدہ:** سترګه غوږ جوړیدو مطلب دا دے چه د هغه لیدل، اوریدل، ګرزیدل ټول خما د مرضئ تابع شی او هیڅ خبره هم خما د مرضئ خلاف نه کوی. څومره خوش نصیبه دی هغه خلق چه ئے ته چه د فرضونو پس د ډیرو نفلونو توفیق ملاویږی او دا دولت ورته نصیب شی. الله جل شانه د په خپل فضل سره ما ته او خما دوستانو ته هم نصیب کړی.

## ② د نبی اکرم ﷺ ټوله شپه مونځ کول

یو کس د حضرت عائشه رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چه د نبی ﷺ څه عجیبه خبره که تاسو لیدلے وی هغه واورَوه. حضرت عائشه رضی الله عنها اوفرمایل چه د نبی ﷺ کومه خبره عجیبه نه وه، هره یوه خبره یے عجیبه وه. یوه ورځ د شپے یے تشریف راوړو او ما سره پریوتے. بیا یے اوفرمایل. پریږده چه څه د خپل رب عبادت اوکړم. دا یے اوفرمایل، په مانځه اودریدو او ژړا یے شروع کړه ترڅو چه اوښکے یے په سینه مبارکه اوبهیدے. بیا یے رکوع اوکړه په هغې کښ یے هم دغه شان ژړل. بیا یے سجده اوکړه په هغې کښ یے هم دغه شان ژړل. بیا د سجدے نه پاسیدو په هغې کښ هم دغه شان ژړل ترڅو چه حضرت بلال رضی الله عنه راغے او د سحر مانځه د پاره یے اواز ورکړو. ما عرض اوکړو اے د الله رسوله! تاسو دومره اوژړل حال دا دے چه تاسو د ګناه نه پاک یئ. مخکنی روستنی ټول ګناهونه (که چرے بالفرض وی هم نو) د مغفرت وعده الله تعالی کړے ده. نبی ﷺ ارشاد اوفرمایه، بیا څه شکر ګذار بنده د جوړ نه شم؟ د دے نه پس یے ارشاد اوفرمایه چه ما به دا ولے نه کول حال دا دے چه نن

په ما باندې دا آيتونه نازل شوي دي. اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ. دسورة آلِ عمران آخري رکوع. (اقامة الحجة) دا په ګنړ رواياتونو کښ راغلي دي چه نبي اکرم ﷺ به د شپې دومره اوږد مونځ کولو چه په ولاړه ولاړه به يې په پښو پړسوب راغلو. خلقو عرض اوکړه. اے د الله رسوله! تاسو دومره مشقت اوچتوئ حال دا دے چه تاسو بخښلے شوي يئ. نو ارشاد يې اوفرمايئ چه آيا ځه شکر ګذار بنده جوړ نه شم. (بخاري)

## ③ د نبي اکرم ﷺ په څلور رکعتونو کښ شپږ سيپارے لوستل

حضرت عوف رضي الله عنه فرمائي چه ځه يو ځلے د نبي اکرم ﷺ سره په سفر کښ وم. نبي ﷺ مسواک اوکړه، اودس يې اوفرمايئ او د مونځ نيت يې اوتړه. ځه ورسره هم په مانځه کښ شريک شوم. نبي ﷺ سورة بقره په يو رکعت کښ اولوسته او چه کوم د رحمت آيت به راغے، نبي ﷺ به هغه ځائ ځه ساعته پورې د رحمت دعا غوښتله. او چه دعذاب آيت به راغے هغه ځائ به يې ځه ساعته پورې دعذاب نه پناه غوښتله. د سورة په ختميدو يې رکوع اوکړه او دومره اوږده رکوع يې اوکړه څومره ساعت کښ چه سورة بقره ويلے شي. او رکوع کښ يې سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوْتِ وَالْمَلَكُوْتِ وَالْعَظَمَةِ ويله. بيا يې هغه هومره اوږده سجده اوکړه. بيا يې په دويم رکعت کښ د غه شان سورة آلِ عمران اووے. او د غه شانے په يو يو رکعت کښ به يې يو يو سورة لوسته. د غه شانے څلور رکعتونو کښ پاؤ باندے شپږ سيپارے کيږي. دا په څومره اوږد مونځ شوے وي چه په هغے کښ هر يو آيت د رحمت او آيت دعذاب باندے به يې ډير ساعته پورې دعا غوښتله او بيا هغومره اوږده رکوع او سجده وه.

حضرت حذيفه رضي الله عنه هم خپله يوه قصه د نبي ﷺ سره د مونځ کولو نقل کوي. فرمائي چه په څلور رکعتونو کښ څلور سورتونه د سورة بقرے نه چه واخلے تر سورة مائدے د ختميدو پورې اولوستل.

**فائده**:- د دے څلورو سورتونو پاؤ باندے شپږ سيپارے کيږي.

کومے چه نبی ﷺ په څلورو رکعتونکښ اُولوستلے او دنبی اکرم ﷺ عادت مبارکه په تجوید او ترتیل (په قلار قلار) سره دلوستلو وو لکه څنګه چه په ډیرو حدیثونو کښ دی. دے سره په هر یو ایت د رحمت او هر یو ایت دعذاب باندے اُودریدلو او دعا غوښتل او بیا هم دومره رکوع او سجده. دے نه اندازه کیږی چه دغے څلور رکعتونکښ به څومره قدرے وخت تیرشوے وی. کله به نبی اکرم ﷺ په یو رکعت کښ سورة بقره، الِ عمران، مائده درے سورتونه لوستل چه تقریباً پنځه سیپارے کیږی. داهله کیدے شی کله چه په مانځه کښ ارام او دسترګو یخوالے نصیب شی. دنبی اکرم ﷺ پاک ارشاد دے چه زما دسترګو یخوالے په مانځه کښ دے. اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِیْ اِتِّبَاعَهٗ.

## ③ دحضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت ابن زبیر او حضرت علی وغیرهم رضی الله عنهم دمونځونو حالات

مجاهد رحمة الله علیه دحضرت ابوبکر صدیق او حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما حال نقل کوی چه کله به دوی مانځه کښ اُودریدل نو داسے به معلومیدل چه یو لرګے خخ کړے شوے دے (تاریخ الخلفاء) یعنی هیڅ حرکت به یے نه کولو.

عالمانو لیکلی دی چه حضرت ابن زبیر رضی الله عنه دحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه مونځ زده کړو او هغوی دنبی ﷺ نه. یعنی څنګه چه به نبی ﷺ مونځ کولو هغے به ابوبکر صدیق رضی الله عنه کولو او هغے به عبدالله بن زبیر رضی الله عنه. ثابت رضی الله عنه وائی چه عبدالله بن زبیر رضی الله عنه مونځ به داسے وو چه ګویا لرګے دے چا خخ کړے. یو کس وائی چه ابن زبیر رضی الله عنه به کله سجده کوله نو دومره اُوږده او بے حرکته به وه چه مرغئی به راغلے په ملا به یے کیناستے. کله به یے دومره اُوږده رکوع اُوکړه چه ټوله شپه تر سحره پورے به هم رکوع کښ وو. کله به یے سجده دومره اُوږده وه چه ټوله شپه به تیره شوه. کله چه حضرت زبیر رضی الله عنه سره جنګ کیده نو یوه ګوله دجمات په دیوال اُولګیده چه په هغے د دیوال یوه ټکړه والوتله او حضرت ابن زبیر رضی الله عنه دمرئی او وږیرے تر مینځه تیره شوه خو نه په دے پریشانه شو، نه یے رکوع سجده مختصره کړه. یو وارے یے مونځ کولو، ځوئی یے

چه دهغهٔ نوم هاشم وو، خواکښ اُوده وو. دچهت نه یو مار راپریوت اودغې نه تاؤ شو. هغه چغې کړې. دکور خلق ټول په منډه راغلل. شور شو. هغه مار یې اُووژهٔ. ابنِ زُبیر رضی الله عنه هم هغې په تسلّئ سره مونځ کوٗلو چه سلام یې اُوګرځوو نو وې فرمایل چه څهٔ دشور غوندې آواز راتله څهٔ وو؟ بی بی ورته اُووې چه الله تعالیٰ دِ په تا رحم اُوکړي بچے خو به مړ شوې وو، تا ته اَو وپته اُونه لګیدهٔ وې فرمایل، وَرکه شے که ما مونځ کښې م بل خوا توجّه او خیال کوٗلے نو مونځ به چرته پاتے شوې وو. (بدایہ وغیرہ)

حضرت عُمر رضی الله عنه په اخیروخت کښې کله چه په خنجر اُووَهلے شو چه دَ هغې په وجه دهغوی وفات اُوشو، نو هروخت به ترې وینه بهیدَله او زیات به بیهوشه وو. خو په دې حالت کښې به هُم کله چه دمانځه دپاره بیدار کړے شو، په دغې حالت کښې به یې مونځ اداکوٗلو او ارشاد به یې فرمایهٔ چه په اسلام کښې دهغې کس هیڅ حصه نِشته څوك چه مونځ پریږدي.

حضرت عثمان رضی الله عنه به ټوله شپه وِیښ وو او په یو رکعت کښې به یې پوره قرآن شریف ختم کوٗلو. (منتخب کنز)

دحضرت علی رضی الله عنه عادت مُبارك داوو چه کله به دمانځه وخت راغې نو په بدن به یې رپیدل راغلهٔ او مخ به یې زیړ شو. چا ترې تپوس اُوکړهٔ چه داڅهٔ خبره ده؟ وې فرمایل چه دهغې اَمانت وخت دے کوم چه الله جلّ شانهٔ په اسمانونو او زمکه او په غرونو نازل کړهٔ نو هغوی ددې د اُوچتولو نه عاجزه شُو او ما هغه اُوچت کړهٔ. خلف بن ایّوب رحمة الله علیه نه چا تپوس اُوکړهٔ چه تا په مانځه کښې مچان نهٔ تنګوي؟ وې فرمایل چه دابد کاره خلق دحکومت کړوړې خوري او حرکت نهٔ کوي او په دې فخر کوي او خپل صبر او برداشت بنکاره کوي چه دومره کړوړې یې اُووَهلم، اَو اُونهٔ خوځیدم. څهٔ دخپل رَب مخکښې ولاړ یم او دیو مچ دوَجے دِحرکت اُوکړم. مسلم بن یسار رحمة الله علیه چه به کله دمانځه دپاره اُودریدهٔ نو دخپل کور خلقو ته به یې اُووَیل چه تاسو خبرې کوئ. ما ته ستاسو دخبرو پته نهٔ لګي. یو ځلے یې دَبصرې په جامع مسجد

کښې مونځ کوُلو چه دجُمات یوه حصه پرېوَته. خلقو درې په وَجه منډې کړې، هلته جَمع شوُ، شور او غوغا شوه خو هغهٔ ته اَړ ویته اُونهٔ لګیده. خاتِمِ اُمَم ﷺ ته چا دهغهٔ دمانځه دحالت تپوس اُوکړهٔ. نو وې وئیل چه کله دمانځه وخت راشي نو اَودس نه پس هغه ځائ ته لاړشم کوم ځائ چه مونځ کوُم. لږ ساعت کېنم چه دبدن په ټولو حصو کښې م سکون اَرام پیدا اشي، بیا مانځه دپاره اُودریږم، په داسے شان چه بَیتُ الله دخپل نظر وړاندے ګڼړم او پُل صراط دپښو لاندے، جنت ښی طرف ته او دوزخ کس طرف ته او دمرګ فرښتے دخپل ځان نه رُستو خیال کوُم. او دا ګڼړم چه دا مِ اٰخری مونځ دے. دې نه پس پوره خشوع خضوع سره مونځ کوُم. او بیا د اُمید او د وېرے ترمینځه اُوسم چه نهٔ ده معلومه قبول شوکهٔ نه. (احیاء)

## ⑤ دیو مُهاجر او اَنصارِی څوکیداری او انصاری ته په مانځه کښې غشې لګیدل

نبی اکرم ﷺ یو غزا نه تشریف راوُړهٔ. د شپے یے یو ځائ قیام اُوکړهٔ. ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه نن شپه به حفاظت او څوکیداری څوک اُوکړي. یو مُهاجر یو اَنصاری حضرت عمّار بن یاسِر او حضرت عبّاد بن بِشر رضی الله عنهما عرض اُوکړهٔ چه مونږ دواړه به اُوکړو. نبی ﷺ یو غر دکوم ته چه د دُشمن د راتلو لاره کیدلے شوه، اُوخودهٔ چه په دے باندے تاسو دواړه قیام اُوکړئ. دواړه حضرات تو هلته تشریف یوړهٔ. انصاری مُهاجر ته اُووے چه شپه به په دوه وُ حِصو تقسیم کړو. یوه حصه کښې به ته اُوده شے ځهٔ به ویښ یم. دویمه حصه کښې به ته وِیښ یے ځهٔ به اُودهٔ شم. ځکه کهٔ دواړه ټوله شپه وِیښ یو. نو کیدے شي چه څهٔ وخت دخوب غلبه راشي او دواړو سترګے ورشي. کهٔ چرے څهٔ خطره وِیښ ته معلومه شي نو خپل ملګرے وِپاسئ. دشپے رُومبئ نیمه حِصه دانصاری دِ ویښے مقرره شوه او مهاجر اُودهٔ شو. انصاری دمونځ نیت اُوتړهٔ. د دُشمن له خوا یو کس راغے او دلرے نه یے یو تن ولاړ ولیدهٔ.

حرکت اُونۀ شو نو دویم او بیا دغسې په دریم
نو به غشي يې اُووِيشت. خو چه حرکت اُونۀ شو نو دویم او بیا دغسې په دریم غشي يې اُووِيشت. او هر يو غشې به د هغۀ په بدن کښې لګيدۀ او په لاس به يې هغه د بدن نه راوِيستۀ او غورزَوُلو به يې. د دې نه پس يې په تسلّي سره رکوع اُوکړه، سجده يې اُوکړه، مونځ يې پوره کړۀ، خپل ملګرے يې راپاسَوو، ملګرے چه کله پاسيدو نو دَ انصاري د بدن نه د وينو څاڅکي روان وُو. خو چه دېوې په خاۍ دوه اُوليدل اُوتختيدۀ چه نۀ ده معلومه څو مره به وې. خوملګرے يې چه کله پاسيدو نو دې ليدلو چه دَ انصاري د بدن نه د وينو ويالې بهيدَلې. مهاجر اُوفرمايل، سُبحَانَ الله تا ځۀ په شروع کښې ولې نۀ وِينه بهيدَله. مهاجر اُوفرمايل چه ما يو سُورة (سُورة کهف) شروع کړے وو، زړۀ مې نۀ غوختل چه د دې د ختمولو نه مخکښې رکوع اُوکړم. اُوس هم ما سره دا ويره شوه چه هسې نۀ بار بار غشي لګيدو سره مړ شم او نبي عليه السلام چه کوم د حفاظت خدمت سپارلے وو هغه ره پاتے شي. که چرې ما ته دا ويره نۀ وے نو ځۀ به مړ شوے وَے خو د سُورة ختميدو نه به مې وړاندې رکوع نۀ وے کړے. (بيهقي - ابوداؤد)

**فائده:-** دا وو د دې حضراتو مونځ او د هغې شوق چه د غشو د پاسه غشي خوري او وينې وينې شي خو چه د مانځه په مزه کښې يې فرق رانشي. يو زمونږ مونځ دے چه ماشے مو اُوخوري نو د مانځه خيال لاړ شي او د مچي د تيرے خو تپوس مۀ کوه.

د لته يوه فِقهي مسئله اختلافي ده چه په وِينه وتلو سره څمونږ د امام يعني امام اعظم رحمة الله عليه په نزد اودس ماتيږي او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد نۀ ماتيږي. کيدے شي چه د دې صحابي طريقه هم دا وه. يا د غه وخته پورې دے مسئلې تحقيق نۀ وو شوے. ولې چه نبي اکرم صلی الله عليه وسلم په دغې مجلس کښې تشريف فرما نۀ وو يا د غې وخته پورې دا حکم اُو شوے نۀ وو.

## (۶) د حضرت ابو طلحه رضی الله عنه په مانځه کښې خيال راتلو سره باغ وقف کول

حضرت ابُو طلحه رضی الله عنه يو ځلې په خپل باغ کښې مونځ کولو. يو مارغۀ وَالوتلو او چونکه باغ ګڼړ وو. نو زر ورته د وتلو لاره ملاؤ نۀ شوه. کله دېخوا کله اَخوا

اَلوَتهٔ او دِ تلو لاره یې کتله. د هغهٔ نظر پرې پریوتهٔ او د دې منظر په وجه یې اَخوا خیال شو او نظر یې د غې مارغهٔ سره ګرزیدهٔ. نا ساپه ورته د مانځهٔ خیال راغے نو سَهوَه شوچه کوم رکعت دے. ډیر خَفه شوچه د دے باغ په وجه دا مُصیبت راپیښ شو چه په مانځهٔ کښ رانه هیره اُوشوه. زر د نبی اکرم ﷺ په خدمت کښ حاضر شو او پوره قصه یې بیان کړه او درخواست یې اُوکړهٔ چه د دے باغ په وجه دا مُصیبت راپیښ شو. دے دپارهٔ دا څهٔ د الله تعالیٰ په لاره کښ ورکوم. کوم ځائ چه ستا سو زړهٔ غواړي دا اُولګوئ.

دغه شان یوه بله قصه د حضرت عُثمان رضی اللہ عنہ په زمانهٔ خِلافت کښ پیښه شوے وه چه یو انصاری په خپل باغ کښ مونځ کولو. د کهجورو د بخیدو زمانه وه په ترقئ وه او غوږے د کهجورو د بوجهٔ او ډیروالی له وجے راځکته شوے وے. نظر یې په غوږو پریوتهٔ. د کهجورو د کے غوږے ورته ډیر ښے معلوم شوے. خیال یې اَخوا لاړو او دا هُم ورته یاد نهٔ شو چه څو رکعته اُوشو. د دے غَم او خفګان پرے داسے غلبه اُوشوه چه د دے په وجه یې دا ځکه اِرادهٔ اُوکړه چه دا سے باغ اُوس اَو ساتم نهٔ چه د کوم په وجه دا مُصیبت راپیښ شو نو حضرت عُثمان رضی اللہ عنہ په خدمت کښ حاضر شو او عرض یې اُوکړهٔ چه دا دَ الله تعالیٰ په لاره کښ خرچ کړل غواړم، تا سو چه ورسره څهٔ کوئ اُوکړئ. هغوی هغه باغ په پنځوس زره خرچ کړهٔ او د هغے قیمت یې په دِینی کارونو کښ اُولګولو. (موطا امام مالک)

**فائده**:- دا ایمانی غیرت دے چه د مونځ په شان اَهم څیز کښ خیال راتلو سره د پنځوسو زرو د رهمو باغ یې یودم صدقه کړهٔ. څمونږ حضرت شاه ولی الله صاحب رحمہ اللہ په "قَولِ جَمِیل" (نوم کتاب) کښ د صوفیانو د نسبت قسمونه لیکلی دی. د دے مُتعلق یې دا لیکلی دی چه دا نسبت دے دالله تعالیٰ اطاعت له په نورو باندے د مخکښ سا تلو او په هغے د غیرت کولو. د حضراتو ته په دے باندے غیرت راغے چه د الله تعالیٰ په اطاعت کښ بل یو څیز طرف ته خیال ولے لاړهٔ.

## ⑦ د حضرت ابنِ عباس رضی الله عنه د موځ په وجه د سترګې علاج نه کول

د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه په سترګه کښې چه کله اُوبه راغلې نو ډاکټر ورته حاضر شو او عرض یې اُوکړو کله اجازت وی نو د سترګې علاج کوُنکی خدمت کښې حاضر شوا وعرض یې اُوکړو کله اجازت وی نو موږ به د سترګې علاج اُوکړو. خو پنځو ورځو پورې به تاسو احتیاط کوئ او سجده به په ځای د زمکې ځنې اُوچت لرګی باندې کوئ. هغوی ورته اُوفرمایل، دا هیڅ کله نشی کیدې. قسم دې په الله وی یو رکعت هم ما ته داسې کول منظور نه دی. د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد ما ته معلوم دې چه کوم کس یو موځ هم قصدًا پریږدی نو هغه به الله جل شانهٗ سره داسې ملاقات کوی چه الله جل شانهٗ به ددهٔ نه ناراضه وی. (دُرِ منثور)

**فائده:** اګرچه شرعًا موځ د غسې د مجبورئ په حالت کښې کول جائز دی او دا حالت د موځ پریخودو په وعید کښې نه راځی خو حضرات صحابه رضی الله عنهم چه د موځ سره کوم محبت وو او د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په ارشاد باندې د عمل کولو څومره قدرې اهمیت وو، د هغې په وجه حضرت ابنِ عباس رضی الله عنه د سترګې علاج هم خوښ نه کړو چه ددې حضراتو په نزد په یو موځ ټوله دُنیا قربان وه. نن موږ د بې حیایئ ته چه څهٔ غوارُو ددې قربانی کوُنکو په شان کښې د ځلې نه اُویاسُو. هر کله چه صبا ته دوی سره مخامخ کیدل اُوشی او دا په دین باندې قربانی کوُنکی د میدانِ حشر د سیل مزې کوی. بیا به حقیقت معلوم شی چه دوی څه وُو. او موږ دوی سره څهٔ سلوک کړې وو.

## ⑧ د صحابو رضی الله عنهم د موځ په وخت فورًا دوکانونه بندول

حضرت عبدالله بنِ عمر رضی الله عنه یو وارې بازار کښې تشریف فرما وو چه د ماښځه د جُمع وخت اُوشو. وې لیدل چه فورًا ټولو خپل خپل دوکانونه بند کړل او جُمات کښې ورداخل شو. ابنِ عمر رضی الله عنه فرمائی چه هم د دې خلقو په شان کښې دا ایت نازل شو. رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللَّهِ (سورۃ نور پاره ۱۸)

ترجمه د پوره آيت مبارکه داده چه په دے جماتونو کښې داسے خلق سحر او ماښام د الله تعالیٰ پاکی بیانوی چه هغوی د الله تعالیٰ د یاد نه او خصوصاً د مونځ کولو او زکوٰة ورکولو نه نه اخستل غفلت کښې اچوی نه خرڅول. هغوی د داسے ورځے د کرفت نه ویریږی چه په هغے کښې به ډیر زړونه او ډیر سترګے واوړی. (بیان القرآن)

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دغه خلق خپل تجارت وغیره خپل خپل کاروبار کښې به مشغول وُو خو چه کله به یې بانګ واوریدهٔ نو هر څه به یې پریخودل زر به جمات ته لاړل. یو ځائے وائی په الله تعالیٰ م دِ قسم وی، دا خلق تاجران وُو خو تجارت دوی د الله تعالیٰ د ذکر نه نهٔ منع کول.

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه یو ځلے بازار کښې تشریف فرما وو چه آذان اُوشو. نو ویے لیدل چه خلقو خپل خپل سامانونه پریخودل، مانځه ته روان شول. ابن مسعود رضی الله عنه اُوفرمایل، هم دا خلق دی کوم چه الله جل شانهٔ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللهِ د سره یاد کړی دی. یو حدیث کښې د نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه د قیامت په ورځ کله چه الله تعالیٰ ټوله دُنیا یو ځائے ته راجمع کړی نو ارشاد به اُوشی کوم دی هغه خلق چه په خوشحالئ او غم دواړو حالتونو کښې به یې د الله تعالیٰ حمد وثنا کوله. نو یوه ډله به راپاسی او بغیر حساب کتابه به جنت کښې داخله شی. بیا به ارشاد اُوشی کوم دی هغه خلق چه شپو کښې به د خپلو بسترونه لرے اُوسیدل او خپل رَب به یې ویرے او مینے سره یادولو. نو یوه بله ډله به راپاسی او هغه به هم جنت کښې بغیر حسابه داخله شی بیا به ارشاد اُوشی. کوم دی هغه خلق چه هغوی به تجارت یا خرڅولو د الله تعالیٰ د ذکر نه نهٔ منع کول نو یوه دریمه ډله به وړه غوندے اُودریږی او جنت کښې به بغیر حسابه داخله شی. دے نه پس به د باقی خلقو حساب شروع شی. (دُرِّ منثور)

## ⑨ د حضرت خُبیب رضی الله عنه د قتل په وخت کښې مونځ کول او د زید او عاصم رضی الله عنهما قتل

د اُحُد په جنګ کښې کوم کافران چه مُردار کړے شوے وُو نو هغوی به خپلو کښې د بدل اخستلو جوش ډیر تیز وو. سُلافه چه د هغے دوه ځامن په د جنګ

کښې قتل شوي وُو، نذر منلے وو (يعنې منّته يې کړې وه) که چرې د عاصِم (چه هغهٔ د مې خامن قتل کړي وُو) سر په لاس راغے نو د هغهٔ کپره کښې به شراب څکم. په دے وجه هغې اعلان کړے وو چه څوك د عاصِم سر راوُړي نو هغهٔ ته به سل اُوښان انعام ورکړم. سُفيان بن خالِد دے لالچ تيار کړو چه د هغهٔ د سر راوُړلو کوشش اُوکړي. نو هغهٔ د عَضَل او د قارَه څو سړي مدينے منورے ته اُوليږل. دے خلقو خپل ځان مُسلمان ښکاره کړو او نبي علیه السلام نه د تعليم او د تبليغ د پاره خپل ځان سره د يو څو حضراتو ليږلو درخواست اُوکړهٔ. او د حضرت عاصِم رضی اللہ عنہ د ليږلو ئے هم درخواست اُوکړهٔ چه د دهٔ وعظ د خلقو خوښ دے او ډير ښهٔ دے. نو نبي علیه السلام لس سړي او بعضے روايتونو کښې شپږ سړي د وي سره کړل چه په هغې کښې حضرت عاصِم رضی اللہ عنہ هم وو. په لاره کښې دے غې بوتلونکو وعدهٔ خِلافي اُوکړهٔ او دُشمنان ئے د مقابلے د پاره راُوبلل چه د دوۀ سوه سړي وُو. او په هغوي کښې سل سړي ډير مشهور غشي وِيشتونکي وُو. او بعضو روايتونو کښې دي چه نبي علیه السلام دا حضرات د مکے د خلقو د خبر راوُړلو د پاره ليږلي وُو. په لاره کښې د بنُولحيان دوهٔ سوهٔ سړو سره ئے مقابله اُوشوه. دے لږ سے ډلے چه د لسو سړو يا د شپږ وسړو وه، دا حالت اُوليدهٔ نو په يو غرباندے چه د هغې نوم "فَدفَد" وو اُوختل. کافرانو اُووے چه مونږ ستاسو په وِينه خپله زمکه رنګول نهٔ غواړو. صرف د مکے د خلقو نه ستاسو په بدله کښې څهٔ مال اَخستل غواړو. تاسو مونږ ته راشئ. مونږ به تاسو نهٔ قتلوُو. خو هغوي ورته اُووے چه مونږ د کافرانو په ذِمه دارئ کښې راتلل نهٔ غواړو. او د ترکش نه ئے غشي راُوويستل او مُقابله ئے اُوکړه. حضرت عاصِم رضی اللہ عنہ ملګرو ته په جوش کښې اُووے چه تاسو سره دهوکه اُوکړے شوه خو ويرے خبره نهٔ ده. شهادت غَنِيمت اُوګڼئ. ستاسو محبوب تاسو سره دے او د جنت حورے ستاسو په انتظار کښې دی. دا ئے اُووے او په جوش سره ئے مُقابله اُوکړه او کله چه نيزه هم ماته شوه نو په تُوره ئے مُقابله اُوکړه. چا سره چه مقابله وه د هغوي ډله ډيره وه. آخر شهيد شو او دُعا ئے اُوکړه. اے الله! خپل رسُول ته زمونږ د قصے خبر

اُوکړه. دا دُعا قبوله شوه او هغه وخت د دے واقعے عِلم نبی صلی الله علیه وسلم ته اُوشو. او چونکه عاصِم رضی الله عنه دا هم اَورېدلی وو چه سُلَافَه خپله کپړه کښې د شرابو څکلو نذر منلے دے. نو د مَرګ په وخت کښې یے دُعا اُوکړه. اے الله! خپل سَر ستا په لاره کښې پرېکوَلے شی، هم ته د دے حفاظت کَوُنکے یے. دا دُعا هم قبوله شوه او د شهادت نه پس کله چه کافرانو د سر پرېکولو اراده اُوکړه نو الله تعالیٰ د شاتو مچئ او په بعضو روایتونو کښې د ډمبرو یو سیل راؤلیږه چه هغوی د هغهٔ بدن څلور واړه طرفه نه ګیر کړهٔ. کافرانو خیال اُوکړهٔ چه د شپے په وخت کله چه دا والوزی نو سر به یے پرېکړو. خو د شپے د باران یو سیلاب چپه راغله او د هغهٔ لاش یے لاهو کړهٔ. دغه شان اُووهٔ یا د رے سری شهیدان شو. خلاصه دا چه د رے باقی پاتے شو. حضرت خُبَیب او زَید بن طارق او عبد الله بن دَثِنَه رضی الله عنهم. دے درے واړو حضراتو سره بیا هغوی وعده او لوظ اُوکړهٔ چه تاسو خکته راکوزشئ. مونږ تاسو سره وعده خلافی نه کوو. دا درے واړه حضرات خکته راکوز شول. راکوزیدو سره کافرانو دلیندو جَئ راُوسپړو دے او د هغوی مټے یے پرے اُوتړلے. حضرت عبد الله بن طارق رضی الله عنه اُوفرمایل چه دا اَوّلنئ بے لوظی ده. څهٔ تاسو سره هیڅ کله نه ځم. دے شهیدانو پسے تلل خپله هم خوښ دی. هغوی په زبردستی د دهٔ راخکل اُوغوختل. خو دے د خپل ځایه اُونهٔ خوزیدهٔ. نو د غه خلقو دے هم شهید کړهٔ. صرف دوه حضرات ورسره پاتے شو. یو حضرت زید بن دَثِنَه رضی الله عنه چه صَفوَان بن اُمَیَّه د پنځوسو اُوښانو په بدله واخِست چه د خپل پلار اُمَیّه په بدله کښې یے قتل کړی. دویم حضرت خُبیب رضی الله عنه چه حُجَیر بن اَبی اِهاب د سلو اُوښانو په بدله واخست چه د خپل پلار په بدله کښې یے قتل کړی. د بخاری شریف روایت دے چه د حَارِث بن عامِر اولاد واخست چه دهٔ په بدر کښې حَارِث قتل کړے وو. صَفوان خوخپل قیدی حضرت زید رضی الله عنه زر د حرم نه بهَر د خپل غلام په لاس اُولیږهٔ چه قتل کړے شی. د دهٔ تماشے د پاره ډیر خلق جمع شول چه په هغے کښې اَبُو سُفیَان هُم وو. دهٔ د حضرت زید رضی الله عنه نه د شهادت په وخت کښې تپوس اُوکړو چه اے زَیده! ستا دِ په الله قسم وی. رِښتیا اُووایه

"آیا ستا دا خوښه ده چه د محمد ﷺ ستا په بدله کښ اُووهلے شی او ته پریخودلے شے چه خپل بال بچ سره خوشحاله اُوسے. حضرت زید رضی الله عنه اُوفرمایل چه په الله تعالیٰ مې دِ قسم وی چه څه خو دا هُم نه خوښوم چه نبی اکرم ﷺ کوم ځائی کښ دے هلته دِ په هغوی کښ یو اَزغے هم ولګی او ما ته دِ په کور کښ په آرام سره یم. د جواب چه قریشو واوریدهٔ، حیران پاتے شول. ابوسفیان اُوویل چه د محمد ﷺ د ملګرو چه څومره د هغهٔ سره محبت ما اُولیدهٔ د دے مثال مې چرته نهٔ دے لیدلے. دِ دے نه پس حضرت زید رضی الله عنه شهید کړے شو.

حضرت خُبیب رضی الله عنه څهٔ موده پورے په قید کښ وو. د حُجَیر د ینځه چه بیا رستو مسلمانه شوه، وائی چه خُبیب رضی الله عنه کله چه څمونږ په قید کښ وو. نو مونږ ه اُولیدل چه د خُبیب رضی الله عنه په لاس کښ یوه وَرَځ د انګورو ډیره لویه غُنچه د سر برابرے په لاس کښ نیولے وه انګور خوړی. او مکه کښ د غه وخت انګور بیخی نهٔ وُو. هم هغه وائی چه کله د دهٔ د قتل وخت نزدے راغے نو د پاکئ دپاره یے چاړهٔ اُوغوختله. هغه ورکړے شوه. اِتفاقاً یو ماشوم د غه وخت خُبیب رضی الله عنه ته وَرَغے. د غے خلقو اُولیدهٔ چه چاړهٔ د دهٔ په لاس کښ ده او ماشوم ورسره دے. دے لیدو سره اُوبَریدل. خُبیب رضی الله عنه اُوفرمایل چه "آیا ستا سو دا خیال دے چه څهٔ به ماشوم قتل کړم. دا به اُونهٔ کړم. دے نه پس یے د حَرَم نه بهر راوُویستلو او په سولئ باندے زوړَند وُلو په وخت د آخری خواهش په طور ترے تپوس اُوکړے شو که څهٔ ارمان دِ وی نو اُوښایه. دهٔ اُوفرمایل چه ما ته دومره وخت مهلت راکړئ چه دوه رکعته مونځ اُوکړم چه د دُنیا نه د تللو وخت دے او د الله جل شانهٔ سره ملاقات نزدے دے. نو مهلت ورکړے شو. دوه رکعته یے ډیر په تسلئ سره اُوکړل او بیا یے اُوفرمایل، که چرے ځما دا خیال نه وُے چه تاسو خلق به دا ګڼړئ چه څهٔ د مرګ د وَیرے نه ساعت تیروم نو دوه رکعته به مې نور هم کړی وُو. دِ دے نه پس په سولئ زوړَند کړے شو او دُعا یے اُوکړه، چه اے الله اِخُوک داسے شته چه ستا رسول ﷺ ته ځما آخری سلام اُورسوی نو نبی کرم ﷺ ته د وَحی په ذریعه د غه وخت سلام اُورسَولے شو. نبی علیه الصلوٰة

اُوفرمایل وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ يَا خُبَيْبُ رضی الله عنه. اُو ملګروته یې خبر ورکړهٔ چه خُبَيْب (رضی الله عنه) قُرَیشو قتل کړهٔ. حضرت خُبَیب رضی الله عنه چه کله په سُولئ اُوخیژولے شو نو خلو یښتو کافرانو دخلورو وارو طرفونه په دهٔ په نیزو حمله اُوکړه او بدن یې ورله غلبیل کړهٔ. دغه وخت چا قسم ورکړهٔ او دا یې ترے تپوس اُوکړهٔ چه تهٔ دا خوښوے چه ستا په ځائ محمّد (صلی الله علیه وسلم) قتل کړے او تا پریږدو. دهٔ اُوفرمایل، وَاللهِ الْعَظِيْمِ ما ته دا هم نهٔ ده خوښه چه ځما دځان په بدله کښې یو اَزغے قدرے هم نبی صلی الله علیه وسلم کښې ننوزي. (فتح اسلام)

**فائده:-** هسے خو د دے قصو هر یو لفظ د عبرت دے خو پهٔ دے قصه کښې دوه خیزه خاص طور د قدر او د عبرت قابل دي. یو دا دے حضراتو د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سره محبت او عشق چه خپل ځان ئې د قربان شي او د دے په بدله کښې دومره لفظ ویل هم نهٔ خوښوي چه نبی صلی الله علیه وسلم ته څهٔ معمولی غوندے تکلیف هم اُورسی. حضرت خُبیب رضی الله عنه بانديمسرف په ژبه ویل غوختل او صرف په ژبه ویل وُو. کنې بدله کښې نبی صلی الله علیه وسلم ته تکلیف رسَولو باندے خو د دے کافرانو وس هم نهٔ رسیدهٔ بلکه دغه خلق په خپله هر یو د تکلیف رسَولو کوشش کښې وو چه په هغې کښې د بدل او بے بدلے تول برابر وُو. دویم خیز د موږ عظمت او د هغې محبت وو چه دا سے آخری وخت کښې عُمومًا نهٔ څه، ټچی خلق یادوی. شکل لیدل یے غواړي. پیغام او سلام ورته وائي. خو د دے حضراتو که پیغام او سلام ورکول دي نو نبی صلی الله علیه وسلم ته او آخری خواهش یے د ګنو د دوهٔ رکعتو موږ دے.

## ⑩ نبی علیه السلام سره په جنت کښې ملګرتیا دپاره د موږ مدد

حضرت رَبِیعَه رضی الله عنه فرمائي چه ما به د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې شپه تیرَوله او د تهجّد و په وخت کښې به مې د اَوداسهٔ اُوبهٔ او نور ضروریات مثلاً مسواک جائے نماز وغیره ایخودل. یو وار نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ځما د خدمت نه خوشحاله شو. وے فرمایل اُوغواړه څهٔ غواړے. ما عرض اُوکړهٔ اے د الله رَسُولَه! په جنت کښې ستاسو ملګرتیا. نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل، نور څهٔ. ما اُووے. بس دا خیز مې غرض

دے (اوغوارم) نبی ﷺ اُوفرمایل ډیره ښۀ ده حُمامد دکوه دسجدو
په ډیروالی سره۔ (ابوداؤد)

**فائده:-** په دے کښې خبرداریے دے۔ د دے خبرے چه صرف په دُعا
سره بے فکره کیناستل نۀ دی پکار۔ بلکه دځۀ طلب او دعمل هم ضرورت دے
او په عملونو کښې د ټولو نه ضروری مونځ دے چه څومره د دے ډیروالے اُوشی
هغومره به سجدے زیاتے اُوشی۔ کوم خلق چه په دے اسرا ناست وی، چه
فلانے پیر، فلانے بزرګ راته دُعا اُوکړی، سخته غلطی ده۔ الله جل شانهٗ دا دُنیا
اَسبابو سره چلولے ده۔ اګرچه بے اَسبابو په هر یو څیز قدرت لری او د قُدرت
ښکاره کولو دپاره کله داسے هم کوی۔ خو عام عادت یے دا دے چه د دُنیا کاروبار
یے اَسبابو سره تړلے دے۔ حیرانتیا ده چه مونږ۔ خلق د دُنیا په کارونو کښې خو
تقدیر او صرف د دُعا په اسرا کله هم نۀ کینو۔ بلخوس قِسمه کوششونه کوو۔
خو د دین په کارونو کښې تقدیر او دُعا په مینځ کښې راشی۔ په دیکښې شک نشته چه
د الله والو دُعا ډیره ضروری ده خو نبی ﷺ هم دا ارشاد فرمایلے دے چه دَ
سجدو په ډیروالی سره ځما د دُعا مدد کوئ۔

---

# شپږم باب

## ایثار او همدردی او د الله تعالیٰ په لار کښې خرچ کول

ایثار وائی دخپل ضرورت په وخت د نورو ضرورت وړاندے پوره کولو ته۔
اول خو د صحابه کرامو رضی الله عنهم هر یو کار، هر عادت داسے دے چه دهغې برابرے خو
یو څوا، دهغۀ څۀ حصه هم که چا ته څوش قسمته ته نصیب شی نو خالصه نیک بختی
ده۔ خو بعضے عادتونه په هغوی کښې داسے خاص دی چه هم دهغوی حصه ده۔
چه دهغې نه یو ایثار هم دے چه الله جل شانهٗ په قران شریف کښې د دے تعریف
کړے دے۔ او ﴿یُؤْثِرُوْنَ عَلٰۤی اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ کَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾ (سورۃ حشر)

کښې دا صِفت ذکر کړے دے چه دغه خلق په خپلو ځانونو نور ورانډے کوی اګرچه په دوی لوږه ولے نهٔ وی۔

## ① دصحابی رضی الله عنه دمیلمه له خاطره ډیوه مړه کول

یو صحابی رضی الله عنه دنبی کرَم صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شو او د خپلے لوږے او د پریشانئ حال یے بیان کړه. نبی صلی الله علیه وسلم خپلو کورونو ته سړے اُولیږه، چرته څهٔ بیا نهٔ مُوندے شو. نو نبی صلی الله علیه وسلم صحابو ته اُوفرمایل چه څوک شته چه دده دیوے شپے میلمستیا اُوکړی، یو انصاری صحابی عرض اُوکړهٔ. اے دالله رسُولهٔ! څهٔ به یے میلمستیا اُوکړم. هغه یے کور ته بوتلهٔ او بی بی ته یے اُووے چه دا دَ نبی صلی الله علیه وسلم میلمه دے. څومره چه یے اکرام کولے شے، کمے پکښې مه کوه. او څهٔ څیز پټوه مهٔ. بی بی ورته اُووے په الله تعالیٰ م دِ قسم وی چه دما شوما نو دپاره م څهٔ لږ غوندے څیز ایخے دے. نو رهیڅ هم کور کښې نشته. صحابی اُوفرمایل چه ماشومان دِلاَسه کړه اُودهٔ یے کړه. او کله چه هغوی اُوده شی، نهٔ خوراک راوړه. میلمه سره به کینو. بیا تهٔ دډیوے سمولو په بهانه پاسه او ډیوه مړه کړه. نو بی بی هم داسے اُوکړهٔ او دوا ړو بښځے خاوند او ماشومانو لږه شپه تیره کړه چه په دے دا ایت يُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ نازل شو. (ترجمه) "او ترجیح یعنی ورانډے والے ورکوی په خپلو ځانونو. اګرچه په دوی لوږه وی۔

فائده:- د دے قسمه ګنړ واقعات دی چه صحابو رضی الله عنهم ته پیښ شوی دی لکه د دے قسمه یوه بله واقعه یے لیکلے ده۔

## ② روژه دار دپاره ډیوه مړه کول

یو صحابی رضی الله عنه به پرله پسے روژے نیولے. او د روژه ماتی دپاره به ورسره هیڅ څیز نهٔ وو. یو انصاری صحابی حضرت ثابتُ رضی الله عنه ته معلومه شوه. خپلے بی بی ته یے اُووے چه څهٔ به شپے ته یو میلمه راولم. کله چه خوراک شروع کړی نو ته ډیوه دسمولو په بهانه مړه کړه او تر څو چه میلمه موړ شوے نهٔ وی

په خپله مه خوره. نو هغوی هم هغسې اُوکړل. تول ورسره شریک وُو ګویا چه خوری. صبا ئې حضرت ثابت کله چه د نبی علیه السلام مجلس کښې حاضر شو نو نبی علیه السلام اُوفرمایل چه د شپې ستاسو دخپل میلمه سره ښهٔ سلوک الله تعالیٰ ته ډیر خوښ شو - (کذا فی منثور)

## ۳ دیو صحابی رضی الله عنه زکوٰة کښې اُوښ ورکول

حضرت اُبی بن کعب رضی الله عنه فرمائی چه څهٔ یو ځلے نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د زکوٰة مال وصولوٗلو د پاره اُولیږلم. څهٔ یو صاحب ته لاړم او د هغهٔ نه مې د هغهٔ د مال تفصیل معلوم کړهٔ نو په هغهٔ یو دَ اُوښ بچے یو کلیز واجب کیدهٔ. ما ترې د هغې مطالبه اُوکړه. وے فرمایل چه دیو کال بچے نهٔ د پیٔو د کار دے نهٔ د سورلئ د کار. هغهٔ یوه قیمتی ځوانه اُوښه راوُسته چه دا بوزه. ما اُووے چه څهٔ دا نهٔ شم اخستے ځکه چه ما ته د ښهٔ مال اخستو حکم نشته. البته که چرے تهٔ دا ورکول غواړے نو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سفر کښې دے او نن یے قیام فلانی ځائی کښې ستاسو نزدے دے لاړشه د نبی علیه السلام خدمت کښې یے پیش کړه. که چرے منظوره کړی نو ما ته انکار نشته. کنی څهٔ معذور یم. هغهٔ د غه اُوښه روانه کړه ما سره شو او د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شو. عرض یے اُوکړهٔ چه اے د الله رسوله! ما ته ستاسو قاصد د زکوٰة مال اخستلو د پاره راغلے وو. او په الله تعالیٰ مې قسم وی چه ما ته ترنه دا خوش قسمتی نصیب شوے نهٔ ده چه د الله رسول صلی الله علیه وسلم یا د هغهٔ قاصد څما په مال کښې چرے دخل کړے وی (او څهٔ یے اخستی وی) په دے وجه ما خپل تول مال مخکښې کړو. هغوی اُووے چه په دے کښې یو کلیز د اُوښ بچے د زکوٰة واجب دے. حضور! دیو کال د بچی نهٔ نهٔ خو د پیٔو فائده شته نهٔ د سورلئ. په دے وجه ما یو ښهٔ ځوانه اُوښه پیش کړه چه هغهٔ ستاسو قاصد قبوله نهٔ کړه. ځکه ما په خپله راوسته او حاضر شوم. نبی علیه السلام اُوفرمایل چه په تا واجب خو هغه دے کوم چه درته هغوی خودلے دے خو که چرے د خپل طرفه د هغهٔ نه زیات اُوښهٔ مال ورکړے نو قبول دے.

الله تعالیٰ دِ تاته د دے بدله در کړی. هغه عرض اوکړه چه دا د ه حاضره ده. نبی صلی الله علیه وسلم قبوله کړه او د برکت دُعا یے ورته اوکړه.

فائده:- دا د زکوٰة د مال حال دے. نن هم د اِسلام ډیر دَعویدار دی او د نبی صلی الله علیه وسلم د محبت دعوے هم کوی خو د زکوٰة په ادا کولو کښې د زیاتی غوبه څهٔ وائے په پوره مقدار کښې ادا کول ورته هم مرګ وی او کوم چه د اُوچتے طبقے کسان دی چه ورته زیات مالدار ویلے شی دهغوی په نزد خو د زکوٰة اَډو ذکر نشته. کوم چه د درمیانه حیثیت خلق دی او خپل ځان دیندار ګڼړی هغوی هم د دے کوشش کوی چه کوم خرچ خپلو خپلوانو کښې یا څهٔ بل ځائے په مجبوری سره پیښ شی په هغے کښې د زکوٰة نیت اوکړی.

## ② د حضرات شیخین رضی الله عنهما په صدقه کښې مقابله

حضرت عُمر رضی الله عنه فرمائی چه یو ځلے نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د صدقے کولو حُکم اوفرمایهٔ. اتفاقاً د هغے زمانه کښې ما سره څهٔ مال موجود وو. ما اُووے چه نن ورځے اتفاقاً ما سره مال موجود دے. که چرے څهٔ د اَبُوبکر صدیق رضی الله عنه نه کله وړاندے کیدے شم نو نن به ترے وړاندے شم. دا فکرم اوکړو. په خوشحالی خوشحالی کور ته لاړم. او څهٔ چه په کور کښې وُو هغے نه مے نیم راوړهٔ. نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمایل چه د کور خلقو دپاره دِ څهٔ پریخودل؟ ما عرض اوکړه چه پریے مے خودهٔ. نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمایل اخر څهٔ دِ پریے خودهٔ؟ ما عرض اوکړهٔ چه نیم مے پریخودهٔ. او حضرت اَبُوبکر صدیق رضی الله عنه چه څهٔ ورسره وُو ټول یے راوړهٔ. نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمایل، اَبُوبکرَ! د کور خلقو دپاره دِ څهٔ پریخودل؟ عرض یے اوکړهٔ هغوی دپاره مے الله تعالیٰ او د هغهٔ رسُول صلی الله علیه وسلم پریخودهٔ. یعنی الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسُول صلی الله علیه وسلم د نوم برکت او د هغهٔ رضا او خوشحالی پریخودهٔ. حضرت عُمر رضی الله عنه فرمائی ما اُووے چه حضرت اَبُوبکر رضی الله عنه نه څهٔ هیڅکله نهٔ شم مخکښې کیدے.

فائده:- ښهٔ صِفتونو او نیکوکښې د دے کوشش کول چه د نورو نه مخکښې شم، دا ډیر ښهٔ او مُستحب دی. قرآنِ پاک کښې هم د دے ترغیب راغلے

دې. داقصه دغزوهٔ تبوک ده. دغه وخت نبي اکرم ﷺ دچنده خاص طورسره ترغيب ورکړې وو. اوصحابه کرامو رضي الله عنهم دخپلې خپلې حوصلې موافق بلکه دهمت او وَس نه زيات امداد ونه اوکړل چه دهغې ذکر د دويم باب اتمه قصه کښې مختصرغوندې تيرشوې دې. جَزَاهُمُ اللّٰهُ عَنَّا وَعَنْ سَائِرِالْمُسْلِمِيْنَ اَحْسَنَ الْجَزَاءِ.

## ⑤ دَاصحابو کرامو رضي الله عنهم دنوروپه وجه دتندې نه مړه کيدل

حضرت اَبُوْجَهْم بِنِ حُذَيْفَه رضي الله عنه فرمائي چه دیَرمُوک په جنګ کښې خه دخپل تره خوئ په تلاش کښې اُووتلم چه هغه په جنګ کښې شريک وو. او يوه مشکيزه داُوبو م ځان څخه واخستله چه کيدې شي هغه تږې وي. نو اُوبه به پرې اُوڅکوم. اِتفاقًا هغه يوځاي په داسې حالت کښې پروت ووچه ساه يې په وتو وه اوځنکدن يې شروع وو. ما ترې تپوس اُوکړو چه داُوبو ګوټ درته درکړم؟ هغه په اشاره سره او اُوکړه. په دې کښې يوبل صاحب چه نزدې پروت وُو، اه اُوکړه. څما د تره خوئ چه آواز واُوريدهٔ نوماته يې هغهٔ له دتلو اشاره اُوکړه. ماهغهٔ ته اُوبهٔ يوړې. هغه هِشام بن اَبِي الْعَاص رضي الله عنه وو. هغهٔ ته اُورسيدم نوهغهٔ ته نزدې يو دريم صاحب په داسې حالت کښې پروت ووچه ساه يې په وتلو وه، هغهٔ اه اُوکړهٔ. هِشام رضي الله عنه ماته هغهٔ ته دورتلو اشاره اُوکړه. ماچه اُوبهٔ واخستې ورته اُورسيدم نو دهغهٔ ساه وتلې وه. هِشام رضي الله عنه ته چه واپس راغلم نو هغه هم په حق رسيدلے وو، دهغهٔ نه چه دخپل تره خوئ ته واپس راغلم نو په دې کښې هغه هم ختم شوے وو. اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ. (درايه)

**فائده:** - ددې قِسمه ګڼړې واقعې دحديث په کتابونو کښې ذکرشوې دي. څه اِنتِهاء ده ددې اِيثارچه دخپل تره خوئ يې مرې. ساه يې په وتوي. او تږي وي په داسې حالت کښې بل چا طرف ته توجُّه کول هم مشکله شي. دالاڅه کوې چه هغه تږې پريږدي، بل ته اُوبهٔ څکولو د پاره

اورشي. د دے مرۀ شوؤ رو حونه د الله جل شانهٔ په خپلې مهربانئ او فضل مو مشرف کړي چه د مرګ په وخت کښې هم کله چه هوش او حواس تول جواب ورکړي، د اخلاق همدردئ کښې ساه ورکوي.

## ⑥ د حضرت حمزه رضی الله عنه کفن

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم تره حضرت حمزه رضی الله عنه غزوۀ اُحد کښې شهید شو. او بے دردۀ کافرانو د دوی غوږونه، پوزه وغیره اندامونه پرې کړل. او سینه یې ورله اوڅیرله. زړۀ یې ترے راوویست او قسما قسم ظلمونه یې پرے اوکړل. د جنګ په ختمېدو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم او نورو صحابو رضی الله عنهم د شهیدانو د لاشونو تلاش شروع کړۀ. د هغوی د کفن انتظام یې کولو چه حضرت حمزه رضی الله عنه یې په دے حالت کښې اولیدهٔ. ډیر خفګان پرے تیر شو او په یو څادر یې پټ کړو. په دے کښې د حضرت حمزه رضی الله عنه حقیقي خور حضرت صفیه رضی الله عنها تشریف راوړۀ چه د خپل رور حال اووینی. نبي صلی الله علیه وسلم په دے خیال چه اخر ښځه ذات ده- د دا سے ظلمونو د کتلو زغمل به ورته ګران شي. د هغې ځوی حضرت زبیر رضی الله عنه ته یې ارشاد اوفرمایهٔ چه خپله مور د کتلو نه منع کړه. هغهٔ مور ته عرض اوکړۀ چه نبي صلی الله علیه وسلم د کتلو نه منع فرمایلے ده. هغې اُووے چه ما دا اوریدلي دي چه څما د رور پوزه، غوږونه وغیره پرے کړے شوي دي. د الله تعالی په لاره کښې دا کومه لویه خبره ده. مونږ په دے راضي یو. څهٔ د الله تعالی نه د ثواب اُمید لرم او اِنشاءَالله صبر به کوم. حضرت زبیر رضی الله عنه نبي صلی الله علیه وسلم ته ورغے، د مور خبرے یې ورته عرض کړے نو نبي صلی الله علیه وسلم چه د هغې جواب واؤریدهٔ، د لیدو اجازت یې ورکړۀ. راغله، ورے لیدهٔ. اِنّا لِلّٰه یې اُووے او د هغهٔ د پاره یې استغفار او دُعا اوکړه. یو روایت کښې دي چه غزوۀ اُحد کښې کوم ځائ چه مړي پراته وُو. یوه ښځه په تیزئ سره راتله. نبي صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل. اُوګورئ دا ښځه منع کړئ. حضرت زبیر رضی الله عنه فرمائي ما اُوپیژندهٔ چه څما مور ده. زۀ په تلوارے منع کولو د پاره ورمخکښې شوم خو هغه طاقتوره وه څهٔ یې یوه

مُوکَه اُو وهلم اَو وِے ویل لړے شه. ماورته اُووے چه نبی علیه الصلوٰة والسلام منع فرمایلے ده. نو فورًا اُودریده. دے نه پس یے دوه څادرے راوُویستے او ویل چه ما دخپل رُور دکفن دپاره راوړے دی چه دهغهٔ دوفات خبرم واوریدهٔ. په دے څادرُونو کښ کفن ورکړئ. مونږ ه هغه څادرونه واخستل. حضرت حَمزَه رضی اللہ عنه په کښ کفن کولو چه خواکښ ورسره یو انصاری شهید پروت وو چه دهغهٔ نوم سُهَیل رضی اللہ عنه وو. دهغهٔ هُم کافرانو داسے حال کړے وو، څنګه چه دحضرتِ حَمزَه رضی اللہ عنه وو. مونږ ته دے خبرے نه شرم راغے چه حضرت حَمزَه رضی اللہ عنه ته دِ دوه څادرونو کښ کفن ورکړے شی او دا انصاری دِ یَو هُم نهٔ وی. په دے وجه مونږ ه دواړو دپاره یَو یَو څادر مقرر کړهٔ. خو یَو څادر په هغے کښ لوئ وو، دویم لنډ. نو مونږ ه خسنړے واچولو. چه خسنړی کښ کوم څادر دچا په حِصه کښ راغے په هغے کښ به کفن کړے شی. په خسنړی کښ لوئ څادر دِ حضرت سُهَیل رضی اللہ عنه په حصه کښ راغے او لنډ د حضرت حمزه رضی اللہ عنه په حصه کښ راغے. چه دهغهٔ دقد نه هم کم وو. که سر به مو ورله پټولو، نو پښے به یے ښکاره کیدلے او که دپښو طرف ته به موکړهٔ نو سَر به یے ښکاره کیدهٔ. نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه سَر ورله په څادر پټ کړئ او په پښو ورله پاڼړے وغیره واچوئ. (خمیس)

د ابنِ سعد روایت کښ دی چه حضرت صَفیَّه رضی اللہ عنها کله چه دوه څادرے واخستے دحضرت حمزه رضی اللہ عنه لاش ته اُورسیدَه نو هغهٔ ته نزدے یو انصاری هم په هغے حال کښ پروت وو. نو په یَو یَو څادر کښ یے دواړو له کفن ورکړهٔ. دحضرت حمزه رضی اللہ عنه څادر لوئ وو. دا روایت مختصر دے او دخمیس کتاب روایت تفصیلی دے.

فائدَه:- دا د دواړو جهانو د بادشاه د تره کفن دے هغه هم دا سے چه یوه زنانه دخپل رور دپاره دوه څادرے ورکوی. په هغے کښ دانهٔ خوښوی چه دویم انصاری دِ بے کفنه پاتے شی. یَو یَو څادر تقسیموی او بیا لنډ څادر د هغهٔ کس په حصه کښ راځی چه په خو وجهو سره د ترجیح حق لری. دغریب

پیروزي او مساوات دَعوېدار که چرې په خپلو دعوو کښې رښتني وي نو دوی دې پاکو هستو تابعداري دِ اُوکړي چه (صرف) په وینا سره نه بلکه په کړولو سره یې اُوخودله. مونږ خلقو ته خپل ځان د دوی تابعدار ویل هم د شرم خبره ده.

## ⑦ دچیلئ سر گرځېدل اوبیا واپس راتلل

حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ فرمائي چه یو صحابي ته چا د چیلئ سر هدیه کښې ورکړه. هغهٔ خیال اُوکړه چه څما فلانے ملګرے زیات ضرورت مند دے د بال بچ خاوند دے او د هغهٔ د کور خلق زیات محتاج دي. په دے وجه یې هغهٔ ته اُولیږه. لنډه دا چه دا سر اُوه کورونو کښې اُوګرځېده. بیا د ټولو نه د اُومبي صحابي کور ته واپس راغے. (دُرّ منثور)

**فائده:-** د دے قسمه قصے نه د دے حضراتو عموماً محتاجي او ضرورتمندي هم معلومیږي. او دا هم چه هر یو کس ته به د نورو ضرورت د خپل ځان نه وړاندے معلومیده.

## ⑧ د حضرت عمر رضی اللہ عنہ خپلې بي بي لره دائي توب د پاره بوتلل

امیرُالمؤمنین حضرت عمر رضی اللہ عنہ به د خپل خلافت په زمانه کښې د یر ځله د شپے ګرځېده اُو په طور د ښهر حفاظت هم کړلو. یو ځل په د ے حالت کښې په یو میدان تیرشو. وے لیدل چه یوه خیمه د وړختو جوړه شوے لګېدلے ده چه رومبے یې هلته نهٔ وه لیدلے. هغه ته نزدے ورغے نو وے لیدل چه یو صاحب هلته ناست دے او د خیمے نه د زیږیدنګي اُواز راځي. سلام یې اُوکړه او هغه صاحب سره کیناستهٔ. اُو پوښتنه یې ترے اُوکړه چه ته څوک یې؟ هغهٔ اُووے یو مسافر یم د ځنګل اُوسیدونکے یم. امیرُالمؤمنین ته څهٔ خپل ضرورت پیش کوم. د مدد اخستلو د پاره راغلے یم. بیا یې ترے اُوکړه چه د خیمے نه دا اُواز څنګه راځي؟ هغه صاحب ورته اُووے، ځه سر په خپل کار کوه. دوی مبارک اصرار اُوکړهٔ چه نه خامخا اُووایه څهٔ د تکلیف اُواز دے.

هغه صاحب اُووے چه د ښځے د بچی پیدا کیدو وخت نزدے دے. د رډ ورته کیږی. دوی مُبارک اُوفرمایل چه څوک بله زنانه ورسره شته؟ هغه اُووے هیڅوک نشته. دوی د دغه ځائ نه راپاسید ل، کورته یے تشریف یوړو او خپلے بی بی حضرت اُمِ کلثوم رضی الله عنها ته یے اُوفرمایل چه یو ډیر د ثواب څیز (په قِسمت سره) ستاد پاره راغلے دے. هغه تپوس اُوکړو څه دے؟ دوی اُوفرمایل یو بانډ ے اُوسیدونکی غریبه زنانه یو ائے ده او ورته د بچی پیدا کیدو تکلیف دے اُووے، اَواَو، که ستا سو اجازت وی نو حځه تیاره یم. او ولے به نه تیاریدا چه دا هُم آخر د حضرت فاطمے رضی الله عنها لُور وه. حضرت عُمر رضی الله عنه اُوفرمایل چه د وِلادت د پاره د کومو څیزونو ضرورت پیښیږی تیل، زړُوکی وغیره واخله او یوه کټوی او څه غوړی او دانے وغیره هم ورسره واخله هغه راوا خستل روانه شوه. حضرت عُمر رضی الله عنه په خپله ورپسے رُستورُستو تلو. هلته چه اُورسیده نو حضرت اُمِ کلثوم رضی الله عنها خو خیمے ته د ننه لاړه او حضرت عُمر رضی الله عنه اُور بل کړو کټوی کښں یے دانے اُو وِیشول. غوړی یے واچول. په دے کښں د وِلادت نه فراغت اُوشو. د ننه نه حضرت اُمِ کلثوم رضی الله عنها آواز اُوکړو، اَمِیرُ المؤمنین! خپل دوست ته د هلك پیدا کیدو زیرے ورکړه. د اَمِیرُالمؤمنین لفظ کله چه هغه سری واوریدو نو ډیر اُویریدو. دوی مُبارک ورته اُوفرمایل د ویرے خبره نه ده. هغه کټوی یے خیمے سره کیخوده چه په دے ښځے څه اُوخوړوی. حضرت اُمِ کلثوم رضی الله عنها په هغے اُوخوړوله. دے نه پس یے کټوی بهر ورکړه. حضرت عُمر رضی الله عنه هغه بانډچی ته اُووے چه واخله ته هُم اُوخوره. ټوله شپه د شوګیره کښں تیره شوه. دے نه پس یے خپله بی بی ځان سره کړه کورته یے تشریف راوړه. او هغه صاحب ته یے اُوفرمایل چه صبا ته راشه ستا د پاره به انتظام اُوکړے شی. (اشهر)

فائده:۔ څومره د زمانے څوك بادشاه یا رئیس نه څوك د معمولی حیثیت مالدار هُم داسے شته چه د غریب په ضرورت کښں د مسافر د مدد د پاره د دغه شان خپله بی بی د شپے ځنګل ته بوزی او خپله نغری کښں اُور

پکښې لږ غوندې ځول اوکړی. مالدار خو په دې ده، څو لکه دینار درهم دا سے کړی. سوچ کول پکار دی چه د چا مونږ نوم اخلو او د چا په شان د برکتونو هره خبره کښې امید ساتو. ایا څه کار هم مونږ د هغوی په شان کړو!

## ⑨ د حضرت ابوطلحه رضی الله عنه باغ وقف کول

حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه ابوطلحه رضی الله عنه د مدینې منورې انصارو کښې د ټولو نه زیات او د ټولو نه د لوئی باغ مالک وو. د هغه یو باغ وو چه د هغې نوم بیرحاء وو. هغه د ده ډیر زیات خوښ وو، مسجد نبوی ته نزدې وو او اوبه هم پکښې ډیرې خوږې او زیاتې وې. نبی صلی الله علیه وسلم به اکثر هغې باغ ته تشریف اوړو او د هغې اوبه به یې څکلې. کله چه د قرآن شریف ایت لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰی تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ (آل عمران) (تاسو د نیکۍ کامل درجے ته نه شئ رسیدے، ترکومے چه تاسو داسے څیزونو نه خرچ اونکړئ کوم چه تاسو ته خوښ دی.) نازل شو. نو ابوطلحه رضی الله عنه د نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض یې اوکړه چه ما ته خپل باغ بیرحاء د ټولو نه زیات خوښ دے او د الله تعالیٰ ارشاد دے چه خوښ مال د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کوئ. په دے وجه هغه د الله تعالیٰ په لاره کښې ورکوم. تاسو چه څنګه مناسب ګنړئ هغه خرچ کړئ. نبی صلی الله علیه وسلم ډیر زیات خوشحاله شو او وې فرمایل چه ډیر ښه مال دے. څه زما مناسب ګنړم چه دا په خپلو خپلوانو کښې تقسیم کړه. ابوطلحه رضی الله عنه هغه خپلو رشته دارانو کښې تقسیم کړو. (در منثور)

**فائده:-** مونږ هم چرے خپل د ټولو نه خوښ مال جائیداد په یو نیم وعظ اوریدو سره، یا د قرآن پاک د څنې ایت لوستو یا اوریدو سره د غسے بے دریغه خیرات کړو. که چرے د وقف وغیره خیال هم راشی نو چه د ژوندنه نا امیده شو یا وارثانو نه خفه شو، د هغوی محرومه کولو په نیت سره کوو او ګلونه د کے سوچ کښې لګو چه څه طریقه داسے پیدا شی چه څما په ژوند کښې خو څما په کار راشی بیا ترچه څه وی هغه د کیږی. البته که د نوم او خود نے څه څیز وی. نو داه کو ترډنے

څه مجلسونه وی نو د سودی قرضے نه هم انکار نهٔ کوُو

## ⑩ د حضرت ابوذر رضی الله عنه خپل خادم ته تنبیه کوُل.

حضرت ابوذر غِفاری رضی الله عنه مشهور صحابی دے چه دهغهٔ د اِسلام راوړلو قِصه د اول باب په پنځم نمبر کښ تیره شوے ده. دے دلویو زاهدانو خلقونه وو. مال به ئے نهٔ خپل ځان سره جمع کوُونه ئے داغوښتله چه بل څوک ئے جمع کړی. د مالدارانو سره به همیشه په جنګ وو. په دے وجه د حضرت عثمان رضی الله عنه په حکم رَبذَه کښ اوسیدهٔ چه په ځنګل کښ یو معمولی غوندے آبادی وه. حضرت ابوذر رضی الله عنه سره اوښان وُو او یو کمزورے ضعیف غوندے څروُنکے وو چه دهغې خبرګیری به ئے کوُله. په دے ئے ګذاره وه. یو کس د قبیله بنوسُلَیم د دوی په خدمت کښ حاضر شو او دا اَرزو ئے ښکاره کړهٔ چه څهٔ ستاسو په خدمت کښ اوسیدل غوارم. چه ستاسو د فیوضاتو نه فائده حاصله کړم. څهٔ به د څروُنکی مدد کوُمه. او ستاسو برکاتو نه به فائدهٔ هم حاصلوُمه. حضرت ابوذر رضی الله عنه ارشاد اُوفرمایهٔ چه څما دوست هغه دے چه څما حُکم مَنِی. که چرے ته څما حکم منلو ته تیار ئے نو په شوق سره اوسه. کهٔ خبره نهٔ منے نو ستا ضرورت نشته. سُلَیمی صاحب عرض اُوکړهٔ چه په څهٔ څیز کښ تاسو خپل اطاعت غواړئ؟ وِرے فرمایل چه کله څهٔ د خپل مال نه د څهٔ خرچ کوُلو حُکم اُوکړم نو ښهٔ نه ښهٔ مال دِ خرچ کړے شی. هغه وائی چه ما قبوله کړهٔ. او ورسره ډیره شوم. اتفاقاً یوه ورځ دوی ته چا اُووئیل چه اُوبو باندے څهٔ خلق اُوسی. ضرورتمند دی، د خوراک مُحتاج دی. ماته ئے اُوفرمایل، یو اُوښ راوُله. څهٔ لاړم ما اُولیدل چه یو ډیر ښهٔ، ډیر قیمتی، ډیر په کار راتلونکے او سورلئ کښ فرمانبرداره اُوښ دے. ما د وعدے موافق د هغهٔ د بوتلو اراده اُوکړهٔ. خو خیال مِ اُوکړهٔ چه غریبانانو باندے خوړل خو دی، او دا اُوښ ډیر زیات په کار راتلونکے دے. د حضرت او د هغهٔ د مُتعلقینو د ضرورت دے. هغه مِ پرېښودهٔ. د هغهٔ نه لږ د کمے درجے ښهٔ اُوښه چه د هغې اُوښ نه علاوه باقی

دنورو ټولونه بهتره وه ما واخستله. خدمت کښې حاضر شوم. ورته فرمایل چه تا خیانت اُوکړه. څهٔ پوهه شوم او واپس راغلم. هم هغه اُوښ مې بوتلو. ورسره ناسته کسانو ته یې اُوفرمایل. دوه سړي داسې شته چه د الله تعالیٰ د پاره یو کار اُوکړي. دوه سړي راپاسیدل خپل ځان یې پیش کړو. وې فرمایل، دا ذبح کړئ او ذبح کولو نه پس یې غوښه پریکړئ. څو مره کورونه چه اُو بو بانډه آباد دي هغه شمار کړئ. د ابوذر یعنی زما کور هم د هغوی نه یو شمار کړئ. او ټولو بانډې برابره تقسیم کړئ. زما کورته هم هغومره لاړه شي څومره چه په هغوی کښې هر یو کس ته ځي. هغوی هم دغسې اُوکړل او تقسیم یې کړه. دے نه پس یې ځهٔ رااُوبللم وې فرمایل چه تا زما وصیت د بنهٔ مال خرچ کولو په قصد سره پریخودهٔ، یا درته هیره شوې وه؟ که چرې درنه هیره شوې وو نو معذوره یې. ما عرض اُوکړهٔ چه هیر شوې راته نه وو. ما په اول کښې هم هغه اُوښ اخستلے وو. خو ما ته خیال راغے چه دا دیر په کار راتلونکے دے. تاسو ته اکثر د دے ضرورت وی. صِرف د دے وجے نه مې پریخودے وو. وې فرمایل چه صرف زما د ضرورت د پاره دې پریخودے وو. عرض مې اُوکړهٔ چه صرف ستاسو د ضرورت د پاره مې پریخودے وو. وې فرمایل چه د خپل ضرورت ورځ درته اُوښایم؟ زما د ضرورت ورځ هغه ده، کومه ورځ چه ځهٔ د قبر په کنده کښې یواځې واچولے شم. دغه ورځ زما د ضرورت او د حاجت ده. مال کښې درې حصه داران دی. یو تقدیر چه د مال په اوړلو کښې د هیڅ څیز انتظار نه کوی. بنهٔ او بد هر قسمه اُوړی. دوئیم وارث چه د دے په انتظار کښې دے چه ته مړ شې نو هغه یې واخلي. او دریم حصه دار ته په خپله یې. که چرې کیدے شي او ستا په وس کښې وی نو د درے وارو حصه دارانو کښې د ټولونه زیات عاجزهٔ جوړیږه. د الله تعالیٰ ارشاد دے. لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ (د آلِ عمران) په دے وجه چه کوم مال ما ته د ټولو نه زیات خوښ وو، هغه ځهٔ د خپل ځان د پاره مخکښې اُولیږم چه هغه زما د پاره جمع شي. (د ر منثور)

**فائده:-** درے وارو حصه دارانو کښې د ټولونه زیات عاجزهٔ جوړیږئ

مطلب دادے چه څهٔ کیدے شی خپل ځان دپاره داخرت ذخیره جمع کړه. داسے نهٔ وی چه مقدر غالب شی او هغه مال دړنه ضائع شی. یا ته مړشے او هغه دنورو په قبضه کښ راشی چه رُستو څوك دچاتپوس نهٔ کوی. اَل اولاد ښځه بچی ټول به لږ ورځے دِ یوے وَرځے اُوژاړی بیا به چُپ شی. داسے (خلق) ډیرکم وی چه دمړی دپاره هُم څهٔ صدقه خیرات اُوکړی. او هغه یادکړی.

یوحدیث کښ دنبی ﷺ ارشاد راغلے دے، بنیادم وائی څما مال، څما مال. حال دادے، دده مال صِرف هغه دے کوم یے چه اُوخوړ او ختم یے کړهٔ. یا یے واغوستهٔ او زوړ یے کړهٔ. یا دالله تعالیٰ په لارکښ یے خرچ کړو او خپل ځان دپاره یے خزانه کښ جمع کړهٔ. دے نه علاوه هرڅهٔ چه دی هغه دنورو مال دے، دخلقو دپاره یے جمع کوی. یوحدیث کښ راغلی دی چه نبی ﷺ پوښتنه اُوکړه. تاسوکښ داسے څوك دے چه هغهٔ ته دخپل وارث مال دخپل مال نه زیات خوښ وی. صحابو عرض اُوکړهٔ، اے دالله رسوله! داسے به څوك وی چه هغهٔ ته دنورو مال دخپل مال نه زیات خوښ وی. نبی ﷺ اُوفرمایل چه خپل مال صرف هغه دے چه مخکښ اُولیږلے شی. او کوم چه پریخودے شی هغه دوارث مال دے. (مشکوٰة)

## (۱۱) دحضرت جعفر رضی الله عنه قِصه

حضرت جعفر طیّار رضی الله عنه دنبی اکرم ﷺ دتره خوئے او دحضرت علی رضی الله عنه حقیقی رُور وو. اول خو دا توله کورنئ او خاندان بلکه اَل اَولاد یے سخاوت کَرم، شجاعت، بهادری کښ مُمتاز (اُوچت) وُو او دی. خو حضرت جعفر رضی الله عنه به مِسکینانو سره خاص تعلق ساتلو او زیاته ناسته پاسته به یے غریبانو سره وه. دکافرانو د تکلیف نه تنګ شونو اول یے دحبشے هجرت اُوکړهٔ. کافران ورپسے هلته هم لاړل نو دنجاشی په دربار کښ یے خپله صفائی پیش کړه. چه دهغے قصه داول باب لسم نمبرکښ تیره شوه. دهغه ځائی نه والپسی راندے یے دمدینے منورے هجرت اُوکړهٔ. او دمُوته غزا کښ شهید شو.

چه د هغې قصه د راتلونکي باب په ختم باندې راځي. د دهٔ د وفات په خبر نبي صلى الله عليه وسلم د دهٔ کور ته غم رازړي د پاره تشريف يوړهٔ او د دهٔ ځامن عبد الله او عون او محمد يې را اوغوښتل. دوی ټول کم عمره وو. د دوی په سرونو يې لاس راښکلو او د برکت دُعا يې ورته اوکړه. په ټولو کښې د پلار رنګ ډېر واضح وو خو عبد الله کښې د سخاوت صفت ډېر زيات وو. په دې وجه د دهٔ لقب قُطبُ السُّمَحَاءِ د سخاوت قُطب وو. دا اووهٔ کالو په عمر کښې يې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ته بَيعَت يعني لاس نيوه اُوکړه. چا دا عبد الله بن جعفر رضي الله عنه حضرت علي کرم الله وجهه ته سفارشي بوتلو. د دهٔ په سفارش د هغهٔ کار اُوشو. بيا هغه کس د ننداراني په طور څلوېښت زره روپۍ دهٔ ته رااُوليږلې. دوی واپس کړې چه مونږ خلق خپله نيکي نهٔ خرڅوو. يو وارې چرته نه درې زره روپۍ نکدرانه کښې راغلې. هم هغه مجلس کښې يې تقسيم کړې. يو سوداګر ډېره شکره راوړه خو بازار کښې خرڅه نهٔ شوه. هغهٔ سره فکر او غم شو. عبد الله بن جعفر رضي الله عنه خپل کارکونکو ته اُووې چه ټوله شکره د دهٔ نه په بيعه واخلئ او په خلقو کښې يې مفته تقسيم کړئ. د شپې به قبيله کښې څوک ميلمه راتلو، هغهٔ به د دهٔ د کوره خوراک څښاک هر قسمه ضرورتونه پوره کول. (اِصابه)

حضرت زبير رضي الله عنه يو جنګ کښې شريک وو. يوه ورځ خپل ځوي عبد الله ته يې وصيت اُوکړهٔ چه ځما خيال دا دې چه نن به ځهٔ شهيد کيږم. ته ځما قرض ادا کړه او فلانې فلانې کار اُوکړه. دا وصيتونه يې اُوکړل. هم هغه ورځ شهيد شو. ځوي يې د قرض حساب اُولګوو نو دوه لکهه روپۍ وې. او دغه پرې دا رنګې شوې وه چه ډېر امانتدار مشهور وو. خلقو به خپل خپل امانتونه ډېر زيات ورسره ايښودل. دهٔ به ورته اُفرمايل چه د ايښودو ځائ خو اُسره نشته، دا رقم د په ما قرض دې. کله چه تا ته ضرورت شي، نو آخلهٔ به يې ورته اُووې، هغه مال به يې صدقه کړو. او دا يې هم وصيت کړې چه کله ځهٔ مشکل پېښ شي نو ځما مولي ته وايه. عبد الله رضي الله عنه وائي چه زهٔ په مولي پوهه نهٔ شوم. ما ترې تپوس اُوکړهٔ چه ستاسو مولي څوک دې؟

وې فرمايل الله تعالىٰ. دغسې حضرت عبد الله رضي الله عنه ټوله قرضه ادا کړه. دا ئې چه کله به څۀ تکليف پيښ شو ما به وې، اے د زبير مولىٰ! فلانے کار ته کيږي هغه به فوراً اوشو. دا عبد الله بن زبير رضي الله عنه فرمائي چه ما يو ځلې عبد الله بن جعفر رضي الله عنه ته اُووې چه څما د پلار د قرضې په فهرست کښې ستا سو په ذمه لس لکهه روپئي دي. وې فرمايل چه کله د خوښه وي واخله. دے نه پس معلومه شوه چه ما نه غلطي شوې وه. څۀ دوباره لاړم ورته م اُووې چه هغه خو ستا سو د هغۀ په ذمه دي. وې فرمايل چه ما معافي کړې. ما ورته اُووې چه معاف کول نۀ غواړم. وې فرمايل (ښه دا) چه کله تا ته اسانه وي نو ادا کړه ما اُووې چه د دے بدله کښې زمکه واخله. د غنيمت په مال کښې ډيره زمکه راغلې ده. عبد الله بن جعفر رضي الله عنه اُو فرمايل ښه ده. ما يوه زمکه هغۀ ته ورکړه چه د معمولي حيثيت وه. اُو به وغيره هم په هغې کښې نۀ وې. هغوی فوراً قبوله کړه او غلام ته يې اُووې چه په هغې زمکه کښې جائے نماز اُوغوړوه. هغۀ جائے نماز اُوغوړوو. دوه رکعته مونځ يې اُوکړه او ډير ساعته پورې سجده کښې پروت وو. د مانځه نه چه فارغ شو. غلام ته يې اُووې چه دا ځائې اُوکنوه هغۀ کنستل شروع کړل. دا اُوبۀ يې چينې د هغې ځائې نه جوش اُووهه. (اسد الغابه)

**فائده**:- د دے حضراتو صحابه کرامو رضي الله عنهم سره دا او د دے قسمه خيز ونه کوم چه په دے باب کښې ليکلې شوي دي، څۀ لويه خبره نۀ وه. د دے حضراتو عام عادتونه هم داسې وُو.

# اُووم باب

## بهادري، زړۀ ورتوب او د مرګ شوق

(د مرګ د شوق) لازمي نتيجه بهادري ده. چه کله سړے د دنيا او دانړې نو بيا هر څۀ کولے شي. ټوله بزدلي، سوچ فکر د ژوند د پاره وي. او کله چه

دمرګ شوق پیدا شي نو نه د مال محبت پاتے کیږي، نه د دشمن ویره. ارمان! چې ما ته هم د دے ربښتنو په طفیل دا دولت نصیب شي.

## ① د حضرت ابن جحش او د حضرت سعد رضی اللہ عنہما دعا

حضرت عبد الله بن جحش رضی اللہ عنہ په غزوۂ احد کښ حضرت سعد بن ابي وقاص رضی اللہ عنہ ته اُووے چه اے سعده! راځه، چه په جمع دعا اُوکړو. هرکس د خپل ضرورت موافق دعا اُوکړي، دویم دیرے آمین وائي چه د اقبلیدو ته زیاته نزدے ده. دواړه حضرات یوګوټ ته لاړل، دعاګانے اُوکړه. اول حضرت سعد رضی اللہ عنہ دعا اُوکړه. یا الله! کله چه صبا ته جنګ وي نو زما په مقابله کښ یو لوئ بهادر راولے چه سخته حمله کوونکے وي. هغه په ما سخته حمله اُوکړي او زه هم په هغه زوردار حمله اُوکړم. بیا ما ته په هغه فتح نصیب کړے چه هغه زه ستا په لار کښ قتل کړم او غنیمت ئے حاصل کړم. حضرت عبد الله رضی اللہ عنہ پرے آمین اُووے. د دے نه پس حضرت عبد الله رضی اللہ عنہ دعا اُوکړه. یا الله! صبا په میدان کښ یو بهادر سره زما مقابله اُوکړے چه سخت حمله کوونکے وي. زه په هغه سخته حمله اُوکړم او هغه هم په ما زبردسته حمله اُوکړي. او بیا هغه ما شهید کړي. بیا زما پوزه غوږونه پرے کړي. بیا قیامت کښ چه کله ستا په حضور کښ پیشي اُوشي نو ته اُووایے چه اے عبد الله! ستا پوزه غوږونه ولے پرے کړے شو؟ زه عرض اُوکړم. یا الله! ستا او ستا د رسول صلی اللہ علیہ وسلم په لاره کښ پرے کړے شو. حضرت سعد رضی اللہ عنہ پرے آمین اُووے. دویمه ورځ جنګ اُوشو. د دواړو حضراتو دعاګانے هم هغسے قبولے شوے چه څنګه ئے غوښتے وے. (خمیس) سعد رضی اللہ عنہ وائي چه د عبد الله بن جحش رضی اللہ عنہ دعا زما د دعا نه بهتره وه. ما بیګاه اُولیدل چه د هغه پوزه غوږونه په یو تار کښ پیلي شوے وو. د احد په جنګ کښ د ده توره هم ماته شوے وه. نبي علیہ السلام ورته یوه څانګه ورکړه چه د ده په لاس کښ توره جوړه شوه او دیرے مودے پورے ئے ستو هم نغه ئرنګے وه چه بیا په دوه سوه دیناره خرڅه شوه. (اصابه) دینار

دسرو زرو دیوے سکے تۀ نوم دے.

**فائده:**۔ دے قِصه کښې چه یَو خوا کمالِ بهادری ده چه د بهادر دُشمن سره دمُقابلے آرزو او شوق دے. هلته بل خوا کمالِ عِشق هم دے چه دمحبوبِ په لار کښې دبدن ټکړے ټکړے کیدلو تمنا کوی او آخر کښې چه کله هغه تیوس اوکړی چه داټول ولے اُوشو، نو ځه عرض اُوکړم چه ستا د پاره. ےـ

رہیگا کوئی تو تیغِ ستم کے یادگاروں میں + مرے لاشے کے ٹکڑے دفن کرنا سو مزاروں میں

"چرته یوه ټکړه خو به د ظلم د تورے د نښے په طور پاتے شی. ځما د وجود ټکړے سلوقبرونو کښې دفن کړه".

## ② داُحُد جنګ کښې دحضرت علی رضی اللہ عنہ بهادری

غزوهٔ اُحُد کښې مُسلمانانو ته څۀ شِکست شوے وو. چه دهغے لویه وجه دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم په یو ارشاد عمل نۀ کول وُو چه دهغے ذکر د اول باب دویمه قصه کښې تیر شوے دے. دغه وخت مُسلمانان دڅلورواړه طرفه دکافرانو په مینځ کښې راغلل چه په دے وجه ډیر خلق شهیدان شول او څۀ اُوتختیدل نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم هم دکافرانو د یَو ے ډلے په مینځ کښې راغے او کافرانو دا مشهوره کړے وه چه نبی صلی اللہ علیہ وسلم شهید شو. صحابه رضی اللہ عنہم په دے خبر ډیر پریشانه شول او په دے وجه ډیر اُوتختیدل. حضرت علی کرم اللہ وجہہ فرمائی چه هرکله کافرانو مُسلمانان کیر کړل او نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ځما د نظر نه پناه شو. نو ما اول نبی علیہ السلام په ژوندو کښې تلاش کړۀ اُو م نۀ مُوندۀ. بیا م شهیدانو کښې تلاش کړۀ. هلته م هم بیا نۀ مُوندۀ. نو خپل زړۀ کښې م اُووے چه دا خو کیدے نشی چه نبی علیہ السلام د جنګ نه تختیدلے وی. دلے معلومیږی چه الله جل شانهٗ ځمونږ دعملونو په وجه په مونږ باندے ناراضه شو ځکه یے خپل پاک رسول صلی اللہ علیہ وسلم اسمان ته اُوچت کړۀ. اُوس د دے نه بهتر بل څۀ علاج نشته چه څۀ هم توره واخلم او دکافرانو په ډله کښې ننوزم. تر دے چه شهید شم. ما توره واخسته حمله م اُوکړه تر دے چه کافران د مینځ نه اخوا شو.

اوځما نظر په نبي اکرم ﷺ پرېوت نو ډېر زيات خوشحاله شوم. او ځکه پوهه شوم چه الله جل شانهٗ د ملائکو په ذريعه د خپل محبوب ﷺ حفاظت اُوکړه. ځکه لاړم نبي ﷺ سره اُودرېدم چه ډلے په ډلے د کافرانو په نبي ﷺ د حملو پاره راتلے. نبي ﷺ اُوفرمائيل، اے علي! دوی مَنع کړه. ما يواځے د هغې ډلے مُقابله اُوکړه. او د هغوی نه مې وارَوَو او بعضے مې قتل کړل. دے نه پس يوه بله ډله نبي ﷺ باندے د حملے په نيت رامخکښ شوه. نبي ﷺ بيا حضرتِ علي رضي الله عنه طرف ته اشاره اُوفرمائيله. هغوی بيا په يواځے تن د هغې مُقابله اُوکړه. دے نه پس حضرت جبرئيل عليه السلام راغے او د حضرتِ علي رضي الله عنه د دے بهادرئ او د همت تعريف ئے اُوکړه نو نبي ﷺ اُوفرمائيل. اِنَّهٗ مِنِّيْ وَ اَنَا مِنْهُ. "بيشکه علي ځما نه دے او ځه د علي نه يم." يعني کامل اتحاد طرف ته ئے اشاره اُوفرمائيله. نو حضرت جبرئيل عليه السلام عرض اُوکړو. وَاَنَا مِنْكُمَا چه ځه ستاسو د دواړو نه يم. (قرة العيون)

**فَائِدَه:**۔ د ايکی يواځے سړی ديو ډلے سره مُقابله کول او د نبي اکرم ﷺ مُقدّس ذات ته ځوندل، د شهادت په نيت د کافرانو په ټولګی کښې ورننوتل، که يو طرف ته د نبي ﷺ سره د رښتنی محبت او عِشق پته ورکوی نو بل طرف ته د کمالِ بهادرئ، دليرئ او زړه ورتوب نقشه هم ده.

## ③ د حضرتِ حَنظَلَه رضي الله عنه شهادَت

غَزوَهٔ اُحد کښې حضرتِ حَنظَلَه رضي الله عنه د اول نه شريک نهٔ وو. وائی چه د ده نوے وادهٔ شوے وو. د ښځے بی بی سره يو ځائ شوے وو. دے نه پس ئے د غُسل تيارې کوله او د غُسل د پاره ناست هم وو. سړي ئے وښخلو چه يو دم ئے د مسلمانانو د شکست آواز په غوږ کښې پرېوت. چه د هغې طاقت ئے اُونهٔ لرلے شو. هم په دے حالت کښې ئے توره په لاس کښې واخِسته او د جنګ ميدان ته وَرَاندے شو. او په کافرانو ئے حمله اُوکړه او برابر په وَړاندے روان وو. چه هم په دے حالت کښې شهيد شو. چونکه شهيد که چرے جنابت کښې نهٔ

وی نو بغیر غُسل ورکولو دفن کړی شی. نو ده سره یې هم رغسے اُوکړه. خو نبی اکرم ﷺ اُولیده چه ملائکې ده ته غُسل ورکوی. نبی ﷺ صحابو ته دملائکو دغُسل ورکولو حال اُووے. ابُو سَعید سَاعِدِی رضی الله عنه فرمائی چه ما د نبی ﷺ دا اِرشاد واورېده نو لاړم حَنظله م اُوکتلو. نو دهغهٔ دسر نه دغُسل اُوبه څځیدے. نبی اکرم ﷺ د اُحد نه په واپسی کښې تحقیق اُوفرمایه نو بغیر غُسله دتلو قِصه ورته معلومه شوه. (ایضًا)

**فائده:-** داهم کاسله بهادری ده. بهادر سړی ته په خپله اراده کښې تاخیر کول گران وی. په دے وجه یې دومره انتظار هم اُونهٔ کړه چه غُسل یې پوره کړے وے.

## ④ دحضرت عَمرو بن جَمُوح رضی الله عنه دشهادت ارزو

حضرت عَمرو بن جَمُوح رضی الله عنه په پښه گډ وو. څلور ځامن یې وو چه اکثر به د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر وو او جنگونو کښې به شریکیدل. غزوهٔ اُحد کښې عَمرو بن جَمُوح رضی الله عنه ته هم داشوق پیدا شو چه څهٔ هم لاړ شم. خلقو ورته اُووے چه ته مَعذُور یې. ډگډ والی په وجه درته تلل گران دی. ده ورته اُوفرمایل چه دا څومره بده خبره ده چه ځما ځامن خو جنت ته لاړ شی او څهٔ دپاتے شم. بی بی یې هم دتیارولو دپاره ورته دپیغور په طور اُووے چه څهٔ وینم چه ته دجنگ نه راغټید لے بیرته راغلے یې. عَمرو رضی الله عنه چه دا واوریدل، وَسله یې واخسته او قبلے طرف ته یې مخ کړو، دُعا یې اُوکړه. اَللّٰهُمَّ لَا تَرُدَّنِي اِلٰى اَهْلِى. (اے الله! ما دے خپل اهل ته واپس رامهٔ وَلے) دے نه پس د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او دخپل قوم منع کولو او دخپل خواهش اظهار یې اُوکړه. او دا یې اُووے چه څهٔ امید کوم چه په دخپله گډه پښه جنت کښې اُوگرزم. نبی ﷺ اُوفرمایل چه الله تعالی ته مَعذُور کړے یې نو په نهٔ تلو کښې څه نقصان دے؟ ده بیا خپل خواهش او شوق ښکاره کړه نو نبی ﷺ اجازت ورکړه. ابُو طَلحه رضی الله عنه فرمائی چه ما عَمرو

په جنګ کښې اُولیدهٔ چه سینه وليستلے نيغ روان وو. آو ويل یے چه په الله تعالیٰ م دِ قسم وی چه څهٔ دجنت شوقين يم ـ ددهٔ يو ځوئ هم دهٔ پسے په منډه تلو. دواړو جنګیدل، تردے چه دواړهٔ شهيدان شول. ددهٔ بی بی دخپل خاوند او ځوئ لاشونه په اوښ واچول. د دفن کولو دپاره يے مدينے ته راوړل نو هغه اوښ کیناستو. په ډير تکلیف یے په وهلو پاسوو او مدينے ته د راوستو کوشش يے اوکړهٔ خو هغه اوښ په اُحُد طرف ته مخ کولو. ددهٔ بی بی نبی ﷺ ته ذکر اُوکړهٔ. نبی ﷺ ورته اُوفرمايل چه اوښ ته هم دا حکم دے یا عمرو دکور نه دتلو په وخت کښې څهٔ ویلی وو؟ هغه عرض اُوکړهٔ چه قبلے طرف ته يے مخ کړو، دا دُعا يے ويلے وه. اَللّٰهُمَّ لَا تَرُدَّنِیْ اِلٰی اَهْلِیْ. نبی ﷺ اُوفرمايل هم په دے وجه اوښ کور طرف ته نه ځی. (خمیس)

**فائدهٔ**:- ددے نوم دے دجنت شوق او هم دا دے هغه رښتنی عشق دالله تعالیٰ او دهغهٔ درسول ﷺ چه دد ے وجه صحابه رضی الله عنهم دکوم ځائ نه کوم ځائ ته اُورسيدل. چه دهغوی جذبے د مرګ نه پس به هم هغسے وو. ډير کوشش يے اُوکړهٔ چه اوښ مدينے ته لاړشی خو بيا به هغه کیناسته یا به اُحد طرف ته روانیدهٔ.

## ⑤ دحضرت مُصْعَبْ بن عُمَيْر رضی الله عنه شهادت

حضرت مُصْعَبْ بن عُمَيْر رضی الله عنه د اِسلام راوړلونه مخکښے ډير په ناز پالے شوے وو. او د مالدار وهلکانو نه وو. ددهٔ پلار به دهٔ دپاره دووه دووه سوه دِرهمو جوړه اخِسته، ورته به يے اغوستوله. دنوی عمر ځلمے وو ډير په ناز او نعمت کښې لوئے شوے وو. د اِسلام شروع زمانه کښې د کور دخلقو نه په پټه مسلمان شو او په دے حالت کښې اُورسیدهٔ چه چا دهٔ کور والو ته خبر ورکړهٔ. هغوی دے اُوتړهٔ. قيد يے کړهٔ. څهٔ ورځے په دے حالت کښې تيرے کړے او کله يے چه موقع بيا موندهٔ. نو په پټه اُوتختیدهٔ او کومو خلقو چه حبشے ته هجرت کولو. هغوی سره يے هجرت

اُوکړهٔ او لاړو۔ دهغه ځائ نه چه واپس راغے نو مدینے مُنوّرے ته یے هجرت
اُوکړهٔ۔ دزهد او دغریبئ ژوند یے تیرَوَلو او داسے د تنګسیا حالت یے وو چه
یو ځلے نبی اکرم ﷺ تشریف فرما وو۔ حضرت مُصْعَبْ رضی الله عنه یے مخکښې تیر
شو۔ دهٔ سره صرف یو څادر وو چه ځائ په ځائ شلیدلے وو۔ او یو ځائ پکښې
په ځائ دکپړے دځرمنے پیوَند لګیدلے وو۔ نبی اکرم ﷺ دده دے موجوده
حالت او دهغه رُومبی حالت ذکر اُوکړهٔ، سترګے مبارکے یے د اُوښکو نه ډکے
شوے۔ غزوهٔ اُحُد کښې دمُهاجرینو جهنډا دده په لاس کښې وه۔ کله چه
مُسلمانان دپریشانئ په حالت کښې خوارهٔ وارهٔ شو۔ نو دے کلک ولاړ وو
یَو کافر دهٔ خواله راغے او په تُوره یے ترے لاس پریکړو چه جهنډه ترے
پریوزی او مُسلمانانو ته ګویا ښکاره شکست اُوشی۔ دهٔ زربل لاس کښې جهنډا
واخسته۔ هغه کافر ترے بل لاس هم پریکړو۔ دهٔ دواړه مټے راغونډے کړے
او سینے سره یے جهنډا اُونغښوله چه پریوُنهٔ زی۔ هغهٔ دے په غشی اُوویشتهٔ
چه په دے سره شهید شو خو په ژوند یے جهنډه پریوتو ته پرے نخوده۔ دے
نه پس جهنډا پریوته۔ چه زربل کس اُوچته کړه۔ هرکله چه دهٔ د دفن کولو
وار راغے نو صرف یَو څادر ورسره وو چه په ټول بدن یے نهٔ راتلو۔ کهٔ سَر
به یے پټولو نو پښے به نے ښکاریدے او کهٔ په پښو به یے کولو، نو سَر
به یے ښکاریدهٔ نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه څادر دِ د سَر له خوا کړے شی او
په پښو دِ ورله سرکړے واچولے شی۔ (قره۔ اصابه)

**فائده:۔** دا اخری ژوند دے، دهغه نازک او په نازسره رپالے شوی
چه دده اُو سَوْو درهَمُو جوړه به یے اَغوستله چه نن هغهٔ ته دکفن یو څادر
هم پوره نهٔ ملاویږی او په دے یے همّت دادے چه په ژوند یے جهنډا پریوتو
ته پرے نخوده۔ دواړه لاسونه یے پریکړے شُو خو بیا یے هُم پرے نخوده۔ دیر
په نازپالے شوے وو خو ایمان دد ے خلقو په زړونو کښې څهٔ دارنګے مضبوط
شوے وو چه بیا به دے ایمان دغه کس دځان نه سوا هیڅ یو څیز ته نهٔ
پریخودهٔ۔ رَوپئ پیسے، راحت او آرام دهر قِسمه څیز نه یے لرے کړے وو۔

اوخپل ځان به یې د ایمان محنت کښې لګولو.

## (۶) د قادِسیه په جنګ کښې د حضرت سَعد رضی الله عنه خط

د عراق د جنګ په وخت د حضرت عُمر رضی الله عنه اراده په خپله جنګ کښې د شرکت کولو وه. عامو او خاصو دواړه قسمه خلقو سره ئې ورځو پورې د یکښې مشوره کیده له چه د حضرت عُمر رضی الله عنه په خپله شریکیدل زیات مُناسب دی یا مدینه کښې پاتې شي او د لښکرو روانولو انتظام زیات مُناسب دے. د عوامو رائے وه چه په خپله شرکت مُناسب دے. او د خواصو رائے وه چه دویم شکل زیات بهتر دے. د مشورو په خبرو کښې د حضرت سَعد بن اَبی وقاص رضی الله عنه ذکر هم راغے. د ے تولو خوښ کړو. که چرے دے اولیږلے شي نو ډیر مُناسب دے. بیا د حضرت عُمر رضی الله عنه د تلو ضرورت نشته. حضرت سَعد رضی الله عنه لوئی بهادر د عرب و زمرو کښې شمارلے شو. لنډه دا چه هم د ده تجویز اوشو. او دے اولیږلے شو. کله چه په قادِسیه کښې د پارہ اورسیده نوشاه کسری د ده مُقابلے د پاره رُستم چه مشهور پهلوان وو، مُقرر کړے وو. رُستم خپل پوره کوشش اوکړو او بادشاه ته یې بار بار درخواست اوکړو چه ما خپل ځان سره اوساته. ویره پرے غالبه وه خوښکاره کولے یې دا چه ځه به د دے ځای نه د لښکر لیږلو او صلاح مشوره کښې مدد درکوم. خو بادشاه چه د هغهٔ نوم یزدجرد وو، قبوله نهٔ کړه او د مجبورئ نه په جنګ کښې شریک شو. (اشهر)

حضرت سَعد رضی الله عنه چه کله روانیدهٔ نو حضرت عُمر رضی الله عنه ده ته وصیت وفرمایهٔ چه د هغهٔ د الفاظو مُختصره ترجمه دا ده "سَعد ه! تا دِ دا خبره په دهوکه کښې نهٔ اچوی چه ته د نبی صلی الله علیه وسلم ماما بللے شے او د هغهٔ صحابی یې. الله تعالیٰ بدِی په بدئ سره نهٔ ورانوی بلکه بدی په نیکئ سره ورانوی. د الله تعالیٰ او د بندګانو ترمینځه هیځ خپلولی نشته. د هغهٔ په نزد صرف د ده بندګی قوله ده. د الله تعالیٰ په نزد شریف رَذیل ټول برابر دی. ټول د هغهٔ بندګان دی. هغه د ټولو رَب دے. د هغهٔ انعامات په بندګئ سره حاصلیږی

هر یو کار کښې هغه څیز کوره چه کومه د نبی علیه السلام طریقه وه، هم هغه دعمل څیز دے. ځما دا نصیحت یاد ساته. ته یو ډیر لوی کار د پاره لیږلے شے چه دهغې نه خلاصے صرف د حق په تابعدارئ سره کیدے شی د ځپل ځان او د ځپلو ملګرو د نیکئ عادت جوړ کړه. د الله تعالیٰ خوف اختیار کړه. او د الله تعالیٰ خوف دوه څیزو کښې جمع کیږی. د هغهٔ په اطاعت کښې او د ګناه نه پرهیز کولو کښې. او د الله تعالیٰ اطاعت چه چاته نصیب شوے دے، دُنیا سره د بُغض او د آخرت په محبت سره نصیب شوے دے.'' (اشهر)

دے نه پس حضرت سعد رضی الله عنه ډیر په خوشحالئ سره لښکر واخست روان شو چه دهغې اندازه د دے خط نه کیږی کوم چه هغهٔ رُستم ته لیکلے دے. په هغې کښې لیکی. فَاِنَّ مَعِیَ قَوْمًا یُّحِبُّوْنَ الْمَوْتَ کَمَا یُحِبُّوْنَ الْاَعَاجِمُ الْخَمْرَ "بیشکه ما سره داسے قوم دے چه مرګ داسے خوښوی څنګه چه تاسو شراب څکل خوښوئ. (تفسیر عزیزی اول)

**فائده**:- دشرابو عاشقانو نه تپوس اوکړئ چه په دیکښې څهٔ مزه ده. کوم خلق چه مرګ داسے محبوب ګڼړی کامیابی به ولے دهغوی قدمونه نهٔ ښکلوی.

## ۷ د حضرت وَهب بن قابُوس رضی الله عنه اُحد کښې شهادت

حضرت وَهب بن قابُوس رضی الله عنه یو صحابی دے چه څهٔ وخت کښې مُسلمان شوے وو. او بانډه کښې په یو کور کښې اوسیدهٔ. چیلئ به یے څروُلے. خپل وراره سره یے چیلئ په یو پړی کښې اوتړلے، مدینے منورے ته اُورسیدهٔ تپوس یے اوکړهٔ چه نبی علیه السلام چرته دے. معلوم شوه چه د اُحد جنګ ته تلے دے. چیلئ یے هلته پریخودے، نبی علیه السلام ته ورغے. دیکښې یوه ډله د کافرانو حمله کوُنکے راغله. نبی علیه السلام اُوفرمایل چه څوک دوی خوارهٔ وارهٔ کړی هغه به جنت کښې ځما ملګرے وی. حضرت وَهب رضی الله عنه په زوره توره چلول شروع کړل. او ټول یے لرے کړل. دویم وارے بیا هم دا حالت پیښ شو. دریم وارے بیا هم داسے اُوشو. نبی علیه السلام دهٔ ته د جنت خوشخبری ورکړه. دے او دیکښې

سره ئے تُوره واخسته، دکافرانو په کنړه کښې ننوتۀ او شهید شو۔
حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی چه ما د وهب رضی الله عنه په شان زړه ور او بهادری د هیچا نه ده لیدلې۔ شهید کید و نه پس نبی علیه السلام ما اولیده چه د وهب سر طرف ته ولاړ وو، ارشاد ئے فرمایۀ چه الله تعالیٰ دِ لتا نه راضی شی څۀ لتا نه راضی یم۔ دے نه پس نبی علیه السلام خپله په خپل لاس مبارك دفن کړو۔ سره د دے چه په دے جنګ کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپله هم زخمی شوے وو۔ حضرت عمر رضی الله عنه به فرمایل چه څۀ د چا عمل نه دومره نۀ یم بښخیدلے خومره چه د وهب رضی الله عنه عمل ته اُوبښخیدم۔ څۀ زړۀ غواړی چه الله تعالیٰ ته د دۀ په شان عمل نامه واخلم اُورسم۔ (اصابه۔ قره)

**فائده**:- دۀ بانده پښخیدل د هغۀ خاص کارنامے په وجه وو۔ چه ځان ته ئے ځان اُونۀ وشیلو۔ کنی خپله حضرت عمر رضی الله عنه او د نورو حضراتو نورے کارنامے د دے نه ډیرے زیاتے دی۔

## ⑧ د بیرِ معونه جنګ

د بیرِ معونه یو مشهور جنګ دے چه په دے کښې د اویا وُ صحابو رضی الله عنهم یو لوئی جماعت پوره په پوره شهید شو۔ چه هغوی ته به قُرّاء (قاریان) ویلے شو۔ ځکه چه ټول حضرات د قرآن مجید حافظان وو۔ او سِوا د یو څو مهاجرینو نه اکثر انصار وو۔ د نبی علیه السلام د وی سره ډیر محبت وو۔ ولے چه دے حضراتو به د شپے اکثره حصه ذکر او تلاوت کښې تیروله او د ورځے به ئے د نبی علیه السلام د بیبیانو د کورونو ضروریات لرګی، اُوبۀ وغیره پوره کول۔ دا مقبول جماعت د نجد اُوسیدونکی د بنی عامر د قوم یو کس چه د هغۀ نوم عامر بن مالك او کنیت ئے ابوبراء وو، خپل ځان سره په خپله پناه کښې د تبلیغ او وعظ په نامه بوتلی وُو۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ورته ارشاد هم فرمایلے وو چه ما ته ویره ده چه چرته ځما اصحابو ته ضرر اُونۀ رسی۔ خو دغے کس ډیره ډیره ئے ورته تسلی ورکړه۔ نبی علیه السلام د اویا صحابه ورسره کړل۔ او یو خط ئے د

عامر بن طفیل په نامه چه د بنی عامر رئیس وو، اُولیکهٔ چه په هغې کښې د اِسلام دعوت وو. دا حضرات د مدینې نه رُخصت شو. بیرِ معُونه ته اُورسیدل، نو ایسارشو او دوه ملګری، یو حضرت عَمرو بنِ اُمیّه دویم حضرت مُنذر بن عَمرو د تهولو اُوښان واخستل د څرولو دپاره لاړل. او حضرت حَرام رضی الله عنه د خپلو ملګرو نه دوه حضرات خپل ځان سره واخستل، عامر بن طفیل ته د نبی علیه السلام خط ورکولو دپاره ئې تشریف یوړه. چه نزدې اُورسیدل، حضرت حَرام رضی الله عنه خپلو دواړو ملګرو ته اُووې چه تاسو دلته اُودریږئ څهٔ مخکښ ورځم، که چرې ما سره څهٔ دهوکه اُونهٔ شوه نو تاسو هُم راشئ کنی د دې ځائې نه واپس شئ چه د دریو د مرګ کیدلو نه د یَو مرکیدل بهتر دی. عامر بن طفیل د دې عامر بن مالک وراره وو، چا چه دا صحابه رضی الله عنهم ځان سره راوستلی وو. د عامر بن طفیل د اِسلام او د مسلمانانو سره سخته دُشمنی وه. حضرت حَرام رضی الله عنه چه خط ورکړهٔ نو دهٔ د غصې نه اُدوا اُونهٔ لوستهٔ بلکه حضرت حَرام رضی الله عنه یې داسې په نیزه اُووههٔ چه پورې راپورې ترې اُووتله. حضرت حَرام رضی الله عنه فُزْتُ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ (د کعبې په رب م دِ قسم وی څهٔ کامیاب شوم) اُووې په حق اُورسیدهٔ. دهٔ د دې هم پرواه اُونهٔ کړه چه د قاصِد وژل د هیڅ یو قوم په نزد جائز نهٔ دی. اُونهٔ یې د دې لحاظ اُوکړهٔ چه حما ترهٔ دا حضرات په خپله پناه کښې راوستی دی. د حضرت حَرام رضی الله عنه شهید کولو نه پس دهٔ خپل قوم راجمع کړو او په دې یې تیار کړهٔ چه په دې مسلمانانو کښې یو هُم ژوندے پرے نږدئ. خو دغه خلق د ابُوبَرَاء د پناه په وجه تیار نهٔ شو. نو دهٔ د خواؤشا نه خلق راجمع کړل او د ډیرې لوئې ډلې سره یې د دې اُویا صحابو مقابله اُوکړه. دے حضرات تو بیه آخر ترګومے پورے مقابله کوله. او خلور واړه طرفونه په کافرانو کښې ګیر وُو سوا د یو کعب بن زید رضی الله عنه نه چه په هغهٔ کښې څهٔ د ژوند ساه باقي وه او د کافرانو د مرګتږې پریښودلے وُو، باقي ټول شهیدان شو. حضرت مُنذر او حضرت عَمرو بن اُمیه رضی الله عنهما کوم چه اُوښانو څرولو له تلی وُو. هغوی آسمان طرف ته

اوکتل نو مُردار خوارهٔ ځناور اُلوتل. دواړو حضراتو دا اووے واپس شول چه ضرور څه حادثه پیښه شوے ده. دلته چه راغلل وے لیدل چه خپل ملګري ې شهیدان وُو. او سوارهٔ د وینو ډکو تورو سره دهغوی نه ګیرچاپیره ګرځي. د احالت چه ې اُولیدهٔ، دواړو حضراتو خپل مینځ کښ مشوره اوکړه چه څه کول پکار دي. عمر بن اُمیه رضی اللہ عنہ اووے څه چه واپس لاړ شو، نبی صلی اللہ علیہ وسلم باخبر ورکړو. خو مُنذِر رضی اللہ عنہ جواب ورکړو چه خبر خو به ورته هسے هم اوشي. زهٔ خو زړهٔ نهٔ منی چه شهادت پریږدم او د ے ځائی نه لاړ شم کوم ځائی چه ځونږ دوستان اُوده پراته دی. مخکښ ورځه او ملګرو سره یوځائی شه. نو دواړه مخکښ شو او میدان ته ې اُودانګل. حضرت مُنذِر رضی اللہ عنہ شهید شو او حضرت عمر بن اُمیه رضی اللہ عنہ ګرفتار شو. خو چونکه دعامر د مور په ذمه دغهٔ نذر په سلسله کښ د یو غلام ازادول وُو، په دې وجه عامر دے په هغے نذر کښ ازاد کړو.

دے حضراتو کښ د حضرت اَبُوبکر صدیق رضی اللہ عنہ غلام حضرت عامر بن فُهیره رضی اللہ عنہ هم وو. دهغهٔ قاتِل جبّار بن سلمیٰ وائی چه ما کله هغه په نیزه اووهه شهید شو. نو هغهٔ اووے فُزتُ وَاللهِ، په الله تعالیٰ مې دِ قسم وی څهٔ کامیاب شوم. دے نه پس ما اُولیدل چه دهغهٔ لاش اسمان ته والوتهٔ. څهٔ ډیر حیران شوم او ما رسُتو دخلقو نه تپوس اوکړهٔ چه ما خپله په نیزه اُووههٔ. هغه مړ شو خو بیا هم هغه وائی څهٔ کامیاب شوم. نو هغه کامیابی څهٔ وه؟ خلقو راته اُوفود له به هغه کامیابی د جنت وه. په دے څهٔ مُسلمان شوم. (خمیس)

**فائده**: دا هغه خلق دی کهٔ اسلام په دوی فخر کوی نو په ځائی دے. بیشکه مرګ دوی ته د شرابو نه زیات خوږ وو. او ولے به نهٔ وو چه په دُنیا کښ ې کارونه داسے کړي وو چه په هغے د الله تعالیٰ په نزد کامیابی یقینی وه. په دے وجه چه به څوک مړکیدهٔ هغه به کامیابیدهٔ.

## ⑨ د حضرت عُمیر رضی اللہ عنہ وینا چه کهجورے خوړل اوږد ژوند دے

غزوهٔ بدر کښ نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم یوه خیمه کښ تشریف فرما وو، صحابو رضی اللہ عنہم

ته یې ارشاد اُوفرمایهٔ، پاسئ او وَرُوُړاندې شئ دا سې جنت طرف ته چه د هغې پلنوَالې د اسمانونو او د زمکونه ډیر زیات دې او مُتقیانو دپاره جوړ شوې دې. حضرت عُمَیر بنِ الحُمَام رضی اللہ عنہ یو صحابی دې، هغهٔ هم واؤریدل وې ویل، وَاه وَاه. نبی صلی اللہ علیہ وسلم اُوفرمایل. دا وَاه وَاه دِ په کومه خبره اُووې. عرض یې اُوکړهٔ، اے د الله رسوله! څما دا اَرزُو ده چه څهٔ هم د هغوی نه وې. نبی صلی اللہ علیہ وسلم اُوفرمایل، تهٔ هُم د هغوی نه یې. دې نه پس یې د جولئ نه څو کهجورې راوُویستې خوړلے یې. بیا یې اُووې. د دې کهجورو د ختمیدو انتظار چه کوم څما لاس کښې دی (چه دا ختمومه) لوئ اُوږد ژوند دې تر څو به انتظار کوم. دا یې اُووې او هغه یې اُوغورزولے او توره یې راواخسته، په ګډوډه کښې ورودننه شو او تر شهیدېدو پورې جنګیدلو. (طبقات ابن سعد)

**فائده**:- حقیقت کښې هم دا خلق د جنت قدردان وُو او په هغې یقین ساتونکی. مونږ خلقو ته هم که چرې یقین نصیب شی نو تهولے خبرې په اسانئ شی.

## ⑩ د حضرت عُمَر رضی اللہ عنہ هِجرت

د حضرت عُمَر رضی اللہ عنہ په څهٔ ذکر کوې، بچې بچې د دهٔ د بهادرئ نه خبر او د شجاعت اقرار کونکے دې. د اِسلام په شروع کښې کله چه مُسلمانان د کمزورئ په حالت کښې وُو. نبی صلی اللہ علیہ وسلم په خپله د اِسلام د قوّت دپاره د عُمر رضی اللہ عنہ د مُسلمانیدو دُعا اُوکړه او قبوله شوه. حضرت عبدالله بنِ مَسعُود رضی اللہ عنہ فرمائی چه مونږ خلقو کعبې ته نزدې تر هغې وخته پورې مونځ نهٔ شو کولے تر څو چه عُمر رضی اللہ عنہ مُسلمان شوې نهٔ وو. حضرت علی رضی اللہ عنہ فرمائی چه اول اول به هر یو کَس هجرت په پټه کولو خو کله چه عُمر رضی اللہ عنہ د هجرت اراده اُوکړه نو توره یې په غاړه کښې واچوله لیندهٔ یې په لاس کښې واخسته او ډیر غشی یې څان سره واخستل. اُول جُمات ته لاړو، طواف یې په تسلئ سره اُوکړهٔ. بیا یې په ډیرې تسلئ سره مونځ اُوکړهٔ. دې نه پس د کافرانو مجلسونو ته وَرغلو او وې فرمایل. د چا چه دا زړهٔ غواړی چه مور یې پرې اُوژړیږی او ښځه یې کونډه شی او بچی یې

یتیمان شی. هغه دَ دمکے نه بهَر راوُزی ځما مُقابله دِ اُوکړی. دا یے جَد اجدا
دِ لوته واوُرَوُل، تشریف یے یوړهٔ. دهیچا هِمّت اُونهٔ شو چه وړاندے ورتے ورانشی

## ⑪ دغزوهٔ مُوتَه قِصَه

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم مختلف بادشاهانو ته تبلیغی دعوت نامے لیږلے وے. هغے
کښ یو خط دحضرت حَارِث بنِ عُمیر اَزدِی رضی الله عنه په لاس دبُصرٰی بادشاه
ته هم لیږلے وو. کله چه دے مُوتَه ته اُورسیدهٔ نو شُرَحبِیل غَسَّانی چه دَ
قَیصَر په حاکمانو کښ یو کَس وو، دے یے قتل کړهٔ. دقاصدانو قتل دهیچا
په نزد هم ښهٔ نهٔ دے. په نبی علیه الصلوٰة والسلام دا خبره گرانه شوه. دوی مُبارک ددریو
زَرو کسانو یو لښکر تجویز کړو. حضرت زَیدبنِ حَارِثَه رضی الله عنه یے پرے امیر جوړ کړو
او ارشاد یے اُوفرمایهٔ. کهٔ چرے دے شهید شی نو جعفربنِ اَبی طَالِبُ رضی الله عنه دِ
امیر جوړ کړے شی. کهٔ هغه هم شهید شی نو عبدالله بنِ رَوَاحَه رضی الله عنه به امیر وی.
کهٔ هغه هم شهید شی، بیا مسلمانان څوک چه یے زړهٔ غواړی امیر دِ جوړ کړی.
یو یهودی دا خبرے واوُریدلے، وے ویل. دا درے واړه به ضرور شهیدان
کیږی. دَ رومبنو اَنبیاؤ دے قِسمه خبرو به هَم دا مطلب وو. نبی اکرم
صلی الله علیه وسلم یوه سپینه جهنډه جوړه کړه او حضرت زید رضی الله عنه ته یے ورکړه. او پخپله
سَرهٔ د یو ے ډلے درے حضراتو دَ رُخصت کولو دپاره ورسره روان شو. دښهر
نه بهَر کله چه رُخصتوُنکی واپس کیدل نو دے مُجَاهدینو دپاره یے دُعا اُوکړله
چه الله جل شَانُهٔ دِ تاسو سلامتیا او کامیابئ سره واپس راولی او دهر قِسمه
بَدَئ نه مو دِ محفوظ اُوساتی. حضرت عبدالله بنِ رَوَاحَه رضی الله عنه درے په جواب
کښ درے شعرونه اُووے چه دهغے مطلب دا وو. "چه څهٔ خودخپل رَب نه
دگناهونو بخښنه غواړم او یو داسے تُوره وے چه په هغے سره ځما دوینو
فوَارے روانے شی. یا یو داسے نیزه وِے کومه چه کُلمے او اینهٔ اُوځیری ترے
اُوزی او کله چه خلق ځما په قبر تیریږی نو دا اُوائی چه الله تعالیٰ دِ تا غازی
رشید او کامیاب کړی. واقعی تهٔ خو رشید او کامیاب وے." دے نه پس دا

حضرات روان شو. شُرَحْبِیل ته هم ددوی د روانیدو خبر اُوشو. هغه سره دیولا کهٔ فوج دمقابلے دپاره تیار شو. دا حضرات چه مخکښ لاړل نو معلومه شوه چه پخپله هِرَقْل د رُوم بادشاه هم سره دیولا کهٔ فوج مُقابلے دپاره راروان دے. دا حضرات په دے خبر فکرمند شُو چه ددے دومره لوئے چلے مُقابله اُوکړے شی یا نبی کرَم ﷺ ته خبر ورکړے شی. حضرت عبدالله بن رَوَاحه رضی الله عنه په اُوچت آواز اُوفرمایل. اے خلقو! تاسو د کومے خبرے نه وَیریږئ. تاسو د کوم څیز په اِراده وَتلی یئ. ستاسو مقصود شهید کیدل دی. مونږ خلق هیڅ کله د قوّت او د سرو د ډیروالی په زور باندے نه یُو جنګیدلی. مونږ صِرف د هغه دین په وجه جنګیدلی یُو دَ کوم په وَجه چه الله تعالی مونږ ته عزت نصیب کړے دے. په مخکښ ځئ، د دوه وُکامیابو نه یوه خو ضروری ده. شهادت یا غلبه. دا چه مسلمانانو واوریدل. هِمّت یے اُوکړو او په مخکښ رَوان شو. آن تردے چه مُوتَه ته اُورسیدل. جنګ شروع شو. حضرت زَید رضی الله عنه جهنډه په لاس کښ واخِسته او میدان ته اُورسیدهٔ. زبردست جنګ شروع شو. د شُرَحبیل رور هم اُووَژلے شو او د هغهٔ ملګری اُوتختیدل. په خپله شُرَحبیل هم اُوتختیدهٔ. په یو قلعه کښ پټ شو. او هِرَقل ته یے د مدد دپاره سړے اُولیږهٔ هغهٔ تقریباً دوه لاکهه فوج را اُولیږهٔ او جنګ په ډیر زور شور سره کیدلو حضرت زید رضی الله عنه چه شهید شو. نو حضرت جَعْفَر رضی الله عنه جهنډا واخِسته او دخپل آس پښے یے پخپله پریکړے چه د واپسئ خیال په زړهٔ کښ رانشی. او څو اشعار یے اُوویل چه د هغے ترجمه دا ده " اے خلقو څومره ښهٔ څیز دے جَنت او څومره ښهٔ دی هغے ته نزدے کیدل، څومره ښکلے څیز دے او څومره یخے دی د هغے اُوبهٔ. او د مُلک رُوم په خلقو باندے دعذاب وخت راغے. ما لره هم پکار دی چه دوی اُووَژنم". دا اشعار یے اُوویے او د خپل آس پښے یے پخپله پریکړے وے چه د واپسئ خیال هُم په زړهٔ کښ رانشی، او تُوره یے واخِسته او د کافرانو په ګڼړه کښ وَرننوتهٔ.

دَاميرئ په وجه جهنډه هم دهٔ سره وه. اول يې جهنډه په ښي لاس کښې واخسته کافرانو ترې ښے لاس پرېکړو چه جهنډه پرېوزي. دهٔ زړبل لاس کښې واخسته هغوي ترے هغه هم پرېکړو. نودهٔ په دواړو متو سره هغه ټينګه کړه او په غَلهٔ يې کلکه اُونيوله. يو کس د رستو نه دهٔ دوه ټکړے کړے چه په هغے سره پرېوته. دغه وخت دهٔ عُمر درے ديرش کاله وو. حضرت عبد الله بن عمرؓ فرمائي چه مونږ رستو په مړو کښې حضرت جعفرؓ کله چه راأوچت کړو نو دهغهٔ دبدن په مخکښې حصه کښې لس کم شپېته زخمونه وو. کله چه دے شهيد شو نو خلقو عبد الله بن رواحهؓ ته اواز ورکړو هغهٔ دلښکر په يو اړخ دغوښے ټکړه خوړله چه درے ورځونه څهٔ خُکلو دپاره نهٔ وو ملاو شوے چه اواز يې واوريدهٔ دغوښے ټکړه يې اُوغورزوله. خپل ځان يې ملامته کړو چه جعفرؓ خو شهيد شي او ته د په دُنيا کښې مشغول يې. وړمخکښې شو جهنډه يې واخسته، جنګ يې شروع کړو. ګوته يې زخمي شوه، زور ورنه شوه نودهٔ په پښه هغه پرېکړے شوے ګوته اُونيوله. لاس يې راښکلو هغه جُدا شوه، ورې غورزوله. دے خونريز جنګ او د پريشانئ حالت کښې لږ غوندې فکرمند شو چه نهٔ همّت او نهٔ دمقابلے طاقت. خو دے فکرځه لږ ساعت تېر شوے وو چه خپل زړهٔ ته مخاطب شو. وې ويل اے زړه! دڅهٔ څيز د اوس شوق پاتے دے چه دهغے په وجه درته خطره ده. آيا دبي بي دے نو هغے ته درے طلاقه. يا دغلامانو دے نو هغه ټول آزاد. يا دباغ دے نو هغه دَ الله تعالیٰ په لاره کښې صدقه. دے نه پس يې يو څو شعرونه اُووے چه دَ هغے ترجمه داده. "قسم دِ وي اے زړهٔ! ته به ورکوزېږے. په خوشحالئ ورکوزيږے که په ناخوښئ ورکوزيږے. ستا د اطمينان ژوند تېرو لو نه زمانه تيره شوه. سوچ اُوکړه، آخر ته دمنئ يو څاڅکے يې. اُوګوره، کافران په مسلمانانو باندے پاره را روان دي. تا ته څهٔ اُوشو چه جنت نه خوښوې که چرے ته شهيد نهٔ شوے نو دغسے به هم آخر مرے. دے نه پس دَ آس نه راکوز شو. د تره ځوئ يې دغوښے يوه ټکړه راوړه چه لږ شان اُخوره.

ملانیغه کړه. د شوور خونه ډِځۀ نۀ دی خوړلی. دۀ ترے والخسته. په دېکښې یو اَرخ نه د حطے آواز راغے. هغه یے اوغوږ ږوله او ټوټه یے واخسته او کافرانو کښې ورننوته او تر شهید کیدو پورے یے ټوټه چلوله. (خمیس)

**فائده**:- د صحابه رضی الله عنهم د پوره ژوند هم دا نمونه ده. د هغوی هره یوه قصه د دُنیا د فانی کیدلو او د آخرت د شوق سبق ورکوی. د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم به څۀ تپوس کوے، په تابعینو هم دا رنګ ختلے وو. په یوه قصه دا باب ختمومه چه د هغے نه به د دُشمن سره د مقابلے نمونے خو تا سو لیدلے دی. اوس د حکومت مخکښې نظاره هم اووینئ.

## سَعِید بن جُبَیر رحمة الله علیه او د حَجّاج خبرے اترے

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے. اَفضَلُ الجِهَادِ کَلِمَةُ حَقٍّ عِندَ سُلطَانٍ جَائِرٍ. بهترین جهاد د ظالم بادشاه مخکښې حقه خبره ویل دی." د حجاج ظلم او ستم په دُنیا کښې مشهور دے اګرچه د هغه زمانے بادشاهانو سره د ظلم و ستم د دین د خوړلو کارونه هم کولو خو بیا به هم دیندارا او د عادل بادشاهانو په نسبت هغه بد ترین شمارلے شو. او په دے وجه خلق به د هغۀ نه بېزاره وُو. سَعِید بن جُبَیر رحمة الله علیه هم د ابنُ الاَشعَث رحمة الله علیه سره یو ځائی شو. د حجاج مُقابله یے اوکړه. حجاج د عبدُ المَلِک بن مَروَان له طرفه حاکم وو. سَعِید بن جُبَیر رحمة الله علیه مشهور تابعی دے. او د لویو عُلماؤ نه دے. حکومت او خصوصًا د حجاج د دۀ سره بُغض او دُشمنی وه. او چونکه مُقابله یے ور سره کړے وه. په دے وجه دُشمنی ساتل هُم ضروری وُو. په مُقابله کښې حجاج دے ګرفتار نۀ کړے شو. د دے د شکست نه پس په پټه مکے مکرمے ته لاړو. حکومت خپل یو خاص سړے د مکے حاکم جوړ کړۀ او پخوانی حاکم یے ځان ته راوغوختلو. دا نوے حاکم لاړو، خُطبه یے اوویله چه د هغې په آخر کښې یے د عبدُ المَلِک بن مروان بادشاه دا حکم واورولو چه چا سعید بن جُبیر ته پناه ورکړه د هغۀ خیر نشته. د دے نه پس د مخکښې حاکم پخپله د خپل

طرفه قسم اُوخوړ چه دحجاج به کوم کښې بيا مُوندے شو هغه به قتلولے شي او هغهٔ کور بلکه د هغهٔ د کاونډيانو کورونه به غورزَوُم. لنډه دا چه په ډير تکليف سره دمکے حاکم دے گرفتار کړه او حجاج ته يے اُوليږه. هغهٔ ته دَ غصے ايستلو او قتلولو موقع په لاس ورغله. خپل مخکښې يے را اُوغوختلو اوتپوس يے ترے اُوکړو.

حجاج:- ستا څهٔ نوم دے؟ سعيدؓ:- زما نوم سعيد دے. حجاج:- د چا زوئ يے؟ سعيدؓ:- دجُبَيرزوئ يم. (دسعيد ترجمه نيک بخت او دجُبَير معنیٰ اصلاح کړے شوے څيز) اگرچه نومونو کښې معنیٰ اکثر مقصود نهٔ وي خو حجاج ته د دوی نومونه د ښهٔ معنیٰ والاخوښ نهٔ شو. په دے وجه يے اُوويل نه، ته شقي بن کسير يے. (شقي وائي بد بخت ته او کسير مات شوی څيز ته) سعيدؓ:- زما مور زما نوم لتا نه ښهٔ پيژندهٔ. حجاج:- ته هم بد بخت او ستا مور هم بد بخته. سعيدؓ:- دغيبونه خبر ستا نه علاوه بله هستی ده. (يعنی علاّم الغيوب الله تعالیٰ دے) حجاج:- کوره اخوا اُوس تا اوژنم. سعيدؓ:- نو زما مور زما نوم ټهيک ايخے دے. حجاج:- اُوس څهٔ تا د ژوند په بدله څنګه دوزخ ته رسَوُم. سعيدؓ:- که چرے ما ته دا معلومه وے چه دا ستا په اختيار کښې دی نو تا به م معبُود جوړ کړے وے. حجاج:- د نبی اکرم ﷺ په نسبت ستا څهٔ عقيده ده؟ سعيدؓ:- هغه د رحمت نبی وو او د الله تعالیٰ رسُول وو چه په بهترين نصيحت سره ټول دُنيا طرف ته ليږلے شوے وُو. حجاج:- د خلفاؤ په نسبت ستا څهٔ خيال دے. سعيدؓ:- څهٔ د هغوی محافظ نهٔ يم هر څوک د خپلو کړو ذمه دار دے. حجاج:- څهٔ هغوی ته بد وايم که ښهٔ. سعيدؓ:- دکوم څيز چه ما ته عِلم نشته څهٔ به هغے کښې څهٔ ويلے شم. ما ته بس خپل حال معلوم دے. حجاج:- په دوی کښې د ټولو نه زيات خوښ ستا په نزد څوک دے. سعيدؓ:- چه د ټولو نه زيات زما د مالِک راضی کونکے وی. بعضے کتابونو کښې په ځائ د دے دا جواب دے چه د هغوی حالات بعضو لره په بعضو باندے ترجيح ورکوی. حجاج:- د ټولو نه زيات راضی کونکے

طرفه قسم اوخوړ چه دچا په کور کښ بیا مُوندے شو هغه به قتلولے شی او د هغه کور بلکه د هغه د کاونډیانو کورونه به غورزَوُم. لنډه دا چه په ډیر تکلیف سره د مکے حاکم دے گرفتار کړه او حجاج ته یے اولیږه. هغه ته دَ غصے اِیستلو او قتلولو موقع په لاس ورغله. خپل مخکښ یے را اوغوختلو او تپوس یے ترے اوکړو.

حجاج:- ستا څه نوم دے؟ سَعِیدؒ:- زما نوم سعید دے. حجاج:- د چا ځوئ یے؟ سعیدؒ:- د جُبَیر ځوئ یم. (د سعید ترجمه نیک بخت او د جبیر معنیٰ اصلاح کړے شوے څیز) اگرچه نومونو کښ معنیٰ اکثر مقصود نه وی خو حجاج ته د دوی نومونه د بنه معنیٰ والاخوښ نه شو. په دے وجه یے اووے ته، ته شَقِی بن کَسِیر یے. (شقی وائی بد بخت ته او کسیر مات شوی څیز ته) سعیدؒ:- زما مور زما نوم لتا نه بنه پیژندهٔ. حجاج:- ته هم بد بخت او ستا مور هم بد بخته. سعیدؒ:- د غیبونو خبر ستا نه علاوه بله هستی ده. (یعنی عَلَّامُ الْغُیُوبِ الله تعالیٰ دے) حجاج:- زه به تا اُوس تاوزنم. سعیدؒ:- نو زما مور زما نوم ټهیک ایخے دے. حجاج:- اُوس څه تا د ژوند په بدله څنګه دوزخ ته رسَوُم. سعیدؒ:- که چرے ما ته دا معلومه وے چه دا ستا په اختیار کښ دی نو تا به م معبُود جوړ کړے وے. حجاج:- د نبی اکرم ﷺ په نسبت ستا څه عقیده ده؟ سعیدؒ:- هغه د رحمت نبی وو او د الله تعالیٰ رسُول وو چه په بهترین نصیحت سره تولے دُنیا طرف ته لیږلے شوے وُو. حجاج:- د خلفاؤ په نسبت ستا څهٔ خیال دے. سعیدؒ:- زهٔ د هغوی محافظ نه یم هر څوک د خپلو کړو ذمه دار دے. حجاج:- زهٔ هغوی ته بد وایم که بنه. سعیدؒ:- د کوم څیز چه ما ته علم نشته زهٔ به هغے کښ څهٔ ویلے شم. ما ته بس خپل حال معلوم دے. حجاج:- په دوی کښ د ټولو نه زیات خوښ ستا په نزد څوک دے. سعیدؒ:- چه د ټولو نه زیات زما د مالِک راضی کوونکے وی. بعضے کتابونو کښ په ځائ د دے دا جواب دے چه د هغوی حالات بعضو لره په بعضو باندے ترجیح ورکوی. حجاج:- د ټولو نه زیات راضی کوونکے

څوك وو؟ سعيدؒ:۔ دا هغه څوك پيژنی چه د زړهٔ د رازونو او د پټو رازونو نه خبر دے۔ حجاج:۔ حضرت علی رضی الله عنه جنت کښ دے که دوزخ کښ؟ سعيدؒ:۔ څهٔ د دے نه کم يم چه په غيبو باندے خبردار کړے شم۔ حجاج:۔ ته ما سره د ريښتيا ويلو اراده نهٔ کوے۔ سعيدؒ:۔ ما دروغ هم نهٔ دی ويلی۔ حجاج:۔ تهٔ چرے خاندے ولے نهٔ؟ سعيدؒ:۔ څهٔ خبره د خندا وينم نهٔ او هغه څوك به څنګه اوخاندی؟ کوم چه د خاورے نه جوړ شوے وی او قيامت ته به ورتلل وی۔ او د دُنيا په فتنو کښ ورځ او شپه اوسی۔ حجاج:۔ څهٔ خو خاندم۔ سعيدؒ:۔ الله تعالیٰ دا سے په مختلفو طريقو کښ مونږ جوړ کړی يو۔ حجاج:۔ څهٔ تا وژنم۔ سعيدؒ:۔ څما د مرګ سبب پيدا کونکے د خپل کار نه فارغ شوے دے؟ حجاج څهٔ د الله تعالیٰ په نزد لتا نه زيات خوښ يم۔ سعيدؒ:۔ په الله تعالیٰ هيڅوك زړهٔ ورتيا نشی کولے ترڅو پورے چه خپله مرتبه معلومه نهٔ کړی او د غيبو نه خو بس الله تعالیٰ خبردار دے۔ حجاج:۔ څهٔ به ولے زړهٔ ورتيا نهٔ کوم حال دا چه څهٔ د جماعت بادشاه سره يم او تهٔ د باغيانو جماعت سره يے۔ سعيدؒ:۔ څهٔ جماعت نه بيل نهٔ يم۔ او فتنه پخپله نهٔ خوښوم او څهٔ چه په تقدير کښ دی هغه هيڅوك نشی لرے کولے۔ حجاج:۔ کوم څهٔ چه مونږ اميرالمؤمنين د پاره جمع کوو هغه ته څنګه ګنړے؟ سعيدؒ:۔ ما ته پته نشته چه څهٔ د جمع کړی دی۔ حجاج:۔ سرهٔ زر، سپين زر، کپړے وغيره يے راؤغوختلے او هغه يے مخکښ کيخودے۔ سعيدؒ:۔ دا ښهٔ څيزونه دی که چرے د خپل شرط موافق وی۔ حجاج:۔ شرط څهٔ دے؟ سعيدؒ:۔ دا چه ته په دے سره دا سے څيزونه واخلے چه د لوئ ويرے په ورځ يعنی د قيامت په ورځ امن پيدا کونکی وی۔ کنی هره پئی ځکونکے به پئی زړونکے هير کړی۔ او حمل په پريوزی او سړی ته به د ښهٔ څيزنه سوا هيڅ يو څيز کار نهٔ ورکوی۔ حجاج:۔ مونږ چه څهٔ جمع کړی دی ايا دا ښهٔ څيزونه نهٔ دی؟ سعيدؒ:۔ تا جمع کړی دی نو هُم ته د دے ښهٔ والے پيژندے شے۔ حجاج:۔ ايا ته د دے نه څهٔ څيز خپل ځان د پاره خوښوے۔

سعیدؒ :- څهٔ صرف هغه څیز خوښوم کوم چه الله تعالیٰ خوښوی. حجاج :-
دپاره د هلاکت وی. سعیدؒ :- هلاکت د هغې کس دپاره چه د جنت نه لرے
کړے شی او دوزخ کښ داخل کړے شی. حجاج :- (پریشانه شوے) اُو ښایه،
چه تا په کومه طریقه قتل کړم؟ سعیدؒ :- په کومه طریقه قتلیدل چه د ځان
دپاره خوښ وی. حجاج :- آیا تا معاف کړم؟ سعیدؒ :- معافی د الله تعالیٰ په نزد
معافی ده. ستا معاف کول هیڅ څیز نهٔ دے. حجاج جلاد ته حکم وکړهٔ چه
دے قتل کړه. سعیدؒ بهر ته راووتے شو او وے خندل. حجاج ته د دے
خبر ورکړے شو. بیا یے را اوغوختلو او تپوس یے ترے اوکړو. حجاج :- تا ولے
خندل؟ سعیدؒ :- ستا په الله تعالیٰ زړهٔ ورتیا او د الله تعالیٰ په تا صبر
کولو باندے. حجاج :- هغه څوک قتلوم چا چه د مسلمانانو جماعت کښ تفریق
پیدا کړے دے. بیا یے جلاد ته اُووے چه ما مخکښ د دهٔ سټ وا لوزوه. سعیدؒ :- څهٔ
دوه رکعته مونځ اُوکړم. مونځ یے اُوکړهٔ قبلے ته یے مخ کړهٔ. اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ
لِلَّذِیْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِیْفًا وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ دے اُووے یعنی
ما خپل مخ هغه پاک ذات طرف ته کړهٔ چا چه اسمانونه او زمکه جوړه کړه. او څهٔ
د ټولو طرفونو نه لرے شوم. او نهٔ یم څهٔ مشرکانو نه. حجاج :- د دهٔ مخ د قبلے
نه وا ړوئ او د نصارٰی قبلے طرف ته یے کړئ چه هغوی هم خپل دین کښ
تفریق اُوکړهٔ او اختلاف یے پیدا کړهٔ. نو زر د هغهٔ مخ وا ړولے شو. سعیدؒ :-
فَاَیْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ الْکَافِیْ بِالسَّرَائِرِ. کوم خوا ته مخ وا ړوئے هلته
هم الله تعالیٰ دے چه په رازونو پوهه دے. حجاج :- پړمخے یے وا چوئ (یعنی
زمکے طرف ته ورله مخ کړئ) مونږ په ظاهر باندے د عمل کولو ذمه دار یو.
سعیدؒ :- مِنْهَا خَلَقْنٰکُمْ وَفِیْهَا نُعِیْدُکُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُکُمْ تَارَةً اُخْرٰی (مونږ
ستاسو د زمکے نه تاسو پیدا کړئ او په دیکښ به بیا تاسو واپس کوو او د دے نه به
بیا دوباره را پاسوو. حجاج :- دے قتل کړئ. سعیدؒ :- څهٔ تا د دے خبرے
ګواه جوړوم. اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ
مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ. ته دا محفوظه سا ته کله چه څهٔ تا سره د قیامت

په وُرځ ملاوُشم نو درته به یې اخلم. د ے نه پس شهید کړے شو. اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ. د دهٔ د شهادت نه پس د بدن نه وِینه ډیره زیاته اُووتله چه په دے حجاج هم حیران شو. د خپل طبیب نه یې د دے سبب تپوس اُوکړهٔ. هغهٔ اُووے چه د دهٔ زړهٔ ډیر زیات په قلار وو او د قتل ذکر هم ډیره د دهٔ په زړهٔ کښ نهٔ وه. ځکه وِینه یې په خپل اصلی مقدار برقرار وه په خلاف د نورو خلقو چه د ویرے نه د هغوی وِینه د ړومبے نه اُوچه شی. (علمائے سلف کتاب الامامت والسیاست)

**فائدهٔ**:- د دے قصے په سوال وجواب کښ کتابُونو کښ کمے زیاتے هُم شته. نورهُم بعض سوال وجواب نقل کړے شوی دی. مونږ ته خو نمونه خودل وُو ځکه مو په دے بس کړه. د تابعینُو د دے قسمه قصے ډیرے زیاتے دی. اِمَامِ اَعْظَم، امام مَالِك، امام احمد بن حَنْبَل وغیره رَحِمَهُمُ اللهُ حضراتو د دے حقے وینا په وجه سختئ تیرے دی خو حق یې د لاسه نهٔ دے پریخودے.

# اتم باب

## دعِلم شوق او په هغے کښ مشغولیدل

چونکه اصل دین کلمهٔ توحید دے او هم دا د ټولو کمالاتو بنیاد دے. کله چه دا نهٔ وی نو هیڅ یو دخیر کار قبول نهٔ دے. ځکه د صحابه کرامو رضی الله عنهم قوّت خصوصاً شروع زمانه کښ د ټولو نه زیات د کلمهٔ توحید خورَولو، او د کافرانو سره جهاد کولو کښ خرڅ کیدهٔ او هغوی عِلم حاصلولو ته فارغ او مُتوجّه نهٔ وُو. خو د دے مشاغِلو با وجود هغوی دعِلم شوق او محبت او دهغے دحاصلولو فائدے چه نن شوارلس سوُوکالو پورے د قرآن او دحدیث د عُلوُمو د بقاء ذریعه ده، یو بنکاره شوے څیز دے. د اسلام د شروع زمانے نه پس چه د دے حضراتو ته څهٔ فراغت حاصل شو او دله یې هم درَنه شوه.

كلامُ الله ايت وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ
فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِي الدِّيْنِ وَلِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ اِذَا رَجَعُوْا
اِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ. (بيان القرآن) نازل شو چه دهغې ترجمه داده. مسلمانانو
ته نه دي پكار چه ټول په ټول اُوزي- پس داسې ولې اُونه كړې شي
چه د هرې يوې لوئ ډلې نه ډيو وړكوټې ډله ځي دپاره د دې چه
دا شوي خلق د دين پوهه حاصلوي او كله چه هغوي دې قوم ته
راشي، ورته يَرَوِي چه هغوي احتياط اُوساتي- (بيان القرآن) حضرت
عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائي- اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا او اِلَّا تَنْفِرُوْا
يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا دَ ته چه كوم عموم معلوميدو هغه مَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ
لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً منسوخ كړه- صحابه كرام رضي الله عنهم ته الله تعالىٰ جامعيّت وركړې
وو، هغه وخت دپاره دا څيز ډير ضروري وو چه هم دغې يو مختصر غونډ
جماعت د دين ټول كاروبار سنبهال كړي وو- خود تابعينو زمانه كښې كله
چه خورشو او د مسلمانانو لوئه ډله او جمعيّت جوړشو- بله دا چه
د صحابه كرامو په شان جامعيّت هم پاتې نه شو- نو د هرې يوې شعبې د دين
طرف ته توجه سره كاركونكي الله تعالىٰ پيدا كړه- د محدثينو مستقل جماعت
كار شروع شو چه د هغوي كار د احاديثو ضبط (انتظام) او د هغې خوړول
وو- فقهاء بيل جماعت شو- صوفيان، قاريان، مجاهدين غرض د دين د
هرې شعبې مستقل سنبهالونكي پيدا شو- د دغې وخت دپاره هم دا څيز
ډير ضروري وو- كه چرې دا طريقه نه وې- نو په هره يوه شعبه
كمال او ترقي گرانه وه- چه هر يو كس د ټولو څيزونو كښې پوره
كمال پيدا كړي- دا ډيره گرانه ده- دا صفت الله رب العزّت انبياء
عليهم الصلوٰة والسلام خصوصاً سيّد الانبياء عليه افضل الصلوٰة
والسلام ته وركړې وو- په دې وجه ډې باب كښې د صحابه كرامو
د دې نه علاوه د نورو حضراتو واقعات به هم ذكر كولې شي-

## ① د فتوے کارکوونکے ډلے فهرست

اگرچه صحابهٔ کرام رضی الله عنهم جهاد او اعلائے کلمة الله د مشغولئ سره سره تول علمی مشغولو کښ به هم هر وخت مشغول وو. د دے خورول او رسول هم دا دهغوی مشغله وه. خو یو جماعت فتوے سره هم مخصوص وو چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم زمانه کښ یے هم د فتوے کارکولو، هغه حضرات دا دی.

حضرت ابوبکر، حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علی، حضرت عبدالرحمن بن عوف، اُبی بن کعب، حضرت عبدالله بن مسعود، معاذ بن جبل، عمار بن یاسر، حذیفه، سلمان فارسی، زید بن ثابت، ابوموسیٰ، ابوالدرداء رضی الله عنهم. (تلقیح)

**فائده:-** دا د دے حضراتو د کمالِ علم خبره ده چه د نبی علیه السلام په موجودګئ کښ دا خلق اهلِ فتویٰ شمارولے شو.

## ② د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د حدیثونو مجموعے لره سوزول

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه زما پلار حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د پنځه سوو حدیثونو یوه مجموعه تیاره کړے وه. یوه شپه ما اُولیدل چه ډیر نا قلاره دے، ډېرے په ډېرے اوړی. ماچه دا حالت اُولیدهٔ پریشانه شوم. پوښتنه م ترے اُوکړه چه آیا څهٔ تکلیف دے یا څهٔ د فکر خبره دِ اوریدلے ده. لنډه دا چه ټوله شپه یے نا قلارتیا کښ تیره شوه او سحر یے اُوفرمایل چه هغه حدیثونه کوم چه ما تا څخه ایښی وو، راوالخله. ما راوړل. دوی هغه اُوسوزول. ما ترے تپوس اُوکړهٔ چه وَلے دِ اُوسوزول. ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه ما سره ویره شوه چه چرته داسے اُونشی چه څهٔ مرشم او دا ما سره وی. په دیکښ د نورو جوړشوی روایتونه هم دی چه ما معتبر ګڼړلی وی او په اصل کښ هغه معتبر نهٔ وی. او د هغهٔ په روایت کښ څهٔ ګړبړ وی چه د هغے وبال په ما راشی. (تذکرة الحفاظ)

**فائده:-** د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دا علمی کمال او محبت وو چه

هغوی د پخوسو حدیثونو یوه رساله جمع کړه او د دے نه پس هغه سوزول
د کمالِ احتیاط وو. د اکابرِ صحابه رضی الله عنهم د حدیث په باره کښ د احتیاط دا
حال وو. په دے وجه اکثر صحابه رضی الله عنهم نه ډیر کم روایتونه نقل کولے شی.
مونږ خلقو ته د دے واقعے نه د سبق اخستلو ضرورت دے. کوم چه په منبرونو
کښې بے احتیاطه حدیثونه نقل کوی. حال دا چه ابوبکر صدیق رضی الله عنه هر
وخت خدمت کښ حاضر، د سفر حضر (یعنی مقام) ملګرے، د هجرت ملګرے
وو. صحابه رضی الله عنهم وائی چه مونږ کښ لوئ عالِم ابوبکر رضی الله عنه وو. حضرت عمر
رضی الله عنه فرمائی چه د نبی صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس کله چه د بیعت قصه پیښه
شوه. حضرت ابوبکر رضی الله عنه تقریر اُوفرمایه. نو هیڅ یو ایت یا حدیث یے داسے
پرېښوده په کوم کښ چه د انصارو فضیلت راغلے وی او حضرت ابوبکر رضی الله عنه
په تقریر کښ نهٔ وی فرمایلے. د دے نه اندازه کیږی چه په قرآن کښ ورته
ومره پوهه حاصله وه او حدیثونه ورته څومره یاد وو. خو بیا هم ډیر کم
روایتونه د حدیث د دوی نه نقل دی. هم دا راز دے چه حضرت اِمامِ اعظم رحمه الله
هم د حدیث روایتونه ډیر کم نقل کړے شوی دی.

## د حضرتِ مُصعَب بن عُمَیر رضی الله عنه تبلیغ او دینی تعلیم خودل

مُصعَب بن عُمَیر رضی الله عنه چه د دهٔ قصه د اُووم باب پنځم نمبر باندے هم
شوے ده. دے نبی کرَم صلی الله علیه وسلم د مدینے مُنورے هغے جماعت سره کوم
تولو ته رُوهبے د مِنیٰ په دره کښ مُسلمان شوے وو، تعلیم او دین خودلو
لیږلے وو. دے به مدینه منوره کښ هر وخت تعلیم او تبلیغ کښ
ل وو. خلقو ته به یے قرآن شریف خودلو او د دین خبرے به یے ورته
ے. اَسعَد بن زُرارَه رضی الله عنه څخه به یے دیره وو. او مُقرِئُ (لوُلوَنکے مُدَرِّس)
په مشهور شوے وو. سَعد بن مُعَاذ او اُسَید بن حُضَیر د واړه سرداران وو
په دے خبره ناراضه شو. سَعد اُسَید ته اُووے چه ته اَسعَد ته ورشه
ته اُووایه چه مونږ دا اَوریدلی دی چه تا څوک مُسافران څخه

راوستے دے چه هغه څمونږ ناپوهه خلق بے وقوفان جوړوی او تیربا سوئے
هغه اسعد رضی الله عنه ته ورغے او ورسره یے په سختئ خبرے اُوکړے. اسعد رضی الله عنه
ورته اُووے چه ته د هغهٔ خبرے واوره. که چرے ستا خوښے شوے، قبولے
یے کړه. که د اوریدو نه پس دِ نا خوښے شوے نو د منع کولو بالکل نشته. اُسید
اُووے چه دا د انصاف خبره ده. خبرے یے واوریدے. حضرت مصعب رضی الله عنه
ورته د اسلام صفتونه واورول او د قرآن شریف آیتونه یے تلاوت کړه. اُسید
اُووے څومره ښے خبرے دی او څومره بهترین کلام دے. کله چه تاسو
خپل دین کښ څوک داخلوئ نو څنګه یے داخلوئ. هغهٔ ورته اُووے چه
غسل اُوکړه او پاکے جامے واغونده او کلمهٔ شهادت اُووایه. اُسید هغه
وخت ټول کارونه اُوکړل. او مسلمان شو. دے نه پس دِے سعد ته لاړو او
هغه یے هم خپل ځان سره راوستهٔ. هغهٔ سره هم خبرے اترے اُوشوے.
سعد بن معاذ هم مسلمان شو. او مسلمانید و سره خپل قوم بنو الاشهل ته
لاړو. او ورته یے اُووے چه څهٔ ستاسو خلقو په نظر کښ څنګه سړے یم.
هغوی اُووے چه مونږ کښ د ټولو نه غوره او بهتر یے. په دِے باندے
سعد رضی الله عنه اُووے چه څما ستاسو نارینو او زنانو سره خبرے حرام دی ترڅو
پورے چه تاسو مسلمانان شوی نهٔ یئ. او په محمد صلی الله علیه وسلم باندے ایمان رانهٔ وړئ
ددهٔ په دے وینا سره د قبیلهٔ اشهل ټول نارینه زنانه مسلمانان شول او حضرت
مصعب رضی الله عنه دوی ته هم تعلیم ورکولو کښ مشغول شو. (تلقیح)

**فائدهٔ**:- د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم دا عامه قاعده وه چه څوک به مسلمان شو
هغه به مستقل یو مبلّغ وو. او کومه خبره د اسلام چه به د ده ته ورتله ده څه
خوړول او نورو ته رسول د ده ډیوند یو مستقل کار وو چه په دیکښ به ورته
نه پټی ګاوټ وو، نهٔ تجارت، نهٔ پیشه، نهٔ ملازمت.

## ④ د حضرت اُبَیّ بن کعب رضی الله عنه تعلیم

حضرت اُبَیّ بن کعب رضی الله عنه مشهور صحابه او د مشهور قاریانو نه دے.

د اسلام راوړلو نه رُومبے لیکل لوستل ورته ورتلل. عربو کښې د لیکلو رواج
نه وو. د اسلام نه پس درے مشهورتیا اُوشوه. خو دِے رُومبے نه واقف وو.
نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې به حاضریدهٔ او وحی به یے هم لیکله. د قرآن
شریف لوئ ماهر وُو. او د هغه خلقونه وو کوم چه د نبی ﷺ په ژوند کښې
ټول قرآن شریف یاد کړے وو. د نبی ﷺ ارشاد دے چه ځما د اُمت لوئ قاری
اُبی بن کعب دے. تهجد وکښې اکثر شپو کښې د قرآنِ پاک د ختم کولو اهتمام به
یے کولو. یو وارے نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه الله جل شانه ما ته
فرمائیلی دی چه تا ته قرآن شریف واوروم. عرض یے اُوکړهٔ اے د الله رسوله!
الله تعالیٰ ځما نوم واخِستهٔ وِے فرمایل؟ نبی ﷺ اُوفرمایل: اَو، ستا نوم یے واخِستهٔ
وِے فرمایل. د ایے چه واوریدل د ډیر خوشحالیٰ نه په ژړا شو. ع

ذکر میرا مجھ سے بہتر ہے کہ اس محفل میں ہے۔

"یاد ځما ستا نه دے بهتر چه هغه مجلس کښې دے".

جُندب بن عبدالله رضی الله عنه وائی چه ځهٔ مدینے مُنوّرے ته علم حاصلولو
د پاره حاضر شوم. نو مسجدِ نبوی کښې حدیث لُولُونکی ګڼ حضرات وُو. او د
هغوی ګردانو حلقے جُدا جُدا هر اُستاد څخه موجود وے. ځهٔ په دے حلقو
کښې ګرځیدم شوم. یوے حلقے ته اُورسیدم چه په هغے کښې یو صاحب مُسافرانه شکل
صورت سره صرف دوه کپړے یے په بدن اچولے وے ناست وو حدیث یے
وئیل. ما د خلقو نه پوښتنه اُوکړه چه دا څوک بزرګ دے. وِے وئیل چه
د مُسلمانانو سردار اُبی بن کعب رضی الله عنه دے. ځهٔ د هغهٔ د دَرس په حلقه کښې
کښې ناستم. کله چه د حدیث نه فارغ شو او کور ته تلو. ځهٔ هم ورپسے رُوان
شوم... هلته چه لاړم اُودم لیدل، یو زوړ شان کور خراب تراب، ډیر معمولی
سامان، زاهدانه ژوند. (طبقات)

حضرت اُبی رضی الله عنه فرمائی چه یو وارے نبی کریم ﷺ ځما امتحان
اخِستهٔ) ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه قرآن شریف کښې د ټولو نه لوئ آیت
(یعنی برکت او د فضیلت په اعتبار سره) کوم دے؟ ما عرض اُوکړهٔ چه الله

او دهغهٔ رَسول صلی الله علیه وسلم بنهٔ پوهیږی. نبی علیه الصلوٰة والسلام بیا سوال اُوکړهٔ. ما ته اَدب مانع شو. بیا م هم هغه جواب ورکړهٔ. دریم وارے یے بیا ارشاد اُوفرمایلو ما عرض اُوکړهٔ، اٰیَةُ الکرسی. نبی علیه الصلوٰة والسلام خوشاله شو او وے فرمایل، الله تعالیٰ دِ تا ته ستا عِلم مُبارك کړی.

یو وارے نبی اکرم صلی الله علیه وسلم مونځ ورکولو. یو اٰیت ترے پاتے شو. حضرت اُبَیّ رضی الله عنه په ملغهٔ کښ فتحه ورکړه. نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه چا اَوخوړل حضرت اُبَیّ رضی الله عنه عرض اُوکړهٔ چه ما خودلے وو. نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ ځما هم داګمان وو چه تا به خودلے وی. (مسند احمد)

**فائده:-** دا حضرت اُبَیّ رضی الله عنه سره ددے عِلمی مُحبت او د قرآن شریف مخصوص خدماتو، نبی علیه الصلوٰة والسلام سره هره غزا کښ شریك شوے دے. د نبی علیه السلام یو جهاد هم داسے نهٔ وو چه دے په هغے کښ شریك شوے نهٔ وی.

## ⑤ د حضرت حُذَیفه رضی الله عنه د فتنو اهتمام

حضرت حُذَیفه رضی الله عنه مشهور و صحابو کښ دے. صَاحِبُ السِّرّ (رازدار) دده لَقَب دے. نبی کریم صلی الله علیه وسلم ده ته منافقینو او د فِتنو عِلم ده ته خودلے وو. وائی چه یو وارے نبی اکرم صلی الله علیه وسلم قیامته پورے چه څومره فتنے راتلونکے وے، ټولے یے نمبروار ورته خودلے وے. هیڅ یو داسے فتنه چه په هغے کښ د دریو سوو سړو په اندازه خلق شریک وی نبی علیه الصلوٰة والسلام پرینخوده. بلکه د هغے فتنے حال او د هغے د مُقتَدا یعنی امام حال سره د هغهٔ د نوم او د هغهٔ د مور نوم، د هغهٔ د پلار نوم، د هغهٔ د قبیلے نوم صَفا صَفا یے ورته خودلے وُو حضرت حُذَیفه رضی الله عنه فرمائی چه خلقو به د نبی علیه الصلوٰة والسلام نه د خیر د خبرو تپوس کولو او ما به د بدی د خبرو تپوس کولو چه د هغے نه ځان اُوساتلے شی. یو وارے ما پوښتنه اُوکړه. اے د الله رسوله! دا خیر او خوبی چه په هغے باندے نن صبا ستا سو په برکت سره مونږ. خلق یو. د دے نه پس هم څهٔ بدی راتلونکے ده؟ نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل آو. بدی راتلونکے ده. ما عرض اُوکړو چه

د دغې بدئ نه پس به بیا نیکي واپس راشي که نه. نبي ﷺ اُوفرمایل چه حذیفه! د الله تعالیٰ کلام لوله او د هغې په معنو غور کوه او د هغې د احکامو تابعداري کوه. (په ما فکر سور وو) عرض م اُوکړو. اے د الله رسوله! د غې بدئ نه پس به نیکي وي. نبي ﷺ اُوفرمایل. او. بیا به نیکي وي خو زړونه به داسے نه وي څنګه چه ړومبے وو. ما عرض اُوکړو. اے د الله رسوله! د دغې نیکئ نه پس به بیا بدي وي. نبي ﷺ اُوفرمایل. او. داسے خلق به پیدا شي چه خلق به ګمراه کوي او دوزخ طرف ته به یې بوزي. ما عرض اُوکړو. که چرے څوک دغه زمانه بیا مومي نو څه به کوم؟ نبي ﷺ اُوفرمایل که چرے د مسلمانانو یوه متحده ډله وي او د هغوی څوک بادشاه وي. نو د هغوی سره شه، ګنې د اتولے فرقے پریږده، یو ګټ کښې بیل کینه یا چرته د ونے په وبخ کښې لاړ شه کینه. او تر مرګه پورے هلته ناست اُوسه. چونکه ده ته د ټولو منافقانو حال نبي ﷺ خودلے وو په دے وجه حضرت عمر رضي الله عنه به د ده نه پوښتنه کوله چه څما په حاکمانو کښې څوک منافق خو نشته؟ یو وارے ده عرض اُوکړو چه یو منافق شته خو څه یې نوم نه ښایم. حضرت عمر رضي الله عنه هغه معزول (یعنی برطرفه) کړو. غالباً په خپل فراست (الٰهي پوهه) سره به یې پیژندلے وی. کله چه به څوک مړ شو نو حضرت عمر رضي الله عنه به تحقیق کولو چه حضرت حذیفه د هغه په جنازه کښې شریک دے که نه. که چرے حذیفه رضي الله عنه به شریک وو نو حضرت عمر رضي الله عنه به هم مونځ کولو. ګنې دوی به هم نه کولو. د حضرت حذیفه رضي الله عنه چه کله وفات کیدو. نو ډیر په ویره او ناقلارتیا کښې یې ژړل. خلقو ترے تپوس اُوکړو. ورے فرمایل چه د دنیا پاتے کیدو باندے نه ژاړم بلکه مرګ خو ځما خوښ دے البته په دے ژاړم چه ما ته معلومه نه ده چه ځه د الله تعالیٰ په ناراضتیا روان یم یا په رضا کښې. دے نه پس یې اُووے چه د اځما د دنیا آخري ساعت دے. اے الله تا ته معلومه ده چه ځما تا سره محبت دے. په دے وجه په خپل ملاقات کښې برکت راکړه. (ابوداؤد واسد الغابہ)

# ⑥ د حضرت ابُوهُریره رضی الله عنه د حدیثونو یادول

حضرت ابُوهُریره رضی الله عنه ډیر مشهور قدرمند صحابی دے او دومره ډیر حدیثونه د ده نه نقل دی چه د بل صحابی نه دومره زیات نقل شوی نهٔ دی. په دے به خلق حیران وُو چه په اووم هجری کښ (رغلو مسلمان) شو او په یولسم سنه هجری کښ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم وفات شوے دے. دومره لږه مُوده کښ چه تقریباً څلور کاله کیږی، دومره حدیثونه ورته څنګه یاد شُو. په خپله حضرت ابُوهُریره رضی الله عنه د دے وجه بیانوی. فرمائی چه خلق وائی چه ابُوهریره ډیر روایتونه نقل کوی. څما مُهاجر رُوڼړه تجارت پیشه وُو. بازار ته به ئے تلل راتلل وُو. او څما انصار رُوڼړو به د کر کیلے کار کولو. د امشغولیت ورته ګراندے وو. او ابُوهریرهؓ د اصحابِ صُفّه د مسکینانو نه یو مسکین وو چه د نبی کرم صلی الله علیه وسلم خدمت کښ به څهٔ د خوراك د پاره ورکړے شو، په هغے به ئے صبر کولو، پروت به وو. په داسے واقعاتو کښ به موجود وو چه په هغے کښ به هغوی نهٔ وو. او داسے څیزونه به ئے یادول چه هغه به هغوی یادولے نهٔ شو. یو ځل ما نبی علیه السلام ته د حافظے شکایت اُوکړو. هغوی مُبارك اُوفرمایل. څادر اغوروه ما څادر خور کړو. نبی علیه السلام په دوارو لاسونو سره په هغے کښ څهٔ اِشاره اُوکړه. دے نه پس ئے اُوفرمایل. دا څادر ځان سره یوځائے کړه. ما خپلے سینے سره پیوست کړو. ــ هغه نه پس هیڅ څیز را نه هیر نهٔ شو. (بخاری)

**فائده:-** اصحابِ صُفّه هغه خلق ویلے شی کوم چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم لکه د خانقاه اُوسیدونکی وو. د دے حضراتو د خرڅ خوراك څهٔ خاص انتظام نهٔ وو. دا به اُوا یُو چه د نبی علیه الصلوٰة والسلام میلمانه وُو. د کوم ځائے نه به چه څهٔ هدیه یا صدقه راتله، په هغے به د دوی ګذاره وه. حضرت ابُوهُریره رضی الله عنه هم د دے خلقو کښ وو. ډیر ځلے غوخو وخته نهرے به هم په دوی تیریدلے. بعضے وخت به ئے دلو د دے نه دلیونتوب په شان حالت شو.

څنګه چه د دریم باب په دریمه او اوومه قِصه کښې تیرشوی دی. خو سره د دې حدیثونه په کثرت سره یادَوَل دوی مَشغله وه. چه د دې په برکت نن د ټولو نه زیات حدیثونه د دهٔ خوږلے شي. اِبنِ جَوزِی رَحمة الله علیه تَلقیح کښې لیکلی دی چه پنځه زره درې سوه څلور اویا حدیثونه د دهٔ نه نقل دی یو ځلے حضرت اَبُوهُریره رضی الله عنه د جنازے مُتعلق یو حدیث بیان کړو. چه د نبی کرِیم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څوک د جنازے مونځ اُوکړي، واپس راشي. هغهٔ ته یو قِیراط ثواب ورکولے شي او چه څوک په دفن کښې شریک شي هغهٔ ته دوه قِیراطه ثواب ورکولے شي او د یو قیراط مقدار د اُحُد غرنه هم زیات دے. حضرت عبدالله بنِ عُمر رضی الله عنه ته په دے حدیث کښې څهٔ شک شو. وے فرمایل، اَبُوهُریرهٔ! په سوچ سره وایه. دے غُصه شو. سمدستی حضرت عائشے رضی الله عنها ته ورغے او عرض یے اُوکړو چه څهٔ تا ته قسم درکوم او تپوس کوم چه دا قِیراط والا حدیث تا د نبی علیه السلام نه آوریدلے دے؟ هغے اُوفرمایل او. اوریدلے مې دے. ابوهُریره رضی الله عنه اُوفرمایل چه ما ته د نبی علیه السلام په زمانه کښې نهٔ خو په باغ کښې وُنے لګول وُو او نهٔ بازار کښې مال خرڅول وُو څهٔ به د نبی علیه السلام په دربار کښې پروت وُم او بس دا مې کار وو چه څهٔ خبره د یادَولو په لاس راشي یا څهٔ خوراك راکړے شي. حضرت عبدالله بنِ عُمر رضی الله عنه اُوفرمایل، بیشکه ته څمونږ خلقو نه زیات حاضرباش وے او په حدیثونو زیات پوهیدونکے یے. (مُسندِ احمد) دے سره ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه څهٔ دولس زره ځله هره ورځ اِستغفار لولم. او یو مزے د هٔ سره وو چه په هغے کښې زرغوټے وے. د شپے به تر هغے وخته پورے نهٔ اُودهٔ کیدهٔ تر څو پورے چه به هغهٔ په سُبحَانَ الله سره پوره کړے نهٔ وے. (تذکره)

## ⑦ د مُسَیلِمَه کَذّاب قتل او د قرآن جمع کول

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس د مُسَیلِمَه کَذّاب (چه د نبی علیه السلام په موجودګئ کښې د نبوت دعوی کړے وه) اثر په زیاتیدو شو. او چونکه

عربو کښې مرتد کیدل په زور شور شروع شوے وو، په دے سره دے نور هم طاقتور شو. حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د ده سره جنګ اوکړه. الله تعالیٰ اسلام ته غلبه ورکړه او مسیلمه قتل شو. خو په دے جنګ کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین یو لوئی جماعت هم شهید شو. خصوصاً د قرآنِ پاک د حافظانو یوه لویه ډله شهیده شوه. حضرت عمر رضی الله عنه د امیر المؤمنین حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شو او عرض یے اوکړه چه د دے جنګ کښې قاریان ډیر شهیدان شول. که چرے دغه رنګے یو دوه جنګونو کښې نور شهیدان شی نو د قرآنِ پاک ډیره حصه د ضائع کیدو خطره ده. په دے وجه دا یو ځائی اولیکه چه محفوظ شی حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوفرمایل چه ته په داسے کار څنګه زړه ورتیا کوے چه هغه نبی کرم صلی الله علیه وسلم نه دے کړے. حضرت عمر رضی الله عنه په دے اصرار کولو. او د ضرورت اظهار یے کولو. په آخر کښې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه رائے هم ورسره برابره شوه. نو حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه (چه د هغه قصه یولسم باب قصه اتلسمه کښې راروانه ده) یے راوغوختلو. زید رضی الله عنه فرمائی چه څه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خدمت کښې حاضر شوم. نو حضرت عمر رضی الله عنه هم تشریف فرما وو. حضرت ابوبکر رضی الله عنه اول خپلے او د حضرت عمر رضی الله عنه تولے خبرے اترے بیان کړے. د دے نه پس یے ارشاد اوفرمائیلو چه ته ځوان او عقلمند یے. په تا باندے هیڅ قسمه بدګمانی نشته او د دے تولو خبرو نه علاوه دا چه په خپله د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم زمانه کښې هم ته وحی لیکو باندے پاتے شوے یے. په دے وجه دا کار هم ته اوکړه. د خلقو نه قرآنِ پاک راجمع کړه او یو ځائی یے نقل کړه. زید رضی الله عنه فرمائی چه په الله تعالیٰ م د قسم وی. که چرے ما ته یے دا حکم کړے وے چه فلانے اوتر ووه، د هغه ځائی نه یے د یو بل ځائی ته د بدل کړه نو دا حکم زما د پاره د قرآنِ پاک جمع کولو د حکم نه آسان وو. ما عرض اوکړه چه تاسو داسے کار څنګه کوئی کوم چه نبی صلی الله علیه وسلم نه دے کړے. د دغو حضراتو څه یو هو لمر. یو حدیث

کښې راغلې دی چه حضرت ابُوبکر صِدّیق رضی اللہ عنہ زَید رضی اللہ عنہ ته اُوفرمایل
که چرې ته دعُمر رضی اللہ عنہ ملګرتیا اُوکړې نو څهٔ به درې حُکم درکړم او
که نهٔ کوې نو بیا څهٔ هُم اراده نهٔ لرم - زید بن ثابت رضی اللہ عنہ وائی چه دیر
ساعت خبرو آترو نه پس الله جلّ شانهٔ څما هم دے طرف ته سینه پرانستله
چه قرانِ پاکؑ یو ځائ جمع کړے شی - ما دارشاد په تعمیل کښې خلقو څخه
کوم قرآن شریف جُدا جُدا لیکلے شوے وو او کوم چه ددے حضراتو صحابه کرامو
رضی اللہ عنہم په سینو کښې محفوظ وو، ټول م تلاش کړهٔ او راجمع م کړهٔ - (دُرّ)

**فائده** ۱- دے قِصه کښې اول خو ددے حضراتو دِ اتباع اهتمام
معلومیږی - چه دعُمر بهٔ لوُل دوی دپاره ددے نه آسان وُو چه څهٔ داسے
کار اُوکړے شی کوم چه نبی علیه الصلوٰة والسلام نهٔ وی کړے - دے نه پس دکلام پاکؑ جمع
کوُل، کوم چه ددین بنیاد دے، الله تعالیٰ ددے حضراتو په عملنامه کښې
ایخے وه - بیا حضرت زید رضی اللہ عنہ دومره اهتمام ددے په جمع کوُلو کښې
اُوکړهٔ چه هیڅ یو آیت به یے بغیر دلیکلو نهٔ اَخستو - (او هغه لیکل به یے اَخستهٔ
کوم چه دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم دزمانے لیکلی وُو، دهغے نه به یے جمع کوُلو - او د
حافِظانو دسینے سره به یے دهغے مُقابله کوُله او چونکه ټول قرآن شریف
جُدا جُدا ځایونو کښې لیکلے شوے وو - په دے وجه دهغے په تلاش کښې
اَګرکهٔ څهٔ محنت ضرور اُوکړے شو خو ټول بیا مُوندے شو - اُبَیّ بن کعب رضی اللہ عنہ
کوم ته چه پخپله نبی علیه الصلوٰة والسلام دقرانِ پاکؑ دټولو نه زیات پوهه فرمائیلے وو
د زید رضی اللہ عنہ به یے اِمداد کوُلو - دے محنت سره کلام الله شریف دځینو حضراتو
دټولو نه روسته جمع کړو -

## ⑧ دحضرت اِبنِ مسعُود رضی اللہ عنہ په روایت دحدیث کښې اِحتیاط

حضرت عبدالله بن مسعُود رضی اللہ عنہ ډیر مشهور صحابو نه وو - او په هغه
صحابو کښې شمار دے کوم چه دفتوے والا یعنی ذمه دار وُو - د اِسلام
په شروع کښې مُسلمان شوے وُو او دحبشے هجرت یے هُم کړے وو - ټولو

غزاگانو کښې نبي علیه السلام سره شریک وو. او خادم خاص کید وپه وجه، صَاحِبُ النَّعْلُ، صَاحِبُ الْوِسَادَةِ، صَاحِبُ الْمِطْهَرَةِ. یعنې پیزار والا، تکیه والا، د اودا سه اوبو والا. دا القاب هم دده دي ځکه چه د نبي اکرم ﷺ دا خدمتونه زیات دهٔ ته سپارلے شوي وو. د نبي علیه السلام دده باره کښې دا هم ارشاد دے. که چرے ځهٔ څوک بغیر مشورے امیر جوړ وم نو عبدالله بن مسعود به جوړ وم. د نبي علیه السلام دهٔ ته ارشاد وو چه تا ته هر وخت در اتلو اجازت دے د نبي علیه السلام دا هم ارشاد دے څوک چه قرآن شریف هغسے لوستل غواړي په کومه طریقه چه نازل شوے دے نو د عبدالله بن مسعود دَطریقے مطابق دِ لولي. د نبي علیه السلام دا هم ارشاد دے چه ابنِ مسعود کوم حدیث تاسو ته بیان کړي هغه ریښتیا گڼړئ. ابُومُوسیٰ اَشْعَرِي رضی الله عنه فرمائي چه مونږ خلق کله دَیَمن نه راغلو، نو ډیرے مودے پورے ابنِ مسعود رضی الله عنه مونږ د اَهْلِ بَیتو نه گڼړلو ځکه چه دومره زیات دهٔ او دده د مور د نبي علیه السلام په کور کښې تلل راتلل وو لکه څنګه چه د کور د بنیادم وي. (بخاري)

خو سره دے تولو خبرو اَبُوعَمْرو شَیْبَانِي رضی الله عنه فرمائي چه ځهٔ یو کاله پورے ابنِ مسعود رضی الله عنه څخه پاتے شوم. ما هیڅ کله هغه نبي کریم ﷺ ته د ځنے خبرے نسبت کونکے اُونهٔ لیدهٔ. که چرے به یے نبي علیه السلام ته د ځهٔ خبرے نسبت کولو نو په بدن به یے رپیدل راغلهٔ. عَمْرو بنِ مَیْمُون رضی الله عنه وائي چه ځهٔ د هر زیارت په ورځ یو کاله پورے ابنِ مسعود رضی الله عنه ته تلم راتلم. ما ترے هیڅ کله یو خبره نبي علیه السلام طرف ته نسبت کونکے نهٔ ده اُوریدلے. یو ځل یے حدیث بیانولو. په ژبه یے دا جاري شوه چه نبي علیه السلام دا ارشاد اُو فرمایهٔ نو بدن یے اُورپیدهٔ، په سترگو کښې اُوښکے راغلے، په تندي یے خوله راغله رگونه یے اُوپړسیدل او وے فرمایل. اِنْشَاءَالله هُم دلے فرمایلي وُو، یا دے نه نزدے دے په شان وُو، یا دے نه څهٔ زیات او یا دے نه څهٔ کم یے فرمائیلي وُو. (مقدمه او جزء مسند احمد)

**فائده** :- دا وو دے حضراتو صحابه کرامو رضی الله عنهم احتیاط د حدیث شریف

په باره کښې خکه چه د نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څوک زما له طرفه دروغ نقل کړي. (یکاردی چه) خپله ټیکاؤ دزه د دوزخ کښې جوړه کړي. دد ویرې نه دا حضرات سره ددے چه مسئلے به یے د نبی صلی الله علیه وسلم د ارشاداتو او حالاتو نه خودلے مخود ابه یے نه وِے چه د نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے. چه الله مکره دروغ رانه اونه زی. ددے په مقابله کښې مونږ خپل حالتونه اوګورو چه بے دریغه بے تحقیقه حدیثونه نقل کوو، ذره هم نه ویریږو. حال دا چه نبی صلی الله علیه وسلم طرف ته نسبت کولو کښې دخبرے نقل کول ډیره سخته ذمه داری ده. فقه حنفی هم دد عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه ډیره زیاته اخستلے شوے ده.

## ⑨ حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه ته صرف یو حدیث دپاره د مدینې نه دمشق ته ورتلل

کثیر بن قیس وائی چه څه حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه نه دمشق په جمات کښې ناست وم. یو کس دهغه په خدمت کښې راغے او وِے ویل چه څه د مدینې منورے نه دیو حدیث په وجه راغلے یم ما اوریدلی دی چه هغه تاسو نبی صلی الله علیه وسلم نه اوریدلے دے. ابو الدرداء رضی الله عنه ترے تپوس اوکړو. څه نور تجارتی کار خو دِ نهٔ وو؟ هغهٔ اووے نه. ابو الدرداء ترے بیا تپوس اوکړو چه څهٔ بل غرض خو دِ نهٔ وو؟ وِے ویل نه. صرف حدیث معلومولو دپاره راغلے یم. ابو الدرداء رضی الله عنه اوفرمایل چه ما د نبی صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی. چه څوک په یوه لاره دعلم حاصلولو دپاره ځی، الله تعالیٰ دهغهٔ دپاره د جنت لاره اسانوی او فرښتے خپلے وزرے د طالب علم د رضا دپاره غوړوی او د طالب العلم دپاره د اسمان او د زمکے اوسیدونکی استغفار کوی. تر دے پورے چه کبان چه په اوبو کښې اوسی، هغه هم استغفار کوی. او د عالم فضیلت په عابد دا سے دے لکه د سپوږمئ فضیلت په ټولو ستورو باندے. او علماء د انبیاؤ وارثان دی. انبیاء علیهم السلام څوک د دینار او د درهم وارث نهٔ جوړوی بلکه د علم وارث یے جوړوی. څوک چه علم حاصلوی هغه یو لوئ دولت حاصلوی. (ابن ماجه)

**فائده:** حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه فقهاؤ صحابه کښې دے. حکیم الامت

ورته وېلې شي. فرمائي چه د نبي ﷺ د نبوت په وخت کښې ما تجارت کولو ما د مسلمانېدو نه پس اُوغوختل چه تجارت او عبادت دواړه جمع کړم خو دواړه یو ځائې نه شو. نو تجارت مې پرېښودو. اوس خما زړه دا هم نه خوښوي چه بالکل د جمات دروازې پورې مې دُوکان وي چه یو مونځ را نه هم نه فوت کیږي او روزانه د څلوېښتو دینارو نفع وي. او ټوله هغه توله صدقه کوم. چا ترې تپوس اُوکړو په دا سې تجارت ولې خفه شوې چه مونځ درنه هم نه ځي او دومره ګټه روزانه د الله تعالیٰ په لار کښې لګوې. بیا هم نه خوښوې. وې فرمایل حساب خو به ورکول وي. اَبُوالدرداء رضی الله عنه دا هم فرمائي چه خما مرګ سره محبت دې د خپل مولیٰ سره د ملاقات په شوق کښې. او غریبۍ سره مې محبت دې د عاجزۍ د پاره او بیمارۍ سره مې محبت دې د ګناه وبخلو د پاره. (تذکره)

پورتنۍ قصه کښې دیو حدیث د پاره یې دومره اُوږد سفر کړې دې درې حضراتو په نزد حدیث حاصلولو د پاره سفر کول څه ګران نه وُو. ډېر یو حدیث اُوریدلو او معلومولو د پاره د لرې نه لرې سفر کول د دې حضراتو ته ډېر اسان وُو. شَعْبِي رحمة الله علیه یو مشهور مُحدِّث دې. د کوفې اُوسیدونکې دې یو ځل یې خپل شاګرد ته حدیث واورَوُو. او وې فرمایل چه واخله کور کښې په ناسته مُفت درته حاصل شو کنې د دې نه کم د پاره به هم د مدینې منورې سفر کولې شو ځکه چه په ابتداء کښې د حدیث خزانه مدینه مُنوَّره وه. علي محبت سا تونکو حضراتو لوئ لوئ اُوږده سفرونه دَ عِلم د پاره کړي دي. سَعید بن المُسَیَّب رحمة الله علیه چه یو مشهور تابعي دې فرمائي چه څه دیو یو حدیث د پاره څو څو شپې او ورځې پیدل تلې یم. اِمامُ الاَئِمَّه اِمام بُخاري رحمة الله علیه شوال ۱۹۴ھ کښې پیدا شو. ۲۰۵ھ کښې یعني یولسو کالو عُمر کښې یې حدیث لوستل شروع کړي وُو. د عبد الله بن مُبارک رحمة الله علیه ټول کتابونه یې په وړُوکوالي کښې یاد کړي وُو. په خپل ښهر کښې چه ورته څومره حدیثونه حاصلیدې شو، د هغې د حاصلولو نه پس یې ۲۱۶ھ

کښې سفر شروع کړه. پلار یې وفات شوے وو، یتیم وو، مور یې سفر کښې
ورسره وه. دے نه پس بلخ، بغداد، مکه مکرمه، بصره، کوفه، شام، عسقلان
حمص، دمشق دغو ښهرونو ته لاړو او هر ځائې چه کوم ه ذخیره د حدیثونو
ورته حاصلیدے شوه حاصله یې کړه. او دا سے هلکوالئ کښې د حدیث
اُستاذ جوړ شوے وو چه په مخ یې د بریرے وِښته هم نه وُو راخته. وائی
چه حماد الثلثو کالو عُمر وو چه ما د صحابه رضی الله عنهم او د تابعینو رحمهم الله فیصلے
نوم کتاب جوړ کړه. حاشد رحمة الله علیه او دده یو ملګرے وائی چه امام بخاری
رحمة الله علیه مونږ سره اُستاذ ته تلو. مونږه به لیکل کول او امام بخاری به د غسے
(بغیر لیکلو) واپس راتلو چه څو ورځے تیرے شوے مونږ ورته اُووے چه
ته هسے وخت ضائع کوے. د ېچپ شو. هرکله چه مونږ څو وارے اُووے
نو وے فرمایل چه تاسو خوځه تنګ کړم. راؤړئ تاسو څه لیکلی دی؟ مونږ
خپل راجمع کړے حدیثونه راؤویستل چه پنځلس زره حدیثونو نه زیات
مقدار کښې وُو. ده ټول په یاد واؤرول. مونږ ټول حق حیران پاتے شو.

## ⑩ د حضرت ابنِ عبّاس رضی الله عنه یو انصاری له ورتلل

حضرت عبد الله بن عبّاس رضی الله عنه فرمائی چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د وفات نه
پس ما یو انصاری ته اُووے چه نبی صلی الله علیه وسلم خو وفات شو. اُوسه پورے د صحابهٔ
کرامو رضی الله عنهم لویه ډله موجوده ده. راځه، د دوی نه په تپوس مسئلے
یادے کړو. هغه انصاری اُووے چه ایا د دے صحابه کرامو رضی الله عنهم په موجودګئ
کښې به هم خلق تاسو ته مسئلے پوښتنے د پاره راځی حال دا چه د صحابه کرامو لویه
ډله موجوده ده. لنډه دا، دغه صاحب خوهمت اُونه کړه. او څه مسئلو پسے
شوم او د کوم صاحب متعلق چه به ما ته پته اُولګیده چه فلانے حدیث هغوی
د نبی صلی الله علیه وسلم نه اورید لے دے. هغه ته به ورتلم او تحقیق به مې ترے کولو.
ما ته د مسائلو ډیره لویه ذخیره د انصارو نه حاصله شوه. بعضے خلقو ته
یه لازم معلومه به شوه چه اُوده دے نو ما به خپل څادر هلته په دروشل

باندے کیخودہ، انتظار کښ به کینا ستم۔ اگرچه په هَوا سره به مې به مخ او
په بدن خاوړے هُم پریوَتلے، خوځهٔ به هلته ناست وُم۔ کله چه به
هغه راپاسیدو۔ نوکومه خبره چه به معلومول وُو، د هغے به مې ترے پوښتنه
اُوکړه۔ هغے حضراتو به وئیل چه ته د نبی علیه الصلوٰة دتره ځوئ یے۔ تا ولے تکلیف
اُوکړهٔ ځهٔ به دِ راغوختی وے۔ خوما به وے چه ځهٔ عِلم حاصلونکے یم۔ په
دے وجه ځهٔ زیات د حاضریدو مُستحق یم۔ بعضو حضراتو به تپوس
اُوکړهٔ چه ته دکله نه ناست یے؟ ما به وے د ډیر ساعت نه۔ هغهٔ به اُووے
چه تا ید اُوکړهٔ۔ ما ته به دِ خبر کړے وو۔ ما به اُووے ، ځما زړهٔ اُونهٔ غوختل
چه تا سوځما په وجه د خپلو ضروریاتو فارغیدو نه وړاندے راشئ۔ آن ترے
چه یو وخت داسے هم راغے چه خلق عِلم حاصلو د پاره ما ځخه جمع شول
بیا هغے انصاری صاحب افسوس اُوکړو۔ وے وئیل چه دا هلک ځمونږ
نه زیات هوښیار وو۔ (دارمی)

**فائدہ:**۔ دا هغه څیز وُو کوم چه حضرت عبدالله بن عبّاس رضی الله عنه
د خپل وخت حِبرُ الاُمّة او د بحرُ العِلم لقب ورکړهٔ۔ کله چه د دهٔ وفات اُوشو
نو طائف کښ وو۔ د حضرت علی کرّم الله وجهه ځوئ محمّد رضی الله عنه د جنازے مونځ اُوکړهٔ
اَو وے فرمایل چه د دے اُمّت امامِ رَبّانی نن رُخصت شو۔ حضرت عبدالله
بن عُمر رضی الله عنه فرمائی چه ابنِ عبّاس رضی الله عنه د آیتونو شانِ نزول پیژندلو کښ
د ټولو نه مُمتاز دے۔ حضرت عُمر رضی الله عنه به دهٔ ته د عُلماوُ په خاص صَف کښ
ځائ ورکولو۔ دا ټول د دغے قربانئ نتیجه وه کنې که چرے دے د خپلے صلحوزادګئ
رچه د نبی علیه الصلوٰة دتره ځوئ یم) په گمان کښ اُوسیدے نو دا مرتبے به ورته څنګه
حاصلیدے۔ په خپله دا قائے نامدار نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه دحیا نه
عِلم حاصلوئ د هغه مخکښ عاجزی کوئ۔ بخاری شریف کښ د مجاهد رحمة الله علیه
نه نقل کړے دے چه څوک عِلم حاصلولو کښ حیا کوی یا تکبُّر کوی هغه عِلم
نشی حاصلولے۔ د حضرت علی کرّم الله وجهه ارشاد دے چه چاما ته یو حرف هُم
اُوخودلو، ځهٔ د هغهٔ غلام یم خو که خپله که غواړی خرڅ دے که آزاد دے که وه کړی ئے ، یحییٰ بن کثیر رحمة الله علیه

وائی چہ علم راحت او ارام سره نۀ حاصلیږی ۔ د امام شافعی رحمۃ اللہ علیہ ارشاد دے چہ کوم کس علم بے رغبتئ او بے پروایئ سره حاصل کړی هغه نۀ شی کامیابیدے ۔ هَو! چہ څوک خاکسارئ او محتاجئ سره حاصلول غواړی هغه کامیابیدے شی ۔ مُغیرہ رحمۃ اللہ علیہ وائی چہ مونږه به د خپل اُستاد ابراهیم رحمۃ اللہ علیہ نه داسے ویریدو لکه چہ څوک د بادشاه نه ویریږی ۔ یحییٰ بن مُعین رحمۃ اللہ علیہ ډیر لوئی محدِّث دے ۔ امام بخاری رحمۃ اللہ علیہ د هغهٔ متعلق فرمائی چہ د مُحدّثینو څومره احترام به هغهٔ کولو د هغه بل څوک ما په کولو نه دے لیدلے ۔ امام اَبو یُوسف رحمۃ اللہ علیہ وائی چہ ما د بزرگانو نه اورېدلی دی چہ څوک د اُستاد قدر نهٔ کوی هغه کامیابیدے نشی ۔

د دے قصه کښې کهٔ یو خوا د حضرت عبد اللہ بن عبّاس رضی اللہ عنہما د اُستاذانو سره عاجزی او انکساری معلومیږی نو بل خوا ورسره د عِلم محبت او د هغے پابندی هم معلومیږی ۔ چا سره به چہ ورته د حدیث پته لګیدۀ نو ورپسے به تلو، هغه به یے حاصلولو ۔ خواه په هغے کښې به څومره مشقت، محنت او تکلیف اوچتول وو ۔ او حقه دا ده چہ بے محنته او مشقته علم خو یو خوا معمولی څیز هم نۀ حاصلیږی ۔ او دا مثل مشهور دے ۔ مَنْ طَلَبَ الْعُلٰی سَهِرَ اللَّيَالِي ۔ "څوک چہ اوچتے مرتبے غواړی شپے به روښنې وی" ۔

## مُستقرقے عِلمی کارنامے

حَارثِ بن یَزید، ابنِ شُبرُمه، قَعقاع، مُغیرہ رحمہم اللہ ماخوذ او حضرات به د ماسخوتن د مانځه نه پس علمی بحث شروع کړو ۔ د سحر اذانه پورے به یو هم نۀ جُدا کیدو ۔ لیث بن سعد رحمۃ اللہ علیہ وائی چہ امام زُهری رحمۃ اللہ علیہ به د ماسخوتن مانځه نه پس اودسه کښې د حدیث سلسله شروع کړه نو سحر به یے کړو ۔ (دارمی) دَراوَردی رحمۃ اللہ علیہ وائی چہ امام اَبو حَنیفه او امامِ مالک رحمہما اللہ ما اُولیدل چہ مسجدِ نبوی کښې یے د ماسخوتن نه پس په یو مسئله کښې بحث شروع کړو او هغه هم داسے چہ هغے کښې تو کل، ملامته کول او غلطول نۀ وو او هم په دے حالت کښې به سحر شو او هلته به یے د سحر مونځ اُوکړه ۔ (مقدمه) ابنِ فرات

بغدادی رحمۃ اللہ علیہ یو محدّث دے. کلہ چہ وفات شو. نو اتلس صندوقہ کتابونو یے پریخودل چہ پہ ھغے کښں اکثرے پخپلہ خپل قلم سرہ لیکلی وُو. او کمال دادے چہ د محمّد زینبو پہ نزد صحت نقل اوډ بنه لیکلو اعتبار سرہ دده لیکلے شوی حجّت ھم دی۔

ابنِ جوزی رحمۃ اللہ علیہ مشہور محدث دے. ددرے کالو پہ عمر کښں یے پلار وفات شو. د یتیمی حالت کښں یے پرورش بیاموندہ. خود محنت یے دا حال وو چہ د جمعے د مانځہ نہ علاوہ بہ د کور نہ لرے نہ تلو. یو وارے یے پہ منبر اووے چہ ما پہ دے خپلو ګوتو سرہ دوہ زرہ جلدہ لیکلی دی. د دوہ نیم سوؤ نہ زیات ددہ خپل کتابونہ دی. وائی چہ ھیڅ وخت بہ یے نہ ضائع کیدلو. څلور جزونہ روزانہ یے دلیکلو معمول وو. د درس یے دا حال وو چہ مجلس کښں یے بعضے وخت دیولاکھ نہ زیات دشاګردانو اندازہ وہ. امیران وزیران، بادشاھان بہ یے مجلسِ درس کښں حاضر وُو. ابنِ جوزی رحمۃ اللہ علیہ پخپلہ وائی چہ یو لاکھ کسانو ما نہ لاس نیوہ کړے دہ. او شل زرہ ځما پہ لاس مسلمانان شوی دی. خو سرہ ددے دشیعہ ګانو زور وو، تکلیفونہ یے ھم اوچت کړی دی. (تذکرہ) دحدیثونو لیکلو پہ وخت کښں دقلمونو بورہ بہ یے جمع کولہ. دمرګ پہ وخت کښں یے وصیت اوکړو چہ ځما دغسل اوبہ دے پہ دے ګرمے کړے شی. وائی چہ اوبہ پورے ګرمے کړے شوے او بورہ تریاتے ھم شوہ۔

یحییٰ بن معین رحمۃ اللہ علیہ مشہور استاذِ حدیث دے وائی چہ ما پہ خپلو لاسونو لس لاکھہ حدیثونہ لیکلی دی۔

ابنِ جریر طبری رحمۃ اللہ علیہ مشہور مؤرخ دے. دصحابو او دتابعینو د حالاتو نہ بنہ خبردار دے. څلویښتو کالو پورے یے ھمیشہ څلویښت پاڼړے روزانہ دلیکلو معمول وو. دده پہ وفات شاګردانو روزانہ دلیکلو حساب اولګوو. نو د بالغ کیدو نہ مرګہ پورے څوارلس پاڼړے روزانہ پہ حساب راودوتے د دہ کتاب تاریخِ طبری مشہور دے. عام طور موندے شی. کلہ چہ دہ ددے د تصنیف ارادہ ښکارہ کړہ نو د خلقو نہ یے تپوس اوکړو چہ د ټول عالم

وتاریخ لیکلو یا ئې خو به تا سو خلق ډیر خوشحاله شئ. خلقو ترې پوښتنه اوکړه چه انداز اً څومره به لوئ وی. وې فرمایل چه تقریباً دیرش زره پاڼړو پاندې به راشي. خلقو اوویل دې د پوره کولو نه ژوندی به عمرونه ختم شي. وې فرمایل. اِنَّا لِلّٰهِ. همتونه کمزوری شو. دې ته پس یې مختصر کړو او تقریباً درې زره پاڼړو باندې یې اولیکه. دغسې دده د تفسیر هم قصه اوشوه. هغه هم مشهور دې او عام طور موندې شي.

دَارِقُطنِی رحمة الله علیه دحدیث مشهور مُصنِّف دې. حدیث حاصلولو دپاره بَغْدَاد، بَصرَة، کوفه، وَاسِط، مِصر او د شام سفرې اوکړه. یو ځلې د اُستاذ په مجلس کښې ناست وو. اُستاذ لوستل کول او ده څه کتاب نقل کولو. یو ملګری اعتراض اوکړو چه ته بل خوا ته متوجه یې. وې فرمایل چه ځما او ستا په توجُه کښې فرق دې. اوښایه اُستاذ او سه پورې څومره حدیثونه وَاوْرَوُل؟ هغه په سوچ کښې پریوت. دَارِقُطنی رحمة الله علیه اوفرمایل چه اُستاذ اتلس حدیثونه واوْرَوُل. اول دا وو، دویم دا وو. دغسې ترتیب وار ټول حدیثونه یې سره د سَنَدَ وَاوْرَوُل.

حَافِظ اَثْرَم رحمة الله علیه یو محدّث دې. دحدیث یادَولو کښې یې ډیر مشق وو. یو ځل یې حج ته تشریف یوړه. هلته د خُراسان دوه لوئ اُستاذان دَ حدیث راغلی وُو او حرم شریف کښې دواړو بیل بیل درس ورکولو. هر یو سره دلوستونکو یوه لویه مَجْمَع وه. دې د دواړو مینځ کښې کیناست او د دواړو حدیثونه یې په یو وخت کښې اولیکل.

عبدالله بن مُبَارَك رحمة الله علیه مشهور محدّث دې. حدیث حاصلولو کښې د ده محنتونه مشهور دی. پخپله فرمائي چه ما د څلور زرو اُستاذانو نه حدیثونه حاصل کړی دی. عَلی بن الحَسَن رحمة الله علیه وائي چه یوه شپه سخته یخني وه. څه او ابن مُبَارَك رحمة الله علیه دجُمات نه دماسخوتن نه پس راواوتلو. دروازه باندې د یو حدیث باره کښې خبرې اترې شروع شوې ما به څه ویل هغه به هم څه فرمایل. هلته په وَلاړه وَلاړه د سحر اذان اوشو.

حُمَیدِی رحمۃ اللہ علیہ یو مشهور محدث دے. چاچه د بخاری او مسلم حدیثونه یوځای جمع کړی دی. تول شپه به یے لیکل کول او د ګرمئ په موسم کښ کله چه به ګرمئ ډیر تنګولو. نو یو لګن به یے د اوبونه ډک کړو او په هغے کښ به کیناستو لیکل به یے کول. د هغوی نه به جدا او سیده شعر هم دے. د دۀ شعرونه دی. ؎

لِقَاءُ النَّاسِ لَيْسَ يُفِيْدُ شَيْئًا ۔۔۔ سِوَى الْهَذَيَانِ مِنْ قِيْلٍ وَّقَالٍ
فَأَقْلِلْ مِنْ لِقَاءِ النَّاسِ إِلَّا ۔۔۔ لِأَخْذِ الْعِلْمِ أَوْ إِصْلَاحِ حَالٍ

ترجمه :- د خلقو ملاقات هیځ فائده نه ورکوی سوا د قیل و قال خوشے فضول خبرونه. پس د خلقو ملاقات کم کړه سوا د دے چه د علم حاصلولو د پاره استاذ سره یا د اصلاح نفس د پاره چا شیخ سره ملاقات وی. (نو خیر دے)

إمام طبرانی رحمۃ اللہ علیہ مشهور محدث دے. ډیر کتابونه یے لیکلی دی. چا د هغۀ د کتابونو ډیر والے اولیدۀ، تپوس یے ترے اوکړو چه څنګه د لیکلی دی؟ ورے فرمایل چه دیرش کاله م په بوزکی تیر کړی دی. یعنی شپه او ورځ به په بوزکی پروت وو. ابو العباس شیرازی رحمۃ اللہ علیہ وائی چه ما د طبرانی رحمۃ اللہ علیہ نه درے لاکهه حدیثونه لیکلی دی. امام ابو حنیفه رحمۃ اللہ علیہ به ډیر په سختئ سره د ناسخ او د منسوخ حدیثونو تحقیق کولو. کوم چه په دغه زمانه کښ د علم په کوریا دیدۀ. په هغه کښ چه خومره محدثین وو، د هغوی حدیثونه یے جمع کړی وو او کله چه به د بهرنه څوک محدث راغے نو شاګردانو ته به یے حکم کولو. که دۀ سره یو داسے حدیث وی چه مونږ سره نه وی د هغے تحقیق اوکړئ. یو علمی مجلس به د امام صاحب رحمۃ اللہ علیہ تحت لګیدۀ چه په هغے کښ به د محدث، فقیه، د ژبو پوهه خلقو ګډ وو. کله چه به څه مسئله مخکښ راغله. په دے مجلس کښ به په هغے بحث کیدۀ او بعضے وخت به یوه یوه میاشت بحث کیدلو دے نه پس چه به کله څه خبره فیصله شوه نو هغه به مذهب اوګرزولے شوا او به لیکلے شوه.

امام ترمذی رحمۃ اللہ علیہ د نوم نه به څوک نا خبره وی. د حدیثونو ډیر زیات

یادول او یاد ساتل دده خصوصي شان وو. او قوتِ حافظه کښې مشهور وو. بعض محدثینو دده امتحان واخستو او غلط لښت حدیثونه ورله واورول چه کوم مشهور نه وو. امام ترمذي رحمة الله عليه فوراً واورول په خپله امام ترمذي رحمة الله عليه فرمائي چه ما د مکې مکرمې په لار کښې د یو استاذ د حدیثونو دوه جزءه نقل کړي وو. اتفاقاً په خپله هغه استاذ سره ملاقات اوشو. ما ورته درخواست اوکړو چه هغه دواړه جزءه د حدیثونو د استاذ نه هم واورم. هغوي قبوله کړه، ما داګڼله چه هغه دوه جزءه ما سره دي خو چه د استاذ خدمت ته لاړم نو په ځاې د هغې دوه ساده جزءه م لاس کښې وو. استاذ اورول شروع کړل. اتفاقاً د هغه نظر پرېوتو نو ځما په لاس کښې ساده جزءه ونه وو. ناراضه شو، وې فرمایل تا له شرم نه درځي ما ورته قصه بیان کړه او عرض م اوکړو چه تاسو څه اورَوَئ هغه ما ته یاد دي. استاذ ته یقین رانغې. وې فرمایل بنه واوروه. ما ټول حدیثونه واورول. وې فرمایل چه دا به تا ته د راتلو نه مخکښې نه یاد وو. ما عرض اوکړو چه نور نوي حدیثونه واوروَئ. هغوي څلوېښت حدیثونه واورول. ما هغه هم فوراً واورول او یوه غلطي م اونه کړه.

محدثینو چه کوم کوم محنتونه د حدیثونو په یادولو کښې، د هغې په خورولو کښې کړي دي، د هغې اِتْباع خو بیخوا د هغې شمار هم مشکل دے.

قرطمه رحمة الله عليه یو محدث دے، زیات مشهور نه دے. دده یو شاګرد داؤد رحمة الله عليه وائي چه خلقو به د ابوحاتم رحمة الله عليه وغیره د حافظې ذکر کولو. ما د قرطمه نه زیات حافظه د چا کیدلے. یو ځلې څه هغه له ورغلم. وې فرمایل چه د دې کتابونو کښې کوم د زړه غوارې راواخله، درته به واوروم. ما کتاب الاشربة اوچت کړو. هغه د هر باب د آخیر نه اول طرفته اولوسته او ټول کتاب یې واورولو.

ابوزرعه رحمة الله عليه وائي چه امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه ته لس لاکهه حدیثونه یاد وو. اسحٰق بن راهویه رحمة الله عليه وائي چه یو لاکهه حدیثونه جمع کړي دي او دیرش زره ما ته زباني یاد دي. خفاف رحمة الله عليه وائي

چه اسحاق رحمۃ اللہ علیہ یولس زره حدیثونه دخپل یاد نه مونږ ته اولیکل او سا
یې هغه نمبروار واورول. نه پکښې څه حرف کم وو نه زیات. ابوسعد
اَصْبَهَانی بَغْدَادی رحمۃ اللہ علیہ د شپاړسو کالو عمر کښې د ابو نصر رحمۃ اللہ علیہ حدیثو
اوریدو دپاره بغداد ته اورسیدو. په لاره کښې یې د هغه د وفات خبر
واوریدو. بې اختیاره یې اوژړل، چغې یې اووهلې چه د دې سند به کوم
ځائې بیا مونده شي. دومره غم کول چه په ژړا کښې ترې چغې اوزي.
دا هله کیدلې شي کله چه د څه څیز سره عشق شي. ده ته مسلم شریف
ټول یاد وو. او په یاد به یې طالبانو ته لیکو. یولس حجه یې کړې وو. کله چه
به خوراک ته کینا ستو نوستر کې به یې د اوښکو نه ډکې شوې.

ابوعمر ضریر رحمۃ اللہ علیہ پیدائشي ړوند وو. خو حُفاظِ حدیث کښې شمارېدې
علم فقه، تاریخ، فرائض یعنی علم میراث، حساب کښې یې کامل مهارت لرلو.
ابوالحسین اَصْفَهانی رحمۃ اللہ علیہ ته بخاری شریف او مسلم شریف دواړه یاد وو.
خصوصاً د بخاری شریف یې خو داحال وو چه چا به سند اووې نو هغه متن
یعنی حدیث به یې واورولو. شیخ تقی الدین بعلبکی رحمۃ اللہ علیہ په څلور ومیاشتو
کښې مسلم شریف ټول یاد کړو. او د جَمْعُ بَیْنَ الصَّحِیْحَیْن هم حافظ وو. صاحب
کرامات بزرګ وو. د قران پاک هم حافظ وو. وائي چه سُورَةُ الْاَنْعَام یې
ټول په یوه ورځ کښې یاد کړې وو. اِبنُ السُّنی رحمۃ اللہ علیہ د امام نسائی رحمۃ اللہ علیہ
مشهور شاګرد دې. حدیث لیکلو کښې اخیره پورې مشغول وو. د هغه ځوئي
وائي چه څه پلار لیکلو لیکلو کښې قلم مشوانړئ کښې کیخودو او دواړه لاسونه
یې دعا دپاره اوچت کړل او په دې حالت کښې وفات شو. علامه ساجی رحمۃ اللہ علیہ
په وړوکوالی فقه حاصله کړه. دې نه پس یې د علم حدیث مشغله وه. هرات
کښې یې لس کاله قیام اوکړو. په دې کښې یې شپږ واره ترمذی شریف په
خپل لاس اولیکو. د ابن مَنْدَه رحمۃ اللہ علیہ ته یې غرائب شُعْبه لوستو چه په
دې حال کښې د ابن مَنْدَه رحمۃ اللہ علیہ د ماسخوتن د مانځه نه پس وفات اوشو.
لوستونکی نه د لوګو کی علمی شوق و محبت قابل قدر دې چه تر اخیر

...فته پورے یے لوَنول کړل. آبُو عَمَر خَفّاف رحمة الله علیه ته یو لاکهه حدیثونه
...باني یاد وُو. د اِمامِ بُخاري رحمة الله علیه اُستاذ عاصم بن علي رحمة الله علیه چه کله بَغداد ته
...رسیده نو د شاګردانو دومره ګڼه ګوڼه وه چه اټکل به ئې یو لاکهه ته زیاتیدل.
...وارے اندازه اولګولے شوه نو یو لاکهه شل زره وُو. په دے وجه بعض
...اظ به څو څو وارے ویلے کیدل. د هغه یو شاګرد وائي چه یو وارے
...ثنا اللَّيثُ یې څوارلس ځله اُووے. بنکاره خبره ده چه یو لاکهه ته بعض
... مېروته او از رسولو د پاره بعضے الفاظ څو څو وارے به خامخا ویلے کیدی
...مُسلم بَصری رحمة الله علیه چه کله بَغداد ته اُورسیده نو یو لوئي میدان کښې د
...یث د رس شروع شو. او دومره به والاړه نو رو تم لیکلو د پاره ویل څنګه
...د اُغفتر تکبیرونه ویلي شي. د سبق نه پس مشوا اُوشمیرلے شوے نو
...لوبنت زرونه زیاتے وے. او کوم کسان چه صرف اوریدونکي وُو هغه
...ي نه علاوه وُو. د فِریابي رحمة الله علیه په مجلس کښې دغه رنګے لیکوال د رسونو
...اُرس وُو. د دے نه د مجمع اندازه لګولے کیدے شي. د دے محنت او مشقت
... د پاک علم نن ژوندے دے. اِمامِ بُخاري رحمة الله علیه فرمائي چه ما د
...و لاکهه حدیثونو نه انتخاب اُوکړه، بُخاري شریف مې اُولیکه چه په
...ش اُوه زره دوه سوه پنځه اُویا حدیثونه دي. او د هر یو حدیث لیکلو
...فت دوه رکعته نفل یې کړي دي بیا یې حدیث لیکلے دے. کله چه دے
...د ته اُورسیده نو د هغه محدثینو د ده امتحان واخست. د اسے چه
...ري یې مقرر کړل. په هغوي کښې هر یو کس لس لس حدیثونه خوښ
... هغه یې بدل کړه او د ده نه به یې تپوس کولو. ده به د هر یو سوال
...واب کښې "ما ته معلوم نه دے" ویلو. کله چه لسو وارو تپوس اُوکړه نو
...تو لو نه رُومبے تپوس کوونکي ته مخاطب شو، ورته فرمائیل چه تا د
...ه رُومبے حدیث دا تپوس کړے وو. تا دا سے بیان کړه. دا غلط دے
...ح دا رنګے دے. دویم حدیث دې دا تپوس کړے وو، هغه دا رنګے تا
...رے وو. دا غلط دے. او صحیح دا رنګے دے. لنډه دا دا رنګے سل په

سل حدیثونه یے ترتیب وار بیان کړل. چه هر یو حدیث به یے اول هغه رنګے لوستهٔ خرنګے چه امتحان اخستونکی لوستے وو. بیا به یے فرمایل چه داغلط دے او صحیح دا رنګے دے. اِمَام مُسْلِمُ رحمۃ اللہ علیہ څوارلس کالو عُمر کښ حدیث لوستل شروع کړل. په دے کښ تر اخیره پورے مَشغول وو. بخپله فرمائی چه ما درے لاکهو حدیثونو نه انتخاب اُوکړهٔ او مُسلم شریف م اُولیکهٔ چه په دیکښ دولس زره حدیثونه دی. اِمام داؤد رحمۃ اللہ علیہ فرمائی چه ما پنځه لاکهه حدیثونه اَوریدلی دی چه د هغے نه م انتخاب اُوکړهٔ او سُنَن اَبُو داؤد شریف م اُولیکهٔ چه په دیکښ څلور زره آته سوه حدیثونه دی. یُوسف مزّی رحمۃ اللہ علیہ مشهور مُحدِّث دے. دا اَسْمَاءِ رِجَال یعنی د حدیث د نقل کوُنکو نومونو امام دے. اول یے په خپل ښهر کښ فِقه او حدیث حاصل کړهٔ. دِے نه پس د مکے مُکرّمے، مدینے مُنوّرے، حَلَب، حماة، بَعلبک وغیره سفرونه یے اُوکړهٔ. ډیر کتابونه یے په خپل قلم سره لیکلی دی. تهذیبُ الْکَمَال یے په دوه سوه جلده کښ لیکلے دے. او کتابُ الاَطْرَاف د اتیاؤ جلدونو نه زیات دے. د دهٔ عادتِ شریفه وو چه اکثر به چُپ وو. خبرے به یے خلقو سره ډیرے کمے کولے. اکثرو وختونو کښ به کتاب کښ مشغول وو. د حسد کوُنکو په وجه ورته دشمنی پیښه شوه خو بدله یے نه ده اخستے

د دے حضراتو د حالاتو لیکل ګران دی. لوئی لوئی کتابونه د دوی د حالاتو او محنتونو اِحاطه نشی کولے. د لته د نمونے په طور م د یو څو حضراتو دوه څلورو واقعاتو ذکر ځکه اُوکړهٔ چه دا معلومه شی چه دا علمِ حدیث چه نن دیارلس نیم سوه کاله پورے ښهٔ په ترقئ سره باقی دے، دا په څومره محنت او قربانو سره باقی ساتلے شوے دے. او کوم خلق چه د علم حاصلولو دعوی کوی خپل ځان ته طالبعلم وائی هغوی څومره محنت او مُشقت د دے د پاره تیر کړے دے. کهٔ چرے مونږ خلق دا غواړو چه مونږ د خپل عَیش و عِشرت، راحت و آرام، سیر و تفریح او د دُنیا نورو مشغولو کښ لګیا اُوسو او د نبی صلی اللہ علیہ وسلم د پاک کلام دا خوریدل دِ دارنګے باقی پاتے شی نو این خیال است و محال است و جنون

نه سوا نور څۀ کيدے شي.

# نهم باب

## دنبي اکرم ﷺ فرمانبرداري، حُکم منل، اود الکتل چه دنبي ﷺ منشا مُبارڪ څۀ ده

هسے خود صحابه کرامو رضی اللہ عنہم هر یو کار فرمانبرداري وه. او تیر شوي قصونه دا خبره ښۀ ښکاره ده. خو خصوصًا څو قصے دے باب کښې ځکه ذِکر کولے شي چه مونږ ه خلق دخپلو حالتونو دے باب سره خصوصًا مُقابله اوکړو او اوګورو چه مونږ ه د الله تعالیٰ او دهغه درسُولِ پاک ﷺ داحکامو فرمانبرداري ترکومه حده پورے کوو، کوم باندے چه مونږ خلق ددے انتظار کښې یو چه هغه برکتونه او ترقۍ اوفائدے کومے چه صحابه کرامو رضی اللہ عنہم ته حاصلے وے، مونږ ته دِهم حاصلے شي. که چرے واقعي مونږ خلق ددے خیز ارزومنا یو نو مونږ ته هَم هغه کول پکار دي کوم چه دِے حضراتو اُوکړۀ او دُنیا ته یے اُوخودله.

### ① دحضرت عبدالله بنِ عَمروبنِ العَاص رضی اللہ عنہ څادر سوزَول

حضرت عبدالله بن عَمرِوبنِ العَاص رضی اللہ عنہ فرمائي چه یو ځلے سفر کښې مونږ دنبي اکرم ﷺ سره وُو. څۀ دنبي ﷺ خدمت کښې حاضر شوم. ما باندے یو څادر وو چه دکُسُم ریوزیړ قسم) په رنګ کښې لړ غوندے رنګ کړے شوے وو. نبي ﷺ چه اُولیدۀ ، وِے فرمایل، دا څۀ دِ اَغوستي دي؟ ما ته ددے سوال نه دنبي ﷺ دنا خوښۍ اثرات معلوم شول. څۀ کورته واپس راغلم. کور والو تَنَرې کښې اُور بَل کړے وو. ما هغه څادر په هغې کښې واچوۀ. دویمه وَرځ چه کله حاضري اُوشوه نو نبي ﷺ اُوفرمایل هغه څادر دِ څۀ شو؟ ما قصه واوَرَوَله. ارشاد يے اُوفرمایۀ. زنانو کښې دِ چا ته وَلے ورنۀ کړو. دزنانو په پَسَرَولو کښې خو

باک نهٔ وو. (ابوداؤد)

**فائده:-** اګرچه دخپل ده رسوُل الله صلی الله علیه وسلم ضرورت نهٔ وو خو چه دچا په زړهٔ کښې دچا د ناخوښئ او ناراضتیا ګذار لګیدلے وی، هغه د دومره سوچ برداشت نهٔ شی کولے چه د دے څهٔ بله طریقه هم کیدے شی. البته خلکو په شان ناانصافه وے نو نهٔ ده معلومه چه څومره شک شبهے به یې پیدا کړے وے. چه دا ناخوښی دکومے درجے ده. او پوښتنه خو اوکړم چه بله څهٔ طریقه د اجازت هم کیدے شی که نه. او نبی صلی الله علیه وسلم تپوس خو کړے دے، منع کړے خو نهٔ یې وغیره وغیره.

## ۲ دیو انصاری رضی الله عنه مکان غورزول

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو ځلے دکور نه باهر تشریف اوړلو. لاره کښې یې یوه قبه (ګنبد داره کوټه) اولیده چه اوچته جوړه شوې وه. دملګرو نه یې پوښتنه اوکړه چه دا څهٔ دی؟ هغوی عرض اوکړو چه فلانکی انصاری قبه جوړه کړے ده. نبی صلی الله علیه وسلم واوریدل خاموشه شو. بل وخت هغه انصاری خدمت کښې حاضر شو او سلام یې اوکړو. نبی صلی الله علیه وسلم ترے مخ واړوو. او د سلام جواب ئے ورنهٔ کړو. هغه په دے خیال چه شاید خیال یې نهٔ وی شوے دوباره یې سلام اوکړو. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ترے بیا مخ واړو او جواب یې ورنه کړو. هغه د دے خنګله برداشت کولے شو. صحابه چه هلته موجود وو، دهغوی نه یې تپوس او تحقیق اوکړو چه څهٔ نن د نبی صلی الله علیه وسلم نظر اوریدلے موسم. خیر خو دے؟ هغوی اوویل چه نبی صلی الله علیه وسلم بهر تشریف اوړلے وو، په لاره کښې یې ستا قبه لیدلے وه او پوښتنه یې کړے وه چه دا د چا ده؟ دا چه یې واوریدل هغه انصاری فوراً لاړو هغه یې اوغورزوله. دا سې یې زمکے سره برابره کړه چه نوم نښان یې پاتے نهٔ شو. او بیا دا هم نه چه راغلے وے عرض یې کړے وے. اتفاقاً نبی صلی الله علیه وسلم هلته په بله موقع تیریدهٔ نو وے لیدل چه هغه قبه هلته نشته د دے پوښتنه یې اوکړه. صحابه رضی الله عنهم عرض اوکړو چه انصاری

ستاسو نه اَړولو خو وړکے شوے دی ذکر کړے وو. مونږ ورته اُووے چه ستا قُبه یے لیدلے وه. هغه راغے بیخی یے اُوغورځوله. نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایۀ چه هره اٰبادی په سړی وَبال دے خو هغه اٰبادی چه کومه د سخت ضرورت او د مجبورئ وی. (ابوداؤد)

**فائده**:- دا د کمالِ عِشق خبرے دی. دے حضراتو ته دا دومره برداشت نه وو چه نه مُبارک ئے غمژن لیدلے وے یا یے د خپل ځان نه د نبی ﷺ ګرانی محسوسه کړے وے. دغے صحابی قُبه اُوغورځوله او بیا داهم نه چه د غورځولو نه پس د خو د نے په غرض راغلے وے اُو ویلے وے چه ستاسو د خوشالئ د پاره مے اُوغورځوله بلکه کله چه نبی ﷺ پخپله اتفاقاً اُغوا تشریف یوړه نو وے لیده. نبی ﷺ ته په تعمیر یعنی اٰبادئ کښې روپئ ضائع کول خاص طور نا خوښے وے. ډیرو حدیثونو کښې د دے ذکر راغلے دے. په خپله د نبی ﷺ د بیبیانو کورونه د کهجورو د څانګو شپول وو چه په هغے د ټوټی پردے پرتے وے. چه د پردی سړی نظر د ننه لا رنشی. یو ځل نبی ﷺ چرته سفر کښې تشریف اُوړے وو. حضرت اُم سلمه رضی الله عنها ته څه مال حاصل شو. هغے خپل مکان کښې په ځائی د کهجورو د تختو کچه خښتے اُولګولے په واپسئ کله چه نبی ﷺ اُولیدل نو پوښتنه یے اُوکړه چه دا څه کړی دی؟ هغے عرض اُوکړه چه هغے کښې د بے پردګئ شُبه وه. نبی ﷺ اُوفرمایل چه بد ترین شیز چه په هغے کښې د سړی روپئ خرځ کیږی تعمیر دے. عبد الله بن عمرو رضی الله عنه فرمائی چه یو ځلے څه او خما مور د خپل مکان یو دیوال سمولو چه خراب شوے وو. نبی ﷺ چه اُولیدو نو وے فرمایل چه مرګ د دے دیوال د غورزیدو نه زیات نزدے دے. (ابوداؤد)

## ۳ د صحابه کرامو رضی الله عنهم سره څادرونه کوزول

حضرت رافع رضی الله عنه فرمائی چه مونږ خلق یو ځلے سفر کښې نبی ﷺ سره وُو. او څمونږ په اُوښانو څادرونه پراته وُو چه په هغے کښې سره

تا رونه وو. نبي عليه الصلوٰة ارشاد اُوفرمايهٔ چۀ وِيريږم چه دا سُرخي په تا سو غالبه کيږي. د نبي عليه الصلوٰة دا ارشاد فرمايل وُوچه مونږ خلق يودَم دلے په ويره پاسيدو چه اُوښان هَم اخوا دِيخوا اُوتختيدل او مونږ فوراً اغا دروند د اُوښانو نه راکوز کړل. (ابوداؤد)

**فائده**:- دصحابه کرام رضي الله عنهم په ژوند کښ دے قسمه واقعاتو څۀ اَهميت نۀ لرلو. البته خمونږ د ژوند په لحاظ سره په دے حيرانتيا کيږي دړے حضراتو عام ژوند هَم داسے وو. عُروَه بن مَسعُود رضي الله عنه کله چه صلح حُدَيبِيَه کښ رچه دهغې قصه داول باب دريمه قصه کښ تيره شوے ده) دکافرانوله طرفه د قاصد په حَيثِيَت سره راغلے وو. نو د مسلمانانو دَ حالت يے په ډير غور مُطالعه کړے وه. چه مکے ته واپس لاړۀ، کافرانو ته يے ويلي ووچه څۀ لويو لويو بادشاهانو ته د قاصد په طور تلے يم. فارس رُوم او د حَبشې بادشاهانو سره م مُلاقات کړے دے. ما هيچرے يو بادشاه په ځائي کښ دا خبره نۀ ده ليدلے چه دهغۀ دربارِيان دهغۀ دومره قدر تعظيم کوي څومره چه د محمّد (صلی الله علیه وسلم) ملګري دهغۀ تعظيم کوي. هيڅ کله دَ هغۀ بلغم په زمکه پريوتلو ته نۀ ورکوي. هغه چه دچا په لاس پريوزي نو هغه يے په مخ او په بدن پانده مګي. کله چه هغه څۀ حُکم کوي نو هر يو کَس منډه وَهي چه هغه کار اُوکړي. کله چه هغه اُودس کوي نو دَ اُودانهٔ اُوبۀ اخستلو او په بدن پاندے مګلو د پاره داسے منډے وَهي کو يا چه خپل مينځ کښ به جنګ او جهګړا اُوشي. او کله چه هغه خبره کوي نو ټول چپ شي. هيڅوک دعظمت له وجه دهغۀ طرفته په اُوچت نظر نشي کتلے. (بخاري شريف)

## (۴) دحضرت وَائِل رضي الله عنه دَ ذُباب په لفظ سره وِيختهٔ پريکول

وَائِل بنِ حُجر رضي الله عنه فرمائي چه څۀ يوځل خدمت کښ حاضر شوم. څما دسر وِيختهٔ ډير لوئي شوي وُو. چه مخامخ شوم نو نبي عليه الصلوٰة ارشاد اُوفرمايهٔ ذُبابٌ ذُبابٌ. ما دا اُوګڼړل چه څما دِ ويختو باره کښ يے اُوفرمايل. څۀ

واپس لاړم او هغه م پریکړل. هر کله چه په دویمه ورځ خدمت کښ حاضر شوم نو ارشاد یې اُوفرمایهٔ چه ما تا ته نهٔ وُو ویلي خو دا دِ ښهٔ اُوکړل۔ (ابوداؤد)

**فائده**:- د ذُباب معنیٰ د سپیرهٔ هم ده او د ناکاره څیز هم. دا په اشارو یاندے د قربانید وخبره ده چه مُنشاء پیژندلو نه پس خواه که هغه غلط پوهه شوے وی د هغے په تعمیل کښ به ساعت نهٔ لګیدهٔ. د لته نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه تا ته م نهٔ وُو ویلي خو دهٔ د خپل ځان متعلق اُوګڼړله. په دے وجه څهٔ مجال وو چه ساعت لګیدلے وے. د اسلام په ابتداء کښ په مانځه کښ خبرے جائز وے. بیا منسوخ (منع) کړے شوے حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه خدمت کښ حاضر شو. نبی ﷺ مونځ کولو. هغهٔ د معمول مطابق سلام اُوکړو. چونکه مانځه کښ خبرے منع شوے وے، نبی ﷺ جواب ورنهٔ کړهٔ. دے فرمائی چه د نبی ﷺ جواب نهٔ ورکولو سره نوے او زړے خبرے را په یاد شوے. مختلفو خیالاتو ګیر کړم کله م سوچ کولو په فلانئ خبره ناراضه شوے دے. کله به م خیال کولو چه فلانئ خبره پیښه شوے ده. آخر چه نبی ﷺ کله سلام اُوګرځولو ارشاد یې اُوفرمایهٔ چه مانځه کښ خبرے کول منع شوی دی. په دے وجه ما د سلام جواب درنهٔ کړو. بیا راکښ ساه راغله.

## ⑤ د حضرت سهیل بن حنظلیه رضی الله عنه عادت او د حضرت خریم رضی الله عنه ویښته پریکول

دمشق کښ سهیل بن حنظلیه رضی الله عنه نومے یو صحابی اُوسیدهٔ. ځان له یے ژوند تیرولو. ډیر کم به یے خلقو سره کښ ون کولو او چرته به تلو راتلو نهٔ. تول ورځ به مانځه کښ مشغول وو یا تسبیح او وظیفو کښ. جمعات ته به تلو راتلو. لاره کښ حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه یا ندے چه مشهور صحابی دے تیریدلو ابوالدرداء رضی الله عنه به ورته فرمایل چه په تلو کښ د خیر څهٔ خبره وا اُوروه نو زه. تا ته څهٔ نقصان نشته، مونږ ته به فائده اُوشی. نو هغهٔ به څهٔ واقعه د نبی ﷺ د زمانے یا څهٔ حدیث وا اُوروو. یو وارے د اسے روان وو. ابوالدرداء رضی الله عنه

وکړه چه څۀ دخیر خبره داُوَروه نو زه.
رضی اللہ عنہ دمعمول موافق درخواست اُوکړه چه څۀ دخیر خبره داُوَروه نو زه. وے فرمایل چه یو وارے نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد اُوفرمایۀ چه څَرَیم اسلمی بنۀ سرے دے کۀ چرے دوه خبرے پکښ نۀ وے. یو یے دسَر ویښته ډیر لوئ دی، دویم لنګ ډکیتو نه ښکته ترې. هغۀ ته دنبی علیه السلام دا ارشاد اُورسیدۀ فوراً یے چاقو راواخستۀ، ویښته یے دغوږونو نه ښکته پریکړل او لنګ یے دنیمے پندلی پورے ترل شروع کړۀ (ابوداؤد)

**فائدہ:۔** بعضے روایتونو کښ راغلی دی چه ښځیله نبی کرم صلی اللہ علیہ وسلم هغۀ ته درے دوه خبرو ارشاد اُوفرمایۀ او هغۀ قَسَم اُوخوړ، وے ویل چه داُوس نه به نۀ وی خو دوارو روایتونو کښ څۀ شک نشته. داکیدے شی چه ښځیله یے هم هغۀ ته ارشاد فرمایلے وی. او دهغۀ غیر موجودګئ کښ یے هم ارشاد فرمایلے وی چه اُورید و نکے هغۀ ته لاړو خبره یے اُورَسَوله.

## ⑥ دحضرت ابنِ عمرؓ دخپل ځوئ سره خبرے نۀ کول

حضرت عبد الله بن عمر رضی اللہ عنہ یو ځلے ارشاد اُوفرمایۀ چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد فرمایلے دے چه زنانو ته جُمات ته دتلو اجازت ورکوئ. دا ابنِ عمر رضی اللہ عنہ یو ځوئ عرض اُوکړه چه مونږ خو اجازت نۀ شُو ورکولے. ولے چه هغوی به مخکښ دپاره بهَانه جوړه کړی دآزادئ او فساد او دخوشے ګرزیدو. حضرت ابنِ عمر رضی اللہ عنہ ډیر ناراضه شو. بد رَدَ یے اُوویل او وے فرمایل چه څۀ خودَ نبی علیه السلام ارشاد آوروم او ته وایے چه اجازت نۀ شُو ورکولے. دے نه پس همیشه دپاره یے دے ځوئ سره خبرے پریخودے. (مسلم ۔ ابوداؤد)

**فائدہ:۔** دځوئ داوېل چه دفساد بهانه به جوړه کړی، دخپلے زمانے حالت یے کتلے وو. هم په دے وجه په خپله حضرت عائشه رضی اللہ عنہا فرمائی کۀ چرے نبی علیه السلام درے زمانے دزنانو حال لیدلے وے نو ضرور به یے زنانه جُمات ته دتلو نه منع کړے وے. حال داچه دحضرت عائشے رضی اللہ عنہا زمانه دنبی کرم صلی اللہ علیہ وسلم نه څۀ زیاته لرے نۀ وه. خو سره ددے حضرت ابنِ عمر رضی اللہ عنہ

ته د دې برداشت اُونه شو چه د نبی ﷺ ارشاد اُورېدو نه پس په دې کښې څه تردد یا شک شبه اُوکړې شی. او صرف په دې خبره چه د نبی ﷺ په ارشاد هغه انکار اُوکړو. تول عمر یې ورسره خبرې اُونکړې او حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم ته هم په دېکښې تکلیفونه اُوچتول راغلل چه د نبی اکرم ﷺ د پاک ارشاد د اهمیت په وجه چه کوم د هغوی ځان وو، د زړونو د جماعت نه بندول هم مشکل وُو. او د زمانې د فساد په وجه چه کومه خطره د هغې وخت نه شروع شوې وه اجازت هم مشکل وو. حضرت عاتکه رضی الله عنها چه د هغې ځو وارې نکاح شوې وه چه په هغې کښې حضرت عمر رضی الله عنه سره هم شوې وه. هغه به جماعت ته تله او د حضرت عمر رضی الله عنه په طبیعت به گرانی وه. چا هغې ته اُووې چه عمر رضی الله عنه نه خوښوی. هغې اُووېل. که چرې د هغه په طبیعت گرانی وی، نو منع دې کړی. د حضرت عمر رضی الله عنه د وفات نه پس حضرت زبیر رضی الله عنه سره یې نکاح اُوشوه. هغه ته هم دا ځیز نا خوښه وو خو منع کولو همت یې اُونه شو. نو یو وارې ماسخوتن مانځه د پاره دا چرته تله. په لاره کښې ورته خاوند کیناست او کله چه دا ورځنه تیره شوه. نو ورې چیړله. خاوند یې وو خکله ده نه خو جائز وه. خو دې ته پته اُونه لگیده چه دا څوک دې. د دې نه پس هغې د جماعت ته تلل پرېښودل. بیا وخت کښې حضرت زبیر رضی الله عنه ترې تپوس اُوکړو چه جماعت ته د ولې تلل پرېښودل؟ ورته وېل چه اُوس زمانه هغه پاتې نه شوه.

## د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه سوال چه د قصر مونځ قرآن کښې نشته

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه چا تپوس اُوکړو چه قرآن شریف کښې مقیم د مانځه خو ذکر شته او د خوف یعنی د وېرې د مانځه هم شته خو د مسافر د مانځه ذکر نشته. هغوی اُوفرمایل، ورارۀ! الله جل شانهٔ نبی اکرم ﷺ نبی جوړ کړې راوې لیږلو. مونږ خلق ناپوهه وُو، هیڅ مو نه پېژندل. پس مونږ چه څه هغوی په کولو لیدلی دی هغه به کوُو. (شفاء)

**فائده**:- مقصود دا دے چه دهر مسئلے په وضاحت سره قرآن شریف کښې کیدل ضروري نه دي. دعمل دپاره دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه ثابت کیدل کافي دي. په خپله دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دے چه ما ته قرآن شریف راکړے شو. او د دے برابر نور حکمونه راکړے شو. ډیر زر هغه زمانه راتلونکې ده چه دمړے کیدے خلق به په خپلو کدیلو ناست وي وائي به چه بس قرآن شریف مضبوط اونیسئ. کوم څهٔ چه په دے کښې احکامات دي په هغې عمل کوئ. (ابوداؤد)

## ⑧ دحضرت ابن مغفل رضی الله عنه دخذف په وجه خبرے پریخودل

دعبد الله بن مغفل رضی الله عنه یو خپلوان وراره خذف سره لوبے کولے هغهٔ اُولیدهٔ. وے فرمایل چه د دے نه منع کوه. نبي علیه الصلوٰة والسلام ارشاد فرمایلے دے. دے سره فائده هیڅ نشته، نهٔ پرے ښکار کیدے شي اونهٔ دشمن ته نقصان رسولے شي او کهٔ اتفاقاً چا ته اُولګی نو سترګه به یے اُوچوي یا غاښ به یے مات شي. وراره کم عمره وو. هغهٔ چه کله تره غافل وُلیدهٔ نو بیا یے لوبے شروع کړے. هغهٔ اُولیدهٔ، وے فرمایل چه څهٔ تا ته دنبي علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُووَروم نو ته بیا دغه کار کوے. په الله تعالیٰ م دِ قسم وي. تا سره به هیڅ کله خبرے اُونهٔ کړم یو بل قصه کښې د دے نه پس دا دي په الله تعالیٰ م دِ قسم وي نهٔ به ستا جنازه کښې شرکت کوم نهٔ به ستا بیمار پُرسي کوم. (ابن ماجه. دارمي)

**فائده**:- خذف دے ته وائي چه په قبضه ګوته ورکوي غوندے کا نړے کیږدي. بیا هغه دګوتے نه اُولي. بچو کښې عموماً د دا رنګے لوبو مرض وي. هغه دا سے خووی ته چه پرے ښکار اُوشي. البته کهٔ دچا په سترګه اتفاقاً اُولګی نو هغه به زخمي کړي. حضرت عبد الله بن مغفل رضی الله عنه ته د دے برداشت اُونهٔ شو چه دنبي علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُورَولو نه پس هم هغه بچے دا کار اُوکړي. مونږ خلق سحر نه تر ماښامه پورے د نبي علیه الصلوٰة والسلام څومره ارشادات اُورَو. او د هغې څومره اهتمام کوو. هر کس په خپله دخپل ځان متعلق فیصله کولے شي.

## (۹) د حضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه د سوال نه کولو لوظ

حکیم بن حزام رضی الله عنه یو صحابي دے. د نبي صلی الله علیه وسلم خدمت کښې حاضر شو.
څه یې اُوغوختل. نبي صلی الله علیه وسلم ورکړه. بیا یې د موقع یې څه اُوغوختل نبي صلی الله علیه وسلم
ورکړه. دریم وار یې بیا سوال اُوکړه. نبي صلی الله علیه وسلم ورکړه او دا ارشاد یې اُوفرمائیه
چه حکیمه! دا مال ښین باغ دے. په ښکاره ډیر خوږ، ښیرزه خوږ دے
قاعده دا ده که چرے دا د زړه په غني سره راشي نو په دے کښې برکت
وي او که چرے طمع او لالچ سره حاصل شي نو په دے کښې برکت نه کیږي.
دا سے وي (لکه څنګه چه دجُوعُ الْبَقَر بیماري وي) چه هر وخت خوري او دا
کیهانه مړ کیږي. حکیم رضی الله عنه عرض اُوکړو. اے د الله رسُولَه! تا سو نه پس
به اُوس هیڅوک نه تنګوم. دے نه پس حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خپله
زمانه خلافت کښې حکیم رضی الله عنه ته د بیت المال نه د څه ورکولو اراده اُوکړه.
ده انکار اُوکړه. دے نه پس حضرت عمر رضی الله عنه خپله زمانه خلافت کښې بیا
بیا اصرار اُوکړه خو ده (بیخي) انکار اُوکړه. (بخاري)

**فائده**:- هُم دا وجه ده چه نن صبا څمونږ خلقو په مالونو کښې برکت
نه کیږي چه لالچ او طمع کښې ګیر دي.

## (۱۰) د حضرت حُذَیفه رضی الله عنه د جاسُوسیٔ (مُخبِرئ) د پاره تلل

حضرت حُذَیفه رضی الله عنه فرمائي چه غَزوهٔ خندق کښې څمونږ یو طرف ته
خو د مکے کافران او هغوي سره د نورو کافرانو ډیرے ډلے وے چه په مونږ
باندے راختلے وے او د حملے د پاره تیار وُو. او بل طرف ته په خپله مدینه
منوره کښې د بنو قُرَیظه یهُودیان څمونږ په دُشمنئ لګیدلي وُو چه د هغوي
نه هر وخت خطره وه، چه هسے نه مدینه منوره خالي اُووینئ او څمونږ
اهل وعیال چرته بیخي ختم نه کړي. مونږ خلق د مدینے منورے نه بهر د
جنګ په سلسله کښې پراته وُو. او د منافقانو ډلو د کور خالي کیدو او د یوا خوالي

بهانے کوَلے او اجازت یے اخستلو خپلو کورُونو ته واپس تلل. او نبی کریم ﷺ به هر لجازت اخستونکی ته اجازت ورکوَلو. دِے دوران کښ یو شپه دومره سخته سیلئ راغله چه نهٔ دِدے نه وړاندے کله دا سے راغلے وه، او نهٔ دِدے نه پس. تیارهٔ دومره زیاته چه سړی څخه سرے خوځهٔ، خپل لاس هُم په نظر نهٔ راتهٔ. او هوَا دومره سخته چه دهغے شور د اسمان د برښنا پشان گړزهارے کوُو. مُنافقان خپلو کورُونو ته واپس کیدل. څمونږ د دریو سوؤ مجمَع دغه ځائ وه. نبی اکرم ﷺ د یو یو د حال پوښتنه کوَله. او په دے تیارهٔ کښ یے د هر خوا تحقیق کوَلو. په دے کښ څما خوا څخه نبی ﷺ تیریدلو. ما سره نهٔ خو د دُشمن نه د حفاظت د پاره څهٔ وسله وه. نهٔ د یخنئ نه د حفاظت د پاره څهٔ کپړه. صرف یو وړکوټے غوندے څادر وو چه په اَغوستو کښ تر پنډو پورے راتلهٔ او هغه هم څما نهٔ وو، د بی بی وو هغه ما اَغوستے وو. په پنډو باندے زمکے پورے اَخَتے وَم. نبی ﷺ پوښتنه اُوکړه. څوک یے؟ ما عرض اُوکړهٔ حُذیفَه. خو څهٔ د یخنئ له وجے پاسیدے هم نهٔ شوم. او د شرم له وجے زمکے پورے پیوست شوم. نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه پاسه اُودریږه او د دُشمنانو ډلو ته لاړشه. د هغوی خبر رَاوَړه چه څهٔ کیږی؟ څهٔ دغه وخت د وَیرے او د یخنئ له وجے بیقراره او د ټولونه زیات بد حاله وَم. خو حکم منلو د پاره پاسیدم. فورًا رَوان شوم. کله چه څهٔ روان شوم نو نبی ﷺ دُعا اُوکړه. اَللّٰهُمَّ احْفَظْهُ مِنْ بَیْنِ یَدَیْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ وَعَنْ یَمِیْنِهٖ وَعَنْ شِمَالِهٖ وَمِنْ فَوْقِهٖ وَمِنْ تَحْتِهٖ. "اے الله! ته دهٔ حفاظت اُوکړے د مخکښ نه، د رُستو نه، د ښی طرف نه او د گس نه، پورته نه او خکته نه". حُذَیفَه رضی الله عنه وائی چه د نبی ﷺ دا ارشاد فرمایل وُو چه گویا ما نه ویَرهٔ او یخنی بیخی لاړله او په هر یو قدم باندے دا معلومیده چه گویا گرمئ کښ روان یم. نبی ﷺ د تلو په وخت دا هم ارشاد فرمایلے وو چه لاس څپه اُونهٔ خوځوے. چپ چاپ اُوگوره راشه چه څهٔ کیږی. څهٔ چه هلته اُورسیدم نو اُوم لیدل چه اُور بلیږی او خلق

ورته تو ویرېږي. یو کس په اور لاس تودوي او په تښې باندې ئې راکاږي او د هر طرف نه "واپس ځئ، واپس ځئ" اوازونه راځي. هر یو کس د خپلې قبیلې خلقو ته اواز کوي، واؤ چه واپس ځئ. او د هوا د تیزئ په وجه ټول وارې طرفه د هغوي په خیمو باندې کانړي راورېږي. د خیمو پړي شلیږي او اسونه وغیره ځناور هلاکېږي. ابوسفیان چه د ټولو جماعتونو ډېره وخت گویا سردار جوړ شوې وو. په اور تودېږو. خما زړه کښې راغله چه موقع ښه ده. د دې ختم کړم. د ترکش نه م غشې را اوویسته. لیندۍ کښې م کېخوده. خو بیا د نبي ﷺ ارشاد را یاد شو چه څه حرکت اونه کړې، اوگوره او راشه. په دې وجه م غشې ترکش کښې کېخوده. هغوی شک مند اوشو. وې وئیل. تاسو کښې څوک جاسوس دے. هر یو کس د خپل برابر ملګري لاس اونیسي. ما زر د یو سړي لاس اونیوه. تپوس م ترې اوکړه، ته څوک یې؟ هغه اووې سبحان الله ته ما نه پیژنې؟ ځه فلانکې یم. ځه د هغه ځایه واپس راغلم. کله چه نیمې لارې ته را اورسیدم نو تقریباً شل سواره چه پټکي ئې تړلي وو، ما سره ملاؤ شو. هغوی اووې خپل اقا ته اوایه چه الله تعالیٰ د دشمنانو انتظام اوکړه. بې فکره اوسه. ځه واپس را اورسیدم نو نبي ﷺ یو ورکوټي غوندې څادر په سر کړې وو، مونځ ئې کولو. همیشه ئې دا عادت شریفه وو چه کله به څه د ویرې خبره پېښه شوه. نو نبي ﷺ به مانځه طرف ته متوجه کېدلو. د مانځه نه په فارغېدو ما د هغه ځای کوم منظر چه لیدلې وو عرض کړه. د جاسوس قصه ئې چه واورېدله نو غاښونه مبارک ئې د خندا نه اوځلېدل. نبي ﷺ څه خپلو پښو مبارکو ته نزدې سملولم. او د خپل څادر لږه حصه ئې په ما باندې واچوله. ما خپله سینه د نبي اکرم ﷺ تلو سره پیوسته کړه. (در منثور)

**فائده**:- د دې حضراتو دا حصه وه او د دوی د پاره دا مناسبه وه چه د ومره قدرې سختو او د تکلیفونو په حالت کښې هم حکم منل د بدن، زړه، جان و مال د ټولو نه زیات خوښ وو. الله جل شانهٔ نا بغیرا ستحقاقه او

بغیر اهلیته مانا پاك ته هم ددوی د اتباع څهٔ حصه نصیب کړی (انوارِ قبر)

# لسم باب

## دَزَنانو دِینی جَذبه

حقیقت دا دے. کهٔ چرے زَنانو کښې د دین شوق او د نیکو اعمالو جذبه پیدا شی نو په اولاد د دے اثر ضرور کیږی. د دے خلاف څمونږ زمانه کښې اولاد د شروع نه په داسے ماحول کښې ساتلے شی چه هغے کښې په هغه د دین خلاف اثر پریوزی. یا کم نه کم دا چه د دین له خوا بے توجهی پے پیدا شی. کله چه د شروع ژوند په داسے ماحول کښې تیر شی نو د دے نه چه کوم نتیجے پیدا کیږی هغه ښکاره دی.

### ① تسبیحاتِ حضرتِ فاطمه رضی الله عنها

حضرت علی کرم الله وجهه خپل یو شاگرد ته اوفرمایل چه څهٔ تاته خپله او د فاطمه رضی الله عنها کومه چه د نبی علیه السلام د ټولو نه زیاته نیازبینه لوره وه، قصه واورَوم. شاگرد اُووے ضرور. وے فرمایل چه هغے به په خپل لاس (دلاسی) په میچنه اوړهٔ کولے چه د هغے په وجه یے په لاس کښې پولئی پیدا شوے وے او بنجیله به یے د اوبو ډک مشك راوړهٔ چه د هغے په وجه یے په سینه د مشك د رسئ نخښے جوړے شوے وے. او د کور جارو وغیره به یے په خپله وهله چه د هغے په وجه به یے ټولے جامے خیرنے وے. یو وارے نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته څهٔ غلامان او وینځے راغلے. ما فاطمے رضی الله عنها ته اُووے چه ته هم لاړه شه، د نبی علیه السلام نه یو خدمتګار اوغواړه چه ستا څهٔ مدد کوی. هغه د نبی علیه السلام خدمت کښې حاضره شوه. هلته گڼړه وه او مزاج کښې یے شوم حیاء ډیره زیاته وه. نو د شرم په وجه د ټولو مخکښې پلار نه هم ورته

غوښتلو کښې حَيَا راغلهٔ واپس راغله. دوېمه وَرځ نبي ﷺ پخپله تشریف راوړهٔ ارشاد یې اُوفرمایهٔ چه فاطمې! پرون ته دځهٔ کار د پاره راغلې وې؟ هغه دشرم دوَجې چپ شوه. ما عرض اُوکړهٔ چه اے د الله رسُوله! د دې داحالت دے چه دمیچنې دوجې په لاسونو کښې پولئې جوړې شوې دي او د مَشک دوَجې یې په سینه د رَسۍ نخښې جوړې شوې دي. هر وخت د کور کاروبار په وجه یې جامې خیرنې وي. ما دې ته پرون ویلي وو چه نبي ﷺ ته خادمان راغلي دي. یو ته هم اُوغواړه ځکه د راغلې وه. بعضې روایتونو کښې راغلي دي چه حضرت فاطمې رضی اللہ عنہا عرض اُوکړهٔ چه اے د الله رسُوله! زما او د علي رضی اللہ عنہ یوه بستره ده او هغه هم د کِلا یوه څرمنه ده. د شپې هغه اُوغوروُو پرې اُودهٔ شُو. سحر په هغې وابنهٔ دلنے ولچوو په اُوښ یې اُوخورو. نبي ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه لوُرې صبر کوه. حضرت موسیٰ علیہ السلام او د هغهٔ بي بي څخه لسو کالو پورې یوه بستره وه. هغه هم د حضرت موسیٰ علیہ السلام چُغه وه. د شپې به یې هم هغه اُغوَرَوُله، پرې به اُودهٔ شُو. ته تقویٰ حاصله کړه او الله تعالیٰ نه ویریږه او د خپل پروردِگار فریضه ادا کوه. او د کور کاروبار کوه. او کله چه اُودهٔ کیدو د پاره پریوځې نو سُبْحَانَ الله درې دېرش ځله، اَلْحَمْدُ لِلّٰه درې دېرش ځله او اَللّٰهُ اَکْبَرُ څلور دېرش ځله وایه. دا د خادم نه هم زیات ښهٔ څیز دے. حضرت فاطمې رضی اللہ عنہا عرض اُوکړهٔ، ځهٔ د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول ﷺ نه راضي یم. (ابوداؤد)

**فائده**:- یعنې چه کومه د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رَسُول ﷺ رضا څما بارهٔ کښې ده ما ته په خوشحالۍ منظوره ده. دا وو ژوندګ د دواړو جهانونو د باچا د لوُرِ. نن مونږ خلقو کښې چا سره دوه پیسې پیدا شي نو د هغهٔ د کور خلق، د کور کاروبار خویږ طرف ته خپل کار هُم نهٔ شي کوُلے. تیتهٔ کښې د اُوبو لوټا ورته هُم خدمتګاره بهٔ دي.

دے واقعه کښې کومه چه پورته ذکر کړے شوه صرف د اُودهٔ کیدو د وخت ذِکر دے. نورو حدیثونو کښې د هر مانځهٔ نه پس درې دېرش

وارے دا درے وارہ کلمے او بولو لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ وئیل هم راغلی دی۔

## ② دحضرت عائشے رضی اللہ عنہا صدقه

دحضرت عائشے رضی اللہ عنہا په خدمت کښ دوه لوئی لوئی بوری درهمو (روپو) دَ کے پیش کړے شوے چه په هغے کښ دیولاکھ نه زیاتے درهمے وے حضرت عائشے رضی اللہ عنہا طَبَاق راؤغوختلو او هغه یے دَ ډک ډک تقسیمول شروع کړه او ماښامه پورے یے ټولے ختمے کړے۔ یو درهم یے هم باقی پرینخوده۔ په خپله یے روژه وه۔ د روژه ماتی وخت کښ یے وینځے ته اووے چه د روژه ماتی دپاره څهٔ راوړه۔ هغے یوه ډوډئ او د زیتون تیل راوړل او عرض یے اوکړه۔ څومره به ښهٔ وے چه دیو درهم غوښه مو راغوختے وے او ښن مو روژه په غوښه ماته کړے وے۔ ورے فرمایل اوس پیغور ورکولو سره څهٔ کیږی هغه وخت به د راته یادکړے وے نو ما به راغوختلے وے۔ (تذکره)

**فائده**:- دحضرت عائشے رضی اللہ عنہا په خدمت کښ د دے قسمه نذرانے به امیرمعاویه، حضرت عبدالله بن زبیر رضی اللہ عنہما وغیره حضراتو له طرفه پیش کولے شوے۔ ولے چه دغه زمانه دفتوحاتو یعنی دنړوی فراختئ د ډیروالی وه۔ په کورونو کښ به دغلے په شان د اشرفو ډهیری پراتهٔ وُو۔ او سره دَدے خپل ژوند یے ډیر ساده او ډیر معمولی تیرولو۔ ان تردے چه د روژه ماتی دپاره دخد متګارے وریادولو ضرورت وُو۔ پینځویشت زره درهمو پورے یے تقسیم کړے اودایے خیال هم رانغے چه څمارو ژه ده۔ او غوښه راغوختل دی۔ نن صبا دَ دے قسمه واقعات دومره لرے شوی دی چه پخپله دواقعے رښتیا کید وکښ شک پیدا کیږی۔ خو دغے زمانے عام ژوند چه دکومو خلقو په نظر کښ دے د هغوی په نزد او دَ دے قسمه په سوؤنو واقعات هیڅ هم دحیرانتیا خیز نهٔ دے۔

په خپله دحضرت عائشے رضی اللہ عنہا ډیر واقعات دَ دے نزد دے نزدے دی۔

یو وارے روژه وه او په کور کښې دیوے پوډئ نه سوا هیڅ نه وُو. یو فقیر راغے سوال یے اُوکړو. خادمے ته یے اُوفرمایل چه هغه پوډئ ورله ورکړه. هغے عرض اُوکړو چه د روژه ماتی دپاره کور کښې هیڅ نشته. وے فرمایل هیڅ پرواه نشته هغه پوډئ ورته ورکړه. هغے ورکړه. (موطا). یو وارے یے یو مار مړ کړو. په خوب کښې اُولیدل چه څوک وائی چه تا یو مُسلمان قتل کړو. وے فرمایل. که چرے هغه مُسلمان وے نو د نبی صلی الله علیه وسلم بیبیانو کره به نه راتلو. هغه اُووے. دیر دے په حالت کښې راغلے وو. په دے اُویریده، او ویخه شوه او دولس زره درهمه یے، چه دیو سړی خون بها وی، صدقه کړے. عُروَه رضی الله عنه فرمائی چه ما یو وارے اُولیدله چه اُویا زره درهمے صدقه کړے او په قمیص کښې پیوند لګیدلے وو. (طبقات)

## ③ د حضرت ابن زُبیر رضی الله عنه حضرت عائشه رضی الله عنها لره د صدقے نه منع کول او د هغے خفه کیدل

حضرت عبد الله بن زُبیر رضی الله عنه د حضرت عائشے رضی الله عنها خوریے وو. دے به هغه سره ډیر محبت کولو. ګویا دے هغه خوریے پاللے وو. د حضرت عائشے رضی الله عنها د دے فیاضئ (سخاوت) نه پریشانه شو چه په خپله خو تکلیفونه اُوچتوی او چه څۀ ورته راځی فوراً یے خرڅ کوی. یو وارے یے اُووے چه د ترور لاس په څۀ طریقه بندول پکار دی. حضرت عائشے رضی الله عنها ته دا خبر اُورسیده. په دے خفه شوه چه ځما لاس بندول غواړی. نو د هغه سره یے د خبرو نه کولو د نذر (منتخب) په طور قسم اُوخوړو. حضرت عبد الله بن زُبیر رضی الله عنه ته د ترور د ناراضتیا د پیر خفګان اُوشو. د ډیرو خلقو په ذریعه یے) سفارش اُوکړو خو هغے به د خپل قسم عذر کولو. آخر هر کله چه عبد الله بن زُبیر رضی الله عنه ډیر پریشان شو. نو د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د ملمانه خیلو دوه حضرات یے سفارشی ځان سره بوتله. هغه دوارو حضراتو اجازت واخست، د ننه لاړل. د دے هم په پټه ورپسے شو هر کله چه هغه دواړه د پردے رُستو کیناستل. او حضرت عائشه رضی الله عنها

پرده کښ دننه ناسته خبرے اترے یے شروع کړے. نو دے زر پرده کښ دننه لاړا او ترژړته ورتر غاړه شو او ډیر یے اوژړل او خوشامند یے اوکړے ورغوږ ورته ورغوږ او ورغوږ ورغوږ او مُسلمانان سره دخبر وپی دکیسه کړل. او مُسلمانان سره دخبرو پی کوم دغه دوار و حضراتو هُم سفارش کوُلو. او مُسلمانان سره دخبرو پی خوږو متعلق دنبی علیه السلام ارشادات یے ورته یادول. او حدیثونو کښ چه کوم مُمانعت درے راغلے دے هغه یے ورته اوروُل. چه دهغے په وجه حضرت عائشه رضی الله عنها هغے حدیثونو کښ چه کوم مُمانعت او مُسلمان سره خبرے نهٔ کوُلو باندے کوم عذاب راغلے وو، ددے برداشت یے اوُنهٔ لرلے شو او په ژړا شوه. آخر معاف یے کړهٔ او خبرے یے ورسره اوکړے. خو ددے قسم په کفاره کښ یے بار بار غلامان ازادول. آن تردے چه څلویښت غلامان یے ازاد کړل. او کله چه به ورته د دغه قسم ماتولو خیال راغے نو دومره به یے ژړل چه لوپټه به یے هم د اوښکو نه لوندهٔ شوه. (بخاری)

**فائده**:- مونږ خلق سحر نه تر ماښامه پورے څومره قسمونه په یوه ساه خورُو او بیا ددے څومره پرواه کوُو. ددے جواب پخپله د فکر کوُلو دے دویم کس څوک هر وخت چا سره وی چه ورته اوښائی. خو د کوم خلقو په نزد چه دالله تعالیٰ دنوم عزت دے او دالله تعالیٰ سره لوظ کوُلو نه پس دهغے پوره کوُل ضروری دی. دهغوی نه تپوس اوکړهٔ چه دلوظ په نهٔ پوره کوُلو زړهٔ باندے څهٔ تیریږی. هم په دے وجه حضرت عائشے رضی الله عنها ته به چه کله دا واقعه یاده شوه نو ډیر زیات به یے ژړل.

## ② حضرت عائشے رضی الله عنها دالله تعالیٰ نه دویرے حالت

حضرت عائشے رضی الله عنها سره چه دنبی کریم صلی الله علیه وسلم څومره محبت وو، هغه دچا نه پټ نهٔ دے. آن تردے چه کله به نبی علیه السلام نه چا تپوس اوکړهٔ چه ستاسو ټولو نه زیات محبت چا سره دے؟ نو فرمایل به یے، عائشے رضی الله عنها سره. دے سره سره دمسئلو نه دومره زیاته خبرداره وه چه لوی لوی صحابه به دمسئلو دتحقیق دپاره ددوی په خدمت کښ حاضریدل. حضرت

جبرئیل علیه السلام به دې ته سلام کولو. جنت کښې هم حضرت عائشې رضی الله عنها ته د نبي صلی الله علیه وسلم بي بي کېدو خبرې ورکړې شوې دے. منافقانو په دوی تهمت اولګولو. نو قرآن شریف کښې د دوی براءة نازل شو. پخپله حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي چه لس خصوصیات ما کښې داسې دي چه بله بي بي په هغې کښې شریکه نه ده. ابن سعد رضی الله عنه هغه تفصیل سره نقل کړي دي. د صدقې خیرات حال د دې وړو مېنو قصو نه معلوم شو. خو د دې ټولو خبرو سره د الله تعالی نه د وېرې دا حال وو چه فرمائیل به یې چه ارمان! څه وُنه وے چه تسبیح م کولے او د آخرت څه مطالبه ما ته نه وے. ارمان! څه کا نړے وے ارمان! څه د خاورې لټه وے. ارمان! څه پیدا شوې نه وے. ارمان! څه د وُنې پاڼړه وے. ارمان! څه واښه وے. (بخاري)

**فائده:-** د الله تعالی نه د وېرې دا منظر د وړیم باب پنځم قصه کښې هم تېر شوے دے. د دې حضراتو دا عام حالت وو. د الله تعالی نه وېرېدل د دوی حصه وه.

## ⑤ د حضرت ام سلمه رضی الله عنها د خاوند دعا او هجرت

ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه رومبے د حضرت ابو سلمه رضی الله عنه په نکاح کښې وه. د دواړو ډېر زیات محبت او تعلق وو چه د هغې اندازه د دې قصې نه کیږي. چه یو ځل ام سلمه رضی الله عنها ابو سلمه رضی الله عنه ته اووې چه ما داورېدلي دي که چرې سړے او ښځه دواړه جنتیان وي او ښځه د سړي نه پس چا سره نکاح اونه کړي نو هغه ښځه به جنت کښې هم هغه سړي ته ورکولے شي. دا رنګې که چرې سړے دویم ښځې سره نکاح اونکړي

---

له که چرې ښځه دویم خاوند سره نکاح اوکړي نو په دې کښې دوه حدیثونه راغلي دي. یو حدیث کښې راغلي دي چه هغه به دې بل ته ورکولے شي او دویم حدیث کښې راغلي دي چه هغې ته به اختیار ورکړے شي چه کوم خاوند سره اوسېدل غواړي هغه اختیار کړه. دا دویم حدیث زیات مشهور دے. او دا هم کیدے شي چه کومو ښځو ته د واړه خاوندان برابر وي د هغوی په حق کښې رومبے حدیث وي. د دې باره کښې هم روایتونه مختلف دي چه هر یو کس ته به څو مره بیبیانې ورکولے شي. ازالة الشبهات عن الشیخ رحمه الله

نو هم هغه ښځه به دے سړی ته ورکولے شی۔ دے دپاره راځه مونږ دواړه
لوظ اوکړو چه مونږ نه خوک هم مخکښے مړ شی هغه به بل چا سره نکاح نه کوی۔
ابوسلمه رضی الله عنه اووے چه ته به زما خبره اومنے؟ ام سلمه رضی الله عنها اووے چه زهٔ
خو دے دپاره مشوره کوم چه ستا خبره اومنم۔ ابوسلمه رضی الله عنه اووے چه
زما د مرګ نه پس ته نکاح اوکړه۔ بیا یے دعا اوکړه چه اے الله! زما نه پس
ام سلمه ته زما نه غوره خاوند ورکړے۔ چه نه دے ته رنج وغم رسوی، نه
ورته تکلیف ورکوی۔ د اسلام په شروع کښ دواړو ښځے خاوند د حبشے هجرت
کړے وو۔ دے نه پس د هغه ځائ نه واپسی باندے د مدینے منورے
ته هجرت یے اوکړو چه د هغے تفصیلی قصه پخپله ام سلمه رضی الله عنها بیانوی۔ چه
کله ابوسلمه رضی الله عنه د هجرت اراده اوکړه نو په خپل اوښ یے سامان بار کړو او زهٔ
او زما ځوئ سلمه رضی الله عنه یے پرے سواره کړو۔ او په خپله یے د اوښ مهار لاس
کښ اونیولو، روان شو۔ زما د پلار کورنئ خلقو بنو مغیرة اولیدهٔ۔ هغوی ابوسلمه
رضی الله عنه ته اووے چه ته د خپل ذات باره کښ خو ازاد یے خو مونږ خپله جینئ
تا سره ولے پریږدو چه ښهر په ښهر ګرزی۔ دا یے اووئیل او د اوښ مهار یے
د ابوسلمه رضی الله عنه د لاس نه راخکلو۔ او زهٔ یے په زور واپس راوستم۔ زما د
سخر کورنئ خلقو بنو الاسد چه د ابوسلمه رضی الله عنه خپلوان وو۔ کله چه هغوی خبر
شو، نو هغوی زما د پلار کورنئ بنو مغیرة سره په جهګړه شو چه تاسو ته د خپلے
جینئ خو اختیار دے خو مونږ خپل هلک سلمه تاسو څنګه ولے پریږدو۔
هر کله چه تاسو خپله جینئ د هغے خاوند سره پرے نخوده۔ دا یے اووے او زما
ځوئ سلمه یے هم زما نه واخست۔ اوس زهٔ او زما ځوئ او زما خاوند
درے واړه جدا جدا شو۔ خاوند خو مدینے ته لاړو او زهٔ خپلے پلار کورنئ کره
پاتے شوم او ځوئ م د خپل نیکهٔ کور ته اورسید۔ زهٔ به روزانه میدان ته
وتلم او ما بنامه پورے به م ژړل۔ د ټول یو کال زما په ژړا کښ تیر شو۔
نه زهٔ خاوند ته تلے شوم، نه بچے ما ته راکولے شو۔ یوه ورځ زما د تره ځوئ
ته زما په حال رحم راغے۔ خپلو خلقو ته یے اووے چه تاسو ته په دے

مسکینه باندے رحم نه راځي چه دا مور بچي او د خاوند نه جُدا کړے ده.
داولے نه پریږدی. لندره دا چه ځما د تره ځوئ په خبر واتړو هغوی زما
په دے راضی کړل. هغوی ما ته اِجازت راکړهٔ. که چرے ته خپل خاوند
ته تلل غواړے نو لاړه شه. دا چه بَنُو الاَسَد اولیدل نو هغوی هم ځوئ
راکړهٔ. ما یو اوښ تیار کړهٔ. او بچے مے غیږ کښ واخست ما ئیلو ولے په اوښ
باندے سوره شوم، مدینے ته روانه شوم. درے غلو رمیله تلے وَم، چه
تنعیم کښ عُثمان بن طلحه ما ته ملاؤ شو. ما نه یے تپوس اوکړهٔ چیرته ځے
کوم خوا ځے؟ ما اُووے چه خپل خاوند پسے مدینے ته ځم. هغهٔ اُووے
په څوك درسره شته؟ ما اُووے چه د الله تعالیٰ د ذات نه سِوا هیڅوك نشته.
هغهٔ ځما د اوښ مُهار اُونیولو او مخکښ مخکښ روان شو. په الله پاك مے د
قسم وی چه ما د عُثمان نه زیات شریف سړے هیڅوك نهٔ دے لیدلے. کله
چه به د کوزیدو وخت شو. هغهٔ به ځما اوښ کینولو. په خپله به یو اړخ ته د
وُنے شا ته شو ځهٔ به کوزه شوم، او کله چه به د سوریدو وخت شو. په
اوښ به یے سامان وغیره واچولو، ما ته نزدے به یے کینولو. ځهٔ به په
هغے سوره شوم. بیا به هغه راغے او د هغهٔ مُهار به یے اُونیولو. مخکښ مخکښ
به روان شو. په دے شان مونږ مدینے ته اُورسیدو. و. کله چه قُبا ته اُورسیده
نو هغهٔ اُووے چه ستا خاوند دلته دے. تر دے وخته ابو سلمه رضی الله عنه
قُبا کښ مُقیم وو، عُثمان ځهٔ مدینے ته اُورسولم. په خپله مکے مکرمے ته
واپس شو. بیا یے اُووے چه په الله تعالیٰ مے د قسم وی چه د عُثمان بن طلحه
نه زیات کریم او شریف سړے ما نهٔ دے لیدلے. او په دے کال کښ څومره مُشقت
او تکلیف چه ما برداشت کړهٔ شاید چه چا کړے وی. (اُسد الغابه)

**فائده:-** الله تعالیٰ باندے د توکل خبره وه چه ځان له یو ئیلے د هجرت
په اراده روانه شوه. الله جل شانهٔ په خپل فضل د هغے د مدد د سامان انتظام
اُوکړهٔ. ځوك چه په الله تعالیٰ باندے توکل کوی الله جل شانهٔ د هغوی مدد
کوی. د بنا کانو زړونه د هغهٔ په قبضه کښ دی. د هجرت سفر که څه هم ځوان محرم

ورسره نه وی نو یوائے هم جائز دے په شرط د دے چه هجرت فرض وی. د دے
دپاره د دے یوائے سفر باندے شرعی اِعتراض نشته۔

## (۶) د حضرت اُمِّ زیاد رضی الله عنها دیو شو زنانو سره د خیبر په جنګ کښې شرکت

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم زمانه کښې سړو ته خو په جهاد کښې د شرکت شوق وو.
چه د هغې واقعات په کثرت سره نقل کړے شی۔ زنانه هم په دے څیز کښې
د سړو نه رستونه وے۔ همیشه به یې شوق لرلو. کله چه به ورته موقع
په لاس ورغله نو ځان به یې رسَوو۔ اُمِّ زیاد رضی الله عنها وائی چه د خیبر په جنګ
کښې مونږ شپږ زنانه جهاد کښې شریکیدلو دپاره روانے شو. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم
ته خبر اُوشو. نو مونږ ه یې راوغوختلو. د نبی علیه السلام په مخ مبارک د غصے اثران
وُو. اِرشاد یې اُوفرمایه چه تاسو د چا په اجازت راغلے یئی؟ مونږ عرض
اُوکړو۔ اے د الله رسوله! چه مونږ ته وړئی ریشل راځی او په جهاد کښې
د دے ضرورت پیښیږی. د زخمونو دارُوګان هم څونږ سره دی۔ او که نور
هیڅ نه وی نو مجاهدینو ته غشی ورکولو کښې به مدد ورکوو۔ او چه څوک تاجوړه
وی د هغه به دارو درملو مدد کوو. ستوان وغیره اُویو کښې ګډ وَل او څلګونوکښې
پکار راتلے شو۔ نو نبی علیه السلام دا یسارید و اجازت ورکړه. (ابوداؤد)

**فائده:-** الله جل شانهٗ د هغه وخت زنانو کښې هم څه داسے شوق او زړورتیا
پیدا کړے وه چه نن صبا سړو کښې هم نشته۔ اُوګورئ دا تولے په خپل شوق
پخپله اُورسیدے او څومره کارُونه یې د خپلو کولو تجویز کړه۔ د حُنَین په جنګ
کښې اُمِّ سُلَیم رضی الله عنها سره د دے چه حامله وه، عبدالله بن طلحه یې په ګیډه
وو، شریکه شوه۔ او یوه چاړه به یې ځان سره ساتله. نبی علیه السلام اُوفرمایل
دا څه دپاره ده۔ عرض یې اُوکړو. که چرے څوک کافر ماته نزدے راشی نو د
هغه په خیټه کښې به یې ټومبم۔ د دے نه وړاندے یې د اُحُد جنګ کښې هم
شریکه شوے وه۔ د زخمیانو دارُو دَرمل او د بیمارانو خدمت به یې کولو۔
حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه ما حضرت عائشه او اُمِّ سُلَیم رضی الله عنهما اُولیدے چه په

بیرون جستې سره یې دا اوبه د لښکو نه یې راوړل او په زخمیانو یې اوبه څکولې او چه کله به خالي شو، نو بیا به یې ډک راوړل.

## ⑦ د اُمِ حَرام رضي الله عنها غزوة البحر کښې د شرکت خواهش

حضرت اُمِ حَرام رضي الله عنها د حضرت انس رضي الله عنه ترور وه. نبي کريم صلی الله علیه وسلم به د پېر د دې کور ته تشریف اُوړو. او کله نا کله د غرمې وغیره به یې هم هلته ارام کولو. یو وار دې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د دې په کور کښې ارام کولو، چه مُسکې راپاسید و. اُمِ حرام عرض اُوکړو چه اې د الله رسوله! خما مور پلار دې په تاسو قربان وي په کوم خبره تاسو مُسکي شوئ. دې فرمایل چه څما د اُمت څه خلق ما ته اُوخودلې شو چه سمندر باندې د جنګ په اراده باندې سواره دي لکه څنګه چه په تختونو باندې بادشاهان ناست وي. اُمِ حرام رضي الله عنها عرض اُوکړو چه اې د الله رسوله! دُعا اُوفرمایئ چه الله جل شانه ما هم په هغوي کښې شامله کړي. نبي صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل، ته به هم هغوي کښې شامله شې. د دې نه پس نبي صلی الله علیه وسلم ارام اُوکړو او بیا مُسکې راپاسید ه. اُمِ حرام رضي الله عنها دې بیا د مُسکي والي د سبب تپوس اُوکړو. دوي بیا هغه ارشاد اُوفرمایه. اُمِ حرام رضي الله عنها بیا هغه درخواست اُوکړو چه اې د الله رسوله! تاسو دُعا اُوکړئ چه زه هم د هغوي نه شم. نبي صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل ته به د رومبي جماعت کښې یې.
حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه خلافت کښې امیر مُعاویه رضي الله عنه چه د شام حاکم و، په جزائر قبرص باندې د حملې کولو اجازت اُوغوخته. حضرت عثمان رضي الله عنه ورته اجازت ورکړو. امیر مُعاویه رضي الله عنه یو لښکر واخست حمله یې اُوکړه چه په دې کښې اُمِ حرام رضي الله عنها د خپل خاوند حضرت عُباده رضي الله عنه سره په لښکر کښې شریکه شوه او په واپسئ کښې په یوه قچره سوریده چه هغه اُوتریده او دا هغې نه پریوتله. سټ یې مات شو او وفات شوه او هم هلته دفن کړے شوه. (بخاري)

**فائده**:- دا شوق وو په جهاد کښې د شرکت چه په هر یو جنګ کښې د شرکت دُعا یې کوله. خو چونکه د دې دواړو جنګونو کښې رومبي جنګ کښې وفات کیدل

بے مقرر وُو. حُکه یے په دویم جنګ کښې شرکت اُونه کړے شو. او هم په دے وجه نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام په دے کښې د شرکت دُعا هُم نه وه کړے.

## ⑧ د حضرت اُمِّ سُلیم رضی اللہ عنہا ځوئ په مرګ خاوند سره همبسترۍ

اُمِّ سُلیم رضی اللہ عنہا د حضرت اَنَس رضی اللہ عنہ موروه چه د خپل رومبی خاوند یعنی د حضرت اَنَس رضی اللہ عنہ د پلار د وفات نه پس کونډه شوے وه ا و د حضرت اَنَس رضی اللہ عنہ د پالنے په خیال یے ځو وُر ځو پورے نکاح نه وه کړے. د دے نه پس یے حضرت اَبُو طلحه رضی اللہ عنہ سره نکاح اُوکړه چه د هغهٔ نه یے یو ځوئ اَبُو عُمَیر پیدا شو. هغهٔ سره به نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم کله چه به د هغوی کور ته تشریف یوړه نو خوش طبعی به یے کوله. اتفاقاً اَبُو عُمَیر وفات شو. اُمِّ سُلیم رضی اللہ عنہا هغه پاک صفا کړهٔ، وِے لمبولو. کفن یے ورته واغوستوو، او په یو کټ کښې یے سملاؤ. د اَبُو طلحه رضی اللہ عنہ روژه وه. اُمِّ سُلیم رضی اللہ عنہا هغهٔ د پاره خوراک وغیره تیار کړهٔ او خپله یے هُم خپل ځان بناسته کړهٔ. خوشبو وغیره یے اُولګوله. شپے ته یے خاوند راغے، ډوډئ یے اُوخوړله. د ځوئ د حال تپوس یے اُوکړهٔ. نو دے ورته اُووے چه اُوس خو په آرام معلومیږی. یعنی بنهٔ شوے دے. هغه بے فکره شو. د شپے خاوند ورسره همبستری یعنی کوروالے هُم اُوکړهٔ. کله چه سحر راپاسیده نو دے ورته اُووے چه د یو خبرے تپوس کوم. که چرے څوک چا ته څهٔ څیز قرض ورکړی. بیا ترے هغه واپس غواړی نو واپس کول پکار دی یا ځان سره ساتل او نهٔ واپس کول؟ ده ورته اُووے ضرور واپس کول پکار دی، د ایسار ولو یے څهٔ حق دے. غو خطے څیز واپس کول ضروری دی. دا چه اُمِّ سُلیم رضی اللہ عنہا واوریدل، وِے ویل چه ستاسو ځوئ کوم چه د الله تعالیٰ امانت وو، هغه الله تعالیٰ واخستهٔ. اَبُو طلحه رضی اللہ عنہ په دے غمژن شو، اُو وِے ویل چه تا څهٔ ولے خبر نهٔ کړم. سحر د نبی صلی اللہ علیہ وسلم په خدمت کښې اَبُو طلحه رضی اللہ عنہ دا ټوله قِصه عرض کړه. نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ورته دُعا اُوکړه او وِے فرمایل چه شاید الله جلّ شانهٔ په دغه شپه کښې برکت ولچوی.

یو انصاری وائی چه ما د نبی ﷺ د دُعا برکت اُولیدهٔ چه د دغے شپے د حمل نه عبدالله بن طلحه رضی الله عنه پیدا شو چه د هغهٔ نهه بچی اُوشو. او ټولو قرآن شریف اُولوستهٔ. (بخاری - فتح)

**فائده:-** ډیر د صبر او د همت خبره ده چه خپل خوئی د مرشی او دا رنگے هغه برداشت کړی چه خاوند هم محسوس نه کړی. ولے چه د خاوند روژه وه نو په دے خیال که چرے خبر شی نو خوراک به یے هم مشکل شی.

## ⑨ د حضرت اُمِّ حَبِیبَه رضی الله عنها خپل پلار په بستره نهٔ کینول

اُمُّ المؤمنین حضرت اُمِّ حَبِیبَه رضی الله عنها د نبی اکرم ﷺ نه وړومبے د عبید الله بن جحش په نکاح کښ وه. دواړه ښځه خاوند یو ځائے مسلمانان شوی وو. او د حبشے هجرت یے هم یو ځائے کړے وو. هلته چه لاړل، خاوند یے مرتد شو او په حالت د اِرتِدَاد کښ مړ شو. حضرت اُمِّ حَبِیبَه رضی الله عنها دا د کنډتوب زمانه حبشه کښ تیره کړه. نبی اکرم ﷺ ورته د نکاح پیغام اُولیږهٔ او د حبشے د بادشاه په معرفت نکاح اُوشوه. څنګه چه د باب په ختمید و د بیبیانو په بیان کښ به راشی. نکاح نه پس مدینے منورے ته یے تشریف راوړو. د صلح په زمانه کښ د دے پلار ابو سُفیان مدینے منورے ته راغے چه نبی ﷺ سره یے د صلح مضبوطئ د پاره خبرے اترے کولے. د لور د ملاقات د پاره لاړ. هلته بستره ورپیړلے وه. په هغے کیناستو نو حضرت اُمِّ حَبِیبَه رضی الله عنها هغه بستره راغونډه کړه. پلار یے حیران شو. چه په ځائے د بسترے غوړولو هغه غوړیدلے یے هم راغونډه کړه. تپوس یے اُوکړو چه دا بستره ځما قابله نه وه ځکه دِ راغونډه کړه یا ځهٔ د دے بسترے قابل نهٔ وم؟ حضرت اُمِّ حَبِیبَه رضی الله عنها اُوفرمایل چه دا الله تعالیٰ د پاک او د خوږ رسُول ﷺ بستره ده او ته مُشرک ناپاک یے د دے د پاسه کینولے نشم. پلار یے په دے خبره ډیر خفه شو. او وے ویل چه ته ما نه جدا کید و نه پس بد و عادتونو کښ اخته شوے خو د اُمِّ حَبِیبَه رضی الله عنها په زړهٔ کښ چه د نبی ﷺ کوم عظمت او قدر وو، د هغے په لحاظ هغ

د کله دا برداشت کولے شوه چه یو ناپاك مُشرك پلار دی یاکهٔ بل خوك، د نبی علیه الصلوة والسلام بستره باندے کینی.

یو ځلے د نبی علیه الصلوة والسلام نه د څا بنت د مونځ د دولسو رکعتو فضیلت واوریدهٔ نو همیشه به یے دا په پابندئ سره کول. د دے پلار چه د هغهٔ قصه اوس تیره شوه، رُستو مُسلمان شوے وو. هرکله چه د هغهٔ وفات اُوشو نو په دریم وَرځ یے خوشبوئی راوُغوښتله او هغه یے استعمال کړه. او وے فرمایل چه ما ته نهٔ د خوشبوئی ضرورت وو، نه شوق. خو ما د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه دا فرمایل اَوریدلی وُو چه زنانه ته جائز نهٔ دی چه د خاوند نه علاوه چا باندے د دریو وَرځو نه زیات غم اُوکړی. البته خاوند د پاره څلور میاشتے لس وَرځ دی څکه خوشبوئی استعمالوم، چه غم اُونه کنړلے شی. هرکله چه پخپله یے د وفات وخت راغے نو حضرت عائشه رضی الله عنها یے راوُغوښتله او ورته یے اُووے چه څما او ستا مُعامله د بنُووه او د بنُو په خپل مینځ کښ څهٔ ناڅهٔ خبره باندے لږ ډیر خفګان راځی. الله تعالیٰ دِ ما هم مُعاف کړی او تا هم. حضرت عائشے رضی الله عنها اُوفرمایل الله تعالیٰ دِ تا ته ټول هرڅهٔ مُعاف کړی او مُعافی دِ درکړی. دا یے چه واوریدل، وے ویل چه تا ما ته دا وخت ډیره خوشحالی راوُرسوله. الله تعالیٰ دِ تا هم خوشحاله او تر و تازه لری. دے نه پس د غسے یے اُمِّ سَلمه رضی الله عنها ته هم سړے اُولیږهٔ. (طبقات)

**فائدہ:** د بنُو په خپل مینځ کښ داسے تعلقات وی چه د یویل شکل لیدل هم نهٔ غواړی خو دے ته دا فکر وو چه د دُنیا څهٔ مُعامله ده هغه دلته ختمه شی او د اخرت پیټے په سر پاتے نشی. او د نبی علیه الصلوة والسلام د محبت او عظمت اندازه خو د دے بسترے د معاملے نه اُوشوه.

## ⑩ د حضرت زَینَب رضی الله عنها د اِفك په معامله کښ صفائی او صَدقه

اُمُّ المُؤمنین حضرت زَینَب بِنتِ جَحَش رضی الله عنها په رشته کښ د نبی صلی الله علیه وسلم د ترور لُور وه. شروع زمانه کښ مُسلمانه شوے وه. په اول کښ د دے

نکاح حضرت زید رضی الله عنه سره شوے وه کوم چه د نبی صلی الله علیه وسلم ازاد کړے شوے غلام وو. او د نبی صلی الله علیه وسلم مُتَبَنّٰی هم وو (یعنی په خوئی ئے نیولے وو) په دے وجه ورته زید بن محمدؐ ویلے شو. خو حضرت زید رضی الله عنه سره د حضرت زینب رضی الله عنها جوړ را نغی نو هغهٔ طلاق ورکړهٔ. نبی صلی الله علیه وسلم په دے خیال چه د جاهلیت د زمانے یو رسم مات شی، هغه دا وو چه مُتَبَنّٰی به بالکل د خوئی په شان وو. او د هغهٔ ښځے سره به ئے نکاح هم نهٔ کوله. په دے وجه ئے د خپل ځان سره د نکاح پیغام ورولیږهٔ. حضرت زینب رضی الله عنها جواب ورکړهٔ چه زهٔ خپل رب سره مشوره کوم. دا ئے اُووے، او دس ئے اُوکړهٔ او د مونځ نیت ئے اُوتړهٔ چه الله تعالیٰ سره مشوره کوَلو نه بغیر څهٔ جواب نهٔ ورکوم چه د هغے برکت دا اُوشو، چه الله جل شانهٔ په خپله د نبی صلی الله علیه وسلم نکاح د حضرت زینب رضی الله عنها سره اُوکړهٔ او د قرآن پاک آیت نازل شو. فَلَمَّا قَضٰی زَیْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنٰكَهَا لِكَیْ لَا یَكُوْنَ عَلَی الْمُؤْمِنِیْنَ حَرَجٌ فِیْۤ اَزْوَاجِ اَدْعِیَآئِهِمْ اِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا ؕ وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا○ (پس کله چه زید خپل حاجت د هغے نه پوره کړهٔ نو مونږ هغه ستا په نکاح کښې درکړه، د پاره د دے چه پاتے نشی مؤمنانو باندے تنګی د خپل په خوئی نیولی د بیبیانو باره کښې کله چه هغه خپل حاجت د هغوی نه پوره کړے وی او د الله تعالیٰ حکم به خامخا کیږی)

هر کله چه حضرت زینب رضی الله عنها ته د دے آیت په نازلیدو د نکاح خوشخبری ورکړے شوه. نو چا چه زیرے ورکړے وو هغهٔ ته ئے هغه کالے را اُویستهٔ ور ئے کړهٔ کوم ئے چه د غه وخت اچولے وو. او په خپله سجده کښې پریوته او د دوه اُومیاشتو دروژو نیولو نذر ئے اُومنلو. د حضرت زینب رضی الله عنها په دے خبره فخر په ځائی وو چه د ټولو بیبیانو نکاح د هغوی خپلو خپلوانو کړی دی خو د حضرت زینب رضی الله عنها نکاح په آسمان کښې اُوشوه او قرآن پاک کښې نازله شوه. په دے وجه حضرت عائشه رضی الله عنها سره د مقابلے موقع به چرته راغله نو هغے ته د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د ټولو نه زیاته محبوبه کیدو باندے ناز وو او دے ته د آسمان په نکاح ناز وو. خو سره د دے په حضرت عائشے رضی الله عنها باندے تهمت لګولو قصه کښې کله چه

نبی اکرم ﷺ د هغې نورو ټولونه علاوه، دې ته هم پوښتنه اوکړه. نورې عرض اوکړه چه زهٔ عائشه رضی الله عنها کښې د نیکئ نه سوا هیڅ نهٔ وینم. دا ورېښتنی دینداری. کښې دا وخت د بیبئ د الزام لګولو او د خاوند د نظرنه د غورزولو وو. خصوصًا د هغې پنځې چه کومه نازبینه هم وه خو سره د دې په زړهٔ سره یې صفائی اوکړه او تعریف یې اوکړهٔ. حضرت زینب رضی الله عنها ډیره بزرګه وه. روژې به یې ډیرې نیولې او نفلونه به یې هم ډیر کول. په خپلو لاسو به یې محنت هم کولو. او څهٔ چه به ورته ملاؤ شو هغه به یې صدقه کول. د نبی ﷺ د وفات په وخت کښې بیبیانو ترې تپوس اوکړهٔ چه په مونږ کښې د ټولونه رومبې به تا سره کومه بی بی ملاقات کوی؟ نبی ﷺ اوفرمایل چه د چا لاسونه اوږده دی. دوی لرګے راواخِست، لاسونه یې ناپ کول شروع کړل نو رُستو ته معلومه شوه چه د لاس اوږد والی نه ډیر زیات خرڅ کول مُراد وو. ځکه چه د ټولونه رومبې حضرت زینب رضی الله عنها وفات شوه. حضرت عمر رضی الله عنه کله چه اَزْوَاجِ مُطَهَّرَات د پاره تنخواه مقرره کړه او دې ته یې د دې د حصے مال دولس زره درهمه اولیږلے. نو دې خیال اوکړهٔ چه دا د ټولو دی. ورته یې وفرمایل چه تقسیمولو د پاره خو نورے بیبیانے زیاتے مُناسب وے. قاصد اوو یې چه دا ټولے هم ستا حصے دی او د ټول کال د پاره دی نو په حیرانتیا سره یې اوویے سُبْحَانَ الله، او په مخ یې زرُوکے واچوو چه دا مال اُونهٔ وینم. دې نه پس یې اوفرمایل چه د کوټے په کوټ کښې یې واچولے شی او په هغې یې یوه کپړه واچوله. بیا یې بَرْزَه رضی الله عنها ته اوویے (خوګ چه دا قصه نقل کوی) چه دے نه یو ړک مُټے فلانکی ته ورکړه او یو مُټے فلانکی ته. لنډه دا چه رشته دارانو او غریبانو په کُنډو یې یو یو مُټے تقسیم اوکړهٔ. هغې کښې چه لږ غوندے پاتے شوے نو بَرْزَه رضی الله عنها هم خواهش ښکاره کړهٔ ورته یې اوفرمایل کومے چه د کپړے د لاندے نه پاتے شوی دی هغه ته واخله، هغه وائی چه ما کومے پاتے شوے وے هغه واخستلے او اُوم شمیرلے نو څلور اتیا درهمه وے. دې نه پس یې دواړه لاسونه اوچت کړل، دُعا یې اوکړه چه اے الله! راتلونکے کال ما ته دا

مال راټولېږي شي چه د دې په راتلو کښې هم فتنه ده. هم دغسې اوشوه، دویم کال تنخواه راتلو نه مخکښې وفات شوه. کله چه حضرت عمر رضی اللہ عنہ ته خبر اوشو چه هغه دولس زره خوږې ختمې کړې نو هغوی یو زر نور ورې ورلېږل. بې چه په خپلو ضرورتونو کښې یې خرچ کړي. هغې یې هم هغه وخت تقسیم کړې. سره د ډېرو فتوحاتو د وفات په وخت کښې یې نه څه روپۍ پرېښې وې نه مال. صرف هغه کور یې میراث کښې پاتې شو کوم کښې چه اوسیله. صدقې، خیرات د ډېروالي په وجه مَاوَی الْمَسَاکِیْن (د مسکینانو ځایه) د دې لقب وو. (طبقات)

یو زنانه وائي چه څه حضرت زینب رضی اللہ عنہا کره وم او مونږ په کپړو رنګ سره کپړې رنګولو کښې مشغول وُو. نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم تشریف راوړه. مونږ چه یې په رنګولو اولیدو. واپس یې تشریف یوړه. حضرت زینب رضی اللہ عنہا ته خیال پیدا شو چه دا څیز یې ناخوښه شو. نو ټولې رنګ کړې شوې جامې یې زر اووینځلې (رنګ یې ترې بوتلو) په بله موقع چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم تشریف راوړه وې لیدل، هغه د رنګ منظر نه وو نو دننه یې تشریف راوړه. (ابوداؤد)

**فائده** :- د زنانو چه د مال سره کوم خاص محبت وي هغه پټ نه دې او رنګ وغیره سره یې چه کومه مینه وي هغه هم د بیان محتاج نه ده. خو دا هم آخر زنانه وې چه د مال سره یې اړو پېژندلو نه. او د نبی علیہ السلام په لږه غوندې اشاره یې ټول رنګ اووینځه.

## ⑪ د حضرت خنساء رضی اللہ عنہا د خپلو څلورو ځامنو سره په جنګ کښې شرکت

حضرت خنساء رضی اللہ عنہا مشهوره شاعره وه. د خپل قوم څو سړو سره مدینې ته راغله، مسلمانه شوه. ابن اثیر وائي چه د عالمانو په دې باندې اتفاق دې چه یوې زنانه هم د دې نه بهتر شعرونه نه دي ویلي، نه د دې نه روبې نه ورې نه رستو. د حضرت عمر رضی اللہ عنہ زمانه خلافت سنه ۱۶ھ (شپاړسمه هجري) کښې د قادسیې جنګ اوشو چه په دې کښې خنساء رضی اللہ عنہا سره د خپلو څلورو

ځامنو شریکه شوه. ځامنو ته یې یو ورځ مخکښې ډیر نصیحت اُوکړه او د جنګ کښې د شرکت یې پکښې جوش پیدا کړه. وې ویل چه څما ځامنو! تاسو په خپله خوشالۍ سره مُسلمانان شوی یئ او په خپله خوشالۍ مو هجرت کړے دے. په هغه ذات دې قسم وی چه د هغه نه سوا هیڅوک لائق د عبادت نشته. څنګه چه تاسو د یو مور د ګیډې نه پیدا شوی یئ د غسې د یو پلار هم یئ. ما نۀ ستاسو پلار سره خیانت کړے دے، نۀ مې ستاسو ماما ګان اَولادیئ. ما نۀ ستاسو په شرافت څۀ داغ لګولے دے، نۀ مې ستاسو نسب شرمولی دی، نۀ ما ستاسو په شرافت څۀ داغ لګولے دے، نۀ مې ستاسو نسب شرمولی دی، نۀ ما ستاسو په شرافت داغ. تاسو ته معلومه ده چه الله جل شانهٗ د مُسلمانانو دپاره کافرانو خراب کړے دے. تاسو ته د اخیره هم یاد ساتل پکار دی چه د آخرت باقی پاتے کیدونکے ژوند د دُنیا فنا کیدونکی ژوند نه ډیر بهتر دے. د الله جل شانهٗ پاک ارشاد دے يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (ترجمه) اے د ایمان خاوندانو! په تکلیفونو صبر کوئ (او د کافرانو په مقابله کښې) صبر کوئ او مقابلے دپاره تیار اوسئ چه تاسو پوره کامیاب شئ. (بیان القرآن) په دے وجه صبا سحر کله چه تاسو صحیح او سالم پاسئ نو ډیر په هوشیارتیا سره جنګ کښې شریک شئ. او د الله تعالیٰ نه د دُشمنانو په مقابله کښې مدد غواړئ، په مخکښې ځئ او کله چه تاسو اُووینئ چه جنګ تیز شو او د هغې شغلے اُوچتے شوے نو د هغې په ګرم اُور کښې ورننوزئ او د کافرانو د سردار مقابله اُوکړئ. اِنْ شَاءَ الله جنت کښې به په عزت سره کامیاب شوی اُوسیږئ. هم داسے اُوشوه. کله چه صبا جنګ پوره په زور تیز شو. نو څلور واړو ځامنو ئې یو یو نمبر په نمبر مخکښې کیدو او د مور نصیحت به یې په اشعارو کښې ویلو سره شوق پیدا کولو او شهید به شو. نو بل به وړاندے شو او تر شهید کیدو پورے به جنګیدۀ لنډه دا چه څلور واړه شهیدان شو او کله چه مور ته د څلورو واړو د شهید کیدو خبر اُوشو. نو هغې اُووے چه د الله تعالیٰ شکر دے چه هغۀ د دوی په شهادت سره ما ته عزت راکړۀ. ما ته د الله تعالیٰ د ذات نه اُمید دے چه د هغۀ د رحمت

په مُوږي کښې دے څلور وار وسره به څهٔ هم اُوسم. (راحت القلوب)

**فائده:-** دا سے هم د الله تعالیٰ بندګانے مینه وی کومے چه خلمو خامنو ته د جنګ په تیزئ او زور کښې د ننوتو ترغیب ورکوی او کله چه څلور واره شهیدان شی او په یو وخت کښې ټول شهیدان راشی نو د الله تعالیٰ شکر ادا کړي.

## ⑫ د حضرت صَفِیَّه رضی الله عنها یهودی لره په یواځې تن وژل

حضرت صَفِیَّه رضی الله عنها د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ترور او د حضرت حَمزَه رضی الله عنه خپله خور وه. د اُحُد په جنګ کښې شریکه شوه. او کله چه مسلمانانو ته شکست اُوشو، او په تختید وشو. نو دے به په نیزه په مخ باندے په ټهلو ملو واپس کول. غَزوَهٔ خَندَق کښې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ټولے زنانه په یوه قلعه کښې بندے کړے وے او حضرت حَسّان بن ثابت رضی الله عنه یے پرے د محافظ په طور پریښے وو. یهودیانو د پاره دا موقع ډیره د غنیمت وه. چه هغوی خو بُنیادی دُشمنان وو. د یهودیانو یوے ډلے په زنانو د حملے کولو اراده اُوکړه. او یو یهودی حالات معلومولو د پاره قلعه ته اُورسیده. حضرت صَفِیّے رضی الله عنها د چرته نه اُولیده. حضرت حَسّان رضی الله عنه ته یے اُووے چه را یهودی موقع کتلو له راغلے دے. ته د قلعے نه بهر اُوزه او دا مړ کړه. ځکه په خپله ضعیف کمزورے وو، د کمزورتیا په وجه یے همت اُونه شو. نو حضرت صَفِیَه رضی الله عنها یو د خیمے د اُوسپنے موټے په لاس کښې واخست او په خپله اُووتله د هغهٔ سر یے چیغنړی کړهٔ. بیا قلعه ته واپس شوه. حضرت حَسّان رضی الله عنه ته یے اُووَیل چه چونکه د هغه یهودی سړے دے. زنا محرم کیدو په وجه ما د هغهٔ سامان او جامے اُونهٔ وِیستے. ته د هغهٔ ټولے جامے را اُوباسه راوړهٔ او د هغهٔ سر هم پریکړه. حضرت حَسّان رضی الله عنه ضعیف کمزورے وو د دے همت یے هم اُونکړے شو. نو دا په خپله دوباره لاړه او د هغهٔ سر یے پریکړهٔ راوړے رهٔ. او په دیوال باندے د یهودیانو په ګنډه کښې ورَ اُوغورځوو

هغوی چه اُولیدهٔ، وے ویل چه مونږ مخکښې نه پوهیدلو چه محمد (صلی الله علیه وسلم) زنانه بالکل یوائے نشی پریخودے، ضرور د هغوی حفاظت کوکی سړی دننه موجود دی۔ (اُسد الغابه)

**فائدہ:**۔ ۲۰ھ کښې حضرت صَفِیّه رضی الله عنها وفات شوے وه۔ دغه وخت د دے عُمر د ۷۳ کالو وو۔ په دے لحاظ د خندق جنګ کوم چه ۵ھ کښې شوے وو، د دے عُمر اته پنځوس ۵۸ کاله وو۔ نن صبا د دے عُمر زنانو ته د کور کاروبار کول هم مشکل شی۔ لاچه په ځائی د دے په یوائے ځان یو سړے قتلول۔ حال دا دے چه یو خوا یوائے زنانه دی او بل طرف ته ریهودیانو مجمع وه۔

## ⑬ د حضرت اَسمَاء رضی الله عنها د ښځو د اَجر په باره کښې سوال

اَسماء بنتِ یزید صحابیه رضی الله عنها د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضره شوه او عرض یے اُوکړهٔ۔ اے د الله رسوله! ځما مور پلار دې په تا سو قربان شی۔ د مُسلمانانو ښځوله طرفه د قاصدے په طور ستا سو په خدمت کښې حاضره شوے یم۔ بیشکه تاسوله الله جل شانهٔ سړو او ښځو دواړو طرف ته نبی جوړ کړے را اُولیږلے۔ په دے وجه مونږ ښځو په تاسو ایمان راوړهٔ او په الله جل جلالهٔ مو ایمان راوړهٔ۔ خو مونږه ښځے په کورونو کښې کیږے اُوسو۔ د سړو په کورونو کښې اُوسو او د سړو خواهشات ځمونږ نه پوره کیږی۔ مونږ د هغوی اولاد په ګیډه کښې اُوچتوو۔ سړه د دے ټولو خبرو سره په ډیر د ثواب کارونو کښې ځمونږ نه وړاندے دی۔ د جمعے مانځه کښې شرکت کوی۔ د جنیع مونځونو کښې شریکیږی۔ د بیمارانو تپوس پوښتنه کوی۔ جنازو کښې شریکیږی۔ حج پسے حج کوی او د دے ټولو نه زیات جهاد کوی۔ او کله چه هغوی حج یا عُمرے د پاره یا جهاد د پاره ځی نو مونږ ښځے د هغوی د مالونو حفاظت کوو۔ هغوی د پاره جامے جوړوو۔ د هغوی اولاد پالو۔ ایا مونږ ثواب کښې د هغوی شریکے نه یو؟ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم چه دا

واوریدل صحابو طرف ته متوجه شو، ارشاد یې اوفرمایهٔ چه تاسو دین
په باره کښې د دې ښځې نه بهتر سوال کونکې څوک اوریدلې دی صحابو رضي الله عنهم
عرض اوکړهٔ. اے د الله رسوله اخمونږ خیال هم نهٔ وو چه ښځه هم دا سې
سوال کولے شي. د دې نه پس نبي اکرم صلی الله علیه وسلم اسماء رضي الله عنها طرف ته متوجه شو
وارشاد یې اوفرمایهٔ چه په غور سره واوره او ځان پوهه کړه او کومو ښځو چه
ته رالیږلے یې، هغوی ته اووایه چه د ښځې خپل خاوند سره ښهٔ سلوک
کول، د هغهٔ رضا لټول او په هغې عمل کول د هغې ټولو څیزونو د ثواب
برابر دے. اسماء رضي الله عنها چه دا جواب واوریدهٔ، ډیره خوشحاله شوه،
او واپس شوه. (اسد الغابه)

**فائده:-** د ښځو خپلو خاوندانو سره ښهٔ سلوک کول او د هغوی
اطاعت او فرمانبرداری کول ډیر قیمتي څیز دے خو ښځې د دې نه ډیرې
غافلې دي. صحابه کرامو رضي الله عنهم یو ځلې د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې
عرض اوکړهٔ چه عجمي خلق خپلو بادشاهانو او سردارانو ته سجده کوي. تاسو
د دے زیات حقدار یئ چه مونږ تاسو ته سجده کوو. نبي اکرم صلی الله علیه وسلم منع
کړل او ارشاد یې اوفرمایهٔ که چرې ما د الله تعالی نه سوا چا ته د سجدې
حکم کولے نو ښځو ته به مې حکم کړے وے چه خپلو خاوندانو ته سجده کوي.
بیا نبي علیه الصلوٰة والسلام اوفرمایل، په هغې ذات مې د قسم وی د چا په قبضه کښې چه زما
ساه ده چه ښځه د خپل رب حق تر هغې وخته پورې ادا کولے نشي تر څو چه
د خاوند حق ادا نکړي. یو حدیث کښې راغلي دي چه یو اوښ راغے او نبي علیه السلام
ته یې سجده اوکړه. صحابه رضي الله عنهم عرض اوکړهٔ چه دا ځناور تاسو ته سجده کوي
نو مونږ زیات حقدار یو چه تاسو ته سجده اوکړو. نبي علیه الصلوٰة والسلام منع کړهٔ او دا یې
ارشاد اوفرمایهٔ، که چرې ما چا ته حکم کولے چه چا ته د الله تعالی نه سوا
سجده کوي نو ښځې ته به مې حکم کړے وے چه خپل خاوند ته یې سجده
کوي. یو حدیث کښې راغلي دي چه کومه ښځه په دا سې حالت کښې مړه شي
چه خاوند د هغې نه راضي وي هغه به جنت ته ځي. یو حدیث کښې راغلي

دی کہ چیرے ښځه دخاوند نه ناراضه شی، جدا شپه تیره کړی نو فرښتے په هغے لعنت کوی۔ یو حدیث کښې راغلی دی چه د دوه وکسانو مونځ قبولیت د پاره آسمان طرف ته دومره هم نهٔ ځی چه د سر نه پورته شی۔ یو هغه غلام چه دخپل آقا نه تختیدلے وی او بل هغه ښځه چه دخاوند نافرمانی کوی۔

## (۱۴) حضرت اُمّ عمارهؓ اسلام او په جنګ کښې شرکت

حضرت اُمِّ عمارهٔ انصاریه رضی الله عنها هغے زنانو نه ده کومه چه د اسلام شروع زمانه کښې مُسلمانه شوه او بیعَةُ العَقَبه کښې شریکه شوه۔ دعقبه معنیٰ "دره" ده۔ نبی علیه السلام په اول په پټه مسلمانول کول۔ ولے چه مُشرکانو او کافرانو به نوی مُسلمان ته سخت تکلیفونه رسول۔ د مدینے څهٔ خلق دحج په زمانه کښې به راتلل او د مِنیٰ دغرپه یوه دره کښې به په پټه مُسلمانیدل۔ دریم وارے کوم خلق چه د مدینے نه راغلی وو په هغوی کښې دا هم وه۔ دهجرت نه پس کله چه دجنګونو سلسله شروع شوه نو دا په اکثرو جنګونو کښې شریکه شوه۔ خصوصاً اُحُد، حُدَیبِیَه، خیبر، عُمرَةُ القضا، حُنَین او دیمامه په جنګ کښې د اُحد دجنګ قِصه پخپله اوروی۔ چه ما مشکیزه داوبو ډکه کړه۔ اُحُد ته روانه شوم چه اُوګورم په مُسلمانو څهٔ تیرشو۔ او که څوک ترے زخمی اُووینم نو اُوبهٔ به پرے اُوڅکوم۔ دغه وخت د دے عُمر د درے څلویښتو کالو وو۔ د دے خاوند او دوه ځامن هم جنګ کښې شریک وو۔ مُسلمانانو ته فتح او غلبه کیدله۔ خو لږ ساعت کښې کله چه دکافرانو غلبه ښکاره شوه نو ځهٔ نبی علیه السلام ته نزدے اُورسیدم او کوم کافر چه به اخوا مخ کولو هغه به مې لرے کولو۔ په اول کښې د دے سره ډهال هم نهٔ وو، رُستو ورکړے شو چه په هغے به یے د کافرانو حمله مَنع کوله۔ په ملا یے یو کپړه ترلے وه چه دډیرو چړو نه ډکه وه کله چه به څوک زخمی شو۔ نو یوه چړه به یے ترے راوویستله، او به یے سوزَله او هغه زخم به پرے ډکولو یے په خپله هم څو ځایه زخمی شوه۔ دولس دیارلس ځائے زخمی شوے وه چه په هغے کښې یو زخم ډیر سخت وو۔ اُمِّ سعید رضی الله عنها

وانی چه ما دے په اوګه یو ډیر ځوړ زخم اولیدهٔ. ما ترے تپوس اوکړو چه
دا څنګه شوے وو؟ ویے وئیل چه د اُحد په جنګ کښې کله چه خلق اخوا
دیخوا پریشانه ګرزیدل. نو ابنِ قمیئه دا اووے، ورانده شو چه محمد
(ﷺ) چرته دے ما ته یے ښوولۀ اوښایئی چه کوم خوا دے. کله چرے نن
هغه ژوندے شو نو څما خلاصے نشته. مُصعَبُ بن عُمَیر رضی الله عنه او څو سړی د هغه
مخکښې راغلل. په هغوی کښې څۀ هم وَم. هغه څما په اوګه ګذار اوکړۀ.
ما هم هغه باندے څو ګذارونه اوکړل خو هغۀ باندے دوه زغرے وے
په دے وجه په زغره به حمله منع کیده. دا زخم دا سے سخت وو چه کال اوسر
یے علاج اوکړۀ خو ښه نه شو. په دے دوران کښې نبی ﷺ د حمراء الاسد
جنګ اعلان اوکړۀ. اُمّ عَمَّاره رضی الله عنها هم ملا اُوتړله تیاره شوه خو چونکه
اُوږه زخم بالکل تازه وو. په دے وجه شریکه نه شوه. نبی ﷺ کله چه د
حمراء الاسد نه واپس شو. نو د ټولو نه وړومبے د اُمّ عَمَّاره رضی الله عنها خیریت یے
معلوم کړۀ. او کله چه معلومه شوه چه ښه ده نو ډیر خوشحاله شو. د دے زخم
نه علاوه نور هم ډیر زخمونه د اُحد په جنګ کښې پرے راغلی وو. اُمّ عماره
رضی الله عنها فرمائی په اصل کښې هغه خلق په آسونو سوارهٔ وو او مونږ پیدل
وو. که چرے هغوی هم څمونږ په شان پیدل وے نو بیا خو څۀ خبره وه
هغه وخت به د اصل مقابلے پته لګیدلے وه. کله به چه په آس څوک
راغے او څۀ به یے وهلم نو د هغۀ حملے به ما په ډهال منع کولے. او کله
چه به هغۀ ما نه مخ واړوو بل طرف ته به روان شو. نو ما به د هغۀ د آس
په پښه حمله اوکړه او هغه به مې پریکړه. نو هغه آس به هم پریوته او سو
به هم پریوته. او کله چه به هغه پریوته نو نبی ﷺ به څما ځوی ته
آواز اوکړۀ او څما مدد ته به یے راواستوۀ. څۀ او هغه دواړه به یو ځائ شو
هغه به مو مړ کړۀ. د دے ځوی عبدالله بن زید رضی الله عنه فرمائی چه څما ګس
لاس زخمی شو او وینه نه بندیده. نبی ﷺ اوفرمایل چه په دے پټۍ
وتړه. څما مور راغله د خپلے ملا نه یے څۀ ټکړا راویستله، او وے تړل

بیا یې اُووے۔ څه کافرانو سره مقابله کوه۔ نبی علیه الصلوٰة والسلام دا منظر لیده وے وِی فرمایل اے اُمّ عمّاره! دومره همت څوك لرلے شی، څومره چه ته لرے۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دے دوران کښ دے ته اود دے کورنئ ته څو وارے دُعا گانے اوکړے او تعریف یې اُوکړۀ۔ اُمّ عمّاره رضی الله عنها وائی چه دغه وخت یو کافر مخکښ راغے نو نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل چه دا دے چا چه ستا خوئی زخمی کړے دے څۀ ورمخکښ شوم او دغۀ په پنډۍ م حمله اُوکړه، په هغے سره هغه زخمی شو او یو دم کیناست۔ نبی علیه الصلوٰة والسلام مُسکے شو۔ وِے فرمایل چه دخوئی بدله دِ واخِستله۔ دے نه پس مونږ خلق ور مخکښ شُو او هغه مو مړ کړۀ۔ نبی صلی الله علیه وسلم چه کله مونږ خلقو ته دُعا گانے کولے نو ما عرض اوکړۀ۔ اے د الله رَسُوله! دُعا اُوکړئ چه الله جل شانه په جنت کښ ستا سو ملګرتیا را نصیب کړی۔ هر کله چه نبی علیه الصلوٰة والسلام دے دُعا اُوکړه نو وِے ویل چه اُوس ما ته هیڅ پرواه نشته چه په دُنیا کښ په ما څۀ مُصیبت تیرشو۔ د اُحُد نه علاوه نورهم څو جنګونو کښ د دے شرکت او کارنامے ښکاره شوی دی۔ د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس د مُرتد کیدو زور شو او یمامه کښ زبردست جنګ اُوشو۔ هغے کښ هم اُمّ عماره شریکه وه۔ د دے یو لاس په دے کښ پریکړے شوے وو۔ او دے نه علاوه یوولس زخمونه یې په بدن راغلی وُو۔ د دے زخمونو په حالت کښ مدینے منورے ته اُو رسیده۔ (طبقات)

**فائده**:- ریوزنا نه دا کارنامے دی چه د هغے عمر د اُحد په جنګ کښ د دے څلویښت کاله وو څنګه چه مخکښ تیرشو۔ او د یمامه په جنګ کښ تقریبًا د دوه پنځوسو کالو وه۔ د دے عمر کښ دا سے جنګونو کښ دا رنګے شرکت ته هم کرامت کیدے شی۔

## (۱۵) د حضرت اُمّ حکیم رضی الله عنها اسلام او جنګ کښ شرکت

اُمّ حکیم بنتِ حارِث رضی الله عنها چه د عکرمه بنِ اَبی جهل رضی الله عنه بی بی وه۔ او د کافرانو له طرفه د اُحُد په جنګ کښ هم شریکه شوے وه۔ کله چه مکه

مکرمه فتح شوه. نو مسلمانه شوه. خاوند سره یې ډیر زیات محبت وو. خو
هغه دخپل پلار (ابوجهل) دا اثرله وجې مسلمان شوې نه وو. او کله چه
مکه فتح شوه نو یمن ته اوتښتیدو. دې د نبی ﷺ نه دخپل خاوند دپاره
امن اوغوښتلو. او په خپله یمن ته اورسیده. خاوند یې ډیر په مشکله سره
په واپس راتلو راضي کړه. او ورته وې ویل چه د محمد ﷺ د کورنه دهغه
په لمن کښ پناه مونده کیدې شي. ته ما سره لاړ شه. هغه مدینې منورې ته
واپس راغې، مسلمان شو. او ښځه او خاوند دواړه خوشاله اوسیدل. بیا د
حضرت ابوبکر رضی الله عنه په زمانه خلافت کښ کله چه د روم جنګ شو. نو په هغې
کښ عکرمه رضی الله عنه شریک شو او دا ښځه هم ورسره وه. حضرت عکرمه رضی الله عنه
په هغې کښ شهید شو. نو خالد بن سعید رضی الله عنه ورسره نکاح اوکړه. او په دې
سفر کښ مرج الصفر دیو ځای نوم دې هلته یې د رخصتۍ اراده اوکړه. بي بي
یې اوویې چه اوس د دشمنانو ګڼړه ده. وار اوکړه چه دا ختمه شي. خاوند اوویل
چه ماته په دې جنګ کښ دخپل شهید کیدو یقین دې. دا هم چپ شوه.
وهلته یو منزل باندې خیمه کښ رخصتي اوشوه. سحر د ولیمې انتظام
کیدلو چه د رومیانو فوج راوختلو او زبردست جنګ اوشو چه په دې کښ
خالد بن سعید رضی الله عنه شهید شو. ام حکیم رضی الله عنها هغه خیمه راوپستله په
دومه کښ یې چه شپه تیره کړې وه. او خپل ټول سامان یې اوتړه. او د
خیمې د اوسپنې موټې یې واخست. په خپله یې هم مقابله اوکړه او اووه
سړي یې په یوازې ځان قتل کړه. (اسد الغابه)

**فائده**: خو نن د زمانې خولې زنانه خو یو طرف ته سړي هم په
دې وخت کښ نکاح کولو ته نه تیاریږي. او کله چرې تیار هم شي نو د
ګنهان شهادت باندې به په ژړا ژړا معلومه نه ده څومره ورځې په
غم کښ تیروي. د الله تعالی بندې په خپله هم جهاد شروع کړه او زنانه توب
سره یې اووه سړي قتل کړل.

---

## (۱۶) دحضرت سُمَیّه اُمِّ عَمّار رضی الله عنها شهادت

حضرت سُمَیّه بِنتِ خَیّاط رضی الله عنها دحضرت عَمّار رضی الله عنه مور ده چه دهغه قِصه د اول باب اووم نمبر کښ تیره شوې ده. دې هم دخپل خوئ حضرت عمار رضی الله عنه او دخپل خاوند حضرت یاسر رضی الله عنه په شان د اسلام دپاره قِسما قِسم تکلیفونه او سختئ تیرې کړې وې. خو د اسلام رضینتئ مینې چه په زړه کښ ئې کوم کور جوړ کړې وو، په هغې کښ به ئې ذره هم فرق نه راتلو. دا به ئې دګرمئ په سخت وخت غرمو کښ په کنکرو واچوله او د اوسپنې زغره به ئې ورته واغوستله او غرمو کښ به ئې اودرَوله. دې دپاره چه په غرمو اوسپنه توده شي او دهغې په ګرمئ سره ئې تکلیف زیات شي. نبي اکرم صلی الله علیه وسلم به چه کله اخوا تیریدلو نو دصبر نصیحت به ئې ورته فرمایه او دجنت وعده به ئې فرمایله. یو وارې حضرت سُمَیّه رضی الله عنها ولاړه وه چه ابوجهل اخوا تیریدئ. بد رد ئې اووې او په غُصه کښ ئې شرمګاه باندې په نیزه اووهله چه دهغې د زخم نه وفات شوه. د اسلام په خاطر د ټولو نه رومبې دا شهیده شوې ده (اسد الغابه).

**فائده:-** د زړنا نو دومره قدرې صبر، همت او استقلال قابل د پیښیدو دې. خو خبره دا ده چه کله دچا په زړه کښ څه څیز کور جوړ کړي نو هغه ته هره خبره اسانیږي. اوس هم دعشق په شنګو نو قصې ددې قِسمه په اوریدلو کښ راځي چه ځان ئې پرې قربان کړو. خو دا ځان قربانول که چرې دالله تعالٰی په لاره کښ وي. ددین له خاطره وي. نو په بل ژوند کښ کوم چه دَ مرګ نه پس شروع کیږي، دکامیابئ سبب دې. او که چرې څه دنیوي غرض دپاره شي نو دنیا خو ئې تللې وه، اخرت ئې هم برباد شو.

## (۱۷) دحضرت اَسماء بِنتِ اَبُوبکر رضی الله عنها ژوند او تنګسیا

حضرت اَسماء بِنتِ اَبي بکر رضی الله عنها دحضرت ابوبکر رضی الله عنه لور او دعبدالله بنِ زُبَیر رضی الله عنه مور او دحضرت عائشه رضی الله عنها مَیرَنئ خور د مشهورو صحابیاتو

نه ده. په شروع کښې مسلمانه شوې وه. ویلې شي چې د اوو کسانو نه
پس دا مسلمانه شوې وه. د هجرت نه اوولشت کاله رومبې پیدا شوې وه
او کله چې نبي اکرم ﷺ او حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د هجرت نه پس
مدینې منورې ته اورسیدل نو حضرت زید رضي الله عنه وغیره یې اولیږل چې
د دواړو حضراتو اهل وعیال راولي. نو دوی سره حضرت اسماء رضي الله عنها
هم راغله. کله چې قبا ته رااورسیده نو عبدالله بن زبیر پیدا شو. او د هجرت
نه پس د ټولو نه رومبې پیدائش دده اوشو. د دغې زمانې عامه غریبي
تنګدستي، فقروفاقه مشهوره او معروفه وه. او د دې سره د دغې زمانې
همت، جفاکشي، بهادري، زړه ورتیا مثالي ده. بخاري شریف کښې د حضرت
اسماء رضي الله عنها د ژوند حالات پخپله د هغې د ژبې نه نقل کړې دي. فرمائي
چې کله زما نکاح زبیر رضي الله عنه سره اوشوه. نو هغه سره نه مال وو نه جائداد،
نه څوك خادم کارکوونکے، نه څه بل څیز. یو آوښ چې اوبه به پرې راوړلې
شوې. او یو آس. هم ما به د آوښ دپاره واښه وغیره راوړل او د کهجورو
هډوکي به مې ورله ټکول، د دانې په طور به مې پرې خوړل. ما به په خپله
اوبه ډکولې، راوړلې او چې د اوبو بوقه به اوشلیده نو هغه به مې پخپله
ګنډله. او پخپله به مې د آس ټول خدمت کولو. واښه ورلې وغیره. او د کور
ټول کاروبار به مې سرته رسولو. خو د دې ټولو کارونو کښې د آس خبرګیري
او خدمت زما دپاره زیات د محنت څیز وو. ډوډۍ البته ما ته په ښه شان
پخول نه راتلل. نو اوړه به مې واغږل او د خپل ګاونډ انصارو زنانو کره به
مې یوړل. هغوی ډیرې ریښتینې مخلصې ښځې وې. هغوی به مې پخې
کړې. نبي اکرم ﷺ مدینې ته اورسیده. نو زبیر ته یې یوه زمکه د جاګیر
په طور ورکړه چې تقریباً دوه میله لرې وه. ما به د هغه ځای نه په خپل
سر د کهجورو هډوکي راوړل. څه یو واره دارنګې راتلم او پنډ زما په سر
وو. په لاره کښې نبي اکرم ﷺ سره ملاؤ شوم چې په آوښ یې تشریف
راوړلو او د انصارو یو جماعت ورسره وو. نبي ﷺ چې څه اولیدل مې آوښ

یے اُو درؤلو او اُوس تیے دکینا ستلو اشارہ اُوکړه۔ دپاره ددے چه څه پړے سوَرَه شم ماته سړو سره په تلو کښ شرم راغے او دا هم راته خیال راغے چه زُبیر رضی الله عنه ډیر زیات غیرتی دے، هغه به داخوښه نه کړی۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم څما داند ازے نه پوهه شو چه ماته په دے باندے دکینا ستونه شرم راځی۔ نبی علیه السلام تشریف یوړه۔ څه کورته راغلم او زُبیر رضی الله عنه ته م قصه واورَوله۔ چه دغسے نبی علیه السلام سره ملاؤ شوم۔ او دا م اُووے چه ماته شرم راغے او ستا دغیرت خیال راته هم راغے۔ زُبیر رضی الله عنه اُووے په الله تعالیٰ م دِ قسم وی چه ستا د کهجورو هډوکی په سر کښ ځو دل راؤرل څما دپاره ددے نه زیاته گرانه ده۔ رځو مجبوری دا وه چه دا حضرات به خپله خو ډیر زیات په جهاد او ددین په کارو نوکښ مشغول اُوسیدل۔ نو دکور کاروبار به عموماً زنانو کولو) دے نه پس څما پلار حضرت اَبُوبکر صِدّیق رضی الله عنه یو خادم کوم چه نبی علیه السلام ده ته ورکړے وو، ماته را اُولیږه چه دهغے په وجه داس دخدمت نه څه خلاصه شوم۔ گویا دلوئ قید نه آزاده شوم۔ (بخاری۔ فتح)

**فائده**:۔ دعربو دستور رُو مبے هم وو او اُوس هم دے چه د کهجورو هډوکی اُووټکوی۔ یا یے په ميچنه کښ دَل کړی۔ بیا یے په اُوبو کښ خوشته کړی۔ په څناور یے ددلے په طور خوروی۔

## ⑱ دحضرت اَبُوبکر صدّیق رضی الله عنه دهجرت په وخت ټول مال اُوړل او دحضرت اسماء رضی الله عنها خپل نیکهٔ ته تسلی ورکول

حضرت اَبُوبکر رضی الله عنه دهجرت په اراده تشریف اُوړلو۔ نو په دے خیال چه معلومه نه ده په لاره کښ څه ضرورت پیښ شی۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم هم ورسره وو۔ نو څه مال چه ورسره دغه وخت موجود وو رچه دهغے مقدار پنځه شپږ زره دِرهمه وے۔ هغه ټول یے ځان سره اُوړے وے۔ ددے حضراتو تشریف اُوړلو نه پس دحضرت اَبُوبکر رضی الله عنه پلار اَبُو قحافه چه

رُوند شوے وو، تر دغے وخته مسلمان شوے نه وو. نو سَتیٰ له تَسلّیٰ دپاره راغے. په افسوس سره یے ورته اُووے چه خما خیال دے چه اَبُوبکرؓ دخپلو تلو تکلیف تاسو ته اُورَسَوو او مال یے هم شاید تول یوړه چه دا یے بل مُشقت په تاسو واچوو. اَسماء رضی الله عنها وائی چه ما اُووے، نا نیکهٔ! پلار م خو ډیر څهٔ پریخی دی. دا م اُووے. او واړهٔ واړهٔ کانړی م راجمع کړل. دکور هغه تاخ م ډک کړهٔ کوم کښی چه به دحضرت اَبُوبکر رضی الله عنه رُوپئی پرتے وے او په هغے م یوه کپړه واچوله. دنیکهٔ لاس م په هغے کیږو کیخوده. چه هغهٔ په لاس سره اندازه اُولګوله چه تاخ د رُوپو ډک دے. وے وئیل دا هغهٔ ښهٔ کړی دی، ستاسو ګذاره به په دے کښی وشی. اَسماء رضی الله عنها وائی چه په الله تعالیٰ م قسم وی هیڅ یے نهٔ وو پریخی خو ما دنیکهٔ دتسلّیٰ دپاره دا طریقه اختیار کړه. چه دهٔ ته دومره افسوس او غم اُونشی (مسند احمد)

**فائده:**- دا د جرأت او صبر خبره ده، کنی دنیکهٔ نه زیات دے چینکو ته خفګان او غم پکار وو. او چه څومره شکایتونه یے دغه وخت نیکهٔ ته کړے وے، تهیک وُو. چه دغه وخت ظاهری اسرلیے هُم په دهٔ وه. دهغهٔ دَ متوجه کولو په ظاهر کښی ډیر ضرورت وو. چه یو خو تر پلار جدا ئی، دویم دَ ګذارے څهٔ شکل بظاهر کښی نشته. بیا څه والاعتمادا دُشمنان او بے تعلقه هم وُو. خو الله جل شانهٔ یوه یوه خوبی دے تهولو حضراتو ته، نارینه ووکهٔ زنانه واے ورکړے وه چه د پښخیدو نه پرے سوا نور څهٔ نهٔ دی پکار. حضرت ابوبکر رضی الله عنه اول کښی خو ډیر مالدار او لوئی تاجر وو. خو د اسلام او د الله تعالیٰ په لار کښی یے تر دے پورے خرچ اُوکړه چه د تبوک په غزا کښی هر څهٔ چه یے په کور کښی وُو تهول یے راوړل ورپیے کړل. څنګه چه د تیر م باب څلورم نمبر قصه کښی مُفصّل تیر شوی دی. هم په دے وجه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه ما ته د هیچا مال دومره فائده نهٔ ده رارسولے څومره چه د اَبُوبکر رضی الله عنه مال را رسولے ده. ما د هر چا د احسانا نو بدله ورکړے ده. خو د اَبُوبکر رضی الله عنه د احسانا نو بدله به الله تعالیٰ ورکوی.

## (۱۹) د حضرت اَسماء رضی اللہ عنہا سخاوت

حضرت اَسماء رضی اللہ عنہا ډیره سخي وه. اول خو چه به یې خرچ کول په اندازه ناپ تول سره به یې خرچ کول. خو چه نبي اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ورته ارشاد اُو فرمایه چه غوټې جوړول مه کوه او مه حساب کوه. خو مره چه دِ وَس وی خرخ کوه. نو بیا یې بنه خرخ کولو. خپلو لوڼړو او د کور زنانو ته به یې نصیحت کولو چه د الله تعالی په لار کښې خرخ کولو او صدقه کولو کښې د دے انتظار مه کوئ چه د ضرورت نه زیات شي او بچ شي نو وربه کړم. که چرے د ضرورت نه د زیاتید و انتظار کوئ نو اکړو زیات به نه. رچه ضرورت نه بچ شي نو هغه به زیاتیږي. او که چرے صدقه کوئ نو صدقه کښې خرچ کولو سره به نقصان کښې نه اُوسئ. (طبقات)

**فائده:-** د دے حضراتو څخه چه خومره تنګدستي او ناداري وه، هغو مره به صدقه او خیرات او د الله تعالی په لار کښې د خرچ کولو وُسعت او فراخي وه. نن صبا مُسلمانانو کښې د غریبۍ او تنګسیا عام شکایت دے. مُشکله ده چه داسے د له پیدا شي چه په ګیډه یې کانړي تړلي وي او ګذاره کوي یا پرے خو خو وَرځے پرله پسے نهرے تیریږي.

## (۲۰) د نبي علیه السلام د لور حضرت زَینَب رضی اللہ عنہا هجرت او وفات

د دواړو جهانو سردار نبي اکرم صلی اللہ علیہ وسلم د ټولو نه مشره لُور حضرت زَینَب رضی اللہ عنہا د نبوّت نه لس کاله وړاندے کله چه د نبي علیه السلام عمر مبارک د دیرشو کالو وو، پیدا شوه. او د تره زوئ اَبُو العَاص بن رَبیع سره یې نکاح اُوشوه. د هجرت په وخت کښې نبي علیه السلام سره لاړه. د دے خاوند د بدر په جنګ کښې کافرانو سره شریک شو او قید شو. د مکے خلقو کله چه د خپلو قیدیانو ازادولو د پاره فدیے راُولیږلے. نو حضرت زَینَب رضی اللہ عنہا هم د خپل خاوند ازادولو د پاره مال رااُولیږه چه په هغے کښې هغه هار هم وو، کوم چه

حضرت خدیجې رضي الله عنها د واده په وخت ورکړے وو. نبي اکرم صلی الله علیه وسلم چه هغه اُولیده نو د حضرت خدیجې رضي الله عنها یاد ورته تازه شو. سترګو کښې ئے اوښکې راغلے او د صحابو په مشوره دا فیصله اُوشوه چه اَبُوالعَاص د بغیر فدیې په دې شرط پریخودے شي چه دے واپس مکے ته لاړ شي نو حضرت زینب رضي الله عنها مدینې مُنورې ته را اُولیږی. نبي صلی الله علیه وسلم دوه سړي د حضرت زینب رضي الله عنها راوستلو دپاره ورسره کړل. چه دوی به د مکے نه بهر ایسار شي او دوی ته به ئے اَبُوالعَاص را اُورسوی. هم دغسے اُوشوه. حضرت زینب رضي الله عنها خپل لیور کنانه سره په اُوښ سوره شوه او روانه شوه. کافرانو ته چه کله دے خبر اُوشو نو اُور پرے بل شو. او یو جماعت ئے مُقابلے دپاره اُولیږه چه په هغے کښې هبار بن اَسود چه د حضرت خدیجې رضي الله عنها د تربور خوئے وو، چه په دے لحاظ سره د حضرت زینب رضي الله عنها رور شو، دے وو او ده سره یو بل کس هم وو. دے دواړو کښې یو کس، او اکثرو خیال لیکلے دے، حضرت زینب رضي الله عنها ئے په نیزه اُووهله چه په هغے سره هغه زخمي شوه، د اُوښ نه راپریوتله. چونکه حامله یعنی اُمیدواره وه، په دے وجه د ګیډے نه بچے ئے هم ضائع شو. کنانه په غشو سره مقابله اُوکړه. اَبُوسُفیان هغه ته اُووے چه د محمد (صلی الله علیه وسلم) لور او دلے بښکاره د لاړه شي، دا خونهٔ شو برداشت کړے. دا وخت واپس شي. بیا ئے په پټه اُولیږی. کنانه دا خبره قبوله کړه او واپس ئے راوستله. یو دوه ورځے پس ئے بیا روانه کړه. د حضرت زینب رضي الله عنها دا زخم څو کالو پورے وو. هم له دے نه ناروغه شوه او په اَتمه هجري کښې وفات شوه. رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا وَاَرضَاهَا.

نبي صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه دا زما د ټولو نه ښهٔ لور وه چه زما په محبت کښې ورته تکلیفونه اُورسولے شو. د دفن په وخت کښې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په خپله قبر کښې کوز شو او دفن ئے کړه. د کوزیدو په وخت کښې ډیر غمژن وو. کله چه بهر ئے تشریف راوړه (راووتلو) نو مخ مبارک ئے روښانه (خوشاله) وو. صحابو رضي الله عنهم ترے پوښتنه اُوکړه نو ارشاد ئے اُوفرمایهٔ

چه ماسره د زینب د ضعف خیال وو. ما دُعا اُوکړه چه د قبر تنګی او د هغې سختی د دے نه لرے کړے شی. الله تعالیٰ قبوله کړه. (خمیس. اسدالغابه)

**فائده**:- د نبی اکرم ﷺ لُور او د دین په خاطرے دومره مشقتونه اُوچت کړه چه ساه یے هم د دے کښې ورکړه. بیا د قبر د تنګئ د پاره د نبی ﷺ دُعا ضرورت وړپیښ شو. نو څوک په شان خلقو به څۀ تپوس کوے په دے وجه بنده له اکثرو ختو نو کښې د قبر تنګی لرے کولو د پاره دُعا ګول بکار دی. په خپله نبی اکرم ﷺ د تعلیم په وجه اکثرو ختونو کښې د قبر د عذاب نه پناه غوختله. اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا مِنْهُ بِمَنِّكَ وَكَرَمِكَ وَفَضْلِكَ.

## (۲۱) د حضرت رُبَیِّع بنتِ مُعَوِّذ رضی الله عنها دینی غیرت

رُبَیِّع بنتِ مُعَوِّذ رضی الله عنها یو انصاری صحابیه ده. اکثر جنګونو کښې د نبی اکرم ﷺ سره شریکه شوے ده. د زخمیانو دارُو درمل به یے کول. او د مقتولینو او شهیدانو لاشونه به یے را اُوچتول راوړل. د نبی ﷺ د هجرت نه مخکښې مُسلمانه شوے وه. د هجرت نه پس یے واده اُوشو. نبی اکرم ﷺ هم د واده په ورځ د دے کور ته تشریف اُوړے وو. هلته څو جینکو به خوشالی کښې اشعار ویل چه په هغې کښې د انصارو اسلامی کارنامے او د هغې مشرانو ذکر وو، کوم چه د بدر په جنګ کښې شهیدان شوی وُو. هغوی نه یو بے یکښې دا مصرعه هم اُوویله. وَفِيْنَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِيْ غَدٍ. (مونږ کښې یو دا سے نبی دے چه اُننده خبرونه خبر دے) نبی ﷺ د دے (مصرع) ویل منع کړه. وَلے چه اُننده حالات خو بس الله تعالیٰ ته معلوم دی. د رُبَیِّع پلار حضرت مُعَوِّذ رضی الله عنه د ابوجهل قتل کونکو کښې وو. یوه زنانه چه د هغې نوم اَسْمَا وو. عطر به یے خرڅول. هغه یو وارے څو زنانو سره حضرت رُبَیِّع کور ته هم لاړه. اول یے د دے نه د نوم، حال، پته وغیره څنګه چه د زنانو عادت وی، پوښتنه اُوکړه. دے ورته اُوخودل. د مُعَوِّذ نوم یے چه واوریدۀ وے ویل چه د خپل سردار د قاتل لور یے.

(ابوجهل چونکه دعرب یو سردار شمار سلے شو ځکه یې ورته دخپل سردار قاتل اُووے.) رَبِیْعؓ چه دا واوریدل، غُصه شوه. وے ویل چه ځه د خپل غلام دقاتل لُوریم. (رَبِیْعؓ ته غیرت راغے چه اَبُوجهل ته یې حما پلار سردار وَیلے او ویل ځکه دے یې دخپل غلام نوم سره ذکر کړه.) اَسمَاءؓ چه دابُوجهل مُتعلق دغلام لفظ واوریدهٔ. غُصه شوه. وے ویل چه ما باندے حرام دی چه په تا عطر خرڅ کړم. رَبِیْعؓ اُووے چه ما باندے حرام دی چه له تا نه عطر واخلم. ماستا دعطرو نه سِوا هیڅ یو عطر کښ کنده کی او بد بوئی نهٔ ده لیدلے. (اُسدالغابه)

**فائده**:- رَبِیْعؓ فرمائی چه ما دبد بو لفظ دهغے دسُوزَوُلو دپاره ویلے وو. داحَمِیَّت او دینی غیرت وو چه ددین هغهٔ دُشمن متعلق دے دَ سردارئ لفظ واورید لے شو. ننن صبا ددین لوئی نه لوئی دُشمن په باره کښ ددے نه هم اُوچت اُوچت الفاظ ویلے شی. او که څوک یې منع کړی نو هغهٔ ته تنګ نظره ویلے شی.

دنبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه مُنافق ته سردار مهٔ وایئ. که چرے هغه ستاسو سردار شو. نو تاسو خپل رَب ناراضه کړهٔ. (ابوداؤد)

# معلومات

## دنبی اکرم ﷺ بیبیانے او اولاد

دخپل آقا او ددواړو جهانو دسردار دنبی اکرم ﷺ دبیبیانو او د اولاد حال معلومولو شوق کولے شی. او هر مُسلمان ته کول هم پکار دی په دے وجه مختصر حال دهغوی لیکلے شی چه تفصیلی حالاتو دپاره دلوئ غټ کتاب پکار دے.

دنبی اکرم ﷺ نکاح کوم باندے چه د مُحدِثینو او د مُورخینو

اتفاق دے یونسؑ بیبیانو سره شوے ده۔ ددے نه زیات کښ اختلاف دے او دے باندے هم اتفاق دے چه دوی کښ د ټولو نه رومبی نکاح حضرت خُدَیجَه رضی اللہ عنہا سره اَوشوه چه کونډه وه۔ د نبی صلی اللہ علیہ وسلم عمر شریف دغه وخت د پنځویشتو کالو وو۔ او د حضرت خدیجه رضی اللہ عنہا عمر د څلویښتو کالو وو۔ د نبی صلی اللہ علیہ وسلم اولاد هم سوا د حضرت اِبراهیمؓ نه ټول له دے نه شوے وو چه د هغے بیان به رستو ته راشی۔

| ① د حضرت خُدیجَه رضی اللہ عنہا حالات |
|---|

د حضرت خدیجه رضی اللہ عنہا د نکاح تجویز د ټولو نه اَول وَرَقه بن نَوفَل سره شوے وو۔ خو د نکاح موقع رانغله دے نه پس د وه کسانو سره اَوشو۔ د تاریخ د خاوندانو په دے کښ اختلاف دے چه دواړو کښ رومبے چا سره نکاح اَوشوه۔ د اکثرو رائے داده چه رومبے عَتیق بن عائذ سره اَوشوه۔ چه د هغے نه یوه جینئ پیدا شوه چه د هغے نوم هِند وو۔ هغه چه لویه شوه، مُسلمانه شوه۔ او د اولاد خاونده هم شوه۔ او بعضو لیکلی دی چه د عَتیق نه یو هلك هم شوے وو چه د هغهٔ نوم عبد الله یا عبدِ مَناف وو۔ د عَتیق نه پس بیا د خدیجے رضی اللہ عنہا نکاح اَبُو هَالَه سره اَوشوه چه د هغهٔ نه هِند او هَالَه دوه اَولاده پیدا شو۔ اکثرو ویلی دی چه دوا ړه هلکان وُو۔ او بعضو ویلی دی چه هِند هلك وو او هَالَه جینئ وه۔ هِند د حضرت علی کرم اللہ وجہہ زمانهٔ خلافت پورے ژوندے وو۔ د اَبُو هاله د وفات نه پس نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم سره یے نکاح اَوشوه چه دغه وخت د حضرت خدیجَه رضی اللہ عنہا عمر څلویښت کاله وو۔ نکاح نه پس پنځویشت کاله د نبی صلی اللہ علیہ وسلم نکاح کښ پاتے وه۔ او رمضان سنه ۱۰ نبوی کښ پنځهٔ شپیتهٔ کالو عمر کښ وفات شوه۔ د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم دے سره ډیر زیات محبت وو۔ او د دے په ژوند کښ یے څهٔ بله نکاح اَونه کړه۔ د دے لقب د اسلام نه رومبے هم طَاهِرَه وو۔ په دے وجه د دے اولاد چه د نورو خاوندانو نه دے هغه هم بَنُو الطَّاهِرَه بللے شی۔ د دے فضائل د حدیث په کتابونو کښ ډیر زیات راغلی دی۔ د وفات نه پس نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم په خپله قبر کښ ورکوز شو او دفن

په کړه. د جنازې د مونځ هغه وخته پورې حکم نه وو راغلے: له دے نه پس په هغه کال شوال کښې حضرت عائشه او حضرت سوده رضی الله عنها سره نکاح اوشوه. په دې کښې هم اختلاف دے چه دواړو کښې د زوجیت حاسره نکاح اوشوه. بعض مؤرخینو حضرت عائشے رضی الله عنها سره نکاح د وړمبي لیکلے ده. او بعضو رائے داده چه حضرت سوده رضی الله عنها سره زوجیت اوشوه. بیا د رستو حضرت عائشے رضی الله عنها سره اوشوه.

② حضرت سوده رضی الله عنها حالات

حضرت سوده رضی الله عنها هم کونډه وه. د دے د پلار نوم زمعه بن قیس وو. د زوجیت نه د مخکښې تره خوئ سکران بن عمرو په نکاح کښې وه. دواړه مسلمانان شول او هجرت یے اوکړو. حبشے ته یے تشریف یوړه. حبشه کښې سکران وفات شو. بعض مؤرخینو لیکلی دی چه مکے ته واپس راغے نو مړ شو. د ده د وفات نه پس سنه نبوی کښې د حضرت خدیجه رضی الله عنها د وفات نه څو ورځے پس نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سره یے نکاح اوشوه. او رخصتي یے د حضرت عائشے رضی الله عنها د رخصتي نه د ټولو په نزد وړمبے اوشوه. د نبی صلی الله علیه وسلم عادت شریف په کثرت سره په مانځه کښې د مشغولتیا وو. یو وارے نبی صلی الله علیه وسلم ته دے عرض اوکړو چه بیګاه تاسو ډیره اوږده رکوع اوکړه ما ته د خپلے پوزے نه د وینے تلو ویره شوه. د دے هم نبی صلی الله علیه وسلم پسخنګ اولو. چونکه د بدن نه ډیره وه، په دے وجه به ورته نور هم مشقت شوے وی) یو وارے نبی صلی الله علیه وسلم دے ته د طلاق ورکولو اراده اوکړه. دے عرض اوکړو چه اے د الله رسوله! ما ته د خاوند خواهش نشته خو دا م ارمان دے چه قیامت کښې ستاسو په بیبیانو کښې داخله یم. په دې وجه تاسو ما ته طلاق مه راکوئ. خپله واره ما عائشے رضی الله عنها ته ورکوم. نبی صلی الله علیه وسلم دا قبوله کړه. نو په دې وجه د دے د وار ورځ به د حضرت عائشے رضی الله عنها په حصه کښې راتله. ۵۴ھ یا ۵۵ھ کښې او د بعضو لیکلی دی چه د حضرت عمر رضی الله عنه اخیري زمانه خلافت کښې وفات شوه. د دے نه علاوه یو سوده نومې بله ښځه هم وه چه د ق لش نه ده. نبی صلی الله علیه وسلم هغے سره د نکاح اراده اوکړه. هغے عرض اوکړه

چه ماته په ټوله دُنیا کښ د ټولو نه زیات محبوب تا سوئی۔ خو ځما پښځه ښځه ښځه ده۔ ماته دا خبره گرانه ده چه هغه ستا سو سره ولاړوی ژاړی او چغې وهی۔ نبی علیه السلام دهغې دا خبره خوښه کړه۔ تعریف یې اُوکړه او د نکاح اراده یې پریخوده۔

(۳) د حضرت عائشه رضی اللہ عنها حالات

حضرت عائشې رضی الله عنها سره هم نکاح مکه مُکرمه کښ د هجرت نه مخکښ شوال سنه ۱۰ نبوی کښ اُوشوه کوم وخت چه د درے عُمر شپږ کاله وو۔ د نبی علیه السلام بیبیانو کښ صرف دا یوه داسے ده چا سره چه په پیغلتوب کښ نکاح اُوشوه۔ نورے ټولے بیبیانے چا سره چه نکاح شوے وه کونډے وے۔ د نبوت نه څلور کاله پس دا پیدا شوه او د هجرت نه پس چه د درے عُمر نهه کاله وو، رُخصتی یې اُوشوه او د اتلسو کالو په عُمر کښ ترے د نبی علیه السلام وفات اُوشو۔ او د شپږ شپیتو کالو په عُمر، ۱۷ رمضان سنه ۵۷ هـ د نهې په شپه دا وفات شوه۔ په خپله یې وصیت کړے وو چه ما عام قبرستان کښ کوم ځائې چه نورے بیبیانے دفن کړے شوی دی، دفن کړئ۔ د نبی علیه السلام نزدے کوټه کښ م مه دفن کوئ۔ هم دغسے اُوشوه۔ بقیع کښ دفن کړے شوه۔ عربو کښ دا مشهوره وه چه شوال المعظم ورکوټی اختر میاشت کښ نکاح بے برکته وی۔ حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ځما نکاح هم په شوال کښ اُوشوه او رُخصتی م هم شوال کښ اُوشوه۔ د نبی علیه السلام بیبیانو کښ کومه ځما نه زیاته نصیب داره او د نبی علیه السلام محبوبه وه۔ د حضرت خدیجه رضی الله عنها د وفات نه پس خوله رضی الله عنها د حکیم لور د نبی علیه السلام خدمت کښ حاضره شوه او عرض یې اُوکړه۔ اے د الله رسُوله! تا سو نکاح نه کوئ؟ نبی علیه السلام اُوفرمایل، چا سره؟ عرض یې اُوکړه۔ پیغله هم شته او کونډه هم شته۔ کومه چه منظوره وی۔ نبی علیه السلام پوښتنه اُوکړه، نو عرض یې اُوکړه چه پیغله خو ستا سو د ټولو نه زیات دوست حضرت ابُوبکر رضی الله عنه لور عائشه ده۔ او کونډه سَودَه بنتِ زَمعه ده۔ نبی علیه السلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه بنه ده خبره اُوکړئ اُوګورئ۔ دا ادغه ځائې نه د حضرت ابُوبکر رضی الله عنه کور ته

لاړه او د حضرت عائشې رضی الله عنها مور اُمّ رُومان رضی الله عنها ته یې عرض اُوکړو چه ما
یو لوئ خیر و برکت راوړے راغلې یم - په پوښتنه یې اُووے چه نبی ﷺ
غځ عائشې سره کوژدن کولو د پاره رالیږلې یم. اُمّ رُومان اُووے چه هغه
خو د هغوی وُرېره ده - هغه سره یې څنګه نکاح کیدے شی. ښه ده. چه
اَبُوبکر رضی الله عنه راشی - حضرت اَبُوبکر رضی الله عنه دغه وخت کور کښې موجود نه وو.
د هغه تشریف راوړلو نه پس هغه ته یې هم دا ذکر اُوکړو - هغه هم دغه
جواب ورکړو چه هغه خو د نبی ﷺ وُرېره ده - نبی ﷺ سره یې څنګه نکاح
کیدے شی. خوَله رضی الله عنها لاړه نبی ﷺ ته یې عرض اُوکړو. نبی ﷺ ارشاد
اُوفرمایئ چه اَبُوبکر خما د اسلام رورر دے. د هغه لُور سره خما نکاح جائز
ده. خوَله رضی الله عنها واپس شوه او حضرت اَبُوبکر رضی الله عنه ته یې جواب واورولو
هلته په کښې څه وخت لګیدو، دے ویل راوړې غواړو. نبی ﷺ تشریف
یوړو او نکاح اُوشوه - د هجرت نه پس خو میاشتې چه تیرے شوے - حضرت
اَبُوبکر رضی الله عنه پوښتنه اُوکړو چه تاسو خپله بی بی عائشه ولے نه غواړئ؟
نبی ﷺ د سامان نه برابریدو عذر اُوفرمایئ - حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه
نذرانه پیش کړو چه په هغې سره تیاری اُوشوه - او شوال سنه ۱ھ یا سنه ۲ھ
د څاښت په وخت حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په کور باندے رُخصتی
اُوشوه - دا درے نکاح ګانے د نبی ﷺ د هجرت نه رُومبے شوی دی. د دے نه پس
خو مرو نکاح ګانے چه شوی دی هغه د هجرت نه پس شوی دی. حضرت عائشې رضی الله عنها
نه پس د حضرت عُمر رضی الله عنه لُور حضرت حفصے رضی الله عنها سره نکاح اُوشوه.

**۴ د حضرت حَفصه رضی الله عنها حالات**

حضرت حفصه رضی الله عنها د نبوت نه پنځه کاله رومبے مکه کښې پیدا شوه. رومبی نکاح یې مکه کښې خُنیس بن حُذافه رضی الله عنه سره اُوشوه. دا هم زوړ مسلمان وو. چه اول یې د حبشې هجرت اُوکړو. بیا یې د مدینې منورے هجرت اُوکړو. بدر کښې هم شریک شوے وو. او هم په دے جنګ کښې یا د اُحُد په جنګ کښې داسے زخمی شو چه د هغې نه روغ نه شو. او سنه ۲ھ یا سنه ۳ھ کښې وفات شو.

حضرت حفصے رضی اللہ عنہا هم خپل خاوند سره هجرت کړے وو. مدینے ته راغلے وه. کله چه کونډه شوه نو حضرت عمر رضی اللہ عنہ اول حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ ته درخواست اوکړه چه ځه د حفصے نکاح تاسره کول غوارم. هغه خاموشه شو. دے نه پس د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ بی بی د نبی علیہ السلام لور حضرت رقیه رضی اللہ عنہا چه کله وفات شوه. نو حضرت عثمان رضی اللہ عنہ ته یے ذکر اوکړه. هغه اووے چه ځما خو دا وخت د نکاح اراده نشته. نبی علیہ السلام ته حضرت عمر رضی اللہ عنہ د دے شکایت اوکړه. نو نبی علیہ السلام ارشاد اوفرمائیل چه ځه د حفصے د پاره د عثمان نه بهتر خاوند او د عثمان د پاره د حفصے نه بهتره بی بی ښایم. دے نه پس حضرت حفصے رضی اللہ عنہا سره یے سنه ۲ھ یا سنه ۳ھ کښ پخپله نکاح اوکړه. او د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ نکاح یے د خپلے لور ام کلثوم رضی اللہ عنہا سره اوکړه. د دے د رومبی خاوند په وفات کښ د مؤرخینو اختلاف دے چه د بدر یا د احد د زخم نه شهید شو بدر سنه ۲ھ کښ دے او احد سنه ۳ھ کښ. په دے وجه د دے په نکاح کښ هم اختلاف دے. دے نه پس حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ حضرت عمر رضی اللہ عنہ ته اوفرمائیل چه کله تا د حفصے رضی اللہ عنہا د نکاح ذکر کړے وو او ځه خاموشه شوم. تا ته په دغه وخت خفګان شوے وی خو چونکه نبی علیہ السلام ما ته د هغے د نکاح ذکر کړے وو. په دے وجه نه خو ما قبلولے شوه او نه م د نبی علیہ السلام راز ښکاره کولے شو. ځکه خاموشه شوم. که چرے نبی علیہ السلام اراده ملتوی کړے نو ما به ضرور کړے وے. حضرت عمر رضی اللہ عنہ فرمائی چه ما ته د ابوبکر رضی اللہ عنہ د خاموشئ، د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د انکار نه هم زیات غم وو. حضرت حفصه رضی اللہ عنہا دیره عابده زاهده وه. د شپے به اکثر ویښه وه. او د ورځے به یے اکثر روژے نیولے. په ځنے وجه سره نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم دے ته یو طلاق هم ورکړے وو چه د هغے په وجه حضرت عمر رضی اللہ عنہ خفه شو او کیدل هم پکار وو. حضرت جبرئیل علیہ السلام تشریف راوړه. عرض یے اوکړه چه د الله جل شانه ارشاد دے چه حفصے ته رجوع اوکړه. دا ډیره شب بیداره او په کثرت سره روژے نیونکی وه. او د عمر رضی اللہ عنہ لحاظ

يې هم منظور وه. په دې وجه نبي ﷺ رجوع اُوکړه. جُمَادَي الاُوْلٰي يعنې
درېيمه خور سنه ۴۵ھ کښې چه د دې عمر د درې شپېتو کالو وو، مدينه منوره
کښې وفات شوه. بعضو د دې وفات سنه ۴۱ھ کښې او عمر يې شپېته کاله ليکلې
دې. د دې نه پس نبي ﷺ نکاح حضرت زَيْنَب رضي الله عنها سره اُوشوه.

**⑤ د حضرت زَيْنَب بنتِ خُزَيْمَه رضي الله عنها حالات**

حضرت زينب رضي الله عنها د خُزَيْمَه لور وه چه د دې په
رومبئ نکاح کښې اختلاف دې. بعضو ليکلي دي
چه رومبې عبد الله بن جَحْش رضي الله عنه سره نکاح شوې وه. کله چه هغه د اُحُد
په غزا کښې شهيد شو چه د هغه قصه د دوم باب رومبي نمبر کښې تيره شوې
ده. نو نبي ﷺ ورسره نکاح اُوکړه. او بعضو ليکلي دي چه د دې رُومبئ نکاح
طُفَيْل بن حَارِث سره شوې وه. د هغه طلاق ورکولو نه پس د هغه رور عُبَيْدَة
بن الحَارِث رضي الله عنه سره اُوشوه کوم چه په بَدر کښې شهيد شو. د دې نه پس نبي اکرم
ﷺ سره يې نکاح د هجرت نه يو دېرش[۳۱] مياشتې پس رمضان سنه ۳ھ کښې
اُوشوه. اَته مياشتې د نبي ﷺ نکاح کښې وه. رَبِيعُ الثَّانِي سنه ۴ھ کښې وفات
شوه. د نبي ﷺ بيبيانو کښې حضرت خديجه او حضرت زَيْنَب رضي الله عنهما دا دوه
بيبيانې دا سې وې چه د دوی وفات د نبي ﷺ په موجودګئ کښې شوې وو.
باقي نهه د نبي ﷺ د وفات په وخت کښې ژوندئ وې. بيا رستو وفات
شوې. حضرت زَيْنَب رضي الله عنها ډيره سخي وه. په دې وجه د دې نوم د اسلام
نه رومبې اُمُّ المَسَاكِيْن (د مسکينانو مور) وه. د دې نه پس د نبي اکرم ﷺ
نکاح حضرت اُمِّ سلمه رضي الله عنها سره اُوشوه.

**⑥ د حضرت اُمِّ سَلَمَه رضي الله عنها حالات**

حضرت اُمِّ سلمه رضي الله عنها د اَبُو اُمَيّه لور وه چه د دې
رومبئ نکاح د خپل تره خوئ اَبُو سلمه رضي الله عنه سره
شوې وه. د هغه نوم عبد الله بن عَبْدُ الاَسَد وو. دواړه شخه خاوند
ابتدائي مُسلمانانو کښې دي. د کافرانو د لاسه تنګ شول. اول دواړو
حبشې ته هجرت اُوکړه. هلته چه لاړل يو خوئ يې پيدا شو چه د هغه نوم
سَلَمَه وو. د حَبَشې د واپسئ نه پس، د مدينې منورې هجرت يې اُوکړه چه

دهغې قصه دې باب په پنځم نمبر کښې په تفصيل سره تيره شوې ده.
مدينه منوره ته چه اُورسيدل. هلته يې يو هلک عمرؓ او دوه جينکۍ دُرّه
او زينب پيدا شوې. ابُو سلمه رضي الله عنه د لسو سړو نه پس مسلمان شوې وو
بدر او د اُحُد په جنګ کښې هم شريک شوې وو. د اُحُد په جنګ کښې ورته
يو زخم رسيدلې وو چه دهغې په وجه يې ډير تکليف اُوچت کړه. دې نه پس
صفر سنه ۴ھ کښې يو سريه کښې يې تشريف يوړه. واپسي باندې هغه زخم بيا
تازه شو او هم دهغې نه اتم جمادي الثاني (څلورمه خور) سنه ۴ھ کښې وفات
شو. حضرت اُم سلمه رضي الله عنها دغه وخت حامله وه او زينب يې په ګيډه کښې وه.
هر کله چه هغه پيدا شوه. نو عدت يې پوره شو. حضرت ابُوبکر صديق رضي الله عنه
ورته د نکاح خواهش ښکاره کړه هغې عذر اُوکړه. دې نه پس نبي کريم صلى الله عليه وسلم
اراده ښکاره کړه. دې عرض اُوکړه چه ځما بچي هم دي او ځما مزاج کښې غيرت
ډير دې او ځما څوک ولي د لته نشته. نبي صلى الله عليه وسلم ارشاد اُوفرمايه چه د بچو
الله تعالىٰ محافظ دې او د غيرت به انشاء الله لاړشي. او هيڅوک ولي به دا
رشته ناخوښه نه کړي. نو دې خپل ځوئ سلمه رضي الله عنه ته اُووې چه نبي صلى الله عليه وسلم
سره ځما نکاح اُوکړه. د شوال د مياشتې په اخيره سنه ۴ھ کښې نبي صلى الله عليه وسلم سره
نکاح اُوشوه. بعضو سنه ۳ھ کښې او بعضو سنه ۲ھ کښې ليکلې ده. اُم سلمه رضي الله عنها وائي
چه ما د نبي صلى الله عليه وسلم نه اُوريدلي وُو چه چا ته څه مصيبت اُورسي او هغه دا دعا
اُوکړي اَللّٰهُمَّ اٰجِرْنِيْ فِيْ مُصِيْبَتِيْ وَاخْلُفْنِيْ خَيْرًا مِّنْهَا. "اے الله! ما ته په دې
مصيبت کښې اجر (ثواب) راکړې او د دې ښه بدل م نصيب کړې" نو الله
جل شانهٗ به ورله بهترين بدل ورکړي. د ابُو سلمه رضي الله عنه په وفات ما دا دعا اُويله
خو دا م سوچ کوو چه د ابُو سلمه نه بهتر څوک کيدې شي. الله تعالىٰ م د نبي صلى الله عليه وسلم
سره نکاح اُوکړه. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه دې د ښائست ډيره حضرت
وه. کله چه نکاح اُوشوه. نو څه په پټه په بهانه لاړم، اُوم کتل. نو چه څنګه
م اُوريدلي وُو، دهغې نه م زيات ته بيا مونده. ما حفصه رضي الله عنها ته د دې ذکر اُوکړه
هغې اُووې، نا. دومره ښائسته نه ده څومره چه مشهوره ده. اُمهات المؤمنين

کښې د ټولو نه اخیر کښې د اُمِّ سَلَمه رضی الله عنها وفات ۵۹ھ یا ۶۲ھ کښې اُوشو.
ده وخت یې عُمُر تقریباً اتیا کاله وو. د لِحاظ سره د نبوّت نه تقریباً
څلور کاله د مخکښې پیدا شوې وه. د حضرت زینب بنتِ خُزیمه رضی الله عنها د وفات نه
پس یې د دې سره نکاح اُوشوه. او د حضرت زینب رضی الله عنها په کور کښې اُوسیدَه.
دې هلته اُولیدل چه یو چاټی کښې اُوړه پراته دی او یوه ټیکری او یوه
کوزه هم. دې اُوړه پخپله اُوړه کړې او غوړی په کښې واچول. ملیده
(حلوه غوندې) یې تیاره کړه. او په رومبۍ ورځ یې په نبی صلی الله علیه وسلم هغه ملیده
اُوخوړله کوم چه د نکاح په ورځ یې پخپله پخه کړې وه. د دې نه
پس د نبی صلی الله علیه وسلم نکاح حضرت زینب بنتِ جَحَش رضی الله عنها سره اُوشوه.

⑤ د حضرت زَینَب بنتِ جَحَش رضی الله عنها حالات

دا د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د ترور لور وه. د دې رومبۍ نکاح نبی صلی الله علیه وسلم خپل مُتَبنّی حضرت زید بن حارثه رضی الله عنه سره کړې وه. د هغه طلاق ورکولو نه پس الله جلّ شانُهٗ په خپله د دې نکاح نبی صلی الله علیه وسلم سره اُوکړه. چه د دې قصه سورۃ الاحزاب کښې ده. د هغه وخت
د دې عُمر پنځه دیرش کاله وو. د مشهور قول موافق ذی قعده (د میاشت)
۵ھ کښې یې نکاح شوې وه. بعضو ۳ھ کښې لیکلې ده خو صحیح ۵ھ ده.
په دې حساب د نبوّت نه ۱۷ یا اُوولس کاله وړاندې پیدا شوې وه. د دې نه
د دې خبره فخر وو چه د ټولو بیبیانو نکاح د هغوی خپلوانو کړی دی او زما
نکاح الله جل شانهٗ کړې ده. حضرت زید رضی الله عنه چه کله د دې ته طلاق ورکړه
عدت پوره شو. نو نبی صلی الله علیه وسلم د دې ته پیغام اُولیږه. د دې په جواب کښې
عرض اُوکړه چه څه د هغې وخته پورې هیڅ نه شم ویلې، تر څو چه خپل الله
سره مشوره اُونکړم. دا یې اُووې اُودس یې اُوکړه او د مونځ نیت یې اُوتړه.
دا دعا یې اُوکړه چه اے الله تعالیٰ ستا رسول صلی الله علیه وسلم ما سره نکاح کول غواړی
که زه د هغه قابله یم نو زما نکاح هغوی سره اُوکړې. دا ویل وو
نبی صلی الله علیه وسلم باندې د قرآن شریف ایت فَلَمَّا قَضٰى زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنٰكَهَا
نازل شو. نو نبی صلی الله علیه وسلم خوشخبری ورا اُولیږله. حضرت زینب رضی الله عنها د

خوشحالئ له وجې په سجده کښې پریوته. نبی اکرم ﷺ د دې د نکاح ولیمه په لوئ شان سره اوکړه. چیلئ یې حلاله کړه او د غوښې او ډوډئ دعوت یې اوکړه. یوه یوه ډله به راتللې شوه. اوکله چه به هغه فارغه شوه. نو بله ډله به د غنے راتللې شوه. ان تردې چه ټولو خلقو په مړه ګیډه اوخوړله حضرت زینب رضی الله عنها ډیره سخی وه او ډیره محنتی وه. په خپل لاس به یې محنت کولو او څه چه به حاصل شو هغه به یې صدقه کول. هُم د دې باره کښې نبی اکرم ﷺ ارشاد فرمایلے وو چه ما ته به د ټولونه ګړوبې د وفات نه پس هغه ښځه راځي چه د چا لاس اوګد وی. بیبیانو (ازواج) اوږد والے اوګڼړه ځکه یې لرګے واخست او لاس یې ناپ کول شروع کړه. په کتلو کښې د حضرت سوده رضی الله عنها لاس د ټولونه اوږد وو. خو هر کله چه د حضرت زینب رضی الله عنها وفات د ټولو بیبیانو نه ګړوبې اوشو. نو هله پوهه شوے چه د لاس د اوږد والی نه مراد د صدقے خیرات ډیروالے وو. روژے به یې هم ډیرے نیولے. ۲۰ھ کښې وفات شوه. حضرت عمر رضی الله عنه د جنازے مونځ اوکړه. د پنځوسو کالو عمر یې وو. د دې قصه هم د دې باب په لسم نمبر تیره شوے ده. د دې نه پس د نبی ﷺ نکاح حضرت جُوَیرِیَه بنتِ الحارث بن ابی ضرار سره اوشوه.

⑧ د حضرت جُوَیرِیَه بنتِ الحارث رضی الله عنها حالات

دا غزوۀ مُرَیسیع کښې قیدیانو کښې راغلے وه. او غنیمت کښې د حضرت ثابت بن قیس رضی الله عنه حصه کښې راغله. د قیدیدو نه ړومبې د مسافع بن صفوان په نکاح کښې وه. حضرت ثابت رضی الله عنه دا په نهه اوقیے سرو زرو باندے مکاتبه ته ورکړه. مکاتب هغه غلام یا وینځے ته ویلے شي چه په هغه د امقرر کړے شي چه دومره رقم که چرے راکړے نو ته ازاد یے. یو اوقیه د څلویښتو درهمو ده. او یو درهم تقریباً د درے نیمو آنو. په دے حساب سره د نهه اوقیو قیمت اته اویا درهمه دولس آنے شوے. که چرے درهم د څلور آنو شي نو بیا

۱؎ په حقیقت کښې درهم د درے نیمو ماشو سپینو زرو د وزن یو نوم دے. نو د حضرت یکړو یو وخت کښې قیمت یې درے نیمے آنے یا څلور آنے وے. او س یې د دے نه قیمت زیات دے

خلور نیم فلے درهمه شوے. دا د نبی ﷺ په خدمت کښ راغله او عرض
یې اوکړو چه اے د الله رسوله! زهٔ د خپل قوم د سردار حارث لور جویریه
یم. کوم مصیبت چه په ما راغلے دے هغه تا سو ته معلوم دے. اوس زهٔ
په دومره مقدار مکاتبه شوے یم او دا مقدار زما د وس نه بهر دے. ستاسو
په امید راغلے یم. نبی ﷺ ورته اوفرمایل چه زهٔ تا ته د دے نه بهتره لار
اوښایم. چه تا ته به مال ورکړم. ازاده به دِ کړم. او نکاح به درسره اوکړم. دے
دپاره له دے نه بهتر څهٔ وُو. په خوشالئی یې قبوله کړه او سـ۵ـه د مشهور
قول موافق او بعضو سـ۶ـه کښ دا قصه ښودلے ده. نکاح اوشوه. صحابه
رضی الله عنهم چه کله واوریدل چه بنو المصطلق د نبی ﷺ سخرګنی جوړه شوه نو
هغوی هم د دے خپلولئی په عزت کښ خپل خپل غلامان ازاد کړل. ویلے
شی چه د یو حضرت جویریه رضی الله عنها له وجے نه سل کورنئی ازادے شوے چه
په هغے کښ تقریباً اووه سوه سړی وُو. د دے قسمه مصلحتونه د نبی ﷺ
په ټولو نکاحونو کښ وُو. حضرت جویریه رضی الله عنها ډیره ښائسته وه. په مخ
یې ملاحت (رنګینوالے) وو. واقدی چه د چا نظر به پرے پریوته، اُچتیده
به ترے نهٔ. حضرت جویریه رضی الله عنها د دے جنګ نه ګروهے یو خوب لیدلے
وو چه د یثرب نه یو سپوږمئی راروانه شوه او زما غیږ ته راغله
داواقدی چه کله زهٔ قیدۍ شومه نو ما ته د خپل خوب د تعبیر امید پیدا شو.
د هغه وخت د دے عمر شل کاله وو. او د ربیع الاول (بارهٔ وفات) سـ۵۰ـه
کښ د صحیح قول مطابق د پنځوس شپیتو کالو په عمر کښ مدینه منوره کښ
وفات شوه. او بعضو د دے وفات سـ۵۶ـه کښ د اویا کالو عمر کښ لیکلے دے.

**(۹) حضرت ام حبیبه رضی الله عنها حالات**

دا د ابو سفیان لور ده. د دے په نوم کښ اختلاف دے. ډیرو رمله او بعضو هند خودلے دے. د دے
وړمبۍ نکاح عبید الله بن جحش سره مکه مکرمه کښ شوے وه. د دواړو
ښځه خاوند مسلمانان شوی وُو. د کافرانو د تکلیفونو په وجه یې وطن
پرېښودهٔ. او د حبشے هجرت د دواړو اوکړو. هلته چه لاړل، خاوند یې

نصرانی شو۔ دا په اسلام باقی پاتے شوه۔ دے هم په دغه شپه کښې خپل خاوند په خوب کښې ډیر په بَد شکل کښې اُولیدهٔ۔ سحر معلومه شوه چه هغه نصرانی شوے دے۔ دخانله والی دے حالت کښې په دے به څهٔ تیر شوی وی، الله تعالیٰ ته معلومه ده۔ خو الله تعالیٰ د دے بنهٔ بدل دا ورکړهٔ چه د نبی ﷺ نکاح کښې راغله۔ نبی ﷺ د حبشے بادشاه ته پیغام اُولیږهٔ چه د هغې نکاح ما سره اُوکړه۔ نو نجاشی یوه زکانه اَبْرَهه دے ته د خبر دپاره اُولیږله۔ دے په خوشالئ کښې خپل د واړه بنګړی کوم یے چه اچولی وُو هغې ته ورکړهٔ۔ او د خپو بے غمی ګټے، ګړے وغیره څیزونه یے ورکړهٔ۔ نجاشی یے نکاح اُوکړه او له خپله طرفه څلورسوه دیناره (اشرفئ) یے مهر اداکړهٔ۔ او ډیر څهٔ سامان یے ورکړهٔ۔ کوم خلق چه د نکاح مجلس کښې موجود وُو هغوی ته یے هُم اشرفئ ورکړے او خوراك یے پرے اُوخوړهٔ۔ دے کښې اختلاف دے چه دا نکاح سنه ۶ھ کښې اُوشوه څنګه چه د ډیرو وینا ده۔ یا سنه ۷ھ کښې څنګه چه بعضو ویلی دی۔ د تاریخ خمیس صاحب لیکلی دی چه د دے نکاح سنه ۶ھ کښې اُوشوه او رخصتی یے سنه ۷ھ کښې۔ کله چه دا مدینے منورے ته اُورسیدهٔ۔ نجاشی ډیرے خوشبوئانے او سامان وغیره ورکړهٔ او د نکاح نه پس یے د نبی ﷺ خدمت کښې اُولیږله۔ بعضِ د تاریخ کتابونو او د حدیثونو نه معلومیږی چه د دے پلار نکاح اُوتړلے وو دا صحیح نهٔ ده۔ ځکه چه د دے پلار د دے وخته پورے مُسلمان شوے نهٔ وو۔ هغه د دے قصے نه پس مُسلمان شو۔ د دے یوه قِصه هم د دے باب په نهم نمبر تیره شوے ده۔ د دے په وفات کښې ډیر اختلاف دے۔ ډیرو خلقو سنه ۴۴ھ خوښولے دے او د دے نه علاوه سنه ۴۲ھ او سنه ۵۰ھ او سنه ۵۵ھ وغیره اقوال هُم دی۔

## ⑩ د حضرت صَفِیّه رضی الله عنها حالات

حضرت صَفِیّه رضی الله عنها د حُیَیّ لُور د حضرت موسیٰ علیه السلام د رور حضرت هٰرُون علیه السلام د اولاد نه وه۔ اول د سَلَام بن مِشْکَم په نکاح کښې وه۔ د دے نه پس د کِنَانَه بن اَبی الحُقَیق په نکاح کښې راغله۔ دهٔ سره یے نکاح په هغه زمانه کښې شوے وه چه د

خیبر جنګ شروع شوے وو. او د دے خاوند قتل شوے وو. د خیبر د
جنګ نه پس دِحیه کلبی رضؓ یو صحابی وو، هغهٔ د نبی ﷺ نه یوه
وینځه اُوغوختله. نبی ﷺ ورته راورکړه. چونکه مدینه منوره کښې
دوه قبیلے بنو قریظه او بنو نضیر آبادے وے او دا د سردار لور وه. په دِے
وجه خلقو عرض اُوکړو چه دا خبره ډیرو خلقو ته ناخوښه ده. که چرے
صفیه نبی ﷺ خپله نکاح کښې راخلی نو د ډیرو خلقو زړهٔ به اُوساتلے
شی. له دے وجے نبی ﷺ دِحیه رضؓ ته ډیره څهٔ بدله ورکړه او دا یے ترے
واخستله. او آزاده یے کړه او په خپله یے ورسره نکاح اُوکړه. او د خیبر نه په
واپسی یو منزل باندے د دے رخصتی اُوشوه. سحر نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ
چا څخه چه کوم د خوراک څیزونه وی هغه راوړی. صحابه رضؓ سره جُدا
جُدا څیزونه کهجورے، پنیر، غوړی وغیره کوم چه وُو، هغه یے راوړل
یو څرمنے دسترخوان یے اُوغوړوو. او هغے باندے یے دا ټول څیزونه
واچول او ټولو په شریکه اُوخوړل، هم دا وَلیمه وه. بعضو روایاتو کښې
راغلی دی چه نبی ﷺ دے ته اختیار ورکړے وو. که چرے ته په خپل
قوم او ملک کښې اُوسیدل غواړے نو ته آزاده یے، لاړه شه. او که ما څخه
نکاح کښې اُوسیدل غواړے نو اُوسه. دے عرض اُوکړو چه اے د الله
رسُولهٔ! د شرک په حالت کښې ما ستا سو خواهش لرلو، اوس چه مُسلمانه
شوم څنګه تلے شم. د دے نه مُراد غالباً د دے هغه خوب وو کوم چه دے
د مُسلمانیدو نه مخکښې لیدلے وو. چه یو د سپوږمئ ټکړه څما غیږه کښې
ده. دا خوب دے خپل خاوند کنانه ته اُووے. هغهٔ یو پړق دومره په
زوره په مخ اُووهله چه په سترګه یے نښه اُوشوه. او دا یے اُووے چه ته
د یثرب د بادشاه د نکاح خواهش کوے. یو وارے یے خوب اُولیدهٔ چه نمر
دے په سینه دے. خاوند ته یے د دے ذکر اُوکړهٔ. هغهٔ په دے هم ورته
اُووے چه ته دا غواړے چه د یثرب د بادشاه په نکاح کښې لاړه شے. یو
وارے دے سپوږمئ په غیږ کښې اُولیدهٔ. نو خپل پلار ته یے ذکر اُوکړهٔ.

ستا نظر دی ترب بادشاه ته هغهٔ هم تیر پرېږدی او وهله او دا یې او وې چه خاوند او پلار دواړو ته ویلې وی چې، ممکنه ده چه د سپوږمۍ خوب یې دوه واړو لیدلی وی. رمضان سنه ۵ھ کښې د صحیح قول موافق یا سپوږمۍ یې دوه واړو لیدلی وی. پخپله وائی چه څهٔ کله ﺩ وفات شوه او تقریبًا شپیته کاله عمر یې بیا موندهٔ. پخپله وائی چه څهٔ کله ﺩ نبی علیه الصلوٰة والسلام نکاح کښې راغلم نو څما عمر اوولس کاله لا نهٔ وو.

**⑪ د حضرت میمونه رضی الله عنها حالات**

حضرت میمونه رضی الله عنها د حارث بن حزن لور وه. د دے اصل نوم برّه وو. نبی علیه الصلوٰة والسلام بدل کړهٔ. میمونه یې ورله کېښوده. د رومبی نه د ابورهم بن عبد العزّی په نکاح کښې وه. د دیر مؤرخینو هم دا قول دے. او دیر اقوال دے د رومبی خاوند په نوم کښې. بعضو لیکلی دی چه د نبی علیه الصلوٰة والسلام په نکاح کښې راتلو نه وړاندے یې دوه نکاحګانے شوے وے. کوم وخت چه پس ذی قعده سنه ۷ھ کښې کله چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم عمرے دپاره مکے مکرمے ته تشریف اوړهٔ. په سرف مقام کښې یې نکاح اوشوه. نبی علیه الصلوٰة والسلام اراده اوفرمایله چه د عمرے فارغیدو نه پس مکه کښې رخصتی اوشی. خو د مکے خلقو د قیام اجازت ورنکړهٔ. څکه په واپسئ سرف کښې رخصتی اوشوه. او په سرف کښې خاص هُم په هغه ځائ کښې کوم ځائ چه د رخصتی خیمه وه سنه ۵۱ھ کښې د صحیح قول مطابق وفات شوه. او بعضو سنه ۶۱ھ کښې لیکلے دے. دغه وخت د دے عمر د یو اتیا کالو وو. او هم هلته یې قبر جوړ شو. دا هم د عبرت مقام دے او د تاریخ عجیبه واقعه ده. چه په یو سفر کښې هلته نکاح اوشوه. او په دویم سفر کښې هلته رخصتی اوشهٔ موده پس هم هغه ځائ کښې یې قبر جوړ شو. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه میمونه رضی الله عنها مونږ ټولو کښې زیاته پرهیزګاره او صله رحمی کونکے وه. یزید بن اصم رضی الله عنه وائی چه د دے مشغله هر وخت مونځ وو، یا د کور کار. که چرے د دواړو نه به فارغه شوه نو مسواک به یې کولو. د کوم بیا نو په نکاح چه د محدثینو او مؤرخینو اتفاق دے هغے کښې د حضرت میمونے رضی الله عنها نکاح د ټولو نه آخری نکاح ده. د دوی نه پس

ترتیب کښې البته اختلاف دے چه دهغې په وجه د دوی د نکاح تاریخونو کښې اختلاف دے. څنګه چه مختصرًا معلومه شوه.

دے بیبیانو کښې د دوه و وفات د نبی ﷺ په موجودګۍ کښې شوے وو. (د حضرت خدیجې او د حضرت زینب بنت خزیمه رضي الله عنهما) باقی نهه بیبیانے د نبی ﷺ د وفات په وخت کښې موجودے وے. دے نه علاوه نورے هم بعضې نکاحګانے بعضو محدثینو او مؤرخینو لیکلی دی چه دهغې په کیدو کښې اختلاف دے. په دے وجه دهغې بیبیانو حالات مو لیکلی دی چه په کوم باندے اتفاق دے.

# معلومات

## د نبی اکرم ﷺ اولاد

د مؤرخینو او محدثینو دے باندے اتفاق دے چه د نبی ﷺ څلور لونړه وے. او د ډیر تحقیق دا دے چه دوی کښې تو لو نه مشره حضرت زینب رضي الله عنها وه. بیا حضرت رقیه بیا حضرت ام کلثوم بیا حضرت سیده فاطمه رضي الله عنها وے. ځامنو کښې البته ډیر اختلاف دے. چه دهغې وجه دا ده چه د اتول په وړوکوالی کښې وفات شوی وو. او عربو کښې په دغه زمانه کښې د تاریخ اهتمام څه داسے نه وو. د صحابو په شان جان نثاران هم دغه وخت پورے په کثرت سره نه وو. چه هره خبره پوره پوره محفوظه شوے وے. د اکثرو تحقیق دا دے چه درے ځامن حضرت قاسم، حضرت عبدالله، حضرت ابراهیم رضي الله عنهم شوی وو. بعضو ویلی دی چه څلورم ځوئ حضرت طیب او پنځم حضرت طاهر رضي الله عنهما وو دا رنګے پنځه شو. بعض وائی چه طیب طاهر دواړه د یو ځوئ نومونه دی. دا رنګے څلور شو. او بعضو او وے چه هم د حضرت عبدالله نوم طیب او طاهر وو. دا رنګے درے ځامن

شو. او بعضو دوه خامن نور هم خودلی دی. مُطَیِّب او مُطَهِّر رضی الله عنهما او لیکلی یې
دی چه طیب او مُطَیِّب رضی الله عنهما یوځای پیدا اشول او طاهر او مُطَهِّر رضی الله عنهما یوځای
پیدا اشول. دا رنګې اوهٔ خامن شو. خو د اکثرو تحقیق د درې خامنو دے.
او د نبی ﷺ ټول اولاد د حضرت ابراهیم رضی الله عنه نه سوا د حضرت خدیجه
رضی الله عنها نه پیدا اشوی وو. د حضرت قاسمؓ د ټولو نه وړومبې پیدا اشو خو

**(۱) د حضرت قاسم رضی الله عنهٔ حالات**

خامنو کښې حضرت قاسمؓ د ټولو نه وړومبے پیدا شو. حضرت زینب رضی الله عنها د
په دے کښې اختلاف دے چه حضرت زینب رضی الله عنها د
دې ورو کوالی کښې وفات شو. د دوهٔ
حضرت قاسم په وړوکوالی کښې وفات شو. د دوهٔ
دهٔ نه مشره وه که کشره. حضرت قاسم په ورو کوالی کښې وفات شو. د دوهٔ
کالو عمر اکثرو لیکلے دے او بعضو د دے نه کم زیات هم لیکلے دے.

**(۲) د حضرت عَبْدُالله رضی الله عنهٔ حالات**

دویم ځوئ حضرت عبدالله رضی الله عنه د نبوت نه پس پیدا
شوے دے. او هم په دے وجه د دهٔ نوم طیّب او
طاهر هم ویلے شی. او په وړوکوالی کښې وفات شو. د دهٔ په وفات باندے
او بعضو لیکلی دی چه د حضرت قاسمؓ په وفات کافران ډیر خوشاله شول چه
د نبی ﷺ نسل مُنْقَطِع یعنی ختم شو. په دے باندے سورة اِنَّآ اَعۡطَیۡنَا نازل
شو. او دا کافرانو دے وینا چه هر کله نسل ختم شو. نو ځو ورځې پس به نوم
مبارک یې هم ختم شی، دا جواب ورکړے شو. چه نن دیارلس نیم سوه کاله پس
هم د نبی ﷺ د نوم نه قربانید ونکی په کروړونو موجود دی.

**(۳) د حضرت ابراهیم رضی الله عنهٔ حالات**

دریم ځوئ حضرت ابراهیمؓ وو کوم چه د هجرت نه
پس مدینه منوّره کښې بِالْاِتِّفَاق ذی الحُجَّه سنه ۸ هـ
کښې پیدا شو. دا د نبی ﷺ د وینځے حضرت مارِیَه رضی الله عنها نه پیدا شو. او د نبی ﷺ
د ټولو نه اخری اولاد دے. نبی ﷺ په اوومه ورځ د دهٔ عَقِیقَه اوکړه او د دهٔ
ګڼان یې حلال کړل. او د دهٔ د سَر د وِیښتو برابر سپین زر یې صدقه کړل. او
وِیښتهٔ یې دفن کړل. اَبُو هِنْد بَیَاضِی رضی الله عنه ورله د سَر وِیښتهٔ اوخریل. نبی ﷺ
ارشاد اوفرمایلو چه ما د خپل پلار حضرت ابراهیم علیه السلام په نامه د دهٔ نوم
ایښے دے. او د شپاړس میاشتو په عُمر کښې دا ځوئ یې هم ١٠ رَبِیعُ الْاَوَّل سنه ١٠ هـ کښې وفات

شو. بعضو اتلس میاشتے عمر خودلے دے. د نبی صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه ابراهیمؓ دپاره جنت کښ یَئ څکوونکے مقرره کړے شوه.

⑩ د حضرت زینب رضی الله عنها حالات

لوئړو کښ د ټولو نه مشره حضرت زینب رضی الله عنها ده. او کوم مؤرخینو چه د دے خلاف لیکلی دی، غلطه ده.

د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم د نکاح نه پنځه کاله پس هر کله چه د دوی عمر د دیرشو کالو وو، پیدا شوه. او د خپل مور پلار په ژوند کښ پیغله شوه، مسلمانه شوه او د خپل تره ورځوی اَبُوالْعَاص بن رَبِیع سره یے نکاح اُوشوه. د غزوهٔ بدر نه پس یے هجرت اُوکړو. چه په هغے کښ د مشرکینو په ناپاک حرکتونو سره زخمی شوه، چه د هغے قصه هم د دے باب په شلم نمبر تیره شوے ده. او هم د دے بیمارئ سلسله آخره پورے چلیده. تر دے چه د شتهٔ په شروع کښ وفات شوه. د دے خاوند هم شتهٔ یا شتهٔ کښ مسلمان شو. مدینے منورے ته رسیدلے وو. او هم د ده په نکاح کښ پاتے شوه. د ده نه یے دوه بچی پیدا شو. یو هلک بله جینئ. د هلک نوم علیؓ وو چه هغه د خپلے مور د وفات نه پس د بالغیدو تر دے د نبی صلی اللہ علیہ وسلم په ژوندانه کښ وفات شو فتح مکه کښ نبی صلی اللہ علیہ وسلم ده سره په اُوښه باندے چتوله سور وو هغه هم دا حضرت علیؓ وو. د جینئ نوم حضرت اُمَامه رضی الله عنها وو چه د کومے متعلق د حدیث په کتابونو کښ په کثرت سره قِصه راځی. چه کله به نبی صلی اللہ علیہ وسلم مانځه کښ سجده کوله نو دا به یے په ملا باندے سوره شوه. دا د نبی صلی اللہ علیہ وسلم نه پس ژوندئ وه. حضرت سَیِّده فاطِمه رضی الله عنها چه وفات شوه کومه چه د دے تروروه، حضرت علی کرم الله وجهه د دے سره نکاح اُوکړه. او د هغهٔ د وفات نه پس مُغیره بن نوفل سره یے نکاح اُوشوه. د حضرت علی کرم الله وجهه هیڅ اولاد د دے نه اُونه شو. البته د مُغیره رضی الله عنه بعضو یو ځوئ یحیی لیکلے دے او بعضو انکار کړے دے. وائی چه حضرت فاطِمه رضی الله عنها په خپله وصیت کړے وو چه ځما نه پس حضرت علی کرم الله وجهه نکاح د ځما خور زے سره اُوکړے شی. د دے وفات شتهٔ کښ اُوشو.

**⑤ د حضرت رُقَیّه رضی الله عنها حالات**

د نبی علیه الصلوٰة والسلام دویمه لوُر حضرت رُقَیّه رضی الله عنها وه. کومه چه خپلے خور حضرت زینب رضی الله عنها نه درے کاله پس پیدا شوه. کله چه د نبی علیه الصلوٰة والسلام عمر شریف درے دیرش کاله وو. او بعض حضراتو خو صحیح هم داده رُقَیّه رضی الله عنها د حضرت زینب رضی الله عنها نه مشره خور لے ده. خو صحیح هم داده چه دا د حضرت زینب رضی الله عنها نه کشره وه. د نبی علیه الصلوٰة والسلام تره د اَبُولهب خوئ عُتْبه سره نکاح شوے وه. کله چه سُورة تَبَّتْ نازل شو. نو اَبُولهب دُه ته او ورته دویم زوے عُتَیبه ته چه دهغهٔ نکاح د نبی علیه الصلوٰة والسلام دریمے لور حضرت اُمّ کُلْثوم رضی الله عنها سره شوے وه، دا اُووے چه ستاسو دواړو سره خما ملاقات تاسو دواړو حرام دے، که چرے تاسو د مُحَمَّد صلی الله علیه وسلم لوڼړو ته طلاق ورنهٔ کړهٔ. دادواړه نکاحګانے په وړوکوالی کښ شوے دے بانډے دواړو طلاق ورکړهٔ. د رُخصتیٔ نوبت لا هُم نهٔ وو راغلے. دے نه پس په فتح مکه کښ د حضرت رُقَیّه خاوند عُتْبه مسلمان شوے وو. خو بی بی ته یے د مخکښے نه طلاق ورکړے وو. او د حضرت رُقَیّه رضی الله عنها نکاح حضرت عُثمان رضی الله عنه سره ډیره مُوده مخکښ شوے وه. حضرت عُثمان رضی الله عنه او حضرت رُقَیّه رضی الله عنها دواړه ځلے د حَبَشے هجرت کړے وو چه دهغے بیان د اول باب لسم نمبر بانډے تیر شوے دے. دے نه پس هر کله چه د نبی علیه الصلوٰة والسلام دا ارشاد اُوفرمایهٔ چه ما ته هُم د هجرت حکم کیدونکے دے او مدینه منوّره به خما د هجرت ځائے وی نو صحابه رضی الله عنهم د مدینے مُنوّرے هجرت شروع کړهٔ. هم په دے سلسله کښ د نبی علیه الصلوٰة والسلام نه مخکښے دواړه حضرات هم مدینه مُنوّره ته رسیدلی وُو. د نبی علیه الصلوٰة والسلام د هجرت نه پس کله چه نبی علیه الصلوٰة والسلام د بَدر جنګ ته تشریف اوړونکے وو، نو حضرت رُقَیّه رضی الله عنها ناروغه وه. په دے وَجه نبی علیه الصلوٰة والسلام حضرت عُثمان رضی الله عنه د دے د خدمت د پاره مدینه مُنوّره کښ پرېخوده. د بَدر د فتح زیرے مدینه متوّره ته هغه وخت اُورسیدهٔ کله چه دے حضراتو حضرت رُقَیّه رضی الله عنها دفن کړے وه واپس راتللهٔ. هم په دے وجه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د دے په دفن کښ شریک نهٔ شو. د حضرت رُقَیّه رضی الله عنها د ړومبی

خاوند څخه لا رُخصتي هم نه وه شوې. نو اولاد يې څه ذکر. البته حضرت عثمان رضي الله عنه نه يو خوئ چه د هغه نوم عبدالله وو، حبشه کښې پيدا شوې وو چه د خپلې مور د وفات نه پس هم ژوندې وو. او د شپږو کالو په عمر کښې سنه ۴ھ کښې وفات شو. او بعضو ليکلي دي چه د خپلې مور نه يو کال روميې وفات شو، د دې نه علاوه نور يې هيڅ اولاد د حضرت رُقيه رضي الله عنها نه نه وو شوې.

**(۶) د حضرت اُمِّ کُلثوم رضي الله عنها حالات**

د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم دريمه لُور حضرت اُمِّ کُلثوم رضي الله عنها وه. د دې کښې اختلاف دې چه دې کښې او حضرت فاطمه رضي الله عنها کښې کومه مشره وه. د ډيرو رائې داده چه اُمِّ کُلثوم رضي الله عنها مشره وه. اول يې عُتيبه بن اَبي لَهب سره نکاح اُوشوه. خو رُخصتي يې لا نه وه شوې چه سورة تَبَّت نازل شو. او طلاق ورکړې شو. څنګه چه د حضرت رُقيّه حالاتو کښې تير شو. خو د هغې خاوند بيا رُستو مُسلمان شوې وو څنګه چه تير شو. او د دې خاوند عُتيبه طلاق ورکړه او د نبي صلى الله عليه وسلم خدمت کښې راغې ډيره ګستاخي، بې ادبي او نامناسبه الفاظ يې هم د زبې نه اُوويستل. نبي صلى الله عليه وسلم ورته خيرې اُوکړې چه اے الله! د خپلو سپو نه يو سپې د ده باندې مُقرر کړې. ابوطالب د غه وخت موجود وو. سره د دې چه مُسلمان نه وو. اُويريده. اُو وې ويل چه د ده د خيرې نه ستا خلاصه نشته. هم د غسې اُوشوه چه عُتيبه يو وارې د شام په سفر تلو. د ده پلار اَبولهب سره د دې چه تلو ډير اُو نورو او دُشمنو ورته اُو وې چه ما سره د محمد (صلى الله عليه وسلم) د خيرې فکر دې. د قافلې ټول خلق د خپل خيال ساتي. يو منزل باندې اُورسيدل، هلته زمرې زيات وُو. د شپې د ټولې قافلې سامان يې يو ځائې جمع کړه او د هغې نه يې يو غونډئ شانته جوړه کړه. په هغې يې عُتيبه اُوده کړه. او د قافلې ټول سړي څلور واړه طرفه اُوده شو. د شپې يو زمرې راغې او د ټولو خلقو يې بوئ کړې. د دې نه پس يې يو ټوپ اُو وهه او هغې غونډئ ته اُورسيده. او د عُتيبه سر يې د بدن نه جُدا کړه. هغه يو اواز هم اُو نه کړه خو بيا کار پوره شوې وو. (يعني مړ شوې وو) بعضو

اودا قصه رُومبنی رور عتبه مُوَرِّخینو لیکلی دی چه دے مُسلمان شوے وو. اوحضرت اُمِّ کلثوم رضی الله عنها په رُومبنی سره شوے وه. بهرحال حضرت رُقیه او حضرت اُمِّ کلثوم رضی الله عنهما په رُومبنی خاوندانو کښ یو مُسلمان شوے وو. دویم سره دا د عبرت واقعه اُوشوه. هم له دے وجے دالله تعالیٰ د وَلیانو د دُشمنۍ نه وفلق) وییریږی. په خپله دالله جل شانهٔ ارشاد دے. (حدیثِ قُدسی دے) مَنْ عَادٰی لِی وَلِیًّا فَقَدْ اٰذَنْتُهٗ بِالْحَرْبِ. رځوک چه ځما ولی تنګوی هغهٔ ته ځما له طرفه دجنګ اعلان دے.) (حضرت رُقیه رضی الله عنها د وفات نه پس رَبِیعُ الْاَوَّل سـ۳ـه کښ (حضرت) اُمِّ کلثوم رضی الله عنها نکاح هم حضرت عثمان رضی الله عنه سره اُوشوه. دنبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه ما د اُمِّ کلثوم نکاح دآسمانی وحی په حُکم عثمان سره اُوکړه. بعضو روایتونو کښ حضرت رُقیه او حضرت اُمِّ کلثوم رضی الله عنهما دد وارو متعلق یے هم دا ارشاد فرمایلے. رُومبی خاوند نه خو رُخصتی نه وه شوے. اولاد یے د حضرت عثمان رضی الله عنه نه هم نهٔ وو شوے. او شعبان سـ۹ـه کښ وفات شوه. نبی صلی الله علیه وسلم د دے د وفات نه پس اُوفرمایل که چرے ځما سل لوڼړه وے او وفات کیدے نو دا رنګے یو بل نه پس د ټولو نکاح به مے عثمان سره کولے

| | |
|---|---|
| (۷) (حضرت فاطمه رضی الله عنها حالات | دنبی صلی الله علیه وسلم ځلورمه لور دجنتی زنانو سردارهٔ حضرت فاطِمه رضی الله عنها ده. چه عُمر کښ د اکثرو مُوَرِّخینو په |

نزد د ټولو نه کشره وه. (نبوت نه یو کال پس (هر کله چه دنبی صلی الله علیه وسلم عُمر شریف دیو ځلویښتو کالو وو) پیدا شوه. او بعضو د نبوت نه پنځه کاله وړاندے پنځه دیرش کالو عُمر کښ لیکلے ده. وائی چه د دے نوم فاطمه اِلْهَام یا وَحی سره کیخودلے شوے دے. دفطم معنیٰ (منع کول) ده. یعنی دا دوزخ د اُور نه محفوظه ده. سـ۲ـه محرم یا صفر یا رجب یا رمضان کښ حضرت علی کرم الله وجهه سره یے نکاح اُوشوه. او د نکاح نه اُووهٔ میاشتے او پنځلس ورځے پس یے رُخصتی اُوشوه. دا نکاح هم دالله جل شانهٔ حُکم سره اُوشوه. وائی چه د نکاح په وخت د دے عُمر پنځلس کاله پنځه میاشتے وو. د دے نه هم یو ځلویښتو کالو کښ پیدائش یعنی د رُومبی قول تصدیق کیږی. او د حضرت علی کرم الله وجهه عُمر یو ویشت

کاله پنځه میاشتې یا څلور نیم کاله پوره نیمه میاشت وو. د نبی ﷺ خپلو تولو لونړو کښې دے سره زیاته مینه وه. کله چه به نبی ﷺ سفر ته تشریف اوړه. نو تولو نه اخیر کښې به د دے نه رُخصت کیدهٔ او کله چه به د سفر نه تشریف راوړهٔ نو د تولو نه رُومبے به یے دے کره تشریف اوړه. حضرت علی کرم الله وجهه د ابُوجهل لور سره د دویمے نکاح اراده اوکړه. نو دا غمژنه شوه. نبی ﷺ ته یے شکایت اوکړه. نبی ﷺ ارشاد اوفرمایهٔ چه فاطمه ځما د بدن ټکړه ده. چا چه دے ته تکلیف اورسولو، هغه ما ته تکلیف اورسولو. په دے وجه حضرت علی کرم الله وجهه د دے په ژوندانه کښې بله نکاح اونکړه. د دے د وفات نه پس د دے خورزے امامه رضی الله عنها سره یے نکاح اوکړه. چه د هغې ذکر د حضرت زینب رضی الله عنها حالاتو کښې تیر شو.

د نبی اکرم ﷺ د وفات نه شپږ میاشتې پس حضرت فاطمه رضی الله عنها ناروغه شوه. او یوه ورځ یے خدمتګارے ته اوفرمایل چه ځهٔ غسل کوم. اوبهٔ راته کیدهٔ. غسل یے اوکړهٔ. نوے جامے یے واغوستې. بیا یے اوفرمایل چه ځما بستره د کور په مینځ کښې کړئ. هغې ته یے تشریف یوړهٔ او قبلې طرف ته یے مخ کړهٔ. خپل ښے لاس یے د ننګی د لاندے کیښودهٔ. او وے فرمایل. بس اوس ځهٔ مرم. دا یے اووے او وفات شوه. د نبی اکرم ﷺ د اولاد سلسله هم د دے نه روانه شوے ده. او انشاء الله قیامته پورے به چلیږی. د دے شپږ اولاده، درے ځامن درے لونړه اوشوے. د تولو نه اول حضرت حسن رضی الله عنه د نکاح په دویم کال پیدا شو. بیا حضرت حسین رضی الله عنه دریم کال کښې یعنی سنه ۴ھ کښې. بیا حضرت محسن رضی الله عنه رکالا سین په شد سره دے) پیدا شو چه وفات یے هم په وړوکوالی کښې اوشو. په لونړو کښې د حضرت رُقیه رضی الله عنها وفات وړوکوالی کښې شوے وو. هم په دے وجه بعضو مؤرخینو دا لیکلے هم نه ده. د دویمه لور حضرت اُم کلثوم رضی الله عنها رومبی نکاح یے امیر المؤمنین حضرت عمر رضی الله عنه سره اوشوه چه له د ه نه یو ځوئ زید او یوه لور رُقیه پیدا شول. د حضرت عمر رضی الله عنه د وفات نه پس د اُم کلثوم رضی الله عنها

نه یے هیڅ اولاد اونهٔ شو. دهغه
نکاح عونؓ بن جعفر رضی الله عنه سره اوشوه - دده
دوفات نه پس دهغهٔ رور محمد بن جعفر رضی الله عنه سره یے نکاح اوشوه. دده نه
یے یوه لور پیدا شوه چه په وړوکوالی کښ مړه شوه. د هغهٔ دوفات نه پس
دهغهٔ دریم رور عبد الله بن جعفر رضی الله عنه سره یے نکاح اوشوه - دده نه یے
هیڅ اولاد اونهٔ شو. او هم ددهٔ په نکاح کښ حضرت امِ کلثوم رضی الله عنها وفات شوه
او په دغه ورځ د دے ځوئ زیدؓ هم وفات شو. دواړه جنازے په یو ځائے
اوچتے شوے. او هیڅ سلسله د اولاد د دے نه اونهٔ چلیدله - دا درے واړه
رونړه هم هغه عبد الله او عونؓ او محمد رضی الله عنهم دی، د کوم قصه چه د شپږم
باب یوولسم نمبر بانده تیره شوے ده - دا د حضرت علی کرم الله وجهه وریرونه
او د حضرت جعفر طیارؓ ځامن دی. د حضرت فاطمے رضی الله عنها دریمه لور حضرت
زینب رضی الله عنها وه چه نکاح یے عبد الله بن جعفر رضی الله عنه سره اوشوه - او دوه
ځامن عبد الله او عون رضی الله عنهما پیدا شول. او هم ددهٔ په نکاح کښ وفات شوه.
د دے دوفات نه پس د عبد الله بن جعفر رضی الله عنه نکاح د دے خور امِ کلثوم رضی الله عنها
سره شوے وه. دا اولاد د حضرت فاطمے رضی الله عنها نه دی. د حضرت علی کرم الله وجهه
د نورو بیبیانو نه کوم چه زستو ته اوشوے، نور هم اولاد دے. مؤرخینو
د حضرت علی کرم الله وجهه اولاد دوه دیرش لیکلی دی. چه په هغے کښ شپاړس ځامن
شپاړس لونړه. او د حضرت امامِ حسنؓ رضی الله عنه پنځلس ځامن اته لونړه. او
د حضرت امام حسینؓ رضی الله عنه شپږ ځامن درے لونړه. رضی الله تعالیٰ عنهم ف
اَرضاهم اجمعین ـ وجعلنا بهدیهم متبعین ـ والله اعلم وعلمه
اَتم. ملخص من الخمیس والزرقانی علی المواهب والتلقیح والاصابه واسد الغابه.

# یوولسم باب

## د پیغو دینی جذبه

(د اصحابیو وړو بچو کښ چه کومه د دین جذبه وه هغه په حقیقت کښ

د مشرانو د تربیت نتیجه وه. که چرې مور پلار او نور مشران اولاد لږه په مینه کښې د ضائع کولو په ځائې د شروع نه د هغوی د دیني حالت خبر اخلي او ورته نصیحت کوي نو د دین کارونه به د بچو په زړونو کښې ځائې نیسي. او چه لوئې شي نو هغه شیزونه به د هغوی د پاره د عادت په شان شي. خو مونږ خلق د دې په ځائې د بچي په هره بله خبره بچي اوګورو، سترګې پرې یخوو. او که زیات د ښه جوش وي نو په هغې خوشالیږو. او په دین کښې چه څومره کمزوري وینو، خپل زړه ته تسلي ورکوو چه لوئې شي نو ټول به سم شي. حال دا که چه لوئې شي، هم هغه عادتونه پکښې پاخه شي د کوم چې یې په شروع کښې تخم کرلے وکړ. تاسو غوارئ چه تخم د چڼړے والچولے شي او د هغې نه د غنم پیدا شي، دا مشکله ده. که چرې تاسو غوارئ چه بچي کښې ښه عادتونه پیدا شي، د دین اهتمام او کوشش کوي، په دین عمل کوونکي وي نو دوړوکوالي نه د هغوی د دین د اهتمام عادت جوړ کړئ. صحابه کرامو رضي الله عنهم به دوړوکوالي نه د خپل اولاد نګراني کوله او د دیني کارونو اهتمام یې پرې کولو. د حضرت عمر رضي الله عنه د زمانه خلافت کښې یو کس نیولے راوستے شو چه هغه د روژې په میاشت کښې شراب څکلي وو او روژه ئې نه وه. حضرت عمر رضي الله عنه ارشاد اوفرمایه چه تباه برباد شې څمونږ خو بچي هم روژې نیسي. (بخاري)

فائده: یعنی ته دومره لوئې شوې یا هم روژه نه نیسې. د دې نه پس یې هغه اتیا کوړې د شرابو په سزا کښې اووهه او د مدینې منورې نه د بیستلو حکم یې اوکړه. د شام ملک ته یې اوشړیده.

## ① په بچو روژه ساتل

ربیع بنت معوذ چه د هغې قصه د لسم باب په آخیر کښې تیره شوې ده، فرمائي چه نبي صلی الله علیه وسلم یو ځلے اعلان اوکړه چه نن د عاشورې ورځ ده. ټول روژه اونیسي. مونږ به د دې نه پس همیشه روژې نیولے او په بچو به مو هم نیولے. هر کله چه به ماشومانو لوږې نه ژړل. نو د مالوچو د پا غونډے نه به مو ورله د لوبو شیز جوړ کړه، په هغې به مو مشغولول او د روژه ماتي د وخته پورې به مو دارنګے هغوی په لوبو کښې مشغول ساتل. (بخاري)

فائده: بعضې حدیثونو کښې دا هم راغلي دي چه میندو وبه یې شودو ورکو

بچو ته پټې نه ورکړل - اګرچه دغه وخت بدا ئو ته ډیر قوي وُو- او اوس ډیر کمزوري دی. هغې خلقو او دهغوی بچو دے برداشت کړلے شو- خودے ته کتل پکار دی چه څومره برداشت اوس کړلے شو، هغه ترکومے کوو- برداشت ته کتل خو ډیر ضروری دی. خو اوس چه دچا برداشت وی هغه له کمزوری یقیناً نامناسبه ده-

## ۲ دحضرت عائشه رضی الله عنها حدیثونه او د آیت نازلیدل

حضرت عائشه رضی الله عنها د شپږ، و کالو په عمر کښې د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په نکاح کښې راغله- مکه مکرمه کښې نکاح اوشوه او د نهو کالو په عمر کښې مدینه منوره کښې واده شوه. چه د اتلسو کالو شوه، نبی علیه السلام د دنیا نه تشریف یوړه. د اتلسو کالو عُمر څه عمر دے چه دے کښې دومره دینی مسئلے او د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشادات او عملونه د دے نه نقل کړلے شی چه څه اندازه یې نشته. مسروق رحمة الله علیه فرمائی چه لوئ لوئ صحابه ما اولیدل چه د حضرت عائشے رضی الله عنها نه به یې د مسئلو پوښتنه کوله. عطاء رحمة الله علیه فرمائی چه د نارینو نه زیاته د مسئلو نه خبرداره او عالمه وه- ابو موسیٰ رضی الله عنه فرمائی چه کوم علمی مشکل به مونږ ته پیښ شو، حضرت عائشے رضی الله عنها څخه به د هغې متعلق تحقیق ملاویدو. (اصابه) دوه زره دوه سوه لس حدیثونه د حدیث په کتابونو کښې د دے موجود دی- (تلقیح)

په خپله فرمائی چه ما مکه مکرمه کښې په ورو کوالی کښې لوبے کولے دغه وخت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم باندے د سورهٔ قمر آیت بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ اَدْهٰی وَاَمَرُّ نازل شو. (بخاری)

مکه مکرمه کښې د اتو کالو عمره پورے حضرت عائشه رضی الله عنها پاتے شوے ده- په دے کم عمر کښې د دے آیت د نازلیدو خبر کیدل او بیا د دے یاد ساتل د دین سره د خاص محبت په وجه کیدے شی- کنی د اتو کالو عمر څه عمر دے-

## ③ د حضرت عُمَیر رضی اللہ عنہ په جهاد کښې د شرکت شوق

حضرت عُمَیر رضی اللہ عنہ د آبِي اللَّحْم غلام کم عُمره بچے وو. جهاد کښې د شرکت شوق دغه وخت دهر لوئی وړوکی ځان وو. د خیبر په جنګ کښې ئے د شرکت خواهش اُوکړه. د دهٔ سردارانو هم د نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې سفارش اُوکړه چه اجازت ورته ورکړی. نو نبی ﷺ اجازت ورکړه. او یوه توره ئے ورکړه چه په غاړه کښې ئے زوړند کړه. خو توره لویه وه او د دهٔ قد وړکوټے وو. په دے وجه به هغه په زمکه راښکلے شوه. هم په دے حالت کښې ئے د خیبر په جنګ کښې شرکت اُوکړه. چونکه بچے هم وو او غلام هم. په دے وجه د غنیمت پوره حصه خو ورته کړے شوه. البته د انعام په طور څهٔ سامان ئے حصه کښې راغے. (ابوداؤد)

**فائدة**:- د دهٔ په شان حضراتو ته دا هُم معلومه وه چه غنیمت کښې خو بِه پوره حصه نشته. سره د دے بیائے هم دا شوق وو چه د نورو حضراتو په ذریعه ئے سفارش کوُلو. د دے وجه دینی جذبه او د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رښتنی رسول ﷺ وعدو باندے د یقین نه سوا نور څهٔ کیدے شی.

## ④ د حضرت عُمَیر رضی اللہ عنہ د بدر په جنګ کښې په پټه د شریکیدلو کوشش

حضرت عُمَیر بِن اَبِي وَقَّاص رضی اللہ عنہ یو کم عُمره صحابی وو. په شروع کښې مُسلمان شوے وو. د مشهور صحابی سَعد بِن اَبِي وَقَّاص رضی اللہ عنہ رور دے. سَعد رضی اللہ عنہ فرمائی چه ما خپل رور عُمَیر د بدر د جنګ په وخت کښې اُولیدهٔ چه د لښکر روانګولو تیاری کیده او دے اخوا دیخوا پټ ګرزیده چه څوک ئے اُونهٔ وینی. ما چه دا حال اُولیدهٔ حیران شوم. د دهٔ نه مے تپوس اُوکړهٔ چه څهٔ اُوشو. پټ وَلے ګرزے؟ وے ویل په دے ویریږم چه چرته نبی اکرم ﷺ ما اُونهٔ وینی او بچے مے اُوګڼړی. د تلو نه مے منع کړی. چه بیا به نهٔ شم تلے او زهٔ دا غواړم چه په جنګ کښې ضرور شریک شم. کیدے شی چه الله تعالیٰ ما ته هم په څهٔ ذکِ

شهادت نصیب کړی. آخر کله چه لښکر پیش کړے شو. نو چه کومه خطره وه هغه پیښه شوه. او نبی اکرم ﷺ د ده د کم عمرئ په وجه انکار اوفرمایه. خو د شوق غلبه وه، برداشت یے اُهنه کړے شو او په ژړا شو. نبی اکرم ﷺ ته د شوق او د ژړا حال معلوم شو. نو اجازت یے ورکړهٔ. جنګ کښې شریک شو. او د ویمه آرزو یے هم پوره شوه چه هم په دے جنګ کښې شهید شو. د ده رور سعد رضی الله عنه فرمائی چه د ده د ورکوتوالی او د تورے د لوئ والی په وجه ما د هغهٔ په تسمو کښې غوټے لګولے چه اُوچته شی. (اصابه)

## ⑤ د دوه کو انصاری بچو ابوجهل قتلول

حضرت عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه مشهور او د لویو صحابو نه دے فرمائی چه څهٔ د بدر په میدان کښې د جنګ کونکو په قطار کښې ولاړ وم. ما اُولیدل چه څما ښی او ګس طرف ته د انصارو دوه کم عمره هلکان دی. ما ته خیال اُوشو. که چرے څهٔ د طاقتور او د مضبوط خلقو په مینځ کښې وے نو ښه به وه. چه د ضرورت په وخت کښې به مو د یو بل مدد کولے. څما د واړه طرف ته هلکان دی، دوی به څما څهٔ مدد اُوکړی. په دے کښې د هغے دواړو نه یو څما لاس اُونیولو. وے ویل، کاکا جی! ته ابوجهل پیژنے؟ ما اُووے، او پیژنم، ستا څهٔ غرض دے؟ دهٔ اُووے. ما ته دا معلومه شوے ده چه هغه د رسول الله ﷺ په شان کښې کنځل کوی. په هغے پاک ذات مے د قسم وی چه د چا په قبضه کښې څما ساه ده، که چرے څهٔ هغه اُووینم، نو تر هغے وخته به ترے جُدا نهٔ شم ترڅو چه هغه مړ شی یا څهٔ مړ شم. څهٔ د دے هلک په سوال او جواب باندے حیران شوم. په دے کښې دویم هلک هم هغے سوال اُوکړهٔ کوم چه اُولنی کړے وو او هغے دهٔ هم اُووے. اتفاقاً میدان کښې ابوجهل په منډو وو. څما پرے نظر پریوت. ما دے دواړو ته اُووے چه ستاسو مطلوب د کوم باره کښې چه تاسو ما نه سوال کولو، هغه دے روان دے. دواړو چه دا واوریدل تورے یے لاس کښې واخستے، او په منډه لاړل او رسیده سره یے پرے تورے

چلول شروع کړے. تر دے چه هغه يې راؤغورزوو. (بخاری)

**فائده**:- دا دواړه هلکان مُعاذ بن عمرو بن جموح او مُعاذ بن عفراء رضی الله عنهما وو. مُعاذ بن عمرو رضی الله عنه فرمائی چه ما به دخلقو نه اوريدل چه ابوجهل هيڅوک نشی وژلے. هغه ډير په حفاظت کښ اوسی. څما دهغے وخت نه دا خيال وو چه څه به دے وژنم. دا دواړه هلکان پيدل وو او ابوجهل په آس سوروو، صفونه يې سمول - کوم وخت چه عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه اوليده، او دے دواړو منډه کړے. نو په آس سوربا ندے عدستی حمله کرانه وه. په دے وجه يو په آس حمله اوکړه او دويم د ابوجهل په پښه حمله اوکړه چه په هغے سره آس هم پريوت او ابوجهل هم پريوت او پاسيدے نه شو. دے دواړو حضراتو خو هغه په داسے حال کښ پريخوده چه پاسيدے نه شو. او هلته پروت وو. لتے يې ټکولے - خو مُعوذ بن عفراء رضی الله عنه دهغه رور نور لږ پخ کړه چه هغے نه چرته پاڅه سی لار نشی. خو بيخی د ګه هم ختم نکړه. دے نه پس عبدالله بن مسعود رضی الله عنه تر سے سر جدا کړه. مُعاذ بن عمرو رضی الله عنه فرمائی چه کوم وخت دهغه په پښه ما حمله اوکړه نو دهغه خوئ عکرمه ورسره وو. هغه څما په اوګه حمله اوکړه چه په هغے سره څما لاس پريکړے شو. او صرف څرمنه کښ زوړند پاتے شو. (اسدالغابه) ما دا زوړند لاس د ملا، کښتو واچوه او تر ماښامه پورے په يو لاس جنګيدلم. خو هر کله چه د زوړند والی په وجه راته تکليف اوشو، نو ما هغه د خپے لاندے کړو او په زور مے راخکلو. هغه څرمنه هم پريکړے شو په کومه چه هغه زوړند وو. او ما هغه اوغورزوو. (خميس)

## ⑨ دحضرت رافع او حضرت ابن جندب رضی الله عنهما مقابله

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم عادت شريفه دا وو چه کله به يې د جنګ د پاره تشريف وړه. نو د مدينے منورے نه بهر وتلو نه پس به يې د لښکر معاينه کوله. دهغوی حالات دهغوی ضرورتونه به يې معلومول. او د لښکر اصلاح

به یې کړوله. کم عمره هلکان به یې واپس کړل. دوی به په شوق کښې وتل
د اُحد د جنګ د پاره یې چه کله تشریف اُوړلو. نو په یو موقع باندې یې
د لښکر معائنه اُوکړه او د کم عمر هلکان یې د ورکوټوالی په وجه واپس کړل
چه په هغوی کښې دا حضرات هم وُو. عبد الله بن عمر، زید بن ثابت،
اُسامه بن زید، زید بن ارقم، بَراء بن عازب، عمرو بن حزم، اُسید بن ظهیر،
عرابه بن اوس، اَبُو سعید خدری، سَمُرَه بن جُندب، رافع بن خدیج رضی الله عنهم
چه د دوی عُمرُونه تقریباً دیارلس څوارلس کاله وُو. کله چه دوی ته د
واپسی حُکم اُوشو. حضرت خدیج رضی الله عنه سفارش اُوکړه او عرض یې اُوکړه
چه اے د الله رسُوله! زما خوئ رافع ته غشی ویشتل ډیر ښه ورځي. او
په خپله رافع هم د اجازت په شوق کښې اُوچت اُوچت په پنجو اُودریده.
چه قد یې اُوږد معلوم شي. نبی علیه الصلوٰة والسلام ورته اجازت ورکړه. نو سمره بن جندب
رضی الله عنه خپل مېړنی پلار مره بن سنان ته اُووے چه نبی علیه الصلوٰة والسلام رافع ته خو
اجازت ورکړه او ما ته یې اجازت رانکړه. حال دا دے چه زه د رافع نه
نه قوی یم. که چرے زما او د هغهٔ مقابله اُوشي نو زهٔ به هغه را اُوغورزوم.
نبی علیه الصلوٰة والسلام د دوارو مقابله اُوکړه نو سَمُرَه رافع واقعی را اُوغورزوو. په دے
وجه نبی علیه الصلوٰة والسلام سَمُرَه ته هم اجازت ورکړه. د دے نه پس نورو ماشومانو هم کوشش
اُوکړه او بعضو نورو ته هم اجازت ورکړے شو. په دے سلسله کښې شپه
شوه. نبی علیه الصلوٰة والسلام د ټول لښکر د حفاظت انتظام اُوکړه او پنځوس سړی یې د
ټول لښکر د حفاظت د پاره مقرر کړل. د دے نه پس یې ارشاد اُوفرمایهٔ چه
نن شپه زمونږ حفاظت به څوک اُوکړي؟ یو صاحب پاسیدهٔ. نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل
ستا نوم څهٔ دے؟ هغه اُووے ذکوان. نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل، بښه کښېنه.
بیا یې اُوفرمایل، شپه زمونږ حفاظت به څوک اُوکړي؟ یو صاحب پاسیدهٔ.
نبی علیه الصلوٰة والسلام ترے د نوم تپوس اُوکړهٔ. عرض یې اُوکړهٔ، اَبُو سبُع (د سبُع پلار)
نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل، کښېنه. دریم وارے یې بیا ارشاد اُوفرمایهٔ چه زمونږ
حفاظت به څوک اُوکړي؟ بیا یو صاحب پاسیدهٔ. نبی علیه الصلوٰة والسلام ترے د نوم

پوښتنه اُوکړه. هغهٔ عرض اُوکړهٔ، ابن عَبدِ القَيس. (دعبدِ قيس خوئ) نبی ﷺ ارشاد اُوفرمايهٔ چه ښهٔ کيږئ. درے نه لږ ساعت پس ارشاد اُوشو چه درے وارهٔ سرې راشی. نو يو صاحب حاضر شو. نبی ﷺ اُوفرمائيل چه ستا د وه ملګرې څهٔ شو؟ دهٔ عرض اُوکړهٔ، اے د الله رسوله! درے وارے همغهٔ پا سيد لے وُو. نبی ﷺ ورته دُعا اُوکړهٔ او د حفاظت حکم ئے اُوفرمايهٔ تو له شپه دهٔ د نبی ﷺ د خيمے حفاظت کولو. (خميس)

**فائده**:- د اشوق او جذبے وے درے حضراتو. که وارهٔ وُو او که لوئ هر يو کس د اسے مست وو چه ځان قربانول ئے مستقل مقصود وو، هم په دے وجه کاميابئ د دوی قدمونه ښکلول. رافع بن خديج رضی الله عنه د بدر په جنګ کښ هم خپل ځان پيش کړے وو. خو هغه وخت ورته اجازت ورنکړے شو. بيا ئے په اُحد کښ پيش کړو چه د هغهٔ قصه اُوس تيره شوه. د دے نه پس هر يو جنګ کښ شريکيدلو. د اُحد په جنګ کښ په سينه ئے يو غشے اُولګيدهٔ. هرکله چه هغه راښکلے شو، نو بتول را اُووتلو، خو د سوکے څهٔ حصه د هغه بدن کښ پاتے شوه چه هغے د زخم شکل اختيار کړهٔ. او اخرى زمانه کښ بوډا والی ته نزدے دا زخم تازه شو او د مرګ سبب اُوګرځيدهٔ. (اسد الغابه)

## ⑦ دحضرت زيد رضی الله عنه د قران په وجه تقدُّم (مخکښ والے)

د حضرت زيد بن ثابت رضی الله عنه عُمر د هجرت په وخت يوولس کاله وو او د شپږ و کالو په عُمر کښ يتيم شوے وو. د بدر په جنګ کښ ئے خپل ځان پيش کړو. اجازت ورنکړے شو. بيا د اُحد په جنګ کښ اُووتلو، خو واپس کړے شو. لکه څنګه چه اُوس معلومه شوه. بعضو ويلی دی چه څرنګه رافع او سمره رضی الله عنهما دواړو ته اجازت ورکړے شوے وو (لکه څنګه چه اُوس له دے نه روميے قصه کښ تيره شوه.) په دے وجه دهٔ ته هم اجازت شوے وو. د دے نه پس به هر يو جنګ کښ شريکيدلو. د تبوک په جنګ کښ د بنو مالک جهنډا د حضرت عماره رضی الله عنه په لاس کښ وه.

نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام د عمّارہ رضی اللہ عنہ نہ واخستہ، حضرت زید رضی اللہ عنہ تہ یے ورکړہ. عمّارہ رضی اللہ عنہ تہ فکر شو چہ شاید ما نہ څۀ غلطی شوے وی یا څۀ وجہ د خفګان راغلے وی. پوښتنہ یے اوکړہ، اے د اللہ رسوله! څما څۀ شکایت تاسو تہ در رسیدلے دے. ارشاد یے اوفرمایۀ، داخبرہ نۀ دہ بلکہ زید قران شریف لټا نہ زیات ویلے دے. قران دے جھنډہ اوچتولو کښې مخکښې کړو. (اسد الغابہ)

**فائدہ:** د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم عام معمول وو چہ فضائلو کښې بہ یے دین پہ اعتبار سرہ ترجیح ورکوله. دلتہ اګرچہ د جنګ موقع وہ. او قران شریف زیات لوستلو تہ پہ دے کښې څۀ دخل نۀ وو. خو سرہ د دے نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام د قران پاک د زیاتی پہ وجہ جھنډا اچتولو کښې دے مخکښې کړو. اکثرو ځیزونو کښې پہ نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم د دے لحاظ کولو. آن تر دے کہ چرے د خو سړو بہ د څۀ ضرورت پہ وجہ پہ یو قبر کښې د دفن کولو موقع راغله نو چا چہ بہ قران شریف زیات ویلے وو هغہ بہ یے مخکښې کړو. لکہ څنګہ چہ غزوۂ احد کښې یے کړی وو.

## (۸) د حضرت ابو سعید خدری رضی اللہ عنہ پہ وړوکوالی کښې د پلار وفات

حضرت ابو سعید خدری رضی اللہ عنہ فرمائی چہ څۀ د اُحد پہ جنګ کښې پیش کړے شوم. دیارلس کالہ څما عمر وو. نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام قبول نہ کړم. څما پلار سفارش هم اوکړہ چہ د دۀ طاقت ښۀ دے، هډوکی یے هم غټ دی. نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام بہ سترګے ما طرف تہ اوچتے کړے بیا بہ یے ښکتہ کړے. لنډہ دا چہ د کم عمری پہ وجہ یے اجازت رانکړو. څما پلار پہ دے جنګ کښې شریک شو او شهید شو. هیڅ مال وغیرہ یے نۀ وو. څۀ د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم پہ خدمت کښې د سوال کولو پہ غرض حاضر شوم. نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام چہ ما تہ اوکتل ارشاد یے اوفرمایۀ چہ څوک صبر غواړی اللہ تعالیٰ هغۀ تہ صبر ورکوی. او چہ څوک پاکبازی د اللہ تعالیٰ نہ غواړی، اللہ جل شانہٗ هغہ پاکباز جوړوی. او چہ څوک غِنا (مالداری) غواړی اللہ تعالیٰ هغۀ تہ غِنا ورکوی. ملچہ دا مضمون د نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام نہ واورېدۀ، بیا م هیڅ اونۀ غوختل، چپ چاپ واپس راغلم. د دے نہ پس اللہ جل شانہٗ

ده ته هغه مرتبه ورکړه چه په کم عمره صحابو کښې به دومره دلوئ درجې عالم بل په مشکله پیدا مُوندے شی. (اصابه، استیعاب)

**فائده:** روزګو توالی عُمر او دپلار د شهادت غم او دے نه علاوه د مزړے وخت وو - خو د نبی اکرم ﷺ یو عام نصیحت یے واورېدهٔ، چپ چاپ واپس راغلو او خپله پریشانی یے چا ته ښکاره نهٔ کړه. ایا نن صبا څوک د لوئ عُمر خاوند هم داسے کولے شی. ریښتیا دا ده چه الله تعالیٰ دخپل رسول ﷺ د ملګرتیا دپاره هم داسے خلق خوښ کړی وُو چه کوم د دے اهل وُو. په دے وجه د نبی ﷺ ارشاد دے کوم چه د دے کتاب په ختمیدو کښې به راشی چه الله تعالیٰ زما دپاره زما صحابه مُنتخب کړهٔ.

## ⑨ دحضرت سَلَمَه بنِ اَکْوَع رضی الله عنه په غَابَه منډه

غَابَه د مدینے مُنورے نه څلور پنځه میله بانده یو آبادی وه. د نبی اکرم ﷺ څهٔ اوښان هلته څرېدل. د کافرانو یو ډلے سره عبدالرحمن فزاری هغه لوټ کړل. چا چه څروُل هغه یے قتل کړهٔ او اوښان یے واخستل روان شو. د لوټ کونکی (داړه ماران) په آسونو سوارهٔ وُو. او وسلے یے لګولے وے. اتفاقاً حضرت سَلَمَه بنِ اَکْوَع رضی الله عنه د سحر په وخت پیدل غشی او لیندهٔ یے ځان سره اخستے غابه طرف ته روان وو چه ناګهانه یے داړه ماران اُولیدل. هلک وو، منډه کښې ډیر تیز وو. وائی چه د دهٔ منډه مثالی او مشهوره وه. دهٔ به په خپله منډه کښې آس رانیولو. او آس به دے نهٔ شو نیولے. دے په غشی ویشتلو کښې هم مشهور وو. حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه مدینے مُنورے طرفته مخ کړو او یو غږ بانده یے اُوختلو. د لوټ اعلان یے اُوکړهٔ. او په خپله غشی او لیندهٔ خو ورسره وُو، پخپله یے داړه مارانو پسے منډه کړه. تر دے چه ورته اُورسیدهٔ او غشی ویشتل یے پرے شروع کړهٔ. او داسے په تیزئ پرله پسے یے پرے غشی وراوړول چه هغے خلقو به دے د لوئ ډلے ګمان اُوکړهٔ. او چونکه دے په خپله یواځے وو. او پیدل هم وو. په دے وجه کله چه به چا آس واپس

کړو. وړیسے به شو. نو دے به دیوے وُنے خوا ته پټ شو. او د شانه به یے د هغهٔ آس په غشی وِیشتهٔ چه په هغے سره به هغه زخمی شو. او هغه سوربه په دے خیال واپس شو. که آس پریوتهٔ، نو ځهٔ به اُونیولے شم حضرت سَلمه رضی الله عنه فرمائی، لنډه دا چه هغوی به منډے وَهلے او ځهٔ به وړیسے وَم تردے چه څومره اُوښان هغوی د نبی علیه الصلوٰة والسلام لوټ کړی وُو، هغه ما ته رَستو پاتے شو. او دے نه علاوه دیرش نیزے او دیرش څادرونه یے هُم پریخودل په دے کښ عُیَیْنَه بن حِصْن د کافرانو یوے ډلے سره دوی ته مدد دپاره رااُورسیدهٔ. او دے ډاکوانو ته قوت حاصل شو او دا هم دوی ته معلومه شوه چه ځهٔ یواځے یم. دهغوی څو سری په جمع ما پسے شو. ځهٔ په یوغر اُوختلم، هغوی هُم رااُوختل. هرکله چه ما ته رانزدے شو، نو ما په زوره اُووے، لږ اُودریږئ. څما یوه خبره واورئ. تاسو ما پیژنئ که نه چه څهٔ څوک یم؟ هغوی اُووے، اُوښایه، څوک یے؟ ما اُووے ځهٔ اِبْنُ الْاَکْوَع یم. په هغه ذات مِ دِ قَسَم وی چا چه محمّد صلی الله علیه وسلم ته عزت ورکړے دے. تاسو نه که چرے څوک ما نیول غواړی، نو نشی نیولے. او تاسو نه چه څوک ځهٔ نیول غواړم، هغه ما نه هیڅ کله خلاصیدے نشی. د دهٔ متعلق چونکه عموماً دا مشهوره وَه چه ډیره تیزه منډه وَهی چه عربی آس هم د دهٔ مقابله نشی کولے. په دے وَجه دا دعوی څهٔ عجیبه نهٔ وَه. سَلمه رضی الله عنه فرمائی چه ما دا رنګے هغوی سره خبرے اترے کولے. او مقصود مِ دا وو چه دوی له خو مدد رورسیږی خو چه د مسلمانانو له طرفه څما هُم مدد راشی چه ما هم د راتلو په وخت مدینه کښ اعلان کړے وو. لنډه دا چه هغوی سره مِ دا خبرے کولے او د وَنو په مینځ کښ مدینه منوَرے ته مِ په غور سره کتل. چه ما ته یَوه ډله په آسونو سوَرَه په منډه راتلونکے ښکاره شوه. په هغوی کښ د ټولونه مخکښ اَخْرَمِ اَسَدِی رضی الله عنه وو. هغهٔ راتلو سره په عبد الرّحمٰن فزاری حمله اُوکړه. او عبد الرّحمٰن هُم دهٔ ته متوجّه شو. دهٔ د عبد الرّحمٰن په آس حمله اُوکړه. او پښے یے ترے پریکړے. آس پریوَت او عبد الرّحمٰن پریوتلو

کښې په دې حمله اُوکړه چه په هغه سره دے شهید شو. او عبدالرحمٰن فوراً
دده په اَس سور شو. عبدالرحمٰن پسے ابُو قَتاده رضی الله عنه وو. فوراً یے په دهٔ
حمله شروع کړه. عبدالرحمٰن د ابُو قتاده رضی الله عنه د آس په ښپو باندے حمله
اُوکړه چه په هغې سره دِ ے پریوَت او په پریوتلو کښې دهٔ عبدالرحمٰن باندے
حمله اُوکړه چه په دِے سره هغه قتل شو. او ابُو قتاده رضی الله عنه فوراً په هغې
اَس باندے چه کوم د اُخرَم اَسَدِی رضی الله عنه وو، او اوس عبدالرحمٰن پرے
سور وو، په هغې سور شو. (ابوداؤد)

**فائده:-** بعض د تاریخ کتابُونو کښې لیکلی دی چه حضرت سَلمه رضی الله عنه
اُخرَم اَسَدِی رضی الله عنه د حملے نه منع کړو چه لږ وار اُوکړه چه خپل کسان نور
راشی. خو دهٔ اُوفرمایل چه ما پریږده چه شهید شم. واَئی چه مُسلمانانو
کښې فقط دِے شهید شو. او د کافرانو نه ډیر سړی په دے جنګ کښې مړهٔ
کړے شو. دے نه پس لویه ډله د مُسلمانانو را اُورسیدله او کافران اُوتختیدل
نو حضرت سَلمه رضی الله عنه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته درخواست اُوکړو چه ما سره سل
سړی کړه چه څهٔ دوی پسے لاړ شم. خو نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه هغوی خپلو
ولوخانو ته اُورسیدل. د تاریخ اکثرو کتابُونو نه معلومیږی چه د حضرت
سَلمه رضی الله عنه عُمر په هغه وخت دولس یا دیارلس کاله وو. دولسو دیارلسو کالو
هلک په اَسونو سوارهٔ یوه لویه ډله داسے زغلوی چه وار پار یے خطا شی. چه
څهٔ یے لوټ کړی وُو هغه یے هم پریخودل او ورسره خپل سامان یے هم
پریخودهٔ. دا د هغې اخلاص برکت وو، کوم چه الله جل شانهٔ دے پرلے د
صحابو رضی الله عنهم ته نصیب کړے وو.

## ⑩ د بدر مقابله او د حضرت براء رضی الله عنه شوق

د بدر جنګ د ټولو نه افضل او د ټولو نه زیات اَهم جنګ دے. ځکه چه
په دے کښې مقابله ډیره سخته وه. د مُسلمانانو ډله ډیره لږه وه. ټول درے
سوه پنځلس (۳۱۵) وو چه ورځنه صرف درے اَسونه، شپږ یا نهٔ زغرے

اَته تورے او اَویا اُوښان وُو۔ یو یو اُوښ باندے به څو څو سړی وار په وار سوریدل۔ او کافران تقریباً یو زر وُو۔ چه ورسره سل آسونه او اُوه سوه اُوښان او د جنګ کافی سامان وو۔ په دے وجه دوی ډیر په اطمینان او باجو او سندرے وَیونکو سره میدان ته راغلل۔ د بے خوا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ډیر فکرمند وو ځکه چه مسلمانان ډیر د کمزورئ په حالت کښ وُو۔ هرکله چه نبی صلی الله علیه وسلم د دواړو ډلو اندازه واخسته نو دُعا یے اوغوښتله اے الله! د مسلمانانو پښے اَبله دی۔ هم ته دوی ته سورلی ورکونکے یے۔ دوی په بدن بربنډ دی، هم ته دوی ته جامے اغوستونکے یے۔ دوی اُوږی دی هم ته د دوی ګیډه مړونکے یے۔ دوی فقیران دی، هم ته د دوی غنی کونکے یے۔ د نبی صلی الله علیه وسلم دُعا قبوله شوه۔ سره د دے ټولو خبرو حضرت عبدالله بن عُمر او حضرت براء بن عازب رضی الله عنهما دواړه جنګ کښ د شرکت په شوق سره د کور نه روان شول۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دوی دواړه د وړوکوالی په وجه د لارے نه واپس کړل (خمیس)

دا دواړه حضرات د اُحد په جنګ کښ هم واپس کړے شوی وُو لکه څنګه چه رومبئ قصه کښ تیره شوے ده۔ د اُحد جنګ د بدر د جنګ نه یو کال پس اُوشو چه په دے کښ هم دوی دواړه وړوکی شمار کړے شول۔ نو بیا کښ خو ضروری خبره ده چه ماشوم وُو۔ خو د دے حضراتو شوق وو چه د وړوکوالی نه د دے جذبے او شوق یے په زړه کښ جوش وهلو۔ او په هر جنګ کښ به یے د شریکیدو اجازت اخستلو کوشش کولو۔

## (۱۱) د حضرت عبدالله بن عبدالله بن اُبی د خپل پلار سره مُعامله

سنه ۵ھ کښ د بنو المصطلق مشهور جنګ اُوشو۔ په دے کښ د یو مُهاجری او د یو انصاری خپل مینځ کښ جنګ اُوشو۔ معمولی خبره وه خو زیاته شوه۔ هر یو د خپل خپل قوم نه د بل خلاف مدد د اوغوښتلو او د دواړو طرفه ډلے پیدا شوے۔ او نزدے وه چه خپل مینځ کښ د جنګ میدان ګرم شوے وے

خو په میمو کښې بعض خلق راغلل او صلح یې اوکړه. عبد الله بن اُبَیّ د مُنافقانو
سردار او ډیر مشهور مُنافق او د مُسلمانانو سخت مُخالِف وو. خو څنګه چه خان
یې مُسلمان ښکاره کولو، په دې وجه د ده سره د مخالفت معامله به نه شوه
کولې. او هم دا رنګه وخت د مُنافقانو سره عامه معامله وه. هر کله چه ده ته
دې قصې خبر اوشو. نو ده د نبی اکرم ﷺ په شان کښې ډیر بې ادبۍ خبرې
اوکړې. او خپلو دوستانو ته یې اوویل چه دا ټول هر څه ستاسو خپل کړي
دي. تاسو دې خلقو ته خپلو ښهرونو کښې ځائ ورکړو. خپل مالونه مو دوی
ته نیم په نیمه تقسیم کړل. که چرې تاسو د دې خلقو مدد پریږدئ نو اوس به
ټول لاړ شي. او دا یې هم اوویل چه په الله مې د قسم وي. که چرې مونږه
مدینې ته اورسیدلو. نو مونږه عزتمند به راغونډ شو، دا ذلیلان به د هغه
ځائ نه اوباسو. حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه د لږ عمر بچې وو. هلته موجود
وو. دا خبره چه یې واوریدله، برداشت یې اونه کړې شو، وې ویل چه
په الله مې د قسم وي. ته ذلیل یې. تا ته په خپل قوم کښې هم په ترس ر د
(په) نظر سره کتلې شي. ستا هیڅوک مددګار نشته او محمد ﷺ عزت والا
دې، د الله تعالیٰ له طرفه هم عزت ورکړې شوې دې او په خپل قوم
کښې هم عزتمند دې. عبد الله بن اُبَیّ اوویل چه ښه ده چُپ شه. ما خو
په ټوقو کښې اوویل. خو حضرت زید رضی الله عنه لاړو او نبی اکرم ﷺ ته یې
بیان کړه. حضرت عمر رضی الله عنه درخواست اوکړه چه د دې کافر سر د
پرې کړې شي. خو نبی علیه السلام اجازت ورنه کړه. عبد الله بن اُبَیّ چه کله خبر
شو چه نبی علیه السلام ته دا قصه رسیدلې ده. نو خدمت کښې حاضر شو. او د
نو قسمونه یې اوخوړل چه ما هیڅ یو لفظ داسې نه دې ویلې. زید
ویلي دي. د انصارو هم څه خلق هلته حاضر وو. هغوی هم سفارش
اوکړو چه اې د الله رسوله! عبد الله د قوم سردار دې. لوئ سړې شمار یږي.
د یو ماشوم خبره د ده په مُقابله کښې د قبلید وقابله نه ده. مُمکنه ده چه په
اوریدو کښې څه غلطی شوې وي یا په پوهیدو کښې. نبی علیه السلام د هغه

عُذر قبول کړۀ. حضرت زید رضی اللہ عنہ چه کله خبر شو چه هغۀ د دروغو قسمونو سره خپل ځان رښتنے ثابت کړۀ او زید یے دروغژن کړۀ. نو زید له شرم نه با هر وتل پریخودل. د نبی علیه الصلوٰۃ والسلام مجلس کښ به هم د شرم له وجے نۀ حاضریدۀ. لنډه دا چه سورۀ مُنافقون نازل شو. چه په هغے سره د زید رضی اللہ عنہ رښتنے والے او د عبد الله بن اُبیّ د دروغو قسمونو حال ښکاره شو. د حضرت زید رضی اللہ عنہ عزت د موافق او مخالف دواړو په نظر کښ زیات شو. او د عبدالله بن اُبیّ قصه هم په ټولو ښکاره شوه. هر کله چه مدینه منوّره نزدے راغله نو د عبد الله بن اُبیّ ځوئ چه د هغۀ نوم هم عبد الله وو. او ډیر پوخ مُسلمان وو. د مدینے منورے نه بهر اودریدۀ. توره یے راوویستله او پلار ته یے اُووے. تر هغے وخته پورے به د مدینه منوّره کښ داخلید و ته نۀ پریږدم تر څو چه د دے اقرار اُونکړے چه ځۀ ذلیل یم او محمّد صلی اللہ علیہ وسلم عزتمند دے پلار یے ډیر حیران شو چه د دے ځوئ به همیشه ما سره ډیر عزت او د نیکئ معامله کوله. خو د نبی علیه الصلوٰۃ والسلام مُقابله کښ یے برداشت اُونکړے شو. آخر مجبور شو او د دے اقرار یے اُوکړۀ چه قسم دے په الله وی، ځۀ ذلیل یم او محمّد صلی اللہ علیہ وسلم عزتمند دے. د دے نه پس مدینه کښ داخل شو. (خمیس)

## ⑫ د حضرت جابر رضی اللہ عنہ حمراء الاسد کښ شرکت

د اُحد د جنګ نه فارغ شوی مُسلمانان مدینے منوّرے ته اُورسیدل. سفر او د جنګ د وجے ستړی ستومانه وُو. خو مدینه منوّره ته رسیدو سره دا خبر راغے چه ابُوسفیان د جنګ نه په واپسئ حمراء الاسد (د یو ځائ نوم دے) ته اُورسیدۀ. ملګرو سره یے مشوره اُوکړه او دا رائے یے قائمه کړه چه د اُحد په جنګ کښ مُسلمانانو ته شکست اُوشو. دا سے موقع غنیمت ګڼړل پکار وه چه نۀ ده معلومه بیا دا سے وخت راشی یا رانۀشی. په دے وجه نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم (نعوذ بالله) د قتلولو نه پس واپس کیدل پکار وُو. په دے اراده هغه د واپس کید و مشوره اُوکړه. نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم اعلان اُوکړۀ چه کوم خلق په

اُحد کښې موږ سره وکړو او هم هغه ورا سره لاړشي او دوباره دخپلې دپاره
تنل پکار دی. اګرچه مسلمانان دغه وخت ستړي وُو خو سره د دې ټول
په ټول تیار شو. چونکه نبي ﷺ اعلان کړے وو چه صرف هغه خلق به ځي
چه کوم اُحد کښې وُو. په دې وجه حضرت جابر رضي الله عنه درخواست اُوکړو. اے
د الله رسوله! ځما ارزو په اُحد کښې هم د شرکت وه خو پلار را ته په دې وجه
اجازت رانکړو چه ستا اووه خوېندې دي. ځولې سرے پل نشته د ځي به
مونږه دواړو کښې دیو یا تے کیدل ضروري دي. او ځپله يې د تلو اراده کړې
وه. ځکه يې ما ته اجازت رانکړو. د اُحد په جنګ کښې د هغه شهادت
اُوشو. اُوس تاسو ما ته اجازت راکړئ چه ځه هم درسره لاړ شم. نبي ﷺ
ورته اجازت ورکړو. د ده نه علاوه بل ځوک داسې کس نه وو تلے چه کوم
په اُحد کښې شریک نه وو. (خمیس)

**فائده:-** د حضرت جابر رضي الله عنه په دې شوق او ارزو اجازت غوښتل
غومره قدر دے دغیرت قابله خبره ده چه پلار يې اُوس شهید شوے دے
قرضه يې هم د پلار په ذمه ډیره ځه وه هغه هم ډیهوریا نو. چه د سختي
معامله به يې کوله. او ده سره خویه يې خصوصاً د سختي معامله کوله. د دې
ټولو نه علاوه د خوېندو د ګذارے فکر چه اُوګوره وے. چه د دې په وجه
پلار ورته د اُحد په جنګ کښې د شریکېدو اجازت هم نه وو ورکړے. خو د
جهاد شوق په دې ټولو غالب دے.

## ⑪ د حضرت ابن زُبیر رضي الله عنه د رُوم په جنګ کښې بهادري

حضرت عثمان رضي الله عنه د زمانه خلافت کښې سنه ۲۶ھ کښې د مصر رُومي
الو حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه په ځائې چه کله عبدالله بن ابي سرح رضي الله عنه
الو جوړ کړے شو. نو هغه د روم سره د جنګ د پاره شل زره مجمع سره
وتلو. د رومیانو لښکر د دوه لاکهو قریب وو. زبردست جنګ اُوشو
رومیانو امیر جُرجیر اعلان اُوکړو چه ځوک عبدالله بن ابي سرح رضي الله عنه

قتل کړی هغهٔ سره به خپلے لُور نکاح کوم او یو لاکھ اشرفئ انعام به هُم ورکوم۔ په دے اعلان بعض مُسلمانان فکرمند شول۔ حضرت عبدالله بن زُبیر رضی الله عنه ته معلومه شوه۔ دهٔ اُوویل۔ دا د فکر خبره نهٔ ده۔ څونږ له طرفه هم اعلان اُوکړے شی چه څوك جرجیر قتل کړی۔ د هغهٔ لُور سره به دهغهٔ نکاح کولے شی او یو لاکھ اشرفئ انعام۔ د دے نه علاوه دا چه هم هغه به د دغ ښهرونو امیر هم جوړ وُلے شی۔ لنډه دا چه ډیر وخته پورے مُقابله کیدله۔ حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه اُولیدهٔ چه جرجیر د ټول لښکر نه رستو دے او لښکر د هغهٔ نه مخکښ شوے دے۔ دوهٔ وینزو د طاؤس په وزرو په هغهٔ سورے کړے دے۔ د دے غلے غوندے د لښکر نه جُدا شو او په طرف ئے تن لاړ حمله ئے پرے اُوکړه۔ هغهٔ دا خیال اُوکړو چه دے ګوا ئے دا ر ټګی را روان دے، خهٔ د صلح پیغام به راوړی۔ خو دے نیغ ورا اُورسیدهٔ او حمله ئے پرے اُوکړه۔ په تُوره ئے ترے سر پریکړو، په نیزه کښ ئے اُوچت کړے راوړهٔ او ټول خلق ورته په کتلو کتلو حیران پاتے شول۔

**فائده**:- حضرت عبدالله بن زُبیر رضی الله عنه نو بے ځلے وو۔ د هجرت نه پس د تولونه رُومبے پیدا کښ مُهاجرینو کښ دده شوے دے۔ مُسلمانان د ده په پیدا کید و ډیر خوشحاله شوی وو ځکه چه یو کال پورے هیڅ یو مُهاجری کره څوك هلك نهٔ وو پیدا شوے۔ نو یهودیانو دا اُوویل چه مونږه په دے مُهاجرینو جادو کړے دے۔ د دوی هلك نشی پیدا کیدے۔ د نبی صلی الله علیه وسلم عادت د بچو د بیعت کولو نهٔ وو۔ خو ابن زُبیر رضی الله عنه ئے د اُوو کالو په عُمر کښ بیعت کړو۔ د دے جنګ په وخت کښ د دهٔ عُمر څلیریشتو، پنځویشتو کالو وو۔ په دے عُمر کښ د دوه لاکھو لښکر کښ ورننوتل او د بادشاه سر پریکړے راوړل معمولی څیز نهٔ دے۔

## (۱۴) د حضرت عَمرو بن سلمه رضی الله عنه د کُفر په حالت کښ قرآن پاك یادول

عَمرو بن سلمه رضی الله عنه فرمائی چه مونږ خلق د مدینه مُنوره په لار کښ

ځای اوسیدلو. هلته به تلونکی راتلونکی زمونږ څخه تیریدل. کوم خلق
به مدینې منورې ته واپس راتلل مونږ به د هغوی نه د حالاتو تپوس
وچه د خلقو څنګه حال احوال دے. کوم صاحب چه د نبوت دعوی کوی، د
څخه خبر دے. هغې خلقو به حالات بیانول چه هغه وائی ما باندې وحی
، دا دا آیتونه نازل شوی دی. څهٔ کم عمره بچے وم. هغوی چه به څهٔ بیان
ما به هغه یادول. دا رنګے د مسلمانیدو نه وړاندې ماته ډیر قرآن شریف
وے وو. د عربو ټولو خلقو مسلمانیدو د پاره د مکے د خلقو انتظار کولو. کله
که مکرمه فتح شوه. نو هره ډله اسلام کښې داخلیدو د پاره حاضره شوه.
لا رهم د قوم یو څو سړو سره د ټول قوم له طرفه قاصد جوړ شوے حاضر
نبی اکرم ﷺ هغهٔ ته د شریعت احکام اوخودل او مونځ یے ورته اوښایهٔ
تبع سره د مونځ کولو طریقه یے ورته اوخودله. او ارشاد یے اوفرمایهٔ چه
ښن د ټولو نه زیات چاته قرآن یاد وی هغه د امامت د پاره بهتر دے. ما
، د مدینې نه د راتلونکو خلقو نه آیتونه اوریدل او یادول. په دې وجه
نه زیات حافظِ قرآن هم څهٔ وم. ټولو تلاش اوکړهٔ خو څما نه زیات
قرآن هیڅوک قوم کښې نهٔ وو. نو هم څهٔ یے امام جوړ کړم. څما عمر دغه
شپږ اووهٔ کاله وو. کله چه به څهٔ ګډ کړه وه یا د جنازے د مونځ موقع به
و څهٔ به امام جوړ کړے شوم. (بخاری، ابوداؤد)

فائده: دا دین طرفته د طبعی میلان او د رغبت اثر وو چه په کم عمر کښې
لمانیدو د قرآن شریف ډیره حصه یاده کړه. باقی د بچی امامت قصه دا
ف دے. د چا په نیز چه جائز ده د هغوی په نیز خو څهٔ شک نشته او د چا
جائز نهٔ ده، هغوی فرمائی چه نبی ﷺ د دغے خلقو ته ارشاد فرمایلے وو
کښې چاته قرآن زیات یاد وی، بچی د دے نه مراد نهٔ وو.

## حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د خپل غلام په ښوکښې ډیرې اچول

حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما غلام عکرمه رحمة الله علیه د مشهور عالمانو نه دے

وائی چه حُما آقا حضرت عبد الله بن عبّاس رضی الله عنه به قرآن شریف او حدیثونو او د شریعت احکام لوستلو دپاره حُما په بنپو کښې بیرۍ اچولې وې چه چرته حُم راحُم نو هغه به ما ته قرآن شریف او احادیث شریف خودل۔ (بخاری۔ ابن سعد)

**فائده:** حقیقت کښې لوستل هُم په دې حالت کښې کیدې شي خو او چه د تعلیم په زمانه کښې سیل او سفر او د بازار د تفریح شوق کښې وي هغه بې کاره خپل عمر ضائع کوي۔ هم د دې خیز اثر وو چه بیا عکرمه غلام حضرت عِکرمه رحمة الله علیه جوړ شو چه د بحرُ الاُمّة او حِبرُ الاُمّة القابو سره یاد کړې شو۔ قتاده رضی الله عنه وائی چه ټولو تابعینو کښې لوئ عالمان څلور دي چه په هغوی کښې یو عِکرمه رحمة الله علیه دې۔

## (۱۶) د حضرت ابنِ عبّاس رضی الله عنه په وړوکوالی کښې قرآن یادول

په خپله حضرت عبد الله بن عبّاس رضی الله عنه فرمائي چه ما نه د تفسیر تپوس کوئ۔ ما په وړوکوالی کښې قرآن شریف یاد کړې دې۔ بل حدیث کښې دي چه ما د لسو کالو په عمر کښې اخیري منزل لوستې وو۔ (بخاری۔ فتح)

**فائده:** د هغې زمانې لوستل د لسې نه وُو څنګه چه د دې زمانه کښې حُمونږ خلقو د غیرو ژبو حال دې۔ لکه هغوی به چه څه لوستل هغه به ئې سره د تفسیره لوستل۔ په دې وجه حضرت ابنِ عبّاس رضی الله عنه د تفسیر لوئ اِمام دې۔ چه د وړوکوالی یادول ډیر محفوظ وي۔ د تفسیر حدیثونه څومره چه د عبد الله بن عبّاس رضی الله عنه نه نقل دي۔ د نورو حضراتو نه ډیر کم نقل شوي دي۔ عبد الله بنِ مسعُود رضی الله عنه فرمائي چه د قرآن بهترین مُفسّر عبد الله بن عبّاس رضی الله عنه دې۔ ابُو عبد الرّحمٰن رحمة الله علیه فرمائي چه کومو صحابه کرامو به مونږ ته قرآن شریف خودلو هغوی فرمائي چه صحابو به د نبی صلی الله علیه وسلم نه لس آیتونه د قرآن زده کړل، وروستو به ئې لس نور آیتونه هغې وخته پورې نه زده کول، ترڅو چه به ئې د دې مخکنو لسو آیتونو موافق عِلم او عمل نه وو شوې۔ (منتخب کنز)

**فائده:** د عبد الله بن عبّاس رضی الله عنه (د یارلسو کالو عمر وو۔ کوم وخت چه

نبی اکرم ﷺ وفات شو. په دے عمر کښې چه کومه درجه یے تفسیر او حدیث کښې حاصله کړه، هغه ښکاره کرامت او قابلِ دعبرت ده چه د تفسیر امام دے او لوئی لوئی صحابۀ یے په تفسیر د دۀ نه پوښتنه کوله. اګرچه دا د نبی اکرم ﷺ د دعا برکت وو. چه یو وارے نبی اکرم ﷺ استنجاء ته تشریف یوړو. چه بهر ته اُووتلو، نو اوبه ورته ږدلے پرته وه. پوښتنه یے اُوکړه چه دا چا ایخے دی؟ عرض اُوکړے شو چه ابنِ عباس. د نبی اکرم ﷺ دا خدمت خوښ شو نو دعا یے اُوکړه چه الله تعالیٰ دِ ورته د دین فهم (هوښیارتیا) او د کتاب الله پوهه ورکړي. دے نه پس یو وارے نبی اکرم ﷺ نفل کول. دۀ هم نیت اُوتړلو ورپسے اُودریدۀ. نبی ﷺ په لاس راخکلو، ځان سره یے برابر اُودرولو. که چرے مقتدی یو کس وی نو د امام برابر اُودریدل پکار وی. دے نه پس نبی ﷺ مانځه کښې مشغول شو. دے لږ غوندے رستو شو. نبی ﷺ دے د مانځه نه پس پوښتنه اُوکړه. عرض یے اُوکړو چه تاسو د الله تعالیٰ رسول یئ. ستاسو برابر څنګه اُودریدے شم. نبی ﷺ ورته د علم او فهم د زیاتوالی دعا اُوکړه. (اصابه)

## (د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی اللہ عنہ په ورځو کښې حدیثونه یادول

حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی اللہ عنہ ډیر عابد او زاهد تو صحابی دے چه هره ورځ به یے یو قرآن شریف ختم کولو. او ټوله شپه به عبادت کښې مشغول وُو. او د ورځے به یے همیشه روژه وه. نبی اکرم ﷺ په دے محنت ورته زورنه هم اُوفرمایله او ارشاد یے اُوفرمایلو چه دا سے به وجود ان کمزورے شي. ټوله شپه په شوګیره سره به د سترګے خرابے شي. د ځان هم حق دے. د بال بچ هم حق دے. د تلونکو راتلونکو (میلمنو) هم حق دے. وائی چه زما معمول دا وو چه هره ورځ به مے یو ختم کولو. نبی ﷺ دا اُوفرمایل چه یو میاشت کښې یو قرآن وایه. ما عرض اوکړه. ا...

الله رَسُولَه! ما ته دخپل قوت او ځوانئ نه د فائدې اخستلو اجازت راکړئ. نبي ﷺ اوفرمايل، بس ده. شلو ورځو کښې يو ختم کوه. ما عرض اوکړه، اے دالله رَسُولَه! ډیر کم دے. ما ته دخپلې ځوانئ او قوت نه د فائدې اخستلو اجازت راکړئ. لنډه دا چه دغه شان م عرض کولو. آخیر کښې درې ورځو کښې دیو ختم اجازت یې راکړه. دده عادت وو چه دنبي اکرم ﷺ ارشادات به یې لیکل چه یاد پاتے شی. دده سره یو مجموعه دنبي ﷺ دحدیثونو لیکلې شوې وه چه دهغې نوم یې صَادِقَه ایښے وو. دے وائی چه ما به دنبي ﷺ نه څۀ اوریدل، هغه به م لیکل چه یاد پاتے شی. څۀ خلقو منع کړم چه نبي ﷺ په هر حالت کښې بنیادم دے. کله غصه او ناراضتیا کښې چا ته څۀ اوفرمائی کله خوشالئ او خوش طبعئ کښې څۀ ارشاد اوفرمائی. هره خبره مۀ لیکه. ما لیکل پریخودل. یو وارے نبي ﷺ ته ما دا دے ذکر اوکړه. هغوی مُبارك ارشاد اُوفرمایۀ چه لیکه. په هغې ذات م دِقَسَم وی دچا په قبضه کښې چه ځما ساه ده. دِ دے خلې نه غصه کښې یا په خوشالئ کښې دحق نه سِوا هیڅ خبره نۀ اُوزی. (مسند احمد. ابن سعد)

(ف) حضرت عبدالله بن عَمْرو رضي الله عنه سره دا دے چه په زُهد او دعبادت په ډیروالی کښې ممتاز شمارلے شی. بیا هم اَبُو هریره رضي الله عنه فرمائی چه صحابو کښې ځما نه زیات روایت کوونکے بل هیڅوك نِشته سِوا د عبدالله بن عَمْرو رضي الله عنه نه چه هغۀ لیکل او ما نۀ لیکل. دا دے نه معلومیږی چه دده روایتونه دابُوهُریره رضي الله عنه نه هم ډیر زیات دی. اگرچه ځمونږ زمانه کښې دابوهریره رضي الله عنه روایتونه دده نه ډیر زیات موندے شی چه دهغې ډیرے وجې دی. خو هغې زمانه کښې سره دا دے دومره عبادت ته ډیر زیات دده حدیثونه موجود وُو.

## ⑱ دحضرت زید بن ثابت رضي الله عنه قرآن یادول

حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه په هغې جَلِیلُ الْقَدَر صحابو کښې دے چه په خپله زمانه کښې لوئی عالِم او لوئی مُفتی شمارلے شو. خصوصًا دفرائضو یعنی د

علومو میراث) ماهر وو. ویلے شی چه مدینه منوره کښې فتوی، قضاء، فرائض، قراءت کښې دوه شمار په اُوچتو خلقو کښې وو. کله چه نبی اکرم ﷺ هجرت اُوکړه، مدینه منورے ته یې تشریف راوړه. نو هغه وخت کم عمره بچے وو. دَ یَوولسو کلو عمر یې وو. په دے وجه باوجود دخواهشه ابتدائی جنګونو یعنی بدر وغیره کښې ورته دشرکت اجازت اُونه شو. دهجرت نه پنځه کاله وړومبے د شپږو کلو په عمر کښې یتیم شوے وو. نبی ﷺ دهجرت نه پس مدینے منورے ته اُورسیده. نو خلقه چه نور خلق خدمت کښې حاضریدل او برکت حاصلولو دپاره یې بچی همځان سره راوستل. زید رضی الله عنه هم خدمت کښې حاضر کړے شو. زید رضی الله عنه وائی چه کله څه زه نبی ﷺ خدمت کښې پیش کړے شوم نو عرض ورته اُوشو چه دا دقبیله نجاریو هلک دے. ستاسو د راتلو نه وړاندے دَه اُوولس سورتونه دقرآن پاک یاد کړی دی. نبی ﷺ دامتحان دپاره ماته دویلو ارشاد اُوفرمایه. ما ورته سورۃ ق واوروو. نبی ﷺ خه اُوستل خوښ کړل. نبی اکرم ﷺ چه په کوم خطونه یهودیانو ته لیږل هغه به یهودیانو لیکل. یو ځلے نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایه چه ریهودیانو په خطوکتابت خما تسلی نشته چه چرته غلط لیکل اُونه کړی. ته دیهودیانو ژبه زده کړه. زید رضی الله عنه وائی چه څه په پنځلس ورځو کښې دهغوی په عبرانی ژبه کښې کامل شوم. دے نه پس چه به کوم خط هغوی ته تلو، هغه به هم ما لیکه او کوم خط چه به دیهودیانو نه راتلو هغه به هم ما اُوستلو. یو بل حدیث کښې راغلی دی چه نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایه چه ماته بعضو خلقو ته په سریانی ژبه کښې خطونه لیکل وی. په دے وجه ماته یې دسریانی ژبے زده کولو ارشاد اُوفرمایه. ما په اُوولس ورځو کښې سریانی ژبه زده کړه. (فتح - اصابه)

## (۱۹) دحضرت حسن رضی الله عنه په وړوکوالی کښې علمی مشغله

دسید السادات حضرت حسن رضی الله عنه پیدائش داکثرو عالمانو دقول موافق رمضان سنه ۳ھ کښې شوے دے. په دے اعتبار سره دنبی اکرم ﷺ دوفات

په وخت د دهٔ عمر اوهٔ کاله څو میاشتې شو۔ داوهٔ کالو څهٔ عمر دے چه په
هغے کښې علمی کمال حاصل کړے شی۔ خو سره د دے د حدیث څو روایتونه
د دهٔ نه نقل کولے شی۔ اَبُوالحَوْرَاء رحمۃ اللہ علیه یو کس دے، هغه د حضرت حسن
رضی اللہ عنه نه تپوس اُوکړهٔ چه تا ته د نبی صلی اللہ علیه وسلم څهٔ خبره یاده ده۔ دهٔ اُووئیل، اَوْ۔
څهٔ د نبی اکرم صلی اللہ علیه وسلم سره تلم۔ لار کښې د صدقے د کهجورو یو ډهیرے لګیدلے وو
ما د هغے نه یوه کهجوره اُوچته کړه، خلهٔ کښې م واچوله۔ نبی اکرم صلی اللہ علیه وسلم کخ کخ
(تُوکه تُوکه) اُوفرمایل او ځما د خلے نه یے را اُوویستله او دا ارشاد یے اُوفرمایهٔ
چه مونږ د صدقے مال نهٔ خورُو۔ او ما پنځه واره مونځونه د نبی
علیه الصّلوٰة والسّلام نه زده کړی دی۔ (مسند احمد)

حضرت حسن رضی اللہ عنه فرمائی چه ما ته په وترو کښې د لوستلو دپاره نبی صلی اللہ علیه وسلم
دا دُعا خودلے وه۔ اَللّٰهُمَّ اهْدِنِیْ فِیْمَنْ هَدَیْتَ وَعَافِنِیْ فِیْمَنْ عَافَیْتَ وَ
تَوَلَّنِیْ فِیْمَنْ تَوَلَّیْتَ وَبَارِكْ لِیْ فِیْمَا اَعْطَیْتَ وَقِنِیْ شَرَّ مَا قَضَیْتَ فَاِنَّكَ
تَقْضِیْ وَلَا یُقْضٰی عَلَیْكَ اِنَّهٗ لَا یَذِلُّ مَنْ وَّالَیْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَیْتَ۔
(ترجمه) "اے الله ما ته هدایت اُوکړے د هغوئی نه چه چا ته تا هدایت کړے دے
او ما ته عافیت (صحت) راکړے په هغے خلقو کښې چه چا ته تا عافیت ورکړے
دے او ته ځما د کارونو مُتَوَلِّی (ذمه دار) جوړ شے څنګه چه د نورو ډیرو خلقو
مُتولی یے۔ او کوم څهٔ چه تا ما ته راکړی دی په هغے کښې برکت واچوے۔ او کوم
څهٔ چه تا مُقَدَّر (قسمت) کښې لیکلی دی، د هغے د بدئ نه ما بچ کړے۔ ته چه
څهٔ غواړے، کولے شے۔ ستا خلاف هیڅوک هیڅ هم فیصله نشی کولے او چه د
چا ته مددګار یے هغه هیڅکله ذلیله کیدے نشی۔ ستا ذات برکت والا دے او
د ټولو نه اُوچت دے۔" حضرت حسن رضی اللہ عنه فرمائی چه ما د نبی صلی اللہ علیه وسلم نه واوریدلی
چه څوک د سحر د مانځه نه پس نمر ختلو پورے هم هغه ځائی ناست وی،
هغه به د دوزخ د اُور نه خلاصے بیا مومی۔ حضرت حسن رضی اللہ عنه څو ځله په
پیدل اُوکړهٔ۔ او ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه ما ته له دے نه شرم راځی چه د مرګ
نه پس الله تعالیٰ سره یو ځائی شم او د هغهٔ کور ته په خپلو خپو نه یم تلے۔

ويرصبرناك او پرهيزګاره وو. مُسْنَدِ اَحْمَد كښې ګڼړ روايتونه ددهٔ نه
نقل كړے شوي دي. او صاحبِ تَلْقِيْم هغه صحابو كښې ددهٔ ذكر كړے دے
چه پانه چه ديارلس حديثونه روايت كړي شي. دا اوو كالو عُمر څهٔ دے، دَ
غوښت دومره حديثونه يا د ساتل او نقل كول د حافظے كمال دے او د شوق
انتها ده. افسوس دے چه موږ خلق خپلو بچو ته اووه كالو پورے د دين
معمولي غوندے خبرے هم نه ښايو.

## ⓴ د حضرت حُسَيْن رضی الله عنه په وړوكوالي كښې عِلمي مشغله

سَيِّدُ السَّادات حضرت حُسَيْن رضی الله عنه د خپل رور حضرت حَسَن رضی الله عنه نه
يو كال كشر وو. په دے وجه ددهٔ عُمر د نبي اكرم صلی الله علیه وسلم د وفات په وخت نور هم
كم وو. يعني شپږ كاله او څو مياشتو وو. د شپږو كالو بچے به څهٔ د دين خبرے
محفوظ اوساتي. خو د حضرت حُسَيْن رضی الله عنه روايتونه د حديث په كتابونو كښې
نقل كړے شي. او مُحَدِّثينو به هغه ُ ه كښې ددهٔ شمار كړے دے د چا نه چه اَتهٔ
حديثونه نقل دي. حضرت حُسَيْن رضی الله عنه فرمائي چه ما د نبي كريم صلی الله علیه وسلم نه واوريدل
چه چا مُسلمان نارينه يا زنانه ته څهٔ مُصيبت اورسي. بيا هغهٔ ته پريږه موده
پس را ياد شي. او په ياد راتلو بيا هغه اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رٰجِعُوْن اُ اووائي نو
هغهٔ ته دغه وخت هم هغه هومره ثواب رسي، څومره چه د مُصيبت په وخت
رسيدلے وو. دا هم د نبي صلی الله علیه وسلم اِرشاد دے چه څما اُمت كله په كشتئ كښې سورېږي
او د سوريدو په وخت كښې بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖهَا وَمُرْسٰهَا اِنَّ رَبِّيْ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ
اووائي نو دا د ډوبيدو نه د اَمن ذريعه ده. حضرت حُسَيْن رضی الله عنه پنځويشت
حجونه پيدل كړي دي. د مونځونو روژو به يے هم ډير كثرت فرمايهٔ. او په صدقه
او د دين په هر كار كښې به يے ډير اهتمام كولو. رَبِيْعَه رضی الله عنه وائي چه ما د حضرت
حُسَيْن رضی الله عنه نه تپوس اوكړو چه د نبي صلی الله علیه وسلم څهٔ نوره خبره تا ته ياده ده؟ وې فرمايل
او. څهٔ په يو كهړكئ اوختلم چه په هغے كښې كهجورے پرتے وے. د هغے نه يوه كهجوره
ما په خلهٔ كښې واچوله. نبي صلی الله علیه وسلم اوفرمايل چه دا اوغورځوه، موږ له صَدقه

دا ارشاد هم نقل دے چه دسری جائز نهٔ ده. حضرت حسین رضی اللہ عنہ نه دنبی علیه الصلوٰة والسلام دا ارشاد هم نقل دے چه دسری دِ اسلام ښهٔ والے دا دے چه بے کاره کارونه پریږدی. (اسد الغابه. استیعاب)

دے نه علاوه نور هم ګڼ روایتونه ددوی نه نقل دی.

**فائده:-** د دے قِسمه واقعات دصحابه کرامو رضی اللہ عنهم ډیر دی چه ورو کوالی واقعات یے دنبی صلی اللہ علیه وسلم نه نقل کړی دی. او یاد یے ساتلی دی. محمود بن الربیع رضی اللہ عنه یو صحابی دے چه د ده عمر دنبی اکرم صلی اللہ علیه وسلم د وفات په وخت کښ پنځه کاله وو. دے وائی، څهٔ به تول عمر دا خبره هیره نهٔ کړم چه نبی اکرم صلی اللہ علیه وسلم زمونږ کور ته تشریف راوړهٔ. مونږ کره یو کوهے وو. دهغے د اوبو نه یے یو ګوټ اوبهٔ دهغے څخا په مخ باندے واچولے. (اصابه)

مونږ خلق بچی ګډو وډو فضول خبرو کښ لګوو، د دروغو دروغو قصے هغوی ته اورو. په لغویاتو کښ ئے مازغهٔ پریشانه کوو. کهٔ چرے دالله والو قصے تلاش کړو. هغوی ته یے واورو، او په خائی د پیریانو دیوانو نه دویرولو دالله تعالیٰ نه او دهغهٔ دعذاب نه یے اویروو، او دالله تعالیٰ دنا راضتیا اهمیت او هیبت یے په زړهٔ کښ پیدا کړو. نو به دُنیا کښ به هم دهغوی پکار راشی او په آخرت کښ خوښا مخا ضرور فائده ورکوی. دوړوکوالی زمانه دحافظے د قوت زمانه وی. دهغے وخت یاد کړے شوے هیڅکله نهٔ هیریږی. په دا سے وخت کښ کهٔ چرے قرآنِ پاک ورته حفظ کړے شی، نو نهٔ به څهٔ تکلیف وی نهٔ به وخت لګی. ما دخپل پلار صاحب نه، الله تعالیٰ دے په ګور نور کړی، ډیر ځلے واوریدل او دخپل کور بوډئیکا نو نه نخونه م هم اوریدلی دی چه څما پلار صاحب رحمة الله علیه چه کله دتی نه پریکړے شو، نو یو پاؤ (یعنی څلورمه حِصه) دسیپارے یے یاده وه. او د اووه کالو په عمر کښ قرآن شریف یے پوره یاد شوے وو. او هغهٔ دخپل پلار یعنی څما د نیکهٔ صاحب نه په پته دفارسی هم ډیره حصه بوستان سکندرنامه وغیره لوستلی وو. فرمایل یے چه څما پلار صاحب د قرآن شریف ختمیدو نه پس دا ارشاد فرمایلے وو چه یو قرآن شریف هره ورځ وایه باقی توله ورځ چُهټی. څهٔ به دګرمئ په موسم کښ دسحر ما ښځهٔ نه پس د مکان

په چهت کینا ستم او شپږ اوه گهینټو کښې به مې قرآن شریف پوره کړه. دغو مې دوه ورځې به مې خوړله او ماښام ته به خپله مرضۍ سره به مې فارسي ویله. شپږو میاشتو پورې پرله پسې هم دا معمول وو. شپږ میاشتو پورې هره ورځ یو قرآن مجید اوګوستل، بیا هغې سره نور سبقونه هم ویل او دا هم دا اوګالو په غرکښې څۀ معمولي خبره نه ده. هم د دې دا فائده وه چه قرآن شریف کښې متشابه، غلطیدل یا هیریدل یې اودوپېژندۀ نه. چونکه ظاهري ګذاره یې دکتابونو په تجارت وه. او د کتب خانې ډیر کارونه به یې په خپل لاس سره کول. په دې وجه د لسې هیڅ کله هم نه دی شوی چه په لاس سره د کار کولو په وخت په ژبه یې تلاوت نه کولو. او کله کله دې سره مونږ خلقو ته چا چه په دمدرسې نه جُدا سبقونه ویل، سبقونه به یې هم را ته خودل. دا رنګې درې کارونه به یې په یو وخت کښې کول. خو هغۀ د تعلیم طریقه مونږ خلقو سره هغه نۀ وه کومه چه د مدرسې د سبقونو وه. او د عامو مدرسو مُرَوَّجه طریقه ده. چه ټول بوجھ د اُستاذ په ذمه وی. بلکه د خاصو طالبانو سره دا طریقه وه چه شاګرد به عبارت وائی ترجمه به کوی مطلب به بیانوی. که چرې هغه مطلب به صحیح وو، نو "مخکښې ځه" به یې اُوفرمایل. او که غلط به وو، نو که چرې غلطي به قابل د تنبیه (زورنې) وه. نو تنبیه به یې فرمایله او که قابل د خودنې به وه نو اُوبه یې خودله. دا د زړې زمانې قصه نۀ ده هم د دې صدۍ واقعه ده. په دې وجه دا ئې ویلې چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په شان طاقتونه او همتونه اُوس د چرته نه راوړې شي.

# دولسم باب ۱۲

## د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سره د محبّت واقعات

اګرچه ډیر مره قصې اُوسه پورې نقل کړې شوی دی هغه ټول د محبّت

نمونے دي چه محبت د دے حضراتو د عاشقانه ژوند سبب و چه دهغې
په وجه يے نه دځان پرواه وه، نه د ژوند تمنا۔ نه د مال خيال وو، نه
تکليف خوف، نه د مرګ نه ويره۔ دے نه علاوه محبت د حکايت څيز هم
نه دے۔ دا د يو مزے حالت دے چه د الفاظو او د عبارتونو نه پورته دے۔
محبت يو داسے څيز دے چه په زړه کښې ځائې اونيسي نو محبوب لره په
هر څيز باندے غالب کوي۔ نه بيا د هغه مخکښې ننګ و ناموس څه څيزوي
نه عزت او شرافت څه شے وي۔ الله جل شانهٗ په خپلے مهربانۍ او د خپل محبوب
په وسيله خپل او د خپل پاک رسول ﷺ محبت را نصيب کړي نو هريو
عبادت کښې لذت دے، او د دين هريو تکليف کښې راحت دے۔

## ① د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د اسلام اعلان او تکليف

د اسلام په شروع کښې چه به څوک مسلمانيده۔ هغه به تر خپله وسه پورے خپل
اسلام پټ ساته۔ د نبي اکرم ﷺ له خوا هم په دے وجه چه دوي ته
د کافرانو نه تکليف اونه رسي، د پټولو ترغيب کيدلو۔ کله چه د مسلمانانو
تعداد يو کم څلويښتو ته اورسيده۔ نو حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د ظاهرولو
درخواست اوکړه چه ښکاره په ښکاره په څرګنده تبليغ اوکړے شي۔ نبي اکرم
ﷺ اول انکار اوکړه خو حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په اصرار يے قبول کړه
او دا ټول حضرات يے ځان څخه واخستل مسجدِ کعبه ته يے تشريف يوړه۔
حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه تبليغي خطبه شروع کړه۔ دا د ټولو نه رومبۍ خطبه وه کوم
چه اسلام کښې اوويلے شوه۔ او د نبي اکرم ﷺ تره سيّد الشهداء حضرت حمزه رضي الله عنه هم
په دغه ورځ اسلام راوړے دے۔ او د هغه نه درے ورځې پس حضرت عمر
رضي الله عنه په اسلام مشرف شوے دے۔ د خطبے شروع کول وو چه څلور واړو طرفو
نه کافران او مشرکان په مسلمانانو ورځغليه شو۔ حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه
يے هم سره د دے چه مکه مکرمه کښې عام طور د ده عظمت او شرافت منلے
شوے وو۔ دومره يے اووهله چه ټول مخ مبارک يے د وينو نه ډک شو۔

پوزه غوږونو نه تول دویتونه رنګ بنګ شو. پیژندلے نه شو. په پټړو اولګیے اوږدهٔ په خیوپړے اوګرزیدل. او چه څهٔ نه کول وُو، تول هرڅهٔ یے ورسره اوکړل. حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه بے هوشه شو. بنوتیم یعنی د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د قبیلے خلقو ته خبر اوشو. هغوی د هغه غاړی نه زاوجت کړهٔ راوړے رهٔ. هیچا ته په دے کښے شک نه وو ربلکه یقین وو، چه ابوبکر صدیق رضی الله عنه د دے دغنا ورو په شان حملے نه ژوندے نشی پاتے کیدے. بنو تیم جمات ته راغلل او اعلان یے اوکړهٔ چه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه که چرے د دے واقعه کښے وفات اوشو نو مونږ به د ده په بدله کښے عتبه بن ربیعه قتل کړو. عتبه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په وهلو کښے ډیر زیات د بد بختئ اظهار کړے وو. ماښامه پورے حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه بے هوشه وو. سره د آوازونو ورکولو د ویناٸ یا د خبرے کولو موقع نه راتله. ماښام ته آوازونو ورکولو باندے یے خبرے اوکړے نو د ټولو نه رومبے خبره یے داوه چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم څهٔ حال دے؟ خلقو په دے ډیر ملامته کړهٔ چه د هغهٔ سره د کیدو په وجه د ده دا مصیبت پیښ شوا و تول ورځ د مرګ په خلهٔ کښے وے او چه خبره یے اوکړه نو هغه هم د حضور جذبه او د هغهٔ شوق. خلق ترے پاسیدل لاړل چه نا لګی وه. او دا هم چه آخر څهٔ ساه باقی ده. چه خبرے یے اوکړے رنو بیا هم هغه زور سبق د نبی صلی الله علیه وسلم مینه) د دوی مور ام خیر ته یے اووے چه د ده د خوراک څکاک د پاره څهٔ انتظام اوکړه. هغې څهٔ تیار کړهٔ، راوړه او ډیر خوړلو یے اصرار اوکړهٔ. خو حضرت ابوبکر رضی الله عنه هم هغه یو آواز وو چه د نبی علیه السلام څهٔ حال دے؟ په هغوی څهٔ تیر شوو؟ د دوی مور اووے چه ما ته خو خبر نشته چه څهٔ حال دے. دوی ورته اوفرمایل چه ام جمیل رضی الله عنها د حضرت عمر رضی الله عنه خور ته لاړه شه پوښتنه ترے اوکړه چه څهٔ حال دے. هغه غریبه د خوی د دے مظلومانه حالت او د پریشانئ درخواست پوره کولو د پاره ام جمیل رضی الله عنها ته لاړه او د محمد صلی الله علیه وسلم د حال پوښتنه یے ترے اوکړه.

هغې هم دعام دستور موافق دغې وخته پورې خپل اِسلام پټ ساتلے وو وِئے وئیل چه ځهٔ ځهٔ پیژنم، ځوله محمد (ﷺ) او ځوئے ابُوبکر (رضی الله عنه) ستا دځوئ حالت چه مې واورېدهٔ خفه شوم. که چرے ته وائے نو تاسره به لاړه شم چه دهغهٔ حالت اُووینم. اُمّ خَیر قبوله کړه. هغے سره راغله، او حضرت ابُوبکر رضی الله عنه حالت ئې چه اُولیدهٔ، برداشت ئې اُونکړے شو، بے اختیاره په ژړا شوه چه بد عملوئے ځهٔ حال کړے دے. الله تعالیٰ د هغوی ته دخپلو کړو سزا ورکړی. حضرت ابوبکر رضی الله عنه ترے تپوس اُوکړهٔ چه دنبی ﷺ ځهٔ حال دے؟ اُمّ جَمیل رضی الله عنها دحضرت ابوبکر رضی الله عنه مور طرف ته اشاره اُوکړه، وِئے وَئیل چه دا آوری. دوی ورته اُوفرمائیل چه دے نه مهٔ ویریږه. نو اُمّ جَمیل رضی الله عنها ورته خیریت واورَولو. عرض ئې اُوکړهٔ چه بالکل صحیح او سَالِم (روغ جوړ) دے. دوی تپوس اُوکړهٔ چه دا وخت کوم ځائ دے؟ هغې عرض اُوکړهٔ چه دا اَرقَم رضی الله عنه په کور کښ دے دوی اُوفرمائیل چه ځما دِ په الله تعالیٰ قَسَم وی چه دهغې وخته پورے به هیڅ خوراک او څکاک اُونهٔ کړم ترڅو چه دنبی ﷺ زیارت اُونهٔ کړم، د دوی مور خو ناقلاره وه چه دِے څهٔ اُوخوری. اَو دوی قَسَم اُوخوړ چه ترڅو پورے زیارت اُونکړم هیڅ به نهٔ خورم. په دے وجه مور ئې دده انتظار اُوکړهٔ چه دخلقو تلل راتلل بند شی. هسے نه چه څوک ئې اُووینی او څهٔ تکلیف ورته اُورَسَوی. هرکله چه دشپے ډیره حصه تیره شوه، نو حضرت ابُوبکر رضی الله عنه ئې والِخست، دنبی ﷺ خدمت کښ د اَرقَم رضی الله عنه کور ته اُورسیدل. حضرت ابوبکر رضی الله عنه نبی ﷺ ته ورتړغاړه شو او نبی ﷺ هم ورتړغاړه شو. دوی هم اُوژړل او مُسلمانان هم په ژړا شو. ځکه چه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه حالت دلیدو نهٔ وو. دے نه پس حضرت ابُوبکر صدیق رضی الله عنه درخواست اُوکړهٔ چه دا ځما مور ده. تاسو دوی دپاره دهدایت دُعا اُوکړئی او دوی ته داسلام تبلیغ هم اُوکړئ. نبی اکرم ﷺ ورته اول دُعا اُوکړه، دے نه پس ئې داِسلام ترغیب ورکړهٔ. هغه هم دغه وخت مُسلمانه شوه. (خمیس)

**فائده:** د عیش او عشرت، د نشاط او فرحت (خوشالۍ) په وخت د محبت دعویدار په سوونو وی. محبت او عشق هغه دے کوم چه د مصیبت او د تکلیف په وخت هم باقی وی.

## (۲) د حضرت عمر رضی الله عنه د نبی صلی الله علیه وسلم په وفات غم

حضرت عمر رضی الله عنه سره د بے مثالی قوت، شجاعت، زړه ورتیا او بهادرۍ کوم چه ئن د ورلس نیم سوه کالونه پس هم د دنیا کښ مشهوره ده. او سره د دے چه د اسلام بنګاره کیدل هم د حضرت عمر رضی الله عنه اسلام راوړلو سره اوشو. چه مسلمانیدونه پس یے دخپل اسلام پټول خوښ نه کړه. د نبی صلی الله علیه وسلم سره د محبت یو ادنیٰ غوندے نمونه یے داده چه سره د دے ټولے بهادرۍ د نبی کرم صلی الله علیه وسلم د وفات حالت یے برداشت نکړے شو. او د سخته حیرانۍ او پریشانۍ په حالت کښ یے تُوره په لاس کښ واخسته او دریده چه څوک دا اُووائی چه د نبی صلی الله علیه وسلم وفات شوے دے، نو د هغه سر به اُلوزوم. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم خپل رب ته تشریف اُوړے دے څنګه چه موسیٰ علیٰ نبینا و علیه السلام طور ته تشریف اُوړے وو. ډیر زر به نبی صلی الله علیه وسلم واپس تشریف راوړی او د هغه خلقو لاسونه خپه به پریکوی څوک چه د نبی صلی الله علیه وسلم د وفات غلط خبر خوروی. حضرت عثمان رضی الله عنه ګم صم وو چه د دویمے ورځے پورے یے بالکل اواز نه وتلو. کرځیدلو راګرزیدهٔ به خو خبرے یے نهٔ شوے کولے. حضرت علی کرم الله وجهه چُپ چاپ ناست پاتے شو چه حرکت یے هم بدن نه کولو. صرف یو د ابوبکر رضی الله عنه ذات وو چه د غه وخت د غر په شان ولاړ وو، او هرڅه یے برداشت کړهٔ او سره د هغے محبت کوم چه ړومبئ قصه کښ تیر شو. د غه وخت یے ډیر په سکون ارام تشریف راوړهٔ. اول یے د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم تندے مبارک ښکل کړهٔ. او بهر یے تشریف راوړهٔ. حضرت عمر رضی الله عنه ته یے اُووے، کینه. دے نه پس یے خطبه اُووبله چه د هغے حاصل دا وو چه چا د محمد صلی الله علیه وسلم عبادت کولو هغه دِے پوهه شی چه نبی صلی الله علیه وسلم وفات شو. خو څوک چه د الله تعالیٰ

عبادت کوی هغه دِ پوهه شی چه الله تعالیٰ ژوندے دے او همیشه دے. وے نه پس یے دقرآن پاک آیت وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ اخیره پورے یے تلاوت اُوفرمایهٔ. (خمیس) (ترجمه) محمد (صلی الله علیه وسلم) صرف رسول خو دے. (الله خو نهٔ دے چه پرے مرګ وغیره نهٔ راځی) پس که چرے د دوی وفات اُوشی یا دوی شهید شی نو ایا تاسو خلق به واپس بیرته کرزئ. او څوک چه واپس اُوګرزی نو الله تعالیٰ هیڅ نقصان نشی کولے (خپل نقصان به کوی) او الله تعالیٰ به زر بدله ورکړی حق پیژندونکو خلقو ته. (بیان القرآن)

**فائده:-** چونکه الله جل شانهٔ ته د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه د خلافت اَهم کار اخستل وو. د دے د پاره د هغوی شایانِ شان د غه وخت هم داحال مُناسب وو. په دے وجه د غه وخت څومره قدرے اِستقلال او برداشت حضرت صدیق کښں وو، هیچا کښں نهٔ وو. او د دے سره څومره قدرے مسئلے چه د دفن او د میراث وغیره د دغے وخت مُناسب حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه ته معلومے وے. دا تو لے پوره هیچا ته معلومے نهٔ وے. د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دفن کښں اختلاف اُوشو چه مکه مُکرمه کښں دفن کړے شی یا مدینه مُنوره کښں یا بیتُ المقدّس کښں. نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه اُوفرمایل چه ما د نبی علیه السلام نه اَوریدلی دی چه د نبی قبر هم هغه ځائ وی کوم ځائ چه د هغهٔ وفات اُوشی. په دے وجه کوم ځائ چه وفات شوے دے هم د غه ځائ د قبر اُوکنستلے شی. دوی اُوفرمایل چه ما د نبی علیه السلام نه اَوریدلی دی چه مونږ خلقو (یعنی انبیاؤ) څوک وارث نهٔ کیږی. هر څه چه مونږ پریږدُو، هغه صدقه وی. دوی اُوفرمایل، ما د نبی علیه السلام نه اَوریدلی دی څوک چه د مسلمانانو د حکومت مُتولی (یعنی انتظام کوونکے) جوړشی او هغه په لاپرواهئی سره کوتاهی اُوکړی بل څوک اَمیر جوړ کړی په هغهٔ د لعنت دی. بله دا چه د نبی علیه السلام ارشاد دے چه قُریش د دے اَمر یعنی سلطنت مُتولیان دی. وغیره وغیره.

## ۲ د یو زنانه د نبي ﷺ د خبر د پاره بې آرامه کېدل

د اُحُد په غزا کښې مسلمانانو ته تکلیف ډیر اُورسیدهٔ او شهیدان هم
...یر شُو. مدینه منوره ته چه دا هیبتناک خبر اُورسیدهٔ نو زنانه پریشانه
...حالاتو معلومولو د پاره د کورونو نه راُووتلې. یو انصاري زنانه کړه اُولیدله
...وبې قرارۍ کښې یې ترې تپوس اُوکړهٔ چه نبي ﷺ څنګه دے؟ دغې کړې
...ه چا اُووے چه ستا پلار شهید شوے دے. هغې إِنَّا لِلّٰهِ اُووے. بیا یې په
...ه قرارۍ کښې د نبي ﷺ د خیریت پوښتنه اُوکړه. دے کښې چا ورته د خاوند
...شهادت خبر واورَولو. او چا ورته د خوئ او چا ورته د ورور. چه دا ټول
...شهیدان شوی دی. خو هغې تپوس اُوکړهٔ چه نبي ﷺ څنګه دے؟ خلقو
...واب ورکړهٔ چه نبي ﷺ په خیریت دے تشریف راوړی. په دې یې تسلي
...ونهٔ شوه. وے ویل چه ما ته اُوښایئ کوم ځائې دے؟ خلقو ورته په اشاره
...وخودلو چه په هغې کړه کښې دے. دا په منډه لاړه او څپې ستړګې یې د نبي ﷺ
...په لید ویخې کړې. عرض یې اُوکړهٔ. اے د الله رسوله! ستا سو د لید و نه پس
...هر یو مُصیبت کم او معمولي دے. یو روایت کښې راغلي دي چه د نبي ﷺ
...لمه یې اُونیوله عرض یې اُوکړهٔ چه اے د الله رسوله! ځما مور او پلار
...په تا سو قربان وي هر کله چه تا سو ژوندي او سلامت یئ نو ما ته د هیچا
...مرګ پروا نشته. (خمیس)

**فائده** ۱- د دې قِسمه ډیر قصې په دې موقع پیښې شوی دي. په دې
...چه مؤرخینو په نومونو کښې اختلاف هم کړے دے. خو صحیح دا ده چه
...د دې قِسمه واقعې څو زنانو ته پیښې شوی دي.

## ۳ په حُدَیبیّه کښې د ابوبکر صدّیق او مُغیرة رضي الله عنهما کار او دعا مو اصحابو کرامو رضي الله عنهم طرز عمل

د حُدَیبیّه مشهور جنګ ذِیقعده سنه ۶ھ کښې اُوشو. کله چه نبي اکرم ﷺ ...

د صحابو یو لوئی جماعت سره د عُمرے په اراده تشریف اُوړۀ. د مکے کافرانو
ته خبر اُورسیدۀ نو خپل مینځ کښې یې مشوره اُوکړه او دا یې فیصله اُوکړه
چه مُسلمانان دِ مکے ته راتلو نه منع کړے شي. د دے دپاره یې ډیره زیاته
تیاری اُوکړه. او د مکے نه علاوه د بهر خلق یې هم د خپل مَلا د دپاره راؤبلل
او لویه مجمَع یې مُقابلے دپاره تیاره کړه. دَ ذُوالحُلیفَه نه نبی اکرم ﷺ
یو صاحب د حالاتو معلومولو دپاره اُولیږۀ چه د مکے نه د حالاتو تحقیق اُوکړی
او عُسفَان کښې نبی اکرم ﷺ سره ملاقات اُوکړی. هغۀ عرض اُوکړۀ چه
د مکے خلقو د مقابلے په لوئی تعداد تیارے کړے دے. او د باهر نه یې هم ډیر
خلق د مدد دپاره راغوختلی دی. نبی ﷺ د صحابو سره مشوره اُوکړه چه دا
وخت څۀ کول پکار دی: یوه طریقه داده چه کوم خلق د باهر نه د مدد د
پاره راغلی دی د هغوی په کورُونو حمله اُوکړے شي. کله چه هغوی خبر
واوری نو د مکے نه به واپس راشي. دویمه طریقه داده چه نیغ ځو. حضرت
ابوبکر رضی الله عنه عرض اُوکړۀ چه اے د الله رسُوله! دا وخت تاسو د بیتُ الله
په اراده تشریف راوړے دے. د جنګ اراده خو آرو د سرَه نۀ وه. په دِے
وجه په مخکښې نه ځُو. که چرے هغوی مونږ منع کړی نو مقابله به کوُو.
کنی نو نه. نبی ﷺ دا قبوله کړه او په مخکښې روان شول. حدَیبیه ته
چه اُورسیدل نو بُدَیل بن وَرقَا خزاعی یو جماعت سره راغے او نبی ﷺ
ته یې د دے ذکر اُوکړۀ چه کافران تاسو هیڅکله د مکے دا خلیدو ته نۀ پریږدی
هغوی جنګ ته تیار دی. نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایۀ چه مونږ د جنګ
دپاره نۀ یُو راغلی. څو مونږ مقصد عُمره کول دی. او قریشو ته روزانه جنګونو
ډیر نقصان رَسَولے دے. بالکل یې هلاك کړی دی. که چرے د دوی رَضا
وی نو څۀ ورسره صُلح کولو ته تیار یم چه څما او د دوی په مینځ کښې به یو
بے مُعاهده وی چه ما سره به دوی مُقابله نۀ کوی او څۀ به د دوی سره
غرض نۀ لرم. ما دِ نورو ته پرېږدی. او که چرے دوی په هیڅ خبره
نۀ راضی کیږی نو په هغه ذات مې دِ قَسَم وی د چا په قبضه کښې چه څما ساه ده

چه څۀ به تر هغې وخته دوی سره جنګیږم چه اسلام غالب شي یا خما سټ پریکړے شي. بُدَیل عرض اُوکړو چه زۀ به ستاسو پیغام هغوی ته رَسَوم. هغه واپس شو او پیغام یے اُورَسَوو. خو کافران راضي نۀ شول. دا رنګے د دواړو طرفونو د تلو راتلو سلسله جاري وه. چه په کښے یو وارے عُروَه بن مَسعُود ثقفي د کافرانو له طرفه راغے چه تر دے وخته پورے مُسلمان شوے نۀ وو. رَستو بیا مُسلمان شو. نبي ﷺ ده سره هم هغه خبرے اترے اُوکړے، کومے چه یے بُدَیل سره کړے وے. عُروه عرض اُوکړو. اے مُحَمَّد (ﷺ) که چرے ته داغواړے چه د عَرَبو بالکل خاتمه اُوکړے نو دا مُمکنه نۀ ده. تا به هیڅکله دا نۀ وي اَوریدلي چه لټا نه رومبے څوك داسے کس تیر شوے وي چه هغۀ عرب یعني فنا او ختم کړي وي. او که چرے دویم حالت اُوشو چه دوي په تا غالب شو. نو بیا د ستا نه چه څۀ تا سره د شریفانو له نۀ وینم. دا د اَخوا دیخوا رَذیل خلق تا سره دي، که مُصیبت راشي نو دا ټول به درنه اُوتښتي. اَبُوبکر صِدِّیق رضی اللہ عنہ ولاړ وو. دا خبره یے چه واوریدله، د غُصے نه ډك شو. او وے وئیل چه ته د خپل معبُود "لات" د مُتیازو خاٸي اُوڅټے. آیا مونږ به د نبي ﷺ نه اُوتښتو او دوي به یوازے پریږدو. عُروَه تپوس اُوکړو چه دا څوك دے؟ نبي ﷺ اُوفرمایل اَبُوبَکرؓ دے. عُروه حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ ته مخ را واړوو، وے وئیل چه ستا یو زوړ احسان په ما را پورے دے چه د هغې بدله ما ادا کړے نۀ ده. که چرے دغه نۀ وے نو درے به د دغو جواب هم درکړے وو. دا یے اُووے او عُروه بیا نبي ﷺ سره خبرو کښے مشغول شو. او د عَرَبو د عامے قاعدے مطابق په خبرو کولو کښے یے د نبي ﷺ ږیرے مُبارکے ته لاس لګولو چه د خوشامند په موقع ږیرے ته په لاس اُوړ و خبرے کیږي. صحابو دا خبره کله برداشت کولے شوه. د عُروه وراره حضرت مُغیره بن شُعبه رضی اللہ عنہ په سَر خود یعني د اوسپنے ټوپۍ وه او وَسله یے لګولے وه، ورځنه ولاړ وو. د تورے په مُوټي یے د عُروه لاس اُووهۀ چه لاس لرے سا ته. عُروه تپوس اُوکړو

چه دا څوك دے؟ نبي ﷺ اُوفرمايل چه مُغيره - عُروه اُووے، اے غدّارا! ستا غدّاري تر اُوسه پورے برداشت کوم او ستا ما سره دا سلوك! (حضرت مُغيره بن شعبه رضی اللہ عنہ د اسلام نه وړاندے څو کافران قتل کړي وو چه د هغې دِيَت يعني خون بها عُروه اداکړے وه. هغې طرف ته اشاره وه) غرض دا چه عروه اُوبږدے خبرے اترے نبي ﷺ سره کولے او دستر گو لاندے به يے د صحابه کرامو رضی اللہ عنہم د حالات اندازه هم اَخستله. کله چه واپس لاړو، کافرانو ته يے اُووے چه اے قُريشو! څهٔ لويو لويو بادشاهانو ته تلے يم. د قيصر او کِسرٰي او د نجاشي دربارونه م هم ليدلي دي او د هغوي آداب م هم ليدلي دي په الله م دِ قسم وي. ما هيڅ يو بادشاه نه دے ليدلے چه د هغهٔ ملګري د هغهٔ دومره تعظيم او قدر کوي څنګه چه د محمّد (ﷺ) ملګري د دهٔ تعظيم کوي. که چرے هغه لاړے تو کي نو د چا په لاس چه پريوزي هغه يے په بدن او مخ مږي. کومه خبره چه د محمّد (ﷺ) د خُلے نه اُوزي د هغې پوره کولو د پاره يو ل منډے وهي. د هغهٔ د اودسهٔ اُوبو اخستلو د پاره خپل مينځ کښ لاسونه اَچوي، زمکے غور زيدو ته يے نهٔ پريږدي. که چرے چا ته څاڅکے اُونهٔ رسي. نو هغه د بل لوند لاس باندے خپل لاس اُومږي، په خپل مخ يے راکاږي. د هغهٔ مخکښ که خبرے کوي نو ډيرے په رو آواز سره کوي، په زوره خبرے نهٔ کوي. هغهٔ طرف ته نظر د ادب په وجه نهٔ اُوچتوي. او که د هغهٔ د سَر يا د ږيرے ويښته پريوزي نو هغه د برکت د پاره اُوچتوي او د هغې تعظيم او احترام کوي. غرض دا چه ما هيڅ جماعت خپل آقا سره داسے محبت کونکے نهٔ دے ليدلے څومره چه د محمّد (ﷺ) جماعت هغهٔ سره محبت کوي. د دے دوران کښ نبي اکرم ﷺ حضرت عُثمان رضی اللہ عنہ لره د خپل طرفه قاصد جوړ کړهٔ او د مکے سردارانو ته يے اُوليږهٔ. حضرت عُثمان رضی اللہ عنہ سره د دے چه مُسلمان وو خو مکه کښ يے ډير عزت وو. او د دهٔ متعلق زيات ويره نهٔ وه ځکه يے د دے تجويز کړو - د دهٔ تشريف يوړهٔ. نو صحابه رضی اللہ عنہم ارمان اُوکړهٔ چه عُثمان رضی اللہ عنہ به په مَزه د کعبے طواف اُونه کوي. نبي ﷺ اُوفرمايل چه ځما اُميد نشته چه هغه

به ځانله بغیرطواف اُوکړي. ځنګه چه عثمان رضی الله عنه مکه کښې داخل شو. نو اَبان بن سَعید هغه په خپله پناه کښې واخست او دۀ ته یې اُووے چه کوم ځائې دې زړۀ غواړي ګرزه راګرزه. تاځوک منع کولے نۀ شي. حضرت عثمان رضی الله عنه ابُوسُفیان وغیره دمکې سردارانو سره ملاقاتُونه اُوکړل او دنبي صلی الله علیه وسلم پیغام یې اُورسو. کله چه واپس کیدۀ نو کافرانو په خپله ورته اُووے چه ته مکې ته راغلے یې نو طواف اُوکړه بیا ځه. دۀ جواب ورکړو چه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم خو منع کړے شوے وي او ځۀ دِطواف اُوکړم. قُریش په دے جواب غُصه شُو. او په دے وجه یې حضرت عُثمانؓ رضی الله عنه ایسار کړۀ. مسلمانانو ته خبر اُورسیدۀ چه شهید یې کړۀ. په دے نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د صحابو نه تر آخري ساه پورے په جنګ بَیعت واخِست. هرکله چه کافرانو ته دا خبر اُورسیدۀ نو اُویریدل، او حضرت عُثمان رضی الله عنه یې زر پریخودۀ. (خمیس)

**فائده**:- دے قصه کښې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ارشاد او د حضرت مُغیره رضی الله عنه عمل، د صحابه کرامو رضی الله عنهم عام طرزِ عَمل چه هغه عُروه ذِکر په غور اُولیدۀ. دا رنګے د حضرت عثمان رضی الله عنه د طواف نه انکار هره یوه واقعه داسے دۀ چه د نبي صلی الله علیه وسلم سره د بے اندازے عِشق او مُحبت خبر ورکوي. د بیعت کوم چه په دے کښې ذکر دے بَیعَةُ الشَّجَرَة ورته وائي. قرآن پاك کښې هم د دے ذکر دے. او الله تعالیٰ د سورۀ فتح آیت لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ الآیة کښې د دے ذکر فرمایلے دے. پوره آیت ترجمے سره دِیر زر خاتمه کښې راځي.

## ⑤ د حضرت ابنِ زُبیر رضی الله عنه وینه څښکل

نبي اکرم صلی الله علیه وسلم یو ځلے ښکرونه اُولګول او کومه وینه چه اُووَتله هغه یې حضرت عبد الله بن زُبیر رضی الله عنه ته ورکړه چه دا چرته ځَخه کړه. هغه لاړو او راغے عرض یې اُوکړۀ چه ځَخه مې کړه. نبي صلی الله علیه وسلم پوښتنه اُوکړه کوم ځائې؟ عرض یې اُوکړۀ ما اُوڅښکله. نبي صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه د چا بدن ته ځما وینه لاړه شي، هغه د دوزخ اُور نشي منع کولے. خوستا د پاره هم د خلقو

نه هلاکت دے او خلقو لره لتانه زغيس)

**فائده:** د نبی ﷺ فضلات لوئ ورکوتے او دس ما تے وغیره تول پاک دی څکه دے کښ هیڅ اشکال نشته. د نبی ﷺ د دے ارشاد مطلب چه هلاکت دے. علماؤ لیکلی دی چه سلطنت او امارت طرف ته اشاره ده. چه امارت به وی او خلق به په هغے کښ مخالفت کوی. کله عبدالله بن زبیرؓ پیدا شو. هغه وخت هم نبی ﷺ دے طرف ته اشاره فرمائیلے وه چه تیر کړدے د شرمخانو په مینځ کښ. دا سے شرمخان چه جامے به یے اغوستے وی. بیا یزید او عبدالملك دواړو سره د حضرت ابن زبیرؓ مشهور جنګ اُوشو او اخر شهید شو.

## ⑥ د حضرت مالك بن سنان رضی الله عنه وینه څکل

د اُحُد په جنګ کښ کله چه د نبی اکرم ﷺ مخ مبارك یا سر مبارك کښ د خود دوه کړئ ننوتے. نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په منډه ورمخکښ شو. او بل طرف نه حضرت ابوعبیدہؓ منډه کړه او مخکښ لاړو. او د خود کړئ یے په غاښ راښکل شروع کړه. یوه کړئ یے راؤ ویستله چه په هغے سره یو غاښ د حضرت ابوعبیدہؓ مات شو. د دے یے پرواه اُونه کړه، دویمه کړئ یے راخکله، هغے سره دویم غاښ هم مات شو، نو کړئ یے راؤ ویستله. د دے کړو وتلو سره د نبی ﷺ د پاك جسم نه وینه وتل شروع شوه نو د حضرت ابوسعید خدریؓ پلار مالك بن سنانؓ خپلو شونډو سره هغه وینه اُوروڅله او تیره یے کړه. نبی ﷺ ارشاد اُوفرمائیه چه مچا په وینه کښ څما وینه یوځائ شوه هغه د دوزخ اُور نشی مسح کولے. (قرة العیون)

## ⑥ د حضرت زید بن حارثه رضی الله عنه خپل پلار ته انکار

حضرت زید بن حارثه رضی الله عنه د جاهلیت زمانه کښ خپلے مور سره د نیا نیکه کور ته تلو. بنو قیس قافله لوټ کړه چه په هغے کښ زید هم وو. د مکے

بازار ته یې راوست، خرڅ یې کړه. حکیم بن حزام د خپلې ترور حضرت خدیجې رضی الله عنها دپاره واخیست. کله چه نبی ﷺ سره د حضرت خدیجه رضی الله عنها نکاح اوشو نو هغې زید د نبی اکرم ﷺ خدمت کښې د هدیه په طور پیش کړه. د زید پلار ته د ده په جدا ایئ سخت تکلیف او غم وو. او بیکاره هم وو چه د اولاد محبت طبعي خیز دے. د ده به د زید په جدا ایئ کښې ژړل او اشعار به یې ویل او ګرزیده به. اکثر چه به یې کوم اشعار ویل د هغې مختصر ترجمه دا ده.

"چه څه د زید په یاد کښې ژاړم، او دا راته نه ده معلومه چه هغه ژوندے دے چه اُمید یې اوکړے شي، یا مرګ ختم کړے دے. په الله تعالیٰ می دِ قسم وي، ما ته دا هم نه ده معلومه چه ته اے زیده! نرمې زمکې هلاک کړے یې، یا د غرهٔ زمکې مړ کړے یې. ارمان! ما ته دا معلومه شوے چه ته به تول عمر کښې کله واپس راشې له نه. ټولې دنیا کښې ځما انتهائي غرض ستا واپس راتلل دي. کله چه نمر راخیژي نو هم را ته زید یا دیږي او کله چه باران کیږي نو هم د هغه یاد ما زهیروي. او کله چه هوا ګانې چلیږي نو د هغه یاد را ته تازه کوي. هائے افسوس! ځما غم او ځما فکر څومره اوږد شو. څهٔ به د هغهٔ په تلاش او کوشش کښې ټولې دنیا کښې د اوښ تیز رفتاري په کار راولم. او د دنیا چکر لګولو نه به ستړے نه شم. که اوښ د ګرځولو نه ستړے شي نو ستړے به شي خو څهٔ به هیڅکله ستړے نه شم. خپل ټول ژوند به دے کښې تیروم. هائے افسوس! که ماله مرګ راغے نو خیر دے ځکه چه مرګ هر یو څیز فنا کوي، اګر چه څوک هر څومره اُمیدونه اولري خو څهٔ به د خپل ځان نه پس په خپلوانو کښې فلانکي فلانکي او آل اولاد ته وصیت کوم چه هغوي دِ هم دا رنګے زید تلاش کوي."

خلاصه دا چه هغهٔ به دا اشعار ویل او په ژړا ژړا به یې تلاش کولو کښې بیدهٔ. اتفاقاً د هغهٔ د قوم څو کسان حج ته لاړل او هغوي زید اُو پیژندهٔ.

دپلار حال یې ورته واورولو، شعرونه یې ورته واورول. او دهغهٔ دیاد او دجدائي قصې یې ورته واورولې. حضرت زید رضی الله عنه دهغوی په لاس درې شعرونه ورا اولیږل چه دهغې مطلب دا وو. چه څهٔ دلته مکه کښې یم، په خیریت یم، ته غم او فکر مهٔ کوه. څهٔ ددیر سخیانو خلقو په غلامئ کښې یم. هغهٔ کسان چه لاړل دزیدؓ خیر او خبر یې دهغهٔ پلار ته واورولو. او هغه اشعار یې واورول چه کوم زیدؓ ویلې وُو. اولیږلی وو. او پته یې ورته اوخودله. دزیدؓ پلار او تره د فدیې رقم ځان سره واخست او دغلامئ نه دخلاصولو په نیت مکې مکرمې ته راورسیدل. دتحقیق نه پس یې پته اولګوله. او دنبی اکرم ﷺ خدمت کښې حاضر شول او عرض یې اوکړو چه اے دهاشم اولاده! او دخپل قوم سردارو! تاسو خلق دحرم اوسیدونکی یئ. او دالله تعالی دکور ګاونډیان یئ. تاسو په خپله قیدیان آزادوئ، اوږدو ته خوراك ورکوئ. مونږ دخپل ځوئ په طلب کښې تاسو ته راغلي یو. په مونږ احسان اوکړه او کرم اوکړه او فدیه قبوله کړه او هغه آزاد کړه. بلکه چه څومره فدیه وی د هغې نه زیات واخله. نبی علیه السلام اوفرمایل، څهٔ خبره ده؟ عرض یې اوکړو. دزید په طلب کښې مونږ خلق راغلی یو. نبی ﷺ ارشاد اوفرمایهٔ، بس دومره غونډے خبره ده؟ عرض یې اوکړو چه حضور! بس دومره عرض دے. نبی ﷺ ارشاد اوفرمایهٔ چه هغه را اوغواړئ او هغهٔ نه تپوس اوکړئ. که چرے هغه تاسو سره تلل غواړی نو بغیر فدیه اخستلو هغه تاسو ته حواله دے. او که تلل نهٔ غواړی نو څهٔ په داسے کس زیاتے نهٔ شم کولے چه په خپله تلل نهٔ غواړی. هغوی عرض اوکړو چه تاسو دحق نه هم زیات احسان اوفرمایهٔ. دا خبره په خوشالئ منظوره ده. حضرت زید رضی الله عنه را اوغوختلے شو. نبی ﷺ ورته اوفرمایل، ته دوی پیژنے؟ عرض یې اوکړو، جی او پیژنم. دا ځما پلار دے دا ځما تره. نبی ﷺ اوفرمایل چه ځما حال هم تا ته معلوم دے. اوس تا ته اختیار دے که چرے ما سره اوسیدل غواړے نو ما سره اوسه. د دوی سره تلل غواړے نو اجازت دے. حضرت زید رضی الله عنه عرض اوکړو چه حضور! څهٔ ستاسو په مقابله کښې نور

خوله خو بخوږ ئے شم. تاسو ما د پاره د پلار په ځائ يئ او ستره په ځائ هم. هغه د وارو پلار او تره ورته اووئے چه زيدهٔ! غلامی د ازادئ په بدله کښ غوښتے. او پلار تره او ټول د کور والو په مقابله کښ غلام او سيدل غواړے زيد رضی الله عنه ورته اووے چه آو. ما په دوی کښ (نبی صلی الله علیه وسلم طرف ته ئے اشاره اوکړه) داسے خبرے ليدلے دی چه د هغه په مقابله کښ څه هيڅ شے نه خوښيږي شم. نبی صلی الله علیه وسلم چه کله دا جواب واوريدهٔ نو هغه ئے په غيږه کښ واخست او وئے فرمايل چه ما دے خپل ځوئ جوړ کړهٔ. د زيدؓ پلار او تره چه دا منظر اوليدهٔ. ډير خوشاله شول او په خوشالئ ئے بېرته خوده لاړل. (خميس)

**فائده**:- حضرت زيد رضی الله عنه دغه وخت بچے وو. د ورو کوالی په حالت کښ ټول د کور خلق خپل خپلوان په غلامئ قربانول چه د کوم محبت پته ورکوی هغه ښکاره دے.

## (۸) حضرت انس بن نضر رضی الله عنه د احُد په جنګ کښ عمل

د احُد په جنګ کښ کله چه مسلمانانو ته شکست کيدلو، نو چا دا خبره مشهوره کړه چه نبی صلی الله علیه وسلم شهيد شو. د دے هيبتناک خبر چه کوم اثر به صحابو کيدونکے وو، هغه ښکاره دے. په دے وجه ئے نورے هم زياتے کوړے ماتے شوے. (يعنی همت ئے اوبايلهٔ) حضرت انس بن نضر رضی الله عنه روان وو چه د مهاجرينو او د انصارو په يو ټولګی کښ ئے حضرت عمر او حضرت طلحه رضی الله عنهما اوليدل چه ټول حضرات پريشان حاله وو. حضرت انس رضی الله عنه تپوس اوکړهٔ چه داڅه کيږی چه مسلمانان پريشانه ښکاری. د حضراتو اووے چه نبی صلی الله علیه وسلم شهيد شو. حضرت انس رضی الله عنه اووے چه بيا د نبی صلی الله علیه وسلم نه پس تاسو چه ژوندی پاتے شئ، څهٔ به کوئ؟ توره لاس کښ واخلئ او لاړ شئ. ځان قربان کړئ. او حضرت انس رضی الله عنه توره لاس کښ واخستله، او د کافرانو په لټه کښ ورننوتلو. او تر هغه وخته پورے جنګيدهٔ چه شهيد شو. (خميس)

**فائده**:- دهغوی مطلب دا وو چه دکوم ذات د دیدار دپاره ژوندوو، چه هغه پاتے نه شو، نو بیا ژوندی پاتے کیدل څۀ دپاره دی. هم دغسے اوشوه چه په دے کښې یے خپل ځان قربان کړهٔ.

## ⑨ دحضرت سَعُد بن رَبِیع رضی الله عنه په اُحد کښې پیغام

هم دردے اُحد په جنګ کښې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم پوښتنه اُوکړه چه دسَعُد بن رَبِیع حال معلوم نه شو چه څۀ پرے تیر شو- یو صحابی یے دتلاش دپاره اُولیږهٔ. هغهٔ دشهیدانو په ډله کښې تلاش کولو، او آوازونه یے هم کول چه شاید ژوندے وی. بیا یے په زوره اُووے چه څۀ نبی صلی الله علیه وسلم رالیږلے یم چه دسَعُد بن رَبِیع خبر راوړه. نو دیو ځائی نه ډیر کمزورے آواز راغے. دے هغے طرف ته وروړاندے شو. وے لیدل چه د اُووٌ شهیدانو په مینځ کښې پروت دے، او یوه نیمه ساه یے باقی ده. کله چه نزدے ورورَسیدهٔ. نو حضرت سَعُد رضی الله عنه اُوفرمایل چه نبی علیه السلام ته زما سلام عرض کړه چه الله تعالیٰ دِ زما له طرفه تاسو ته له دے نه افضله او بهتره بدله درکړی. کومه چه چا نبی ته دهغهٔ د اُمتی له خوا بهتر نه بهتر ورکړے شوے وی. او مُسلمانانو ته زما دا پیغام اُورسَوه، که چرے کافران نبی علیه السلام ته اُورسیدل او په تاسو کښې که یوه سترګه هم غړیدونکے باقی پاتے وه. یعنی ژوندئی پاتے وه- نو د الله تعالیٰ په نزد به هیڅ یو عُذر ستاسو نه چلیږی. دا یے اُووے او په حق اُورسیده. (خمیس)

**فائده**:- فَجَزَاهُ اللهُ عَنَّا اَفْضَلَ مَا جَزٰی صَحَابِیًّا عَنْ اُمَّةِ نَبِیِّهٖ. په حقیقت کښې دے جان نثارانو (الله تعالیٰ دِ په خپلے مهربانئ د دوی قبرونه د نور نه ډک کړی) دخپلے جان نثارئ پوره ثبوت ورکړهٔ چه زخمونو باندِ زخمونه یے لګیدلی دی. ساه یے اُوزی، خو څهٔ مجال دے چه څهٔ شکایت څهٔ ویره څهٔ پریشانی ورته راشی. شوق او جذبه ده نو د نبی صلی الله علیه وسلم دحفاظت ده او نبی صلی الله علیه وسلم باندے د جان نثارئ او د قربانئ- ارمان! چه ماغوندے نا اَهله

ته همیشه حصه درے محبت نصیب شوے.

## ⑩ دنبی اکرم ﷺ قبر لید وسره دیوزنانه مرګ

دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په خدمت کښ یوه زنانه راغله او عرض یې اوکړه چه ماته دنبی اکرم ﷺ دقبر زیارت اوکړه. حضرت عائشه رضی الله عنها کوټئ شریفه پرانستله، هغې زیارت اوکړو. اوزیارت نه پس په ژړا شوه، او ژړا ژړا کښ وفات شوه. رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا وَاَرْضَاهَا. (خمیس)

**فائده**:- ایا دے عشق مثال هم چرته مونده شی چه دقبر د زیارت طاقت یې اونه لرلے شو. اوهلته یې ساه ورکړه.

## ⑪ داصحابو کرامو رضی الله عنهم دمحبت متفرقے قصے

دحضرت علی کرم الله وجهه نه چاتپوس اوکړو چه ستاسو د نبی ﷺ سره څومره محبت وو. دوی ارشاد اوفرمایئه چه په الله تعالیٰ م قسم وی نبی ﷺ مونږ خلقوته دخپلو مالونو او دخپل اولاد او دخپل مور پلار او دسختے تندے په حالت کښ دیخو اوبونه زیات محبوب وو. (شفاء)

**فائده**:- ریښتیا یې اوفرمایل. په حقیقت کښ داصحابو کرامو رضی الله عنهم هم داحالت وو. او ولے به نه وو. هر کله چه دغه حضرات دکامل ایمان خاوندان وو. اود الله جل شانه ارشاد دے. قُلْ اِنْ کَانَ اٰبَآؤُکُمْ وَاَبْنَآؤُکُمْ وَاِخْوَانُکُمْ وَاَزْوَاجُکُمْ وَعَشِیْرَتُکُمْ وَاَمْوَالُ اِۨقْتَرَفْتُمُوْهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ کَسَادَهَا وَمَسٰکِنُ تَرْضَوْنَهَآ اَحَبَّ اِلَیْکُمْ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَجِهَادٍ فِیْ سَبِیْلِهٖ فَتَرَبَّصُوْا حَتّٰی یَاْتِیَ اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ؕ وَاللّٰهُ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الْفٰسِقِیْنَ ۝ (سورة توبه-ع۳)

(ترجمه) "تاسو دوی ته اووایئی که چرے ستاسو پلاران اوستاسو ځامن وستاسو رونړه اوستاسو بیبیانے اوستاسو قبیله اوهغه مال کوم چه تاسو ګټلے دے اوهغه تجارت چه په هغې کښ دمال دتګ وتلو تاسو ته ویره ده اوهغه کورونه کوم چه تاسو خوښوئ. (که چرے دا ټول څیزونه)

تاسو ته د الله تعالیٰ نه او د هغهٔ د رسُول نه او د هغهٔ په لاره کښې د جهاد کولو
نه زیات خوښ وی، نو تاسو انتظار کښې اُوسئ تر دے چه الله تعالیٰ حکم
را اُولیږی. او الله تعالیٰ حکم نهٔ منونکو لره د هغوی مقصود ته نهٔ رسوی "زیاتره"
دے ایتِ شریفه کښې الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسُول ﷺ محبت د دے تولو څیزونو
نه کم کیدو باندے د سزا وعده ده. حضرت اَنَس رضی اللہ عنہ فرمائی چه د نبی اکرم
ﷺ ارشاد دے چه تاسو نه هیڅ یو کس تر هغے وخته پورے مؤمن کیدے
نشی تر څو پورے چه د هغهٔ ما سره محبت د خپل پلار او اَولاد او د ټولو خلقو نه
زیات نشی. حضرت اَبُوهُریره رضی اللہ عنہ نه هَم د اسے مضمون نقل کړے شوے
دے. د عالمانو ارشاد دے چه د دے حدیثونو کښې د مُحَبت نه مُحبت اختیاری
مُراد دے. غیر اختیاری یعنی طَبعِی اِضطِراری مُراد نهٔ دے - او دا هم کیدے
شی که چرے محبت طبعی مُراد شی. نو بیا د ایمان نه مراد د کامل درجے ایمان
دے څنګه چه د اصحابو کرامو رضی اللہ عنہم وو. حضرت اَنَس رضی اللہ عنہ فرمائی چه د
نبی اکرم ﷺ ارشادِ مُبارک دے چه درے څیزونه د اسے دی چه کوم کس کښې
هغه بیا موندے شی، د ایمان خوږ والے او د ایمان مزه به ورته نصیب شی.
یو دا چه الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسُول مُحبت د ټول هر څهٔ نه ده ته زیات وی.
دویم دا چه چا سره محبت کوی د الله تعالیٰ د رضا د پاره کوی. دریم دا چه کُفر
طرف ته واپس تلل ده ته د اسے گران او مُشکل وی لکه څنګه په اُور کښې پریوتل.
حضرت عُمر رضی اللہ عنہ یو وارے عرض اُوکړو چه اے د الله رَسُوله! ما ته د خپل
ځان نه علاوه نور د ټولو څیزونو نه تاسو زیات محبوب یئی. نبی ﷺ ارشاد
اُوفرمایهٔ چه څوک د هغے وخته پورے کامل مؤمن کیدے نشی تر څو چه
هغهٔ ته ځما محبت د خپل ځان نه هم زیات نشی. حضرت عُمر رضی اللہ عنہ عرض
اُوکړو. اے د الله رَسُوله! اَوس تاسو ما ته د خپل ځان نه هم زیات محبوب
یئی. نو نبی ﷺ اُوفرمایل، اَلْاٰنَ یَا عُمَرُ (دا وخت اے عُمَره!) عالمانو د
د دے ارشاد دوه مطلبه خودلی دی. یو دا چه دا وخت ستا ایمان کامل شو.
دویم دا چه خبردارے دے چه دا وخت دا خبره پیدا شوه چه څهٔ تا ته د خپل

نفس نه زیات محبوب شوم. حال دا چه دا خبره خو د اول نه پکار وه. سُهیل تُستَری رحمه الله فرمائی چه څوک هر حال کښې نبی ﷺ خپل والی یعنی آقا اُونهٔ ګڼړی هغه د سُنتو مزه نشی څکلے. یو صحابی راغے نبی اکرم ﷺ ته یے عرض اُوکړو چه قیامت به کله راځی. نبی ﷺ اُوفرمایل چه قیامت د پاره دِ څهٔ تیارے کړے دے چه د هغے په وجه دِ انتظار دے. هغهٔ عرض اُوکړو، اے د الله رَسُوله! ما ډیر مونځونه او روژے او صدقے خو تیارے کړے نهٔ دی البته الله تعالیٰ او د هغهٔ د رَسُول ﷺ محبت زما په زړهٔ کښې دے. نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه قیامت کښې به تهٔ د هغه چا سره یے چا سره چه تهٔ محبت ساتے. د نبی ﷺ ارشاد، چه د بنده حَشر به د هغه چا سره وی چا سره چه د دهٔ محبت وی، ډیرو صحابو نقل کړے دے. چه په هغوی کښې عبد الله بن مَسْعُود، اَبُومُوسیٰ اَشعَرِی، صَفْوَان، اَبُوذَرْ وغیره رضی الله عنهم حضرات هُم دی. حضرت اَنَس رضی الله عنه فرمائی چه صحابه کرامو ته چه څومره ډیره خوشالی په دے ارشادِ مُبارک سره اُوشوه، په هیڅ څیز ورته دومره خوشالی چرے نهٔ وه شوے او ښکاره خبره ده، کیدل هم پکار وو چه د نبی ﷺ محبت د هغوی په رَګ او ریشه کښې وو. نو بیا به هغوی ولے نهٔ خوشالیدل.

د حضرت فاطمے رضی الله عنها مکان په شروع کښې د نبی ﷺ نه لرے وو. یو وارے نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه زما زړهٔ غواړی چه ستا مکان ما ته نزدے شوے. حضرت فاطمه رضی الله عنها عرض اُوکړو چه د حَارِثَه مکان تاسو ته نزدے دے هغهٔ ته اُوفرمایئ چه زما مکان سره یے بدل کړی. نبی ﷺ اُوفرمایل چه هغهٔ سره مخکښې هم بدلُون شوے دے. اُوس خو حَیا راځی. حَارِثَه رضی الله عنه ته د دے پته اُولګیده. فوراً حاضر شو. عرض یے اُوکړو. اے د الله رَسُوله! ما ته معلومه شوے ده چه تاسو د فاطمے رضی الله عنها مکان خپل نزدے غواړئ. دا زما مکانات موجود دی. د دے نه زیات نزدے هیڅ یو مکان نِشته، کوم چه ستاسو خوښ وی. بدل یے کړئ. اے د الله رَسُولَه! زهٔ او زما مال د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول دی. اے د الله رَسُولَه! په الله تعالیٰ مې دِ قسم وی.

کوم مال چه تاسو اخلئ هغه ما ته زیات خوښ دے دهغه مال نه چه ما ځنې پاتې شي. نبي ﷺ ارشاد اُوفرمایه، ریښتیا وایې او دبرکت دُعا یې ورته اُوکړه او مکان یې ورسره بدل کړه۔ (طبقات)

یو صحابي دنبي ﷺ خدمت کښې حاضر شو او عرض یې اُوکړو چه ستاسو محبت ما ته خپلې ځان، مال او اَهل وعیال نه زیات دے. څه په خپل کور کښې یم چه ستاسو خیال راشي نو صبر نه راځي تر دے چه حاضر شم او راشم زیارت اُونکړم. ما ته دا فکر دے چه مرګ خو تاسو ته هم او ما ته هم ضرور راتلونکے دے. دے نه پس خو به تاسو د اَنبیاؤ درجے ته لاړشئ نو ما ته دا ویره ده چه بیا به څه تاسو نه وینم. نبي ﷺ دے په جواب کښې خاموشي اختیار کړه چه حضرت جبریل علیه السلام تشریف راؤړه او دا آیت یې واؤروؤ.

وَمَنْ يُطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ۝ ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ۝ (سورة النساء) (ترجمه) "څوک چه دالله تعالیٰ او دهغهٔ درسول وئیل اُومني نو دا سے کسان به جنت کښې هغه حضراتو سره وي په کومو چه الله تعالیٰ انعام فرمایلے دے. یعنې اَنبیاء او صِدِّیقین او شهیدان او صالحین (یعنې نیکان خلق)، او دا حضرات ډیر ښهٔ ملګری دی. او دوی سره ملګرتیا خالص دالله تعالیٰ فضل دے او الله تعالیٰ ته د هر چا عمل ښه معلوم دے." دا سے واقعات ډیرو صحابو ته پیښ شوی دی او پیښیدل ورته ضرور وُو. ــ عشق است وہزار بدگمانی. "عشق دے او په زرګونو بدګمانئ." نبي ﷺ په جواب کښې دا آیت واؤروؤ.

دا رنګے یو صحابي حاضر شو او عرض یې اُوکړو چه اے دالله رسوله! ځما تاسو سره دا سے محبت دے چه کله خیال راشي. که چرے هغه وخت حاضر نشم زیارت اُونکړم نو ځما غالب ګمان دے چه ځما ساه به اُوزي. خو ما سره دا فکر دے که چرے څهٔ جنت ته داخل هُم شم. بیا به هم تاسو نه خلکته درجه کښې یم. ما ته خو په جنت کښې به هُم ستاسو زیارت نه بغیر ډیره ګرانه شي. نبي ﷺ

ورته هم دا آیت واؤروکو.

یو بل حدیث کښې راغلی دی چه یو انصاری د نبی ﷺ خدمت کښې حاضر شو. او ډیر غمژن وو. نبی ﷺ اوفرمایل. غمژن ولې یې؟ عرض یې اوکړه چه اے د الله رسوله یو فکر اوړم. نبی ﷺ ترے پوښتنه اوکړه څه فکر دے؟ عرض یې اوکړه. اے د الله رسوله! مونږ سحر ماښام خدمت کښې حاضریږو. ستاسو په زیارت سره (زړهٔ) خوشالوو. ستاسو په خدمت کښې کینو. صبا نه به تاسو خو د انبیاؤ درجے ته اورسیږئ. مونږ به هلته رسیدل نه کیږی. نبی ﷺ خاموشه شو او کله چه دا آیت نازل شو نو نبی ﷺ هغه انصاری را اوبلهٔ او ورته یې دا زیرے ورکړه.

یو حدیث کښې راغلی دی چه ډیرو صحابو رضی الله عنهم دا اشکال کړے وو. نبی ﷺ دا آیت هغوی ته واؤروکو.

یو حدیث کښې دی چه صحابه رضی الله عنهم عرض اوکړه. اے د الله رسوله! دا خو ښکاره ده چه نبی ته په اُمتی باندے فضیلت دے او جنت کښې به د هغه درجے اوچتے وی. نو بیا به دیو ځائے کیدو څه طریقه وی؟ نبی ﷺ ارشاد اوفرمایهٔ چه د اوچتو درجو والا به د ښکته درجو والو ځنه راځی هغوی سره به کینی خبرے ترے به ورسره کوی. (درمنثور)

د نبی ﷺ ارشاد دے چه ما سره ډیر محبت کونکی بعضې خلق به داسے وی چه زما نه پس به پیدا کیږی. او د هغوی به دا ارزو وی چه ارمان! د خپل اهل وعیال او د مال په بدله کښې هغوی څهٔ لیدلے وے.

د خالد رضی الله عنه لور عبدة وائی چه زما پلار به کله اوده کیدو د پاره سملاست. نو تر څو چه به یې سترگے نهٔ وے ورغلے او ویده به وو، د نبی ﷺ په یاد او شوق کښې به لگیا وو. او د مهاجرینو او انصارو صحابو نومونه به یې اخستل او یادول. دا به یې ویل چه هم دا زما اُصول او فروع دی (یعنی لوئ او واړهٔ) مراد ترے دین جرړے او ښاخونه دی. او د وی طرف ته زما زړهٔ راښکلے شی. اے الله! ما ته زر مرگ راولے چه د وی خلقو ته لاړ شم. ورسره یو ځائے شم. او دا به

یے وئیل وئیل اُودہ بہ شو.

حضرت ابُوبکرصدیق رضی اللہ عنہ یووارے عرض اُوکړۀ چہ اے داللہ رسُوله! ماته دخپل پلارد مُسلمانیدو په نسبت ستاسو ترۀ ابوطالب د مُسلمانیدو زیاته ارزو ده ځکه چه په دے سره به تاسو ډیرخوشاله شئ.

حضرت عُمر رضی اللہ عنہ یووارے دنبی صلی اللہ علیہ وسلم ترۀ حضرت عباس رضی اللہ عنہ ته عرض اُوکړۀ چه ستاسو د اِسلام راوړلو ماته زیاته خوشالی ده دخپل پلارد مُسلمانیدو نه ځکه چه ستاسو اسلام راوړل نبی صلی اللہ علیہ وسلم ته زیات خوښ دی.

حضرت عُمر رضی اللہ عنہ یوځلے دشپے حفاظتی ګشت کولو چه دیوکورنه دډیوے رڼړا راتله. او دیوے بوډئ اوازیے ترغوږ شو. چه وړیئ یے رېشله. اشعاریے وئیل چه دهغے ترجمه داده. محمد صلی اللہ علیہ وسلم ته د ټولو نیکانو خلقو درود اُورسی او د پاك صاف خلقوله طرفه، څوك چه د الله تعالیٰ ته) خوښ دی. دهغوی درود د اُورسی. بیشکه اے الله رسُوله! چه تاسو دشپے عبادت کوُونکی وئ. او په اخیره شپه کښ ژړاکوُونکی وئ. ارمان! ماته دامعلومه شوے چه څهٔ او څما محبوب په کله یوځائی کیدے شو، که نه. ځکه چه مرګ په مختلفوحالاتو کښ راځی نو دا معلومه چه ماته به مرګ په کوم حالت کښ راځی. او نبی صلی اللہ علیہ وسلم سره به دمرګ نه پس یوځائی کیدل اُوشی او که نه. حضرت عُمر رضی اللہ عنہ چه دا اشعار واوریدل هغه هم په ژړا شو.

دحضرت بلال رضی اللہ عنہ قصه مشهوره ده. کله چه دهغهٔ د وفات کیدلو وخت شو، نو دهغهٔ بی بی په ځدائی غمژنه شوه. وے ویل چه هائے افسوس! دهٔ ورته اُووے، سبحان الله، څومره دمزے خبره ده چه صبا ته به محمد صلی اللہ علیہ وسلم زیارت کوُو. او دهغهٔ صحابو سره به ملاقات کوُو. دحضرت زید رضی اللہ عنہ قِصه پنځم باب نهم نمبرباندے تیره شوه. کله چه هغه په پهانسی خیژولے شو. نو ابوسفیان ترے تپوس اُوکړۀ چه ایا ستا دا خوښه ده چه مونږ تا پریږدُو او ستا په ځائی (الله مکره) حضور سره دامعامله اُوکړو؛ نو زید رضی اللہ عنہ اُووے چه په الله م د قسم وی څهٔ داهم نهٔ شم برداشت کولے چه

نبی ﷺ د په خپل کور کښې تشریف فرما دی، او هلته د دهغوی از غے مات شی او خهٔ د په خپل کور کښې په آرام سره أوسم. ابوسُفیان أو وے چه ما هیڅله خوک چا سره دومره محبت کونکی نه دی لیدلی لکه څومره چه د محمد ﷺ ملګری ده سره محبت کوی.

**تنبیه (خبردارے)** عالمانو د نبی اکرم ﷺ سره د محبت مختلفے نښے لیکلی دی. قاضی عیاض رحمه الله فرمایلی دی خوک چه څهٔ څیز خوښوی هغه په نورو باندے وړاندے ورکوی. بس دا معنیٰ د محبت ده. که داسے نه وی نو محبت نهٔ دے صرف دعویٰ د محبت ده. پس نبی اکرم ﷺ سره د محبت دلښونه د تولونه ضروری لویه نښه دا ده چه د دوی اقتدا اوکړی. او د دوی طریقے اختیار ے کړی. او د دوی د اقوالو افعالو تابعداری اوکړی. او د دوی احکامات په ځائی راوړی. او دوی چه د کومو څیزونو نه منع کړے ده د هغه نه پرهیز اوکړی. خوشالی کښې، غم کښې، تنګسیا کښې، فراخی کښې د دوی په طریقو باندے تلل کوی. قرآن پاک کښې ارشاد دے. قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِیْ یُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَیَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ۔ (ترجمه) تاسو دے خلقوته اووایئ که چرے تاسو الله تعالیٰ سره محبت ساتئ نو تاسو زما تابعداری اوکړئ. الله تعالیٰ به تاسو سره محبت اوکړی. او ستاسو ګناهونه به معاف کړی. او الله تعالیٰ لوئی معاف کونکے دے لوئی رحم کونکے دے.

# خاتمه

## د صحابو کرامو رضی الله عنهم سره معامله او د دوی مختصر فضیلتونه

د صحابو کرامو رضی الله عنهم دا څو قصے د نمونے په طور لیکلے شوی دی. ګنی د دوی حالات لوئی غټو کتابونو کښې هم پوره کیدے نشی. اردو کښې هم کتابونه او رسالے د دے مضمون موجود دی. څو میاشتے اوشوے

د ا رساله مې شروع کړے وه. بیا د مدرسے د مشغولتیا او د وَختی بند شونو په وجه رَستو شوه. د ا وخت په دے پاڼړو یے ختمومه. چه څومره لیکلے شوی دا قابلے د فائدے اَخستو شي. اخیر کښې یو ضروری خبره بانده خبرداری ډیر زیات ضروری دے. هغه دا چه ددے آزادئ په زمانه کښې یو خواته چه مونږ مُسلمانانو کښې د دین نورو ډیرو کارونو کښې کمے او دا آزادئ رنګ د بل خوا ته د حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین په حق پیژندلو او د دوی په اَدب او احترام کښې هم د حد نه زیات ته کمزوری ده. بلکه د دے نه ورتیر بعضې د دین نه بے پرواه خلق خو د دوی په شان کښې ګستاخی کوی حال دا چه صحابه کرام رضی الله عنهم د دین بُنیاد ونه دی. د دین اول خورَوُنکی دی. د دوی حقونه مونږ خلق تر مرګه پورے هم نهٔ شُو پوره کولے. الله جل شانه د په خپل فضل په دے پاک نفسونو په لکهونو رحمتونه نازل کړی چه دوی د نبی کرم صلی الله علیه وسلم نه دین حاصل کړو او مونږ خلقو ته یے رااورَسوو ځکه د دے خاتمه کښې د قاضی عِیاض رحمة الله علیه د "شِفا" نومے کتاب نه دیو فصل مختصر ترجمه چه د دے مُناسب ده لیکم او دے بانده د ا رساله ختمَوُم.

هغه فرمائی چه د نبی کرم صلی الله علیه وسلم اِعزاز او اکرام کښې داخبره داخله ده چه د نبی کرم صلی الله علیه وسلم د صحابو رضی الله عنهم اعزاز او اکرام کول او د دوی حق پیژندل او د دوی تابعداری کول او د دوی تعریف کول او د دوی د پاره اِستغفار او دُعا د مغفرت کول او د دوی په خپل مینځ کښې اختلاف بانده خلهٔ نهٔ پرانستل یعنی خاموش اوسیدل او د مؤرخینو، د شِیعه ګانو، د بِدْ عتیانو او د جاهل رَاوِیانو د هغے روایتونو نه مخ اړول کوم چه د دوی حضراتو په شان کښې نقصان پیدا کوی. او د دے قِسمه څهٔ روایت که چرے واورید لے شی نو د هغے څهٔ ښهٔ غوندے تَاوِیل اُوکړئ. او څهٔ ښهٔ مَحمَل (ځائی) ورله تجویز کړئ چه دوی د دے حقدار دی او د ا حضرات په بدئ مهٔ یادَوئ بلکه د دوی نیکئ، ښهٔ صفتونه او د دوی فضائل بیانوئ. او د عیب د خبرونه یے خاموشه اُوسئ ځکه چه د نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد دے چه کله ځما د صحابو بَدْ ذکر وی نو خاموشی اختیار کړوئ.

(صحابو رضی اللہ عنہم) فضائل قرآن شریف او حدیثونو کښې ډیر زیات راغلی دی
دالله جل شانهٗ ارشاد دے: مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَى
الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا
سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ۚ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ ۚۖ
وَمَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ ۚ كَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْــَٔهٗ فَاٰزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى
عَلٰى سُوْقِهٖ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيْظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ ۚ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ
عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ۝ (سورة فتح ع ۴) (ترجمه) "محمد
(صلی الله علیه وسلم) دالله تعالیٰ رسول دے او کوم خلق چه ده سره دی، دوی دکافرانو په
مقابله کښې سخت دی او خپل مینځ کښې مهربانه. او اے مخاطبه! ته به
دوی اُوویني چه کله رکوع کوونکی دی کله سجده کوونکی دی او دالله دفضل او د
رضامندۍ په تلاش کښې لګیا اوسی. ددوی دعبدیت نښے په وجه دتاثیر د
دوی دسجدو، ددوی په مخونو ښکاره دی. دا ددوی صفتونه تورات کښې دی
او انجیل کښې دی. ددوی دا مثال ذکر کړے دے لکه څنګه فصل چه هغے اول
خپله تیغه راوُویستله. بیا هغه خپله تیغه یے قوی کړه (یعنی هغه فصل لوئ
شو) بیا هغه فصل نور لوئ شو. بیا په خپله تنه باندے اُودریده، چه
زمیندارانو ته ښه معلومه شو. (دا رنګے صحابو کښې اول کمزورتیا وه، بیا یے
روزانه قوت زیاتیده، او الله تعالیٰ صحابو ته دا قوت ځکه ورکړه) چه په دوی
سره کافران په حسد کښې اُوسوزی. او اخرت کښې الله تعالیٰ دهغے کسانو سره
چا چه ایمان راوړه او نیک کارونه کوی، دمغفرت او د اجر عظیم وعده کړے
ده." دا ترجمه په دے حالت کښې ده چه تورات باندے ایت وی نو د ایت
په فرق سره به ترجمه کښې هم فرق راشی، کوم چه دتفسیرونو نه معلومیږی.
هم دے سورة کښې دویم ځائے ارشاد دے. لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ
اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ
عَلَيْهِمْ وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا ۝ وَّمَغَانِمَ كَثِيْرَةً يَّاْخُذُوْنَهَا ۚ وَكَانَ اللّٰهُ
عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝ (ترجمه) "په تحقیق الله تعالیٰ هغه مسلمانانو ته کوم چه تاسو

سره سفر کښې وُو، خوشاله شو، کله چه دے خلقو تاسو نه دګونے دالله سره بیعت کوَلو او ددوی په زړونو کوم څهٔ (اخلاص او قصد) وو۔ الله تعالیٰ ته هغه هم معلوم وو۔ او الله تعالیٰ ددوی په زړونو کښې اطمینان پیدا کړے وو او دوی ته یې یو سمدستی فتح هم ورکړه (مُراد درے نه فتحِ خَیبر ده کوم چه درے نزدے وَه) او الله تعالیٰ لوئ زبردست دحِکمت خاوند دے۔" دا هغه بیعت دے کوم ته چه بَیْعَةُ الشَّجَرَه ویلے شی۔ د آخری باب څلورم نمبر قصه کښې درے ذکر تیر شوے دے۔ د صحابو په باره کښې یو بل ارشادِ الٰهی دے.

رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا (سورة احزاب۔ ع ۱۳) (ترجمه) دِ مُؤمنانو کښې داسے خلق هَم شته چه دوی دکومے خبرے الله تعالیٰ سره لوظ کړے وو هغې کښې رِښتیې شو۔ بیا دوی کښې بعضِ خو داسے دی چه خپل نذر (یعنی منځته) یې پوره کړه (یعنی شهیدان شو) او بعضِ دوی کښې درے شوق لرونکی او انتظار کښې دی (ترا اوسه شهیدان شوی نهٔ دی) او خپلو ارادو کښې یې هیڅ بدلون اونهٔ کړهٔ۔" یو بل ارشادِ الٰهی دے۔ وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ تَحْتَهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا اَبَدًا ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ (سورة توبه۔ ع ۱۳) (ترجمه)" او کوم مهاجرین او انصار یې راوړلو کښې د ټول اُمت نه مخکښې دی او څومره خلق چه په اخلاص سره د دوی تابعدار دی۔ الله تعالیٰ ددوی ټولو نه راضی شو، او دوی ټول الله تعالیٰ نه راضی شول۔ او الله تعالیٰ ددوی دپاره داسے باغونه تیار کړی دی چه د هغې لاندے نهرونه بهیږی، په هغې کښې به دوی همیشه همیشه اوسی۔ او دا لویه کامیابی ده۔" دے ایتونو کښې الله جل شانهٔ د صحابو تعریف او ددوی نه د راضی کیدو اظهار کړے دے۔ د آرنګے حدیثونو کښې یې هم ډیر زیات فضائل راغلی دی۔ د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه زما نه پس د ابوبکرؓ او د عمرؓ اِقتدا کوئ۔ یو حدیث کښې ارشاد دے چه زما صحابه د ستورو په

حیاتِ صحابہؓ ٢٦٩ خاتمه

شامل دی دچا چه تاسو تابعداری اوکړئ هدایت به بیا مومئ. محققینو ته په دے حدیث کښې کلام دے اوهم په دے وجه قاضی عیاض رحمة الله علیه یا دل ے دے په ذکر کولو اعتراض دے. خو ملا علی قاری رحمة الله علیه لیکلی دی چه ممکنه ده چه د تعدد طرق په وجه دغه په نزد قابل اعتبار وی. یا فضائلو کښې کیدو په وجه سره یے ذکر کړے وی. ( ولے چه په فضائلو کښې د معمولی ضعف روایتونه نقل کولے شی. )

حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه د نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه زما د صحابو مثال طعام کښې د مالګے په شان دے چه طعام بے د مالګے بنه کیدے نشی.

د نبی صلی الله علیه وسلم داهم ارشاد دے چه الله تعالیٰ نه زما د صحابو په باره کښې ویریږئ دوی د ملامتیا نښه مه جوړوئ. څوک چه دوی سره محبت ساتی، ما سره د محبت په وجه ورسره محبت ساتی. او چه څوک دوی سره بغض (کینه) ساتی هغوی زما د بغض په وجه ورسره بغض ساتی. چا چه دوی ته تکلیف ورکړو هغه ما ته تکلیف راکړو. او چا چه ما ته تکلیف راکړو هغه الله تعالیٰ ته تکلیف ورکړو. او څوک چه الله تعالیٰ ته تکلیف ورکوی. نزدے ده چه (د الله تعالیٰ) په ګرفت کښې راشی.

د نبی صلی الله علیه وسلم داهم ارشاد دے چه زما صحابو ته کنځل مه کوئ. که چرے تاسو کښې څوک د احُد د غر برابر سره زر خرچ کړی نو هغه د ثواب په اعتبار سره د صحابو یو مُد یا نیم مُد برابر هم نشی کیدلے. او د نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څوک صحابو ته کنځل کوی په هغه د الله تعالیٰ لعنت او د فرښتو لعنت او د ټولو بنیا دمو لعنت وی. نه ئے فرض قبول دی نه نفل.

د نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه الله تعالیٰ د انبیاء کرامو علیهم السلام نه علاوه د ټول مخلوق نه زما صحابه راخپل کړی دی او د دوی کښې یے څلور غوره کړی دی. ابوبکر، عمر، عثمان، علی رضی الله عنهم. دوی یے زما د ټولو صحابو نه بهتر کرځولی دی.

ابو سختیانی رحمة الله علیه فرمائی چه چا ابوبکر رضی الله عنه سره محبت اوکړو هغه دین قیام کړو. او چا چه عمر رضی الله عنه سره محبت اوکړو هغه د دین واضحه لار



٢٦٩

اُوکړهٔ هغه دالله تعالیٰ په رضا بیامُوندهٔ. او چا چه عثمان رضی الله عنه سره محبت اُوکړهٔ هغه د دین مضبوطه سره روښانه شو. او چا چه علی رضی الله عنه سره محبت اُوکړهٔ هغه د نفاق نه بری دے او څواړه رسیٔ اُونیوله. څوك چه د صحابو تعریف کوی هغه د نفاق نه بری دے او څوك چه د صحابو بے اَدبی کوی هغه بِدعَتِی، مُنافِق، د سُنتو مخالِف دے. ماته ویره ده چه د هغهٔ هیڅ عمل قبول نشی، ترڅو چه دے ټولو صحابو سره محبت اُونهٔ ساتی او د دوی له خوا یے زړهٔ صَفا نهٔ شی.

یو حدیث کښ د نبی علیه السلام ارشاد دے چه اے خلقو! زهٔ د اَبُوبکر رض نه خوشاله یم. تاسو خلق د هغهٔ مرتبه اُوپیژنئ. زهٔ د عُمر رض نه، عُثمان رض نه، علی رض نه، طلحهٔ رض نه، زُبیر رض نه، سعد رض نه، سعید رض نه، عبدالرحمٰن بن عوف رض نه، اَبُوعُبَیده رض نه خوشاله یم. تاسو خلق د دوی مرتبے اُوپیژنئ. اے خلقو! د بدر په جنګ کښ چه څوك شریك وو، او د حُدیبیه په جنګ کښ چه څوك شریك وو، الله جل شانهٔ د هغوی بخښنه کړے ده. تاسو زما د صحابو باره کښ زما لحاظ کوئ او د هغه خلقو باره کښ چه د چا لوګړه زما نکاح کښ دی یا زما لوټړه د هغوی په نکاح کښ دی. هسے نه چه دا خلق قیامت کښ تاسو نه د څهٔ قسمه د ظُلم مُطالبه اُوکړی چه هغه به مُعاف کولے نشی.

یو ځائے ارشاد دے چه زما صحابه او زما زوما نو صحابه رضی الله عنهم کښ زما لحاظ کوئ. څوك چه د دوی باره کښ زما لحاظ ساتی، الله جل شانهٔ به دُنیا او آخرت کښ د هغوی حفاظت اُوکړی. او څوك چه د دوی باره کښ زما لحاظ اُونهٔ ساتی الله تعالیٰ د هغوی نه وِیزاره دے. او د چا نه چه الله تعالیٰ ویزاره شی، کیدے شی چه په څهٔ ګرفت کښ را شی. د نبی علیه السلام نه دا هم نقل کړے شوے دے چه څوك زما د صحابو باره کښ زما لحاظ اُوساتی، زهٔ به د قیامت په ورځ د هغوی حفاظت کوونکے یم.

یو ځائے ارشاد دے چه څوك زما د صحابو باره کښ زما لحاظ ساتی هغوی به ماله حوضِ کوثر ته را اُورسی. او څوك چه د دوی باره کښ زما لحاظ اُونهٔ ساتی هغوی به ماله حوضِ کوثر پورے را اُونهٔ رسیږی، او ما به صِرف

ولړے نه وینی۔

سهل بن عبدالله رحمة الله علیه فرمائی چه څوك د نبی صلی الله علیه وسلم د صحابو تعظیم قدراوعزت نه کوی، هغوی اُدوپه نبی صلی الله علیه وسلم ایمان راوړے نه دے۔

الله جل شانهٔ دِ په خپلے مهربانئ اوفضل د خپل نیکولونه اود خپل محبوب رسول صلی الله علیه وسلم د مینه والو او خپل دوستانو، څما محسنانو، څما ملاقاتیانو څما مشرانو، شاګردانو او ټولو مؤمنانو لره محفوظ اوساتی۔ او دد ے حضراتو صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین د محبت نه څمونږ زړونه ډك کړی۔ اٰمین برحمتك یا ارحم الراحمین ۔ وَاٰخِرُ دَعْوٰنَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ الْاَتَمَّانِ الْاَکْمَلَانِ عَلٰی سَیِّدِ الْمُرْسَلِیْنَ وَعَلٰی اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهِ الطَّیِّبِیْنَ الطَّاهِرِیْنَ وَعَلٰی اَتْبَاعِهٖ وَاَتْبَاعِهِمْ حَمَلَةِ الدِّیْنِ الْمَتِیْنِ ۔

تمت

مؤلف

زکریا عُفِیَ عَنْهُ کاندهلوی

مقیم مدرسه مظاهر علوم سهارنپور

۱۲ شوال المکرم [illegible]ھ دوشنبه

یعنی دولسمه دورکوتی اختر میاشت په ورځ د ګل

مُترجم

میاں محمد شفیق غفرلهٗ

دارالشفاء چارسده محله میر

تاریخ د ختمیدو ونظر ثانی

۲۲ ذی الحجه [illegible]ھ موافق [illegible] مئی [illegible]ء په ورځ د ګل



خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ

(ترجمه)

په تاسو کښې د ټولونه بهترین هغه څوک دے چه قرآن زده کړی او نورو ته ئے ښائی (بخاری).

څلویښت حدیثه متعلقه د

# فَضَائِلِ قُرآنُ

دے کښې ئے

اول د قرآنِ پاک په فضائلو کښې څلویښت حدیثه سره د ترجمے او شرح لیکلی دی. دے نه پس ئے اوۀ حدیثه د قرآنِ پاک په جُدا جُدا حکمونو کښې ذکر کړی دی. تتمه کښې د ټولو مضامینو بانَدِ مختصر خبردارے کړے دے. اخیر کښې یو بل چهل حدیث سره د ترجمے یے پرے زیاتے کړے دے چه سره د مختصروالی ډیر جامع دے.

جمع کوونکے

حضرت مولٰنا الحافظ الحاج **محمد زکریا** نور الله مرقده شیخ الحدیث مدرسه مظاهر العلوم سهارنپور

ترجمه کوونکے

میاں **محمد شفیق** غفرلهٗ (چارسده)

خوروونکے

کتب خانه فیضی لاهور پاکستان

# فهرست دَ مضامینو دَ فضائلِ قرآن پښتو

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَ الْاِنْسَانَ وَعَلَّمَهُ الْبَيَانَ وَاَنْزَلَ لَهُ الْقُرْاٰنَ وَجَعَلَهُ مَوْعِظَةً وَّشِفَآءً وَّهُدًى وَّرَحْمَةً لِّذَوِی الْاِيْمَانِ لَارَيْبَ فِيْهِ وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهُ عِوَجًا وَّاَنْزَلَهُ قَيِّمًا حُجَّةً نُوْرًا لِّذَوِی الْاِيْقَانِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ الْاَتَمَّانِ الْاَكْمَلَانِ عَلٰى خَيْرِ الْخَلَائِقِ مِنَ الْاِنْسِ وَالْجَانِّ الَّذِیْ نَوَّرَ الْقَلْبَ وَالْقُبُوْرَ نُوْرُهُ وَرَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ظُهُوْرُهُ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهِ الَّذِيْنَ هُمْ نُجُوْمُ الْهِدَايَةِ وَنَاشِرُوا الْفُرْقَانِ وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهُمْ بِالْاِيْمَانِ۔

وَبَعْدُ فَيَقُوْلُ الْمُفْتَقِرُ اِلٰى رَحْمَةِ رَبِّهِ الْجَلِيْلِ عَبْدُهُ الْمَدْعُوُّ بِزَكَرِيَّا بْنِ يَحْيٰى بْنِ اِسْمٰعِيْلَ هٰذِهِ الْحُجَالَةُ اَرْبَعُوْنَةٌ فِیْ فَضَائِلِ الْقُرْاٰنِ اَللّٰهُمَّ مُمْتَثِلًا لِاَمْرِ مَنْ اِشَارَتُهُ حُكْمٌ وَّطَاعَتُهُ غُنْمٌ۔



تول تعریفونه هغه پاک ذات دپاره دی چا چه انسان پیدا کړو او هغهٔ ته یې بیان اوخودلو، او هغهٔ دپاره یې قرآنِ پاک نازل کړو چه د ایماندارو دپاره یې نصیحت، شِفاء، هدایت او رحمت اوګرزولو ـ چه په هغې کښ نه څه شک شته او نهٔ پکښ څهٔ قِسمه کږلیچ بلکه هغه بالکل مُستقیم (نیغ) دے او یقین والو دپاره دلیل او نُور دے ـ او کامل مکمل دَرُود او سلام دِ په هغې بهترینِ دمخلوقاتو وی چه د هغهٔ نُور په ژوند الله کښ زړونه او دَمرګ نه پس قبرونه روښانه کړل ـ او د هغهٔ ظاهریدل د ټول عالَم دپاره رحمت دے ـ او نبی علیه الصلوٰة والسلام په اولاد او اصحابو چه د هدایت ستوری دی او د قرآن شریف خورَوُنکی دی ـ او په هغې مومنانو باندې کوم چه د ایمان سره د دوی پسے تلونکی دی۔

د حمد و ثنا او درُود نه پس د الله تعالیٰ د رحمت محتاج بنده زکریا بن یحیٰی بن اسمٰعیل عرض کوی چه دا یو تلوار یې لیکلے شوے یو څو پاڼې فضائلِ قرآن کښ څلویښت حدیثه دی. دا ما د داسے بزرګانو د حکم په پوره کولو کښ جمع کړی دی چه د چا اِشاره هُم حکم دے او خبره منل یې غنیمت دے۔

د الله جلّ جلالهٗ د هغې خاصو انعاماتو نه کوم چه مَدرسه عالیه مظاهرِ علوم

سهارنپور سره همیشه مخصوص پاتې شوې دی د مدرسې کلیزه جلسه ده چه هر کال د مدرسې د مختصر حالاتو اورولو د پاره کیږي. د مدرسې په دې جلسه کښې د مُعزّزینو، واعظینو او د هندوستان د مشهورو خلقو د جمع کولو د ومره اهتمام (او فکر) نه شي کیدے، خو سره د دې د الله پاک د ولیانو روښانه زړونو والو په کښاني کبار اوسیدلو بزرګانو د جمع کولو محنت او کوشش کیږي. هغه زمانه اګرچه لرې وتې ده چه حُجّة الاسلام حضرت مولانا محمّد قاسم صاحب نانوتوی رحمة الله علیه او قطبُ الارشاد حضرت مولانا رشید احمد صاحب ګنګوهي الله تعالی دې په کور نور کړي تشریف راوړلو به د جلسې د حاضرینو زړونه روښانه کول، خو هغه منظر او تر اوسه دسترګونه زیات لرې شوے نه دو چه د دغې مجدّدِ دینِ اسلام او د هدایت د نمرونو جانشین حضرت شیخ الهند رحمة الله علیه او حضرت شاه عبد الرحیم صاحب رحمة الله علیه، حضرت مولانا خلیل احمد صاحب رحمة الله علیه او حضرت مولانا اشرف علی صاحب رحمة الله علیه به د مدرسې سالانه جلسه کښې راجمع شول او د خلقو د مړو زړونو د پاره به یې د ژوند او د نورانیت چینې جاري کولې او د عشق تږي به یې مړول.

په موجوده دور کښې د مدرسې جلسه د هغه سپوږمو د هدایت نه ګویا محرومه شوه خو د هغوی ربښتوني جانشین د جلسې د حاضرینو اوس هم د خپلو فیوضاتو او برکتونو نه د خلقو جولئی ډکوي. کوم کسان چه هر کال په جلسه کښې حاضرېږي هغوی دے انصافي ګواهان دي. د سترګو خاوندان برکتونه وینې خو خومره په شانې نه لید دنګی هم دومره ضرور محسوسوي چه څه خبره ضرور شته.

د مدرسې په کلیزه جلسه کښې که چرې څوک د بناوټ او زور دارو تقریرونو طلبګار راشي نو شاید چه هغه به دومره خوشحاله لاړ نه شي لکه څومره چه به د زړه د دارو طلبګار کامیابه او فیض یابه شي. فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ وَالْمِنَّةُ.

په دې سلسله کښې د روان کال د اوولسم ذیقعدلا ۱۳۳۸ھ په جلسه کښې حضرت الشاه حافظ محمّد یٰسین صاحب نګینوی تشریف راوړلو چه په ما ګنهګار ډیره د شفقت او د مهربانئ باران اوورولو، د هغې د شکریې ادا کولو نه عاجزیم. او بیا چه دا معلومه شوه چه دوی د حضرت ګنګوهي رحمة الله علیه د خلفاؤ نه

دی نو بیا خو دوی د اعلیٰ صفاتو، ځان له والی، پاکوالی د انوارِاتو او دبرکتونو مَظهرو غیره دِ ذکر ضرورت نه پاتے کیږی۔ د جلبے فارغیدونه پس چه دوی خپل کورته تشریف یوړو، نوماته یے په یو خط کښ د دے حکم اوکړو چه د فضائلِ قرآن باره کښ څلویښت حدیثه جمع کړم او د هغے ترجمه د دوی په خدمت کښ پیش کړم۔ ادهم دا ګڼه چرے د دوی د حکمونه مخ وَاړَوُ نو دوی به ځما د پیرپه ځائ او د پلارپه شان د ترهٔ صاحب مولٰنا الحافظ محمد الیاس رحمۃ اللہ علیہ په ذریعه د اخپل حکم نور هم مضبوط کړی۔ او په هر حالت به د دی ځما بے کاره نه داکار خامخا اخلی۔ دا د فخر خط اتفاقاً په داسے حالت کښ را ورسیدهٔ چه ځهٔ په سفر کښ وَم۔ او ځما ترهٔ صاحب هم په هغه ځائ کښ موجود وو، نو هغوی ځما د واپسئ په وخت دا خط په خپل تاکیدی حکم سره ماته حواله کړهٔ چه د دے نه پس ماته نه څهٔ د عذر ځائ پاتے شو او نه د خپل نا اهلیت بیانولو موقع پاتے شوه۔ ځما د پاره د شرحِ مُوطا امامِ مالک مشغولتیا هم یو قوی عذر وو خو د دے حضراتو د ارشاداتو اهمیّت په وجه مِ هغه یو څو ورځے ایساره کړه۔ او چه څهٔ حاضری (یعنی فضائلِ قرآن) دا د هغوی په خدمت کښ پیش کوُم او د هغے غلطونه چه د هغے کیدل ځما نا قابله د پاره لازم دی، د معافئ طلبګار یم۔

رَجَاۤءَ الْحَشْرِ فِیْ سِلْكِ مَنْ قَالَ فِیْهِمُ النَّبِیُّ صلی اللہ علیہ وسلم مَنْ حَفِظَ عَلٰی اُمَّتِیْ اَرْبَعِیْنَ حَدِیْثًا فِیْ اَمْرِ دِیْنِهَا بَعَثَهُ اللّٰهُ فَقِیْهًا وَّكُنْتُ لَهٗ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ شَافِعًا وَّشَهِیْدًا قَالَ الْعَلْقَمِیُّ اَلْحِفْظُ ضَبْطُ الشَّیْءِ وَمَنْعُهٗ مِنَ الضِّیَاعِ فَتَارَةً یَكُوْنُ حِفْظُ الْعِلْمِ بِالْقَلْبِ وَاِنْ لَّمْ یَكْتُبْ وَتَارَةً فِی الْكُتُبِ وَاِنْ لَّمْ یَحْفَظْهُ بِقَلْبِهٖ فَلَوْ

هغے خلقو سره د حشر کیدلو په اُمید چه د چا په باره کښ د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد مبارک دے چه څوک ځما د اُمت د پاره د هغوی په دینی کارونو کښ څلویښت حدیثه محفوظ کړی الله جل شانهٗ به هغه په قیامت کښ عالِم پاسوی او ځهٔ به د هغهٔ د پاره سفارشی او ګواه جوړیږم۔ علقمی رحمۃ اللہ علیہ وائی چه محفوظ کول د یو شی مُنضبط کول او ضائع کیدلو نه د حفاظت نوم دے۔ که بغیر لیکلو یے زبانی یاد کړی یا یے لیکلے محفوظ کړی، اګر که ورته یاد نهٔ وی۔ پس که چرے

حفظه في كتاب ثم نقل إلى
الناس بطرق وعن الحديث
وقال المناوي قوله من حفظ
على أمتي أي نقل إليهم بطريق
التخريج والإسناد وقيل معنى
حفظها أن ينقلها إلى المسلمين
وإن لم يحفظها ولا عرف معناها
وقوله أربعين حديثا صحاحا
أو حسانا قيل أو ضعافا يعمل
بها في الفضائل اهـ. فلله
در الإسلام ما أيسره ولله در
أهله ما أجود ما استنبطوا
رزقني الله تعالى وإياكم كمال
الإسلام ومما لا بد من التنبيه
عليه أني اعتمدت في التخريج
على المشكوة وتنقيحه وشرحه
المرقاة وشرح الإحياء للسيد
محمد المرتضى والترغيب
للمنذري وما عزوت إليها لكثرة
الأخذ عنها وما أخذت عن
غيرها عزوته إلى مأخذه
وينبغي للقاري مراعاة
آداب التلاوة عند
القراءة.

خوندیے کتاب کښې اولیکی نوروته یے اورسوی
هغه به هُم دحدیث په زیری کښې داخل شی.
او مناوی رحمة الله علیه وائی چه څما په اُمت باندے
د محفوظ کولو نه مراد هغوی طرف ته نقل کول
دی د سند په حوالے سره. او بعضو ویلی دی چه
مسلمانانو ته یے رسول دی اګرچه هغه ورته
زبانی یاد نه وی او نه ورته د هغې معنیٰ معلومه
وی. د دغه شان څلوښت حدیثه هُم عام دی چه
قول صحیح وی یا حسن یا د معمولی درجې ضعیف
چه په هغې په فضائلو کښې عمل جائز دی. الله اکبر.
په اسلام کښې هُم څنګه اسانئی دی او د تعجب
خبره ده چه عالمانو هُم څومره باریکئی رااېستے
دی. الله جل شانهٔ د کمال اسلام ما ته هُم نصیب
کړی او تاسو ته هُم. په دے ځائی یو ضروری
خبره باندے خبرداره کول هُم ضروری دی هغه
دا چه ما د حدیثونو په حواله ورکولو کښې مشکوٰة،
تنقیح الرواة، مرقاة او د احیاء العلوم شرحه او
د منذری په ترغیب باور کړے دے. او ډیرو د
دوی نه اخستلی دی. په دے وجه مې د دوی د
حوالے ضرورت اونه ګڼړلو. البته د دے نه علاوه
که بل ځائی نه مې اخستلی دی نو د هغې حواله مې
نقل کړے ده. بله دا چه قاری د پاره د قرآن
د تلاوت په وخت کښې د دے د آدابو لحاظ هُم
ضروری دے.

د مقصود نه وړاندے مناسب معلومیږی چه د قرآن شریف د لوستلو

خهٔ اداب هم اُو لیکلے شی۔ څکه چه وائی۔ ع

بے ادب محروم گشت از فضلِ رب ؎

بے اَدبه د رب د فضل نه محرومه پاتے شو۔

په مختصر طور دا د ابو خلاصه داده چه قرآن شریف د معبود کلام دے او د محبوب او د مطلوب فرمایلی شوی الفاظ دی (یعنی دالله تعالیٰ) د کوموکسانو چه د محبت سره څهٔ واسطه راغلے وی هغوی پوهیږی چه د معشوق د خط او د محبوب د تقریر او د تحریر څا عاشق په نزد څومره قدر وی۔ هغے سره چه د مینے محبت او لیونتوب کومه معامله کیږی اوکول پکار دی هغه د قواعد او ضوابطونه ډیره اُوچته ده۔

محبت تجھ کو آداب محبت خود سکھا دے گی۔

محبت به تا ته په خپله د محبت اداب اُوښائی ؎

دغه وخت که چرے د حقیقی بنائست او نهٔ ختمید ونکو نعمتونو خیال وی نو محبت به موجونه اُووهی۔ سره د دے دا قرآن شریف د اَحْکَمُ الْحَاکِمِیْن کلام دے، د بادشاهانو د بادشاه فرمان دے۔ د هغے رُعب دار لوئی والا بادشاه قانون دے چه د هغے برابری نهٔ څا لوئی نه لوئی نه شوے ده او نهٔ کیدے شی۔ د کومو خلقو چه د بادشاهانو دربار سره څهٔ واسطه پیښه شوے ده هغوی د تجربے نه او څا ته چه څهٔ واسطه نهٔ ده پیښه شوے هغوی اندازے نه معلومولے شی چه د بادشاه د کلام هیبت او رُعب په زړونو څومره کیدے شی۔ قرآن شریف د محبوب او د بادشاهانو د بادشاه کلام دے۔ په دے وجه د دواړو ادابو دهٔ سره یو ځائے کول ضروری دی۔

حضرت عکرمه رضی الله عنه چه به کله قرآن شریف د تلاوت د پاره پرانستلو نو بے هوشه به پریوتلو، او په ژبه به ئے دا وینا جاری شوه هٰذَا كَلَامُ رَبِّيْ، هٰذَا كَلَامُ رَبِّيْ۔ (دا زما د رب کلام دے، دا زما د رب کلام دے) دا د هغے ادابو اجمال او د هغے تفصیلاتو اختصار دے کوم چه بزرګانو د تلاوت په ادابو کښ لیکلی دی چه د هغے څهٔ قدرے وضاحت هم د کتونکو خدمت کښ پیش کوم۔ د هغے خلاصه هم داده چه بنده نوکر نهٔ، چاکر نهٔ بلکه بنده جوړشی او د خپل آقا مالک احسان کونکی او انعام کونکی کلام دِ لولی۔ صوفیانو لیکلی دی چه څوک د تلاوت د ادابو نه

چې ځان عاجزه ګڼړي نو هغه په قُرب یعنی الله تعالیٰ ته د نزدے کیدو په مرتبو کښ ترقي کوي او چه څوک ځان ته د محبوبیت او دکبرلوئیئ په نظر ګوري هغه به د ترقئ نه لرے کیږي.

## اداب

دمسواک او اودس کولو نه پس ځان له ویو طرف ته انتهائي د زړه نرمئ او عاجزئ سره مخ په قبله کیني او ډیر زیات د زړه توجه او ډیرے سره په داسے خوند او مزه کوم چه د هغے وخت مُناسب وي په داسے شان تلاوت کوي لکه چه ګویا په خپله الله جل شانهٔ ته کلام پاک اوروي. که چرے په معنی پوهیږي نو په غور و فکر سره دوعد او د رحمت په ایتونو دَ مغفرت او دَ رحمت دُعا اُغواړي. او د وعید او دعذاب په ایتونو دِ دَ الله تعالیٰ نه پناه غواړي چه دهغه نه ماسوا هیڅوک کارجوړونکے نشته. او دَ الله تعالیٰ دعیبونو نه دپاکوالي په ایتونو دِ سبحان الله وائي او که چرے په تلاوت کښ ورله پخپله ژړا نه ورځي نو په زور دځان له د ژړا راوستلو کوشش اوکړي.

وَلَذَّ عَالَاتِ الْغَرَامِ لِمُغْرَمٍ ❖ شَكْوَى الْهَوٰى بِالْمَدْمَعِ الْمُهَرَاقِ

ترجمه. دیو عاشق دپاره د ټولو نه زیات د مزے حالت دادے چه محبوب ته ګیلے کوي په داسے شان چه دسترګو نه یے اوښکے بهیږي.

او که چرے د قرآن شریف یادول یے مقصود نهٔ وي نو په لوستلو کښ د تلوار نهٔ کوي. قرآن شریف دِ په رَحل یا بالښت یا په اوچت ځائ کیږدي او د تلاوت په مینځ کښ د چاسره خبرے نهٔ کوي. که چرے څهٔ ضرورت پیښ شي نو قرآن شریف دِ بند کړي او خبرے دِ اوکړي او بیا دِ دهغے نه پس اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ اُووائي او دوباره دے شروع کړي. که په ګنړه کښ خلق په خپل خپل کاروبار کښ مشغول وي نو ورو لوستل بهتر دي، ګنې په زوره سره په اوچت اواز لوستل ډیر بهتر دي. علماء کرامو د تلاوت شپږ ظاهري اداب او شپږ باطني اداب فرمائیلي دي.

## ظاهري اداب

اول په اودسه کښ دِ ډیر په عزت او ادب مخ په قبله کیني. دویم په لوستلو کښ دِ تلوار نهٔ کوي په ترتیل او تجوید یعنی په ګلاړے دحرفونو دخپلو مخارجونه د ادا کولو خیال ساتلو سره دِ لولي. دریم دِ ژړا

کوشش دِکوی، اگرچه په تکلّف دی یعنی ځان دِ ژړه غوندے کړی . شلورم
درحمت د اَیتونو او دعذاب د اَیتونو حق دِ اداکوی لکه چه مخکښ تیرشو . پنځم
که چرے دَریا شک شُبه وی یا چا بل مُسلمان ته د تکلیف او د نقصان خطره وی
نو زورزور دِ وانه ئی کنی په زوره دِ وائی . شپږم په خوش آوازئ دِ لولی چه په
خوش آوازئ دقرآن شریف دلوستلو په ډیرو حدیثونوکښ تاکید راغلے دے .

## باطنی آداب

اوّل دقرآن شریف عظمت دِ زړه کښ ساتی چه څومره دَلوی
مرتبے کلام دے . دوئیم د الله جَلّ شَانُهٗ لوئی شان او اُوچتوالے، کبریائی (لوئی) دِ په
زړهٔ کښ ساتی چه دچا کلام دے . دریم زړهٔ دِ دَ وَسوسو او دخطرونه پاک ساتی .
څلورم معنیٰ ته دِ غور وفکرکوی او په مزه او خوند دِے لوَلی . نبی اکرم ﷺ یو
واړے تول له شپه ددے اَیت په لوستلوکښ تیره کړه . اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ
وَاِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (مائده ۱۶) (ترجمه) اے الله اکه چرے
تهٔ دوی ته عذاب ورکوے نو دوی ستا بندګان دی اوکه چرے دوی ته بخښنه اُوکړے
نو بے شکه تهٔ د عزت او حکمت خاوند یے . سَعِيْدُ بِنْ جُبَيْرٍ رحمة الله علیه یوه شپه په دے
اَیت لوستلوکښ سحرکړهٔ . وَامْتَازُوا الْيَوْمَ اَيُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ ٥ (یٰسٓ ۱۴) .
ترجمه :- اے مجرمانو نن د قیامت په ورځ د فرمانبردارو نه جُدا شی . پنځم دَ
کوم اَیتونو چه تلاوت کوی زړهٔ دِ دهغے تابعدار اُوګرزوی . مثلاً که چرے درحمت
اَیت یے په ژبه وی نو زړهٔ دِ یے دخوشحالئ نه ډک شی . او که چرے دعذاب اَیت
راشی نو زړهٔ دِ یرے (د ویرے نه) اُورپیږی . شپږم غوږونه دِ دومره متوجّه کړی
چه ګویا الله جَلّ شَانُهٗ په خپله کلام فرمائی او دے یے اَوری . الله جلّ شَانُهٗ دِ صرف په
خپله مهربانئ او فضل ما ته هم په دے آدابو سره دتلاوت توفیق راکړی او تاسو ته هم .

هسئله :- دومره قرآن شریف یادول چه په هغے مونځ روا کیږی په هر مُسلمان
باندِ فرض دی . او د ټول قرآن شریف یادول فرض کفایه دی . که چرے څوک هم
اَلعیاذ بالله حافظ پاتے نهٔ شی نو ټول مسلمانان ګناهګار کیږی . بلکه زرکشی رحمة الله علیه نه
مُلا علی قاری رحمة الله علیه نقل کړی دی چه په کوم ښهر یا کلی کښ څوک هم د قرآن شریف
لوستونکے نهٔ وی نو ټول ګنهګار دی . ددے ګمراهئ او جهالت په زمانه کښ چرته

چه موږ. مسلمانانو کښې نور ډیر دینی کارونو کښې ګمراهی خوریږی هلته یو عامه اوانه داهم دا چه د قرآن شریف یادول فضول ګڼرلے شی. د دے د الفاظو یادولو سره کم عقلی پیدا کیږی او د دے د الفاظو یادولو ته د دماغ کمزوری کول او وخت ضائع کول وائی. که چرے ځمونږ د ډیرو دینی دایره وبا دی نو به دے به ځاے په تفصیل سره لیکل کړے وے. خو دلته هره ادا مرض دے او هر خیال هم باطل خواته راکاږی نو په کوم کوم څیز به ژاړے او د چا چا به شکایت کوے. فَاِلَی اللّٰهِ الْمُشْتَکٰی وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ.

| | |
|---|---|
| ① عَنْ عُثْمَانَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خَیْرُکُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَعَلَّمَهٗ. | حضرت عثمان رضی الله عنه نه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل شوے دے چه په تاسو کښې د ټولو نه بهترین هغه څوک دے چه قرآن زده کړی او نورو ته یے ښائی. |

رواه البخاری وابوداؤد والترمذی والنسائی وابن ماجة. کذا فی الترغیب وعزاه الی مسلم ایضا لکن حکی الحافظ فی الفتح عن ابی العلاء ان مسلما [illegible] سکت عنه.

د ډیرو کتابونو کښې دا روایت "وَاَوْ" سره راغلے دے چه د هغے ترجمه اولیکلے شوه. په دے حالت کښې فضیلت د هغے چا دپاره دے چه قرآن زده کړی او هغه ته پس نورو ته ښائی. خو په بعضے کتابونو کښې دا روایت په "اَوْ" سره راغلے دے. په دے حالت کښې به غوره والے او فضیلت عام شی چه په خپله زده کړی یا نورو ته یے ښائی، دواړو دپاره مستقل خیر او بهتری ده.

چونکه قرآن شریف اصلِ دین دے. د دے په باقی ساتلو او خورولو باندے د دین دارومدار دے نو ځکه د دے د زده کولو او بل ته د ښودلو غوره والے ښکاره دے. د څه وضاحت محتاج نه دے. البته د دے قسمونه مختلف دی. کامله (درجه) یے دا ده چه مطلب او مقصد سره یے زده کړی او ادنیٰ درجه یے دا ده چه فقط الفاظ یے زده کړی. د نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو بل ارشاد مبارک د دے تیر شوی حدیث مرستکوی کوم چه د سعید بن سلیم نه مرسلاً نقل شوے دے چه څوک قرآن شریف حاصل کړی او بیا بل کس چه هغه ته الله تعالیٰ څه بل څیز ورکړے وی، د خپل ځان نه بهتر اوګنړی نو ده د الله جل جلاله د دے انعام چه د خپل کلام پاک په وجه یے په

دۀ کړے وو، سپکوالے اُوکړۀ. بنکاره خبره ده چه دَ الله تعالیٰ کلام دَ ټولو کلامونو نه بهتر او غوره دے څنګه چه په مُستقل حدیثونو کښې راتلونکی دی. نو د دے لوستل او بیل ته خودل یقیناً دَ ټولو څیزونو نه بهتر کیدل پکار دی۔

یو بل حدیث نه مُلّا علی قاری رَحمته الله علیه نقل کړے دے چه چا دَ کلام پاک (دَ علم) حاصل کړۀ هغۀ دنبوّت علوم په خپل سَتَنِړی کښې جمع کړل۔

سهل تُستَرِی رَحمته الله علیه فرمائی چه الله جَلّ شَانهٗ سره دَ محبّت نښه دا ده چه دهغۀ دَ کلامِ پاک محبّت یے په زړۀ کښې وی. په شرحِ اِحیاء کښې دهغے خلقو په فهرست کښې کوم چه به دَ قیامت په سخته ورځ کښې دَ الله تعالیٰ دَ عرش دَ سورې لاندے اُوسی، هغه خلق یے هم شمار کړی دی چه څوک دَ مسلمانانو بچو ته قرآنِ پاک تعلیم ورکوی. او هغه کسان یے په کښې هم شمار کړی دی چه څوک په ورکوتوالی قرآن شریف زده کړی او بیا لوئی شی نو دهغے دَ تلاوت اهتمام کوی۔

(۲) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدٍ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰی مَنْ شَغَلَهُ الْقُرْاٰنُ عَنْ ذِکْرِیْ وَمَسْئَلَتِیْ اَعْطَیْتُهٗ اَفْضَلَ مَا اُعْطِی السَّآئِلِیْنَ وَ فَضْلُ کَلَامِ اللهِ عَلٰی سَآئِرِ الْکَلَامِ کَفَضْلِ اللهِ عَلٰی خَلْقِهٖ۔ رواه الترمذی والدارمی والبیهقی فی الشعب۔

دَ اَبِی سَعِید رَضِیَ الله عَنه نه دَ نبی اکرم صَلَّی الله عَلَیهِ وَسَلَّم دا اِرشاد مُبارك نقل شوے دے چه دَ الله تعالیٰ دا فرمان دے چه چاته دَ قرآن شریف دَ مشغولتیا په وجه دَ ذِکر کولو او دُعا کانو غوښتلو فرصت نه وی هغۀ ته به دَ ټولو دُعا کانو غوښتونکو نه زیاته ورکړه کومه. او دَ الله جَلّ شَانهٗ کلام ته په ټولو کلامونو دا سے فضیلت حاصل دے لکه څنګه چه په خپله الله جَلّ شَانهٗ ته په ټول مخلوق باندے فضیلت حاصل دے۔

یعنی چه څوك دَ قرآنِ پاك په یادَولو یا زده کولو پوهیدلو کښې تر دے حده مشغول وی چه دبلے دُعا وغیره غوښتلو وخت ورته نه ملاویږی، هغۀ به ورله دَ دُعا غوښتونکو نه هم بهتر څیز ورکومه. دَ دُنیا والو لے کړا خبره ده چه کله څوك شیرینی تقسیموی او څوك مِیټهائی اخستونکے هم دهغۀ په کار کښې مشغول وی او دهغے دَ وجے راتلے نۀ شی نو یقیناً دهغۀ برخه دَ رُومبے نه ویستلے شی۔

په دې حدیث کښې هم په دے موقعه دا خبره ذکر شوے ده چه څه په هغه د شکر کښې اره بندګانو د ثواب نه بهتر ثواب ور کولے شي.

(۱۰) عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ فِي الصُّفَّةِ فَقَالَ اَيُّكُمْ يُحِبُّ اَنْ يَّغْدُوَ كُلَّ يَوْمٍ اِلٰى بُطْحَانَ اَوِ الْعَقِيْقِ فَيَاْتِيَ بِنَاقَتَيْنِ كَوْمَاوَيْنِ فِيْ غَيْرِ اِثْمٍ وَّلَا قَطِيْعَةِ رَحِمٍ فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ كُلُّنَا نُحِبُّ ذٰلِكَ قَالَ اَفَلَا يَغْدُوْ اَحَدُكُمْ اِلَى الْمَسْجِدِ فَيَعْلَمَ اَوْ يَقْرَاَ اٰيَتَيْنِ مِنْ كِتَابِ اللهِ خَيْرٌ لَّهٗ مِنْ نَّاقَتَيْنِ وَثَلٰثٌ خَيْرٌ لَّهٗ مِنْ ثَلٰثٍ وَّاَرْبَعٌ خَيْرٌ لَّهٗ مِنْ اَرْبَعٍ وَّمِنْ اَعْدَادِهِنَّ مِنَ الْاِبِلِ. (رواه مسلم وابو داود)

عُقبه بن عامر رضي الله عنه فرمائي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم تشریف راوړه او موږ په صُفّه کښې ناست وو. نبي علیه السلام اُوفرمایل چه په تاسو کښې څوک دا خوښوي چه هره ورځ سحر وختي د بُطحان یا د عَقیق بازار ته لاړ شي او دوه اُوښې ښې نه ښې کُبَدَ ارے بغیر د څه قِسمه ګناه او قطع رحمۍ نیولے راولي. اصحابو رضي الله عنهم عرض اُوکړو اے د الله رسوله (صلی الله علیه وسلم) دا خو موږ ټول هر یو کښې خوښوي. نبي کریم صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل جُمات ته تلل او دوه آیتونو لوستل یا ښیل ته څو دَ دوه اُوښونه او درے آیتونه د درېو اُوښونه. دغسې څلور د څلورو اُوښونه غوره او بهتر دي او د هغې په شمېر اُوښانو نه بهتر دي.

صُفّه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په جُمات (مسجد نبوي) کښې د یوے خاص معلوم ځائے نوم دے چه د غریبانانو مهاجرینو د ناستې ځائ وو. د اصحابِ صُفّه شمار به په مختلفو وختونو کښې کم او زیات کېدلو. علامه سیوطي رحمة الله علیه یو دپاسه سل نومونه شمېرلي دي او مستقله رساله يې دد دې په نومونو کښې لیکلې ده. بُطحان او عَقیق مدینې طیبې سره دوه ځایونه دي چه هلته به د اُوښانو خرڅولو بازار لګیده. عربو ته اُوښې ډېر خوښې څیز وو، خصوصاً هغه اُوښه چه د هغې ټټ غټ وي. بے له څه ګناه نه مطلب دا دے چه بے محنته څیز اکثر یا د چا نه په زور اخستلے شي یا دا چه په میراث وغیره کښې د خپلو خپلوانو په مال قبضه اُوکړي یا د چا نه غلا اُوکړي. په دے وجه نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دې ټولو نه انکار اُوکړه چه بے مشقته او بغیر د څه ګناه نه حاصلول چه څومره د پېرزنه دي د دے نه هم زیات بهتر او غوره د یو څو آیتونو حاصلول دي.

دُنیا بادشاهی هم اُوښان نوخوا۔ که چرے دهٔ توله اود ایقینی خبره ده چه یَو دوه اُوښان یوخوا۔ که چرے دهٔ زورله دهٔ نه جُدا چاته مِلاوُشی نوخهٔ دی؟ وکهٔ نن نهٔ وی نو صبا به یے مَرګ په زور له دهٔ نه جُدا کړی۔ خو دیَو اٰیت اَجر و ثواب هیشه دپاره پاتے کیدونکے څیز دے۔ په دُنیا کښ اُوګوریٔ چه ته چاته یَوه روپئ ورکړے چه دا ستا شوه نو هغه پړے ډیر خوشحاله شی په ځائ ددے که ورله یو زر روپئ ورکړے چه د اځان سره کیده څهٔ اُوس واپس راځم، درنه به یے اَخلم۔ چه په دے حال کښ سوا دَ اَمانت دبوجهٔ نه نور هیڅ فائده ورته نهٔ حاصلیږی۔ حقیقت کښ په دے حدیث کښ دفانی اود باقی په مقابله کولو خبردارے هُم مقصود دے چه بنده دِ په خپل ژوند غور اُوکړی چه اَیا په فانی څیز دا ضائع کوم یا په باقی پاتے کیدونکی څیز باندے۔ اوبیا افسوس دے په هغے وختونو چه باقی پاتے کیدونکے والا نُقصان کښی۔
(حدیث شریف د روستیٔ جُملے "چه دهغے په شمیرد اُوښانونه بهتر دی" درے مطلبه کیدے شی۔

اوّل دا چه تر څلورو پورے شمیرے په تفصیل ارشاد اُوفرمایهٔ او ددے دپاسه یے مختصر اُوفرمایهٔ چه څومره قدرے اٰیتونه څوك حاصل کړی نو دهغے په شمیر اُوښانونه بهتر دی۔ په دے حالت کښ د اُوښانونه جنس مُراد دے که اُوښان وی که اُوښے۔ اوبیا دڅلورونه دزیاتو دے ځکه چه تر څلورو پورے په خپله وضاحت سره ذکر اُوشو۔

دوئیم مطلب دا دے چه هُم دهغے شمیر ذکر دے کوم چه مخکښ بیان شوے دے۔ بل مطلب دا دے چه دهر چا خوښه جُدا جُدا وی۔ دچا اُوښه خوښه وی او څوك په اُوښ مَیِن وی۔ له دے کبله نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په دے لفظ دا ارشاد اُوفرمایلو چه هر یو اٰیت دیَوے اُوښے نه هُم بهتر دے او که څوك اُوښ سره محبت ساتی نو یَو اٰیت دیَو اُوښ نه هُم بهتر دے۔

دریئم مطلب دا دے چه دا بیان هُم دهغے شمیرے دے دکومے چه وړاندے ذِکر اُوشو۔ دڅلورونه دزیاتے نهٔ دے۔ خو په دوئیم مطلب کښ چه کوم بیان اُوشو چه دیَوے اُوښے یا یَو اُوښ نه بهتر دے۔ دا نهٔ ده بلکه جوړه مُراد ده چه یَو

اُوښ اخیوے اُوښه د دوارو دَجوړے نه بهتر دے۔ دغه شان هر یَوایت دخپل
موافق شمیر اُوښه اُوښ د دوارو دَجوړے نه بهتر دے۔ نوګویا د هر رَوایت مُقابله
د یَوے جوړے سره شوه۔ خاپلار صاحب الله تعالیٰ دے په ګور نُور کړی" هُم دا
مطلب خوښ کړے دے چه دے کښ ډیر بهتر والے دے۔ اګرچه دا مُراد نه دے چه دَ
یَوایت ثواب دیَو اُوښ یا دوَو اُوښانو مقابله کولے شي، دا صرف خبر دارے او په
مثال سره پوهه کول دی۔ ماورانندے لیکلی دی چه یَوایت چه دهغے ثواب همیشه
پاتے کیدونکے دے دتولے دُنیا دَبادشاهئ نه چه فنا کیدونکے ده بهتر دے۔

مُلا علی قاری رحمة الله علیه لیکلی دی چه یو بزرګ ته دهغه بعضے تجارت پیشه دوستانو
خواست اُوکړو چه دجهاز نه کوزیدو په وخت کښ تاسو جدّه کښ ایسار شئ چه ستاسو دَ
برکته څمونږ په مال کښ ګټه اُوشی او مقصد یے دا وُو چه د تجارت په ګټه کښ دحضرت
بعضے خادمانو ته څه نفع حاصله شی۔ اَول خو ورته حضرت صاحب عُذر اُوکړو۔ هر کله
چه هغوی بیا بیا اُووے نو حضرت صاحب ترے پوښتنه اُوکړو چه تاسو ته دتجارت په
مال کښ زیاتونه زیاته ګټه څو پیرې هغے اندازه څومره ده؟ هغوی عرض اُوکړو چه
مختلفه وی۔ زیاتونه زیاته یَو په دوه اُوشی۔ حضرت صاحب اُوفرمایل چه د دے لږے ګټے
دپاره دومره مشقتونه اُوچتوئ۔ دومره غوندے خبرے دپاره څه دحرم شریف مونږ
څنګه پریږدو چه هلته دیَو په بدله کښ یَو لاکه ملاویږی۔ په حقیقت کښ دَ
مسلمانانو دپاره دغور مقام دے چه دوی دلږے غوندے دُنیوی سامان له
خاطره څومره دینی ګټے قربانوی۔

| | |
|---|---|
| ② عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمَاهِرُ بِالْقُرْاٰنِ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ الْبَرَرَةِ وَالَّذِيْ يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ وَيَتَتَعْتَعُ فِيْهِ وَهُوَ عَلَيْهِ شَاقٌّ فَلَهٗ اَجْرَانِ۔ | حضرت عائشے رضی الله عنها دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه دقرانِ پاک ماهر هغه فرښتو سره دے کوم چه مشرانے لیکونکے او نیکانے دی۔ او څوک چه قران شریف لوستو کښ اَغلی او په ویلو کښ یے تکلیف اُوچتوی هغه دپاره دوه ثوابه دی۔ |

(رواه البخاری ومسلم وابوداؤد والترمذی والنسائی وابن ماجه)

دقران ما هر هغه چاته ویلے شي چه چاته یاد هم ښه وي اَو ویلے هم ښه شي۔

اوکه چرے په معنو او مطلب یے هُم پوهیږی نو بیا خولاځهٔ وایے۔ فرښتو سره ذکیدو مطلب دا دے چه هغوی هُم دقرآن شریف دلوح محفوظ نه نقل کوونکی دی او دے هُم دهغے نقل کوونکے او رَسوُنکے دے۔ نوګویا دواړه په یوه لار دی۔ بیا دا چه حشر کښ به یے دهغوی سره یوځائ کیدل وی۔ انښتونکی ته دوه ثوابه دی۔ یو دقرآن دلوستلو او بل دهغے دمشقت چه هروارے د انښتیدو په وجه تکلیف برداشت کوی۔ خو د دے دا مطلب نه دے چه دے به دهغه ماهرنه وراندے فی۔ ماهر دپاره چه کوم فضیلت فرمایلے شوے دے هغه ددے نه ډیر زیات دے چه دَخاصو فرښتو سره یے ددهٔ یوځائ کیدل فرمایلے دی۔ بلکه مقصد یے دا دے چه دِ انښتلو په وجه به دهٔ ته دد مشقت ثواب مستقل ملاویږی نو دے عُذر په وجه چاله تلاوت پریخودل نهٔ دی پکار۔

مُلّاعلی قاری رحمة الله علیه د طبرانی او بیهقی نه روایت نقل کړے دے چه څوک قرآن شریف لولی او ورته یا دیږی نه نو دهٔ دپاره دوچند ثواب دے او چه څوک یے دَ یادَولو ارزو کوی لیکن دیا دَولو طاقت یے نهٔ لری خو لوستل یے هُم نهٔ پریږدی نو الله جَلّ شَانُهٗ به دهٔ حافظانو سره حشر کوی۔

⑤ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللہُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَاحَسَدَ اِلَّا عَلَی اِثْنَیْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ الْقُرْاٰنَ فَهُوَ یَقُوْمُ بِهٖ اٰنَآءَ اللَّیْلِ وَاٰنَآءَ النَّهَارِ وَرَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ یُنْفِقُ مِنْهُ اٰنَآءَ اللَّیْلِ وَ اٰنَآءَ النَّهَارِ۔

دحضرت اِبن عُمَر رضی الله عنه نه دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشادِ مُبارک نقل شوے دے چه حَسَد د دوؤکسانو نه ما سوا په چا جائز نهٔ دے۔ یو هغه چه چاته الله جَلّ شَانُهٗ دقرآن شریف تلاوت ورنصیب کړهٔ او دے په کښ شپه او ورځ مشغول اُوسی او دویم هغه چه چاته الله جلّ شانهٗ ډیر مال ورکړے وی او هغه یے شپه اُو ورځ (دالله پاک دَرضا دپاره) خرچ کوی۔

(رواه البخاری والترمذی والنسائی)

دقرآن شریف دآیتونو نه او ډیرو حدیثونو نه دَحَسد بدی او ناجائز کیدل عام معلومیږی۔ دے حدیث کښ د دوؤکسانو په باره کښ جائز کیدل معلومیږی۔ خو دے کبله چه هغه روایتونه زیات مشهور او ډیر دی ځکه عالمانو دے حدیث دوه مطلبه ارشاد فرمایلی دی۔ اوّل دا چه حَسَد په دے حدیث کښ دغبطے په معنیٰ دے۔

چه ظاهري کښې ورته غبطه وايي. حَسد او غِبطه کښې دا فرق دے چه حسد کښې خلک بل ته ځنې نعمت او وینې نو دا آرزو کوي چه د هٔ سره دا نعمت پاتے نهٔ شي خواه ما ته ملاويږي او که نهٔ. او په غِبطه کښې خواهش کوئي چه دغه نعمت ما ته حاصِل لو آرزو لري خواه که د بل نه لاړشي او که نه. چونکه حسد بالاجماع یعنی د عالمانو په اِتفاق سره حرام دے نو ځکه عالِمانو دلته د حسد لفظ مجازًا د غِبطے په معنیٰ اخستے دے چه غِبطه په دُنیاوي کارونو کښې رَوَا ده او په دیني کارونو کښې مُستحب ده. د دویم مطلب دا هُم کیدے شي چه د یو ځله کلام عَلیٰ سَبِیْلِ الْفَرْضِ وَالتَّقْدِیْر استعمالیږي. یعني فرض کړه که حسد جائز وے نو دا دوه څیزونه دا سے وُو چه په دیکښې به جائز وے.

(٦) عَنْ اَبِيْ مُوْسیٰ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِيْ يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ مَثَلُ الْاُتْرُجَّةِ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا طَيِّبٌ وَمَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِيْ لَا يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ مَثَلُ التَّمْرَةِ لَا رِيْحَ لَهَا وَطَعْمُهَا حُلْوٌ وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِيْ لَا يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ لَيْسَ لَهَا رِيْحٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِيْ يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ مَثَلُ الرَّيْحَانَةِ رِيْحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ.

حضرت ابُو مُوسیٰ رضی الله عنه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشادِ مُبارک نقل کړے دے چه کوم مُسلمان قرآن شریف لولي د هغهٔ مثال د تُرنج یعني کُکل په شان دے چه د هغے خوشبوئي هُم ښهٔ وي او مزه یے هُم ښهٔ وي. او کوم مؤمن چه قرآن شریف نهٔ لولي د هغهٔ مثال د کهجورے په شان دے چه خوشبویے هیڅ نشته خو مزه یے خوږه وي. او کوم مُنافق چه قرآن شریف نهٔ لولي د هغهٔ مثال د کالوړے په شان دے چه مزه یے ترخه ده او خوشبو یے هیڅ نشته او کوم مُنافق چه قرآن شریف لولي د هغهٔ مثال د خوشبودار ګل په شان دے چه خوشبویے ښهٔ او مزه یے ترخه ده.

(رواه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة)

مقصود د دے حدیث نه د نهٔ لیدو نکي څیز د لیدو نکي څیز سره مثال ورکول دي چه په ذِهن کښې د قرآن شریف د لوستلو او د نهٔ لوستلو فرق په آسانئيا سره راشي کني ښکاره خبره ده چه د قرآن شریف د خوږ والي او د خوشبوئي سره د تُرنج او کهجورے څهٔ نسبت دے. اګرچه د دے څیزونو سره مثال ورکول کښې

باریکے خبرے هُم شته چه دَ نبوت د علوموسره تعلق لری۔ او د نبی اکرم ﷺ د علوموفراخئ طرف ته اشاره کوی۔ دمثال په طور ترَنج واخله چه په خُله کښ خوشبوئی پیدا کوی، معده صفا کوی۔ هَضم کښ قوّت ورکوی وغیره وغیره۔ دا فائدے دا سے دی چه د قرآن لوستلو سره خاص مُناسبت لری۔ مثلاً د خُلے خوشبویه کیدل دباطن صفا کوَل، روحانیّت کښ قوت پیدا کوَل۔ دا فائدے په تلاوت کښ دی. چه ډیرمبنو فائده وسره ډیر برابرے لری۔ یو خاص اَثر په ترَنج کښ دا هم خودلے شی چه کوم کورکښ ترَنج وی هلته پیریان نه شی تلے۔ که چرے دا صحیح وی نو بیا یے قرآن شریف سره خاص برابرے دے۔ د بعضے طبیبانو نه ما اوریدلی دی چه په ترَنج سره حافظه هم قوی کیږی۔ او د حضرت علی کرم الله وجهه نه په احیاء (نوم کتاب) کښ نقل کړے شوی دی چه درے څیزونه حافظه زیاتوی۔ مسواك، روژه او د قرآن شریف تلاوت۔

د ابوداؤد شریف په روایت کښ د دے حدیث په آخیرکښ یو بل مضمون ډیر زیات فائده مندا دے چه د بهترین ملګری مثال د مُشکو والا سړی په شان دے۔ که تا ته مُشك ملاؤ نه شی نو خوشبوئے خو چرته تلے نه ده او د بَد ترین ملګری مثال د اُور د بهټئ والا په شان دے۔ که چرے تور ولے در ته اُونه رَسی نو لوګے خو چرته تلے نه دے۔ ډیره زیاته ضروری خبره ده چه بنیادم له د خپل مجلس په ملګرو هم نظر کوَل پکار دی چه د کوم قِسمه خلقو کښ م هر وخت ناسته پاسته ده۔

| | |
|---|---|
| ⑦ عَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِنَّ اللّٰهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتٰبِ اَقْوَامًا وَّيَضَعُ بِهٖ اٰخَرِيْنَ۔ (رواه مسلم) | حضرت عُمر رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ دا اِرشاد مُبارك نقل کوی چه الله جَلَّ شَانُهٗ د دے کتاب یعنے قرآن شریف په وجه ډیرخلق اُوچتوی او ډیر خلق ښکته او ذلیله کوی۔ |

یعنی کوم خلق چه په قرآن ایمان راوړی عمل پرے کوی الله جَلَّ شَانُهٗ هغوی ته دُنیا او آخرت کښ ترقی او عزت ورکوی۔ او کوم خلق چه پرے عمل نه کوی الله جل شانه هغوی ذلیله کوی۔ د قرآن شریف د ایتونو نه هم دا مضمون ثابتیږی۔ یو ځائ کښ ارشاد دے يُضِلُّ بِهٖ كَثِيْرًا وَّيَهْدِيْ بِهٖ كَثِيْرًا او (سوره بقره ع ۳) الله جل شانه

دے په وجه ډیرو خلقوته هدایت فرمایي او ډیر خلق گمراه کوي. بل ځای کښ ارشاد دے. وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ وَلَا يَزِيدُ الظَّالِمِينَ إِلَّا خَسَارًا (سورة بني اسرائيل. ع ۹). دنبي اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارك نقل شوے دے چه ددے اُمت به ډیر منافقان قاریان وي.

بعضې عالمانو په إحیاء (نومے کتاب) کښ نقل شوي دي چه بنده د قرآن شریف یو سورت شروع کړي نو فرښتے دده دپاره درحمت دعا کانے کوي ترهغې چه ترے فارغ شي. او بل کس یو سورت شروع کړي نو فرښتے رهغې دختمولو پورے په ده لعنت وایي. د بعضے عالمانو نه نقل دي چه بنده تلاوت کوي او په خپله په ځان لعنت وایي او ده ته خبر هم نه وي. قرآن شریف کښ لولي أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ (هود ع ۲) او خپله د ظالم کید وپه وجه په دے سزا کښ داخلیږي. هم دغسے وایي لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ (آل عمران. ع ۶) او په خپله د دروغژن کید وپه وجه ددے لعنت لائق جوړیږي.

عامر بن واثله رضي الله عنه فرمایي چه حضرت عمر رضي الله عنه نافع بن الحارث دمکے مکرمے حاکم جوړ کړے وو. یو ځل یے ترے پوښتنه اُوکړه چه دځنګلونا ظم دخولے مقرر کړے دے؟ هغوي عرض اُوکړو چه ابن ابزیٰ. حضرت عمر رضي الله عنه تپوس اُوکړه چه ابن ابزیٰ څوک دے؟ هغوي عرض اُوکړو چه زمونږ یو غلام دے. حضرت عمر رضي الله عنه د اعتراض په طور اُوفرمایل چه غلام دِ ولے امیر جوړ کړے دے. هغوي عرض اُوکړو چه د قرآن شریف لوستونکے دے. حضرت عمر رضي الله عنه دا حدیث نقل کړه چه دنبي اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارك دے چه الله جَلَّ شَأْنُهُ ددے کلام په برکت د ډیرو خلقو درجے اُوچتوي او ډیر خلق ټکته کوي.

| | |
|---|---|
| ⑧ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ ثَلٰثٌ تَحْتَ الْعَرْشِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ الْقُرْآنُ يُحَاجُّ الْعِبَادَ لَهٗ ظَهْرٌ وَبَطْنٌ وَالْأَمَانَةُ وَالرَّحِمُ | عبد الرحمٰن بن عوف رضي الله عنه دنبي اکرم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چه درے څیزونه به دقیامت په ورځ دعرش دلاندے وي. یو قرآن شریف چه بندګانو سره به جګړه کوي. د قرآن شریف دپاره ظاهر دے او باطن. دوېم څیز امانت دے |

تُنَادِیْ اَلَا مَنْ وَّصَلَنِیْ وَصَلَهُ اللّٰهُ وَمَنْ قَطَعَنِیْ قَطَعَهُ اللّٰهُ۔

(رواہ فی شرح السنۃ)

دریم رشته داری چه آواز به کوی، چلچه دا یوځائ کړم الله تعالیٰ دِ خپل رحمت سره یوځائ کړی اوچا چه ځه پریکړم الله پاک دِ هغه دخپل رحمت نه جُدا کړی۔

دا درے څیزونه د عرش د لاندے کیدلو نه مقصود د دے کامل نزدیکت دے یعنی د الله جَلَّ شَانُهٗ په لوئ دربار کښ به ډیر نزدے وی۔ د قرآن شریف د جهګړے کولو مطلب دا دے چه کومو خلقو د دے قرآن لحاظ ساتلے وی او د دے حق یے ادا کړے وی او په دے یے عَمل کړے وی نو د هغوی د طرفه به د الله جَلَّ شَانُهٗ په دربار کښ جهګړه کوی او شفاعت به یے کوی او درجے به یے اُوچتوی۔ مُلّا علی قاری رحمۃ اللہ علیہ د تِرمِذِی په روایت نقل کړے دے چه قرآن شریف به د الله جَلَّ شَانُهٗ په دربار کښ عرض اُوکړی چه دهٔ له جوړه ورکړی نو الله جَلَّ شَانُهٗ به د عزت تاج ورپسر کړی۔ بیا به قرآن شریف نور د زیاتی درخواست اُوکړی نو الله جَلَّ شَانُهٗ به د اِکرام پوره جوړه ورکړی۔ بیا به هغه درخواست اُوکړی چه اے الله! ته د دے بنده نه راضی شه۔ نو الله جَلَّ شَانُهٗ به دهٔ نه خپله رضا ښکاره کړی۔ نو هرکله چه په دُنیا کښ د محبوب د رضا نه زیات هیڅ یو لوئ نه لوئ نعمت نشی کیدے نو په آخرت کښ د محبوب د رضا مقابله بل کوم یو نعمت کولے شی؟ او کومو خلقو چه د قرآن حق ضائع کړے وی د هغوی نه به د دے باره کښ قرآن مطالبه کوی چه تا څما کوم لحاظ ساتلے دے څما دِ څهٔ حق ادا کړے دے؟

شرحِ اِحیاء کښ د اِمام (اَبُوحَنِیْفَه) صاحب رحمۃ اللہ علیہ نه نقل کړی دی چه کال کښ دوه واره ختم کول د قرآن شریف حق دے۔ اوس هغه حضرات چه کله په هیڅ هُم تلاوت نه کوی لږ غور دِ اُوکړی چه د دے قوی مقابل (قرآن شریف) په مقابل کښ به څهٔ جواب ورکوی۔ مرګ خو په هرحال راتلونکے څیز دے۔ د دے نه په هیڅ شان تیښته او خلاصے نشته

د قرآن شریف ظاهر او باطن کیدو مطلب ښکاره دا دے چه یو ظاهری مَعنیٰ دی چه په هغے هر څوک پوهیږی او یو باطنی مَعنیٰ دی چه هر څوک پرے

نه پوهیږي چه څه طرف ته د نبي اکرم ﷺ دے ارشاد اِشاره کړے ده چه څوك په قرآن شریف کښې خپله رائے نه څهٔ وائي که صحیح هم وي بیا هم دهٔ غلطي اوکړه. بعضې عالمانو ظاهر نه مُراد د دے الفاظ خوند لی دی چه د هغې په تلاوت کښې هر څوك برابر دي او د باطن نه یے مُراد د دے معنی او مطلبونه دي چه د قابلیت په اعتبار جُدا جُدا وي.

حضرت اِبنِ مسعُود رضي الله عنه فرمائي که چرے عِلم غواړے نو د قرآن شریف په معنو کښې غور او فکر کوه. په دے کښې د اَوَّلینُو او د آخِرِینُو (یعني د مخکنو او د روستنو) عِلمونه دي. خو د قرآن شریف د معنو د پاره چه کوم شرطونه او آداب دي د هغې لحاظ ساتل ضروري دي. دا نه لکه څهونر. د دے زمانے په شان چه څوك د عربئي د یو څو لفظونو معنے اَزده کړي بلکه د کُنه هم ور زیات چه د څهٔ لفظ معنې پیژندګلو نه بغیر صرف اُردو ترجمے اُوګوري او خپله رائے پکښې ورداخله کړي.

د قرآن شریف د تفسیر د پاره عالمانو د پینځلسو عِلمُونُو مهارت ضروري ښودلے دے. د وقتي ضرورت د وجې په مختصر طور عرض کوم چه د دے نه به معلومه شي چه د قرآنِ پاك حقیقي معنے ته هر څوك نشي رسیدے.

**اول** د لُغت عِلم چه په دے د قرآنِ پاك د مفرد لفظونو معنیٰ معلومه شي. مُجاهِد رحمة الله علیه فرمائي چه څوك په الله او د قیامت په ورځ ایمان لري دهٔ له جائز نه ده چه د عرب د لغاتو پیژندلو نه بغیر د قرآن شریف باره کښې څهٔ پرانزي او د یو څو لُغتُونو معلومول کافي نهٔ دي ځکه چه پیر ځله یو لفظ په څو معنو کښې شریك کړے شوے وي او دے په هغې کښې یوه دوه معنے پیژني او په واقع کښې د هغه ځائي څهٔ بله معنیٰ مُراد وي.

**دویم** د عِلمِ نحو (د قاعدو پیژندل ضروري دي) ځکه چه د اِعْراب (یعني زور، زیر، پیش) په بدلید و معنیٰ بیخي بدلیږي او د اِعْرَاب پیژندل په عِلمِ نحو سره کیږي.

**دریم** د عِلمِ صَرف پیژندل ضروري دي ځکه چه د بِناء او د صیغو د

اختلاف په وجه مَعنی بېخي بدلیږي. اِبنِ فارِس رحمة الله علیه وائي چې نه چه عِلمِ صَرف یا تې شو دهغهٔ نه ډیرڅهٔ پاتې شول. عَلامه زَمخشَري رحمة الله علیه اُعجُوبَاتِ تفسیر کښې نقل کوي چه یو سړي دقرآنِ پاك ایت يَوۡمَ نَدۡعُواْ كُلَّ أُنَاسِۭ بِإِمَٰمِهِمۡ (بني اسرائیل ۹) ترجمه: "چه په کومه ورځ را اُوبَلو مونږ هرڅوك دهغهٔ دمقتدا او مشر سره". د دې تفسیر یې دعِلمِ صَرف نه دناواقفتیا په وجه دا اُوکړو چه په کومه ورځ به را اُوبَلو مونږ هرڅوك دهغوی دمیَندُ وسره. دامام لفظ چه مُفرد وو، دا یې دَ اُمّ جَمَع اُوګَنړله. کهٔ چرې هغه دعِلمِ صَرف نه واقف وې نو ورته به معلومه شوې وه چه د اُمّ جَمَع اِمَام نهٔ راځي.

څلورم د اِشتِقَاق پیژندل ضروري دي ځکه چه لفظ کله کله د دوو مادّو نه مُشتَق وي. نو دهریو معنیٰ به جُدا جُدا وي لکه څنګه چه دمَسِیح لفظ دې چه دد دې اِشتِقَاق دمَسح نه هم دې چه دد دې معنیٰ څهٔ څیز له لاس وَروُړَل او لوند لاس په څهٔ څیز رابښکل دي او دمَسَاحَت نه هم (مُشتَق) دې چه دد دې معنیٰ پیمائش یعنې میچ کول دي.

پنځم دعلمِ مَعَاني پیژندل ضروري دي چه په دې دکلام ترکیبونه دمعنې په اعتبار سره معلومیږي.

شپږم دعلمِ بیان پیژندل ضروري دي چه په دې دکلام ظهُور او اخفا، تَشبِیه او کِنَایه یعنې ښکاره والې او پټوالې، مُشابهت او اشارې معلومیږي.

اُووم علمِ بَدِیع چه په دې دکلام خوبئ دتعبیر په اعتبار سره معلومیږي دې درې وارو عِلمُو ته علمِ بَلاغت ویلې شي. دمُفسِّر دپاره دا ضروري علمونه دي ځکه چه کلامِ پاك چه ټول په اعجاز دې نو په دې دهغې اعجاز معلومیږي.

اتم دعلمِ قرأت پیژندل هم ضروري دي ځکه چه دمختلف قرأتونو په وجه مختلف معنې معلومیږي او دبعضو معنو په نورو معنو بهتر والې معلومیږي.

نهم دعلمِ عقائد پیژندل هم ضروري دي ځکه چه کلامِ پاك کښې بعضې ایتونه داسې هم دي چه دهغې دظاهري معنې پورې اتلل په الله جل شانهٔ باندې صحیح نهٔ دې نو بیا به یکښې دتاویل ضرورت پیښیږي لکه يَدُ ٱللَّهِ فَوۡقَ أَيۡدِيهِمۡ (سورة فتح ۱۰)

لسم دَ اصولِ فقه معلومول ضروري دي چه په هغې داستدلال او استنباط يعني دليل نيولو او د مسئلو راوخکلو وجے معلومے شي۔

يولسم دَ اسبابِ نزول معلومول هم ضروري دي ځکه چه په شانِ نزول دايت معنی ډيره ښه واضحه کيږي او ډيرځله اصلی مخنے معلومول شانِ نزول سره تړلے دي۔

دولسم دَ ناسخ منسوخ معلومول هم ضروري دي چه منسوخ شوي حکمونه دمعمول بها نه جدا شي۔

ديارلسم دعلمِ فقه معلومول هم ضروري دي ځکه چه دجزئياتو په احاطه سره کلّيات پيژندلے شي۔

څوارلسم په هغه احاديثو علم ضروري دے کوم چه دقرآنِ پاک دمجمل ايتونو تفسير کښې راغلي دي۔

دے ټولو نه پس پنځلسم هغه علمِ وهبي دے چه د الله جلّ شانهٗ دره خاصه ورکړه دے چه خپلو خاصو بندګانو ته يې په خپل فضل ورکوي چه هغه ته په دے حديث کښې اشاره ده من عمل بما علم ورثه الله علم ما لم يعلم (کله چه بنده په هغه خيرعمل اوکړي چه کوم د ده ته معلوم وي نو الله جلّ شانهٗ ورته دهغه خيرونو علمونصيب کړي چه کوم ده ته نه وي معلوم) هم دے طرف ته حضرت علی کرّم الله وجههٗ اشاره فرمايلے ده چه کله خلقو ترے پوښتنه اوکړه چه نبي اکرم ﷺ تاسو ته څه خاص علمونه درکړي دي؟ يا خاص وصيتونه؟ چه عامو خلقو نه علاوه تاسو سره خاص دي نو هغوي اوفرمايل چه خدائے په هغه پاک ذات قسم دي چا چه جنت جوړکړے دے او دساه (مخلوق) يې پيدا کړے دے چه دَ هغه نهم او پوهے نه ماسوا بل هيڅ خيزنشته کوم چه الله جلّ شانهٗ دخپل کلام پاک دپوهيدلو دپاره چا ته ورکړي۔

دابنِ ابی الدّنيا وينا ده چه دقرآن علمونه اوهغه چه ددے نه حاصل شي داسے سمندر دے چه ددے غاړه نشته۔

داعلمونه کوم چه بيان کړے شو د مفسّر دپاره دا يعنی اوزارو په شان دي۔

که څوك دے عِلمونو نه ناخبره وی او تفسیر کوی نو دا تفسیر بِالرّائے کښ داخل دے یعنی د خپلے رائے او خیال سره تفسیر چه دهغے نه منع والے راغلے دے۔
صحابه کرامو رضی الله عنهم ته عربی عِلمونه دځانه حاصِل وُو ځکه چه ژبه ئے عربی وه او باقی علمونه یے د مشکوٰة نبوّت یعنی د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه حاصل کړی وُو.
عَلّامه سیُوطی رحمة الله علیه فرمائی چه شاید ستاسو دا خیال وی چه دعلمِ وهبی حاصلول دبنده د طاقت نه بهر دی خو حقیقت داسے نهٔ دے بلکه د دے دحاصِلولو طریقه دهغے اسبابو حاصلول دی په کوموچه الله جل شانهٔ دے له ترتیب ورکړے دے مثلاً په عِلم باندے عَمل کول او د دُنیا نه بے رَغبتی وغیره وغیره۔
کیمیائے سعَادت نومے کتاب کښ یے لیکلی دی چه د قرآن شریف تفسیر په دریو کسانو نهٔ ښکاریږی اوّل په هغه چاڅوك چه د عَربی عِلمونو خبرنهٔ وی دویم په هغه چاڅوك چه کبیره ګناهونه بیا بیا کوی یا بِدعتی وی چه دَ دےګناه او بدعت په وجه دَدهٔ زړهٔ تورشی او دهغے دوجے د قرآن د معرِفت نه پاتے شی۔ دریم هغه کس چه دعقیدے مسئله کښ دظاهر قائل وی او دقرآن شریف کوم عِبارت چه دهغے خِلاف وی هغه یے طبیعت نه منی نو دے کس ته هم د قرآن دَ پوهے نه حِصه نهٔ حاصِلیږی۔ اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا مِنْهُمْ۔

⑨ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم يُقَالُ لِصَاحِبِ الْقُرْاٰنِ اِقْرَءْ وَارْتَقِ وَرَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا فَاِنَّ مَنْزِلَكَ عِنْدَ اٰخِرِ اٰيَةٍ تَقْرَؤُهَا (رواه احمد والترمذی وابو داؤد والنسائی وابن ماجة و ابن حبان فی صحیحه)

حضرت عبد الله بن عَمرو رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوی چه د قیامت په ورځ به صاحبِ قرآن ته اُوئیلے شی چه قرآن لوله او د جنت په درجو ورخیژه او په قلاره قلاره یے لوله څنګه چه به تا په دُنیا کښ په قلاره قلاره لوستهٔ ۔پس ستا مرتبه هم هغه ده کوم ځای چه ته آخری آیت ته اُورسیږے۔

دصاحِبِ قرآن نه په ظاهر کښ حافِظ مُراد دے او مُلا عَلی قاری رحمة الله علیه په تفصیل سره وضاحت کړے دے چه دا فضیلت دحافِظ دپاره دے ناظره خوان

یعنی په کتلو لوستونکے په کښې داخل نهٔ دے.

**اول** خو دا چه د صاحب قرآن لفظ هم دے ته اشاره کوی

**دویم** دے وجے چه د مسند احمد روایت کښې دی حَتّٰی یَقْرَأَ شَیْئًا مَّعَهٗ (تر دے چه اولولی هغه څهٔ د قرآن نه چه د هٔ سره وی) دے لفظ نه ښکاره معلومیږی چه دے نه حافظ مراد دے. اګرچه امکان د هغے ناظره خوان هم لری کوم چه قرآن شریف ډیر زیات لولی. په مرقاة کښې یے لیکلی دی چه هغه لوستونکے ترے مراد نهٔ دے په چا چه قرآن شریف لعنت وائی. دا هغے حدیث طرف ته اشاره ده چه ډیر قرآن لوستونکی داسے دی چه قرآن لولی او قرآن په هغوی لعنت کوی. نو که د چا عقیده وغیره درست نهٔ وی نو قرآن شریف لوستل د هغهٔ د مقبولیت دلیل نهٔ شی کیدے. د خوارجو په باره کښې ډیر زیات د دے قسمه حدیثونه راغلی دی.

د ترتیل متعلق شاه عبد العزیز صاحب رحمة الله علیه په خپل تفسیر کښې لیکلی دی چه ترتیل په لغت کښې صفا او واضحه لوستلو ته وائی او په شریعت کښې د یو څو خیزونو لحاظ ساتلو سره تلاوت کولو ته ویلے شی.

**اول** حرفونه صحیح ادا کول یعنی د خپل مخرج یعنی ځائے نه راایستل چه د "طا" په ځائے "تا" او د "ضاد" په ځائے "ظا" را اونهٔ وځی.

**دویم** د وقف په ځائے په ښهٔ شان اودریدل چه وصل او قطع یعنی یو ځائے کول او جدا کول د کلام بے ځایه اونهٔ شی.

**دریم** حرکتونو کښې اشباع کول یعنی زور، زیر، پیش په ښهٔ شان ادا کول.

**څلورم** آواز لږ اوچتول چه د قرآن شریف الفاظ د ژبے نه اوزی غوږونو ته اورسی او د هغه ځائی نه په زړهٔ اثر اوکړی.

**پنځم** آواز داسے جوړول چه په کښې درد پیدا شی او په زړهٔ زر اثر اوکړی ځکه چه دردناک آواز په زړهٔ ډیر زر اثر کوی. په دے روح ته قوت رسی او اثر پرے زیات کیږی. هم د دے کبله طبیبان وائی چه د کوم دارو اثر زړهٔ ته رسول غواړی نو په هغے کښې خوشبوګانه کړی او ورکړی ځکه چه زړهٔ

خوشبوئي زر راکاږي۔ او دکوم دار و اثر اېنه ئجګر ته رسول غواړي نو په خوارږه پکښې ګډ کړي څکه چه اېنه دَ خوږو رابښکونکے ده۔ په دے وجه دبنده په نزد کۀ دتلاوت په وخت کښې دَخوشبوئي خاص استعمال اوشي نو په زړۀ باندے اثر کولوکښې به زيات قوي وي۔

**شپږم** شد او مدينه ښکاره کول چه ددے په ښکاره کولو دقرآن شريف لوئي شان ظاهريږي او په اثر کولوکښې مدد کيږي۔

**اووم** دَرحمت او دَعذاب دَ اېتونو حق ادا کول، څنګه چه دکتاب په شروع کښې تير شو۔ دا اووه څيزونه دي چه ددے لحاظ کولو ته ترتيل ويلے شي او مقصود ددے ټولو نه صرف يو دے يعني دقرآن شريف پوهه او غور وفکر۔

دَمومنانو مور حضرت اُمِّ سَلَمَه رضي الله عنها نه چا پوښتنه اوکړه چه نبي اکرم صلي الله عليه وسلم به قرآن شريف څنګه لوستلو؟ وے فرمايل چه ټول حرکتونه به يے ورکول يعني زور، زير، پيښ به يے پوره راايستل او يو يو حرف به جدا جدا ظاهريده۔ ترتيل سره تلاوت مستحب دے اګرچه په معنٰي يے نۀ پوهيږي۔

اِبنِ عباس رضي الله عنه فرمائي څۀ چه په ترتيل سُورةُ القَارِعَة او سُورة اِذَا زُلزِلَتْ اَوايم دا بهتر دے ددے نه چه بغير ترتيله سورةِ بقره او سُورة آلِ عمران اُولولم۔

دمحدثينو او دَعالمانو په نزد دَنهم نمبر حديث مطلب دادے چه دَقرآنِ پاک يو يو ايت وايه او په يوه يوه درجه برۀ خيژه څکه چه د روايتونو نه معلوميږي چه دجنت درجے دقرآن شريف دَ اېتونو برابر دي نو چه څوک دخو اېتونو ماهروي هم هغه هومره درجے برۀ به دهغۀ ځائي وي او چه څوک دَ ټول قرآنِ پاک ماهر وي هغه به دټولو نه اوچته درجه کښې وي۔

مُلاعَلي قَارِي رحمة الله عليه ليکلي دي چه په حديث کښې راغلي دي چه دَقرآن لوستونکي نه وچته بله څۀ درجه نشته پس قاريان به دَ اېتونو په مقدار ترقي کوي۔ او عَلامَه دَاني رحمة الله عليه نه دَ اَهلِ فن په دے خبره اتفاق نقل کړے دے چه دقرآن شريف اېتونه شپږ زره دي او ددے نه پس په تعداد کښې اختلاف دے او بعضو قوله

یې نقل کړې دی. - ۲۰۶۴، ۱۳۰، ۱۹۰، ۲۵، ۳۶ -

په شرح اِحیاء کښې یې لیکلی دی چه هر یو آیت په جنت کښې یوه درجه ده. نو قاری ته به اُویلې شی چه د جنت په درجو دخپل تلاوت په مقدار اوږغېږه. چا چه قرانِ پاک پوره کړې هغه به د جنت اعلیٰ درجې ته اُورسیږی. او کوم کس چه څۀ حصه یې ویلې وی هغه به د هغې په مقدار د جنت درجو ته اُورسیږی. خلاصه دا شوه چه د ترقۍ آخری حد به د لوستو آخری حد وی.

بنده په نزد د پورتنی حدیث مطلب څۀ بل څۀ معلومیږی فَاِنْ کَانَ صَوَابًا فَمِنَ اللّٰهِ وَاِنْ کَانَ خَطَأً فَمِنِّیْ وَمِنَ الشَّیْطٰنِ وَاللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ مِنْهُ بَرِیْئَانِ. کۀ چرې درست وی نو د الله تعالیٰ امداد سره دے او کۀ غلط وی نو خپل قصور دے.

دے حاصل دا دے چه پورتنی حدیث نه د درجاتو هغه ترقی مراد نه ده چه د آیتونو په لحاظ په یو آیت یوه درجه د هغې که چه په دے ترقۍ کښې په ترتیل لوستلو یا نۀ لوستلو په ظاهر کښې هیڅ تعلق نۀ معلومیږی کله چه یو آیت اُولولی یوه درجه به ترقی اُوشی. عامه خبره ده چه په ترتیل وی او کۀ بے ترتیله. بلکه په دے حدیث کښې په ظاهره سره ترقی د کیفیت په اعتبار مراد ده چه په هغې کښې ترتیل سره د لوستلو او نۀ لوستلو دخل دے. د دے کبله په کوم ترتیل یې دُنیا کښې لوستۀ، هُم په هغې ترتیل به آخرت کښې اُولوستے شی او د هغې په برابرئ به په درجو کښې ترقی کیږی.

مُلا علی قاری رحمۃ اللہ علیہ د یو حدیث نه نقل کړے دے چه کۀ چرے په دُنیا کښې یې ډیره ډیر تلاوت کړے وی نو په هغه وخت کښې به هُم ورته یاد وی. کنه هیر به یې شی. الله تعالیٰ دِ خپل فضل اُوکړی. مونږ کښې ډیر داسې کسان شته چه مور پلار ورته دینی شوق کښې قرانِ شریف یاد کړے وی خو دَ خپلې بے پرواهئ او بے توجهئ په وجه یې په دُنیا کښې ضائع کړی او د دے مقابل بعضے حدیثونو کښې راغلی دی چه څوک د قرآن په یاد ولو کښې محنت او مشقت اُوچتوی او مړ شی نو هغه به د حافظانو په ډله کښې شمارلے شی. د الله تعالیٰ

له طرفه ورکولو کښې شۀ کمی نشته خو چه شوک اخستلو والا وی سه

اپنے الطاف تو ہیں عام شہیدی سب پر ♦ تجھ سے کیا ضد تھی اگر تو کسی قابل ہوتا

دهغه مهربانۍ شهیدی عامے دی په ټولو ♦ تا سره یې شۀ ضد وو خو که ته دهغه قابل وے

(۱۰) عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِّنْ كِتَابِ اللّٰهِ فَلَهٗ بِهٖ حَسَنَةٌ وَّالْحَسَنَةُ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا لَآ اَقُوْلُ الٓمّٓ حَرْفٌ اَلِفٌ حَرْفٌ وَّلَامٌ حَرْفٌ وَّمِيْمٌ حَرْفٌ. (رواه الترمذی وقال هذا حدیث حسن صحیح غریب اسنادا والدارمی)

حضرت ابن مسعود رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه شوک یو حرف د قرآن شریف اولولی هغۀ ته په بدله کښې یوه نیکی ده او د یوے نیکۍ ثواب د لسو نیکو برابر ورکولے شی زۀ دا نۀ وایم چه ټول الٓمّٓ یو حرف دے بلکه الف یو حرف، لام یو حرف او میم یو حرف دے۔

مقصود دا دے چه لکه څنګه نورو ټولو عملونو کښې پوره عمل یو شمارلے شی، قرآن شریف کښې دا سے نۀ ده، بلکه د عمل حصے هم پوره عمل شمارلے شی نو څنګه د قرآن شریف په تلاوت کښې یو یو حرف یوه یوه نیکی شماریږی او په هره نیکۍ د الله تعالیٰ له طرفه (مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا (سورة انعام) څوک چه یوه نیکی راوړی هغۀ ته به د لسو نیکو په برابرۍ ثواب ورکولے شی) لس حصے د ثواب وعده ده او دا ډیره کمه درجه ده۔ وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ (سورة بقره) الله جل شانه چا ته چه اوغواړی ثواب زیات ورکوی۔ د هر یو حرف مستقله نیکی شمیرلو مثال نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلے دے چه الٓمّٓ به پوره یو حرف نۀ شماریږی بلکه الف، لام، میم به جدا جدا حرفونه شمارلے شی نو په دے شان د الٓمّٓ په مجموعه باندے دیرش نیکۍ شوے۔ دے کښې اختلاف دے چه د الٓمّٓ نه د سورة بقره شروع الٓمّٓ مراد دے یا اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ ○ الٓمّٓ مراد دے۔ که چرے د سورة بقرے شروع مراد وی نو ظاهری مطلب یې دا دے چه د لیکلو شوو حرفونو اعتبار دے او په لیکلو کښې هغه هم درے حرفونه لیکلے شی نو دیرش

نیکي شوے او کهٔ چرے له دے نه د سورة نه قبل شروع مراد وي نو بیا د سورة بقرې په شروع کښې چه کوم الٓمّٓ دے هغه نهٔ حرفونه دي نو ثواب یے د لس کم سلو نیکو شو. بیهقي په روایت کښې دي چه نبي اکرم ﷺ فرمائي چه څهٔ دا نهٔ وایم چه بِسْمِ اللّٰهِ یو حرف دے بلکه ب، س، م جُدا جُدا حرفونه مراد دي.

(۱۱) عَنْ مُعَاذِ الْجُهَنِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ قَرَأَ الْقُرْاٰنَ وَعَمِلَ بِمَا فِيْهِ اُلْبِسَ وَالِدَاهُ تَاجًا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ضَوْءُهٗ اَحْسَنُ مِنْ ضَوْءِ الشَّمْسِ فِيْ بُيُوْتِ الدُّنْيَا لَوْ كَانَتْ فِيْكُمْ فَمَا ظَنُّكُمْ بِالَّذِيْ عَمِلَ بِهٰذَا.

(رواه احمد وابوداؤد وصححه الحاکم)

حضرت معاذ جهني رضی الله عنه د نبي اکرم ﷺ ارشاد نقل کړے دے چه څوك قرآن شریف اُولولي او په هغے عمل اُوکړي د هغه مور پلار ته به د قیامت په ورځ یو تاج ورپه سر کړے شي چه د هغے رڼا به د نمر د رڼا نه هم زیاته وي. کهٔ چرے د غه نمر ستاسو په کورونو کښې وي پس ستاسو څهٔ گمان دے د هغے کس متعلق چه په خپله پرے عمل کوي.

یعني د قرآن شریف د لوستلو او په هغے د عمل کولو برکت دا دے چه د لوستونکي مور پلار ته به داسے تاج ورپه سر کړے شي چه د هغے رڼا به د نمر د رڼا نه ډیره زیاته وي کهٔ چرے د غه نمر ستاسو په کورونو کښې وي یعني نمر د دومره لرے نه څومره ډیره رڼا خوروي نو کهٔ چرے هغه په کور کښې د ننه راشي نو یقیناً بیا خو به ډیر زیات د رڼا او برېښنا سبب وي نو د دے لوستونکي مور پلار ته به چه کوم تاج ورپسر کولے شي د هغے رڼا به د رڼا نه زیاته وي چه کومه رڼا په کور کښې راختونکے نمر خوروي او هر کله چه د مور پلار د پاره دا ذخیره ده نو د لوستونکي د ثواب په خپله تاسو اندازه اُوکړئ چه څومره قدر به وي. هر کله چه د سبب جوړیدونکو دا حال دے نو په خپله د بېچي حال خو به په څو څو درجے زیات وي چه مور پلار ته دا ثواب په دے وجه ورکولے شي چه دوي د بچي د وجود یا د تعلیم سبب جوړ شوي دي.

د نمر په کور کښې کید و سره چه کوم مثال ورکړے شوے دے په دے کښې علاوه د دے نه چه په نزدیکت کښې رڼا زیاته معلومیږي یو بل باریك کار

طرف ته اشاره هم ده - هغه اچه کوم خېژهر وخت تنزدے اُوسي هغه سره مینه او محبت زیات وی ددے کبله د نمر دلری والی د وجے کومه مینه دهٔ سره نا اشنائي ده، هغه د هر وخت د نزدیکت په وجه به په محبت بدله شي نو دے حالت کښې د رڼا نه علاوه دهٔ سره محبت طرف ته هم اشاره ده او دے ته هم اشاره ده چه هغه یے خپل هم وی چه د نمر نه اګرچه هر څوك فلکاالنفی خوکهٔ چرے هغه چا ته اُو رخنلے شي نو د هغهٔ د پاره څومره د فخر خیز وی.

حاکم رحمته الله علیه د بُرَیدَهٔ رضي الله عنه نه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے دے چه څوك قرآن شریف اُولولی او په هغے عمل اُوکړی هغهٔ ته به یو تاج ورپسر کړے شي چه د نُور نه به جوړ شوے وی او د هغهٔ مور پلار ته به داسے دوه جوړے ورواغوستولے شي چه ټوله دنیا به یے مقابله نشي کولے - هغوی به عرض اُوکړی چه اے الله! دا جوړے د څهٔ په بدله کښې دی؟ الله پاك به ورته اُوفرمائي چه ستا د بچي د قرآن شریف لوستلو په بدله کښې -

جمع الفوائد کښې د طبراني نه نقل کړے دے چه حضرت انس رضي الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه څوك خپل ځوئ ته په ناظره قرآن اُوښائي نو د هغهٔ ټول مخکنی رُستنی ګناهونه مُعاف کیږی او چه څوك یے ورته یاد کړی نو هغه به د قیامت په ورځ د څوارلسمے د سپوږمئ په شان را اُوچتولے شي او د هغهٔ ځوئ ته به اُوویلے شي چه لوستل شروع کړه کله چه ځوئ یو آیت لولی د پلار یو درجه به اُوچتولے شي تر دے چه دغه شان به ټول قرآن پوره شي.

د بچي د قرآن شریف په لوستلو د پلار د پاره دا فضیلتونه دی خو په دے بس نه ده بلکه خبره هم وَاوُرئ که چرے الله دِ نه کړی تا خپل بچي د یو څو پیسو په لالچ کښې د دین نه محرومه اُوساتهٔ نو صرف دا نه چه ته به د هغے به زواله ثواب نه محرومه شے بلکه الله تعالیٰ ته به هم جواب ورکوے - ته د دے ویرے نه چه د ملایان او حافظان د علم او حفظ نه پس به صرف د خیراتِ اِملمان او د ټکړے محتاج جوړ شي - د دے وجے ته خپل نیازبین ځوئ د دے نه ساتے - یاد ساتئی په دے ته هغه خو په همیشه مُصیبت کښې ګیروے خو ورسره ورسره

حقت جواب ورکولو ذمه واری لاځي - په حديث شريف کښ راغلي دي كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ هرڅوک به د هغهٔ د ماتحتو او د لاندې کسانو باره کښ هم سوال کيږي چه هغوي ته څومره دين ښودلې دے. البته دا ضروري ده چه د دے عيبونو نه ترڅنګ هم غاړه بچ کړه. او د نورو د بچ کولو کوشش هم ضرور کوه خود سپکو دويرے بچاسے نه اغوستل څه د عقل خبره نه ده البته د هغې جامو د صفا ساتلو کوشش ضرور په کار دے. خلاصه دا شوه چه تاسو خپل بچي ته د دِين د ارزي تعليم او تربيت ورکړئ نو خپله غاړه به خلاصه کړئ او تر کومې چه هغه ژوندے وي او څومره نيک عملونه کوي دعا او استغفار به تا د پاره کوي نو ستا د درجو اوچتولو سبب به جوړيږي. خو که د دنيا په خاطر د څلورو پيسو په لالچ کښ د هغه د دين نه بے برخے اوساته نو لکے دا نه چه د خپل حرکت وبال به د تر غاړے کيږي بلکه هرڅومره بد عملي، فسق او د بے ديني کارونه چه هغه کوي ستا عملنامه به هم د دغے ذخيرے نه خالي نه پاتے کيږي. د الله تعالى د پاره په خپل حال رحم اوکړئ دنيا په هرحال کښ ختميدونکے څيز دے او مرګ د لوئي نه لوئي تکليف خاتمه ده. د کوم تکليف نه پس چه مرګ هم نشته نو د هغې څيز انتهاء هم نشته.

⑫ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَوْ جُعِلَ الْقُرْاٰنُ فِيْ إِهَابٍ ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ مَا احْتَرَقَ - (رواه الدارمی)

حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه فرمائي چه ما د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه دا اوريدلي دي که چرے قرآن شريف په څه څرمنه کښ کينودلے شي، بيا هغه په اور کښ واچولے شي نو اور به نه سوزي.

د حديث عالمانو د دے روايت په مطلب کښ دوه ټلے ښودلي دي. د بعضو په نزد د څرمنے نه عامه څرمن مراد ده د هر څنګ ورچه وي او د اور نه د دنيا اور مراد دے په دے حال کښ دا خاصه معجزه ده چه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم زمانے سره خاصه وه لکه څنګه چه د نورو نبيانو معجزے د هغوي زمانے سره خاصے وے. دويم مطلب دا دے چه د څرمنے نه مراد د سړي څرمن

ده او دا اُور نه د دوزخ (اګر اور دې) د حال کښې به دا حکم عام وي، د دوزخ زمانې سره به خاص نه وي
یعني څوک چه د قرآن حافظ وي که چرې هغه په څه جُرم کښې په دوزخ کښې هم واچولې شي نو اُور
به ئې اثر نه کوي. یو روایت کښې مَا مَسَّتْهُ النَّارُ لفظ هم راغلې دې یعني اُور به هغه ته بیخي
نګې هم نه. دا ابو اُمامه رضي الله عنه روایت چه کوم د شرح السُّنّة نه مُلا علي قاري رحمه الله نقل کړې دې
د دې دویم مطلب هم دا کوي چه د هغې ترجمه دا ده چه قرآن شریف یادوي خلکه الله
تعالیٰ هغه زړه ته عذاب نه وي کوم کښې چه قرآن پاک محفوظ وي. دا حدیث په خپل مضمون کښې
او واضح دې. کوم خلق چه د قرآن شریف یادولو ته فضول وائي هغوی دِ الله تعالیٰ د دې
په دې فضیلتونو هُم غور او فکر اُوکړي چه هم دا یو فضیلت داسې دې چه د دې
په وجه هر چا له د قرآن په یادولو ځان قربانول پکار دي ځکه چه داسې به څوک
وي چه ګناهونه به یې نه وي کړي چه د هغې په وجه به اُور ته تلو قابل
نه وي جوړ شوې.

په شرح احیاء کښې د هغه خلقو په فهرست کښې کوم چه به د قیامت د ویرونکې
هیبتناکې ورځ کښې د الله تعالیٰ د عرش د سورې لاندې وي. د حضرت علي رضي الله عنه
حدیث نه په روایت د دیلمي نقل کړې دې چه د قرآن حافظان به د الله
تعالیٰ د عرش د سورې لاندې د نبیانو او د نیکانو خلقو سره وي.

(۱۳) عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فَاسْتَظْهَرَهٗ فَأَحَلَّ حَلَالَهٗ وَحَرَّمَ حَرَامَهٗ أَدْخَلَهُ اللهُ الْجَنَّةَ وَشَفَّعَهٗ فِيْ عَشَرَةٍ مِّنْ أَهْلِ بَيْتِهٖ كُلُّهُمْ قَدْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ (رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث غريب وحفص بن سليمان الراوي ليس هو بالقوي يضعف في الحديث ورواه ابن ماجة والدارمي)

حضرت علي رضي الله عنه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړې دې چا چه قرآن شریف اُولوستۀ بیا یې حفظ یا د کړۀ، د هغې حلال یې حلال اُوګڼل او حرام یې حرام. الله جل شانهٗ به هغه جنت کښې داخل کړي او د هغهٔ په کورنۍ کښې به د داسې لسو کسانو په باره کښې د هغهٔ شفاعت قبول کړي چا د پاره چه دوزخ واجب شوې وي.

جنت ته داخلیدل خو د هر مؤمن د پاره ان شاء الله شته. اګرچه د
بد عملو د سزا خوړلو نه پس وي نه وي. خو د قرآن شریف د حافظانو د پاره
دا فضیلت د اول داخلیدو په اعتبار سره دې. هغه لس کسان چه د چا

په باره کښې چه شفاعت قبول کړے شوے دے هغه په فاسقانو او فاجرانو دي چه لوئی ګناهونه به یے کړي وي ځکه چه د کافرانو په باره کښې خو شفاعت هډو شته نه۔ د الله جل شانهٗ ارشاد دے إِنَّهُ مَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ ۖ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ (مائده ۱۰) په مشرکانو الله پاک جنت حرام کړے دے او د هغوي ځائ دوزخ دے او د ظالمانو هیڅوک مددګار نشته۔ بل ځائ ارشاد دے مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ الآیة (سورة توبه ۱۴) نبي او مؤمنانو دپاره دے اجازت نشته چه هغوي د مشرکانو دپاره بخښنه اوغواړي اګرچه هغوي یے خپلوان وي، وغیره وغیره آیتونه په دے مضمون کښې واضح دي چه د مشرکانو بخښنه نشته دے۔ د دے وجے د حافظانو د شفاعت نه د هغے مسلمانانو شفاعت مراد دے چه د ګناهونو په وجه د هغوي په دوزخ کښې داخلیدل ضروري شوي وُو۔ څوک چه د دوزخ نه محفوظ کیدل غواړي د هغوي دپاره ضروري ده که حافظانهٔ وي او په خپله قرآن نهٔ شي یادولے نو کم نه کم خپل نزدے رشته دار وکښې د څوک حافظ جوړ کړي چه د هغهٔ په خاطر به دے هم د خپلو بدعملو د سزا نه محفوظ پاتے شي۔ د الله تعالیٰ څومره لوئی انعام دے په هغه سړي باندے (مراد ترے د شیخ الحدیث رحمه الله خپل ځان دے) چه د چاپلار، ترونه، نیکونه، ماماګان ټول حافظان دي۔ اَللّٰهُمَّ زِدْ فَزِدْ۔

(۱۲) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ فَاقْرَءُوهُ فَإِنَّ مَثَلَ الْقُرْآنِ لِمَنْ تَعَلَّمَ فَقَرَأَ وَقَامَ بِهِ كَمَثَلِ جِرَابٍ مَحْشُوٍّ مِسْكًا تَفُوحُ رِيحُهُ كُلَّ مَكَانٍ وَمَثَلُ مَنْ تَعَلَّمَهُ فَرَقَدَ وَهُوَ فِي جَوْفِهِ كَمَثَلِ جِرَابٍ أُوكِيَ

حضرت أبي هريرة رضی الله عنه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے دے چه قرآن شریف زده کړئ بیا یے لولئ ځکه چه څوک قرآن شریف زده کړي او لولي یے او په تهجد وکښې یے وائي د هغهٔ مثال د هغے تهیلئ په شان دے چه د مشکو نه ډکه وي چه د هغے خوشبوئي په ټول مکان کښې خوریږي او چا چه قرآن زده کړهٔ او بیا اُودهٔ شو د هغهٔ مثال د هغے

عَلیٰ مِسْكٍ (رواه الترمذی والنسائی وابن ماجة وابن حبان)

مشکود تهیلئ دے چه د هغې خوله بنده کړے شوے وی.

یعنې چا چه قرآن اُولوستهٔ د هغې خبرګیری یې اُوکړه د شپې په مانځه کښې تلاوت اُوکړهٔ. د هغهٔ مثال د هغې مشکو د تهیلئ په شان د چه په رانتے وی او ټول مکان یې خوشبویه کړے وی. د غسې د حافظ په تلاوت ټول مکان د اَنوارو او د برکتونو نه ډك وی. او کهٔ چرے د غه حافظ اُو دهٔ شي یا د غفلت په وجه یې اُونهٔ لوستلے شو بیا هُم چه د هغهٔ په زړهٔ کښې کوم قرآنِ پاك دے هغه خو په هر حال مُشك دی. د دے غفلت د کبله دومره نقصان ضرور اُوشو چه نور خلق د دهٔ د برکتونو نه محرومه پاتے شول خو د دهٔ زړهٔ خو په هر حال د امُشك خپل د ننه ځائ کړی دی.

⑮ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الَّذِي لَيْسَ فِي جَوْفِهِ شَيْءٌ مِّنَ الْقُرْآنِ كَالْبَيْتِ الْخَرِبِ.

حضرت عَبْدُالله بن عَبَّاس رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه د چا په زړهٔ کښې د قرآن شریف څهٔ حصه هُم محفوظه نهٔ وی هغه په شان د وِران کور دے (یعنې کنډر دے)

(رواه الترمذی وقال هذا حديث صحيح ورواه الدارمی والحاكم وصححه)

دوِران کور سره مثال ورکولو کښې یوه خاصه لطیفه یعنې خوند نا ګمخبره هُم ده هغه دا چه "خانهٔ خالی را دیوی گیرد" (چه خالی (وِران) کور باندے پیریان دیوان قبضه کوی، د غه شان چه کوم زړهٔ د قرآنِ پاك نه خالی وی د شیطانانو په هغې قبضه زیاته وی. په دے حدیث کښې د قرآنِ پاك د حفظ یې څومره تاکید فرمایلے دے چه هغې زړهٔ ته یې وِران کور ارشاد فرمایلے دے کوم کښې چه قرآنِ پاك محفوظ نهٔ وی.

حضرت اَبُوهُرَیْرَه رضی الله عنه فرمائی چه په کوم کور کښې قرآن شریف لوستے شی د هغې کور کښې اولاد ډیریږی او خیر و برکت په کښې زیاتیږی. فرښتے په کښې نازلیږی او شیطانان د هغې کور نه اُوځی. او په کوم کور کښې چه تلاوت نهٔ کیږی په هغې کښې تنګسیا او بے برکتی وی، فرښتے د هغې کور نه ځی او شیطانان په کښې داخلیږی. د حضرت اِبْنِ مَسْعُوْد رضی الله عنه نه نقل دے او بعضے د نبی اکرم

فائده: نه نقل کوي چه خالي کور هغه دے چه په هغه کښې د قرآن شریف تلاوت نه کیږي.

(۱۹) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي الصَّلٰوةِ أَفْضَلُ مِنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلٰوةِ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلٰوةِ أَفْضَلُ مِنَ التَّسْبِيْحِ وَالتَّكْبِيْرِ وَالتَّسْبِيْحُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّدَقَةِ وَالصَّدَقَةُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّوْمِ وَالصَّوْمُ جُنَّةٌ مِّنَ النَّارِ (رواه البيهقي في شعب الايمان)

حضرت عائشه رضي الله عنها د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه په مانځه کښې د قرآن شریف تلاوت د بغیر مانځه د تلاوت نه بهتر دے او د بغیر مانځه تلاوت د تسبیح (یعنی سبحان الله) او د تکبیر (یعنی الله اکبر) نه بهتر دے او تسبیح د صدقے نه بهتر دے او صدقه د روژے نه بهتره ده او روژه د اُور نه د بچ کیدو ډال دے.

د تلاوت د ذکرونو نه بهتر کیدل ښکاره دي ځکه چه دا د الله تعالیٰ کلام دے او هر کله چه معلومه شوے ده چه د الله تعالیٰ د کلام په نورو کلامونو هغه بهتر والے دے کوم بهتر والے چه الله تعالیٰ ته په مخلوق باندے دے. د الله تعالیٰ ذکر د صدقے نه بهتر کیدل په نورو روایتونو کښې هم راغلي دي او د صدقے د روژے نه بهتر کیدل لکه څنګه چه د دے روایت نه معلومیږي د نورو بعضو روایاتو نه خلاف دي چه هغې نه د روژے بهتر والے معلومیږي خو دا د حالاتو په اعتبار سره مختلف دي. بعضے حالتونو کښې روژه بهتره ده او بعضو کښې صدقه. د هغه شان د خلقو په اعتبار سره هم مختلف دي. بعضے خلقو د پاره روژه بهتره ده. او هر کله چه روژه د اُور نه د بچ کیدو ذریعه ده چه د هغې ذریعه په دے روایت کښې د ټولو نه په آخیر کښې ده نو بیا د کلام الله د تلاوت به څه وایے چه د ټولو نه اول دے.

صاحب احیاء (یعنی امام غزالی رحمة الله علیه) د حضرت علی کرم الله وجهه نه نقل کړے دے چه چا په مانځه کښې په ولاړه قرآن شریف اُولوستو هغه ته به په هر یو حرف سل نیکئ ورکولے شي او چا چه په مانځه کښې په ناسته (له څه عذره) اُولوستو د هغه د پاره پنځوس نیکئ او چا چه بغیر مانځه په اُودَاسه کښې اُولوستو د هغه د پاره پنځویشت نیکئ دي او چا چه بغیر اُودَاسه اُولوستو هغه د پاره لس نیکئ دي

دوی اوری۔ بهرحال اوخوك چه په خپله نه لولی صرف لوستونکی تمیه غوږ ایښی دوی اوری۔ بهرحال
دپاره هم دهغوی معرفت په بدله کښ یوه نیکی ده۔

(۱۷) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَیُحِبُّ اَحَدُکُمْ اِذَا رَجَعَ اِلٰی اَهْلِهٖ اَنْ یَّجِدَ فِیْهِ ثَلٰثَ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ سِمَانٍ قُلْنَا نَعَمْ قَالَ فَثَلٰثُ اٰیَاتٍ یَقْرَأُ بِهِنَّ اَحَدُکُمْ فِیْ صَلٰوتِهٖ خَیْرٌ لَّهٗ مِنْ ثَلٰثِ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ سِمَانٍ (رواه مسلم)

حضرت ابوهریره رضی الله عنه وائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه، ایا په تاسو کښ څوك دا خوښوی چه کله کورته واپس راشی نو در ته بلاربے اوښے غټے څربے دا تملاؤ شی۔ موږ ه عرض اوکړه بیشکه (ضرور خوښوو) نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمایل چه درے ایتونه تاسو کښ څوك په مانځه کښ اولولی هغه د دریو بلاربو اوغټو څربو اوښو نه بهتر دی.

دے په شان مضمون دریم نمبر حدیث کښ تیر شوے دے۔ په دے حدیث شریف کښ چونکه په مانځه کښ دلوستو ذکر دے او هغه د بغیر مانځه لوستو نه بهتر دے ځکه یے مثال بلاربو اوښو سره ورکړے دے چه هلته هم دوه عبادتونه دی مونځ او تلاوت۔ دغسے دلته هم دوه څیزونه دی اوښه او دهغے حمل (یعنی په ګیډه کښ بچے) ما د دریم نمبر حدیث په فائده کښ لیکلی دی چه د دے قسمه حدیثونو نه صرف مثال مراد وی کنی دیو ایت باقی پاتے کیدونکے ثواب په زرګونو فانی اوښو نه بهتر دے۔

(۱۸) عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَوْسٍ الثَّقَفِیِّ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قِرَاءَةُ الرَّجُلِ الْقُرْاٰنَ فِیْ غَیْرِ الْمُصْحَفِ اَلْفُ دَرَجَةٍ وَقِرَاءَتُهٗ فِی الْمُصْحَفِ تُضَعَّفُ عَلٰی ذٰلِكَ اِلٰی اَلْفَیْ دَرَجَةٍ (رواه البیهقی فی شعب الایمان)

حضرت اوس ثقفی رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کړے دے چه قرآن شریف په یاد لوستل زر درجے ثواب لری او په قرآن شریف کښ په کتلو سره لوستل تر دوه زرو پورے زیاتیږی۔

دقرآن دحافظ دپیر فضائل مخکښ تیر شوی دی په دے حدیث شریف کښ قرآن شریف کښ چه په کتلو سره لوستلو کښ چه بهتر والے دے، دا د دے وجه

نه دے چه د قرآن په کتلو سره لوستلو کښې د تَدَبُّر او غور و فکر زیاتې سره نور څو حیاتونه یکښې هم شامل دی لکه قرآنِ پاک ته کتل او لاس وروړل وغیره وغیره۔ په دے وجه دا بهتر شو۔ چونکه د روایتونو مطلب مختلف دےځکه عالمانو په دے خبره کښې اختلاف کړے دے چه قرآنِ پاک په یاد لوستل بهتر دی او که په کتلو سره؟ د یوے ډلے رائے ده چه د پورتنی حدیث د وجے او د دے وجے چه په دے کښې د غلط لوستلو نه اَمن وی، په قرآنِ پاک باندِ نظر وی، قرآن شریف ته په کتلو سره لوستل بهتر دی۔ د دویمه ډله د نورو روایتونو په وجه او په دے وجه چه په یاد لوستل د زیاتے خشوع سبب دے د ریا نه حفاظت دے۔ بله دا چه د نبی اکرم ﷺ عادتِ شریفه په یاد د لوستلو وه، په یاد لوستل بهتر بنائی۔ اِمامِ نَوَوِی رحمۃ اللہ علیہ په دے کښې دا فیصله کړے ده چه بهتر والے د خلقو په لحاظ مختلف دے۔ د بعضو د پاره په کتلو سره لوستل بهتر دی که په دے کښې ورته تَدَبُّر او غور و فکر زیات حاصلیږی او چا ته که په یاد لوستلو کښې تدبر زیات حاصلیږی هغوی د پاره په یاد لوستل بهتر دی۔ حافظ اِبنِ حَجَر رحمۃ اللہ علیہ په فتح الباری کښې هم دا تفصیل خوښ کړے دے۔ وئیلے شی چه حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د ډیر تلاوت د وجے د وه قرآن شریفه ضعیف شوے وو۔ عَمرو بن مَیمُون رحمۃ اللہ علیہ په شرحِ اِحیاء کښې نقل کوی چه څوک د سحر د مانځه نه پس قرآن شریف پرانیزی او تقریباً سل آیتونه اَولولی د ټولے دنیا په اندازه د هغهٔ ثواب اُولیکلے شی۔ قرآن شریف په کتلو سره لوستل د نظر د پاره فائده مند بنودلے شی۔

اَبُوعُبَید رحمۃ اللہ علیہ حدیث مُسلسل نقل کړے دے چه په هغے کښې هر یو رَاوِی وئیلی دی چه ما ته د سترګو تکلیف وو نو اُستاد را ته قرآن شریف په کتلو سره لوستل اُوښودل۔ امام شافعی رحمۃ اللہ علیہ به اکثر د ماسخوتن (د ماځه) نه پس قرآن شریف پرانسته او د سحر د ماځه په وخت کښې به یے ټپ کړه۔

(۱۹) عَنِ ابنِ عُمَرَ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰہِ ﷺ اِنَّ هٰذِهِ

حضرت عَبدُ اللّٰہ بن عُمر رضی اللہ عنہ د نبی اکرم ﷺ نه نقل کوی چه زړونو ته هم زنګ

الْقُلُوْبَ تَصْدَأُ كَمَا يَصْدَأُ الْحَدِيْدُ اِذَا اَصَابَهُ الْمَاءُ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا جِلَاءُهَا قَالَ كَثْرَةُ ذِكْرِ الْمَوْتِ وَتِلَاوَةِ الْقُرْاٰنِ (رواه البيهقي في شعب الايمان)

لګي لکه څنګه چه اُوسپنې ته په اُوبو لګيدو زنګ لګي. تپوس اُوکړے شو. اے د الله رسول! (صلى الله عليه وسلم) د دے د صفائي څه طريقه ده؟ نبي عليه الصلوٰة والسلام اُوفرمايل چه مرګ ډير ياد وَل او د قرآنِ پاک تلاوت کول.

يعني د ګناهونو ډيروالي او د الله تعالىٰ د ذکر نه د غفلت په وجه په زړونو هم زنګ لګي څنګه چه اُوسپنې ته اُوبو لګيدو سره زنګ لګي او د قرآنِ پاک تلاوت او د مرګ ياد وَل د هغې د پاره د صفائي کار ورکوي. د زړه مثال د يو ائينې په شان دے څومره قدرے چه خيرن نيرې هغه هومره په دے کښ د الله تعالىٰ د پيژند ګلو عکس. کم وي او څومره چه پاکه صفا وي هغه هومره به په کښ د پيژند ګلو عکس. واضحه وي. هم د دے کبله څومره چه بنيادم شهواني او شيطاني ګناهونو کښ لګيا وي هغه هومره به د معرفت نه لرے وي. او هم د دے ائينې صفا کولو د پاره پيران صاحبان رياضتونه او مجاهدے ذکرونه او وظيفے بنائي.

حديثونو کښ راغلي دي چه کله بنده ګناه اُوکړي نو د دهٔ په زړه يو تور ټکے اُولګي که دے ريښتنے توبه اُوباسي نو هغه ټکے لرے شي او که چرے بله ګناه اُوکړي نو دويم ټکے پرے اُولګي. هم دغه شان چه ګناهونو کښ په مخکښ ځي نو هغه ټکي نور هم زيا تيږي تر دے حده چه زړهٔ بيخي تک تور شي بيا په دغې زړهٔ کښ خير طرف ته رغبت او شوق پاتے نهٔ شي بلکه هم شر طرف ته بے مخه وي. اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا مِنْهُ.

هم دے طرف ته د قرآنِ پاک په دے ايت کښ اشاره ده كَلَّا بَلْ سكتہ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ (بے شکه د دوي په زړونو بدٔ عملونو زنګ نګولے دے) په يو حديث کښ راځي چه نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمائي چه دوه واعظان پريږدم يو ويونکے، بل خاموش. ويونکے قرآن شريف دے او خاموش مرګه ياد. د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد په سر سترګو خو واعظونو د هغې د پاره وي چه څوک نصيحت قبلوي او د نصيحت ضرورت ګنړي. کوم ځاي چه د

سره نه دین به کاره کنړلے شی، د ترقۍ په لار کښې منع کوونکے ګنړی هلته د نصیحت ضرورت څهٔ دے او نصیحت به اوګړی څهٔ؟

حَسَنْ بَصْرِی رحمة الله عليه فرمائی چه مخکِنو خلقو به قرآن شریف د الله تعالیٰ فرمان ګنړهٔ، تموله شپه به یے په کښې فکر او سوچ کوهٔ او د ورځے به یے پرے عمل کوهٔ ـ او تاسو خلق د قرآن حرفونه زِوَر، زیر خو ډیر ښهٔ سَمَوئ خو د شاهنشاه فرمان یے نه ګنړئ، په کښې فکر او سوچ نه کوئ ـ

(۲۰) عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم اِنَّ لِکُلِّ شَيْءٍ شَرَفًا يَتَبَاهُوْنَ بِهٖ وَاِنَّ بَهَاءَ اُمَّتِیْ وَشَرَفَهَا الْقُرْاٰنُ ـ (رواه ابو نعيم فی الحلية)

حضرت عائِشه رضی الله عنها د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کوی چه د هر څیز د پاره شرافت او افتخار وی چه په هغے فخر کوی. ځما د اُمت شرافت او فخر قرآن شریف دے ـ

یعنی خلق د خپلو پلرونو، نیکونو خاندانونو او هم د غه شان په ډیرو څیزونو خپل شرافت او لوئی ښکاره کوی. ځما د اُمت د پاره د فخر ذریعه قرآن شریف دے چه د قرآن شریف لوستل، یادول، لوستل او عمل پرے کول غرض هر یو څیز یے د فخر قابل دے او ولے به نه وی چه د محبوب کلام دے، د آقا فرمان دے. د دُنیا د لوئی نه لوئی شرافت هم د دهٔ برابر نهٔ شی کیدے. بله دا چه د دُنیا هر څومره کمالات دی هغه که نن نه وی نو صبا به ختمیدونکی دی. خو د قرآن شریف شرافت او کمال همیشه دے. حیڅ کله ختمیدونکے نهٔ دے د قرآن شریف واړهٔ نه واړهٔ صفتونه داسے دی چه د فخر د پاره د هغے نه هر یو کافی دے بیا چه په کښې هغه ټول صفتونه په کامل طور موندلے شی مثلاً د قرآن شریف ښکلے او جامع بیان، ښکلے طرز، د لفظونو مناسبت، د خبرو یو بل سره تړون، د تیر شوو او د راتلونکو واقعاتو خبر د ارے، د خلقو متعلق داسے الزامات که چرے هغوی هغه دروغ ثابتول غواړی نو نشی یے کولے لکه یهودیانو د محبت د دعوے سره د مرګ آرزو نهٔ کوله، د آوریدو ونکو دے نه اثر اخستل لوستونکی تر یے هیڅ کله نهٔ ستومانه کیدل عمال دا دے چه هر یو کلام که

هغه زړهٔ ته ښومره خوږ معلومیږي، لیونے کوونکے دمعشوقے خطونه لولي؟ که ورځ کښې په لس ځله ویلو ترے زړهٔ ستومانه نهٔ شي نو په شل ځله لوستلو به ترے ستومانه شي که په شل ځله نهٔ شي نو په څلویښت ځله به ترے ستومانه شي چرے خو به ترے ستومانه شي. خو د قرآن شریف یوه رکوع یاده کړه دره ځله یے اُوایه، څلور ځله یے اُوایه، ټول عمر یے وایه چرے به ترے زړهٔ بستومانه (اومو‌ړ) نشي که څهٔ منع کوونکے څیز نشے ته راځي نو هغه به په خپله زر ختمید ونکے او وقتي وي. ښومره چه قرآن شریف لوستلے شي هغه هومره به تازه والی او مزه کښې زیاتوالے کیږي وغیره وغیره. دا کار دا سے دی که د چا په کلام کښې درے نه یو هُم بیا مُوندے شي خوا که په پوره طورنهٔ وي نو په هغے ښومره فخر کولے شي بیا چه د چا په کلام کښې دا ټول په ټول صفتونه په کامله وجه مُوندلے شي نو په هغے به ښومره فخر وي. درے نه پس یو سلعت مونږ ته پخپل حالت هُم غور کول دي چه په مونږ کښې ښومره خلق دي چه هغوی ته په خپل حافظ قرآن کیدو فخر دے یا څومره به نظر کښې د چا حافظ قرآن کیدل سبب د شرافت دے یا مونږ خپل شرافت او فخر اُوچتو اُوچتو ډګرو، لویو لویو القابونو، دُنیاوي شان و شوکت او د مرتبے نه پس پاتے کیدونکي مال و دولت کښې ګنړو - فَإِلَى اللّٰهِ الْمُشْتَكٰى -

(۲۱) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوْصِنِیْ قَالَ عَلَیْكَ بِتَقْوَی اللّٰهِ فَاِنَّهٗ رَاْسُ الْاَمْرِ كُلِّهٖ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ زِدْنِیْ قَالَ عَلَیْكَ بِتِلَاوَةِ الْقُرْاٰنِ فَاِنَّهٗ نُوْرٌ لَّكَ فِی الْاَرْضِ وَذُخْرٌ لَّكَ فِی السَّمَآءِ (رواه ابن حبان فی صحیحه فی حدیث طویل)

حضرت اَبُوذَر رضی الله عنه وائي چه ما نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته خواست اُوکړو چه ما ته څهٔ وصیت اُوکړئ. نبي اکرم صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه د تقوٰی اهتمام کوه چه دا د ټولو کارونو جرړه ده. ما عرض اُوکړو چه دے سره راته نور څهٔ هُم ارشاد اُوفرمایئ. نبي علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل چه د قرآن د تلاوت کوشش کوه چه په دُنیا کښې دا نُور دے او آخرت کښې ذخیره ده.

"تقوٰی" په حقیقت کښې د ټولو کارونو جرړه ده. کوم زړه کښې چه د الله تعالیٰ

ورته پیدا شی د هغهٔ نه بیا څهٔ ګناه نهٔ کیږی او نهٔ بیا په هغهٔ څهٔ قسمه تنګسیا راځی. وَمَنْ يَتَّقِ اللهَ يَجْعَلْ لَّهُ مَخْرَجًا وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ (څوک چه تقوٰی حاصله کړی نو الله جل شانهٔ د دهٔ د پاره په هره تنګسیا کښ څهٔ لاره راوباسی او داسے ورته روزی رسوی چه د دهٔ وهم و ګمان کښ هم نهٔ وی.

د تلاوت نور کیدل رو صبنی روایتونو نه هم معلومه شوه. شرح احیاء کښ معرفة ابونعیم نه نقل کړی دی چه حضرت باسط رحمة الله علیه د نبی اکرم ﷺ دا ارشاد ذکر کړو چه په کومو کورونو کښ د قرآن پاک تلاوت کیږی (نو هغه کورونه آسمان والوته داسے ځلیږی لکه زمکے والوته په آسمان کښ ستوری. د احدیث "ترغیب" وغیره کښ هم دغه هومره نقل شوے دے. د امختصر دے اصل روایت ډیر اوږد دے چه هغهٔ ابن حبانؒ وغیره نه ملا علی قاری رحمة الله علیه مفصل او سیوطی رحمة الله علیه څهٔ مختصر نقل کړے دے اګرچه ځمونږ د رسالے مناسب دغه هومره حصه وه چه کومه پورته تیره شوه خو چونکه پوره حدیث کښ ډیرے ضروری او د فائدے خبرے دی، په دے وجه ټول حدیث مطلب نقل کوم چه هغه دا دے.

ابوذر رضی الله عنه وائی چه ما د نبی اکرم ﷺ نه تپوس اوکړو چه الله تعالٰی ټول کتابونه څومره نازل کړی دی؟ نبی علیه السلام ارشاد اوفرمایهٔ چه سل صحیفے او څلور کتابونه! پنځوس صحیفے په حضرت شیث علیه السلام، دیرش صحیفے په حضرت ادریس علیه السلام، لس صحیفے په حضرت ابراهیم علیه السلام او لس صحیفے په حضرت موسٰی علیه السلام د تورات نازلید ونه وړاندے. او د دے نه علاوه څلور کتابونه، تورات، انجیل، زبور او قرآن شریف یے نازل کړی دی. ما تپوس اوکړهٔ چه د حضرت ابراهیم علیه السلام صحیفو کښ څهٔ څیز وو؟ ارشاد یے اوفرمایهٔ هغه ټول مثالونه وو.

مثلاً اے قبضه کونکیه مغروره بادشاه! ما ته دے د پاره نهٔ وې لیږلے چه پیسه په پیسه جمع کړے ملګوتهٔ دے د پاره لیږلے وې چه ما ته د

مظلوم فریاد راوُنه رسی ته، ږو بیه نه دهغهٔ انتظام اُوکړے خلکه چه ځان د مظلوم فریاد نهٔ ردکوم اګرچه فریادی کافر ولے نهٔ وی.

بنده بیکاره (یعنی شیخ الحدیث ﷫) وائی چه نبی اکرم ﷺ به کله خپلو صحابو کښې امیر یا حاکم جوړ وو او چرته به یې لیږلو نو د نورو نصیحتونو نه علاوه به یې ورته ضرور فرمایل وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ فَإِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ چه د مظلوم د ښیرو نه ځان ساته ځکه چه د دهٔ او د الله جل شانهٔ ترمینځه هیڅ پرده نشته. ــه

بترس از آهِ مظلوماں کہ ہنگام دُعا کردن ❁ اجابت از درِ حق بہرِ استقبال می آید

د مظلوم د آه نه اُویریږه چه د دُعا کولو په وخت د الله تعالیٰ له طرفه قبلیدال ورله مخے له راځی.

دغه رنګے د ے صحیفوکښې دا هُم وُو چه عقلمند د پاره ضروری دهٔ چه تر څو لیونے شوے نهٔ وی خپل ټول وختونه په دریو حصو تقسیم کړی. یوه حصه کښې د خپل رب عبادت کوی، او په یوه حصه کښې د خپل نفس محاسبه (یعنی د ځان سره حساب) کوی او د افکر دِکوی چه څومره کارونه مِ ښهٔ اُوکړهٔ او څومره بد، او په یوه حصه کښې د حلاله کټه کوی. عقلمند د پاره دا هُم ضروری دهٔ چه د خپلو وختونو حفاظت کوی، د خپلو حالاتو سمولو په فکر کښې دِ اُوسی، د خپلے ژبے د فضولو او د بے فائدے خبرو نه حفاظت کوی. څوک چه د خپلو خبرو محاسبه کوی د هغهٔ ژبه به بے فائدے خبرو کښې کمه چلیږی. عقلمند د پاره ضروری دهٔ چه د دریو څیزونو نه د بغیر سفر نهٔ کوی. یا د آخرت د پاره یے توښه مقصود وی یا د روزئ څهٔ فکر یے وی یا سیر و سیاحت خو په شرط د ے چه مُباح (جائز) وی.

ما تپوس اُوکړو چه اے د الله رسُوله ﷺ د حضرت موسیٰ علیه السلام په صحیفوکښې څهٔ څیزوو. ارشاد یے اُوفرمائیلو چه ټولے په ټولے د عبرت خبرے وے مثلاً څهٔ حیرانیږم په هغه چاچه دَ دهٔ په مرګ یقین وی بیا په څهٔ خبره خوشحالی کوی (ځکه چه کله د چا مثلاً دا یقین اُوشی چه څما د پهانسئ

ځکه شوے دے ډیر زر به پهانسئ ته ځيجوړلے شم۔ بيا هغه په هيڅ څيز نشی خوشحاليدے) څه حيرانتيا کوم په هغه چا چه دا ته د مرګ يقين وی بيا دِ ے خاندی۔ څه حيرانتيا کوم په هغه چا چه د دُنيا ناڅاپی واقعات، بدليدل رابدليدل، انقلابات هر وخت وينی بيا هم په دُنيا باندے اطمينان کوی څه حيرانتيا کوم په هغه چا چه د ده په تقدير يقين وی بيا په غم او مشقت کښ ځان اخته کوی۔ څه حيرانتيا کوم په هغه چا چه په حساب کتاب يقين لری بيا نيک عملونه نه کوی۔ ما عرض اُوکړو۔ اے د الله رسوله (صلی الله علیه وسلم) ما ته څه وصيت اُوکړئ۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د ټولونه اول د تقویٰ وصيت اُوفرمايهٔ او ارشاد يے اُوفرمايهٔ چه دا د ټولو نيک کارونو بنيادی او جرړه ده۔ ما عرض اُوکړو څهٔ نور زيات هم را ته اُوفرمايئ۔ ارشاد اُوشو چه د قرآن شريف د تلاوت او د الله تعالیٰ د ذکر پابندی کوه چه دا په دُنيا کښ نور دے او په آسمان کښ ذخيره ده۔ ما نور زيات ته غوښتنه اُوکړه۔ ارشاد اُوشو چه د ډير خندا نه ځان ساته، په دے زړهٔ مړ کيږی او د مخ رونق پرے ځی (يعنی ظاهر باطن دواړو ته نقصان رسوونکے څيز دے) ما نور د زياتی درخواست اُوکړو نو ارشاد اُوشو چه د جهاد اهتمام کوه ځکه د اُمت د پاره هم دا رهبانيت دے راهب به مخکنو اُمتونو کښ هغه خلقو ته ويلے شو چه د دُنيا ټول تعلقات به يے پريخودل الله والا به جوړ شو) ما نور زيا توالے اُوغوښتهٔ نو ارشاد اُوشو چه فقيرانو مسکينانو سره کښيناستل ساته، هغوی سره دوستی او ناسته پاسته کوه ما نور راته اُوايئ نو وے فرمايل چه د ځان نه د کښے درجے خلقو باندے نظر ساته (چه د شکر عادت دِ شی) او د ځان نه اُوچتو خلقو ته مهٔ ګوره هسے نه چه د الله تعالیٰ کوم نعمتونه په تا دی د هغے سپکوالے اُوکړے۔ ما نور زيا توالے اُوغوښتهٔ نو ارشاد اُوشو چه ستا خپل عيبونه دِ د خلقو د عيبونو بيانولو نه تا منع کړی او د هغوی په هغے عيبونو د خبريدو کوشش مهٔ کوه چه تهٔ په هغے کښ په خپله ګير يے۔ ستا د عيب لګولو د پاره دومره بس ده چه تهٔ په خلقو کښ داسے عيبونه اُوپيژنے کوم چه په تا کښ په خپله موجود دی او تهٔ د هغے نه

بےخبره یے او دا ئے خبر نه یے چه هغوی کښې را اُوپا ئے چه هغه ته په خپله کوم.
بیا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د شفقت لاس مُبارك خپل په سینه راکښلو وے فرمایل
چه ابُوذَرّه! د تدبیر برابر هیڅ عقلمندی نشته او نا روا کارونو نه د بچ کیدو
برابر هیڅ تقویٰ نشته او د ښهٔ خوئ نه زیات هیڅ شرافت نشته. اه.
(د ے کښې دخُلاصے او د مطلب زیات لحاظ کړے شوے دے د ټولو
الفاظو د ترجمے لحاظ نهٔ دے کړے شوے.)

۲۲ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِیْ بَیْتٍ مِّنْ بُیُوْتِ اللهِ یَتْلُوْنَ کِتَابَ اللهِ وَیَتَدَارَسُوْنَهٗ بَیْنَهُمْ اِلَّا نَزَلَتْ عَلَیْهِمُ السَّکِیْنَةُ وَغَشِیَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَحَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِکَةُ وَذَکَرَهُمُ اللهُ فِیْمَنْ عِنْدَهٗ. (رواه مسلم وابوداود)

حضرت اَبُوهُرَیْرَه رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه کوم یو قوم د الله د کورُونو نه په یو کور کښې راجمع شی د قرآنِ پاك تلاوت او د هغے په خپل مینځ کښې درس او تدریس کوی مګر په هغوی سکینه نازلیږی او رحمت پرے غوړیږی) او د رحمت فرښتے ترے چاپیره کیږی) او الله جلّ شانهٔ د هغوی ذکر د فرښتو په مجلس کښې فرمائی.

په دے حدیث شریف کښې د اِسلامی مکتبُونو او مدرسو خاص فضیلت ذکر کړے شوے دے چه په کښې د اِکرام ډیر قسمونه شامل دی. دے کښې هر یو اِکرام داسے دے چه د هغے په حاصلولو کښې کهٔ څوك ټول عُمر اُولګوی بیا هم ارزان دے. بیا دا الاخِرهٔ کوے چه داسے بے شمیره انعامات بیان شوی دی، خصوصاً آخری فضیلت د آقا په دربار کښې ذکر، د محبوب په مجلس کښې یادیدل داسے نعمت دے چه د دے مقابله هیڅ یو څیز نشی کولے.

د سکینے نازلیدل په کثرو روایتونو کښې راغلی دی. د دے په ربنتونے کیدو کښې د محدیثو د عالمانو بیو څو اَقوال (یعنی وَینا ګانے) دی خو په دے کښې څهٔ داسے اختلاف نشته چه په خپل مینځ کښې یو څهٔ مُخالفت وی بلکه د ټولو مجموعه ترے هم مُراد کیدے شی.

حضرت علی کرم الله وجهه نه د سکینے تفسیر دا نقل شوے دے چه هغه یوه خاصه

هَوَادَه چه دهغې مخ دَ انسان دمخ په شان وي. عَلَّامَه سُدِّيُ رحمة الله عليه نه نقل کړې شوې دي چه هغه دجَنت ديو لګن نوم دے چه د سرو زرو دے په هغې کښې دپيغمبرانو زړونو ته غسل ورکولے شي. بعضو ويلے دي چه دا يو خاص رحمت دے. طَبَرِي رحمة الله عليه دا خوښ کړے دے چه دے ته سکونِ قلب (يعنی دزړه آرام) مراد دے بعضے وائی چه طمانيت ترے مراد دے. بعضو تفسير په عزت سره کړے دے. نو چا يے ملائکو سره کړے دے. بعضو په کښې نور نور تفسيرونه هم کړي دي. دحافظ اِبْنِ حَجَر رحمة الله عليه رائے په فَتْحُ الْبَارِي کښې دا ده چه د سکينې پوره راتلل

په ټولو باندے کيږي. دنَوَوِي رحمة الله عليه رائے ده چه دا يو داسے څيز دے چه طمانيت، رحمت وغيره ټول پکښې راجمع کيږي او ملائکو سره نازليږي. په قرآن شريف کښې ارشاد دے فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلَيْهِ (سورة توبہ ع ۶) بل ځائې ارشاد دے هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ (سورة فتح ع ۱) يو ځائې ارشاد دے فِيْهِ سَكِيْنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ (سورة البقرہ ع ۳۲). غرض دا چه په ګڼرو آيتونو کښې ددے ذکر دے. او دحديثونو په ګڼرو روايتونو کښې ددے ذکر ے فرمايلے شوے دے.

په اِحْيَاء نومې کتاب کښې نقل دے چه اِبْنِ ثَوْبَانْ رضی الله عنه خپل يو دوست سره دروژه ماتي وعده اُوکړه خو بله ورځ دصبا په وخت کښې ورغے هغه ورته شکايت اُوکړو، نو دهٔ ورته اُووے که چرے ځما تا سره وعده نه وے نو هيچا له به مې دِدے حال نه وو ويلے چه ځهٔ څهٔ څيز منع کړم. په ما اتفاقاً نا وخته شوے وو. ترڅو چه ما ماسخوتن دمانځه وخت راغے. خيال مې شو چه وِتر هم ورسره اُوکړم دمرګ وخت معلوم نهٔ دے هسے نه چه د شپے مړ شم نو دا به مې په زِمه باقي پاتے شي. ما دُعائے قُنوت لوسته چه مې دجنت يو شين باغ په نظر راغے. په هغې کښې هر قِسمه ګلونه وغيره وُو. د هغې په کتلو کښې داسے مشغول شوم چه سحر شو. ددے قِسمه په سوونو واقعات دي چه دبزرګانو په حالاتو کښې ليکلے شوي دي خو ددے دښکاره کيدو هغه وخت وي کله چه دمخلوق نه تعلق ختم شي او هُم الله تعالیٰ طرف ته کامله تَوَجُّه پيدا شي.

دملائکو د پاسه خوریدل په ګنړو روایتونو کښې راغلی دی. د اُسَید بن حُضَیر رضی الله عنه تفصیلی قصه د حدیثونو په کتابونو کښې راغلې چه هغه د تلاوت په وخت کښې د هغه د پاسه یو وریځ شان څیز شوے محسوسه کړه. نبی اکرم ﷺ ورته اُوفرمایل چه دا ملائکې وے د قرآن شریف اوریدو له راغلی وے دملائکو ډګنړوالی په وجه وریځ شان معلومیده. یو صحابی ته یو وارے وریځ غوندے محسوسه شوه نو نبی اکرم ﷺ ورته اُوفرمایل چه دا سکینه وه یعنی رحمت وُو چه د قرآن شریف په وجه نازل شوے وو. مُسلم شریف کښې دا حدیث زیات په تفصیل راغلے دے په هغې کښې نور هم مضامین دی په آخیر کښې ورسره دا جُمله هم زیاته ده مَنْ بَطَّأَ بِهٖ عَمَلُهٗ لَمْ يُسْرِعْ بِهٖ نَسَبُهٗ یعنی لرو چه د هغه بد عملونه د رحمت نه ستوکړی د هغه اُوچت نسب اُوچت خاندان کیدل یے رحمت ته نشی نزدے کولے، یو کس چه پُشت په پُشت د اُوچت نسب خاوند دے خو ګناهونو کښې اخته دے هغه د الله تعالیٰ په نزد د هغې خلکه نسبه کم زاته مُسلمان برابر هیڅ کله نه شی کولے کوم چه مُتقی پرهیز ګار دے. اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰكُمْ۔

(۲۳) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِنَّكُمْ لَا تَرْجِعُوْنَ اِلَى اللّٰهِ بِشَیْءٍ اَفْضَلَ مِمَّا خَرَجَ مِنْهُ يَعْنِی الْقُرْاٰنَ۔

(رواه الحاکم وصححه ابوداؤد فی مراسیله عن جبیر بن نفیر والترمذی عن ابی امامة بمعناه.)

حضرت ابوذر رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ دا ارشاد نقل کوی چه تاسو خلق الله جل شانهٗ طرفته رجوع یعنی ورتلل او نزدیکت د هغې څیز نه زیات په بل څیز سره نه شی حاصلولے، چه کوم په خپله د الله جل شانهٗ نه وتے دے یعنی قرآن پاک۔

ډګنړو روایتونو نه دا مضمون ثابت دے چه د الله جل شانهٗ په دربار کښې د قرآن پاک نه زیات نزدیکت په بل هیڅ څیز نه حاصلیږی. امام اَحمد بن حَنبَل رحمة الله علیه فرمائی چه ما په خوب کښې د الله جل شانهٗ زیارت اُوکړو. نو تپوس مِ ترے اُوکړو چه بهتر څیز چه په هغې ستا په دربار کښې نزدیکت حاصلیږی څه څیز دے؟ ارشاد اُوشو، اَحمَده! زما کلام دے. ما عرض

اُوكړو چه په پوهه يا بے پوهے. ارشاد اُوشوكۀ په پوهه لوَلى يا بے پوهے په دواړه شانه لوستل (الله ته) د نزديكت ذريعه ده. د دے حديث شريف وضاحت او د قرآن شريف د تلاوت د ټولو نه بهتره طريقه د نزديكت په بۀ شان بيانول د حضرت مولانا شاه عبد العزيز صاحب دهلوى رحمة الله عليه د تفسير نه را اِخستے شوے ده چه د هغے خلاصه دا ده چه سُلُوكَ اِلَى الله يعنى مرتبۀ احسان د الله جَلَّ جَلَالُهٗ د حاضر كنړلو نوم دے چه دا په دريو طريقو سره حاصليږى.

**اوّل تصوّر** چه د شرعے په عُرف كښ ورته تَفَكُّر او تَدَبُّر يعنى فكر او سوچ ورته ويلے كيږى او د صوفيانو په نزد ورته مراقبه وائى.

**دوّيم ذكرِ لسانى** (يعنى په ژبه ذكر كول)

**درّيم** د قرآنِ پاك تلاوت. د ټولو نه اوله طريقه چونكه ذكرِ قلبى دے په دے وجه په حقيقت كښ طريقے هم دوه دى. اوّل ذكرِ عام دے كۀ په ژبه وى او كۀ په زړۀ كښ. دوّيم تلاوت دے. نو كۀ ذكو لفظ نسبت چه الله جلّ شانهٗ ته كيږى او هغه بار بار ويلے كيږى كوم چه د ذكر مقصد دے نو دا قوّتِ مُدرِكه په هغے ذات طرف ته د تَوَجُّه او د پام سبب شى گويا چه هغه ذات ورته حاضر وى او د دے هميشه حاضر كنړلو نوم د الله تعالىٰ معيّت (ملگرتيا) دے. كوم ته چه په دے حديث شريف كښ ارشاد فرمائيلے دے.

لَا يَزَالُ عَبْدِىْ يَتَقَرَّبُ اِلَىَّ بِالنَّوَافِلِ حَتّٰى اُحِبَّهٗ فَكُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِىْ يَسْمَعُ بِهٖ وَبَصَرَهُ الَّذِىْ يُبْصِرُ بِهٖ وَيَدَهُ الَّتِىْ يَبْطِشُ بِهَا (الحديث)

(حديثِ قدسى دے نبى اكرم صلى الله عليه وسلم فرمائى چه د الله تعالىٰ ارشاد دے چه بنده په نفلى عباداتو نو ما ته نزديكت حاصلوى د ے پورے چه څۀ هم هغه محبوب جوړ كړم ترد ے چه څۀ د هغۀ غوږ جوړ شم چه په هغے هغه اَورى او ستركه جوړه شم چه په هغے هغه وينى او لاس، چه په هغے هغه نيول كوى او پښے چه په هغے هغه گرزى.)

يعنى كله چه بنده د ډير عبادت كولو په بركت د الله تعالىٰ مُقَرَّب جوړ شى.

لے د الله تعالىٰ د معرفت طلب!!

نو الله تعالیٰ د هغهٔ د اند امونو حفاظت کوُنکے شی۔ بیا ستر‌گے غوږونه هرڅهٔ
د آقا د مرضیٔ تابع شی۔ او د نفلی عبادت پیروالے یے ځکه اُوفرمایهٔ چه فرض
خو مقرر دی په هغے کښ زیروالے نشی کیدے او د دے د پاره د الله تعالیٰ همیشه
حاضر کنړلو ضرورت دے ځکه چه په وجے معلومه شوه۔ خو دُتقرّب د الطريقه
صرف د هغے محبوب پاک ذات د پاره ده۔ کهٔ څوك اُوغواړی چه د بل چا د نوم
په تسبیح ویلو سره هغهٔ ته تقرب حاصل کړی نو دا ممکنه نهٔ ده ځکه چه دے
قِسمه تقرّب کښ چا طرف ته چه تقرّب مقصود وی په هغهٔ کښ دُ دوو
خبرو موندل ضروری دی۔

**اول** دا چه د هغهٔ علم محیط (راگیرونکے) وی د ذکر کوُنکو د زړهٔ او د ژبے ذکرونو
لره اگرچه هغوی په مختلفو زمانو او په مختلفو وختونو کښ ذکر کوی۔

**دویم** دا چه د ذکر کوُنکی په مُدرِکه کښ تجلّی (انوارات) او د هغے د ښکولو
قُدرت یے وی چه هغے ته په عُرف کښ دُنو او تدلی، نزول او قُرب وائی۔

اوچونکه دا دواړه خبرے هم په دے مطلوب (الله تعالیٰ) کښ موندلے
شی د دے وجے په پورتنی طریقه تقرّب هم د دے پاك ذات سره حاصلیدے شی
او هُم دے طرف ته په دے حدیثِ قُدسی کښ اشاره ده چه پکښ ارشاد دے
مَنْ تَقَرَّبَ إِلَيَّ شِبْرًا تَقَرَّبْتُ إِلَيْهِ ذِرَاعًا الحدیث (چه څوك ما طرف ته یوه
لویشت رانزدے کیږی نو ځهٔ هغهٔ طرف ته یو لاس ورنزدے کیږم او چه
څوك ما طرف ته یو لاس رانزدے کیږی نو ځهٔ هغهٔ طرف ته یو باع یعنی دَ
دوهٔ لاسونو د اُوږدوالی په اندازه ورنزدے کیږم او څوك چه ما طرف ته په
معمولی رفتار راځی ځهٔ هغهٔ طرف ته په منډه ورځم۔)

دا قِسمه تول مثالونه د یوهٔ لوی پاره دی کنی الله جلّ شانهٔ ذکرزید
راکرزید و غیره تولو نه پاك دے۔

مقصود دا دے چه الله جلّ شانهٔ خپل یادَوُنکو او تلاش کوُنکو ته د هغوی
د طلب او کوشش نه زیاته توجّه او نزولِ رحمت فرمائی او ولے به نهٔ فرمائی چه دَ
کریم (سخی ذات) دکرَم مُناسب هم دا ده۔ نو هر کله چه د یادَوُنکو د طرفه یادَوُلو

کښې همیشه والے وی نو د الله جل شانهٗ د طرفه توجّه (او د) رحمت نزول کښې هم همیشګی وی. قرآن شریف چونکه سراسر ذکر دے، د دے هیڅ یوایت د ذکر او توجه اِلَی الله نه خالی نه دے۔ نو هُم دغه خبره صرف په دے کښې مونده شی۔ ولے په دے کښې یو خصوصیت زیات دے چه هغه د زیات تقرّب سبب دے هغه دا دے چه هر یو کلام د کلام ویونکی صفات او اثرات خپل ځان کښې اخستی وی او ښکاره خبره ده چه د فاسقانو فاجرانو اشعار بیا بیا ویلو سره د هغوی اثرات پیدا کیږی او د مُتّقیانو اشعار ویلو سره د هغے اثرات پید اکیږی، هُم د دے وجے نه په مَنطِق او فلسفه کښې د ډیرے مشغولیتیا سره غرور او تکبر پیدا کیږی او په احادیثو کښې ډیرے مشغولتیا سره تواضع پیدا کیږی، دغه وجه ده چه فارسی او انګریزی د ژبے په حیثیت سره دواړه برابر دی خو د ګومو مُصنّفینو کتابونه چه لوستلے شی د هغوی د مختلفو اثراتو په وجه په فائدو کښې هُم اختلاف وی۔ خُلاصه دا ده چه په کلام کښې همیشه د کلام ویونکی اثرات مونده شی نو په دے وجه کلامِ الٰهی یعنی قرآن شریف بار بار ویلو سره د الله تعالیٰ د صفاتو اثرات هُم پیدا کیدل او هغه سره طبعاً مناسبت پیدا کیدل هم یقینی دی۔ بله دا چه د هر کتاب لیکونکی دا قاعده ده چه څوك د هغه د کتاب اهتمام کوی نو فطرةً هغه طرف ته یے پام او توجّه کیږی. په دے وجه د الله جل شانهٗ د کلام (یعنی قرآن شریف) ویونکی طرف ته د الله تعالیٰ زیاته توجّه هُم ښکاره او یقینی ده چه د زیات نزدیکت سبب ګرزی۔ آقائے کریم د خپل کرم ما هُم په دے مهربانی مُشرّف کړی او تاسو هُم۔

(۱۲) عَنْ اَنَسٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم اِنَّ لِلّٰهِ اَهْلِيْنَ مِنَ النَّاسِ قَالُوْا مَنْ هُمْ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ اَهْلُ الْقُرْاٰنِ هُمْ اَهْلُ اللهِ وَخَاصَّتُهٗ. (رواه النسائی وابن ماجة والحاکم واحمد)

حضرت اَنَس رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے دے چه د الله تعالیٰ د پاره بعضے خلق خاص د کور خلق دی اصحابو رضی الله عنهم عرض اوکړو چه هغه کوم خلق دی؟ ورته وفرمائیل چه قرآن شریف والا چه دوی د الله تعالیٰ اهل دی او خواص۔

قرآن والا هغه مخلق دی چه هر وخت په کلام پاک کښې مشغول اُوسی
او ورسره مخصوصیت ساتی۔ دَ دوی ته الله تعالیٰ اهل او خواص کیدل بنکاری
دی او د تیر شوی مضمون نه هُم واضحه شوه چه دوی هر وخت په کلام پاک
کښې مشغول اُوسی نو د الله تعالیٰ مهربانئی هُم هر وخت دوی طرف ته
متوّجّه وی او خوک چه هر وخت چا سره نزدے ناسته پاسته کوی
هغه اهل او خواص وی۔ څومره لوئی فضیلت دے چه په لږ څه محنت
او مُشقت الله والا جوړیږی، د الله تعالیٰ اهل شماریږی او د هغهٔ
خواصو کیدلو عزت ورته حاصلیږی۔
دُنیوی دربارونو کښې صرف د داخلے اجازت د پاره، په ممبرانو کښې
صرف د شاملیدو د پاره څومره چانی او مالی قربانی ورکولے شی، دَ ووټ
ورکوونکو مخکښې خوشامندے کولے شی، ذِلتونه برداشت کولے شی او دا تول
کار گنړلے شی خو دَ قرآن شریف محنت بیکاره گنړلے شی۔ ع
ببیں تفاوتِ رہ از کجا است تا بہ کجا
اوګوره دلارے فرق دکوم ځائی نه ترکوم ځائی پورے دے۔

﴿۲۵﴾ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَا اَذِنَ اللهُ لِشَیْءٍ مَا اَذِنَ لِنَبِیٍّ یَتَغَنّٰی بِالْقُرْاٰنِ۔ (رواه البخاری ومسلم)

حضرت ابُوهُرَیرَه رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے دے چه الله جل شانهٔ هیچا ته دومره توجّه نهٔ فرمائی څومره چه د هغهٔ نبی اواز ته توجّه سره اَوری چه قرآن شریف په خوش اوازئ لولی۔

وَرانده معلومه شوه چه الله جل شانهٔ خپل کلام طرف ته په خصوصیت سره توجّه فرمائی۔ په لوستونکو کښې انبیاء کرام علیهم السلام چونکه د تلاوت اداب په کامله وجه اداکوی نو ځکه دوی طرف ته د الله تعالیٰ زیاته توجّه کیدل هُم بنکاره ده بیا چه خوش اوازی ورسره وی لکه چه سرُوز روله سُهاګه ورکړے نو راو ځلیږی۔ څومره چه زیاته توجّه وی نو مُناسب ده او د انبیاء کرامو نه پس دَ بهترونه پس ورپسے بهتر د حیثیت مطابق لوستونکو طرف ته توجّه وی۔

(۲۹) عَنْ فُضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اَللّٰهُ اَشَدُّ اَذَنًا اِلٰى قَارِئِ الْقُرْاٰنِ مِنْ صَاحِبِ الْقَيْنَةِ اِلٰى قَيْنَتِهٖ۔ (رواه ابن ماجة وابن حبان والحاكم كذا فى شرح الاحياء. قلت وقال الحاكم صحيح على شرطهما وقال الذهبى منقطع)

حضرت فضاله بن عبيد رضی اللہ عنہ د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه نقل کوی چه الله تعالی د قاری اواز طرف ته دهغه کس نه زیات غوږ بردی کوم چه دخپلے سندرغاړے وینزے سندرے اوری۔

دسندرو اواز طرف ته فطرةً او طبعاً توجه کیږی خو دشرعی ممانعت له کبله دیندار خلق اخوا نه متوجه کیږی خو که سندرغاړے خپله وینزه وی نو دهغے سندرو اوریدو کښ څه شرعی نقصان نشته۔ ددے کبله هغے طرفته پوره توجه کیږی البته په قرآن شریف کښ دا ضروری ده چه دسندرو په اواز دِ نه لوستلے کیږی۔ په حدیثونو کښ ددے ممانعت راغلے دے۔ په حدیث کښ دی اِيَّاكُمْ وَلُحُوْنَ اَهْلِ الْعِشْقِ (الحدیث) ددے نه ځان بچ ساتئ څنګه چه عاشقان دغزلونو سازا و اواز جوړ کړی او دساز سرود په قاعدو یے لولی، داسے یے مه لولئ۔

عالمانو لیکلی دی چه په داسے طریقه لوستونکے فاسق او اوریدونکے یے ګناهګار دے خو دسندرو د قاعدو د لحاظ ساتلو نه بغیر خوش اوازی پکار ده۔ په ډیرو حدیثونو کښ ددے ترغیب راغلے دے۔ یو ځائ ارشاد دے په ښه اواز قرآن ښائسته کوئ۔ بل ځائ ارشاد دے چه په ښه اواز د قرآن شریف حسن دوچنده کیږی۔

حضرت شیخ عبد القادر جیلانی رحمۃ اللہ علیہ په خپل کتاب "غُنْيَة" کښ ارشاد فرمائی چه عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ یو وارے د کوفے په خوا و شا کښ تیریدهٔ په یو کور کښ فاسقان راجمع شوی وُو۔ یو غزلچی چه نوم یے زاذان وو سندرے ویلے او سرینده یے غږوله۔ ابن مسعود رضی اللہ عنہ چه دهغهٔ اواز واوریدهٔ وے فرمایل څومره ښهٔ اواز به وُو که چرے د قرآن شریف تلاوت پرے کیدلے او په خپل سر یے څادر واچوُ تیر شو۔ هغوی په خبره کوله

زاذان اُولیدهٔ دخلقونه په تپوس معلومه شوه چه عبد الله بن مسعود رضی الله عنه صحابی دے او دا خبره یے اُوفرمایله. په زاذان باندے د دے خبرے څومره هیبت پریوُت چه حد یے نهٔ وو، قصه مختصر دا چه د تهنګ ټکور توا سامان یے مات کړو او په عبد الله بن مسعود رضی الله عنه پسے اُولګیدهٔ او دومره علامه (یعنی لوئی عالِم) ترے جوړ شو. غرض دا چه په ډیرو روایتونو کښ په ښهٔ آواز سره د تلاوت تعریف راغلے دے خودے سره د سند رویه او آواز کښ دَ لوستلو مُمانعت هم راغلے دے څنګه چه وړاندے تیر شو. حضرت حُذَیفَه رضی الله عنه وائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه قرآن شریف دعربو په آواز کښ لولی، دعِشق بازانو او یهودیانو او عیسایانو په آواز کښ یے مهٔ لولی. ډیر زر یو قوم راتلونکے دے چه د سندرو او مړو پسے ژړا کونکو په شان په آوازونه جوړوی او قرآن شریف به لولی. دغه تلاوت به دوی ته یوه ذره هم فائده نهٔ ورکوی. په خپله به هم دغه خلق په فِتنه کښ پریوُزی او چا ته چه د دوی وَیناښهٔ معلومیږی هغوی به هم فتنه کښ غورزوی. طاؤس رحمة الله علیه فرمائی چه چا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه اُوکړه چه په ښهٔ آواز لوستونکے څوک دے؟ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ هغه څوک دے چه کله ته هغه په تلاوت کولو اُووینے نو دا محسوسه کړے چه دهٔ باندے د الله تعالیٰ ویره ده یعنی دهغهٔ د آواز نه رُعب پرے غالب شی معلومیږی. دِ دے ټولو سره د الله تعالیٰ لوئ انعام دا دے چه بنده د خپل حیثیت او طاقت موافق د دے مُکَلَّف او ذمه دار دے. په حدیث شریف کښ دی چه د الله تعالیٰ د طرفه فرښته په دے کار مقرره ده چه څوک قرآن پاک لولی او کَمَا حَقُّهٗ (څنګه چه د هغے حق دے) صحیح نشی لوستلے نو فرښته هغه صحیح کړی او پورته یے یوسی. اَللّٰهُمَّ لَا اُحْصِیْ ثَنَاءً عَلَیْكَ۔

(۲۷) عَنْ عُبَیْدَةَ الْمُلَیْکِیِّ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم یَا اَهْلَ الْقُرْاٰنِ لَا تَتَوَسَّدُوْا

حضرت عُبَیْدَةُ الْمُلَیْکِی رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی اے قرآن والو په قرآن شریف تکیه مهٔ لګوئ او د دے تلاوت شپه

الْقُرْاٰنَ وَاتْلُوْهُ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ مِنْ اٰنَآءِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَاَفْشُوْهُ وَتَغَنَّوْهُ وَتَدَبَّرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ وَلَا تَعْجَلُوْا ثَوَابَهٗ فَاِنَّ لَهٗ ثَوَابًا۔
(رواه البيهقي في شعب الايمان)

او ورځ داسے کوئ څنګه چه د دے حق دے۔ د قرآن شریف اشاعت کوئ او دا په ښه آواز لولئ او په معنوکښ یے غور و فکر کوئ چه تاسو فلاح (یعنی کامیابی) ته اورسئ او د دے بدله (په دُنیا کښ) مه غواړئ چه (اٰخرت کښ) د دے دپاره لوئ اجر دے۔

په دے حدیث کښ یے پوخو کارونه ارشاد فرمایلی دی ① په قرآن شریف تکیه مه لګوئ۔ په قرآن شریف تکیه نهٔ لګول دوه مطلبه دی۔ اوّل دا چه په قرآن شریف تکیه مهٔ لګوئ چه دا د اَدب نه خلاف (کار) دے۔ ابنِ حجر رحمة الله عليه لیکلی دی چه په قرآن شریف تکیه لګول، هغې طرف ته پښے غزول، هغې طرف ته شا کول، هغې باندے پښے ایښودل وغیره حرام دی۔ دویم دا چه اشاره ده د غفلت نه۔ چه قرآنِ پاک یے دبرکت دپاره په تکیه باندے ایښے دی لکه څنګه چه په بعضے زیارتونوکښ لیدلی شوی دی چه د قبر سرته دبرکت دپاره په رَحل کښ کیښودلے شوے وی۔ دا د قرآنِ پاک حق ضائع کول دی۔ د دے حق دا دے چه تلاوت یے اُوکړے شی۔ ② او د دے تلاوت کوئ څنګه چه د دے حق دے یعنی د اَدبو رعایت سا تلو سره یے ډیر ډیر لولئ چه په خپله قرآنِ پاک کښ هُم دے طرف ته د متوجه کولو دپاره کښ ارشاد دے اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ د (کومو خلقوته چه مونږ کتاب ورکړے دے هغوی یے داسے تلاوت کوی څنګه چه د هغے د تلاوت حق دے۔) یعنی په کوم عزت چه د بادشاه فرمان او په کوم شوق چه د محبوب کلام لوستلے شی هغه شان لوستل یے پکار دی۔ ③ او د دے اشاعت کوئ (او خوروئ یے) یعنی په تقریر (ژبه) تحریر (لیکلو)، ترغیب او عملی شرکت سره څهٔ رنګے چه کیدلے شی او چه څومره کیدلے شی د دے اشاعت کوئ۔ نبی اکرم صلى الله عليه وسلم د قرآنِ پاک د اشاعت او د دے د خورولو حکم فرمایلی خو څمونږ روشن دماغ (یعنی د مغربی تهذیب عاشقان) د دے لوستلو ته فضول وائی او ورسره د اسلام او د رسول صلى الله عليه وسلم د محبت لوئی لوئی دعوے هم کوی۔

ترسم نه رسی بکعبه اے اعرابی ✿ کین ره که تو می روی بترکستان است

ویریږم بانډې چه ته به نه رسې کعبې ته ✿ په کومه لاره چه ته روان یې ریښتیا ترکستان ته ځې

داقا حکم دے چه قرآنِ پاک خوږ کړئ خو خپل عمل دا دے چه پخوسم کوشش دے په بند یز کښې کیدے شي ایله پرے نه کوو۔ د جبري تعلیم قانون جوړ وو چه بچي د قرآنِ پاک په ځائې پرائمري اُولولي ـ مونږ له په دے غصه راځي چه د مکتب (یعنې د اسلامي مدرسے) اُستاذان د مجموعمر ضائع کوي خلک پرے مونږ هلته تعلیم نه کوو ـ مَنُو چه هغوي یقیناً کوتاهي کوي خو آیا د مکتب د اُستاذ په کوتاهئ به ستا ذمه واري ختمه شي یا به تا نه د قرآنِ پاک د اشاعت فریضه لرے شي؟ په دے حالت کښې خو دا فریضه ستا په ذمه کیږي ـ هغوي به د خپلو کوتاهو جواب په خپله ورکوي خو د هغوي د کوتاهئ په وجه ته بچي جبراً د قرآنِ پاک د مدرسو نه راوباسې او د هغوي په والدینو تس جاري کوئ چه هغوي قرآنِ پاک حفظ یا په ناظره لوستل پریږدي او د هغې وبال ستا په گردن پاتے شي ـ دا د ډیر تعجب علاج په سلکیا سره نه دے نورځه دي ـ د الله تعالیٰ په لوئ دربار کښې ستا دا جواب، چه خلکو جبراً د قرآن د تعلیم نه راوُویستل چه د اسلامي مدرسے اُستاذ په بدطریقه لوتول کول، ته په خپله سوچ اوکړه چه دا جواب څومره وزن لري ـ د کافر دوکان کښې کارکوونکو د پاره یا د انګریزانو د نوکرئ د پاره (د سکول تعلیم) په ښلورو کښې درے چیے اهمیت لري نو لري به خو د الله تعالیٰ په نزد د قرآن تعلیم د ټولو نه اهم او ضروري دے ـ ④ په خوش آوازئ سره یې لوَلَي لکه څنګه چه د دے نه مخکښې حدیث کښې تیر شو ـ ⑤ او د دے په معنو کښې غور کوئ ـ د تورات نه یې په احیاء نوم کتاب کښې نقل کړي دي ـ الله جل شانهٗ ارشاد فرمائي: "اے زما بنده! تا له زما نه شرم نه درځي ـ تا ته په لار کښې د یو دوست خط راشي نو به تلو تلو په لار کښې او دریږې ځان له جدا کینې، په غور سره یې لولې ـ په یو یو لفظ یې غور کوے ـ زما کتاب تا ته مخے ته راشي ما په هغې کښې هرڅه واضح کړي دي، د به ضرورونو خبر وم

بار بار تکرار کړې دے چه ته پرے غور اُوکړے خوته یے په بے پرواهئ سره والُونوے. ولے څهٔ ستا په نزد ستا د دوستانو نه هُم ذلیل یم؟ اے ځما بنده! ستا بعضے دوستان تا سره کیني خبرے کوي نو ته توَل په توَل هغوي ته مُتوَجه شے. غوږ ورته ږدے، غور پرے کوے، که په مینځ کښ د رسره څوک خبرے کوَل اُوغواړي نو په اشارے یے منع کوے. ځهٔ تا سره د خپل کلام په ذریعه خبرے کوَم او ته یو ه ذره هُم نهٔ متوجّه کیږے. ایا ځهٔ ستا په نزد ستا د دوستانو نه هُم زیات ذلیل یم؟ اهـ. د تَدَبُّر او غور متعلق څهٔ د کتاب په شروع کښ او څهٔ د اَتم نمبر حدیث د لاندے ذکر کړے شوے دے. (۶) او د دے بد له په دُنیا کښ مهٔ غواړئ یعنی په تلاوت څهٔ بَد له مهٔ اخلئ ځکه چه په آخرت کښ د دے ډیره لویه بَد له ملاویدونکے ده. که چرے په دُنیا کښ د دے بَدل و اخستلے شي نو د اعے داسے ده لکه چه د روپو په بدله کښ څوک په کچکو راضي شي.

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه کله ځما اُمت اشرفئ او رُوپئ لوئ څیز اُوګنړي نو د اسلام هیبت (یعنی رُعب) به ترے لاړ شي او کله چه اَمَر بِالمَعرُوف او نَهي عَنِ المُنکَر پریږدي نو د وحی د برکت یعنی د قران د پوهے نه به محرومه شي. کَذَا فِي الْإِحْيَاءِ. اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا مِنْهُ.

(۲۸) عَنْ وَاثِلَةَ رضی الله عنه رَفَعَهُ أُعْطِيتُ مَكَانَ التَّوْرَاةِ السَّبْعَ وَأُعْطِيتُ مَكَانَ الزَّبُورِ الْمِئِينَ وَأُعْطِيتُ مَكَانَ الْإِنْجِيلِ الْمَثَانِيَ وَفُضِّلْتُ بِالْمُفَصَّلِ.

حضرت واثِلَه رضی الله عنه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کړے دے چه ما ته د تورات په بد له کښ سَبعِ طوَل راکړے شوي دي او د زبور په بدله کښ مِئِین او د انجیل په بدله کښ مثاني راکړے شوي دي او مُفَصَّل خاص دي ما سره.

(رواه احمد والکبیر کذا فی جمع الفوائد)

د قران شریف اَوَلني اُوهٔ سورتونو ته طوَل ویلے شي. د دے نه پس یُونُس سورتونو ته مِئِین ویلے شي او د دے نه پس شل سُورتونو نه مثاني دي، د دے نه پس د قران خمتمید و پورے مُفَصَّل دي. د امشهور قول دے. بعضے بعضے سورتونو کښ اختلاف هُم شته چه په طوَل کښ داخل دي یا په مِئِین کښ د غه شان په مثاني

کښې داخل دی یا په مُفَصّل کښې. خو د حدیث شریف په مطلب او مقصود کښې په دے اختلاف څۀ فرق نه راځي. مقصد دا دے چه هرځومره مشهور اسماني کتابونه رومبے نازل شوی دی، د هغې ټولو مثال په قرآن شریف کښې موجود دی او د دے نه علاوه مُفَصّل په قرآن شریف کښې خاص دے چه د دے مثال په رومبنو کتابونو کښې نه مِلاویږی.

(۲۹) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ رضی اللہ عنہ قَالَ جَلَسْتُ فِیْ عِصَابَةٍ مِّنْ ضُعَفَاءِ الْمُهَاجِرِیْنَ وَاِنَّ بَعْضَهُمْ لَیَسْتَتِرُ بِبَعْضٍ مِّنَ الْعُرْیِ وَقَارِئٌ یَقْرَأُ عَلَیْنَا اِذْ جَاءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم فَقَامَ عَلَیْنَا فَلَمَّا قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم سَکَتَ الْقَارِئُ فَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ مَا کُنْتُمْ تَصْنَعُوْنَ قُلْنَا نَسْتَمِعُ اِلٰی کِتَابِ اللّٰهِ تَعَالٰی فَقَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ جَعَلَ مِنْ اُمَّتِیْ مَنْ اُمِرْتُ اَنْ اَصْبِرَ نَفْسِیْ مَعَهُمْ قَالَ فَجَلَسَ وَسْطَنَا لِیَعْدِلَ بِنَفْسِهٖ فِیْنَا ثُمَّ قَالَ بِیَدِهٖ هٰکَذَا فَتَحَلَّقُوْا وَبَرَزَتْ وُجُوْهُهُمْ لَهٗ فَقَالَ اَبْشِرُوْا یَا مَعْشَرَ صَعَالِیْكِ الْمُهَاجِرِیْنَ بِالنُّوْرِ التَّامِّ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ تَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ قَبْلَ اَغْنِیَاءِ النَّاسِ بِنِصْفِ یَوْمٍ وَّذٰلِكَ خَمْسُ مِائَةِ سَنَةٍ.

حضرت ابُوسَعِید خُدرِی رضی اللہ عنہ فرمائی چه زۀ یو ځل د ضُعَفا او غریبانانو (مُهَاجِرینو) په ټولګی کښې ناست وم او د دوی سره دومره جامه هم نۀ وه چه په هغې یے ټول بدن پټ کړے وے بعضے خلقو د بعضو نه ځان پناه کړے وو. یو تن په کښې قرآن لوستلو چه په دے کښې نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم تشریف راوړو او ودریدو موږ ته نزدے اودریدو. د نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام په راتلو قاری چُپ شو نو نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام سلام اوکړو او بیا یے پوښتنه اوکړه چه تاسو څۀ کول؟ موږ عرض اوکړو چه کلام الله مو اوریدلو. نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم اوفرمایل چه ټول تعریفونه هغه الله لره دی چه هغۀ ځما په اُمت کښې داسے خلق پیدا کړل چه ما ته په هغوی کښې د ناستے حکم اوشو. د دے نه پس نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام زمونږ په مینځ کښې کیناستو چه ټولو ته برابروی، بیا ته نزدے د چا نه لرے نۀ وی بیا یے ټولو ته په حلقه کښې د کیناستلو حکم اوکړو. ټولو نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام ته مخ کړو او کیناستل نو نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام ارشاد اوفرمایه، اے غریبانانو

(رواه ابوداؤد) | مهاجرينو! تاسو ته زيرے وي د قيامت په ورځ

د كامله رڼا او دا دے خبرے چه تاسو به د مالدارونه نيمه ورځ مخكښ جنت كښ داخليږئ او دا نيمه ورځ به د پنځه سوو كالو برابره وي.

د كوم اندامونو چه پټول فرض دي هغه پټ وو خو د هغے نه علاوه بدن بے ښكاريدو او دا هم په كتره كښ ښه نه معلوميږي نو ځكه د يو بل رسته نا است وو چه چا ته نه ښكاري. د نبي اكرم ﷺ تشريف راوړلو نه اول خو دوي ته د خپلے مشغولتيا په وجه پته اونه لګيده خو چه كله هغوي ورسره نزدے او دريده نو ورته معلومه شوه او قاري د ادب په وجه چپ شو.

د نبي اكرم ﷺ پوښتنه په ظاهر كښ د خوشحالئ ښكاره كولو د پاره وه كني نبي عليه السلام قاري ليدلے وو چه قرآن شريف يے لوستو.

د اخرت يوه ورځ د دنيا د زرو كالو برابره ده (الله تعالى فرمائي) وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ. د هم دے وجے په ظاهر كښ چه كوم ځائ د قيامت ذكر راځي، غدا اسره راځي چه د هغے معنى د راتلونكي صبا ده خو د اتول په اعتبار د اكثر او د عامو مومنانو د پاره ده كني د كافرانو په حق كښ راغلي دي فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ "دا يو ورځ چه د پنځوس زرو كالو (په اندازه) به وي." او د خواصو مومنانو د پاره به د هغوي د حيثيت موافق كمه معلوميږي لكه چه حديث شريف كښ راغلي دي چه د بعضو مومنانو د پاره به د سحر د دوه ركعتو مونځ برابره وي.

د قرآن شريف د لوستلو فضيلتونه ځنګه چه په ډيرو روايتونو كښ راغلي دي، بے حده دي. د دے د اوريدو فضائل هم ګڼو روايتونو كښ راغلي دي. د دے نه به زيات نور څه فضيلت وي چه د پيغمبرانو سردار ﷺ ته په داسے مجلس كښ د شركت حكم شوے دے. ځنګه چه د دے روايت نه معلومه شوه. د بعضو عالمانو فتوى ده چه د قرآن پاك اوريدل د لوستلو نه هم زيات بهتر دي ځكه چه د قرآن پاك لوستل نفل دي او اوريدل يے فرض دي او د فرضو درجه د نفلونه زياته وي. د دے حديث نه يوه بله

مسئله هم معلومیږی چه په هغې کښې د عالمانو اختلاف دے چه هغه غریب چه صبرناک وی او خپله غریبي اولوری چاته نه ښکاره کوی هغه بهتر دے که هغه مالدار چه شکرگذار وی، حقونه ادا کوینکے وی هغه بهتر دے هم دا حدیث د صبرناک حاجتمند د بهتروالی په دلیل کښې راوړلے کیدے شی.

(۳۰) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اسْتَمَعَ اِلٰی اٰیَةٍ مِّنْ کِتٰبِ اللّٰہِ کُتِبَتْ لَهٗ حَسَنَةٌ مُّضٰعَفَةٌ وَّمَنْ تَلَاهَا کَانَتْ لَهٗ نُوْرًا یَّوْمَ الْقِیٰمَةِ۔

حضرت ابوهریره رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کړے دے چه څوک یو ایت د قرآن شریف واوری هغه د پاره دوچنده نیکی لیکلے کیږی او چه څوک ئے تلاوت کوی هغه د پاره به د قیامت په ورځ نُور وی۔

(رواه احمد عن عبادة بن میسرة واختلف فی توثیقه عن الحسن عن ابی هریرة والجمهور علی ان الحسن لم یسمع عن ابی هریرة)

محدثینو د سند په اعتبار اگرچه په دے حدیث کښې خبرے کړی دی خو مضمون ئے په نورو ډیرو روایتونو سره مرسته شوے دے چه د قران پاک اوریدل هم ډیر ثواب لری۔ تر دے چه بعضے خلقو د لوستلو نه هم بهتر ښودلے دی۔ ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه یو وارے نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په منبر تشریف فرما وو، ارشاد ئے اوفرمایئ چه ما ته قرآن واوروه۔ ما عرض اوکړو چه حضور! په تاسو خو په خپله نازل شوے دے۔ تاسو ته به څهٔ واوروم۔ وے فرمایل چه ځما زړه غواړی چه واورم۔ د دے نه پس ما واوړو نو د نبی علیه السلام د سترګو مبارکو نه اوښکے روانے شوے۔

یو وارے د حضرت حذیفه رضی الله عنه ازاد کړی غلام سالم رضی الله عنه قرآن شریف لوستهٔ نو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ورته ډیر ساعت ولاړ وو او اوریدهٔ ئے۔ د ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه قرآن شریف ئے واوریدهٔ نو تعریف ئے اوکړو۔

(۳۱) عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلْجَاهِرُ بِالْقُرْاٰنِ کَالْجَاهِرِ بِالصَّدَقَةِ وَالْمُسِرُّ بِالْقُرْاٰنِ

حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کړے دے چه قرآن شریف په اُوچت اواز لوستونکے د ښکاره صدقه کونکی په شان دے او رو لوستونکے د پټے صدقے کونکی

| کَالْمُسِرِّ بِالصَّدَقَةِ | په شان دے ۔ |
|---|---|

(رواه الترمذی و ابوداؤد و النسائی و الحاکم وقال علی شرط البخاری)

صدقه په بعضے وختونوکښ په ښکاره بهتره وی کوم وخت چه نورو ته د ترغیب سبب وی یا نورڅه مصلحت وی او بعضے وختونوکښ په پټه ورکول بهتروی کوم ځائی چه د ریا شك وی یا د بل بے عزتی پرے کیږی وغیره وغیره هم دغه شان قرآن شریف بعضے وختونوکښ په اُوچت آواز لوستل بهتر دی چه کوم ځائی د نورو د ترغیب سبب وی او په دے کښ د نورو د اَوریدو ثواب هم کیږی او بعضے وختونوکښ په رو لوستل بهتروی کوم ځائی چه نورو ته تکلیف وی یا د ریا شك وی وغیره وغیره ۔ هم دغه وجه ده چه په زوره او په رو دواړه قسمه د لوستلو مستقل فضیلتونه هم راغلی دی ۔ بعضے وختونو کښ دا مُناسب وی او بعضے وختونوکښ هغه بهتروی ۔ د رو لوستلو په فضیلت ډیرو خلقو د اَصدقے حدیث دلیل گرځولے دے ۔ بَیْهَقِیؒ په کتاب الشُّعَب کښ د خود روایت د محد ثینو په قاعد وضعیف دے حضرت عائشه رضی الله عنها نه نقل کړے دے چه پټ عمل د ښکاره عمل نه اویا حصے زیات دے ۔ حضرت جابر رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کړے دے چه په زوره دا سے مه وایه چه دیوا آواز د بل سره گډ وډ شی ۔ حضرت عمر بن عبد العزیز رحمة الله علیه په مسجد نبوی کښ دیو سړی نه په اُوچت آواز تلاوت واوریده نو هغه یے منع کړو ۔ لوستونکی بحث او تکرار اُوکړه نو عمر بن عبد العزیز رحمة الله علیه اُوفرمایل که د الله د پاره یے لُولے نو رو یے لُوله او که د خلقو د پاره یے لولے نو لوستل یے بیکاره دی ۔ دغه شان د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه په زوره د لوستلو ارشاد هم نقل کړے شوے دے ۔ په شرح احیاء کښ دواړه قسمه روایتونه او آثار ذکر کړے شوی دی ۔

| (۳۲) عَنْ جَابِرٍ رضی الله عنه عَنِ النَّبِیِّ صلی الله علیه وسلم اَلْقُرْاٰنُ شَافِعٌ مُّشَفَّعٌ وَّمَاحِلٌ مُّصَدَّقٌ مَّنْ | حضرت جابر رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کړے دے چه قرآن پاك دا سے شفیع (یعنی سفارشی) دے چه د ده شفاعت قبول کړے |
|---|---|

جَعَلَهٗ اَمَامَهٗ قَادَهٗ اِلَى الْجَنَّةِ وَمَنْ جَعَلَهٗ خَلْفَ ظَهْرِهٖ سَاقَطَهٗ اِلَى النَّارِ۔
(رواہ ابن حبان والحاکم مطولا وصححہ)

دے او دا سے جھگڑہ کوؤنکے دے چہ د دهٔ جھگړو منلے شوے دہ. څوک یے چہ خپلے مخے تہ کیږدی هغه به جنت طرف تہ راکاږی او څوک یے چہ رُستو شا تہ اُوغورزوی هغه دوزخ کښ غورزوی

یعنی قرآن پاک چہ دچا شفاعت کوی اللہ جل شانهٗ تہ د دهٔ شفاعت قبول دے او دچا بارہ کښ چہ جھگړه کوی او د جھگړے تفصیل اتم نمبر حدیث کښ تیر شوے دے چہ دخپل رعایت کوؤنکو دپارہ بہ د درجو اُوچتولو بارہ کښ د اللہ تعالیٰ پہ دربار کښ جھگړه کوی او دخپل حق ضائع کوؤنکو نه به مطالبه کوی چہ ځما حق دِ ولے نهٔ دے ادا کړے؟ څوک چہ دا قرآن ځان سره اُوساتی یعنی د دے تابعداری او دے پسے تلل دخپل ژوند قانون جوړ کړی نو هغه جنت تہ رسوی۔ او څوک یے چہ شا تہ اُوغورزوی یعنی تابعداری یے نه کوی نو د هغهٔ دوزخ تہ ورغورزیدل ښکاره خبره دہ۔ د بنده پہ نزد د قرآن پاک نه بے پرواهی کؤل هم د دے پہ مطلب کښ داخلیدے شی ځکه چہ پہ ډیرو حدیثونو کښ د قرآن شریف نه په بے پرواهی کؤلو سزا ګانے راغلی دی۔ د بخاری شریف پہ هغے اُوږد حدیث کښ کوم کښ چہ نبی اکرم ﷺ تہ بعضے سزاګانے ښودلے شوے وے (پہ هغے کښ ورته) د یو کس حال اُوښودلے شو چہ د هغهٔ سر پہ ګټ ټکوی ماتولے شو۔ د نبی اکرم ﷺ پہ پوښتنه ورته اُوښودلے شو چہ دهٔ تہ اللہ جل شانهٗ خپل کلام پاک ښودلے وو خو دهٔ نه په شپه کښ د هغے تلاوت اُوکړو او نه یے د ورځے پرے عمل اُوکړو۔ لہ دے کبله تر قیامته پورے به دهٔ سره دا عمل کیږی۔ اللہ جل شانهٗ دِ په خپلے مهربانئ مونږه د دے عذاب نه محفوظ اُوساتی چہ په حقیقت کښ قرآن شریف دومره لوئ نعمت دے چہ د دے سره په بے توجهئ باندے چہ کومه سزا ورکړے شی مُناسبه دہ۔

(۲۳) عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَلصِّيَامُ وَالْقُرْاٰنُ

حضرت عبد اللہ بن عمرو رضی اللہ عنہ د نبی اکرم ﷺ نه نقل کوی چہ روژه او قرآن شریف دواړه به د بنده دپاره شفاعت کوی۔ روژه

يَشْفَعَانِ لِلْعَبْدِ يَقُوْلُ الصِّيَامُ رَبِّ إِنِّيْ مَنَعْتُهُ الطَّعَامَ وَالشَّرَابَ فِي النَّهَارِ فَشَفِّعْنِيْ فِيْهِ وَيَقُوْلُ الْقُرْآنُ رَبِّ مَنَعْتُهُ النَّوْمَ بِاللَّيْلِ فَشَفِّعْنِيْ فِيْهِ فَيُشَفَّعَانِ۔

به عرض اوکړي - اے ربه! ما دے په ورځ کښې خوراك څښاك نه منع کړے وو. څما شفاعت قبول کړه. او قرآن شریف به وائي اے ربه! ما د شپې دے دخوبه منع کړے وو څما شفاعت قبول کړئ. پس د دواړو شفاعت به قبول کړے شي.

(رواه احمد وابن ابی الدنیا والطبرانی فی الکبیر والحاکم وقال صحیح علیٰ شرط مسلم)

په (کتاب) الترغیب کښې اَلطَّعَامَ وَالشَّرَاب لفظ راغلے دے نو دغه ترجمه اوکړے شوه. حاکم نوم کتاب کښې د شراب په ځائې د شهوات لفظ راغلے دے یعنې ما روژه دار د ورځې دخوراك او نفساني خواهشاتو نه بند کړو. دے کښې دے خبرے ته اشاره ده چه روژه دار د نفساني خواهشاتو نه جدا اوسي اگرچه هغه جائزوي لکه (د خپلې بي بي) بنګلول، ور ترغاړه وتل. بعضے روایتونو کښې راغلي دي چه قرآن شریف به د یو ځوان سړي په شکل کښې راشي، او به وائي چه څه هغه یم چا چه به په شپو کښې ویښ ساتلے او د ورځې به یے تږے ساتلے. د غسے په حدیث کښې دے طرف ته اشاره ده چه د قرآن شریف د یاد ولو تقاضا داده چه د شپې د په نفلو کښې تلاوت هم کوي. په اویشتم نمبر حدیث کښې درے ذکر تیر شوے دے. په خپله د قرآن شریف په ډیرو ځایونو کښې د دے ترغیب راغلے دے. یو ځائې ارشاد دے وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ (بنی اسرائیل ۹) دویم ځائې ارشاد دے وَمِنَ اللَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهٗ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيْلًا (دهر ۲) یو ځائې ارشاد دے يَتْلُوْنَ اٰيٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ اللَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُوْنَ (آل عمران ۱۲) یو ځائې ارشاد دے وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا (الفرقان ۶) دغه وجه ده چه نبي اکرم ﷺ او حضرات صحابه رضی الله عنهم به بعضے وخت د قرآن پاك په تلاوت کښې ټوله شپه تیره شوه. حضرت عثمان رضی الله عنه په باره کښې روایت دے چه کله به یے د وتر په یو رکعت کښې ټول قرآن شریف لوستۀ. دغه شان عبد الله بن زبیر رضی الله عنه

به هم په یوه شپه کښې ټول قرآن شریف پوره کړلو۔ سعید بن جبیر رحمة الله علیه
په دوؤ رکعتو کښې په کعبه کښې دننه ټول قرآن شریف اُولوستهٔ۔ ثابت بُنانی
رحمة الله علیه به په شپه او ورځ کښې یو قرآن شریف ختمولو۔ دغه شان به ابُوحُرّه
رحمة الله علیه هم کړل۔ ابُوشیخ هُنائی رحمة الله علیه فرمائی چه ما په یوه شپه کښې دوه
قرآن شریفه پوره او دریم کښې م لس سپارے اُویلے که م غوښتلے نو دریم
ختم م هم کړلے شو۔ صَالح بن کیسَان رحمة الله علیه چه کله حج ته لاړو نو په لاره
کښې به یے اکثر یوه شپه کښې دوه قرآن شریفه پوره کړل۔ منصُور بن زاذان
رحمة الله علیه به یو قرآن شریف په صَلٰوۃ الضحیٰ (یعنی د څاښت په مونځ) کښې او
دویم به یے د ماسپخین نه تر ماز یګره پورے پوره کړلو او ټوله شپه به
یے په نفلو کښې تیروله۔ او دومره به یے ژړل چه د پټکی شمله به یے لونده
شوه۔ دغه شان نورو حضراتو هم کړی دی لکه څنګه چه محمّد بن نصر
رحمة الله علیه په "قیامُ اللّیل" نوم کتاب کښې را ایستل کړی دی۔ شرح احیاء
کښې یے لیکلی دی چه د پخوانی بزرګانو عادتونه د قرآن شریف ختم کولو
کښې مختلف وُو۔ بعضو حضراتو به هره ورځ یو ختم کړلو لکه څنګه چه امام
شافعی رحمة الله علیه به د رمضان د میاشتے نه علاوه کړلو۔ او بعضو به دوه ختمونه
روزانه کړل لکه څنګه چه په خپله د امام شافعی رحمة الله علیه د رمضان په
میاشت کښې عادت وو۔ او دا عادت د اَسوَد، صالح بن کیسان، سعید بن
جُبیر رحمة الله علیهم او دیوے ډلے هم وو۔ د بعضو عادت درے ختمونه روزانه وو
چنانچه سلیم بن عتر رحمة الله علیه چه په لویو تابعینو کښې شمارلے شی۔ د حضرت
عُمر رضی الله عنه په زمانه کښې د مصر په فتح کښې شریک وو۔ او حضرت معاویه
رضی الله عنه د قصص امیر دے جوړ کړے وو۔ د ده عادت وو چه په هره شپه
کښې به یے د قرآن شریف درے ختمونه کړل۔ نووی رحمة الله علیه په کتاب الأذکار
کښې نقل کړی چه زیات نه زیات مقدار د تلاوت په باره کښې چه مونږ ته
را رسیدلے دے هغه د ابن الکاتب رحمة الله علیه عادت وو چه هغهٔ به شپه
او ورځ کښې اَتهٔ ختمونه د قرآن شریف کړل۔ ابن قدامه رحمة الله علیه د

امام احمد رحمته الله علیه نه نقل کړې دے چه د دے څهٔ حد مُقرر نشته، داد لوستونکی د طبیعت په تازګئ بانلِ ده۔ د تاریخ عالمانو امام اعظم رحمته الله علیه نه نقل کړې دے چه د رمضان شریف په میاشت کښ به یې د قران شریف یو شپیته ختمونه کول۔ یو د وَرځے یو د شپے او یو په ټول رمضان کښ په تراویحو کښ۔ خو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه د دریو ورځو نه کم کښ ختم کوُنکے غور وفکر نشی کولے۔ هم د دے وجے اِبنِ حزم رحمته الله علیه وغیره د درے ورځو نه کم کښ ختم کوُلو ته حرام ویلی دی۔ د بنده په نزد د احدیث شریف په اعتبار د اکثرو کسانو دے خلکه چه په اصحابو کښ د یو دے ډلے نه د درے نه کم کښ لوستل هم ثابت دی۔ هم دغه شان په زیاتوالی کښ هم د جمهور و عالمانو په نزد څهٔ حد مُقرر نشته۔ خو مره ورځو کښ چه په اسانتیا سره کولے شی قران شریف دِ ختموی۔ خو دَ بعضو عالمانو مذهب دے چه د څلویښتو نه دِ زیاتے ورځے په ختم نهٔ لګوی۔ د دے خلاصه داده چه کم نه کم د رے پاوه روزانه لوستل ضروری دی۔ کهٔ په څهٔ وجه یوه ورځ اونهٔ لوُلی نو بله ورځ دِ د هغے قضا اوکړی خو څلویښتو ورځو کښ دننه دِ یو ځل پوره شی۔ د جمهورو عالمانو په نزد اګرچه دا ضروری نهٔ ده خو هر کله چه د بعضو عالمانو مذهب دے نو احتیاط په دے کښ دے چه د دے نه دِ کم نهٔ وی۔ دغه شان د بعضے حدیثونو نه د دے مرسته هم کیږی۔ صاحِبِ مجمَعٔ یو حدیث نقل کړے دے مَنْ قَرَأَ الْقُرْاٰنَ فِیْ اَرْبَعِیْنَ لَیْلَةٍ فَقَدْ عَزَّبَ۔ "چا چه قران شریف په څلویښتو شپو کښ ختم کړو نو هغهٔ ډیر وخت تیر کړو" د بعضے عالمانو فتوٰی ده چه هره میاشت کښ یو ختم کوُل پکار دی۔ او بهتره داده چه په اوهٔ ورځو کښ دِ یو قران شریف ختم کړی چه د اصحابو رضی الله عنهم عادت عام طور دغه نقل کولے شی۔ د جمعے په ورځ دِ شروع کړی او په اوو ورځو کښ دِ یو منزل روزانه وائِی د زیارت په ورځ دِ ختم کړی۔ د امامِ اعظم رحمته الله علیه خبره مخکښ تیره شوه چه په کال کښ دوه وارے ختم کوُل د قران شریف حق دے۔ په دے وجه د دے نه په هیڅ شان کموُل نهٔ دی پکار۔ په یو حدیث شریف کښ راغلی دی که چرے د قران شریف

ختم دورځې په شروع کښې اُوشي نو تول ورځ او د شپې په شروع کښې اُوشي نو توله شپه فرښتې د دۀ دپاره د رحمت دُعا گانې کوي۔ د دې نه بعضې عالمانو دا مسئله راایستلې ده چه ذکر مي په موسم کښې د ورځې په شروع کښې ختم کوي او دیمنی په موسم کښې د شپې په شروع کښې کوي چه ډیر اُوږد وخت د فرښتو د دُعا گانو حاصل شي۔

(۴۳) عَنْ سَعِيْدِ بْنِ سُلَيْمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مُرْسَلًا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ شَفِيْعٍ اَفْضَلُ مَنْزِلَةً عِنْدَ اللّٰهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنَ الْقُرْاٰنِ لَا نَبِيٌّ وَّلَا مَلَكٌ وَّلَا غَيْرُهٗ

سَعِیْد بن سُلَیْم مُرْسَلاً د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوي چه د قیامت په ورځ به د الله تعالیٰ په نزد د قرآنِ پاک نه زیات څوك سفارش کونکے نۀ وي نۀ څوك نبی نۀ فرښته وغیره۔

(قال العراقي رواه عبد الملك بن حبيب كذا في شرح الاحياء)

د قرآن شریف شفیع یعنی سفارشي کیدل او د دومره درجې شفیع کیدل چه د هغۀ شفاعت قبول وي نو ره هم د ډیرو روایتونو نه معلومه شوې ده۔ الله جل شانهٗ د په خپل فضل څما او ستاسو دپاره دا شفیع اُوگرزوي او څمونږ مخالف فریق او مُدَّعِي دِ نۀ گرزوي۔ په لآلي مصنوعه نوم کتاب کښې د بزّار په روایت نقل کړے دے او د احادیث بے جعلي هم نۀ دے بنودلے چه کله انسان مړشي نو د دۀ د کور خلق بے په کفن دفن کښې مشغول وي او د دۀ سر طرف ته یو ډیر ښکلے او ښائسته شکل کښې یو کس (ولاړ) وي کله چه کفن ورکوُلے شي نو دغه کس د کفن او د سینې ترمینځه شي۔ کله چه خلق دفن کولو نه واپس شي نو دۀ ته نکیر او مُنکر راشي او دغه کس ترے جُدا کول غواړي چه څان له ترے سوال اُوکړي خو دغه کس ورته وائي چه دا څما ملگرے دے، څما دوست دے، څۀ په هیڅ حالت کښې دے یوائے نشم پریخودلے۔ که تاسو ته د سوالونو کولو حکم شوے وي نو خپل کار اُوکړئ څۀ خو تر هغې وخته د دۀ نه جُدا کیدے نشم ترڅو چه دے په جنت کښې ورداخل نۀ کړم۔ د دې نه پس دا کس خپل ملگري طرف ته متوجّه شي او

ورته وائي څه هغه قرآن يم چه کله به دِ په اُوچت اواز لوستلم او کله په رو- ته به فکره اُوسه، دمُنکر نکير د سوالُونونه پس په تا هيڅ غم نشته دے- کله چه دوی دخپل سوالونونه فارغ شی نود اَکس ورله دملاءِ اعلیٰ (يعني د پورته عالَم) نه دبسترے وغيره انتظام اُوکړی چه دِ ليمووی او دمشکو نه به ډکه شوے وی- الله دِ په خپل فضل مُونږ هُم نصيب کړی او ستاسو هُم- دا حديث په ډيرو فضيلتونو شامل دے خو دَ اُوږدوالی دويرےنه مُختصر کړو-

(٤٥) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضی الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ مَنْ قَرَاَ الْقُرْاٰنَ فَقَدِ اسْتَدْرَجَ النُّبُوَّةَ بَيْنَ جَنْبَيْهِ غَيْرَ اَنَّهٗ لَا يُوْحٰى اِلَيْهِ لَا يَنْبَغِيْ لِصَاحِبِ الْقُرْاٰنِ اَنْ يَّجِدَ مَعَ مَنْ وَّجَدَ وَلَا يَجْهَلَ مَعَ مَنْ جَهِلَ وَفِيْ جَوْفِهٖ كَلَامُ اللهِ- (رواه الحاکم وقال صحیح الاسناد)

حضرت عبد الله بن عَمْرو رضی الله عنه دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے دے چه چا قرآن شريف اُولوسته هغهٔ دنبوّت عُلوم دخپلو پښتو ترمينځه واخستل اگرچه دهٔ طرفته وحی نهٔ شی راليږلے- دصاحبِ قرآن دپاره مُناسب نهٔ دی چه په غُصه کوُنکو غُصه اُوکړی يا جاهلانو سره جهالت اُوکړی حال دا دے چه ددهٔ په سينه کښ دالله تعالیٰ کلام دے-

دوحی سلسله دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه رُستو ختمه شوه نو څکه وحی خو اُوس راتلے نهٔ شی- خو چونکه دا دالله جلّ شانه پاک کلام دے نو دے وَجے ددے عِلمِ نبوّت کيدو کښ څهٔ شک دے؟ کله چه څوک دنبوّت په عِلمُونو سرفراز کړے شی نو هغهٔ دپارهِ ډيره ضروری ده چه دهغے مُناسب بهترين اخلاق پيدا کړی او دبدو اخلاقو نه ځان اُوساتی- فُضَيل بن عِياض رحمة الله عليه فرمائی چه دقرآن حافظ داِسلام جهنډه اُوچتوُنکے دے، د دهٔ دپاره مُناسب نهٔ دی چه لَهْوُ ولَعَبْ (يعني لوبے او عبثياتو) کوُنکو کښ شامل شی يا غفلت کوُنکو کښ شريک شی، يا بے کاره خلقو کښ ورداخل شی-

(٤٦) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم ثَلٰثَةٌ

حضرت ابنِ عُمَر رضی الله عنه دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوی چه درے کسان داسے دی

يَهُوْلُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ وَلَا يَنَالُهُمُ الْحِسَابُ هُمْ عَلَى كَثِيْبٍ مِنْ مِسْكٍ حَتّٰى يُفْرَغَ مِنْ حِسَابِ الْخَلَائِقِ رَجُلٌ قَرَأَ الْقُرْآنَ ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللّٰهِ وَأَمَّ بِهٖ قَوْمًا وَهُمْ بِهٖ رَاضُوْنَ وَدَاعٍ يَدْعُوْ إِلَى الصَّلَوَاتِ ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللّٰهِ وَرَجُلٌ أَحْسَنَ فِيْمَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ رَبِّهٖ وَفِيْمَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ مَوَالِيْهِ (رواه الطبراني في معاجم الثلاثة)

چه د قیامت ویره به ورسره نه وی او نهٔ به ور سره څهٔ حساب کتاب کیږی تر څو چه مخلوق د خپل حساب کتاب نهٔ اوزګاریږی نو دوی به د مشکو په غونډو وسیلونه کوی. یو هغه سړے دے چه د الله تعالیٰ د پاره یے قرآن شریف اُولوستهٔ او د امامت یے اُوکړو چه مقتدیان ترے راضی وُو. دویم هغه سړے چه ئے د الله تعالیٰ د رضا د پاره خلق مانځهٔ ته رابللی. دریم هغه سړے چه خپل رب سره هم ئے ښه معامله ساتلې او خپلو ماتحتو یعنی لاندے کسانو سره هم.

د قیامت سختئ، د هغے هیبت، د هغے ویره، د هغے مصیبتونه او تکلیفونه داسے نهٔ دی چه د یو مسلمان زړهٔ به د هغے نه خالی وی یا ترے بے خبره وی کهٔ په هغے ورځ د څهٔ خبرے په وجه بے فکری نصیب شی نو دا هم د لکهونو نعمتونو نه زیات لوئی نعمت او د کروړونو خوشحالونه زیاته خوشحالی ده. بیا چه ورسره سیل او نعمتونه هم نصیب شی نو خوش نصیبه دے هغه خوش قسمته چه دا ورته حاصل شی او بربادی (نقصان) دے د هغے بے حسه خلقو د پاره چه قرآن زده کول لغو، بیکاره او د وخت ضائع کول ګڼړی. معجم کبیر کښ د دے حدیث په شروع کښ روایت کوونکی صحابی عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه نقل دی کهٔ چرے ما دا حدیث د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه یو ځلے او یو ځلے غرض دا چه اووهٔ ځله یے دا لفظ اُوۓ. یعنی کهٔ اووهٔ ځله مے نهٔ وے اوریدلے نو هیڅ کله به مے نهٔ وو نقل کړے.

(١٤) عَنْ أَبِيْ ذَرٍّ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم يَا أَبَا ذَرٍّ لَأَنْ تَغْدُوَ فَتَعَلَّمَ آيَةً مِنْ

حضرت ابُوذر رضی الله عنه وائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه ابُوذره! کهٔ چرے ته سحر لاړ شے او یو آیت د قرآن پاک زده کړے

كِتَابَ اللهِ خَيْرٌ لَّكَ مِنْ اَنْ تُصَلِّيَ مِائَةَ رَكْعَةٍ وَلَاَنْ تَغْدُوَ فَتَعَلَّمَ بَابًا مِّنَ الْعِلْمِ عُمِلَ بِهٖ اَوْلَمْ يُعْمَلْ بِهٖ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تُصَلِّيَ اَلْفَ رَكْعَةٍ (رواه ابن ماجة باسناد حسن)

نو د نفلو د سلو رکعتونه بهتر دے او که چرے يو باب د علم زده کړے خواه که دغه وخت د پرے عمل وی او که نهٔ وی نو د زرو رکعتو نفلو کولو نه بهتر دے۔

ډیر و حدیثونو کښې دا مضمون راغلے دے چه د علم زده کول د عبادت نه بهتر دی۔ د علم په فضائلو کښې چه هر څومره روایتونه راغلی دی، د هغے ټولو راجمع کول په دے مختصر رساله کښې مشکل دی۔ د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه د عالِم فضیلت په عابد باندے داسے دے لکه څنګه فضیلت تاسو کښې یو ادنیٰ کس باندے۔ بل ځائ کښې ارشاد دے چه شیطان باندے یو فقیه (عالِم) د زرو عابدانو نه زیات سخت دے۔

(۲۸) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ قَرَءَ عَشْرَ اٰيَاتٍ فِيْ لَيْلَةٍ لَمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغٰفِلِيْنَ۔

(رواه الحاكم وقال صحيح على شرط مسلم)

حضرت ابو هریره رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ نه نقل کړے دے چه څوک لس ایتونه په یوه شپه کښې تلاوت کړی هغه به په هغے شپه کښې د غافلینو نه شمار نهٔ شی۔

د لسو ایتونو په تلاوت چه د هغے په وجه یو څومره ټه لګی د ټولے شپے د غفلت نه اوځی۔ د دے نه به زیات نو څهٔ فضیلت وی۔

(۲۹) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ حَافَظَ عَلٰى هٰٓؤُلَاءِ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوْبَاتِ لَمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغٰفِلِيْنَ وَمَنْ قَرَءَ فِيْ لَيْلَةٍ مِائَةَ اٰيَةٍ كُتِبَ مِنَ الْقٰنِتِيْنَ۔

(رواه ابن خزيمة في صحيحه والحاكم وقال صحيح على شرطهما)

حضرت ابو هریره رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ ارشاد نقل کړے دے چه څوک په دے پنځو مونځونو باندے همیشه والے کوی نو هغه به د غافلینو نه نهٔ شی لیکلے۔ څوک چه سل ایتونه په یوه شپه کښې تلاوت کړی هغه به د دغه شپه د قانتینو نه اولیکلے شی۔

حَسَنْ بَصَرِیْ رحمۃ اللہ علیہ د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه نقل کړے دے چه څوک سل آیتونه د شپے اُولولی نو د قرآن شریف د مُطالبے نه به بچ شی او چه څوک دوه سوه ۲۰۰ اُولولی نو هغهٔ ته به د ټولے شپے د عبادت ثواب ورکړے شی او چه څوک د پنځه سوو نه تر زرو پورے اُولولی هغهٔ د پاره یو قِنطار دے۔ اصحابو تپوس اُوکړو چه قِنطار څهٔ ته وائی؟ نبی علیه السلام اُوفرمایل چه د دولس زرو برابر (روپئی یے مُراد دے یا اشرفئی)

﴿۴۰﴾ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی اللہ عنہ قَالَ نَزَلَ جِبْرِیْلُ علیہ السلام عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم فَاَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ سَتَكُوْنُ فِتَنٌ قَالَ فَمَا الْمَخْرَجُ مِنْهَا يَا جِبْرِيْلُ قَالَ كِتَابُ اللّٰهِ

حضرت اِبنِ عبّاس رضی اللہ عنہ فرمائی چه حضرت جبرئیل علیه السلام نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ته خبر ورکړو چه ډیرے فتنے به ښکاره شی نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم پوښتنه اُوکړه چه د هغے نه د خلاصی څهٔ شکل دے؟ هغهٔ اُووے، قرآن شریف۔

(رواه رزین کذا فی الرحمۃ المهداة)

په قرآن شریف باندے عمل هُم د فتنونه د بچ کید و ضامِن دے، او د دے د تلاوت برکت هُم د فتنونه د خلاصی سبب دے۔ دوه وِیشتم نمبر حدیث کښ تیر شوی دی چه په کوم کور کښ د قرآن شریف تلاوت کیږی سکینه او رحمت په کښ نازلیږی او شیطانان د هغے کور نه اُوزی۔

د فِتنونه مُراد د تاتار فتنه، د دجّال راتلل وغیره عالِمانو خودلی دی۔ حضرت علی کرم اللہ وجہه نه هُم په یو اُوږد روایت کښ د پورتنی حدیث مضمون راغلے دے۔ د حضرت علی کرم اللہ وجہه روایت کښ راغلی دی چه حضرت یَحیٰی علیه السلام بنی اسرائیلو ته اُوفرمایل چه الله جلّ شانهٔ تاسو ته د خپل کلام لوستلو حُکم فرمائی۔ او د دے مثال داسے دے لکه څنګه چه یو قوم په قلعه کښ محفوظ وی۔ او که هغوی طرف ته څوک دشمن متوجه شی نو د کوم خوانه چه هغه حمله کول غواړی د هغے خوانه به د الله تعالیٰ کلام د هغوی حفاظت کوونکے بیا مومی۔ او هغه به د اُدشمن لرے کوی۔

# خاتمه

## فی عِدَّةِ رِوَایَاتٍ زَائِدَةٍ عَلَی الْاَرْبَعِیْنَةِ لَابُدَّ مِنْ ذِکْرِهَا لِاَغْرَاضٍ تُنَاسِبُ الْمَقَامَ

(۱) عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَیْرٍ رضی الله عنه مُرْسَلًا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم فِیْ فَاتِحَةِ الْکِتٰبِ شِفَاءٌ مِنْ کُلِّ دَاءٍ. (رواه الدارمی والبیهقی فی شعب الایمان)

حضرت عبد الملك بن عمیر رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوی چه په سورة فاتحه کښ د هر مرض نه شفا ده.

خاتمه کښ د بعضې دا سے سورتونو فضائل دی چه په لوستلو کښ مختصر دی خو فضائل یې ډیر زیات دی. او هم دغه شان یو دوه دا سے خاص کارونه دی چه د قرآن د لوستونکی په هغې خبرول ضروری دی.

د سورة فاتحې فضائل په ډیرو روایتونو کښ راغلی دی. یو حدیث کښ راغلی دی چه یو صحابی مونځ کولو. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم هغه را اوغوښته. هغهٔ دمانځه په وجه جواب ورنکړے شو. چه فارغ شو نو راغے. نبی علیه الصلاة والسلام اوفرمایل چه تا قرآن شریف کښ دا آیت نه دے لوستلے، یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِیْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاکُمْ (سورة انفال ۳) "اے ایماندارو د الله او د هغهٔ د رسول د بلنے جواب ورکوئ کله مو چه هغه را اوبلی". بیا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایهٔ چه تا ته به د قرآن شریف د ټولو نه لوئ سورة یعنی د ټولو نه بهتر سورة ښایم. بیا نبی علیه الصلاة والسلام ارشاد اوفرمایهٔ چه هغه دا اَلْحَمْدُ او ده آیتونه دی. دا سبع مثانی دی او قرآن عظیم دے. د بعضې بزرګانو نه نقل دے چه هر هغه څه چه په رومبنی کتابونو کښ وو هغه ټول په قرآن شریف کښ راغلی دی او څهٔ چه په قرآن شریف کښ دی هغه ټول په سورة فاتحه

کښې راغلي دي اوځکه چه په فاتحه کښې دي هغه په بِسۡمِ اللّٰه کښې راغلي دي اوځکه چه په بِسۡمِ اللّٰه کښې دي هغه د دے په "ب" کښې راغلي دي او د دے شرح داسے بیانوي چه د "ب" معنٰی دلته دیوځائ کولو ده او مقصود د ټولو څیزونو نه د بنده الله تعالٰی سره یوځائ کول دي. بعضو پرے دا زیاتے هم کړے دے چه "ب" کښې هرڅه چه دي هغه د دے په ټکي کښې راغلهٔ، یعنی د الله تعالٰی یووالے چه ټکے (یعنی نُقطه) په اصطلاح کښې وائي هغې څیزته چه د هغې تقسیم نشي کیدے.

بعضے عالمانو نه نقل شوے دے چه اِیَّاکَ نَعۡبُدُ وَاِیَّاکَ نَسۡتَعِیۡنُ، کښې ټول دیني او دُنیوي مقصدُونه راغلهٔ. یوبل روایت کښې د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد راغلے دے، فرمائي، څما دِ په هغې ذات قسم وي د چا په قبضه کښې په څما ساه ده چه د دے په شان سورت نهٔ دے نازل شوے. نهٔ په تورات کښې، نهٔ په انجیل کښې اونهٔ په زبور کښې اونهٔ په باقي قرآن کښې. عالمانو لیکلي دي که سورۃ فاتحه څوك په ایمان او یقین سره اُولُولي نو د هر مرض نه پرے شِفا حاصلیږي، مرض دیني وي که دُنیوي، ظاهري وي که باطني، لیکل، غاړه کښې اچول او څټل یے هم د مرضونو د پاره فائده ورکوي. دَ صِحاح په کتابونو کښې راغلي دي چه اصحابو کرامو رضی الله عنهم د مارګزیدلو شوی بانډه او په مِرګي والو او لیونو باندے سورۃ فاتحه اُولوسته او دم یے کړه. نبي اکرم صلی الله علیه وسلم دا هم جائز اوګنړل. دغه شان په یو روایت کښې راغلي دي چه نبي علیه السلام سورۃ فاتحه اُولوسته او سائِب بن یَزِید رضی الله عنه یے پرے دَم کړو او دا سورت یے اُولوسته او د خلے مُبارکے لاړے یے د دَرد په ځائ اُولګولے.

او په یو روایت کښې راغلي دي چه څوك د اُودهٔ کید و په اراده سملي او سورۃ فاتحه او قُلۡ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ تر اٰخره پورے اُولولي او خپل ځان پرے دَم کړي نو د مرګ نه سِوا به د هرے بَلا نه اَمَن بیا مومي. یو روایت کښې راغلي دي چه سُورۃ فاتحه په ثواب کښې د قرآن شریف د ریو حِصو کښې د دوو حصو برابره ده. په یو روایت کښې راغلي دي چه د عرش د خاصے خزانے نه ماته

څلور څیزونه راکړے شوی دی چه بل هیڅ څیز د دے خزانے نه چاته نه دے ورکړے شوے. سورة فاتحه، د سورة بقرے آخری آیتونه، آیة الکرسی، او سورة کوثر. په یو روایت کښ راغلی دی چه حسن بصری رحمة الله علیه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی، چا چه سورة فاتحه اُولوسته هغهٔ ګویا تورات، انجیل، زبور او قران شریف اُولوستل. په یو روایت کښ راغلی دی چه ابلیس څلور وارے په خپل ځان ژړلی دی او په سر یے خاورے اچولے دی. اول کله چه په دهٔ لعنت اُوشو. دویم کله چه د اسمان نه په زمکه راوُغورزولے شو. دریم کله چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته نبوت ورکړے شو. څلورم کله چه سورة فاتحه نازله شوه. شعبی رحمة الله علیه نه روایت دے چه یو سړے ورله راغے او ذکر یے د درد شکایت یے اُوکړو. شعبی رحمة الله علیه ورته اُوے چه اساس القران اُولوله او درد په ځائی یے دَم کړه. هغهٔ تپوس اُوکړو چه اساس القران څهٔ ته وائی؟ شعبی رحمة الله علیه اُویل چه سورة فاتحه. د بزرګانِ دین په تجربه شوی عملونو کښ لیکلی دی چه سورة فاتحه اسمِ اعظم دے د هر مطلب دپاره لوستل پکار دی. او د دے دوه طریقے دی. یوه دا چه د سحر د سنتو او فرضونو په مینځ کښ د بسم الله الرحمن الرحیم، د الرحیم میم د الحمد لام سره یو ځائی کړی او یو څلویښت وارے د څلویښت ورځے اُولولی. چه څهٔ مطلب یے وی انشاء الله حاصل به شی. که څوک مریض وی یا پړے جادو شوے وی نو اُوبهٔ د پړے دم کړی او هغه پړے اُوڅکوی. دویمه دا چه د نوے میاشتے د رومبی اتوار په ورځ د سحر سنتو او فرضو تر مینځه بغیر د میم یو ځائی کولو شرط نه اُویا وارے اُوائی بیا یے هره ورځ په هغے وخت لولی او لس لس وارے د کموی تر د ے چه هفته ختمه شی. که په اوله میاشت کښ یے مطلب پوره شی نو ډیره ښهٔ ده، کنی په دویمه دریمه میاشت کښ د هُم دغه شان اُوکړی. بله دا چه دا سورت د چینی په لوښی په ګلابو، مشکو، زعفرانو اُولیکی او بیا یے په اُوبو اُوینځی هغه اُوبهٔ څکول د غے تر څلویښتو ورځو پورے دا عمل کول د زړهٔ مرضونو دپاره تجربه شوے دے. د

غابښونو درد، دَسر درد، دَ کیډے درد دپاره اُوڅله لوستل او دم کول مُجرّب دی (دا ټول مضمون مظاهرِ حق نه مختصر نقل کړے شو)

دَ مُسلم شریف یو حدیث کښ ابنِ عباس رضی الله عنه نه روایت دے چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو ځلے ناست وو، وے فرمایل چه دَ آسمان یو دروازه نن پرانستے شوه چه د نن نه وړاندے کله نهٔ وه پرانستے شوے. بیا دَ هغے نه یو فرښته راکوزه شوه چه د نن نه وړاندے کله نهٔ وه راکوزه شوے. هغې فرښتے عرض اُوکړو چه د دوه نُورُونو زیرے واخلئ چه ستا نه وړاندے هیچا ته نهٔ دی ورکړے شوی. یو سورة فاتحه، دویم خاتمه د سورة بقرے یعنی د سورة بقرے آخری رکوع. دے ته یے رَڼا اُوفرمایله چه دَ قیامت په ورځ به دَ خپلو لوستونکو مخکښ مخکښ روانے وی.

② عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ رحمة الله عليه قَالَ بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ مَنْ قَرَءَ يٰسٓ فِي صَدْرِ النَّهَارِ قُضِيَتْ حَوَائِجُهٗ. (رواه الدارمی)

حضرت عطاء بن ابی رباح رحمة الله علیه فرمائی چه ماته دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد را رسیدلے دے چه چا سورة یٰس دَ ورځے په شروع کښ اُولوسته دَ هغهٔ د ټولے ورځے حاجتونه به پوره شی.

په حدیثونو کښ د سورة یٰس هم ډیر فضائل راغلی دی. یو روایت کښ راغلی دی چه دَ هر څیز دپاره یو زړهٔ وی، دَ قرآن شریف زړهٔ سورة یٰس دے. څوک چه سورة یٰس لولی الله جلّ شانهٗ هغهٔ ته دَ لسو قرآنونو ثواب لیکی. یو روایت کښ راغلی دی چه الله جلّ شانهٗ سورة طٰهٰ او سورة یٰس دَ آسمان او زمکے پیدا کولو نه زر کاله وړاندے اُولوستل. کله چه فرښتو واوریدل نو وے ویل چه خوشحالی ده هغے اُمت دپاره په چا چه به دا قرآن نازلیږی او خوشحالی ده هغے زړونو دپاره څوک چه به دا اُوچتوی یعنی یادوی به یې. او خوشحالی ده هغے ژبو دپاره څوک چه به د دے تلاوت کوی. په یو حدیث کښ دی چه څوک سورة یٰس خالص د الله تعالیٰ د رضا دپاره اُولولی، دَ هغهٔ رومبنی ټول گناهونه مُعاف کیږی پس دا سورت په خپلو مړو لولئ. یو

روایت کښې راغلی دی چه دسورة یٰسٓ نوم په تورات کښې مُنْعِمَه دے چه خپل لوستونکی دپاره دَدُنیا او دآخرت په ښیګړو شامل دے او ددُنیا او دآخرت مُصیبت لرے کوی او دآخرت ویَره لرے کوی۔ ددے سورت نوم رَافِعَه خَافِضَه هَم دے یعنی دمومنا نو مرتبے اُوچتونکے او دکافرانو درجے خکته کوُنکے دے۔ یو روایت کښې دی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه خما زړهٔ غواړی چه سورة یٰسٓ خما دهر اُمتی په زړه کښې وی۔ یو روایت کښې دی چاچه سورة یٰسٓ هره شپه اُولوستهٔ بیا مړشونو شهید مړشو۔ یو روایت کښې دی چه څوك سورة یٰسٓ لولی دهغهٔ بخښنه کیږی او چه څوك ئې دلوږے په حالت کښې اُولولی، موړیه شی۔ دچا نه چه لاره وُرکه شوے وی او دے لولی لاره به بیا مومی۔ چا نه چه څناور وُرك شوے وی او دے لولی، بیا به ئے مُومی۔ او چه څوك ئې په داسے حال کښې اُولولی چه دخوراك دکمیدو ویَره وی نو هغه خوراك به کافی شی۔ او چه داسے کَس څخه ئې اُولولی چه دهغهٔ خنکدن وی نو په هغهٔ به خنکدن آسان شی۔ او چه داسے ښځے څخه ئې اُولولی چه دبچی پیدا کیدو کښې ورته تکلیف وی نو بچے به ئې په آسانه پیدا شی۔ مُقرِی رحمة الله علیه فرمائی چه کله دبادشاه یا دُشمن ویره وی او دهغے دپاره سورة یٰسٓ اُولولی نو هغه ویره به ئې لاړه شی۔ یو روایت کښې راغی چاچه سورة یٰسٓ او سورة وَالصّٰفّٰت دجُمعے په ورځ اُولوستل، بیا ئې دالله تعالیٰ نه دُعا اُوکړه نو دُعا ئې قبلیږی۔ (ددے هَم اکثره حِصه دمَظَاهِرِ حَق نه نقل شوے ده خو مُحدِّثینو دبعضے روایاتو په صحت کښې خبرے کړی دی۔

(۳) عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَنْ قَرَءَ سُوْرَةَ الْوَاقِعَةِ فِیْ کُلِّ لَیْلَةٍ لَمْ تُصِبْهُ فَاقَةٌ اَبَدًا وَکَانَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ یَاْمُرُ بَنَاتِهٖ یَقْرَاْنَ بِهَا کُلَّ لَیْلَةٍ۔ (رواه البیهقی فی الشعب)

حضرت ابنِ مَسْعُود رضی الله عنه دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه څوك هره شپه سورة واقعه لولی په هغهٔ به هیڅ کله لوږه نهٔ راځی او ابنِ مسعُود رضی الله عنه به خپلو لوڼړو ته حُکم ورکړو چه هره شپه دا سورت لولی۔

دسورۃ واقعه فضائل هم په ډیرو روایتونو کښ راغلی دی۔ په یو روایت کښ راغلی دی چه څوک سورۃ حدید او سورۃ واقعه او سورۃ رحمٰن لولی هغه به دجنت الفردوس اوسید ونکو کښ بللے شی۔ په یو روایت کښ دی چه سورۃ واقعه سورۃ الغنی دے۔ دا اویئی او خپل اولادته ئی زده کوئ۔ په یو روایت کښ دی چه سورۃ واقعه خپلو بیبیانوته زده کوئ۔ حضرت عائشے رضی اللہ عنہا ته هم دے دویلو تاکید نقل شوے دے۔ خو دا ډیر بیو تے خیال دے چه دغلورو پیسو یعنی دُنیا دپاره اُولوستے شی۔ البته که چرے د زړهٔ دغِنا او دا خرت په نیت ئی څوك اُولولی نو دنیا به ورته پخپله لاس په نامه حاضره شی۔

④ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ سُوْرَةً فِی الْقُرْاٰنِ ثَلٰثُوْنَ اٰیَةً شَفَعَتْ لِرَجُلٍ حَتّٰی غُفِرَلَهٗ وَ هِیَ تَبٰرَكَ الَّذِیْ بِیَدِهِ الْمُلْكُ.

حضرت ابوهُریره رضی اللہ عنہ دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم دا ارشاد نقل کړے دے چه قرآن شریف کښ یو سورت د دیرش ایتونو داسے دے چه هغه دخپل ویونکی دپاره شفاعت کوی۔ تردے چه دَ هغهٔ بخښنه اُوکړی او هغه سورۃ تبارك الذی دے۔

(رواہ احمد وابوداؤد والنسائی وابن ماجة والحاکم وصححہ وابن حبان فی صحیحہ)

دسورۃ تبارك الذی متعلق هم یو روایت کښ دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد راغلے دے چه څما زړهٔ غواړی چه دا سورت دَ هر مؤمن په زړهٔ کښ وی۔ یو روایت کښ دی چه چا سورت تبارك الذی او سورۃ الٓمّٓ السجدة د ماښام او دما سخوتن په مینځ کښ اُولوستل گویا هغهٔ دلیلة القدر شپه په عبادت کښ روڼره کړه۔ یو روایت کښ دی چا چه دا دواړه سورتونه اُویل هغهٔ دپاره اویا نیکئ اُولیکلے شی۔ او اویا بدئ ترے لرے کړے شی۔ یو روایت کښ دی چا چه دا دواړه سورتونه اُولوستل هغهٔ دپاره دلیلة القدر دعبادت برابر ثواب اُولیکلے شی۔ کذا فی المظاهر۔

ترمذی دا بن عباس رضی اللہ عنہما نه نقل کړے دے چه بعضو صحابه کرامو یو ځائی خیمه اُولگوله، دوی ته پته نهٔ وه چه دغه ځائی قبر دے۔ ناڅاپه دے خیمه لگونکو دغه ځائی او اُوریدل چه څوك تبارك الذی وائی۔ نو نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ته راغلل او حال یے عرض کړو نو نبی علیه السلام ورته اُوفرمایل چه دا

سورت د الله تعالیٰ د عذاب نه منع کوونکے او خلاصے ورکوونکے دے. حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه نبی کرم صلی الله علیه وسلم به ترهغے وخته پورے نه اُوده کیدهٔ ترڅو چه به ئې سورة الٓمٓ سجده او سورة تبارک الذی نهٔ وُو لوستلې. خالد بن معدان رحمة الله علیه فرمائی چه ما ته دا روایت را رسیدلے دے چه یو سړے ډیر ګنهګار وُو او سورة سجده به ئې لوستهٔ، د دے نه علاوه به ئې نور هیڅ نهٔ لوستل. چه مړ شو نو دے سورت خپلے وزرے په هغه سړی خورے کړے (او وے وئیل) چه اے ربه! دے سړی به ځما ډیر تلاوت کولو. د دے (سورت) شفاعت قبول کړے شو او حکم اُوشو چه د هرے بدئ په بدله کښې د یوه نیکی ورکړے شی. خالد بن معدان رحمة الله علیه دا هم فرمائی چه دا سورت د خپل ویونکی د طرفه به په قبر کښې جهګړه کوی او وائی به چه (اے الله) که چرے زهٔ ستا د کتاب نه یم نو ځما شفاعت قبول کړے، کنې ما د خپل کتاب نه وران کړے او دا رغهٔ په شان به جوړ شی په مړی باندے به خپلے وزرے خورے کړی او د هغهٔ نه به د قبر عذاب لرے کوی. دا ټول مضمون هغهٔ د سورة تبارک الذی په باره کښې هم وائی. خالد بن معدان رحمة الله علیه به ترهغے وخته پورے نهٔ اُوده کیدهٔ ترڅو چه به ئې دا دواړه سورتونه نهٔ وُو لوستلې. طاؤس رحمة الله علیه فرمائی چه دا دواړه سورتونه د ټول قرآن په هر سورت شپیته نیکئ زیاتے لری. د قبر عذاب څهٔ معمولی څیز نهٔ دے. هر چا ته به د مرګ نه پس د ټولو نه اول قبر سره معامله پیښیږی. حضرت عثمان رضی الله عنه به چه کله قبر سره اُودریدهٔ نو دومره به ئې اُوژړل چه ګیره مبارکه به ئې لونده شوه. چا ترے تپوس اُوکړو چه تا سو د جنت او دوزخ د تذکرے نه هم دومره نهٔ ژاړئ څومره چه د قبر نه ژاړئ؟ وے فرمائیل چه د نبی کرم صلی الله علیه وسلم نه ما اوریدلی دی چه قبر د آخرت د منزلونو نه د ټولو نه رومبے منزل دے. چا چه د دے د عذاب نه خلاصے بیا موندهٔ نو راتلونکی واقعات به ورته آسان شی او که د دے نه ئې خلاصے بیا نهٔ موندهٔ نو راتلونکے واقعات به د دے نه هم سخت وی. د غه شان دا هم اوریدلی دی چه د قبر نه زیات ویرهٔ ونکے هیڅ یو منظر نشته. (جمع الفوائد) اَللّٰهُمَّ

اِحْفَظْنَا مِنْهُ بِفَضْلِكَ وَمَنِّكَ۔

⑤ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی اللہ عنہ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اَيُّ الْاَعْمَالِ اَفْضَلُ قَالَ الْحَالُّ الْمُرْتَحِلُ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْحَالُّ الْمُرْتَحِلُ قَالَ صَاحِبُ الْقُرْاٰنِ يَضْرِبُ مِنْ اَوَّلِهٖ حَتّٰى يَبْلُغَ اٰخِرَهٗ وَمِنْ اٰخِرِهٖ حَتّٰى يَبْلُغَ اَوَّلَهٗ كُلَّمَا حَلَّ ارْتَحَلَ (رواه الترمذی کما فی الرحمة والحاکم و قال تفرد به صالح المری وهو من زهاد اهل البصرة الا ان الشیخین لم یخرجاه وقال الذهبی صالح متروک قلت هو من رواة ابی داؤد والترمذی۔)

حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ فرمائی چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه چا تپوس اُوکړو چه عملونو کښې کوم یو عمل ډیر بهتر دے۔ نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام ارشاد اُوفرمایه "حَال مُرْتَحِل" خلقو تپوس اُوکړو چه حال مرتحل څۀ څیز دے؟ نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام ارشاد اُوفرمایه چه هغه صاحبِ قرآن چه د اول نه ئې شروع کړی او تر آخره ئې اُورسَوِی او د آخر نه پس بیا اول ته راشی کوم ځائے چه اُودریږی بیا ترے مخکښ لاړشی۔

"حَال" منزل یا ندے راتلونکی ته وائی او "مُرْتَحِل" ترے تلونکی ته وائی یعنی هر کله چه قرآن شریف ختم شی نو بیا ئې دسَرنه شروع کړی۔ دا نه چه پس اُوس ختم شو بیا به کتلے شی۔ د کَنْزُ الْعُمَّال په یو روایت کښې ئې د دے شرح په اَلْخَاتِمُ الْمُفْتَتِحُ سره کړیده۔ ختم کوُنکے او ورسره شروع کوُنکے یعنی یو قرآن ختم کوَلو نه پس ورسره دویم هم شروع کړی۔ د دے نه غالبًا هغه عادت اخستلے شوے دے چه کوم خمونږ په مُلک کښې مشهور دے۔ چه قرآن ختم کوَلو نه پس (بیا د اول نه شروع کړی او) تر مُفْلِحُوْن پورے وائی۔ اُوس خلق دا یو مستقل ادب گنړی او بیا د پوره کوَلو اهتمام ئې نه کوی۔ حال دا دے چه دا ئے نۀ ده بلکه قرآن ختموَلو نه پس سمدستی بیا د سَر نه د قرآنِ پاک شروع کوَل په ظاهر کښې مقصود دی چه د هغې پوره کوَل هم پکار دی۔ په شرح اِحیاء کښې او علامه سیوطی رحمۃ اللہ علیہ په اِتقان کښې د دارمی په روایت نقل کړے دے چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم به چه کله قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ اُوَدے نو د سُورۃ بقرے د اول نه به ئے تر مُفْلِحُوْن ورسره لوستۀ او د دے نه پس به ئې د ختمِ قرآن دعا فرمایله۔

(٦) عَنْ أَبِيْ مُوْسَى الْأَشْعَرِيِّ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صلی اللہ علیہ وسلم تَعَاهَدُوا الْقُرْآنَ فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَهُوَ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنَ الْإِبِلِ فِيْ عُقُلِهَا۔
(رواہ البخاری ومسلم)

حضرت ابُو موسیٰ اشعری رضی اللہ عنہ د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه نقل کړے دے چه د قرآن شریف خبرګیری کوئ ځما دِ په هغے پاک ذات قسم وی چه د چا په قبضه کښ ځما ساه ده چه قرآن شریف ډیر زر وتونکے دے د سینونه، په نسبت د اُوښ د خپلو رسونه۔

یعنی بنده که چرے د څاروی د حفاظت نه غافله شی او هغه د رسئ نه اُوځی نو اُو به تختی۔ د غسے که د قرآن شریف حفاظت اُونه کړے شی نو دا به هُم یاد پاتے نه شی، هیر به شی او اصل خبره دا ده چه د قرآن شریف په حِفظ یادیدل په حقیقت کښ د اړخپله د قرآن شریف یو ښکاره مُعجزه ده کنی د دے نیمه یا دریمه حصه کتاب یادول نه صِرف مُشکل بلکه نا مُمکن دی۔ دے وجے الله جلّ شانهٗ د دے یادول په سُورتِ قمر کښ د اِحسان په طور ذکر فرمایلی دی او بار بار ئی په دے خبردارے کړے دے وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ (چه مونږ قرآنِ پاک د حِفظ کولو د پاره آسان کړے دے نو څوک شته حِفظ کوونکے؟ صاحبِ جلالین لیکلی دی چه استفهام یعنی پوښتنه کول په دے ایت کښ د اَمر په معنیٰ کښ دے۔ نو کوم څیز چه الله جلّ شانهٗ بار بار په تاکید فرمائی هغه مونږه مُسلمانان عبث، بے عقلی بے فائدے او د وخت ضائع کول ګنړو۔ د دے بے عَقلئی نه پس بیا هم مونږ د تباهئ د پاره څه د بل څیز د انتظار ضرورت باقی دے؟ د حیرانتیا خبره ده چه حضرت عُزیر علیه السلام د خپلو یادونه تورات اُولیکهٔ نو د هغے د وجے د الله تعالیٰ په ځوئ بللے شی او د مُسلمانانو د پاره الله جلّ شانهٗ دا مهربانی او احسان عام کړے دے نو د هغے دِ دا قدردانی اُوکړے شی؟ وَسَيَعْلَمُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا أَيَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ۔

خُلاصه د خبرے دا ده چه دا صرف د الله جلّ شانهٗ مهربانی او انعام دے چه قرآن شریف یادیږی د دے نه پس که چرے د چا د طرفه څه

بے توجهي بیا موندے شي نو دهغهٔ نه هیر کړے شي). قرآن شریف ویلو نه پس دبیا هیر ولو په حق کښ ډیر سخت عذابونه راغلي دي. د نبي اکرم ﷺ ارشاد دے چه په ما باندے د اُمت ګناهونه پیش کړے شو، ما په هغې کښ له دے نه زیاته ګناه بله اُونهٔ مونده چه څوك قرآن شریف اُوائي او بیائي هیر کړي. بل ځائې کښ ارشاد دے چه څوك قرآن شریف دو ئیلو نه پس هیر کړي، دقیامت په ورځ به دالله تعالیٰ دربار کښ جُذامي حاضریږي. جَمْعُ الفَوائِد کښ د رزین په روایت دا دلیل کرزولے شوے دے. اِقْرَءُ وا اِنْ شِئْتُمْ قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِيٓ اَعْمٰى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا ۝ څوك چه حمونږ د ذکر نه مخ اړوي دهغه ژوند به مونږ تنګ کړو او د قیامت په ورځ به یے ړوند راپا سوو. هغه به عرض اُوکړي چه اے الله ! څهٔ خو دستر ګو خاوند وم ولے دِ څهٔ ړوند کړم؟ ارشاد به اُوشي څکه چه تا ته حمونږ ایتونه راغلل او تا هغه هیر کړل. پس نن به ته هُم دغه رنګے هیر کړے شے یعني ستا به هیڅ امداد نهٔ کیږي.

(۷) عَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ قَرَءَ الْقُرْاٰنَ يَتَاَكَّلُ بِهِ النَّاسَ جَاءَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَوَجْهُهٗ عَظْمٌ لَيْسَ عَلَيْهِ لَحْمٌ. (رواه البيهقي في شعب الايمان)

حضرت بُرَیْدَه رضی الله عنه دنبي اکرم ﷺ دا ارشاد نقل کړے دے چه څوك قرآن شریف وائي چه د دے په وجه دخلقو نه خوراك اُوکړي، د قیامت په ورځ به هغه په داسے حالت کښ راشي چه دهغهٔ مخ به تش هډُوکي وي غوښه به پرے نهٔ وي.

یعني کوم خلق چه قرآن شریف د دُنیا دطلب په غرض وائي دهغوي په اخرت کښ هیڅ حصه نشته. دنبي اکرم ﷺ ارشاد دے چه مونږ قرآن شریف وایُو او په مونږ کښ عربي عجمي هر قسمه خلق دي څنګه یے چه وائي وائي یے. ډیر زر به وله راتلونکے ده چه دقرآن شریف حرفونه به داسے نیغوي څنګه چه غشے نیغولے شي یعني ښهٔ به یې ښائسته کوي، یو یو حرف به په کهنتو سموي او دمخارجو لحاظ ساتو کښ به ښهٔ کوشش کوي، او دا ټول به د دنیا دپاره کوي، دا اخرت سره به د دے خلقو څهٔ کار نهٔ وي. مقصد دا دے چه تش

خوش اٰوازی بے کاره ده چه پکښې اخلاص نهٔ وی چه صِرف دُنیا گټلو دپاره
به کولے شی. په مخ دغوښے د نِشت والی مطلب دا دے چه هر کله دغے بنده
اَشرَفُ الاَشیَاء (یعنی قرآن شریف) د ذلیل څیز گټلو ذریعه کړه نو اَشرَفُ الاَعضَاء
مخ بی د رونق نه محرومه کړے شو. عِمرَانُ بنِ حُصَین رضی الله عنه په یو واعظ
تیریدلو چه د تلاوت نه پس یی د خلقونه څهٔ غوښتل. دوی اُولیدهٔ نو اِنَّا
لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیهِ رَاجِعُونَ یی اُووے، او وے فرمایل چه ما د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم
نه اَوریدلی دی چه څوك تلاوت اُوکړی هغه له څهٔ غواړی نو د الله تعالیٰ نه
دِ غواړی. نزدے ده چه داسے خلق به راشی چه قرآن لوستلو نه پس به دَ
خلقونه څیز غواړی. د عالمانو نه نقل دی چه څوك د عِلم په ذریعه دُنیا
گټی د هغه مثال داسے دے لکه چه پَنړه په خپل مخ صَفا کوی. په دے کښې
شك نشته چه پَنړه خو به صَفا شی خو په مخ صفا کول د بے عقلئ انتها ده.
هُم د داسے خلقو باره کښې نازل شوی دی اُولٰئِكَ الَّذِینَ اشتَرَوُا الضَّلٰلَةَ
بِالهُدٰی (بقره ۲) "دغه خلق دی چا چه د هدایت په بدل له کښې گمراهی
واخسته پس نهٔ د هغوی تجارت څهٔ فائده مند دے او نهٔ د اخلق د هدایت
مُوندونکی دی." اُبَیّ بنِ کَعب رضی الله عنه فرمائی چه ما یو کَس ته د قرآن شریف یو
سُورت ښودلے وو. هغهٔ ما ته یو لیُندَه په تحفه کښې راکړه. ما نبی اکرم
صلی الله علیه وسلم ته د دے ذکر اُوکړو نو نبی علیه السلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه د دوزخ یو لیُندَهٔ
دِ واخِسته. دغه رنګے واقعه عُبَادَه بنِ الصَّامِتُ رضی الله عنه د خپل ځان متعلق
نقل کړے ده او د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا جواب یی نقل کړهٔ چه د دُوزخ یو سرو ټکه
دِ دخپلو اُوګو په مینځ کښې زوړَند ده کړه په بل روایت کښې دی که چرے ته غواړے
چه د دُوزخ یو اُوربَل په غاړه کښې واچوے نو دا قبوله کړه.

اُوس څهٔ د هغے حافظانو په خدمت کښې، چه د چا مقصد دَ قرآن شریف
د مدرسُونه صرف پیسه گټل دی، په ډیر ادب سره عرض کوم چه د الله دپاره
د خپلے مرتبے او د خپلے ذمه دارئ لحاظ اُوکړئ. کوم خلق چه ستاسو د بدَ نیتو نو
د هغے د وجے د قرآن شریف لوستل یا حِفظ کول بندوی، د هغے په وَبال کښې

په هغوی پوا څ نیولی نهٔ وی تاسو ورسره هم الله تعالیٰ ته جواب ورکوونکی
او د قرآن په بندوکو کښې شریک یئی. تاسو خلق د اګنړی چه مونږ د قرآن
خوړونکی یو خو په حقیقت کښې د دے د خوړلو له منع کوونکی هم مونږ خلق
یو. د چا بد عملئ او بد نیتئ د د نیا خلق مجبوره کوی چه هغوی قرآن پاک
پریږدی. عالمانو د تعلیم تنخواه دے د پاره نهٔ ده جائزه کړے چه مونږ
خلق بس هم د ا مقصود اوګرزوو، په حقیقت کښې د مدرسینو اصل غرض
صرف د علم او د قرآن شریف خورول دی. او تنخواه د دے بدله
نهٔ ده بلکه د ضرورت پوره کولو یو شکل دے، چه د مجبورئ او د
بے وسئ په وجه اختیار کړے شوه.

# تتمه

د قرآن شریف د دغے ټولو فضائلو او صفتونو ذکر کولو نه مقصود دے
سره محبت پیدا کول دی ځکه چه د قرآن شریف محبت د الله جل شانهٗ
محبت د پاره لازم او ملزوم دے، او دیو محبت د بل د محبت سبب ګرزی په
دُنیا کښې د بنی آدم پیدائش د الله جل شانهٗ د پیژندګلو د پاره شوے دے.
او د بنی آدمو نه علاوه د نورو ټولو څیزونو پیدائش د بنیادمو د
فائدے د پاره شوے دے.

ابرو باد و مه و خورشید و فلک درکارند ✤ تا تو نانے بکف آری و بغفلت نخوری
همه از بهر تو سرگشته و فرمان بردار ✤ شرط انصاف نه باشد که تو فرمان نه بری

ویلے شی چه وریځ، هوا، سپوږمئ، نمر، آسمان او زمکه هر یو څیز ستا د
خاطره کار کښې مشغول دی د پاره د د ے چه ته خپل حاجتونه د دے په ذریعه
پوره کړے او د عبرت په نظر ورته اوګورے چه د بنیادمو د ضرورتونو پوره
کولو د پاره دا ټول څیزونه ترکومه حده فرمانبرداره، منونکی او په وخت
باندے کار کوونکی دی او د خبر د ا ارزئ د پاره یکښې کله کله د لږ ساعت د پاره
خلاف کولے شی. د باران په وخت کښې باران نهٔ کیدل، د هوا په وخت کښې

هوا نهٔ چلیدل، دا رنګ د تندر په ذریعه سپوږمۍ نمر غرض په هر څیز کښې څه بدلون هم پیدا کوي چه د یو غافل د بیدارولو د پاره د عبرت یوه ګروړه هم ګرزي - د دے تولو نه پس خو مره د حیرانتیا خبره ده چه ستا په وجه دا ټول څیزونه ستا ضرور یا تو فرمانبردار کړے شي، او د دوي دا فرمانبرداري هم استاد الله تعالیٰ د فرمانبردارۍ او اطاعت سبب جوړ نهٔ شي - اطاعت او فرمانبردارۍ د پاره بهترین مددګار محبت دے - إِنَّ الْمُحِبَّ لِمَنْ يُحِبُّ مُطِيعٌ - کله چه چا سره محبت، عِشق او مینه پیدا شي نو د هغهٔ اطاعت او فرمانبرداري طبیعت او عادت جوړ شي او د هغهٔ نافرمانی دا سے ګرانه او سخته شي څنګه چه بغیر د محبت نه د چا اطاعت د عادت او طبیعت نه خلاف کیدو په وجه بوجه وي، څهٔ څیز سره د محبت پیدا کیدلو سبب د هغے د کمالاتو او د جمال مُشاهده ده که ظاهري حواسو سره وي یا باطني حواسو کښې د هغهٔ په حاضرګنړلو وي - کهٔ د چا په مخ لیدلو بے اختیاره د هغهٔ سره مینه پیدا کیږي نو د چا ښکلا او از هم د یر ځلے د مِقْناطِیس اثر لري - ے

نهٔ تنها عِشق از دیدار خیزد ✤ بسا کین دولت از ګفتار خیزد

"عِشق هیڅه صرف د شکل په لیدو نهٔ پیدا کیږي - د یر ځله دا مبارک دولت په خبرو سره هم پیدا کیږي." "غوږ ته آواز راتلل کهٔ د چا طرف ته بے اختیاره راښکلي نو د چا د کلام خوبۍ او جوهر هغهٔ سره د محبت سبب جوړیږي - چا سره د عشق پیدا کولو سبب د عشق ماهرانو دا هم لیکلي دي چه د هغهٔ ښهٔ صفتونه د ځان ته راښکلي کړي او د هغهٔ نه علاوه بل چا ته د په زړهٔ کښې ځائي نهٔ ورکوي لکه څنګه چه طبعي عشق کښې دا ټولے خبرے بے اختیاره کیږي - کهٔ د چا ښکلي مخ یا لاس باندے نظر پریوځي نو بیا کوشش کوي چه نور اندامونه یې هم اُووینې چه محبت یے زیات شي او زړهٔ ته یې آرام حاصل شي حال دا دے چه آرام ورته نهٔ حاصلیږي - ع

مرض بڑھتا گیا جوں جوں دوا کی

ترجمه: "مرض مې زیاتیدهٔ خومره خومره مې دارُو کول"

په پټۍ کښې د ځخم اچولو نه پس که څوک د هغې د اوبه خوړو خبر وانه غستي نو حاصلات نه کیږي. دغسې که د چا محبت بے اختیاره په زړه کښې راتلو نه پس هغه طرف ته توجه اونه کړې شي نو که نن نه وي صبا ته به د زړه نه لرے شي خو که څوک د هغه خط وخال سرنه ترخېبو دوي او د رفتار ګفتار په تصور د زړه د ځخم له اوبه ورکوي نو هر ساعت به پکښې زیاتے کیږي۔

مکتبِ عشق کے انداز نرالے دیکھے ✤ اس کو چھٹی نہ ملی جس نے سبق یاد کیا۔

د محبت د مدرسے انداز نا آشنا م اولیدهٔ ✤ چا چه سبق یاد که هغه چهټي اونه موندله

د اسبق چه هیر کړے سمدستي به ورته چهټي ورکړے شي څومره څومره چه یاد وي، هغومره به په کښې کیږي. دغسې څوک د عشق قابل سړے محبت پید اکول غواړي د هغه د کمالاتو او د هغه د زړه راکښونکو صفتونو لټے اوګرزي، د جواهرو تلاش د اوګړي او هر څومره چه ورته معلوم شي په هغې د بس نه کوي بلکه د هغې نه د زیات تلاش کوي. څنګه چه د فنا کیدونکي محبوب دیوانه امر په لید وصبر نشي کیدے، د هغې نه د زیات حرص څومره چه په وس کښې وي باقي وي. نو الله جل شانه چه په حقیقت کښې د هر یو جمال او حسن چینه ده او حقیقة په دنیا کښې هیڅ جمال هم د هغه نه علاوه نشته. یقیناً دا سے محبوب دے چه د هغه هیڅ یو جمال او کمال باندے بس والے نشته او نهٔ د هغې څهٔ انتها شته هم د دغې بے نهایته کمالاتو نه د هغه کلام (قرآن مجید) هم دے چه د هغې متعلق ما په وجے څهٔ مختصر غوندے ویلي دي چه د دے نسبت حاصلیدو نه پس بیا د هیڅ کمال ضرورت نشته، د عاشقانو د پاره به د دغې نسبت برابر بل کوم یو څیز وي. ع

اے گل بتو خورسندم تو بوئے کسے داری۔

"اے ګله ایم په تا باندے مئین ته خوشبو د چا لرے"۔

علاوه د دے نه چه د غه نسبت لره که څوک پریږدو لے هم شي چه د دے اول جوړونکے څوک دے او هغه د چا صفت دے نو بیا د نبي اکرم ﷺ سره چه د دهٔ کوم کوم نسبتونه دي د یو مسلمان د عاشق کیدو د پاره د غه څهٔ کم دي.

کهٔ چرے درے نه هم نظر وارؤلے شی نو په خپله قرآنِ پاک کښې غور اُوکړلی چه کوم یو صفت په دُنیا کښې داسے دے چه په څهٔ څیز کښې مُوندے شی او قرآنِ پاک کښې نهٔ وی. ے

| | | |
|---|---|---|
| دامانِ نگه تنگ و گلِ حُسنِ تو بسیار | ❖ | گُل چینِ بهارِ تو ز دامان گله دارد |
| د نظر لمن مې تنګه، ستا د ښائست ګلونه ډیر | ❖ | ستا د بهار ګلونه شوکوونکی ګِله لمنے نه کوی. |
| فِدا هوں آپ کی کس کس ادا پر | ❖ | ادائیں لاکھ اور بے تاب دل ایک |
| ستا په کومه کومه ادا باندې فدا شم | ❖ | اداګانے په لکهونو او بیقراره زړګے مې یو دے |

د تیر شوُو حدیثونو په غور سره لوستو نکو نه پټه نهٔ ده چه هیڅ یو څیز هم په دُنیا کښې داسے نشته چه د هغې طرفته پورتنو حدیثونو کښې نه وی مُتوجه کړے شوے او د محبت او افتخار قسمونو کښې به هیڅ یو قسم سره محبت کوونکے داسے نهٔ وی چه په هغې رنګ کښې د قرآن شریف بهتر والے او وُچتوالے په دغه قِسم کښې په کامله درجه نهٔ وی ښودلے شوے. مثلاً کُلی او اجمالی بهتر والے چه د ټولے دنیا څیزونو ته شامل دے، هر یو جمال او کمال په دے کښې داخل دے. د ټولو نه رُومبی ① حدیث په کُلی طور د هر یو څیز نه د قرآن شریف بهتروالے او وُچتوالے اُوښودلو. د محبت کوم یو قِسم چه واخلے، چاته چه نهٔ ختمیدونکی اسبابو کښې په څهٔ وجه یو سبب خوښ شی نو د قرآن شریف په دے ټولو فضیلتونو کښې د هغې ټولو نه زیات بهتر دے، د دے نه پس عام طور سره چه د تعلق او محبت کوم اسباب دی، د جُزئیاتو او تمثیل په طور په هغې ټولو باندے د قرآن شریف بهتر والے اُوښودلے شو. کهٔ د چا د فائدو او مُنافعو په وجه چا سره محبت وی (چه دهٔ نه به راته څهٔ نفع را اُورسی) نو د الله جل شانه وعده ده چه د هر یو غوښتونکی نه به ورته زیاته ورکړه کومه. حدیث ② کهٔ د چا ذاتی فضیلت او ذاتی جوهر او ذاتی کمال کښې یے کوم یو خوښ وی نو الله جل شانهٔ واضحه کړے ده چه د دُنیا په هره خبره باندے د قرآن شریف هغومره فضیلت دے، څومره چه د خالق په مخلوق باندے، د آقا په غلامانو باندے، د مالک په مملوک باندے دے. حدیث ③ کهٔ څوک د مال و اسباب

(سازوسامان) نوکرانو، خادمانو او دخارووعاشق وی او دځهٔ قسمه خاروو په پالنه یې زړهٔ بائلے وی نو دخاروو بے مشقته حاصلولو نه یې د قرآن شریف حاصلولو په بهترو الی خبردارے اُوکړو۔ حدیث ④ که څوک صوفی مزاجه د پاکئ او پرهیزګارئ اُوبے دے دهغے دپاره سرکردانه دے نو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ورته اُوخودل چه د قرآن ماهر د فرښتو سره شماریږی چه دهغوی برابر د تقوی حاصلیدل ګرانه ده چه یو ساعت هم د اطاعت نه خلاف نشی تیرولے۔ حدیث ⑤ که څوک په دوچند حصه حاصلیدو فخر کوی یا خپل لوئ والے په دے کښ ګنړی چه د ده رائ د دوو رایو برابر اُوشمیرلے شی نو دچا چه په تلاوت کښ ژبه انخلی دهغهٔ دپاره دوچند ثواب دے۔ حدیث ⑥ که څوک حاسد دبد و اخلاقو شوقی وی او په دُنیا کښ یے حسد کول عادت جوړ شوے وی او په ژوند د حسد نه نهٔ شی اوریدلے نو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اُوښودل چه د دے قابل چه دهغهٔ په کمال واقعی حسد کیدلے شی هغه حافظِ قرآن دے۔ حدیث ⑦ که څوک په میوو مئین وی او ځان پرے وږے بے میوے ورله آرامنهٔ ورځی، نو قرآن شریف د کلکل مشابهت لری۔ حدیث ⑧ که څوک دخوږو عاشق وی، د مِتهائ نه بغیر یے ساعت نهٔ تیریږی نو قرآن شریف د کهجورے نه زیات خوږ دے۔ که څوک د عزت او دَوقار عاشق وی، د ممبرئ او کونسلرئ نه بغیر نشی پاتے کیدے، نو قرآن شریف په دُنیا او آخرت کښ د رجو اُوچتولو ذریعه ده۔ حدیث ⑨ که څوک مُعین او مدد ګار غواړی داسے جان نثار غواړی چه په هره جهګړه کښ دخپل ملګری له طرفه دجهګړے دپاره تیار وی نو قرآن شریف دَ سُلطَانُ السَّلَاطِیْن، مَلِكُ الْمُلُوك، شهنشاه په دربار کښ دخپل ملګری دپاره جهګړه کوُنکے دے۔ حدیث ⑩ که څوک نکته دان باریکئ راایستلو کښ عُمر خرچ کول غواړی دهغهٔ په نزد یوه باریکه نکته حاصلول د ټولے دُنیا دلذتونو نه مخ کرزولو دپاره کافی ده۔ نو د قرآن شریف اندرون دَ د باریکو خزانه ده۔ حدیث ⑪ دغه شان که څوک دپټو رازونو پته لګول

کمال ګڼړی، په محکمه دسی آئی ډی کښ تجربه هنر ګڼړی، عمر په کښ ختموی نو د قرآن شریف اندرون په هغې پټو رازونو باندې خبردارې ورکوی چه د هغې څۀ انتها نشته. که څوك اُوچتو مکانونو جوړولو باندې مری، په اُوم چهت خپله خاصه کمره جوړوَل غواړی نو قرآن شریف اُوۀ زَرَه منزلونه سرې رَسَوِی (په جنت کښ) حدیث ⑫ که څوك د دې عاشق وی چه داسې آسان تجارت اُوکړم چه په هغې کښ محنت هیڅ نۀ وی او نفع په کښ ډیره وی نو قرآن شریف په یو حرف لس نیکۍ ورکوی. حدیث ⑬ که څوك د تاج و تخت اُوږې وی د هغې په خاطرِ دنیا سره جنګیږی نو قرآن شریف د خپل ملګری مور پلار ته هُم هغه تاج ورکوی چه د هغې د برېښنا دنیا کښ هیڅ مثال نشته. حدیث ⑭ که څوك مداری توب کښ کمال پیدا کوی، اُور په لاس کښ بَړدی، بَلْ تیلے په خُلهٔ کښ بړدی نو قرآن شریف د دوزخ د اُور اثر کوَلو نه منع کوونکے دے. حدیث ⑮ که څوك حاکمانو ته رسیدو باندې مړوی، په دې ورته نازوی چه ځما په یو خط فلانکی حاکم هغه مُلزم پرېخودهٔ، فلانکے سړے مې سزا خوړلو ته پرې نهٔ خودهٔ دومره غونډې فائدې حاصلولو د پاره د ججانو، کلکټرانو دعوتونو او خوشامندو کښ ځان او مال ضائع کوی. هره ورځ د چا حاکِم په دعوت کښ سرګردانه اُوسی نو قرآن شریف د خپل هر یو ملګری په ذریعه داسې لسو کسانو له خلاصے ورکوی چا ته چه د دوزخ د تللو حکم شوے وی. حدیث ⑯ که څوك په خوشبویو ځان وَژنی، د چمن او د ګلونو عاشق وی نو قرآن شریف بالجهر دے. حدیث ⑰ که څوك د عطرو عاشق وی، په ځنائے مُشکی کښ غُسل کوَل غواړی نو قرآن شریف اول نه تر آخره پورې مُشک دی او که غور اُوکړے نو درته به معلومه شی چه د دې مُشکو د هغې مُشکو سره هیڅ نسبت نشته. ؎ چه نسبت خاک را با عالمِ پاک ؎ څۀ نسبت د خاوړے د دې هغې پاك عالَم سره. ؎

کار زلفِ تست مشک افشانی امّا عاشقان ❁ مصلحت را تهمتی بر آهوئے چین بسته اند

اَے محبوبے! په اصل کښ مشک دوړوَل ستا د زلفو کار دے خو عاشقانو

الزام لګولے دے". حدیث (۱۸) په څۀ مصلحت د چین اُومځ بانده
که څوک د پټڼے یار یعنې په وهلو ټکولو څۀ کار کوی، ترغیب دهغۀ د پاره
فائده مند نۀ وی نو د قرآن شریف نه خالی کیدل د کور د برباد ئ برابر دی.
حدیث (۱۹) که څوک عابد د بهترین عبادتونو په لټون کښ وی او په هر
کار کښ د ا ارزو لری چه کوم څیز کښ به زیات ثواب وی چه هغے کښ
مشغول شم نو د قرآن شریف لوستل د ټولو نه بهترین عبادت دے او
صفا صفا یے اُوښودله چه د نفلی مونځ، روژے، تسبیح وتهلیل (یعنی
سُبْحَانَ اللهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ، اَللهُ اَکْبَرُ) وغیره د ټولو نه ډیر
بهتر دے. حدیث (۲۰) د ډیرو خلقو بلار بو ځارو سره مینه وی. بلارب
ځاروے په اُوچت قیمت اخستلے شی. نبی اکرم ﷺ خبردارے ورکړو، او
په خصوصیت سره یے دا حصه هم په مثال کښ ذکر اُفرمایله چه قرآن
شریف د دے نه هم بهتر دے. حدیث (۲۱) اکثرو خلقو سره د صحت ډیر فکر
وی، ورزش کوی، هره ورځ لامبی، منډے وهی سحر وختی تفریح کوی،
هُم د غیبے بعضے خلقو سره رنج وغم، فکر او تشویش لګیدلے وی. نبی اکرم
ﷺ اُوفرمایل چه سورة فاتحه د هر مرض شفا ده او قرآن شریف د زړونو
د مرضونو لرے کوُنکے دے. حدیث (۲۲) د خلقو د فخر اسباب د ټیرو شوُو
فخرونو نه علاوه نور هُم ډیر دی چه د هغے جمع کول مُشکل دی. اکثر خپل
نسب فخر کوی، څوک خپلو عادتونو بانده، د چا په خپل مقبولیت بانده
چا نه په خپل ښۀ تدبیر بانده فخروی. نبی اکرم ﷺ اُوفرمایل چه
په حقیقت کښ د فخر قابل چه کوم څیز دے هغه قرآن شریف دے او و ئے
به نۀ وی چه په حقیقت کښ د هر ښائست او کمال جمع کوُنکے دے ــــ
"آنچه خوباں همه دارند تو تنها داری"
"هر هغه ښکلے صفتونه چه ټول خلق یې لری ته یې یواځے لرے".
حدیث (۲۳) د ډیرو خلقو د خزانے جمع کولو شوق وی، خوراك او اغوستلو
کښ تنګسیا کوی، تکلیفونه برداشت کوی او د یو کم، سلو په چکر کښ دا ئے

اُو نخلې چه دهغې نه وتل ورته گران وي. نبي اکرم ﷺ ارشاد اُو فرمايهٔ
چه د ذخيرے قابل قرآن شريف دے. څومره چه دچا زړهٔ غواړي جمع دِ
کړي چه د دے نه بهتره بله خزانه نِشته. حديث ﴿۲۴﴾ دغه شان کهٔ تهٔ
د بجلي د رَڼړا گانو شوق لرے چه په خپله کمره کښې لس بلفونه د بجلي
د دے دپاره لگوے چه کمره مِ ښهٔ اُو برقيږي نو د قرآن نه زيات
نُورانيت اُو رَڼړا بل په کوم څيز کښې کيدے شي؟ حديث ﴿۲۵﴾ کهٔ تهٔ په
دے ځان وَژنے چه تاله دِ ډالئ راځي، دوستان دِ روزانه څهٔ نه څهٔ
راليږي، تهٔ د دے په خاطر خپل تعلقات زيا توے. کوم دوست اُو اشنا
چه دخپل باغ په ميوه کښې ستا حصه اُو نهٔ کړي نو تهٔ د هغهٔ شکايت کوے
نو د قرآن شريف نه بهتر ډالئ ورکونکے څوک دے، چه سکينه درته راليږلے
شي. پس کهٔ چرے ستا په چا باندے د قربانيد و وجه داوي چه هغه تاله
روزانه څه نه څهٔ ډالئ راوړي نو په قرآن شريف کښې د دے هم بدل شته.
حديث ﴿۲۶﴾ اوکهٔ تهٔ دچا وزير د دے دپاره هروخت خپے ښکلوے چه هغه به
په دربار کښې ستا ذکر اُو کړي، دچا مسلخوان د دے دپاره خوشامندے کوے
چه هغه به افسرِ مال ته ستا تعريف اُو کړي يا دچا د دے دپاره خوشامندے
کوے چه د محبوب په مجلس کښې به ستا ذکر اُو کړي نو قرآن شريف د اَحْكَمُ
الْحَاكِمِيْنَ محبوب حقيقي په دربار کښې ستا ذکر په خپله د محبوب اُو اقا په
ژبه کوي. حديث ﴿۲۷﴾ کهٔ تهٔ د دے تلاش کوے چه د محبوب د ټولونه زيات
خوښ کوم څيز دے اگرچه هغه په حاصليد و کښې د اسے وي لکه د غرونو نه
د پئو نهر راايستل، نو د قرآن شريف برابرا قا ته هيڅ يو څيز هم خوښ نهٔ دے.
حديث ﴿۲۸﴾ کهٔ تهٔ درباري جوړيدلو کښې عمر خرچ کوے. د بادشاه يو ځائ
ناست ملگرے جوړيدو د پاره په زرگونو تد بيرونه اختيارَوے، نو د قرآن شريف
په ذريعه تهٔ دهغې بادشاه ملگرے شماريږے چه دهغهٔ د وړاندے دچا
لوئ نه لوئ بادشاهت هيڅ حقيقت نهٔ لري. حديث ﴿۲۹﴾ د خپل انتيا خبرهٔ
ده چه خلق د کونسل د ممبرئ د پاره اود دومره لږے خبرے د پاره چه

افسرمال صاحب بنکار له ځئ نوچه تا هم ځان سره واخلي. دے دپاره ته خومره قربانی کوے. راحت، آرام، ځان او مال ټول قربانوے. د خلقو په ذریعه کوشش نه کوے، دین او دنیا دواړه بربادوے. صرف د دپاره چه ستا په نظرکښ په دے ستا عزت کیږی، نو بیا وَلے دحقیقی عزت دپاره، دحقیقی حاکم بادشاه دملګرتیا دپاره، واقعی درباری جوړیدلو دپاره تا ته لږ شانتے د توجُه هم ضرورت نشته؟ ته په دے نمائشی عزت عمر خرڅ کوه، مګر د الله تعالیٰ دپاره د دے عمر څه لږ حصه د عمر ورکوئ کئ درضا دپاره خو هم خرڅ کړه. دغسے که چشتیه طریقه تا ته خوښه وی او د دغ مجلسونو نه بغیر تاله قرار نه راځی نو د تلاوت مجلسونه د هغے نه ډیر زیات زړونه راخکونکی دی او دلوئ نه لوئ بے پرواه غوږونه خپل ځان طرف ته متوجه کوی. حدیث ۳۰ و ۳۱ دغه شان که چرے اقا خپل ځان طرف ته متوجه کول غواړے نو تلاوت کوه. حدیث ۳۲ او که ته د اسلام دعوید ارے دمسلمانئ دعوه د وی نو د نبی اکرم ﷺ حکم دے چه د قرآن شریف دا تلاوت کوه څنګه چه د دے حق دے. که ستا په نزد اسلام صرف زبانی جمع خرچ نه وی او د الله تعالیٰ او د هغه د رسول ﷺ فرمانبرداری سره هم ستا د اسلام څه غرض وی نو د (قرآن شریف) د الله تعالیٰ فرمان دے او د هغه د رسول ﷺ دطرفه د دے د تلاوت حکم دے. حدیث ۳۳ که په تا کښ قومی جوش په زور کښ وی، ترکی ټوپئ ته صرف د دے دپاره خوښوے چه هغه ستا په نزد خالصه اسلامی جامه ده. او قومی نخه ته ډیره زیاته خوښوے په هر شان د هغے د خورولو تدبیرونه اختیاروے، اخبارونو کښ مضامین شائع کوے، په جلسوکښ تجویزونه پاس کوے نو د الله تعالیٰ رسول ﷺ تا ته حکم درکوی چه څومره درنه کیدے شی، قرآن شریف خور کړه. بحاله به نه وی که څه دلته د قوم د مشرانو شکایت او کړم چه د قرآن شریف په خورولو کښ ستا سو له طرفه څومره امداد کیږی. او صرف دا نه بلکه د الله تعالیٰ دپاره لږ په غور فکر جواب راکړئ چه د قرآن شریف د سلسلے په بندولو کښ

ستاسو خومره قدرے حصه ده ـ نن ددے تعلیم بے کاره بنودلے کیږی. د عمرونو ئې کوُل ګنړلے شی، بے کاره دماغ پرے سوزول او بے نتیجے خوله ایستل ورته ویلے شی. ممکنه ده چه ته ددے موافق نهٔ یے خو یوه ډله پوره طور په دے کښې کوشش کوی نو آیا ستاسو چپوالے هغوی سره امداد نه دے؟ ما اُومنله که تاسو ددے خیال نه بیزاره یئ خو ستاسو دے بیزارئ څهٔ فائده اُوکره ـ

ہم نے مانا کہ تغافل نہ کروگے لیکن ❁ خاک ہوجائیں گے ہم تم کو خبر ہونے تک

"مونږه اُومنله چه ته به غفلت نهٔ کوے خو ته چه څو خبریږے نو مونږه به خاوړے شوے یُو"

نن (د قرآن شریف) د تعلیم نه په ډیر زور شور سره څکه انکار کولے شی چه د جهات مُلایانو د خپلو ټکړو د پاره دا یوه مشغله جوړه کړے ده اګرچه دا عام طور په نیتونو باندے حمله ده چه ډیره سخته ذمه داری ده او په خپل وخت به ددے ثبوت پیش کوُل وی، ولے څهٔ په ډیر ادب سره تپوس کومه چه د الله تعالیٰ د پاره لږ په دے غور اُوکړئ چه ددے خود غرضو مُلایانو ددے خود غرضئ نتیجے تاسو په دُنیا کښې څهٔ وینئ؟ او ستاسو د بے غرضه تجویزونو نتیجے به څهٔ وی؟ او د قرآن شریف په نشر و اشاعت کښې به ستاسو په دے فائده منو تجاویزو څومره قدرے مدد حاصل شی.

بهرحال د نبی اکرم ﷺ ارشاد ستاسو د پاره د قرآن شریف د خوړولو دے. په دے کښې ته پخپله فیصله اُوکړه چه ددے ارشادِ نبوی تعمیل ترکومه حده ستاد ذاته اُوشو، او کیږی. کورئ د کوُم بلے خبرے هم خیال ساتئ. د ډیرو خلقو دا خیال وی چه مونږه په دے خیال کښې هغوی سره شریک نهٔ یُو نو څمونږ پرے څهٔ؟ خو په دے دالله تعالیٰ د نیولو نه نهٔ شی بچ کیدے. اصحابو کرامو رضی الله عنهم د نبی اکرم ﷺ نه تپوس اُوکړو اَنَهْلِكُ وَفِيْنَا الصّٰلِحُوْنَ قَالَ نَعَمْ اِذَا كَثُرَ الْخَبَثُ "آیا مونږ به په داسے حالت کښې هلاک کیږو چه په مونږ کښې صالحان موجود وی؟ نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ، او! کله چه خباثت غالب شی". هم دغه شان یو روایت کښې راغلی دی چه الله جل شانهٔ

دیَو کلی دا رَوَلو حکم اُوفرمایه، حضرت جبرئیل علیه السلام عرض اُوکړو چه په هغې کښې فلانے بنده داسے دے چه هغه هیچرے گناه نۀ ده کړے، ارشاد اُوشو چه صحیح ده خو ده ځما نافرمانی لیدله چه کیده، او هیځ کله یې په تندی گُنځے قدرے هم نۀ دے راغلے. حقیقت کښې عالمان دا حکمونه مجبوروی چه هغوی ناجائز کار اُوینی نو د ناخوښئ اظهار دِ اُوکړی چه ځمونږ روشن خیاله طبقه ورته تنگ نظری وائی. تا سو خلق په دے خپلے ازادخیالئ او د اخلاقو په فراخئ بے غمه کیږئ مه. دا فریضه یواځے د عالمانو په ذمه نۀ ده بلکه دا د هر هغه چا په ذمه ده چه څۀ قِسم ناجائزه خبره اُوینی او د تړکولو طاقت یې وی او اُوئے نۀ تړوکی. بلال بن سعید رضی الله عنه نه روایت دے چه گُناه کله په پټه کیږی نو د هغې وبال صرف په کونکی باندے وی خو کله چه په ښکاره کیږی او په هغې انکار اُونۀ کړے شی نو د هغې وبال عام وی.

هغۀ غښے کۀ تۀ د تاریخ شوقین یے. کوم ځائی چه معتبر تاریخ، زور تاریخ تا ته ملاویږی تۀ د هغې د پاره سفر کوے نو په قرآن شریف کښې د تېرو لودا سے کتابونو بدل موجود دے چه په تیرو شوو زمانو کښې دلیل او معتبر منلی شوی دی. حدیث ㉞ کۀ تۀ د داسے اُوچتے مرتبے ارزومند یے چه انبیاء علیهم الصلوٰة والسلام ته ستا په مجلس کښې د کیناستلو شریکیدو حکم اُوشی نو دا خبره به هم صرف په قرآن شریف کښې بیا مومے. حدیث ㉟ کۀ دومره سُست یے چه څۀ کول نۀ شے نو بے محنته بے مشقته عزت به هم تا ته صرف په قرآن شریف کښې حاصل شی چه چُپ چاپ د وړو مدرسه کښې کینه او ډیجو قرآن شریف اُوره او مُفت ثواب حاصلوه. حدیث ㊱ کۀ تۀ د مختلف قِسمه رنگونو عاشق یے. دیَو قسم رنګ نه د زړۀ موړ شی نو د قرآن شریف په معنو کښې مختلف رنگونه مختلف قِسم مضمونونه حاصل کړه. چرته د رحمت چرته د عذاب، چرته قِصے، چرته احکام او د تلاوت حالت هم کله په زوره وایه او کله یې په رو وایه. حدیث ㊲ کۀ ستا گناهونه د حد نه تیر دی او د مرګ یقین هم وی نو بیا د قرآن شریف په تلاوت کښې یوه ذره هم بے پروائی مۀ کوه.

چه ددے درجے سفارش به ته چرته بیانه مومے اوبیا داسے چه دهغهٔ سفارش دقبلید ویقین هم وی۔ حدیث (۳۸) دغه شان که ته دومرهٔ دعزت اووقار خاوند یے چه دجهګړه کوئنکی نه ویریږے، دخلقو دجهګړے دویرے نه ویرے قربانی ورکوے نو دقران شریف دمطالبے نه هم اُویریږه چه دده په شان جهګړه کوئنکے به ته بیانه مومے۔ دد وُړلو په جهګړه کښې دهر چا څوك نه څوك طرفداروی خو دقران شریف په جهګړه کښې به ددهٔ تصدیق کوُلے شی او هر څوك به دهٔ ته رښتنے وائی او ستا به هیڅوك طرفدارنهٔ وی۔ حدیث (۳۹) که تا ته داسے رهبر پکاروی او په هغهٔ ته قربانیږے چه دَ محبوب کورته دِ اُورسوی نو تلاوت کوه۔ او که ته دے نه ویریږے چه چرته جیل کښې بندی نهٔ شے نو په هرحالت کښې دقران شریف دتلاوت نه بغیر علاج نشته۔ حدیث (۴۰) که ته دنبیا نو علیهم السلام علوم حاصلوُل غواړے او د هغے فدائی او عاشق یے، نو قران شریف نوله او چه څومره غواړے کمال پیدا کړه۔ هُم دغسے که ته په بهترینو اخلاقو ځان قربا نولو ته تیار یے، نو هم دتلاوت ډیرولے کوه۔ حدیث (۴۱) که چرے ستا شوقین زړهٔ همیشه دشملے او منصوری دغرونو په سرونو باندے په سیر و تفریح کښې خوشحالیږی او سلوغانو نو سره یعنی دزړهٔ نه ته دیو غر په سفر قربان یے، نو قران شریف دمُشکو په غرونو په داسے وخت کښې درباندے تفریح کوی چه په ټول عالم کښې دَ نفسانفسئ زوروی۔ حدیث (۴۲) که ته دزاهدانو په اعلیٰ فهرست کښې شماریدل غواړے او شپه او ورځ دنوافلو نه فرصت نه مومے نو دقران شریف زده کول راو، بنودل ددے نه مخکښې مخکښې دی۔ حدیث (۴۳) و (۴۴) که ددنیا دهرے یوے جهګړے نه ته خلاصے غواړے دهرے یوے لانجے نه ځان له په دده اُوسیدل غواړے نو صرف هم په قران شریف کښې دهغے نه خلاصے دے۔ حدیثِ خاتمه (۱) که چرے ته چا طبیب سره تعلق پیدا کول غواړے نو په سورتِ فاتحه کښې دهر مرض نه شفا ده۔ حدیث (۲) که ستا به اِنتها غرضونه نهٔ پوره کیږی نو وَلے هره ورځ دسورة یٰس

تلاوت نهٔ کوی. حدیث ③ کهٔ ستا پیسے سره د اسے محبت دے چه دهغے نه بغیرته دهیڅ اهم نه یے، نو ولے هره ورځ د سورة واقعه تلاوت نهٔ کوے. حدیث ④ کهٔ چرے ستا د قبر د عذاب ویره وی او برداشت کولے یے نهٔ شے نو د رے نه هم په قرآن شریف کښ خلاصے دے (یعنی د سورة ملك په تلاوت سره.) حدیث ⑤ کهٔ تا ته همیشه څهٔ روزګار پکار وی چه په هغے کښ ستا مبارك وختونه همیشه مشغول وی نو د قرآن شریف نه به د رته زیات په بل څهٔ کښ حاصل نهٔ شی. حدیث ⑥ خو چرته د اسے اُونهٔ شی چه دا دولت د حاصلیدو نه پس وا خستلے شی چه بادشاهی په لاس راتلل بیا د لاس نه وتل زیات د افسوس او د نقصان سبب وی او څهٔ حرکت د اسے هم اُونهٔ کړے چه نیکی برباده او ګناه لازمه شی. حدیث ⑦ وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغُ.

څما غونډ ے بے کاره د قرآن شریف په فائدو څهٔ خبریدے شی. د ناقصے پوهے موافق چه کوم په ظاهری طورم پوهه کښ راغله ښکاره م کړه. خو د پوهے خاوندانو د پاره د غور او فکر لاره ضرور پرانستے شوه ځکه چه د محبت اسباب کوم چه د رے فن خاوندانو چا سره د محبت ذریعه ښودلے ده په پنځه څیزونو کښ راغونډ دی. اول ښیل وجود چه طبعاً یے انسان محبوب ګنړی. قرآن شریف کښ دَ مُصیبتونو نه امن دے ځکه چه هغه د ښیل ژوند او د بقا سبب دے. دویم طبعی مُناسبت چه د هغے متعلق د دے نه زیات څهٔ وضاحت کولے شم چه قرآن شریف صفتِ اِلٰهی دے او د مالك او مملوك، آقا او بنده کښ چه کوم مُناسبت دے هغه د پوهه خلقونه پټ نهٔ دے. ـه

ہست ربُّ النّاس را با جانِ ناس ✿ اتصالے بے تکیف د بے قیاس

" د خلقو د پرورد کار د خلقو سره تعلق دے خو بے کیفیته او بے قیاسه دے (چه د هغے حال نشی بیانیدے.)

سب کے ربط آشنائی ہے اُسے ✿ دل میں ہر اک کے رسائی ہے اُسے

د ټولو سره دے د هغهٔ تعلق او آشنایی ✿ د هر یو په زړهٔ کښ د هغهٔ ده رسایی

یعنی هر چا ته وررسی.

دریم جمال، څلورم کمال، پنځم احسان۔ د دے دریے وارو متعلق که په تیرو شوو حدیثونو کښ غور اوکړئ نو نه صرف په هغې جمال او کمال بانْدے چه هغه طرف ته یو ناقِصُ الفَهَم (یعنی ما ناپوهه) اشاره کړے ده، تا سو به پرے ښں والے اوکړئ۔ بلکه په خپله به بے شکه او شُبهے دے حد ته اورسیږئ چه عزت او افتخار، شوق او سکون، جمال او کمال، اکرام او احسان، لذت او راحت، مال او متاع، غرض دا چه هیڅ څیز به داسے بیا نه مومئ چه کوم د محبت په اسبابو کښ کیدلے شی او نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په هغې خبردارے نه وی ورکړے او قرآن شریف یے په دغه قسم کښ د هغے نه بهتر نه وی ښودلے البته پرده کښ پټیدل د دنیا دلوازماتو نه دی خو عقلمند انسان په دے وجه چه د لیچی (دمیوے) په پوستکی اَرغی دی د هغے د مغز نه هم نه اړوی۔ او څوك زړه بائیلے د خپلے محبوبے نه په دے وجه کرکه نه کوی چه هغه داوخت په برقعه کښ ده۔ د پردے لرے کولو هر ممکن نه ممکن کوشش به کوی۔ اوکه کامیاب هم نه شی نو د پردے د پاسه به خپلے ستر کے یخوی۔ که د هغهٔ یقین راشی چه د چا په خاطر دکلونو نه سرگردانه یم هغه په دے څادر کښ ده، ممکنه نه ده چه بیا ئی د هغے ښادرنه نظر بل خواشی۔ دغسے د قرآن شریف د دے فضائلو، مناقبو او کمالاتو نه پس چه که هغه دغهٔ پردے په وجه نهٔ محسوسیږی نو د عقلمند کار نهٔ دے چه د هغے نه بے توجهی او بے پرواهی اوکړی۔ بلکه په خپل تقصیر او نقصان دِ افسوس اوکړی او په کمالاتو کښ دِ غور و فکر کوی۔ حضرت عثمان او حضرت حُذَیْفَه رضی الله عنهما نه روایت دے، که چرے زړونه (دگناهونو) د پلیتئ نه پاك شی نو د قرآن شریف د لوستلو نه په هیڅ کله هم ماړه نشی۔ ثابِتُ بُنَانی رحمة الله علیه فرمائی چه شل کاله ما قرآن شریف په مشقت سره اولوستو او دشلو کالو نه ما ته د هغے یخوالے راسی۔ پس څوك چه دگناهونو نه توبه اوباسی او غور اوکړی نو قرآن شریف به د "آنچه خوبان همه دارند تو تنها داری" مصداق بیا مومی۔ اے ارمان! چه د دے الفاظو معنی په ما بانْدے هم صادقے راتلے۔ څهٔ د دے کتاب لوستونکو ته هم درخواست کومه

چه لیکونکی طرف ته مه ګوري چه څما بیکاره والے تا سود ضروري مقصد نه منع نه کړي، بلکه خبرے طرف ته توجُه فرمائیئ او دکوم ځائ نه چه دا خبرے اخستلے شوي دي، هغه طرف ته توجُه کوئ چه څهٔ خو په مینځ کښ صرف د نقل کولو ذریعه یمه. دے ځائ ته د رسیدو نه پس د الله تعالیٰ د ذات نه لرے نهٔ ده چه هغه دچا په زړهٔ کښ د قرآن شریف د یادولو شوق پیدا کړي. پس کهٔ بچے حافظ کول غواړئ نو دهغهٔ د پاره د هیڅ عمل ضرورت نشته، چه دوړوکوالی عُمر په خپله د حِفظ کولو د پاره مدد ګار او تجربه شوے دے. البته کهٔ څوک په لوئ عمر کښ د حِفظ کولو اراده اُولري نو دهغهٔ د پاره د نبي اکرم ﷺ فرمائیلے شوے یو مجرب عمل لیکمه چه هغه ترمذی، حاکم وغیره روایت کړے دے. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه څهٔ د نبي اکرم ﷺ په خدمت کښ حاضر وم چه حضرت علی رضی الله عنه راغے او عرض ئې اُوکړو، اے د الله رسُوله! ﷺ څما مور او پلار دِ په تا قربان شي قرآن شریف څما د سینے نه اُوزي، څهٔ چه یادومه هغه محفوظ نهٔ پاتے کیږي. نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه څهٔ تا ته داسے ترکیب اُوښایم چه تا ته هم نفع درکړي او چا ته چه یې تهٔ اُوښائے، دهغهٔ د پاره هم نفع ورکوونکے وي. او څهٔ چه تهٔ زده کوے هغه در ته یاد پاتے شي. د حضرت علی رضی الله عنه په پوښتنه نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه کله د جُمعے شپه راشي نو کهٔ درنه کیږي چه د شپے اخری دریمه حِصه کښ پاسے نو دا ډیره زیاته ښهٔ ده چه دا وخت د فرښتو د نازلیدو دے او دُعا په دے وخت کښ په خاص طور سره قبلیږي. د دے وخت په انتظار کښ حضرت یعقوب علیه السلام خپلو ځامنو ته ویلی وُو سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ "قریبه ده څهٔ به ستا سو د پاره د خپل رب نه مغفرت طلب کړمه" (یعنی د جُمعے د شپے اخري حصه کښ) پس څوکهٔ په دے وخت کښ در ته پاسیدل ګران وي نو د نیمے شپے او کهٔ دا درنه هم نه کیږي نو د شپے د شروع نه اُودریږه او څلور رکعته نفل مونځ داسے اُوکړه چه په رومبي رکعت کښ د سورة فاتحے نه پس یٰسٓ شریف اُوایه او په دویم رکعت کښ د فاتحے نه پس سورة دُخان او په دریم رکعت کښ د فاتحے نه

پس سُورۃ الٓمّٓ سجدہ او څلورم رکعت کښې د فاتحې نه پس سُورۃ مُلک اُووایه اوچه د التحیات نه فارغ شې نو اول د الله جل شانهٗ بښه حمد او ثنا اُوکړه. دهغې نه پس په ما (یعنې په نبی علیه الصلوٰة والسلام) درود او سلام اُووایه. ددې نه پس په ټولو انبیا علیهم السلام درود اُووایه. ددې نه پس د ټولو مؤمنانو دپاره او دهغې مُسلمانانو رورنړو دپاره چه کوم تا نه مخکښې مړهٔ شوی دی، بخښنه اُوغواړه او دهغې نه پس دا دُعا اُووایه :-

**فائده :-** دُعا مخکښې راتلونکې ده. دهغې د ذکر (کولو) نه وړاندې مناسبه ده چه حمد او ثنا وغیره چه دهغې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم حکم فرمایلے دے د نورو روایتونو نه چه هغه د حِصنِ حَصِین په شرحو او "مُناجاتِ مقبول" وغیره کښې نقل کړے ده په مختصر طور یوه دُعا نقل کړے شی، دے دپاره چه کوم خلق ئې پخپله نشی لوستلے، هغه دِ دا اُولولی اوچه څوک پخپله لوستلے شی هغوی دِ په دے بَس والے نه کوی، بلکه حمد او صلوٰة دِ ډیر په ښهٔ شان او ډیر زیات اُولولی. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ عَدَدَ خَلْقِهٖ وَرِضَا نَفْسِهٖ وَزِنَةَ عَرْشِهٖ وَمِدَادَ كَلِمٰتِهٖ اَللّٰهُمَّ لَآ اُحْصِیْ ثَنَآءً عَلَیْكَ اَنْتَ كَمَآ اَثْنَیْتَ عَلٰی نَفْسِكَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ وَسَلِّمْ وَبَارِكْ عَلٰی سَیِّدِنَا مُحَمَّدِ النَّبِیِّ الْاُمِّیِّ الْهَاشِمِیِّ وَعَلٰی اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهِ الْبَرَرَةِ الْكِرَامِ وَعَلٰی سَآئِرِ الْاَنْبِیَآءِ وَالْمُرْسَلِیْنَ وَالْمَلٰٓئِكَةِ الْمُقَرَّبِیْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِیْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِیْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِیْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِیْمٌ ○ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِیْ وَلِوَالِدَیَّ وَلِجَمِیْعِ الْمُؤْمِنِیْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُسْلِمِیْنَ وَالْمُسْلِمٰتِ اِنَّكَ سَمِیْعٌ مُّجِیْبُ الدَّعَوَاتِ ؕ

**ترجمه :-** ټول تعریفونه د جهانونو پروردګار لره دی. دا سے تعریف چه دهغهٔ د مخلوقاتو د شمیر برابر وی، دهغهٔ د مرضئ موافق وی، دهغهٔ دَ عرش د وزن برابر وی، دهغهٔ د کلماتو د سیاهئ برابر وی. اے الله! ځهٔ

---

ملحوظه ترتیب قرآن کښې دا سورت په معنی دد دوارو سورتونو نه مخکښې دے ولے اول خو په نفلونو کښې فقهاؤ ددے قسمه ګنجائش ورکړلے دے. دویم د نفلو هر دوه رکعته د مستقل مونځ حکم لری او ددے د دواړو رکعتو دوارو سورتونو په مخیل مینځ کښې ترتیب وارد دی. ددے دپاره پکښې هغه کراهت نشته. کذا فی الکوکب الدری

ستا د تعریف راغونډول نشم کولے۔ ته داسې یې لکه څنګه چه تا خپل تعریف
په خپله بیان کړے دے۔ اے الله خمونږه سردار نبي اُمّی او هاشمي باندې
درود او سلام او برکتونه نازل کړے او دغه شان په آل او په ټولو نبیانو او
رسولانو او فرښتو مُقرّبینو باندے۔ اے خمونږه رَبّه! خمونږه او خمونږ
ورونړو (مسلمانانو) چه خمونږ نه وړاندے په ایمان سره تلی دی بخښنه
اُوکړے او خمونږ په زړونوکښ د مؤمنانو سره کینه مه پیدا کوے۔ اے خمونږه
رَبّه! ته مهربانه او رحیم یے۔ اے اِلٰهُ الْعٰلَمِیْنَ! زما او زما د مور پلار او د ټولو
مؤمنانو او مُسلمانانو بخښنه اُوکړے۔ بیشکه ته د دُعا کانو اَوریدونکے او قبلونکے یې۔

دے نه پس دغه دُعا اُوایه کومه چه نبی اکرم ﷺ په پورتنۍ حدیث
کښ حضرت علی رضی الله عنه ته تعلیم فرمایلے وه او دغه دا ده:-

اَللّٰهُمَّ ارْحَمْنِیْ بِتَرْكِ الْمَعَاصِیْ اَبَدًا مَّا اَبْقَیْتَنِیْ وَارْحَمْنِیْ اَنْ اَتَكَلَّفَ مَا
لَا یَعْنِیْنِیْ وَارْزُقْنِیْ حُسْنَ النَّظَرِ فِیْمَا یُرْضِیْكَ عَنِّیْ اَللّٰهُمَّ بَدِیْعَ السَّمٰوٰتِ
وَالْاَرْضِ ذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ وَالْعِزَّةِ الَّتِیْ لَا تُرَامُ اَسْئَلُكَ یَا اَللّٰهُ یَا رَحْمٰنُ
بِجَلَالِكَ وَنُوْرِ وَجْهِكَ اَنْ تُلْزِمَ قَلْبِیْ حِفْظَ كِتَابِكَ كَمَا عَلَّمْتَنِیْ وَارْزُقْنِیْ
اَنْ اَقْرَاَهٗ عَلَی النَّحْوِ الَّذِیْ یُرْضِیْكَ عَنِّیْ اَللّٰهُمَّ بَدِیْعَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ
ذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ وَالْعِزَّةِ الَّتِیْ لَا تُرَامُ اَسْئَلُكَ یَا اَللّٰهُ یَا رَحْمٰنُ
بِجَلَالِكَ وَنُوْرِ وَجْهِكَ اَنْ تُنَوِّرَ بِكِتَابِكَ بَصَرِیْ وَاَنْ تُطْلِقَ بِهٖ لِسَانِیْ
وَاَنْ تُفَرِّجَ بِهٖ عَنْ قَلْبِیْ وَاَنْ تَشْرَحَ بِهٖ صَدْرِیْ وَاَنْ تَغْسِلَ بِهٖ بَدَنِیْ
فَاِنَّهٗ لَا یُعِیْنُنِیْ عَلَی الْحَقِّ غَیْرُكَ وَلَا یُؤْتِیْهِ اِلَّا اَنْتَ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ
اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَلِیِّ الْعَظِیْمِ۔

**ترجمه:-** اے اِلٰهُ الْعٰلَمِیْنَ! په ما رحم اُوکړے ترڅو چه څهٔ ژوندے
یم چه د ګناهونو نه بچ اُوسمه۔ او په ما رحم اُوکړے چه په بیکاره څیزونو
کښ تکلیف نه اُوچتوم او د خپلے رضا په کارونوکښ ښهٔ نظر را ته اُوکړے۔ اے
الله! اے د زمکو آسمانونو بے نمونے پیدا کونکیه! اے د عظمت او بُزرګۍ
خاونده! او د هغے غلبے او عزت مالکه چه د هغے د حاصلولو اراده هم ناممکنه ده۔

اے اللّٰہ! اے رحمانه! ځکه ستا د بزرګۍ او ستا د ذات د نور په وسیله له تانه سوال کوم چه څنګه تا ما ته خپل کتاب قرآن شریف زده کړو د غسې د هغې یاد هم ځما په زړهٔ کښ پیوست کړے او ما ته توفیق را کړے چه ځهٔ هغه په داسے شان اُولولمه چه ته پرے راضی شے۔ اے د زمکو آسمانونو بے نمونے پیدا کوُنکیه! اے د عظمت او بزرګۍ خاوندهٔ! او د هغې غلبے او عزت مالکه! چه د هغې د حاصلولو اراده هم ناممکنه ده۔ اے اللّٰہ! اے رحمانه! ځهٔ ستا د بزرګۍ او ستا د ذات د نُور په وسیله له تانه غوارم چه ته ځما نظر د خپل کتاب په نُور منور کړے او ځما ژبه پرے جاری کړے او د هغې په برکت ځما د زړهٔ تنګی لرے کړے او ځما سینه پرانزے او د هغې په برکت ځما د جِسم د ګناهونو خیرے اُوینځے چه په حق باندے ستا نه سِوا ځما هیڅوک مدد ګار نشته او ستا نه سِوا ځما دا ارزو بل هیڅوک نشی پوره کولے او د ګناهونو نه بچ کیدل یا په عبادت باندِ طاقت مُوندل نشی کیدے خو د اللّٰہ تعالیٰ په مدد چه ډیر لویٔ او د عظمت خاوند دے۔

بیا نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه اے علی (رضی اللہ عنہ) دا عمل درے جُمعے یا پینځهٔ جُمعے یا اُوهٔ جُمعے اُوکړه۔ انشاء اللّٰہ دُعا به ضرور قبوله کړے شی۔ قسم مے دے وی په هغې پاک ذات چا چه ځهٔ نبی جوړ کړے را لیږلے یم چه هیڅ یو مؤمن نه به هم دُعا قبلیدل نهٔ خطا کیږی۔ ابن عباس رضی اللہ عنہما فرمائی چه په علی رضی اللہ عنہ باندے به پینځهٔ یا اُوهٔ جُمعے تیرے شوے وے چه د نبی اکرم ﷺ مجلس ته حاضر شو او عرض ئی اُوکړو چه اے د اللّٰہ رسوله! ﷺ چه رومبے ما تقریباً څلور ایتونه لوستل او هغه به راته هم نهٔ یادیدل۔ او اُوس تقریباً څلویښت ایتونه لولم او داسے راته یادیږی چه ګویا قرآن شریف ځما مخے ته غوړیدلے پروت دے او رومبے به ما حدیث واوریدهٔ او چه کله به مے دوباره ویلو نو په ذِهن کښ به مے نهٔ راتهٔ او اُوس حدیثونه اَورمه، او کله چه ئی نورو ته نقل کومه نو یو لفظ هم رانه نهٔ پاتے کیږی۔ اللّٰہ جل شانہٗ دِ خپل نبی ﷺ د رحمت په وسیله ما ته هم د قرآن او حدیث د حِفظ کولو

توفيق راکړي او تاسو ته هم. وَصَلَّى اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ سَيِّدِنَا وَمَوْلٰنَا مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَسَلَّمَ بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِيْنَ.

# تَكْمِلَه

پورته چه کوم څلويښت حديثونه ليکلی شوي دي هغې کښې يو خاص مضمون سره د خاص کيدو په وجه د مختصر والي لحاظ نه شو کيدے. دے زمانه کښې په دے وجه چه همتونه ډير کمزوري شوي دي د دين د پاره معمولي شان مُشقّت ز غمل هم گران دي، د دے د پاره دے ځائ کښې يو بل چهل حديث نقل کوم چه ډير مختصر دے. او نبي اکرم ﷺ نه هم يو ځائ نقل کړے شوے دے. هم د دے سره يو لوئ صفت په کښې دا دے چه د دين د ضروري څيزونو د جمع کولو د دے چه د هغې مثال موندل گران دي. کَنْزُ الْعُمَّال کښې د محکښينو محدّثينو يو د دے طرف ته ئي نسبت کړے دے، او په ورستو کښې مولانا قُطْبُ الدِّين رحمة الله عليه مُهَاجِرِ مکيؒ هم دا ذکر کړے دے. څومره به ښهٔ وي چه د دين سره تعلق ساتونکي حضرات کم نه کم دا ضرور ياد کړي چه د گنجلو په بدله کښې لعل او گوهر حاصليږي. هغه چهل حديث دا دے.

عَنْ سَلْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَاَلْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْاَرْبَعِيْنَ حَدِيْثًا الَّتِيْ قَالَ مَنْ حَفِظَهَا مِنْ اُمَّتِيْ دَخَلَ الْجَنَّةَ قُلْتُ وَمَاهِيَ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ اَنْ تُؤْمِنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكُتُبِ وَالنَّبِيّٖنَ وَالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ وَالْقَدَرِ خَيْرِهٖ وَشَرِّهٖ مِنَ اللهِ تَعَالٰى وَاَنْ تَشْهَدَ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ وَتُقِيْمَ الصَّلٰوةَ بِوُضُوْءٍ سَابِغٍ كَامِلٍ لِوَقْتِهَا وَتُؤْتِيَ الزَّكٰوةَ وَتَصُوْمَ رَمَضَانَ وَتَحُجَّ الْبَيْتَ اِنْ كَانَ لَكَ مَالٌ وَتُصَلِّيَ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً فِيْ كُلِّ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ وَالْوِتْرَ لَا تَتْرُكُهٗ فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ وَّلَا تُشْرِكْ بِاللهِ شَيْئًا وَّلَا تَعُقَّ وَالِدَيْكَ وَلَا تَاْكُلْ مَالَ الْيَتِيْمِ ظُلْمًا وَّلَا تَشْرَبِ الْخَمْرَ وَلَا تَزْنِ وَلَا تَحْلِفْ بِاللهِ كَاذِبًا وَّلَا تَشْهَدْ شَهَادَةَ زُوْرٍ وَّلَا تَعْمَلْ بِالْهَوٰى وَلَا تَغْتَبْ اَخَاكَ الْمُسْلِمَ وَلَا تَقْذِفِ الْمُحْصَنَةَ وَلَا تَغِلَّ اَخَاكَ

الْمُسْلِمِ وَلَا تَلْعَبْ وَلَا تَلْهُ مَعَ اللَّاهِيْنَ وَلَا تَقُلْ لِلْقَصِيْرِ يَا قَصِيْرُ تُرِيْدُ
بِذٰلِكَ عَيْبَهٗ وَلَا تَسْخَرْ بِأَحَدٍ مِّنَ النَّاسِ وَلَا تَمْشِ بِالنَّمِيْمَةِ بَيْنَ
الْأَخَوَيْنِ وَاشْكُرِ اللّٰهَ تَعَالٰى عَلٰى نِعْمَتِهٖ وَاصْبِرْ عَلَى الْبَلَاءِ وَالْمُصِيْبَةِ وَلَا
تَأْمَنْ مِنْ عِقَابِ اللّٰهِ وَلَا تَقْطَعْ أَقْرِبَائَكَ وَصِلْهُمْ وَلَا تَلْعَنْ أَحَدًا
مِّنْ خَلْقِ اللّٰهِ وَأَكْثِرْ مِنَ التَّسْبِيْحِ وَالتَّكْبِيْرِ وَالتَّهْلِيْلِ وَلَا تَدَعْ حُضُوْرَ
الْجُمُعَةِ وَالْعِيْدَيْنِ وَاعْلَمْ أَنَّ مَا أَصَابَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ وَمَا أَخْطَأَكَ
لَمْ يَكُنْ لِيُصِيْبَكَ وَلَا تَدَعْ قِرَاءَةَ الْقُرْاٰنِ عَلٰى كُلِّ حَالٍ۔ (رواه الحافظ و
ابوالقاسم بن عبدالرحمٰن بن محمد بن اسحاق بن منده والحافظ ابوالحسن علی بن ابی القاسم بن بابویه
الرازی فی الاربعین وابن عساکر والرافعی عن سلمان رضی الله عنه)

## دچهل حدیث ترجمه

حضرت سلمان رضی الله عنه فرمایی چه ما د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُوکړو
چه هغه څلویښت حدیثه چه د هغې په باره کښې راغلی دی چا چه هغه یاد
کړل جنت کښې به داخل شی، هغه کوم دی؟ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایه
① الله تعالیٰ باندے ایمان راوړې یعنی د هغهٔ په ذات او صفاتو. ② او د آخرت
په ورځ ③ او د فرښتو په وجود ④ او په ټولو مبنو کتابونو ⑤ او په ټولو
نبیانو (علیهم السلام) ⑥ او د مرګ نه پس دوباره ژوندی کیدو باندے ⑦
او تقدیر باندے چه ښهٔ او بد هرڅهٔ چه کیږی ټول د الله تعالیٰ له طرفه
دی ⑧ او ګواهی ورکړے د دے چه د الله تعالیٰ نه سوا هیڅوک معبود نشته
او نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د هغهٔ رښتنے رسول دے ⑨ او د هر مانځهٔ په وخت کامل
اُودس اُوکړے (او) مونځ قائموے (کامل اودس هغے ته وائی چه په هغے کښې
د آدابو مستحباتو لحاظ ساتلے شوے وی او "د هر مانځهٔ په وخت" دا اشاره
دے خبرے طرف ته ده چه نوے اُودس د هر مانځهٔ د پاره کوی اګرچه د
مخکښې نه یې اودس وی چه دا مستحب دی۔ او "مونځ قائمولو نه" د هغے
تولو سُنتونو او مستحباتو اهتمام مُراد دے) لکه چه په بل روایت کښې راغلی

دی اِنَّ تَسْوِيَةَ الصُّفُوْفِ مِنْ اِقَامَةِ الصَّلٰوةِ (یعنی په جمع کښې د صفونو
برابرول چه څهٔ قِسمه کوږوالے یا په مینځ کښې په کښې تش ځائ پاتے نشي)
دا هُم د مونځ قائمولو په مطلب کښې داخل دے (۱۰) او زکوٰة ادا کوے (۱۱)
او د رمضان د میاشتے روژے نیسی (۱۲) که چرے مال وی نو حج دِ اُوکړی
یعنی که چرے د تلو طاقت لری نو حج دِ هُم اُوکړی د دے وجے چه اکثر
کوُنکے مال وی ځکه ئې دا ذکر کړه کنی مقصود دا دے چه د حج شرطونه بیا موندلے
شی نو حج دِ اُوکړی (۱۳) او دولس رکعته سنت مؤکّده روزانه ادا کوی. د دے
تفصیل په نورو روایاتو کښې داسے راغلی دے چه د سحر مانځه نه رومبے دوه
رکعته او د ماسپخین مانځه نه مخکښې څلور رکعته او رُستو ترے دوه رکعته
او د ماښام نه پس دوه رکعته د ماسخوتن نه پس دوه رکعته (۱۴) او وتر هیڅ
یوه شپه کښې هُم مهٔ پریږده ځکه چه دا واجب دی او د دے اهتمام د سُنتونه
زیات دے. د دے د پاره ئې دا په تاکیدی الفاظو سره ذکر کړو (۱۵) او الله تعالیٰ
سره هیڅ یو څیز شریك مهٔ جوړوه (۱۶) او د مور پلار نافرمانی مهٔ کوه (۱۷) او په
ظُلم دِ یتیم مال مهٔ خوره یعنی که په څهٔ وجه د یتیم مال خوړل جائز وی
لکه څنګه چه په بعضے حالتونو کښې کیږی نو باك نشته (۱۸) او شراب مهٔ څکه
(۱۹) زنا مهٔ کوه (۲۰) د دروغو قسمونه مهٔ خوره (۲۱) د دروغو ګواهی مهٔ ورکوه.
(۲۲) د نفس خواهشاتو پاندے عمل مهٔ کوه (۲۳) د مُسلمان رور غیبت مهٔ کوه.
(۲۴) پاکدامنه ښځه پاندے تهمت مهٔ لګوه (دغسے په پاکدامن سړی باندے هم)
(۲۵) خپل مُسلمان رور سره کینه مهٔ ساته (۲۶) لوبو تماشو کښې مهٔ مشغولیږه.
(۲۷) تماشګیرو کښې مهٔ شریکیږه (۲۸) مَنډری بنده ته د عیب په نیت لنډ تیټ
مهٔ وایه یعنی که چرے عیب دار لفظ داسے مشهور شوے وی چه د هغې په وینا
عیب نشی ګڼړلے او نهٔ د عیب په نیت ویلے شی لکه چه د چا نوم بُډهٔ کیخودلے
شی نو باك نشته، خو د عیب په غرض چا ته داسے ویل جائز نهٔ دی (۲۹)
چا پورے خندا او ټوقے مهٔ کوه (۳۰) د مسلمانانو په مینځ کښې چُغلی مهٔ خوره.
(۳۱) او په هر حال کښې د الله جلّ شانهٔ په نعمتونو شکر کوه (۳۲) بلا او مُصیبت

باندے صبر کوه (۴۳) او د الله تعالیٰ د عذاب نه مۀ بے غمه کیږه (۴۴) خپلوانو سره تعلق مۀ پریږده (۴۵) بلکه هغوی سره صِله رحمی کوه (۴۶) د الله تعالیٰ په هیڅ مخلوق باندے لعنت مۀ وایه (۴۷) سُبْحَانَ اللهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ، اَللهُ اَكْبَرُ دا الفاظ ډیر ډیر وایه (۴۸) د جُمعے او اخترونو مونځونو کښې حاضری مۀ پریږده (۴۹) او د دے خبرے یقین ساته چه څۀ تکلیف یا راحت درته اُورسی هغه په تقدیر کښې وو چه په شا کیدونکے نۀ وو، او چه څۀ درته اُونۀ رسیدۀ هغه په هیڅ شان رارسیدونکے نۀ وو (۵۰) او د قرآن شریف تلاوت په هیڅ حال کښې مۀ پریږده۔

حضرت سَلمان رضی الله عنه فرمائی چه ما د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه اُوکړه چه څوك دا یاد کړی هغۀ ته به څۀ بدله ورکوْلے شی؟ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایۀ چه الله جلّ شانهٗ به د هغۀ حشر د نبیانو او عالمانو سره اُوکړی.

(کۀ) الله جلّ شانهٗ څمونږ ګناهونه مُعاف کړی او خپل نیک بندګانو کښې صِرف په خپلے مهربانئ شامل کړی نو د هغۀ د شانِ کریمی نه هیڅ هُم لرے نۀ ده۔

لوستونکو حضراتو ته په ډیرے عاجزئ درخواست دے چه د خیر په دُعاګانو کښې څما ګناهګار هُم امداد اُوفرمائی۔ وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ۔

---

ليکونکے
محمّد زکریّا عفی عنهٗ
کاندهلوی
مقیم مدرسه مظاهر العلوم سهارنپور
۲۹ ذی الحجه ۱۳۴۸ھ پنجشنبه (زیارت)
(موافق ۲۹ مئی ۱۹۳۰ء)

ترجمه کونکے
میاں محمّد شفیق غُفِرلهٗ
مسجدِ نور (تبلیغی مرکز) چارسده
تاریخ د ختمیدو نظرِ ثانی
۳ محرم الحرام ۱۴۱۵ھ موافق
۱۳ جون ۱۹۹۴ء په ورځ د نیټې۔

کتب خانه فیضی، لاهور، الباکستان

قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰی

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ صَلٰوتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ۝

ترجمه:- بیشکه کامیاب شه اُو رسیدل هغه مؤمنان څوک چه چې په مونځونو کښې خشوع سره کونکی دی

پښتو ژبه کښ

# فضائلِ نماز

دے کښ:

د حضرت مولانا الحافظ الحاج محمد الیاس صاحب نور الله مرقدهٗ په ارشاد سره هغه حدیثونه جمع کړے شوی دی چه په کوم کښ د مونځ کولو فضیلت، د مونځ پریخودو عذاب، د جمعې د مانځه ثواب او په پریخودو کے سزاګانے راغلی دی د هم مضمون مناسب د بزرګانو د شوق ذوق واقعات پکښ هم لیکلے شوی دی

اردو کښ جمع کونکے

حضرت مولانا الحافظ الحاج المحدث محمد زکریا صاحب نور الله مرقدهٗ شیخ الحدیث مدرسه مظاهر علوم سهارنپور

پښتو کښ ترجمه کونکے

میاں محمد شفیق غفرلهٗ (چارسده)

خور ونکے

کُتب خانه فیضی لاهور پاکستان

# فهرست دَمضامینو دَ فضائلِ نماز پښتو

کتب خانه فیضي لاهور پاکستان

# خُطبه او تمهيد

نَحْمَدُهٗ وَنَشْكُرُهٗ وَنُصَلِّيْ وَنُسَلِّمُ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَاَتْبَاعِهِ الْحُمَاةِ لِلدِّيْنِ الْقَوِيْمِ. وَبَعْدُ فَهٰذِهٖ اَرْبَعُوْنَةٌ فِيْ فَضَائِلِ الصَّلٰوةِ جَمَعْتُهَا اِمْتِثَالًا لِاَمْرِ عَمِّيْ وَصِنْوِ اَبِيْ رَقَّاهُ اللّٰهُ اِلَى الْمَرَاتِبِ الْعُلْيَا وَوَفَّقَنِيْ وَاِيَّاهُ لِمَا يُحِبُّ وَيَرْضٰى. اَمَّا بَعْدُ

دِے زمانه کښې د دين نه څومره بے فکری او غفلت کيدلے شی هغه د بيان محتاج نهٔ دے۔ تردے چه د ټولونه ضروری عبادت مونځ چه دَ ټولو په نزد په اتفاق سره د ايمان نه پس په تمامو فرائضو باندے وړاندے دے۔ او په قيامت کښې به د ټولونه اوّل د دے مطالبه وی۔ د دے نه هم ډير غفلت او بے پرواهی ده۔ د دے نه زياته دا چه دين طرف ته متوجه کولے هيڅ يو آواز غوږونو ته نهٔ رسی۔ د تبليغ هيڅ يو شکل فائده مند نه ښکاری۔ په تجربه م دا خبره خيال کښې راغله چه د نبی اکرم ﷺ پاک ارشادات خلقو ته د رسولو کوشش اُوکړے شی۔ اگرچه په دے کښې هم کوم ژباړه او ټونه مينځ کښې راتلونکی دی هغه خما په شان بے وَسه د پاره کافی دی۔ بيا هم اُميدم دا دے چه د کومو خلقو ذهن خالی دے او د دين مقابله نهٔ کوی د پاک الفاظو به اِنْشَآءَ اللّٰه په هغوی باندے ضرور اثر اُوکړی او د کلام او د صاحبِ کلام په برکت سره د فائدے اُميد دے۔ د غه شان نور دوستانو ته په دے کښې د کاميابئ اُميد ونه زيات دی۔ د هغوی په وجه د مخلصينو بيا بيا وينا هم ده په دے وجه په دے رساله کښې صِرف د مانځهٔ متعلق ديرش څو حديثونو ترجمه پيش کومه ځکه چه د تبليغ متعلق د بنده يو مضمون دَ رِساله "فضائلِ تبليغ" په نامه شائع شوے دے۔ په دے وجه دا دَ سلسلهٔ تبليغ دويم نمبر مقرر کوم۔ او "فضائلِ نماز" نامه ورله ږدم۔ وَمَا تَوْفِيْقِيْ اِلَّا بِاللّٰهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ

د ماځه په باره کښې درے قسمه حضرات عام طور مُوندے شی. يَوه د له هغه ده چه د سَرنه د مانځه پرواه نهٔ کوی. دویمه د له هغه ده چه مونځ خو کوی خو د جَمع اهتمام نهٔ کوی. دریم هغه خلق دی چه مونځ هم کوی، د جَمعِ اهتمام هُم کوی خو په بے پرواهئ او په بد ه طریقه سره یے کوی. په دے وجه په دے رساله کښې د دریو واړو مضامینو په مُناسبت سره درے بابونه ذکر کړے شوی دی. او په هر باب کښې د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د رُوښانه پاك ارشادات او د هغے ترجمه پیش کړے ده. خو په ترجمه کښې د وضاحت او آسانتیا لحاظ ساتلے دے. د لفظی ترجمے د زیاتی لحاظ نهٔ دے ساتلے. د غه شان چونکه د مانځه تبلیغ کوونکی اکثر عالمان هم وی ځکه د حدیث حواله او د هغے متعلق کوم مضامین چه د عالمانو سره تعلق لری هغه د عربئ کښې لیکلی دی چه عوامو ته د هغے نه څهٔ فائده نشته. خو تبلیغ کوونکو حضراتو ته د پیرځله د هغے ضرورت پیښیږی او ترجمه او فائدے وغیره د اُردو کښې لیکلی دی.





2

# اوّل باب دمانځه داَهميّت په بيان کښ

دے باب کښ دوه فصله دی - اول فصل کښ دمانځه دفضيلت بيان دے - او دويم فصل کښ دمانځه په پرېخودو باندے چه کومه سزا او غُصه حديث کښ راغلې ده دهغې بيان دے -

## اولِ فصل دمانځه دَفضيلت په بيان کښ

① عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ شَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ وَاِقَامِ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ (متفق عليه) وَقَالَ الْمُنْذِرِيُّ فِي التَّرْغِيْبِ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَمُسْلِمٌ وَغَيْرُهُمَا عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِّنَ الصَّحَابَةِ.

حضرت عبدالله بن عُمر رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوی چه د اسلام بُنیاد په پنځو ستنو باندے دے - د ټولو نه اول د لآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ کواهی ورکول. یعنی د دے خبرے اقرار کول چه د الله تعالیٰ نه سوا هیڅوک د عبادت لائق نشته او محمد صلی الله علیه وسلم د هغهٔ بنده او رسول دے - دے نه پس د د مونځ قائمول، زکوٰة اداکول، حج کول، د رمضانُ المُبارک روژے نیول -

**فائده:-** دا پنځه واړه څیزونه د اسلام لوئ اُصول او ضروری ارکان دی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په دے پاک حدیث کښ د مثال په طور اسلام یے د یو خیمے په شان ګرزولے دے چه په پنځو ستنو ولاړه وی پس د شهادت کلمه د خیمے مینځنی لرګی په شان ده او باقی څلور ارکان په شان د هغې څلورو ستنو دی چه په څلورو کوټونو باندے وی - که چرے مینځنے لرګے نه وی نو خیمه اُودریدلے نه شی او که چرے دالرګے موجود وی او د څلورو طرفو کوټونو باندے هیڅ یو لرګے نه وی نو خیمه خو به ولاړه پاتے شی خو د کوم کوټ لرګے چه نه وی هغه طرف به بے کاره او پریوتلے وی - دے پاک ارشاد نه پس اُوس مونږ خلقو ته مخبل

حالت بانده يه چېله غور کول پکار دي چه د اسلام داخيمه موښږ کوم درجې پورې اُودرولې ده او د اسلام کوم يو رکن داسې دے چه د هغې موښږ پوره پوره خيال ساتلے دے. د اسلام دا پنځه رکنونه ډير ضروري دي تردې چه د اسلام بنيا دې هم دا مقرر کړے دے او يو مسلمان د پاره په حيثيت د مسلمان د دې ټولو اهتمام ډير ضروري دے خو د ايمان نه پس د ټولو نه ضروري ځيز مونځ دے.

حضرت عبدُ الله بن مسعُود رضي الله عنه فرمائي چه ما د نبي عليه الصلوة والسلام نه پوښتنه اُوکړه چه د الله جل شانه په نزد د ټولو نه زيات خوښ عمل څۀ دے؟ ارشاد يې اُوفرمايۀ چه مونځ. ما عرض اُوکړو، د دې نه پس څۀ دے؟ ارشاد يې اُوفرمايۀ چه د مور پلار سره ښۀ سلوک. ما عرض اُوکړو، د دې نه پس کوم يو دے؟ ارشاد يې اُوفرمايۀ جهاد.

مُلا علي قاري رحمة الله عليه فرمائي چه دے حديث کښې د عالمانو د دے خبرې دليل دے چه د ايمان نه پس د ټولو نه وړاندې مونځ دے. د دې ثبوت د دې صحيح حديث نه هم کيږي چه په هغې کښې ارشاد دے اَلصَّلٰوةُ خَيْرُ مَوْضُوْعٍ يعني بهترين عمل چه الله تعالىٰ د بندګانو د پاره مُقرر کړے دے هغه مونځ دے. او نورو صحيح حديثونو کښې ډير زيات دا (مضمون) صفا نقل کړے شوے دے چه ستا سو په عملونو کښې د ټولو نه بهتر عمل مونځ دے، لکه جَامِعِ صَغِير نوم کتاب کښې د ثوبان، ابن عمر، سلمه، ابو اُمامه، عُباده رضي الله عنهم د پنځو اصحابو نه دا حديث نقل کړے شوے دے. او حضرت ابنِ مسعُود او انس رضي الله عنهما نه مونځ په خپل وخت کښې کول د ټولو نه بهترين عمل نقل کړې شوي دے (جامع الصغير) حضرت ابنِ عُمر رضي الله عنه او اُمّ فَروه رضي الله عنها نه اول وخت کښې مونځ کول نقل کړے شوے دے. مقصد د ټولو نزدې په نزدې هم يو دے.

| | |
|---|---|
| (۲) عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فِي الشِّتَاءِ وَالْوَرَقُ يَتَهَافَتُ فَاَخَذَ بِغُصْنٍ مِّنْ شَجَرَةٍ قَالَ فَجَعَلَ ذٰلِكَ | حضرت ابُوذر رضي الله عنه فرمائي چه يو وارې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د ژمي په موسم کښې بهر تشريف راوړۀ او پاڼې د ونو نه غورزيدې. نبي عليه الصلوة والسلام د يوې وُنې څانګه اُونيوله د هغې |

الْوَرَقُ يَتَهَافَتُ فَقَالَ يَا اَبَا ذَرٍّ قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ اِنَّ الْعَبْدَ الْمُسْلِمَ لَيُصَلِّي الصَّلٰوةَ يُرِيْدُ بِهَا وَجْهَ اللهِ فَتَهَافَتُ عَنْهُ ذُنُوْبُهٗ كَمَا تَهَافَتُ هٰذَا الْوَرَقُ عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ۔ (رواه احمد باسناد حسن كذا في الترغيب)

پاڼې نورې هم اُوغورزیدې. نبي علیه السلام اُوفرمایل، اے ابُوذرّه! مسلمان بنده کله چه په اخلاص سره دالله تعالیٰ دپاره مونځ کوی نوګناهونه ترے داسے غورزیږی لکه څنګه چه دپاڼړے دد ونې نه غورزیږی۔

**فائده:**- دژمي په موسم کښ دونو پاڼې دومره ډیرے غورزیږی چه په بعضو ونو باندې یوه پاڼړه هم نه پاتے کیږی- دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم پاک ارشاد دے چه په اخلاص سره دمونځ کولو اثرهم داسے وی چه دهغه ټول ګناهونه معاف شی. یوه هم پاتے نشی- خو یوه خبره دلحاظ قابله داده چه دعالمانو تحقیق دقرانی ایتونو اونبوی حدیثونو په وجه دادے چه مونځ وغیره عبادتونو سره واړه ګناهونه معاف کیږی، لوئ ګناهونه بغیر د توبے نه معاف کیږی- په دے وجه دمانځه سره د توبے او استغفار هم اهتمام کول پکار دی. له دینه غافله کیدل نه دی پکار، که الله جل شانهٔ په خپل فضل وکرم سره دچا لوئ ګناهونه هم معاف کړی نو بیله خبره ده۔

(۳) عَنْ اَبِي عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ مَعَ سَلْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تَحْتَ شَجَرَةٍ فَاَخَذَ غُصْنًا مِنْهَا يَابِسًا فَهَزَّهٗ حَتّٰى تَحَاتَّ وَرَقُهٗ ثُمَّ قَالَ يَا اَبَا عُثْمَانَ اَلَا تَسْاَلُنِيْ لِمَ اَفْعَلُ هٰذَا قُلْتُ وَلِمَ تَفْعَلُهٗ قَالَ هٰكَذَا فَعَلَ بِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنَا مَعَهٗ تَحْتَ الشَّجَرَةِ وَاَخَذَ مِنْهَا غُصْنًا يَابِسًا فَهَزَّهٗ حَتّٰى

حضرت ابُوعثمان رضی الله عنه فرمائی چه څهٔ حضرت سلمان رضی الله عنه سره دیوے ونې لاندے وم. هغهٔ دهغې ونې وچه څانګه اُونیوله اووے خنډوله چه په دے سره دهغې پاڼړے اُوغورزیدلے. بیا یے ماته اُوفرمایل چه ابُوعثمانه! تا مانه دا تپوس اُونهٔ کړو چه ما دا ولے اُوکړل. ما اُوویل اُوښایئی ولے دِ اُوکړل. هغوی اُوفرمایل چه څهٔ یوځل دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم سره دیوے ونې لاندے وم نو نبي علیه السلام هم د هغې ونې وچه څانګه ونیوله اُوخوځولے یے اُوکړه۔

تَحَاتَّ وَرَقُهٗ فَقَالَ يَا سَلْمَانُ اَلَا تَسْأَلُنِيْ لِمَ اَفْعَلُ هٰذَا قُلْتُ وَلِمَ تَفْعَلُهٗ قَالَ اِنَّ الْمُسْلِمَ اِذَا تَوَضَّأَ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ صَلَّى الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ تَحَاتَّتْ خَطَايَاهُ كَمَا تَحَاتَّ هٰذَا الْوَرَقُ وَقَالَ اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ (ہود)

(رواہ احمد والنسائی والطبرانی و رواۃ احمد محتج بہم فی الصحیح الا علی بن زید کذا فی الترغیب)

چه په هغې د هغې ښاخ کې پاڼې غورزیدلې بیا نبي علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه سلمانه! تپوس نهٔ کوې چه ما دا سې ولې اُوکړل. ما عرض اُوکړهٔ چه اُوښایئ ولې مو اُوکړل. نبي صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه کله مسلمان په ښهٔ شان سره اَودس اُوکړي بیا پنځه مونځونه اُوکړي نو د هغهٔ ګناهونه د هغهٔ نه داسې دُوریږي لکه څنګه چه دا پاڼې دُوریږي. بیا نبي علیه السلام د قرآن شریف ایت اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ تلاوت اُوفرمایهٔ چه د هغې ترجمه دا ده چه قائم کړه مونځ دَوَرځې په دواړو سرونو کښې او د شپې په څهٔ حصه کښې. بیشکه نیکۍ لرې کوي ګناهونو لره دا نصیحت دے نصیحت منونکو دپاره.

**فائدہ:**- حضرت سلمان رضی الله عنه چه کوم عمل اُوښودلو، دا د اصحابو کرامو رضی الله عنهم د عشق یو اَدنیٰ مثال دے. کله چه د چا سره د چا عشق شي نو د هغهٔ هر یوه اَدا ورته خوښه وي او د هغې هر کار کول یې زړهٔ غواړي څنګه چه یې محبوب په کولو لیدلے وي. کوم خلقو چه د محبت مزه څکلې وي هغوي د دے حقیقت نه په ښهٔ شان خبر دي. د غسې اصحابو کرامو رضی الله عنهم به د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشادا تو نقل کولو کښې اکثر هغه کارونه په هم نقل کول کوم چه به د هغې ارشاد په وخت کښې نبي علیه الصلوٰة والسلام کړي وُو. د مونځ اهتمام او د دے په وجه د ګناهونو مُعاف کیدل چه څومره پیرزیات په روایاتو کښې ذکر کړے شوي دي، د هغې را جمع کول ګران دي. پروړمبے هم په کنړو روایتونو کښې دا مضمون تیر شوے دے. عالمانو دا په صغیره ګناهونو سره خاص کړے دے لکه څنګه چه پروړمبے معلوم شوي دي خو په حدیثونو کښې د صغیره او کبیره هیڅ شرط نشته. د عامو ګناهونو ذکر دے خو پلار صاحب رحمة الله علیه د تعلیم په وخت کښې د دے دوه وجې ارشاد فرمایلې

وي۔ يوه دا چه د مسلمانانو د شان نه دا لرې ده چه د دوئ په ذمه کبيره گناه باقي وي. اول خو دوئ نه کبيره گناه کيدل مُشکل دي او که چرې ترې اوشي هُم، نو بغير توبې ايستلو دوئ ته ارام راتلل مشکل دي۔ د مسلمان د مُسلمانئ د شان سره ضروري ده چه کله د دوئ نه کبيره گناه اُوشي نو تر څو چه په ژړا زاريَ هغه اُونه وبښي دوئ ته به ارام نه ورځي البته صغيره گناهونه داسې دي چه هغې طرف ته ډير پام نه وي او په ذمه پاتے شي چه په مانځه وغيره سره مُعاف کيږي۔

دويمه وجه دا ده چه څوك په اخلاص سره مونځ کوي او د ادابو او مُستحباتو لحاظ ساتي هغه په خپله نهٔ د معلومه څومره ځله به توبه او استغفار کوي او په مانځه کښ د التَّحِيَّاتُ اخري دُعا اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ الخ کښ خو توبه او استغفار په خپله موجود دے۔

په دے رواياتو کښ د اودس په بنهٔ شان سره د کولو حکم دے چه د هغې مطلب دا دے چه د ادابو او مستحباتو تحقيق اُوکړي۔ د هغې اهتمام او خيال اُوساتي مثلاً يو سُنت د دے مسواك کول هم دي چه دِے طرف ته اکثر بے فکري ده حال دا دے چه په حديث کښ راغلي دي چه کوم مونځ په مسواك سره اُوکړے شي هغه د هغې مونځ نه چه بغير مسواکه شوے وي اويا درجے بهتر دے۔ په يو حديث کښ راغلي دي چه د مسواك اهتمام کوئ په دے کښ لس فائدے دي۔ خله صفا کوي، د الله تعالیٰ د رضا سبب دے۔ شيطان غُصه کوي۔ مسواك کونکي سره الله تعالیٰ محبت کوي او فرشتے ورسره محبت کوي۔ اُوروته طاقت ورکوي۔ بلغم پريکوي، په خله کښ خوشبوئي پيدا کوي، صفرا لرے کوي۔ نظر تيز وي۔ د خلے بدبوئي لرے کوي او د دے ټولو نه علاوه دا ده چه سُنت دے (مُنبهات ابن حجرؒ)

عالمانو ليکلي دي چه د مسواك اهتمام کولو کښ اويا فائدے دي۔ په هغې کښ يوه دا ده چه د مرګ په وخت کښ به يے کلمهٔ شهادت ويل نصيب شي۔ او د دے په مقابله کښ افيم خوړلو کښ اويا نقصانه دي هغې کښ يو دا دے چه د مرګ په وخت کښ به کلمه ورته نه ياديږي۔ په بنهٔ شان د اودس کولو فضائل حديثونو کښ ډير زيات راغلي دي۔ د اودس اندامونه به په قيامت کښ روښانه

او خُلید ونګی وی چه په دے سره به فوراً نبی اکرم ﷺ خپل اُمتی اُوپیژنی.

(۴) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ اَرَاَیْتُمْ لَوْاَنَّ نَهْرًا بِبَابِ اَحَدِکُمْ یَغْتَسِلُ فِیْهِ کُلَّ یَوْمٍ خَمْسَ مَرَّاتٍ هَلْ یَبْقٰی مِنْ دَرَنِهٖ شَیْئٌ قَالُوْا لَایَبْقٰی مِنْ دَرَنِهٖ شَیْئٌ قَالَ فَکَذٰلِکَ مَثَلُ الصَّلَوٰتِ الْخَمْسِ یَمْحُوا اللّٰهُ بِهِنَّ الْخَطَایَا. (رواه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی ورواه ابن ماجة من حدیث عثمان کذا فی الترغیب)

حضرت اَبُوهُرَیْرَه رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ نه نقل کوی چه نبی علیه الصلوٰة والسلام یو ځل ارشاد اُوفرمایهٔ اُوښایئی که د چا په دروازه باندے یو نهر وی چه په هغے کښ دے پنځه ځله روزانه غسل کوی. ایا د دهٔ په بدن به څهٔ خیرے باقی پاتے شی. اصحابو رضی الله عنهم عرض اُوکړو هیڅ یو باقی پاتے نهٔ شی. نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل هم دا حال د پنځو مونځونو دے چه الله جل شانه د دے په وجه ګناهونه لرے کوی.

(۵) عَنْ جَابِرٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الصَّلَوٰتِ الْخَمْسِ کَمَثَلِ نَهْرٍ جَارٍ غَمْرٍ عَلٰی بَابِ اَحَدِکُمْ یَغْتَسِلُ مِنْهُ کُلَّ یَوْمٍ خَمْسَ مَرَّاتٍ. (رواه مسلم کذا فی الترغیب وشکوٰة)

حضرت جابر رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ ارشاد نقل کوی چه د پنځو مونځونو مثال داسے دے لکه د چا په دروازه باندے یو نهر وی د هغے اُوبهٔ جاری وی او ډیر ژور وی په هغے کښ هره ورځ پنځه ځله غسل کوی.

**فائده:** جاری اُوبهٔ د ګندګئ وغیره نه پاکے وی او اُوبهٔ چه څومره ژورے وی هغه هومره به ډیرے صفا وی. په دے وجه په دے حدیث کښ د هغے جاری کیدل او ژور والے فرمایلے دے او څومره چه صفا اُوبو سره بندهٔ غسل اُوکړی هغه هومره به صفائی په بدن راځی. دغه شان د مونځونو په وجه کهٔ چرے د اداب لحاظ ساتلو سره اُوکړے شی نو د ګناهونو نه صفائی حاصلیږی. د کوم قسمه مضمون چه په دے دوه و حدیثونو کښ ارشاد شوے دے، داسے قسمه مضمون په ډیرو حدیثونو کښ د مختلفو اصحابو نه په مختلفو الفاظو کښ نقل کړے شوے دے.

اَبُوسَعِید خُدرِی رضی الله عنه نه نقل شوے دے چه نبی اکرم ﷺ ارشاد

اُوفرمایهٔ ، پنځه مونځونه د مینځمي وختونو دپاره کفّاره دي یعني یو مونځ نه بل مونځ پورې چه کوم صغیره ګناهونه وي هغه د مانځه له برکته مُعاف کیږي. دې نه پس نبي علیه السلام ارشاد اُوفرمایهٔ مثلاً دچا یو کارخانه وي په هغې کښې هغه خپل کاروبار کوي چه دهغې په وجه دده په بدن دُوره خیرې لګي او دغه کارخانې او مکان په مینځ کښې پینځه نهرونه وي. کله چه دے دکارخانې نه کورته ځي نو په هر یو نهر کښې غُسل کوي. دغه شان دپنځو مونځونو حال دے چه کله مینځمي وختونو کښې څهٔ ګناه ، غلطي وغیره اُوشي نو په مونځونو کښې په دُعا او استغفار کولو سره الله جلّ شانهٔ یې بیخي مُعاف کوي . دنبي اکرم صلی الله علیه وسلم مقصود ددې قِسمه مثالونو نه داخبره پوهول دي چه الله جلّ شانهٔ مونځ ته دګناهونو په مُعافۍ کښې قوي اثر ورکړے دے. او چونکه په مثال سره خبره په ښهٔ شان پوهه کښې راځي ددے وجې په مختلفو مثالونو نبي علیه الصلوٰة والسلام دا مضمون واضحه کړو. دالله جلّ شانهٔ ددے رحمت او فراخ بخښنې ، مهربانۍ انعام او احسان نه مونږ خلق فائده وانهٔ خلو نو دچا نقصان دے خپل هرڅهٔ ضائع کوو ، مونږ خلق ګناه کوو ، نا فرماني کوو ، حکمونه ما توو ، ارشادا تو منلو کښې کمزوري کوو . بکار خو دا وه چه د قادر ، عادل بادشاه له خوا ضرور سزا وے او د خپلو کړو سزا مو موندلې . خو د الله تعالیٰ د فضل واحسان نه قُربان شم چه هغهٔ د خپلو نافرمانو او دحکمونو ماتولو دمُعافۍ طریقه هم اُوخودله. که چرے مونږ ترے فائده حاصله نهٔ کړو نو څومره بے عقلي ده . دا الله جلّ شانهٔ رحمت او مهرباني د ورکړے دپاره بهانې لټوي . په یو حدیث کښې ارشاد دے چه څوک د اُوده کیدو په وخت دا اراده اُوکړي چه تهجد به کوم ، بیا ورځ نهٔ شو نو ددے ثواب به ورکولے شي. اُوده کیدل یې مفتو کښې راغلل (ترغیب) څهٔ په ولیے دالله تعالیٰ دورکړه ، کوم کریم ذات چه دا سے ورکول کوي دهغهٔ نه نهٔ اخستل څومره سخته محرومتیا او څومره زبردست نقصان دے.

⑤ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا حَزَبَهُ اَمْرٌ فَزِعَ

حضرت حُذیفه رضی الله عنه ارشاد فرمائي چه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته به کله څهٔ سخت کار

إِلَى الصَّلٰوةِ - (اخرجه ابوداود وابن جرير كذا في الدر المنثور)

پېښ شو نو مانځه طرف ته به فورًا مُتوجّه شو.

**فائده**:- مونځ د الله تعالٰی لوئی رحمت دے - ځکه وجه ده چې پرېشانی په وخت کښې دے ته متوجّه کیدل گویا د الله تعالٰی رحمت طرف ته مُتوجه کیدل دی - او هرکله چه د الله تعالٰی مدد ملگرے او مددگار شی نو بیا ځه مجال دے د ځه پرېشانئ چه به باقی پاتے شی - ډیرو روایتونو کښې په مُختلفو طریقو دا مضمون راغلے دے. صحابهٔ کرام رضی الله عنهم اجمعین چه په هر قدم د نبی علیه الصلٰوة والسلام تابعداری کوونکی وُو د هغوی په حالاتو کښې هُم دا څیز نقل کړے شوے دے.

حضرتِ ابُودَرْدَاء رضی الله عنه فرمائی چه کله به سیلئی شوه نو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به زر جُمات ته تشریف یوړو او تر څو چه به سیلئی بنده شوے نهٔ وه د جُمات نه به نهٔ وتلو. دغه شان چه کله به نمر یا سپوږمئ تندر اُونیوله نو نبی علیه الصلٰوة والسلام به زر مانځه طرف ته مُتوجّه شو.

حضرتِ صُهَیب رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه د ټولو مخکنو نبیانو علیهم السلام هم دا عادت وو چه د هر پرېشانئ په وخت به مانځه طرف ته مُتوجّه کیدل.

حضرتِ ابنِ عبّاس رضی الله عنه یو ځل سفر کښې وو، لاره کښې ورته خبر ورکړے شو چه خوئ د مړ شو. د اُوښ نه راکوز شو، دوه رکعته مونځ یے اُوکړو. بیا یے اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَیْهِ رٰجِعُوْنَ ، اُووے او بیا یے اُوفرمایل چه مونږ هغه اُوکړه چه د کوم الله تعالٰی حکم فرمائیلے دے او د قرانِ پاک آیت وَاسْتَعِیْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ یے تلاوت کړو. یو بله قِصه د دے قِسمه نقل کړے شوے ده چه حضرتِ ابنِ عبّاس رضی الله عنه تشریف اُوړهٔ، په لاره کښې ورته د خپل ورور د "قُثَم" د مرګ خبر ورکړے شو. د لارے نه یو طرف ته شو، د اُوښ نه راکوز شو، دوه رکعته مونځ یے اُوکړو. او التَّحِیَّات کښې یے ډیر ساعته پورے دُعاګانے کړلے. دے نه پس پاسیدو. په اُوښ باندے سور شو او د قرانِ پاک آیت وَاسْتَعِیْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ وَاِنَّهَا لَكَبِیْرَةٌ اِلَّا عَلَی الْخٰشِعِیْنَ یے تلاوت اُوفرمایهٔ. (ترجمه اومدد حاصل کړئ په صبر سره او مانځه سره او بے شکه دغه مونځ ضرور ګران

دے خوځه دچاپه زړونوکښې خُشوع (عاجزي) وي په هغوي هيڅ گران نه دے
دخشوع بيان په دريم باب کښې په تفصيل سره راروان دے. ددۀ يوه بله قِصه
هُم دۀ چه دنبي اکرم صلى الله عليه وسلم په بيبيانوکښې ورته ديوے بي بي دمرګ خبر ورکړے
شونو په سجده کښې پرېوتۀ. چاترے پوښتنه اُوکړه چه دا ولے؟ وے فرمايل
چه دنبي عليه السلام مونږ ته دا ارشاد دے چه کله څۀ واقعه اُووينئ نو سجده کښې
(يعني په مانځه کښې) مشغول شئ. ددے نه به زيات لويه واقعه بله څۀ وي
چه دمؤمنانو مورو وفات شوه. (ابوداؤد)

دحضرت عُبَادَه رضي الله عنه دمرګ وخت چه کله نزدے شونوکوم خلق چه هلته
موجود وُو هغوي ته يے اُوفرمايل چه زۀ هرهغه څوک له دے نه منع کوم چه
ما پسے ژاړي څوکله چه څما روح اُوزي نو هرڅوک دِ په ښۀ شان دا دا بوخيال
سانلوسره اُودس اُوکړي. بيا دِ جُمات ته لاړشي او مونځ دِ اُوکړي او څما دپاره
دِ استغفار (طلب دبخښنے) اُوکړي ځکه چه الله جل شانه وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ
وَالصَّلٰوةِ حُکم فرمايلے دے. ددے نه پس ما قبر ته اُورسوئ.

دحضرت اُمّ کُلثُوم رضي الله عنها خاوند حضرت عَبْدُ الرَّحْمٰن رضي الله عنه بيمار وُو.
يوځل داسے دبے هوشئ غوندے حالت شو. چه ټولو دا اُوګڼړل چه وفات شو
حضرت اُمّ کُلثُوم رضي الله عنها پاسيده او دمانځه نيت يے اُوتړۀ، دمانځه نه چه
فارغه شوه نو حضرت عبدالرحمٰن رضي الله عنه ته هُم افاقه اُوشو. دخلقونه يے
تپوس اُوکړو چه وَلے څما حالت دمرګ په شان شوے وو؟ خلقو عرض اُوکړو
جي او. وے فرمايل چه دوه فرشتے ماته راغلے او ماته يے اُوويل چه څۀ دَ
اَحْکَمُ الْحَاکِمِيْن په دربار کښې ستا فيصله کيدونکے ده. هغوي څۀ بوتلمه
نو يوه دريمه فرښته راغله او هغے دواړو ته يے اُووے چه تاسو واپس لاړے
شئ. دے په هغه خلقو کښې دے دچا په قِسمت کښې چه نيک بختي دهغے وخت
نه ليکلے شوے وه کله چه دے دمور په ګېډه کښې وو. اُوس ددۀ اولاد به
له دۀ نه نور هے فائده حاصلوي. ددے نه پس يوه مياشت حضرت عبدالرحمٰن
رضي الله عنه ژوندے وو بيا وفات شو. (دُرِّ منثور)

حضرت نضر رحمۃ اللہ علیہ فرمائی چه په ورځ کښې یو ځل سخته تیاره شوه. ما منډه کړه د حضرت انس رضی اللہ عنہ په خدمت کښې حاضر شوم. پوښتنه مې ترې اوکړه چه د نبي علیه الصلوٰة والسلام زمانه کښې به هم کله داسې حال راتلو؟ هغوی اُوفرمايل په الله سره پناه! د نبي علیه الصلوٰة والسلام زمانه کښې به لږه غوندې چه هوا تيزه شوه نو مونږ ټول به جُمات ته منډې کړې چه چرته قيامت خو رانغے. (ابوداؤد)

عَبْدُ اللهِ بنِ سلام رضی اللہ عنہ فرمائی چه کله به د نبي اکرم صلی اللہ علیہ وسلم په کور والو څه قِسمه تنګسيا راغله نو هغوی ته به يې د مانځه حُکم کولو او دا آيت به يې تلاوت فرمايهٔ. وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْئَلُكَ رِزْقًا الآية (طٰهٰ) (ترجمه) خپل کور والو ته د مانځه حُکم کوئ او په خپله هُم د دے اهتمام کوئ، مونږ تا نه روزي ګټل نهٔ غواړو، روزي به تا ته مونږ درکوو.

په يو حديث کښې ارشاد دے چه چا ته څهٔ قِسمه ضرورت پيښ شي ديني وي يا دُنيوي. د هغې تعلق مَالِكُ الْمُلْك (الله تعالیٰ) سره وي يا چا بنده سره دهٔ له پکار دي چه ښهٔ اودس اُوکړي بيا دوه رکعته مونځ اُوکړي، بيا د الله تعالیٰ حمد وثنا اُوکړي او بيا درود شريف اُووائي. دے نه پس دِ دا دُعا اُووائي. اِنْشَاءَ الله د دهٔ حاجت به ضرور پوره شي. دُعا دا ده. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحٰنَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ اَسْئَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَّالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ اِثْمٍ لَا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهٗ يَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِيْنَ وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهٗ وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا اِلَّا قَضَيْتَهَا يَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِيْنَ۔

وَهَبْ بِنِ مُنَبِّه رحمۃ اللہ علیہ فرمائی چه د الله تعالیٰ نه حاجتونه د مونځ په ذريعه طلب کولے شي او رُومبنو خلقو ته به چه کله څهٔ تکليف پيښ شو نو هغوی به زر صرف مانځه طرف ته متوجه کيدل. په چا به څهٔ تکليف تيريدهٔ هغوی به زر مانځه ته ورګرځيدل. وئيلے شي چه په کوفه کښې يو قُلي (مزدور) وو. په هغهٔ باندے د خلقو ډير اعتبار وو. امانتګر وو نو په دے وجه د تاجرانو سامان روپئ وغيره به يې هم اُوړلے. يو ځل هغه په سفر تلو. په لاره کښې ورته يو سړی اُووے

کوم خوا اراده ده؟ قُلی اُوویل فلانکی ښارته. ده اُوویل چه ځۀ هُم ځمه
کۀ چرے پیاده تلے شوے نو تاسره به تلے وے. آیا داکیدے شی چه په یو دینګر
(اشرفئ) کرایه ما په قچره سور کړے؟ قُلی دا منظوره کړه. هغه سور شو ځکښن
چه لاړل دوه لارے راغلے سور تپوس اُوکړه. کوم خوا تلل پکار دی؟ قُلی عامه
لار اُوخودله. سور اُوویل دا دویمه لار لنډه ده او دخاروی دپاره دا اسانتیا
ده، واخۀ په کښن ډیردی. قُلی اُووے ما دا لار لیدلے نۀ ده. سور اُوویل ځۀ
ځوځله په دے لار تلے یمه. قُلی اُووے ډیره ښۀ ده او په هغه لار روان
شو. لږ لړے چه لاړل هغه لاره په یو هیبتناک ځنګل باندے ختمه شوه.
چه هلته ډیر مړی پراتۀ وُو. دغه سړے د سورلئ نه راکوز شو او دملا نه یے
خنجر را اُوویست او د قُلی د قتلولو اراده یے اُوکړه. قُلی اُووے چه دا سے مۀ کوه
دا قچره او سامان ټول واخله. هم دا ستا مقصود دے او ما مۀ قتلوه. هغۀ
اُونۀ منل او قسم یے اُوخوړۀ چه ږومبے به تا وژنم بیا به دا ټول هرڅۀ اخلم.
دۀ ورته ډیره زاری او منت اُوکړو خو دے ظالم یو هم اُونۀ منله. قُلی اُووے
ښۀ ده، دَ دوه رکعتو اخری مونځ کولو اجازت راکړه. هغۀ قبوله کړه او په
خندا یے اُووے، زر کړه دے مړو هُم دا درخواست کړے وو خو دَ دوی مونځ
هیڅ کار ورنۀ کړو. قُلی مونځ شروع کړو. اَلحَمدُ شریف یے اُووے. سورت ورته
هم یاد رانغے. هلته هغه ظالم په سر ولاړ بار بار تَلوَتیل چه زر ختم کړه. بے
اختیاره دقُلی په ژبه دا ایت جاری شو. اَمَّنْ يُّجِيبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ (الایۃ)
(سورۃ النمل) دا یے اُوویل او ژړل یے چه یو سور راښکاره شو. دهغۀ په سر باندے
ځلیدونکے د اُوسپنے تور یٔ وه. هغۀ دا ظالم په نیزه اُووَهلو او مړ یے کړو. په
کوم ځائ چه دغه ظالم پریوتۀ، د اُور شغلے دهغه ځائ نه پورته شوے.
دا مونځګذار بے اختیاره په سجده کښن پریوَت. د الله تعالیٰ شکر یے ادا کړۀ.
دمانځه نه پس هغے سور طرف ته یے ورمنډه کړه تپوس یے ترے اُوکړو، دَ
الله تعالیٰ دپاره دومره خو اُوښایه چه ته څوک یے، څنګه راغلے؟ هغۀ
اُوویل چه ځۀ د اَمَّنْ يُّجِيبُ الْمُضْطَرَّ غلام یم. اُوس ته په اَمن کښن یے.

کوم خواچه غواړے څه۔ دا یے اُوویل لاړ و۔ (زهرة المجالس) په حقیقت کښې مونځ داسے لوئ دولت دے چه د الله تعالیٰ د رضا نه علاوه د دُنیا د مُصیبتونو نه هم اکثر د خلاصی سبب کرځی۔ د زړه آرام قرار یے پرے هم حاصلیږی۔

ابنِ سیرینؒ فرمائی که چرے ما ته دجنت په تلو کښې او دوه رکعته مونځ کولو کښې اختیار راکړے شی نو څۀ به دوه رکعته اختیار کړمه ځکه چه جنت ته تلل خما د خوشحالئ دپاره دی او دوه رکعته مونځ کښې خما د مالِك (الله تعالیٰ) رضا ده۔

دنبی اکرم ﷺ ارشاد مبارك دے چه د پسخید وقابل هغه مُسلمان دے چه سپك وی (یعنی دبال بچ زیات بوجھ پرے نۀ وی) د مانځه نه پوره حصه ورته ورکړے شوے وی، رُوزی یے صرف دگذارے وی چه په هغے صبر کولو سره عُمر تیر کړی، د الله تعالیٰ عبادت په ښۀ شان کوی، په گمنامئ کښې پروت وی، زر مړ شی، نۀ یے میراث زیات وی نۀ پرے ژړیدونکی زیات وی (الجامع الصغیر)

یو حدیث کښې راغلی دی چه په خپل کور کښې مونځ ډیر ډیر کوئ په کور کښې به مو خیر زیات تیږی۔ (الجامع الصغیر)

(۶) عَنْ اَبِیْ مُسْلِمِ التَّغْلَبِیِّ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰی اَبِیْ اُمَامَةَ وَهُوَ فِی الْمَسْجِدِ فَقُلْتُ یَا اَبَا اُمَامَةَ اِنَّ رَجُلًا حَدَّثَنِیْ عَنْكَ اَنَّكَ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ یَقُوْلُ مَنْ تَوَضَّأَ فَاَسْبَغَ الْوُضُوْءَ غَسَلَ یَدَیْهِ وَوَجْهَهٗ وَمَسَحَ عَلٰی رَاْسِهٖ وَاُذُنَیْهِ ثُمَّ قَامَ اِلٰی صَلٰوةٍ مَفْرُوْضَةٍ غَفَرَ اللّٰهُ لَهٗ فِیْ ذٰلِكَ الْیَوْمِ مَا مَشَتْ اِلَیْهِ رِجْلَاهُ وَقَبَضَتْ عَلَیْهِ یَدَاهُ وَسَمِعَتْ اِلَیْهِ اُذُنَاهُ وَنَظَرَتْ اِلَیْهِ عَیْنَاهُ وَحَدَّثَ بِهٖ نَفْسُهٗ

ابُو مُسلِم رحمة الله علیه فرمائی چه څۀ د حضرت ابُو امامه رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شوم هغه په جمات کښې تشریف فرما وو۔ ما عرض اُوکړو چه ما ته یو صاحب ستا سوله طرفه دا حدیث نقل کړے دے چه تاسو د نبی اکرم ﷺ نه دا ارشاد اُوریدلے دے چه څوك په ښۀ شان سره اودس اُوکړی بیا فرض مونځ اُوکړی نو الله جل شانهٗ دا د غه ورځے هغه گناه چه په تلو سره شوے وی او هغه چه د هغۀ لاسونو کړے وی او هغه گناه چه د هغۀ د غوږونو نه شوے وی او هغه گناه چه د هغۀ د سترگو نه شوے وی او هغه گناه چه د هغه په زړۀ کښې پیدا شوے وی

مِنْ سُوْءٍ فَقَالَ وَاللهِ لَقَدْ سَمِعْتُهٗ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِرَارًا۔ (رواه احمد والغالب على سنده الحسن وتقدم له شواهد في الوضوء كذا في الترغيب قلت وقد روى معنى الحديث عن ابي امامة بطرق في مجمع الزوائد)

تو لے معاف کوی۔ حضرت ابوامامه رضی الله عنه اوفرمايل، قسم په الله ما دا مضمون د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه څو څو ځله اوریدلے دے۔

**فائده:** د امضمون هم دځو اصحابو رضی الله عنهم نه نقل کړے شوے دے، لکه حضرت عثمان، حضرت ابوهريره، حضرت انس، حضرت عبدالله صنابحي، حضرت عمرو بن عبسه وغیره رضی الله عنهم نه مختلفو الفاظو سره کثرو روایتونو کښ ذکر کړے شوے دے. اوکوم حضرات چه اهلِ کشف دی هغوی ته د ګناهونو لرے کیدل هم معلومیږی- لکه د حضرت امام اعظم رحمة الله علیه قصه مشهوره ده چه د اودا سه اوبو په پریوتلو سره به ئے معلومولہ چه کومه ګناه په دے کښ وینځلے کیږی۔

حضرت عثمان رضی الله عنه نه په یو روایت کښ د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد هم نقل شوے دے چه څوك د په دے نه مغروره کیږی- ددے مطلب دا دے چه په دے امید چه مونځ سره ګناهونه معاف کیږی په ګناهونو د زړه ورتیا نه کوی ځکه چه څمونږ مونځونه او عبادتونه چه څنګه دی که چرے هغه الله جل شانه په خپلے مهربانئ سره قبول کړی نو دا به د هغه فضل و احسان او انعام وی کنې څمونږ د عبادتونو حقیقت مونږ ته ښه معلوم دے- اګرچه د مانځه دا اثر ضرور دے چه په دے سره ګناهونه معاف کیږی خو ایا څمونږ مونځونه هم د دے قابل دی، ددے علم صرف الله تعالیٰ ته دے- او دویمه خبره دا هم ده چه په دے وجه سره ګناهونه کول چه څما مالِک کریم (سخی) دے معاف کونکے دے، حد درجه بے غیرتی ده. ددے مثال خو داسے شو چه څوك سړے دا اووائی چه څما دا خاوند که چرے فلانے کار اوکړی معاف کوم به ئے- نو هغه نالائقه خاوند په دے درجه چه پلار د معاف کولو ولی دی، سره د یو هے قصدًا د هغه نافرمانی کوی-

⑦ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَجُلَانِ مِنْ بَلِيٍّ حَيٍّ مِّنْ

حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چه د یو قبیلے دوه صحابه په یو ځای مسلمانان شول-

قُضَاعَةَ اَسْلَمَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فَاسْتُشْهِدَ اَحَدُهُمَا وَاُخِّرَ الْاٰخَرُ سَنَةً قَالَ طَلْحَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ فَرَاَيْتُ الْمُؤَخَّرَ مِنْهُمَا اُدْخِلَ الْجَنَّةَ قَبْلَ الشَّهِيْدِ فَتَعَجَّبْتُ لِذٰلِكَ فَاَصْبَحْتُ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ ﷺ اَوْ ذُكِرَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَلَيْسَ قَدْ صَامَ بَعْدَهٗ رَمَضَانَ وَصَلّٰى سِتَّةَ اٰلَافِ رَكْعَةٍ وَكَذَا وَكَذَا رَكْعَةً صَلٰوةَ سَنَةٍ۔

(رواه احمد باسناد حسن ورواه ابن ماجة وابن حبان فی صحیحه والبیهقی کلهم عن طلحة بنحوه اطول منه وزاد ابن ماجة وابن حبان فی آخره فلما بینهما اطول ما بین السماء والارض کذا فی الترغیب ولفظ احمد فی النسخة التی بایدینا او کذا وکذا رکعة بلفظ او وفی الدر اخرجه مالک واحمد والنسائی وابن خزیمة والحاکم وصححه والبیهقی فی شعب الایمان عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا وَّنَاسًا مِّنَ الصَّحَابَةِ يَقُوْلُوْنَ كَانَ رَجُلَانِ اَخَوَانِ فِیْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَكَانَ اَحَدُهُمَا اَفْضَلَ مِنَ الْاٰخَرِ فَتُوُفِّیَ الَّذِیْ هُوَ اَفْضَلُهُمَا ثُمَّ عُمِّرَ الْاٰخَرُ بَعْدَهٗ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً (الحدیث) وقد اخرج ابو داؤد بمعنی حدیث الباب من حدیث عبید بن خالد بلفظ قتل احدهما ومات الآخر بعده بجمعة الحدیث)

یو صاحب د هغې دواړو نه په جهاد کښ شهید شو او دویم صاحب یو کال پس مړ شو ما په خوب کښ اُولیدل چه هغه صاحب کوم چه یو کال پس مړ شوے وو د هغې شهید نه هم رومبے جنت ته داخل شو نو څۀ ډیر حیران شوم چه د شهید درجه خو ډیره اُوچته ده چه هغه رومبے جنت ته داخل شوے وے ما نبي علیه الصلوٰة والسلام ته په خپله عرض اُوکړو یا بل چا ورته عرض اُوکړۀ نو نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایۀ چه کوم صاحب رُستو مړ شو د هغۀ نیکئ نۀ گورئ څومره زیاتے شوے۔ د یو رمضان المبارک روژے د هغۀ زیاتے شوے او شپږ زره او دومره دومره رکعتونه د مانځۀ په یو کال کښ د هغۀ زیات شول۔

**فائده:** - کۀ چرے دیو کال تولے میاشتے دیو کم دیرشو ورځو حساب کړے شي او صرف د فرضو او وترو شل ۲۰ رکعتونه شمار کړے شي بیا هم شپږ زره نهه سوه شپیته ۶۹۶۰ رکعتونه کیږي۔ او څومره میاشتے چه د دیرشو ورځو وي شل ۲۰ رکعتونه به پرے زیاتیږي او کۀ سُنتونه او نفلونه هم شمار کړے شي نو څۀ به یے تپوس کوے۔

ابنِ ماجه کښې دا قصه نوره هُم په تفصیل سره راغلې ده په هغې کښې حضرت طلحه رضی الله عنه چه خوب لیدونکے دے، په خپله بیان کوی چه دیوے قبیلے دوه سړی د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې یو ځائې راغلل او یو ځائې مُسلمانان شول. یو صاحب ډیر زیات قوی او همّت ناک وو. هغه په یو جنګ کښې شهید شو او بل صاحب یو کال پس مړ شو. ما په خوب کښې اُولیدل چه څهٔ د جنت په دروازه ولاړیم او هغه دواړه صاحبان هُم هلته دی. د ننه نه یو کس راغے او هغې صاحب ته یې چه کوم یو کال پس مړ شوے وُو، د ننه د تلو اجازت اُوکړو. او کوم صاحب چه شهید شوے وُو هغه ولاړ پاتے شو. لږ ساعت پس بیا د ننه نه یو کس راغے او هغې شهید ته یې هُم اجازت ورکړو او ما ته یې اُویل چه ستا لا وخت نهٔ دے راغلے، ته واپس لاړ شه. ما سحر خلقو ته د خپل خوب ذکر اُوکړو تول په دے حیران شول چه دے شهید ته رُستو ولے اجازت اُوشو. د هٔ ته خو رُومبے اجازت پکار وو. اخر نبی علیه الصلوٰة والسلام ته خلقو د دے تذکره اُوکړه نو نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه په دے کښې د حیرانتیا څهٔ خبره ده؟ خلقو عرض اُوکړو اے د الله رسُوله! هغه شهید هُم شوَ و ډیر تکړا او همّت ناک هُم وو. او جنت کښې د ابل صاحب رُومبے داخل شو. نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه ولے هغهٔ دیو کال عبادت زیات نهٔ وُو کړے؟ عرض اُوشو بے شکه کړے وو. ارشاد یې اُوفرمایهٔ چه ولے هغهٔ پوره دیو رمضان روژے د هغهٔ نه زیاتے نهٔ وے نیولے؟ عرض اُوکړے شو، بے شکه نیولے یې وے. ارشاد یې اُوفرمایهٔ ولے هغهٔ دومره دومره سجدے دیو کال د مونځونو زیاتے نهٔ وے کړے؟ عرض اُوکړے شو بیشکه کړے وے. نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل، بیا خو په هغې دواړو کښې د اسمان او زمکے فرق اُوشو. اهـ.

د دے قِسمه قصے ډیرو خلقو سره شوے دی. ابوداؤد شریف کښې د دوه وُو اصحابو قصه د دے قِسمه صرف د اتو ورځو په فرق سره ذکر کړے شوے ده. چه دویم صاحب یوه هفته رُستو مړ شو بیا هُم هغه جنت کښې رومبے داخل شو. په حقیقت کښې مونږ خلقو ته د دے اندازه نشته چه مونځ څومره قیمتی څیز دے. اخر څهٔ خبره خو ده چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د خپلو سترګو یخوالے

په ما نځه کښې خود لے دے۔ د نبی علیه الصلوٰة والسلام د ستر کو یخوالے چه اِنتهائی د محبت نښه ده، معمولی څیز نهٔ دے۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه دوه رُونړه وُو۔ دهغوی نه یو رور څلوېښت ورځې وړاندے مړشو۔ دویم رور څلوېښت ورځې رُستو مړشو۔ رومبے زیات بزرګ وو۔ خلقو دهغهٔ ډیر تعریفونه شروع کړل۔ نبی علیه الصلوٰة ارشاد اُوفرمایهٔ ولے دا دویم رور مُسلمان نهٔ وو؟ اصحابو رضی الله عنهم عرض اُوکړو، بے شکه مُسلمان وو خو دَ معمولی درجے وو۔ نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ، تاسو ته څهٔ معلومه ده چه دے څلوېښتو ورځو مونځو هغه کومے درجے ته رسَولے دے۔ دمونځ مثال دیو خوږ او ژور نهر په شان دے چه دروازے څخه بهیږی او بنده پنځه وارے په هغے کښې غُسل کوی دهغهٔ په بدن څهٔ خیرے پاتے کیدے شی؟ دے نه پس بیا دویم ځلے نبی علیه الصلوٰة والسلام اُوفرمایل تاسو ته څهٔ معلومه ده چه دهغهٔ مونځونو کوم چه یے رُستو کړی دی هغه کومے درجے ته اُورسوُو۔

(۸) عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ یُبْعَثُ مُنَادٍ عِنْدَ حَضْرَةِ کُلِّ صَلٰوةٍ فَیَقُوْلُ یَا بَنِیْ اٰدَمَ قُوْمُوْا فَاَطْفِئُوْا مَا اَوْقَدْتُمْ عَلٰی اَنْفُسِکُمْ فَیَقُوْمُوْنَ فَیَتَطَهَّرُوْنَ وَیُصَلُّوْنَ الظُّهْرَ فَیُغْفَرُ لَهُمْ مَا بَیْنَهُمَا فَاِذَا حَضَرَتِ الْعَصْرُ فَمِثْلُ ذٰلِكَ فَاِذَا حَضَرَتِ الْمَغْرِبُ فَمِثْلُ ذٰلِكَ فَاِذَا حَضَرَتِ الْعَتَمَةُ فَمِثْلُ ذٰلِكَ فَیَنَامُوْنَ فَمُدْلِجٌ فِیْ خَیْرٍ وَمُدْلِجٌ فِیْ شَرٍّ۔

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارك دے چه کله د ما نځه وخت راشی نو یو فرښته اعلان کوی اے د آدم اولاده! پاسئ او دوزخ هغه اُور کوم چه تاسو (دګناهونو په وجه) په خپلو ځانونو بل کړے دے مړکړئ۔ پس (دینداره خلق) پاسی اودس کوی او دما سپخین مونځ کوی چه د هغے په وجه دهغوی ګُناهونه سحرنه ما سپخینه پورے بخښلے شی دغسے بیا د ماز یګر په وخت کښې، بیا د ما ښام په وخت کښې، بیا د ماسخوتن په وخت کښې۔ (غرض دهر ما نځه په وخت کښې دا اعلان کیږی) ماسخوتن نه پس خلق په خوب کښې مشغول شی۔ دے نه پس په تیاره کښې بعضے خلق بدو (زنا، بدکارئ

(رواه الطبراني في الكبير كذا في الترغيب)

غلا وغیره) طرف ته روان شی او بعضے خلق نیکو کار و ته (مونځ، وظیفه، ذکر وغیره) طرف ته ځی۔

**فائده:-** د حدیث په کتابونو کښې ډیر زیات دا مضمون راغلے دے چه الله جل شانهٗ په خپله مهربانئ د مونځ په وجه ګناهونه معاف کوی او مونځ کښې چونکه استغفار په خپله موجود دے څنګه چه پورته تیر شو۔ په دے وجه صغیره او کبیره هر قِسمه ګناه په دے کښې داخلیږی په شرط د دے چه په زړه سره په ګناهونو پښیمانتیا وی۔ په خپله د الله جل شانهٗ ارشاد دے اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَیِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّیۡلِ ؕ اِنَّ الۡحَسَنٰتِ یُذۡهِبۡنَ السَّیِّاٰتِ ؕ څنګه چه دریم نمبر حدیث کښې تیر شو۔

حضرت سلمان رضی الله عنه یو مشهور صحابی دے، هغه فرمائی چه کله د ماسخوتن مونځ اوشی نو ټول خلق په دریو ډلو کښې تقسیم شی۔ یوه هغه ډله ده چه د هغوی د پاره دا شپه نعمت دے او ګټه ده او نیکی ده۔ دا هغه حضرات دی چه د شپے فرصت غنیمت ګڼړی۔ کله چه خلق خپل خپل راحت، آرام او خوب کښې مشغول شی نو دا خلق په مانځه کښې مشغول شی۔ د دوی شپه د دوی د پاره د اجراو د ثواب جوړه شی۔ دویمه هغه ډله ده چه د شپے یوائے والے او فرصت غنیمت ګڼړی او ګناهونو کښې مشغول شی د دوی شپه په دوی وبال شی۔ دریمه هغه ډله ده چه د ماسخوتن مونځ اوکړی، او ده شی دوی د پاره نه وبال دے نه ګټه۔ نه څه لاړل نه څه راغلل۔ (دُرِّ منثور)

(۹) عَنۡ اَبِیۡ قَتَادَةَ بۡنِ رِبۡعِیٍّ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰی اِنِّیۡ افۡتَرَضۡتُ عَلٰی اُمَّتِكَ خَمۡسَ صَلَوَاتٍ وَعَهِدۡتُ عِنۡدِیۡ عَهۡدًا اَنَّهٗ مَنۡ حَافَظَ عَلَیۡهِنَّ لِوَقۡتِهِنَّ اَدۡخَلۡتُهُ الۡجَنَّةَ فِیۡ عَهۡدِیۡ وَ

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دے چه الله جل شانهٗ ارشاد فرمائیلے دے چه ما ستا په اُمت باندے پنځه مونځونه فرض کړی دی او د دے م خپل ځان سره وعده کړے ده چه څوك دا پنځه مونځونه په خپل وخت کښې د ادا کولو اهتمام کوی هغه به په خپله ذِمه داری جنت کښې داخلومه او څوك چه د د مونځونو

مَنْ لَمْ يُحَافِظْ عَلَيْهِنَّ فَلَا عَهْدَ لَهٗ عِنْدِيْ۔ (كذا في الدر المنثور برواية ابى داود وابن ماجة وفيه ايضا اخرج مالك وابن ابى شيبة واحمد وابى داود والنسائى و ابن ماجة وابن حبان والبيهقى عن عبادة الصامت فذكر معنى حديث الباب مرفوعا باطول منه)

اهتمام نهٔ کوی نو په ما یا ندے دهغوی هیڅ ذمه داری نشته۔

**فائده:** - یوبل حدیث کښ دا مضمون نور هم په وضاحت سره راغلے دے چه الله جل شانهٗ پنځه مونځونه فرض کړی دی۔ څوك چه دے کښې په اوداسه سره څهٔ قسمه کوتاهی نهٔ کوی په بنهٔ شان اَودس اُوکړی او په خپل وخت کښ خشوع خضوع سره یے کوی، د الله جل شانهٗ وعده ده چه هغه به جنت کښ ضرور داخلوم۔ او څوك چه داسے نهٔ کوی د الله تعالیٰ هیڅ وعده هغهٔ سره نشته خواه بخښنه یے کوی یا عذاب ورکوی۔ د مانځه څومره لوئی فضیلت دے چه د دے په اهتمام د الله تعالیٰ په عهد او ذمه دارئ کښ بنده داخلیږی۔ مونږ وینو چه معمولی غوندے حاکم یا دولتمند چاته تسلّی ورکړی یا د څهٔ مطالبے ذمه دارشی یا دَ څهٔ قسمه ضمانت اُوکړی نو هغه څومره بے فکره او خوشحاله شی او د هغے حاکم څومره احسان مند او هغهٔ سره محبت کونکے جوړشی۔ دلته په یو اسان عبادت چه په هغے کښ څهٔ مشقت هم نشته، مَالِكُ الْمُلْك دَ دوارو جهانو بادشاه عهد کوی۔ بیا خلق دے نه غفلت او بے پرواهی کوی۔ په دے کښ د چا څهٔ نقصان دے هم خپله کم نصیبی او خپل نقصان دے۔

⑩ عَنْ اِبْنِ سَلْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَجُلًا مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهٗ قَالَ لَمَّا فَتَحْنَا خَيْبَرَ اَخْرَجُوْا غَنَائِمَهُمْ مِّنَ الْمَتَاعِ وَ السَّبْيِ فَجَعَلَ النَّاسُ يَتَبَايَعُوْنَ غَنَائِمَهُمْ فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ لَقَدْ رَبِحْتُ رِبْحًا مَا رَبِحَ الْيَوْمَ مِثْلَهٗ اَحَدٌ مِّنْ

یو صحابی فرمائی چه مونږ کله په جنګ کښ خیبر فتح کړو نو خلقو خپل د غنیمت مال راأویستلو چه په هغے کښ قسما قسم سامان وو او قیدیان وُو او اخستل خرڅول شروع شو (هر چا خپل ضروریات اخستل او نور زیاتی څیزونه یے خرڅول) په دے کښ یو صحابی د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم خدمت کښ حاضر شو او عرض یے اُوکړو، اے د الله رسوله ما ته نن په دے

أَهْلِ الْوَادِيْ قَالَ وَيْحَكَ وَ مَا رَبِحْتَ قَالَ مَا زِلْتُ أَبِيْعُ وَأَبْتَاعُ حَتّٰى رَبِحْتُ ثَلٰثَ مِائَةِ أُوْقِيَةٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ أَنَا أُنَبِّئُكَ بِخَيْرِ رَجُلٍ رَبِحَ قَالَ مَا هُوَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الصَّلٰوةِ۔

(اخرجه ابو داؤد وسکت عنه المنذری)

تجارت کښې دومره گټه اُوشوه چه په بټوله ډله کښې به چا ته دومره گټه نه وی شوې نبی علیه الصلوٰة والسلام ترې په حیرانتیا سره تپوس اُوکړو چه څومره گټه دِ اُوکړه۔ هغهٔ عرض اُوکړو حضور ما سامان اخستهٔ او خرڅ وُ چه په کښې درسوه اُوقیې سپین زر گټه کښې پاتې شو۔ نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ، څهٔ تا ته بهترین د گټې خبرَ اُبنایم؟ هغهٔ عرض اُوکړهٔ حضور! ضرور اُوښایئ۔ ارشاد یې اُوفرمایهٔ چه د فرض مانځهٔ نه پس دوه رکعته نفل۔

**فائده**:- یو اوقیه د څلویښتو درهمو وی۔ او یو درهم تقریبًا د څلور انو۔ په دې حساب سره درې زره روپئ شوې۔ د دې په مقابله کښې د دوارو جهانو د بادشاه ارشاد دے چه دا څهٔ گټه ده۔ حقیقی گټه هغه ده چه همیشه پاتې کیدونکې او هیڅ کله نهٔ ختمیدونکې وی۔ کهٔ چرې حقیقت کښې څمونږ ایمان داسې شی او د دوه رکعتو مونځ په مُقابله کښې د دریو زرو روپو قدر پاتې نشی نو بیا خو واقعی د ژړونې مزه ده۔ او حقه دا ده چه مونځ دے داسې دولت۔ په دې وجه سَیِّدُ الْبَشَر فخرِ رُسُل نبی اکرم ﷺ د خپلو سترگو یخوالے مانځه کښې ښودلے دے او د دُنیا نه رُخصتیدو په وخت کښې آخری وصیّت یې چه فرمایلے دے په هغې کښې د مانځهٔ د اهتمام حُکم فرمایلے دے۔ (کنز العمال)

په ګڼ روحدیثونو کښې د دغې وصیت ذکر شوې دے چه یو د هغې نه حضرت اُمِّ سلمه رضی اللہ عنہا فرمائی چه په آخری وخت کښې چه د ژبې مبارکې نه پوره الفاظ نهٔ وتل دغه وخت هم نبی اکرم ﷺ د مانځه او د غلامانو د حقونو د اتو تاکید فرمایلے وو۔ حضرت علی رضی اللہ عنہ نه هم دا نقل کړې شوی دی چه آخری خبره د نبی اکرم ﷺ د مانځهٔ تاکید او د غلامانو باره کښې دا الله تعالیٰ نه د ویرید و حُکم وُو۔ (جامع الصغیر)

نبی اکرم ﷺ نجد طرف ته یو وارې د جهاد د پاره لښکر اُولیږهٔ چه ډیر زر

واپس راغے او ځان سره یے ډیر زیات مال د غنیمت راوړه. خلق ډیر حیران شول چه دومره لږ موده کښې دومره لوئ کامیابی او مال و دولت سره واپس راغلل. نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایه چه ځهٔ تاسو ته د دے نه هم کم وخت کښې د دے مال نه ډیر زیات د غنیمت او دولت گټونکے ډله اُوښایم. داهغه خلق دی چه د سحر د مانځه په جمع کښې شریک شی او د نمر ختو پورے په دغه ځائ ناست وی. نمر ختلو نه پس (مکروه وخت چه تقریبًا شل منټه وی تیریږی) نو دوه رکعته (د اشراق) مونځ اُوکړی. د اخلق ډیر لږ وخت کښې ډیر زیات دولت گټونکی دی.

حضرت شقیق بلخی رحمة الله علیه مشهور صوفی او بزرگ دے، فرمائی چه مونږه پنځه څیزونه تلاش کړل هغه مو پنځو ځایونو کښې پیا موندل. د روزئ برکت مو د څاښت په مانځه کښې بیا موندهٔ. د منکر نکیر د سوالونو جواب مو طلب کړهٔ نو هغه مو قرآن لوستلو کښې بیا موندهٔ. او پُلِ صراط باندے په اسانتیا سره تیریدل مو روژه او صدقه کښې بیا موندل. او د عرش سورے مو په واڼے والی کښې بیا موندهٔ (نزهة البساتین)

## د مانځهٔ په باره کښې شلو یښت حدیثونه

د حدیث په کتابونو کښې د مانځهٔ په باره کښې ډیر تاکید او ډیر فضائل راغلی دی. د هغے ټولو جمع کول مُشکل دی، د برکت دپاره د یو څو حدیثونو صرف ترجمه لیکلے شی.

① د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه الله جل شانهٔ زما په اُمت د ټولو څیزونو نه رومبے مونځ فرض کړهٔ او په قیامت کښې به د ټولو نه رومبے د مانځه حساب کیږی. ② د مانځه په باره کښې د الله تعالیٰ نه اُویریږئ. د مانځه په باره کښې د الله تعالیٰ نه اُویریږئ. د مانځه په باره کښې د الله تعالیٰ نه اُویریږئ. ③ د بنده او د شرک په مینځ کښې فرق کوونکے صرف مونځ دے. ④ د اسلام نښه مونځ دے. څوک چه زړهٔ فارغ کړی او د وختونو او د مستحباتو لحاظ ساتلو سره مونځ اُوکړی هغه مؤمن دے ⑤ الله جل شانهٔ

هیڅ یو خیر د ایمان او د مونځ نه بهتر فرض کړے نهٔ دے. کهٔ چرے د دینه بهتر څهٔ بل څیز لیے فرض کړے وے نو فرښتو ته به یے د هغې حکم ورکړے وو. فرښتې شپه او ورځ څوك په رکوع کښې دی څوك په سجده کښې دی. (۶) مونځ د دین ستن ده (۷) مونځ د شیطان مخ تورَوی (۸) مونځ د مؤمن نور دے (۹) مونځ بهترین جهاد دے. (۱۰) کله چه بنده مونځ شروع کړی نو الله تعالیٰ هغهٔ طرف ته پوره توجّه فرمائی. کله چه هغه د مانځه نه لرے شی نو الله تعالیٰ ترے هَم توجّه لرے کړی. (۱۱) کله چه څهٔ آفت د اسمان نه نازلیږی نو د جُمات آباد وُنکو نه لرے وی. (۱۲) کهٔ چرے په څهٔ وجه سره (مونځ گذار) دوزخ ته لاړ شی نو اُور به د سجدے ځایونه نهٔ خوری (۱۳) الله تعالیٰ د سجدے ځایونه په اُور حَرام کړی دی. (۱۴) د ټولو نه زیات خوښ عمل د الله تعالیٰ په نزد هغه مونځ دے چه په وخت اُوکړے شی. (۱۵) الله جلّ شانهٗ ته د بنده په ټولو حالتونو کښې د ټولو نه زیات خوښ دا حالت دے چه هغه په سجده کښې پروت اُووینی چه تندے په زمکه مږی. (۱۶) الله جلّ شانهٗ سره د بنده د ټولو نه زیات نزدیکت په سجده کښې کیږی (۱۷) د جنت کنجیانے مونځ دے. (۱۸) کله چه بنده د مانځه د پاره اُودریږی نو د جنت دروازے ورته پرانستلے شی او د الله جلّ شانهٗ او د دغے مونځگذار تر مینځه پردے لرے کړے شی ترکومے چه تو ځی وغیره کښې مشغول نهٔ شی. (۱۹) مونځگذار د شهنشاه دروازه ټکوی او دا قاعده ده چه څوك دروازه ټکوی نو آخر هغهٔ ته پرانستے شی. (۲۰) د مونځ مرتبه په دین کښې داسے ده لکه د سر درجه په بدن کښې (۲۱) مونځ د زړهٔ نور دے څوك چه خپل زړهٔ نورانی جوړول غواړی (د مونځ په ذریعه دِ) جوړ کړی. (۲۲) څوك چه په ښهٔ شان اُودس اوکړی. بیا خشوع خضوع سره دوه یا څلور رکعته مونځ فرض یا نفل اُوکړی او الله تعالیٰ نه د خپلو گناهونو مُعافی اُوغواړی الله تعالیٰ ورته مُعافی کوی. (۲۳) د زمکے په کومه حصه باندے د مانځه په ذریعه د الله تعالیٰ یاد کړے شی هغه حصه د زمکے په نورو حصو فخر کوی. (۲۴) څوك چه دوه رکعته مونځ اُوکړی، د الله تعالیٰ نه څهٔ دُعا غواړی نو الله تعالیٰ

دَدهٔ دُعا قبلوی خواه زر روی یا دخهٔ مصلحت له خاطره څهٔ مُوده پس وی. خوضرور یے قبلوی۔ ۲۵ څوک چه یو اخځ والی کښ دوه رکعته مونځ اوکړی چه الله تعالیٰ او دهغهٔ د فرشتو نه سوا هیڅوک یے اُونهٔ وینی نو هغهٔ ته دَدوزخ د اُور نه دبری کید و اجازتنامه ورکړے شی۔ ۲۶ څوک چه یو فرض مُونځ اداکړی د الله جل شانهٔ په نزد دَ هغهٔ یوه دُعا قبوله شی۔ ۲۷ څوک چه دپنځو مونځونو اهتمام کوی، دهغے رکوع، سجدے، او دس وغیره په ښهٔ اهتمام سره په شان اداکوی، جنت دهغهٔ دپاره واجب شو او دوزخ په هغهٔ حرام شو۔ ۲۸ مسلمان بنده کله چه دپنځو مونځونو اهتمام کوی، شیطان دهغهٔ نه ویریږی اوکله چه هغه په مونځونو کښ بے پرواهی شروع کړی نو شیطان په هغهٔ زړهٔ ور شی او دهغهٔ په غلطو کښ یے طمع پیدا شی۔ ۲۹ د ټولو نه بهترین عمل په اول وخت کښ مونځ کول دی۔ ۳۰ مونځ د هر یو پرهیزګار قربانی ده۔ ۳۱ د الله تعالیٰ په نزد دَ ټولو نه زیات خوښ مونځ په اول وخت کښ کول دی۔ ۳۲ سحر چه څوک مانځه ته ځی دهغهٔ په لاس کښ د ایمان جهنډه وی او چه څوک بازار ته ځی دهغهٔ په لاس کښ د شیطان جهنډه وی ۳۳ د ماسخپین مانځه نه رومبے د څلورو رکعتو ثواب داسے دے لکه د تهجد و د څلورو رکعتو۔ ۳۴ د ماسخپین نه مخکښ څلور رکعته د تهجد و د څلورو رکعتو برابر شمار یږی۔ ۳۵ کله چه بنده مانځه ته اُودریږی نو د الله تعالیٰ رحمت دهغهٔ طرفته متوجه شی۔ ۳۶ د ټولو نه بهترین مونځ د نیمے شپے دے خو دے کوُنکی ډیر کم دی ۳۷ ما ته جبرئیل علیه السلام راغے او وے وَیل اے محمّده! (صلی الله علیه وسلم) خواه څومره تا سو ژوندی یئ آخر یوه ورځ مَرګ دے او چا سره چه غواړے محبت اُوکړه آخر یوه ورځ دهغهٔ نه جُدا کیدل دی او تا سو چه څهٔ قسمه عَمل اُوکړئ (ښهٔ وی یا بد) دهغے بدله به ضرور درکولے شی۔ په دے کښ هیڅ شک نشته چه دَ مؤمن شرافت د تهجد و مونځ دے او د مؤمن عزت د مخلقو نه بے نیازی ده۔ ۳۸ د آخری شپے دوه رکعته د ټولے دُنیا نه بهتر دی۔ که چرے ما ته دَ مُشقت ویره نهٔ وے نو په اُمت به م فرض کړے وے۔ ۳۹ د تهجد و مونځ

ضرور کوئ چه تهجد د صالحانو طریقه ده او د الله تعالیٰ د نزدیکت سبب دے۔ تهجد د گناهونو نه منع کوئ او د خطاگانو د معاف کولو ذریعه ده۔ په دے سره بدن هم تندرست کیږی۔ (۳۲) د الله جلّ شانهٗ ارشاد دے چه اے د آدم اولاده د ورځے په شروع کښ د څلورو رکعتونو نه عاجزه جوړیږه څه په ټوله ورځ ستا کارونه پوره کوم۔

د حدیث په کتابونو کښ ډیر زیات د مانځه فضائل او ترغیبونه ذکر کړے شوی دی۔ د څلویښتو د شمیرے په لحاظ سره د ومره کافی اوګرزولے شو۔ که چرے څوك دا په حفظ یاد کړی نو د څلویښتو حدیثونو یادولو فضیلت به حاصل کړی۔ حقه داده چه مونځ داسے لوئ دولت دے چه د دے قدر هغه څوك کولے شی چا ته چه الله جلّ شانهٗ د دے مزه څکولے وی۔ د دے دولت په وجه نبی علیه السلام د خپلو سترګو یخولے په دے کښ فرمائیلے دے او د دے مزے په وجه به نبی علیه السلام د شپے ډیره حصه په مانځه کښ تیروله۔ هم داوجه ده چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د دُنیا نه د تلو په وخت کښ خاص طور د مانځه وصیت اوفرمائیه او د دے د اهتمام تاکید یے اوکړو۔ په ګڼړو حدیثونو کښ ارشادِ نبوی نقل کړے شوے دے اِتَّقُوا اللّٰهَ فِي الصَّلٰوةِ د مونځ باره کښ د الله تعالیٰ نه اویریږئ۔ حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه په ټولو عملونو کښ ماته مونځ د ټولو نه زیات خوښ دے۔

یو صحابی رضی الله عنه فرمائی چه څه یوه شپه د مسجدِ نبوی په خوا کښ تیریدمه۔ نبی کریم صلی الله علیه وسلم مونځ کولو۔ ځما هم شوق اوشو، نبی علیه السلام پسے مِ نیت اوتړهٔ۔ نبی علیه السلام سورة بقره لوستله، ما خیال اوکړو چه په سلو ایتونو به رکوع اوکړی خو چه کله هغه تیر شول او رکوع یے اونهٔ کړه نو ما سوچ اوکړهٔ چه په دوه سوو ایتونو به رکوع اوکړی خو هلته یے هُم اونهٔ کړه نو ما دا خیال اوکړهٔ چه دَ سورة په ختمید و به اوکړی۔ هر کله چه سورة ختم شونو نبی علیه السلام څو واره اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ، اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ اُووے او سورة آلِ عمران یے شروع کړهٔ۔ څهٔ په سوچ کښ پریوتم۔ آخر خیال مِ اوکړو چه آخر دے په ختم خو به

رُکوع اُوکړی. نبی علیه السلام هغه ختم کړلو او درے وارے یے اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ اووے او سورة مائده یے شروع کړه. دا یے ختم کړه نو رکوع یے اُوکړه او په رکوع کښې یے سُبْحٰنَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ لوستهٔ او دے سره یے څهٔ نور هُم لوستل چه پوهه پرے نهٔ شوم. دِے نه پس دغسے سجده کښې سُبْحٰنَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی یے لوستهٔ او د سره یے څهٔ نور هُم لوستل. دِے نه پس یے دویم رکعت کښې سورة اَنْعَام شروع کړلو ما د نبی علیه السلام سره د مونځ کولو هِمّت اُونهٔ کړے شو او مجبوره شوم، راغلم. په رُومبی رکعت کښې تقریباً پنځه سیپارے اُوشوے او بیا د نبی کرم صلی الله علیه وسلم لوستل ډیر په اطمینان (آرام) تجوید او ترتیل (صحیح او په قلاره) سره یو یو آیت جُدا جُدا کوو او لوستلو. په دا سے حالت کښې به څومره اُوږد رکعت شوے وی. هُم له دِے وجهونه د نبی علیه الصلوٰة په خپو مونځ کولو سره پړسوب راتللو. خوچه د کوم څیز مزه زړهٔ ته ورکوزه شی. په هغې کښې بیا مشقت او تکلیف مشکل نهٔ وی.

**د بزرګانِ دین حالات**

ابُو اِسحاق سَبِیعی رحمة الله علیه مشهور محدِّث دے. دسلو کالو په عُمر کښې وفات شوے دے. په دے به یے دما نځه باره کښې د افسوس کُولو چه دبوډا والی او دکمزورتیا په وجه د مونځ مزه لاړله. په دوه رکعتو کښې صرف دوه سورتونه سورة بقره او سورة آلِ عمران لوستلے شم، زیات نهٔ شم لوستلے. (تهذیب التهذیب) دا دواړه سورتونه هم پاؤکم شلور سیپارے دی.

محمّد بن سَمَّاك رحمة الله علیه فرمائی چه په کوفه کښې زما یو ګاونډی وو. دهغهٔ یو هَلك وو چه دوُرځے به یے همیشه روژه نیوله او دشپے به یے مانځه کښې او شوقیه اشعارو کښې تیرَوَله. هغه دا سے وُچ شوے وو چه تش هډوکی او څرمنه یے پاتے شوے وه. دهغهٔ پلار ماته اُووے چه تاسو دے له پوهه کړئ. څهٔ یو وارے په خپله دروازه کښې ناست وُمه، هغه مخامخ تیرشو ما رااُوبلهٔ. هغه راغے سلام یے واچولو او کیناستهٔ. ما خبره شروع کوله چه هغهٔ اُوویل. تره شاید تاسو به ماته د محنت کمولو مشوره راکوئ. کاکاجی! ما د دے محلے څو هلکانو سره دا فیصله کړے وه چه ګورُو به، څوك به عبادت

کښې زیاتې کوشش کوی. هغوی محنت او کوشش اُوکړو او الله تعالیٰ طرف ته اُوبللے شُو. کله چه هغوی اوبللے شُو نو ډیر په خوشحالئی سره لاړل. په هغوی کښې مانه سِوا هیڅوك نه دے پاتے شوے. څما عمل په ورځ کښې دوه وارے هغوی ته ښکاره کیږی. هغوی به څهٔ وائی چه کله په هغې کښې کمے بیا مُومی. کاکاجی! دغے خلقو ډیرے ډیرے مجاهدے اُوکړلے. د هغوی محنتونه او مجاهدے یے بیا نے کړے. هغه موچه واؤریدے مونږ خلق حیران پاتے شُو. دے نه پس هغه هلك پاسیده، لاړو. دریمه ورځ مونږ واؤریدل چه هغه هم رُخصت شو. رَحِمَهُ اللهُ رَحْمَةً وَّاسِعَةً. (نزهة)

اُوس هم په دے زمانه کښې د الله تعالیٰ بندګان داسے لیدلے شی چه د شپے اکثره حصه په مانځه کښې تیروی، او په ورځ کښې د دین نورو کارونو تبلیغ او تعلیم کښې مشغول اُوسی. حضرت مجدد الفِ ثانی رحمة الله علیه د نوم نه به څوك هندوستان کښې بے خبره وی. د هغوی یو خلیفه مولانا عبدالواحد لاهوری رحمة الله علیه یوه ورځ ارشاد اُوفرمایهٔ چه 'ایا جنت کښې به مونځ نهٔ وی؟ چا عرض اُوکړو چه جنت کښې به مونځ ولے وی، هغه خو د عملونو بدلے ځائی دے نهٔ د عمل کولو. په دے یے یو آه اُوویستهٔ او په ژړا شو او وے فرمایل چه بے د مونځه به په جنت کښې وخت څنګه تیریږی. په داسے خلقو دُنیا آباد ده. او د ژوند مزه اَخستونکی په حقیقت کښې هم دا مُبارکے هستیٔ دی. الله جلّ شانهٔ که په خپل فضل او کرم او د دے قِسمه بزرګانو د قُربانو په خاطر ما غوندے ګنهګار بندے هم پیرزوینه اُوکړی نو د هغهٔ د عامے مهربانئ نه څهٔ لرے ده؟

یو د مزے د که (عبرتناکه) قصه باندے د افصل ختموم.

حافظ ابن حجر رحمة الله علیه مُنَبِّهَات کښې لیکلی دی چه یو وارے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه څما په دُنیا کښې درے څیزونه خوښ دی. خوشبو، ښځے (یعنی خپلے بیبیانے) او څما د سترګو یخوالے په مانځه کښې دے. نبی علیه الصلوٰة والسلام سره یو څو صحابه ناست وُو. حضرت ابُوبکر صدیق رضی الله عنه ارشاد اُوفرمایهٔ تا سو رښتیا اُووے او څما هم درے څیزونه خوښ دی. ستا سو مخ مُبارك

ته کتل، خپل مال په تاسو خرچ کول او د اچه خما لور ستاسو په نکاح کښ ده.
حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمایل ریښتیا دی او خما د رے خیزونه خوښ دی-
امر بالمعروف، نهی عن المنکر د بنو کارونو حکم کول او د بد و خبرونه منع
کول، او زړه جامه. حضرت عثمان رضی الله عنه اوفرمایل تاسو ریښتیا اووے
او خما د رے خیزونه خوښ دی- اوږدی مړول، بربنړو ته جامه اغوستول
او د قران شریف تلاوت. حضرت علی رضی الله عنه ارشاد اوفرمایه چه تاسو ریښتیا
اووے او خما د رے خیزونه خوښ دی. د میلمنو خدمت، گرمئ کښ روژه.
او په دشمن باندے توره. دے کښ جبرئیل علیه السلام تشریف راوړه او عرض
ئے اوکړو چه خدائے جل شانهٔ رااولیږلم او وے فرمایل که چرے خو (جبرئیل)
تاسو دنیاوالو کښ وے نو اوبنایم خما به څهٔ خوښ وو. نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد
اوفرمایهٔ، اوبنایه. عرض ئے اوکړهٔ- ورک شوو ته لاره بنودل، غریب عبادت
کونکو سره محبت ساتل، او په بال بچه دار و غریبانانو سره امداد کول- او الله
جل شانهٔ ته د بندګانو د رے خیزونه خوښ دی- (د الله تعالی په لاره کښ) د
طاقت خرچ کول، (مال سره وی که جان سره) او په گناه د پښیمانتیا په وخت
کښ ژړل او په لوږه صبر کول-
حافظ ابن قیم رحمة الله علیه زاد المعاد کښ لیکی چه مونځ روزی راکاړی-
د صحت حفاظت کونکے دے. مرضونه لرے کوی- زړهٔ ته قوت رسوی. مخ بنائسته
او روښانه کوی- بدن ته خوشحالی ورکوی. اندامونوکښ نشاط (تازګی)
پیدا کوی- سستیا لرے کوی- شرح صدر (د سینے پرانستلو) سبب دے- د
روح خوراك دے- زړهٔ روښانه کوی- د الله تعالی د انعام حفاظت کونکے دے او
د الله تعالی د عذاب نه د حفاظت سبب دے- شیطان لرے کوی او رحمن سره
نزدیکت پیدا کوی- غرض دا، د روح او دیدن د صحت په حفاظت کښ د دے ته
خاص دخل دے او په دواړو خیزونوکښ د دے عجیبه اثر دے. هم دغه
شان د دنیا او د آخرت نقصانونه لرے کولوکښ او دواړو جهانونوکښ فائدے
پیدا کولوکښ دے ته ډیر خصوصیت دے-

# دویم فصل

د مونځ په پرېښودو کوم عذاب او زورونه حدیثونو کښې راغلي دي د هغې بیان

د حدیث په کتابونو کښې مونځ نه کولو باندې ډېر سخت سخت عذابونه ذکر کړے شوي دي. د نمونې په طور یو څو حدیثونه ذکر کولے شي. د رښتني خبر ورکونکي یو ارشاد هم د عاقل د پاره کافي وو. خو د نبي اکرم ﷺ د مهربانئ نه قربان شم چه هغوي مبارك په څو څو قِسمه سره او په بار بار دے څیز طرفته متوجه کړل چه د هغه نوم اخستونکي اُمتیان چرته په دے کښې بے پرواهي اُونه کړي. بیا افسوس دے څمونږ په حال باندے چه مونږ د نبي علیه السلام د دے اهتمام باوجود د مونځ اهتمام نه کوو. او بے غیرتئ او بے حیائئ سره ځان د رسول ﷺ اُمتي او تابعدار او د اِسلام سرګرم خادم هم ګڼړو.

(۱) عَنْ جَابِرِبْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ بَيْنَ الرَّجُلِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلٰوةِ (رواہ احمد ومسلم) وَقَالَ بَيْنَ الرَّجُلِ وَبَيْنَ الشِّرْكِ وَالْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلٰوةِ.

د نبي اکرم ﷺ ارشاد مبارك دے چه مونځ پرېښودل بنده کُفر ته رسوي. یو ځائ ارشاد دے چه بنده او کُفر له یو ځائ کونکے څیز صرف مونځ پرېښودل دي. یو ځائ ارشاد دے چه د ایمان او کُفر په مینځ کښې د مونځ پرېښودلو فرق دے.

(ابوداؤد والنسائی ولفظه لَيْسَ بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ إِلَّا تَرْكُ الصَّلٰوةِ والترمذی ولفظه قَالَ بَيْنَ الْكُفْرِ وَالْإِيْمَانِ تَرْكُ الصَّلٰوةِ وابن ماجة ولفظه قَالَ بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلٰوةِ. کذا فی الترغیب للمنذری وقال السیوطی فی الدر لحدیث جابر اخرجه ابن ابی شیبة واحمد ومسلم وابوداؤد والترمذی والنسائی وابن ماجة ثم قال واخرج ابن ابی شیبة واحمد وابوداؤد والترمذی وصححه والنسائی وابن حبان والحاکم وصححه عَنْ بُرَيْدَةَ مَرْفُوْعًا اَلْعَهْدُ الَّذِيْ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمُ الصَّلٰوةُ فَمَنْ تَرَكَهَا فَقَدْ كَفَرَ)

**فائده:** د دے قِسمه مضمون نور هم په څو حدیثونو کښې راغلے دے. یو حدیث کښې راغلي دي چه د ورځې په وړاندې مونځ زرکوئ حُکم چه مونځ پرېښودلو سره بنده کافر کیږي. یعني چرته دا سے اُونه شي چه د ورځې په وجه د وخت

پته اُونه لګی اوموځ قضاشي. دے ته یے هُم موځ پرېخودل ارشاد اُوفرمایهٔ. خومره سخته خبره ده چه نبی اکرم ﷺ مونځ پرېخودونکی باندے دکفر حُکم لګوی اګرچه عالمانو دا حدیث په انکار سره خاص کړے دے. خو دنبی علیه الصلوٰة و السلام د ارشاد فکر دومره سخت خیز دے چه دچا په زړهٔ کښ لږ هم دنبی کرم ﷺ عزت اودنبی علیه السلام دارشاد اهمیت وی دهغوی دپاره دا ارشادات ډیر سخت دی. دے نه علاوه لویو لویو صحابهٔ کرامو لکه حضرتِ عُمَر، حضرتِ عبدُ الله بنِ مسعود، حضرتِ عبدُ الله بن عبّاس وغیره رضی الله عنهم مذهب هم دادے چه بغیرعذره قصدًا مونځ پرېخودُو والا کافردے. په اِمامانو کښ دحضرت اِمام احمد بنِ حَنبَل، اِسحٰق بنِ رَاهُوَیه، اِبنِ مُبارک رحمهم الله هم دا مذهب نقل کړے شی. اَللّٰهُمَّ احفَظنَا مِنهُ. (ترغیب)

② عَن عُبَادَةَ بنِ الصَّامِتِ رضی الله عنه قَالَ اَوصَانِی خَلِیلِی رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ بِسَبعِ خِصَالٍ فَقَالَ لَا تُشرِکُوا بِاللّٰهِ شَیئًا وَّاِن قُطِّعتُم اَو حُرِّقتُم اَو صُلِّبتُم وَلَا تَترُکُوا الصَّلٰوةَ مُتَعَمِّدِینَ فَمَن تَرَکَهَا مُتَعَمِّدًا فَقَد خَرَجَ مِنَ المِلَّةِ وَلَا تَرکَبُوا المَعصِیَةَ فَاِنَّهَا سَخَطُ اللّٰهِ وَلَا تَشرَبُوا الخَمرَ فَاِنَّهَا رَاسُ الخَطَایَا کُلِّهَا. (الحدیث رواه الطبرانی ومحمد بن نصر فی کتاب الصلوٰة باسنادین لاباس بهما کذا فی الترغیب قلت وذکره السیوطی فی الدر المنثور وعزاه الیهما وفی المشکوٰة بروایة ابن ماجة عن ابی الدرداء نحوه)

حضرت عُبادہ رضی الله عنه فرمائی چه ماته خما محبوب نبی اکرم ﷺ اُوهٔ نصیحتونه اُوکړل چه په هغے کښ څلور دادی. اول داچه الله سره شریک څوک مهٔ جوړوه اګرکهٔ ته ټکړے ټکړے کړے شے. یا اُوسوزولے شے یا پهانسی کړے شے. دویم داچه په قصد سره مونځ مهٔ پرېږده. څوک چه په قصد سره مونځ پرېږدی هغه دمذهب نه اُوزی. دریم داچه د الله تعالیٰ نافرمانی مهٔ کوه چه په دے سره الله تعالیٰ ناراضه کیږی. څلورم داچه شراب مهٔ څکه چه دا دټولو ګناهونو جرړه ده.

فائده:- یو بل حدیث کښ حضرت ابُو الدّرداء رضی الله عنه هم د دغه مضمون

فرمائی چه خما محبوب صلی الله علیه وسلم ماته وصیت اُوفرمایهٔ چه الله لره شریك څوك مهٔ جوړوه اګرکهٔ ته ټکړے ټکړے کړے شے یا په اُور کښ اُوسوزولے شے - دوَیم مونځ قصداً مهٔ پریږدهٔ - څوك چه په قصد سره مونځ پریږدی هغهٔ د الله تعالیٰ د ذمه دارئ نه بری دے - دریَم شراب مهٔ څښه چه دا د هرے بدئ کنجی دهٔ -

(۳) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رضی الله عنه قَالَ اَوْصَانِیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم بِعَشْرِ کَلِمَاتٍ قَالَ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ شَیْئًا وَّاِنْ قُتِلْتَ اَوْحُرِّقْتَ وَلَا تَعُقَّنَّ وَالِدَیْكَ وَاِنْ اَمَرَاكَ اَنْ تَخْرُجَ مِنْ اَهْلِكَ وَمَالِكَ وَلَا تَتْرُکَنَّ صَلٰوۃً مَّکْتُوْبَۃً مُّتَعَمِّدًا فَاِنَّ مَنْ تَرَكَ صَلٰوۃً مَّکْتُوْبَۃً مُّتَعَمِّدًا فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ ذِمَّةُ اللّٰهِ وَلَا تَشْرَبَنَّ خَمْرًا فَاِنَّهٗ رَاْسُ کُلِّ فَاحِشَةٍ وَاِیَّاكَ وَالْمَعْصِیَةَ فَاِنَّ بِالْمَعْصِیَةِ حَلَّ سَخَطُ اللّٰهِ وَاِیَّاكَ وَالْفِرَارَ مِنَ الزَّحْفِ وَاِنْ هَلَكَ النَّاسُ وَاِنْ اَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ فَاثْبُتْ وَاَنْفِقْ عَلٰی اَهْلِكَ مِنْ طَوْلِكَ وَلَا تَرْفَعْ عَنْهُمْ عَصَاكَ اَدَبًا وَّاَخِفْهُمْ فِی اللّٰهِ -

حضرت مُعاذ رضی الله عنه فرمائی چه ماته نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د لسو خبرو وصیت اُوفرمایهٔ - (۱) الله تعالیٰ سره څوك شریك مهٔ جوړوه اګرکهٔ ته قتل کړے شے یا اُوسوزولے شے (۲) د مور پلار نافرمانی مهٔ کوه اګرکهٔ هغه تا ته د دے حُکم اُوکړی چه ښځه پریږده یا ټول مال خرچ کړه (۳) فرض مونځ په قصد مهٔ پریږده - څوك چه فرض مونځ په قصد پریږدی هغه د الله تعالیٰ د ذمه دارئ نه بری دے - (۴) شراب مهٔ څښه چه دا د هرے بدئ او بے حیائئ جرړه ده - (۵) د الله تعالیٰ نافرمانی مهٔ کوه چه په دے سره د الله تعالیٰ غضب او قهر نازلیږی (۶) په جنګ کښ تیخته مهٔ کوه اګرکهٔ ټول ملګری دِ مړه شی (۷) که چرته وَبا خوره شی (لکه طاعون وغیره) نو د هغه ځایه مهٔ تخته - (۸) خپل کور والو باندے د خپل طاقت مطابق خرچ کوه - (۹) د تنبیه (ادب) د پاره د هغوی نه همسامهٔ لرے کوه - (۱۰) د الله تعالیٰ نه هغوی ویروه -

(رواه احمد والطبرانی فی الکبیر واسناد احمد صحیح لو سلم من الانقطاع فان عبدالرحمٰن بن جبیر لم یسمع من معاذ کذا فی الترغیب و الیهما عزاه السیوطی فی الدر ولم یذکر الانقطاع ثم قال واخرج الطبرانی عن امیمة مولاة رسول الله صلی الله علیه وسلم قالت کنت اصب علی رسول الله صلی الله علیه وسلم وضوءه فدخل رجل فقال اوصنی فقال لا تشرک بالله

شَیْئًا وان قطعت او حرقت ولا تعص والدیک وان امراک ان تخلی من اہلک و دنیاک فتخلہ ولا تشربن خمرًا فانہ مفتاح کل شر ولا تترکن صلوٰۃ متعمدا فمن فعل ذلک فقد برئت منہ ذمۃ اللّٰہ ورسولہ۔)

**فائده:** په همسانهٔ لرے کوُلو مطلب دادے چه هغوی د دے نه بے فکره نشی چه پلار زورنه نهٔ کوی او وَهی نه. خهٔ مو چه خوښه وی کوُو یه. بلکه هغوی د شریعت په حدودو کښې کله کله وَهل پکار دی چه بغیر وَهلو اکثر نهٔ سمیږی. نن صبا اولاد ته په شروع کښې د محبت په جوش کښې تنبیه نهٔ کوی. خو کله چه هغه په بدو عادتونو کښې پوخ شی نو بیا ژاړی حال دادے چه دا اولاد سره محُبت نهٔ دے، سخته دُشمنی ده چه هغه د بدو خبرو نه منع نهٔ کړے شی. او وَهل ټکول د محبت نه خلاف اَوګنړلے شی. څوک عقلمند دا خوښوی چه د اولاد ښکُے د زیاته شی. او په دے وجه چه نشتر لګوُلو کښې په ورته زخم او تکلیف وی، اپریشن یے نهٔ کوی. بلکه هر خومره چه بچے ژاړی، تختی، خفه کیږی. په هر حال ورته نشتر لګوُلے شی. ډیرو حدیثونو کښې د نبی علیه الصلوٰة والسلام اِرشاد نقل کړے شوے دے چه بچی ته دا اُووکالو په عمر کښې د مونځ حُکم کوئ او د لسو کالو په عمر کښې په مونځ نهٔ کوُلو یے وَهئ.

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه د بچو په مونځ نظر ساتئ او د ښو خبرو یے عادت جوړ وَئ. د حضرت لُقمانِ حکیم ارشاد دے چه د پلار وَهل د اولاد د پاره داسے دی لکه د فصل د پاره اُوبهٔ. (در منثور) د نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد دے چه څوک خپل اولاد ته ادب ښائی. دا د یو صاع (پیمانے) صدقه کوُلو نه بهتر دے (جامع الصغیر) یو صاع تقریبًا د درے نیم ۳½ سیره غله وی.

په یو حدیث کښې ارشاد دے چه الله تعالیٰ د په هغه چا رحمت اُوکړی چه د کور والو د تنبیه (ادب) د پاره په کور کښې کروړه زوړند ساتی (جامع الصغیر) په یو حدیث کښې ارشاد دے چه پلار خپل اولاد ته د دے نه بهتره ورکړه نهٔ شی کوُلے چه هغهٔ ته د ښهٔ طریقے تعلیم ورکړی. (جامع صغیر)

(۴) عَنْ نُوْفَلِ بْنِ مُعٰوِیَه رضی الله عنه اَنَّ النَّبِیَّ صلی الله علیه وسلم قَالَ مَنْ فَاتَتْهُ

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشادِ مبارک دے چه د چا یو مونځ قضا شو هغه داسے دے لکه چه د کور خلق او مال

صَلٰوۃٌ فَکَاَنَّمَا وُتِرَ اَھْلَهٗ وَمَالَهٗ۔ | دولت ټول ترے لوټ کړے شو۔

(رواہ ابن حبان فی صحیحہ کذا فی الترغیب زاد السیوطی فی الدر والنسائی ایضاً قلت ورواہ احمد فی مسندہ)

**فائده**:- د مونځ ضائع کول اکثر یا د بال بچ په وجه کیږی چه د هغوی په خیر خبر کښ مشغول وی یا د مال او دولت د ګټلو په لالچ کښ ضائع کیږی۔ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه د مونځ ضائع کول د نتیجے په اعتبار سره داسے دی لکه چه بال بچ او مال او دولت ټول ترے اوشوکولے شی او یواځے ولاړ پاتے شی۔ یعنی څومره نقصان چه په دے حالت کښ دے هغه هومره د مونځ پریخودو کښ دے۔ یا څومره غم درد چه په دے حالت کښ وی هغه هومره په مونځ پریخودو کښ پکار دے۔ که چا ته څوک معتبر سړے دا اُوائی او د هغه یقین راشی چه فلانئ لاره لوټلے شی او چه څوک د شپے په هغے لاړ ځی نو د اکوان یے قتلوی او مال ترے شوکوی۔ نو څوک بهادر دے چه په هغے لارے د شپے لاړ شی، شپه خو پریږده، د ورځے به هم په مشکله په هغے لاره ځی۔ مګر د الله تعالیٰ د رښتنی رسول صلی الله علیه وسلم دا پاک ارشاد یو دوه نه څو څو حدیثونو کښ راغلے دے۔ او مونږ مسلمانان د نبی علیه الصلوٰة د رښتنوالی دعوی په دروغژنو ژبو سره کوو مګر د دے پاک ارشاد په مونږ څومره اثر دے؟ هر چا ته معلومه ده۔

⑤ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم مَنْ جَمَعَ بَیْنَ صَلٰوتَیْنِ مِنْ غَیْرِ عُذْرٍ فَقَدْ اَتٰی بَابًا مِّنْ اَبْوَابِ الْکَبَائِرِ۔

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه څوک دوه مونځونه بغیر د څهٔ عذر نه په یو وخت کښ اُوکړی هغه د لویو ګناهونو د دروازونه یو دروازے ته اُورسیدهٔ۔

(رواہ الحاکم وقال حنش ہو ابن قیس ثقة وقال الحافظ بل واہ بمرة لا نعلم احدا وثقه غیر حصین بن نمیر کذا فی الترغیب زاد السیوطی فی الدر الترمذی ایضا وذکر فی اللآلی له شواہد وکذا فی التعقبات وقال الحدیث اخرجه الترمذی وقال حنش ضعیف ضعفه احمد وغیرہ والعمل علی ہذا عند اہل العلم فاشار بذلک الی ان الحدیث اعتضد بقول اہل العلم وقد صرح غیر واحد بان من دلیل صحة الحدیث قول اہل العلم به وان لم یکن له اسناد یعتمد علی مثله آہ)

**فائده**:- حضرت علی کرم الله وجهه فرمائی چه نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه په درے څیزونو کښ تاخیر مهٔ کوئ۔ یو مونځ کله چه د دے وخت اُوشی۔ دویم

جنازه کله چه تیاره شي. دریم بې نکاح زنانه کله چه د هغې د جوړ خاوند ملاؤ شي (یعنې زر یې نکاح کوئ) ډیر خلق چه خپل ځان دیندار هم ګڼړي او ګویا د مونځ پابند هم ګڼړلے شي. هغوی ځو ځو مونځونه په معمولي بهانے سره کړ سفروي که د دوکان وي که د ملازمت وي، کور ته چه راشي یو ځائي یې اُوکړي. دا ګناهِ کبیره ده چه بغیر د څه عُذره، ناروغتیا وغیره مونځ په خپل وخت کښ اُونه کړے شي. ګویا یعنې د مونځ نه کولو ګناه نه وي خو د بے وخته کولو هم سخته ګناه ده. د دے نه یې خلاصے اُونه شو.

(۶) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ ذَكَرَ الصَّلٰوةَ يَوْمًا فَقَالَ مَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا كَانَتْ لَهُ نُوْرًا وَّبُرْهَانًا وَّنَجَاةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ وَمَنْ لَّمْ يُحَافِظْ عَلَيْهَا لَمْ يَكُنْ لَّهُ نُوْرٌ وَّلَا بُرْهَانٌ وَّلَا نَجَاةٌ وَّكَانَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مَعَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَاُبَيِّ ابْنِ خَلَفٍ. (اخرجه احمد وابن حبان والطبراني كذا في الدر المنثور للسيوطي وقال الهيثمي رواه احمد والطبراني في الكبير والاوسط ورجال احمد ثقات وقال ابن حجر في الزواجر اخرجه احمد بسند جيد وزاد فيه قارون ايضا مع فرعون وغيره وكذا زاده في منتخب الكنز برواية ابن نصر والمشكوٰة ايضا برواية احمد والدارمي والبيهقي في الشعب وابن القيم في كتاب الصلوٰة)

یو واره نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د مونځ ذکر اُوکړو او ارشاد یې اُوفرمایه چه څوک د مونځ حفاظت کوي نو مونځ به د ده د پاره د قیامت په ورځ نُور یعنې رَڼړا وي او د حساب پیش کیدو په وخت کښ حجت یعنې دلیل وي او د خلاصے سبب وي او څوک چه د مونځ حفاظت نه کوي د ده د پاره به د قیامت په ورځ نه نُور وي او نه به د ده سره څه حجت وي او نه د خلاصے څه ذریعه. د ده حشر به فرعون، هامان او اُبَيّ بن خلف سره وي.

**فائده:** فرعون خو هر څوک پیژني چه څومره غټ کافر وو. تر دے چه د خُدائي دعوی یې کړے وه. او هامان د هغه د وزیر نوم دے. او اُبَيّ بن خلف د مکے په مشرکانو کښ د اسلام یو ډیر سخت دُشمن وو. د هجرت نه وړاندے به یې نبی کرم صلی الله علیه وسلم ته ویل چه ما یو آس ساتلے دے. په هغه ډیر څه خوروم، په هغه به سور یږم (نعوذ بالله) تا به قتلوم. نبی علیه الصلوٰة والسلام یو واره د ده ته اُوفرمایل

چه اِنْ شَاءَاللهُ څهٔ به تا قتلوم - د اُحد په جنګ کښ هغهٔ د نبی ﷺ تلاش
کولو او دا به یې ویل کهٔ چرې هغه نن مانه بچ شو نو ځما خیر نشته. نو د حملې په
اراده نبی ﷺ ته نزدې ورورسیدهٔ - اصحابو کرامو اراده اُوکړه چه د لرې نه
یې ختم کړی. نبی ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه راپرېږدئ. کله چه هغه ورنزدې
شو. نو نبی ﷺ دیو صحابی د لاس نه نیزه واخسته او ګذار یې پرې اُوکړهٔ چه
په سټ اُولګیدهٔ او سټ یې لږ غوندې اُوګریدهٔ - او د دې په وجه د آس نه
اُرغړیدلے پریوتهٔ - او په تیښته خپل لښکرته اُورسیدو - او چغې به یې وهلے چه
په اَللهٔ م دِ قسم وی څهٔ مُحمّدٌ اُووژلم - کافرانو ورته تسلے ورکړه چه
معمولی شان ګرید لګیدلے هیڅ د فکر خبره نهٔ ده - خو دهٔ به ویل چه مُحمّدٌ
مانه په مکه کښ ویلی وُو چه څهٔ به تا قتلوم - په الله قسم کهٔ چرې هغهٔ په ما
باندې توکلے قدرې هم وې نو ځهٔ به مړ وې - لیکن چه د دهٔ د چغو اواز
دا سې شوې وو ځنګه چه د غواګانې وی - ابوسفیان چه په دې جنګ کښ ډیر
په جوش و خروش کښ وو، هغهٔ ته شرم ورکړو چه د لږ غوندې
ګریدونه د ومره چغې وهې - دهٔ اُووې - تا ته پته څهٔ شته چه چا وهلے یم؟ دا
د مُحمّدٌ ګذار دے - مانه د دې نه چه څومره قدرې تکلیف کیږی، په "لات
او عُزّیٰ" (د دوهٔ و مشهور و بُتا نو نومونه دی) م دِ قسم وی کهٔ چرې دا تکلیف
په ټول حجاز والو تقسیم کړې شی نو ټول به هلاک شی - مُحمّدٌ مانه په مکه
کښ ویلی وُو چه څهٔ به تا وژنم - څهٔ هغه وخت پوهه شوې وُم چه څهٔ به د دهٔ
د لاسه ضرور مرم - څهٔ د دهٔ نه خلاصیدلے نهٔ شم - کهٔ چرې هغهٔ د دې وینا نه پس
په ما توکلے قدرې هم وې نو ځهٔ به د هغې نه هم مړ شوې وې - مکے مکرمے ته
رسیدلو نه یوه ورځ وړاندې په لاره کښ مړ شو - (خمیس)
مونږ مُسلمانانو دپاره ډیر د غیرت او د عبرت مقام دے چه یو کافر یو ځ
کافر او سخت دُشمن ته خو د نبی ﷺ د اِرشاد رښتنی کید و دومره قدرې
یقین وی چه هغهٔ ته خپل مرګ کښ لږ هم شک نهٔ وو - خو مونږ خلق سره د دې
چه نبی ﷺ نبی منو، سره د دې چه نبی ﷺ رښتنی منو، سره د دې چه نبی ﷺ

ارشادا تو ته یقینی وایو، سره ددے چه نبی ﷺ سره د محبت دعویٰ کوُو، سره ددے چه د نبی ﷺ په اُمت کښ د کیدو فخر کوُو، په څومره ارشاداتو عمل کوُو. او په کومو خیزونو کښ چه نبی ﷺ عذاب خودلے دے د هغے نه څومره ویریږو، څومره رپیږو. دا د هریو کس په خپل گریوان کښ د کتلو خبره ده. بل څوك د چا متعلق څهٔ ویلے شی.

ابنِ حجر رحمۃ اللہ علیہ په کتابُ الزّواجر کښ د قارون هُم د فرعون وغیره سره ذکر کړے دے او لیکلی یے دی چه هغوی سره د حشر کیدو وجه دا ده چه اکثر په دغے وجهو سره مانځه کښ سُستی کیږی کوم چه په دغے خلقو کښ مُوندے شی. پس کهٔ چرے د دے وجه د مال و دولت ډیروالے وی نو قارون سره به یے حشر کیږی. او کهٔ چرے حکومت او سلطنت وی نو فرعون سره او کهٔ وزارت (یعنی ملازمت یا درباری کیدل) دی نو هامان سره. او کهٔ تجارت وی نو اُبَیّ بن خلف سره. او کله چه دے خلقو سره دهٔ حشر اُوشو نو بیا کوم قِسمه عذابونه چه په حدیثونو کښ راغلی دی اگر کهٔ حدیثونه مُتَکَلَّم فِیْه دی (یعنی پکښ عالمانو بحثونه کړے دی) خو دے کښ هیڅ شك نشته چه د دوزخ عذاب د سختونه سخت دے. البته دا ضروری ده چه دِ دے به وُرځونه یو وُرځ د خپل ایمان په وجه د دغے عذاب نه خلاص شی او هغه نور خلق به همیشه د پاره په دوزخ کښ پاتے شی. خو تر خلاصیدو پورے زمانه ولے څهٔ لوبے توقے دی. نهٔ ده معلومه چه څومره په زرګونو کالونه به وی.

⑦ قَالَ بَعْضُهُمْ وَرَدَ فِي الْحَدِيْثِ اَنَّ مَنْ حَافَظَ عَلَى الصَّلٰوةِ اَكْرَمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى بِخَمْسِ خِصَالٍ يَرْفَعُ عَنْهُ ضِيْقَ الْعَيْشِ وَعَذَابَ الْقَبْرِ وَيُعْطِيْهِ اللّٰهُ كِتَابَهٗ بِيَمِيْنِهٖ وَيَمُرُّ عَلَى الصِّرَاطِ كَالْبَرْقِ وَيَدْخُلُ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ

په یو حدیث کښ راغلی دی چه څوك د مونځ اهتمام کوی الله جل شانهٔ په پنځهٔ قِسمه د هغهٔ اِعزاز او اکرام فرمائی. یو دا چه د هغهٔ نه به د رزق تنګسیا لرے کړے شی. دویم دا چه د هغهٔ نه به د قبر عذاب لرے کړے شی. دریم دا چه قیامت کښ به عمل نامه په ښی لاس کښ ورکړے شی (چه د هغے حال په سورة الحاقة

حِسَابٍ وَمَنْ تَهَاوَنَ عَنِ
الصَّلٰوةِ عَاقَبَهُ اللهُ بِخَمْسَ
عَشْرَةَ عُقُوْبَةً خَمْسَةٌ فِي
الدُّنْيَا وَثَلٰثَةٌ عِنْدَ الْمَوْتِ وَ
ثَلٰثٌ فِيْ قَبْرِهٖ وَثَلٰثٌ عِنْدَ خُرُوْجِهٖ
مِنَ الْقَبْرِ فَاَمَّا اللَّوَاتِيْ فِي
الدُّنْيَا فَالْاُوْلٰى تُنْزَعُ الْبَرَكَةُ
مِنْ عُمُرِهٖ وَالثَّانِيَةُ تُمْحٰى
سِيْمَا الصّٰلِحِيْنَ مِنْ وَّجْهِهٖ
وَالثَّالِثَةُ كُلُّ عَمَلٍ يَعْمَلُهٗ لَا
يَاْجُرُهُ اللهُ عَلَيْهِ وَالرَّابِعَةُ
لَا يُرْفَعُ لَهٗ دُعَاءٌ اِلَى السَّمَاءِ
وَالْخَامِسَةُ لَيْسَ لَهٗ حَقٌّ فِيْ
دُعَاءِ الصّٰلِحِيْنَ وَاَمَّا الَّتِيْ
تُصِيْبُهٗ عِنْدَ الْمَوْتِ فَاِنَّهٗ
يَمُوْتُ ذَلِيْلًا وَالثَّانِيَةُ يَمُوْتُ
جُوْعًا وَالثَّالِثَةُ يَمُوْتُ عَطْشَانًا
وَلَوْ سُقِيَ بِحَارَ الدُّنْيَا مَارُوِيَ
مِنْ عَطْشِهٖ وَاَمَّا الَّتِيْ تُصِيْبُهٗ
فِيْ قَبْرِهٖ فَالْاُوْلٰى يَضِيْقُ عَلَيْهِ
الْقَبْرُ حَتّٰى تَخْتَلِفَ اَضْلَاعُهٗ
وَالثَّانِيَةُ يُوْقَدُ عَلَيْهِ الْقَبْرُ
نَارًا فَيَتَقَلَّبُ عَلَى الْجَمْرِ لَيْلًا
وَّنَهَارًا وَالثَّالِثَةُ يُسَلَّطُ عَلَيْهِ
فِيْ قَبْرِهٖ ثُعْبَانٌ اِسْمُهُ الشُّجَاعُ

کښې په تفصیل سره ذکر شوے دے چه کومو
خلقو ته عملنامے په ښی لاس کښې ورکړے
شی هغوی به خوشحاله تروتازه ګرزی هرچا
ته به ښائی - ۱ و څلورم داچه پُلِ صراط
باندے به دِبجلیٔ په شان زر تیر شی پنځم
داچه جنت ته به بے حسابه داخل شی - او
چه څوک په مانځه کښې سُستی کوی هغهٔ ته
به په پنځلس طریقو عذاب ورکیږی - پنځهٔ
قسمه دُنیا کښې، او درے قسمه دمرګ په وخت
کښې، او درے قسمه په قبر کښې او درے قسمه
د قبرنه د وتلو نه پس - دَ دُنیا پنځه خو دا دی
اوّل داچه دهغهٔ په ژوند کښې به برکت
پاتے نشی - دوئیم داچه د صالحانو رنړا به دَ
هغهٔ د مخ نه لرے کړے شی - دریم داچه دَ
هغهٔ د نیکو کارونو ثواب به لرے کړے شی -
څلورم د هغهٔ دُعا ګانے به نهٔ قبلیږی. پنځم
داچه د نیکو بندګانو په دُعا ګانو کښې به د هغهٔ
حق پاتے نشی - او د مرګ په وخت کښې درے
عذابونه دا دی - اوّل داچه ذلیل به مری
دوئیم اوږے به مری - دریم داچه په سخته
تنده کښې به ورله مرګ راځی - که سمندر
هُم اوڅکی نو تنده به یے ماته نهٔ شی - د قبر
درے عذابونه دا دی - اوّل به په هغهٔ باندِ
قبر دومره تنګ کړے شی چه پوښتۍ به
یے یو بل کښې ننوزی - دوئیم په قبر کښې به

الأقرع عيناه من نار و أظفاره
من حديد طول كل ظفر
مسيرة يوم يكلم الميت
فيقول أنا الشجاع الأقرع و
صوته مثل الرعد القاصف
يقول أمرني ربي أن أضربك
على تضييع صلوة الظهر إلى
العصر و أضربك على تضييع
صلوة العصر إلى المغرب و
أضربك على تضييع صلوة المغرب
إلى العشاء و أضربك على
تضييع صلوة العشاء إلى
الفجر فكلما ضربه ضربة
يغوص في الأرض سبعين
ذراعا فلا يزال في القبر
معذبا إلى يوم القيمة وأما
التي تصيبه عند خروجه
من القبر في موقف القيمة
فشدة الحساب وسخط الرب
ودخول النار وفي رواية
فإنه يأتي يوم القيمة وعلى
وجهه ثلثة أسطر مكتوبات
السطر الأول يا مضيع حق
الله السطر الثاني يا مخصوصا
بغضب الله الثالث كما

ورته اوربل کړے شي. دريم قبر کښ به يو
مار په هغهٔ دداسے شکل مقرر کړے شي چه
دهغهٔ سترگے به د اور وي او نوکونه دا سپنے
دومره اوږده به وي که پوره يوه ورځ مزل
اوکړے شي نو ايله به اخره پورے اورسي.
دهغهٔ اواز به دبجلئ دگرز په شان وي. هغه
به داوائي چه څما رب څهٔ په تا باندے مقرر
کړے يم چه دسحر مونځ ضائع کولو په وجه
ترنمر ختو پورے د وهم. او دماسپخين مونځ
ضائع کولو په وجه ترمازيگره پورے د وهم.
او بيا د مازيگر مونځ ضائع کولو په وجه ترنمر
پريوتو پورے د وهم او دماښام مونځ په وجه
دماسخوتنه پورے او دماسخوتن مونځ په وجه
ترسحره پورے د وهم. کله چه هغه يو وارے
د ے اووهي نو دهغے په وجه به دغه مړے
اويا لاسه په زمکه کښ ننوزي. دغسے به قيامت
پورے د ته عذاب ورکيږي. او دقبر نه د
وتلو نه پس درے عذابونه دادي. يو به حساب
ورسره په سختئ کيږي. دوئم به الله جل شانهٔ
په هغهٔ غصه وي. دريم به دوزخ کښ داخل
کړے شي. داټول تعداد څوارلس شو ممکنه
ده چه پنځلسم په هيره سره پاتے شوی او په
يو روايت کښ داهم دي چه دهغهٔ په مخ به
درے کرښے ليکلے شوے وي. اوله کرښه. اے
دالله تعالیٰ حق ضائع کونکيه! دويمه کرښه

ضَيَّعْتَ فِي الدُّنْيَا حَقَّ اللّٰهِ فَأَيِسَ الْيَوْمَ أَنْتَ مِنْ رَحْمَةِ اللّٰهِ. (وما ذكر في هذا الحديث من تفصيل العدد لا يطابق جملة الخمس عشرة لان

اے د الله تعالیٰ په غُصے سره مخصوصه دریمه کربنه. څنګه چه تا په دُنیا کښ د الله تعالیٰ حق ضائع کړو. نن ته د الله تعالیٰ د رحمت نه نا اُمیده یې.

المفصل اربع عشرة فقط فلعل الراوي نسي الخامس عشر كذا في الزواجر لابن حجر المكي قلت وهو كذلك فان ابا الليث السمرقندي ذكر الحديث في قرة العيون فجعل ستة في الدنيا فقال الخامسة تمقت الخلائق في الدار الدنيا والسادس ليس له حظ في دعاء الصالحين ثم ذكر الحديث بتمامه ولم يعزه احد وفي تنبيه الغافلين للشيخ نصر بن محمد بن ابراهيم السمرقندي يقال من داوم على الصلوات الخمس في الجماعة اعطاه الله خمس خصال ومن تهاونها في الجماعة عاقبه الله باثني عشر خصلة ثلثة في الدنيا وثلثة عند الموت وثلثة في القبر وثلثة يوم القيمة ثم ذكر نحوها ثم قال وروي عن ابي ذر عن النبي صلى الله عليه وسلم نحو هذا وذكر السيوطي في ذيل اللآلي بعدما خرج بمعناه من تخريج ابن النجار في تاريخ بغداد بسنده الى ابي هريرة قال في الميزان هذا الحديث باطل ركبه محمد بن علي بن عباس على ابي بكر بن زياد النيسابوري قلت لكن ذكر الحافظ في المنبهات عن ابي هريرة مرفوعا الصلوة عماد الدين وفيها عشر خصال الحديث ذكرته في الهندية وذكر الغزالي في دقائق الاخبار نحو هذا اتم منه وقال من حافظ عليها اكرمه الله بخمس عشرة الخ مفصلاً.)

**فائده:** اګرچه د احدیث شریف پوره د حدیث په عامو کتابونو کښ ما اُونه موندهٔ خو په دے کښ چه څومره قِسمه عذابونه او ثواب ذکر کړے شوے دے، د هغے ډیره مرسته د ډیرو روایتونو نه کیږی چه په هغې کښ بعضے د مخکښې تیر شوی دی او بعضے رُوستو راروان دی۔ او په رُومبی روایت کښ خو د بے لمانځه د اسلام نه د وتلو هم ذکر دے. نو بیا چه څومره قدرے عذاب وی، الړ دے. البته دا ضروری ده چه دا کوم څهٔ ذکر کړے شوی دی یا مخکښې راځی هغه ټول د دے کار سزا ده. او د دے سزا لائق کیدونه پس او د دے دفعے فرد جُرم سره ارشاد الٰهی إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَاءُ "چه الله تعالیٰ خو د شِرک معافی نهٔ کوی. د دے نه علاوه چه چا ته یې خوښه شی مُعاف به یې کړی". په دے ایتِ شریفه کښ او د دے قِسمه نورو ایتونو او حدیثونو په بُنیاد که چرے معافی اُوکړی نو خوش قِسمته دی۔

حدیثونو کښ راغلی دی چه قیامت کښ به درے عدالتونه وی. یو دَ کفر او داسلام چه په دے کښ به یعنی بخښنه نهٔ وی. دویم دَ حُقُوقُ الْعِبَاد (دَ بندګانو دحقوقو) په دے کښ به حقدار ته ضرور حق ورکولے شی. دَ الله تعالیٰ خوښه ده چه دهغه چانه یے واخلی چه دچا په ذمه وی یا دهغهٔ معاف کوَل اَوغواړی نو دخپل طرفه به ورکړی. دریم عدالت دحُقُوقُ الله، دالله تعالیٰ دخپلو حقُونو دے. په دے کښ به دبخښش دروازے پرانستلے شی. په دے وجه داپوهیدل ضروری دی چه دخپلو عملونو سزا ګلنے خود ادی کوم چه حدیثونو کښ راغلی دی خود شهنشاه رَحم ددے نه اُوچت دے. دے نه علاوه نورهم بعضے قِسمه عذابونه او ثوابونه حدیثونو کښ راغلی دی.

دبُخاری شریف په یو حدیث کښ دی چه دنبی اکرم ﷺ معمول وو چه دسحر مانځه نه پس به یے داصحابو کرامو نه پوښتنه کوله چه چا څهٔ خوب لیدلے دے؟ کهٔ چا به لیدلے وَو نو بیان به یے کړو. نبی علیه السلام به دهغے تعبیر او معنیٰ ارشاد اُوفرمایله. یو وارے نبی علیه السلام دمعمول مُطابق پوښتنه اُوکړه. دے نه پس یے ارشاد اُوفرمایهٔ چه ما یو خوب لیدلے دے چه دوه کسان راغلل او څهٔ یے ځان سره بوتلم. دے نه پس یے ډیر اوږد خوب بیان کړو چه په هغے کښ یے جنت دوزخ او په هغے کښ مختلف قِسمه عذابونو کښ خلق اُولیدل. د هغے تولو نه یے په هغے کښ یو کس اُولیدهٔ چه دهغهٔ سر په کاڼړی چیخنړی کولے شو او په دومره زور سره به یے په کاڼړی ویشتو چه هغه کاڼړے به ارغړیدلے لرے پریوتهٔ. په دومره وخت کښ چه هغه کاڼړے به یے راأوچت کړهٔ نو سَر به یے بیا هغسے دړومبی په شان روغ شو. نو دویم وارے به په زوره به په کاڼړی اُووهلے شو. دغسے به هغهٔ سره دا معامله کیدله. نبی علیه السلام دخپلو دواړو ملګرو نه تپوس اُوکړو چه دا څوک دے؟ نو هغوی ورته اُووے چه دے کس قرآن شریف ویلے وو او هغه یے پریخے وو، او فرض مونځ به یے پریخوده اُوده به شو. یو بل حدیث کښ ددے قِسمه یوه بله قِصه ده چه په هغے کښ دی چه نبی علیه السلام یوے ډلے سره دا مُعامله اُولیدله نو حضرت جبرئیل علیه السلام

نه یې پوښتنه اُوکړه۔ هغهٔ ورته اُوویل چه داهغه خلق دی چه په مانځه کښې په یې سُستي کوله۔ (ترغیب)

مُجاهِد رحمته الله علیه فرمائی چه کوم خلق دمونځونو دوختونو معلومولو خیال ساتي په هغوی کښې به داسې برکت وی څنګه چه په ابراهیم علیه السلام اودهغهٔ په اولاد کښې وُو۔ (درمنثور)

حضرت اَنَس رضی الله عنه دنبی کرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه څوک دُنیانه په داسې حالت کښې لاړ وچه په اخلاص سره ایمان لری۔ عبادت کوی، مونځ کوی، زکوٰۃ اداکوی نوهغه به په داسې حالت کښې دُنیانه رُخصتیږی چه الله جل شانهٔ به ددهٔ نه راضی وی۔ (درمنثور)

حضرت اَنَس رضی الله عنه دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه دالله جل شانهٔ دارشادنقل کوی چه څهٔ یوځائی ته دعذاب لیږلو اراده اُوکړم خوهلته داسې خلق اُووینم چه جماتونه آبادوی۔ دالله تعالیٰ درضادپاره خپل مینځ کښې محبت ساتی، په آخره شپه کښې استغفارکوی (یعنی دالله تعالیٰ نه بخښنه غواړی) نوعذاب بندکرم۔ (درمنثور)

حضرت اَبُوالدَّرْدَاء رضی الله عنه حضرت سلمان رضی الله عنه ته یوخط اُولیکهٔ۔ په هغې کښې ورته اُولیکل چه په جمات کښې اکثروخت تیروه۔ ما دنبی علیه الصلوٰۃ والسلام نه اَوریدلی دی چه جمات دمتقی کوردې اوالله جل شانهٔ ددې وعده کړې ده چه څوک په جمات کښې ډیراُوسی په هغهٔ به رحم کوم اوهغهٔ ته به آرام ورکوم اوپه قیامت کښې به دپل صراط لاره ورته آسانه کرم اوخپله رضابه ورنصیب کرم۔

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه جماتونه دالله تعالیٰ کورونه دی۔ اوکورته دراتلونکو اکرام کولے شی نوپه الله تعالیٰ باندې ددوی اکرام ضروری دې څوک چه په جماتونو کښې حاضریږی۔

حضرت اَبُوسَعِید خُدری رضی الله عنه دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه څوک دَ جمات سره محبت ساتی الله جل شانهٔ هغهٔ سره محبت ساتی۔

حضرت ابوهریره رضی الله عنه دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه کله مړے په قبر کښې کیښودلے شی نوکوم خلق چه قبرپورې ورسره تلی وُو، هغوی لاواپس

شوی نهٔ وی چه فرشتے دهغهٔ د امتحان دپاره راشی. دغه وخت کهٔ چرے هغه مومن وی، نو مونځ دهغهٔ سرته نزدے شی او زکوٰة بنی طرف ته او روژه گس طرف ته، او باقی خو مره دنیکئ کارونه وی هغه خپو طرف ته شی او کهٔ هر طرفه د دهٔ نه چاپیره شی چه هغهٔ ته نزدے څوك نشی وررسیدے. فرشتے لرے اُودریږی او سوال ترے کوی. (درمنثور)

یو صحابی رضی الله عنه ارشاد فرمائی چه کله به دنبی کرم صلی الله علیه وسلم په کوروالو دخرچ څهٔ تنگسیا وه نو نبی علیه السلام به ورته دمانځه حکم کولو او دا آیت به یے تلاوت فرمایهٔ. وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا، لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا، نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى (سورة طٰه) "خپل کوروالو ته دمانځه حکم کوئ او پخپله هم ددے اهتمام کوئ. مونږ له تا نه روزی (کټل) نهٔ غواړو، روزی خو به مونږ تاته درکوو. او بهترین انجام خو د پرهیزګاری دے.

حضرت اسماء رضی الله عنها فرمائی ما دنبی صلی الله علیه وسلم نه واوریدل چه دقیامت په ورځ به ټول خلق یو ځائی کښ جمع وی او فرشته چه کوم آواز کوی ټول به یے آوری. هغه وخت به اعلان اُوشی کوم دی هغه خلق چه خوشحالئ او تکلیف کښ په هر حال کښ یے دالله تعالیٰ حمدُ (ثنا) کوله. دا چه واوری. یوه ډله به راپاسی او بے حسابه کتابه به جنت کښ داخله شی. بیا به اعلان اُوشی. کوم دی هغه خلق چه په شپو کښ به عبادت کښ مشغول اُوسیدل او دهغوی اړخونه به دبسترونه لرے وو. بیا به یوه ډله راپاسی او بے حسابه کتابه به جنت کښ داخله کړے شی. بیا به اعلان اُوشی کوم دی هغه خلق چه هغوی به تجارت اخستلو خرڅولو دَ الله تعالیٰ د ذکرنه نهٔ غافله کول. بیا به یوه ډله راپاسی او بے حسابه کتابه به جنت کښ داخله کړے شی. یو بل حدیث کښ هم دا قِصه راغلے ده په هغے کښ دا هم دی چه اعلان به اُوشی. نن به دمحشر خلق اُووینی چه کریم (سخیان) خلق څوك دی او اعلان به اُوشی کوم دی هغه خلق چه تجارتی مشغولتیا به هغوی دالله تعالیٰ د ذکر او دمانځه نه نهٔ منع کول. (درمنثور)

شیخ نصر سمرقندی رحمة الله علیه د کتاب، تَنْبِیهُ الْغَافِلِین کښې هم دا حدیث لیکلے دے د دے نه پس یې لیکلی دی چه کله دا حضرات بے حسابه بے کتابه خلاص شی نو دوزخ نه به یو اوږده غړانګه راښکاره شی او د خلقو د پاسه به راشی۔ په هغې کښې به دوه ځلیدونکے سترګے وی او ډیره فصیحه ژبه به یې وی یعنی صفا واضحه خبرے به کوی۔ هغه به وائی، څه په هر هغه چا باندے مقرریم چه غوک کبرژن بدمزاجه وی۔ او د مجمع نه به دغه خلق داسے راټول کړی لکه څنګه چه مارغه دانے راټولوی۔ دا ټول چه راغونډ کړی نو دوزخ کښې به یې اوغورزوی۔ د دے نه پس به بیا هغه شان دویم وارے راوُوزی او وائی به۔ اوس څه په هر هغه چا باندے مُقرریم چه چا الله تعالیٰ او د هغهٔ رَسُول صلی الله علیه وسلم ته تکلیف رسَوَلے وی۔ دغه خلق به هُم د مجمع نه راټول کړی او بوبه یې ځی۔ د دے نه پس به دریم وارے بیا راأوزی او دا وارے به تصویرونو والا راټول کړی او بوبه یې ځی۔ د دے نه پس چه کله د دے دریو واړو قسمونو خلق د مجمع نه خلاص شی نو حساب کتاب به شروع شی۔

وائی چه پخوا زمانه کښې به شیطان خلقو لیدهٔ۔ یو صاحب ورته اُووے چه څهٔ داسے طریقه راته اُوښایه چه څهٔ هم ستا په شان شم۔ شیطان اُوویل چه داسے غوښتنه خو ترننه پورے ما نه هیچا نهٔ دهٔ کړے۔ تا ته د دے څهٔ ضرورت پېښ شو۔ هغهٔ اُووے، څما زړهٔ غواړی۔ شیطان اُوویل د دے طریقه دا ده چه په مانځه کښې سُستی کوه او قَسَم خوړلو کښې هیڅ قسمه پرواه مهٔ کوه، دروغ ریښتیا هر رنګے قَسَمُونه خوره۔ هغهٔ صاحب اُووے چه څهٔ الله تعالیٰ سره وعده کوم چه هیڅ کله به مونځ پرے نښږدم۔ او هیڅ کله به قَسَم اُونهٔ خورم۔ شیطان اُوویل چه تا نه پرته ما نه په چل سره چا څهٔ نهٔ دی اخستلی۔ ما هُم نوط اُوکړو چه چا ته به هیڅ کله نصیحت نهٔ کوم۔

حضرت اُبَیْ رضی الله عنه وائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه د دے اُمت ته د اُوچتوالی او د عزت او د دین د ترقّیٔ زیرے ورکړه، خو چه څوک د دین څهٔ کار د دُنیا د پاره اُوکړی اخرت کښې د هغهٔ هیڅ حصه نشته (ترغیب)

یو حدیث کښې راغلی دی چه نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه ما د الله جل شانهٔ په بهترین حالت کښې زیارت اُوکړو. ما ته ارشاد اُوشو چه محمدﷺ! ملاءِ اعلیٰ والا یعنی فرښتے په څهٔ څیز کښې جهګړه کوی. ما عرض اوکړو، ما ته خو علم نشته. نو الله جل شانهٔ خپل لاس مبارك ځما په سینه باندے کیخودهٔ چه دهغې یخوالے دسینے د ننه پورے محسوس شو او دهغې په برکت سره ټول عالَم په ما باندے ښکاره شو. بیا یے ما ته ارشاد اُوفرمایهٔ. اُوس اُوښایه فرښتے په څهٔ څیز کښې جهګړه کوی. ما عرض اُوکړو، درجے اُوچتونکو څیزونو کښې. او په هغې څیزونو کښې چه ګُناهونو کفاره کیږی، او د جُمعے د ما نځه طرف ته چه کوم قدمونه اُوچتیږی دهغې په ثواب کښې او د یخنۍ په وخت او د س په ښهٔ شان سره دکولو فضیلتونو کښې او د یو مونځ نه پس بل مونځ په انتظار کښې د کیناستلو په فضیلت کښې. څوك چه د دے اهتمام کوی په بهترین حالت کښې به ژوند تیروی او په بهترین حالت کښې به مری.

په کثرو حدیثونو کښې راغلی دی چه الله جل شانهٔ ارشاد فرمائی، اے د آدم ځویه! ته د ورځ په شروع کښې ځما د پاره څلور رکعته مونځ کوه ځهٔ به ستا د ټولے ورځے کارونه جوړوم.

تنبیهُ الغافلین کښې یو حدیث لیکلے دے چه مونځ د الله تعالیٰ د رضا سبب دے. د فرښتو محبوب څیز دے. د انبیاء علیهم السلام سُنت دے. دے سره د الله تعالیٰ د پیژندګلو رڼا پیدا کیږی. دُعا پرے قبلیږی، په رزق کښې پرے برکت کیږی. دا د ایمان جرړه ده. د بدن راحت دے. د دُشمن خلاف وسله ده. د مونځ گذار د پاره سفارشی دے. قبر کښې ډیوه ده او د قبر په ویره کښې زړهٔ مشغولونکے دے. د منکر نکیر د سوال جواب دے او د قیامت په غرمو کښې سورے دے. او په تیارهٔ کښې رڼا ده. د دوزخ د اُور د پاره پرده ده. د عملونو د تلے د روندوالے دے. پُلِ صراط باندے په جلتۍ سره تیرونکے دے. د جنت کنجی ده.

حافظ ابن حجر رحمة الله علیه په مُنبهات کښې د حضرت عثمان غنی رضی الله عنه نه نقل کړے دے چه څوك د مونځ حفاظت کوی، د وختونو پابندئ سره د دے اهتمام

کوی۔ الله جل شانهٗ نهو خیزونو سره دهغهٔ اکرام فرمائی۔ اول داچه هغه خپل محبوب جوړوی۔ دویم ورته تندرستی ورکوی۔ دریم فرښتے دهغهٔ حفاظت کوی۔ څلورم دهغهٔ په کور کښې برکت اچوی۔ پنځم دهغهٔ په مخ کښې به دنیکانو رڼا ښکاریږی۔ شپږم دهغهٔ زړهٔ نرم کوی۔ اووم هغه به په پُلِ صراط باندے دبجلئ په شان تیر شی۔ اتم ددوزخ نه خلاصے ورکوی۔ نهم جنت کښې به ددا سے خلقو گاونډ ورته نصیب شی چه دهغوی په باره کښې لَاخَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ دالایة راغلے دے۔ یعنی قیامت کښې به نهٔ هغوی ته څهٔ ویره وی اونهٔ به دوی غمژن وی۔

دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه مونځ ددین ستن ده اوپه دے کښې لس صفتونه دی۔ دمخ رونق دے۔ دزړهٔ رڼا ده۔ دبدن دراحت او دتندرستئ سبب دے۔ قبر کښې اُنس یعنی مینه کونکے دے۔ دالله تعالیٰ درحمت نازلیدو ذریعه ده۔ دآسمان گنجی ده۔ دعملنامو دتلے وزن دے چه په دے سره به د نیکو عملونو چابرے درنیږی۔ دالله تعالیٰ درضا سبب دے۔ دجنت قیمت دے او ددوزخ نه پرده ده۔ چا چه دا (مونځ) قائم کړهٔ هغهٔ دین قائم اوساتهٔ اوچا چه دا پریخودهٔ خپل دین یے اوړنګولو۔ (مُنبهات ابن حجر)

یو حدیث کښې راغلی دی چه په کور کښې مونځ کول رڼا ده۔ په مونځ سره خپل کورونه روښانه کوی (جامع الصغیر) او دا خو مشهور حدیث دے چه زما اُمت به د قیامت په ورځ د اودس او دسجدے په وجه روښانه لاس خپو والا، روښانه مخو والا وی۔ په دے نښه به دنورو اُمتونو نه پیژندلے شی۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه کله دآسمان نه څهٔ بلا آفت نازلیږی نو دجماعت آبادونکو نه لرے کړلے شی۔ (جامع الصغیر)

په ګڼو حدیثونو کښې راغلی دی چه الله تعالیٰ په دوزخ باندے حرام کړی دی چه دسجدے نښے اُوسوزوی (یعنی که څوک دبدو عملونو په وجه هغه دوزخ کښې داخل هم شی نو دسجدے نښه چه په کوم ځائے وی په هغه ځائے به اور اثر نهٔ کوی) په یو حدیث کښې دی چه مونځ دشیطان مخ تورَوی او صدقه (خیرات) دهغهٔ ملا

ماتوی (ایضاً) یوځائ ارشاد دے چه مونځ شفا ده (ایضاً)

بل ځائ کښې دَدے متعلق یوه قصه نقل کړے ده چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه یو وارے پړمخے پروت وو. نبی علیه السلام ترے پوښتنه اُوکړه، ولے ګیډه کښې درد دے؟ عرض یے اُوکړو اَوجی. ورته یے اُوفرمایل. پاسه، مونځ اُوکړه په مانځه کښې شفا ده (ابن کثیر)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو وارے جنت په خوب کښې اُولیده نو د حضرت بلال رضی الله عنه د پښو د ښکلو آوازے واوریده. سحر ترے نبی علیه السلام تپوس اُوکړو چه ستا هغه خاص عمل څه دے چه د هغے په وجه سره جنت کښې هم ته (د دُنیا په شان) ما سره سره تلے. عرض یے اُوکړو چه شپه ورځ کښې کوم وخت چه څما اُودس مات شی نو اَودس کوم، د هغے نه پس د (تَحِيَّةُ الْوُضُوْءِ) مونځ څومره چه مقدَر زوی کومه. (فتح)

سَفِیرِیْ رحمة الله علیه ویلی دی چه د سحر مونځ پریخودونکی ته ملائکے وائی، اے فاجره! او د ماسپخین مونځ پریخودونکی ته اے خاسره! (نقصان والا) - او د مازیګر مونځ پریخودونکی ته عاصی - او د ماښام مونځ پریخودونکی ته کافره او د ماسخوتن مونځ پریخودونکی ته وائی اے مُضَیِّع (دالله تعالیٰ حق ضائع کوونکیه!) (غالیة المواعظ)

علامه شعرانی رحمة الله علیه فرمائی چه په دے خبره ځان پوهول پکار دی چه مُصیبت د هغه آبادئ نه لرے کولے شی چه د کوم ځائ خلق مونځګذار وی، ځکه چه په هر هغه آبادئ نازلیږی د کوم ځائ خلق چه بیلمانځه وی - دا ځایونو باندے د زلزلو راتلل، د آسمانی بجلئ غورزیدل، د مکانونو ځکیدل هیڅ هم لرے نه ده - او څوک د دا خیال نه کوی چه زۀ خو مونځګذار یم، څما د نورو سره څۀ کار دے؟ خو چه کله بلا نازلیږی نو عامه وی. حدیث شریف کښې راغلی دی چه چا سوال اُوکړو چه مونږ خلق په داسے حالت کښې هلاکیدے شو چه مونږ کښې نیکان موجود وی. نبی علیه السلام ارشاد اُوفرمایه او، کله چه خباثت غالب شی ځکه چه د ده په ذمه دا هم ضروری ده چه د خپل وَس موافق نورو ته د ښۀ خبرو حکم کړی او د بدو خبرو نه منع کوی (لواقح الانوار)

⑧ رُوِیَ اَنَّهٗ عَلَیْہِ السَّلَامُ قَالَ مَنْ تَرَكَ الصَّلٰوةَ حَتّٰی مَضٰی وَقْتُهَا ثُمَّ قَضٰی عُذِّبَ فِی النَّارِ حُقْبًا وَالْحُقْبُ ثَمَانُوْنَ سَنَةً وَالسَّنَةُ ثَلٰثُ مِائَةٍ وَّسِتُّوْنَ يَوْمًا كُلُّ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ اَلْفَ سَنَةٍ - (كذا فی المجالس الابرار قلت لم اجده فيما عندی من كتب

دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه نقل کړے شوے دی چه څوک مونځ قضا کړی اګرچه هغه بیا رستو اُوکړی - بیا هُم په خپل وخت نهٔ کولو په وجه سره به یو حُقب په دوزخ کښ سوزی - او د حُقب مقدار د اتیاؤ کالو دے - او یو کال د درے سوه شپیتهٔ ورځو - او د قیامت یوه ورځ به د زرو کالو برابره وی (په دے حساب سره دیو حُقب مقدار دوه کروړه اته اتیا لاکهه کاله شو)

الحديث الا ان مجالس الابرار مدحه شيخ مشائخنا الشاه عبدالعزيز الدهلوى ثم قال الراغب فی قوله تعالی لابثين فيها احقابا قيل جمع الحقب ای الدهر قيل والحقبة ثمانون عاما والصحيح ان الحقبة مدة من الزمان مبهمة واخرج ابن كثير فی تفسير قوله تعالی فويل للمصلين الذين هم عن صلوتهم ساهون عن ابن عباس ان فی جهنم لواديا تستعيذ جهنم من ذلك الوادی فی كل يوم اربعمائة مرة اعد ذلك الوادی للمرائين من امة محمد الحديث وذكر ابو الليث السمرقندی فی قرة العيون عن ابن عباس وهو مسكن من يؤخر الصلوة عن وقتها وعن سعد بن ابی وقاص مرفوعا الذين هم عن صلوتهم ساهون قال هم الذين يؤخرون الصلوة عن وقتها وصحح الحاكم والبيهقی وقفه واخرج الحاكم عبدالله فی قوله تعالی فسوف يلقون غيا قال واد فی جهنم بعيد القعر خبيث الطعم وقال صحيح الاسناد -)

**فائده:-** د حُقب معنیٰ په لُغت کښ د ډیرے زیاتے زمانے ده - ډیرو حدیثونو کښ د دے مقدار هُم دا راغلے دے کوم چه بره تیر شو - یعنی اتیا کاله - دُرِمنثور کښ د ګڼړو روایتونو نه هُم دغه مقدار نقل دے - حضرت علی رضی اللہ عنہ د هلال هجری رحمۃ اللہ علیہ نه پوښتنه اُوکړه چه د حُقب څهٔ مقدار دے؟ هغهٔ اُووے چه حُقب د اتیاؤ کالو وی - او هر یو کال د دولسو میاشتو، او هره میاشت د دیرشو ورځو، او هره ورځ د زرو کالو - حضرت عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ نه هُم په صحیح روایت سره اتیا کاله نقل دی - حضرت ابوهُریره رضی اللہ عنہ په خپله د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه هم دا نقل کړے دے چه یو حُقب د اتیاؤ کالو وی او یو کال د درے سوه شپیتهٔ ورځے، او یوه ورځ ستاسو د ورځو په حساب سره (یعنی د دُنیا موافق) د زرو

وَرځو برابره ده. هم دا مضمون حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه د نبي ﷺ نه
نقل کړے دے. د دے نه پس حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمائي، په دے
اُمید چه د ایمان په وجه به د دوزخ نه آخر خو اُوزو بے فکره کیدل نهٔ دي
پکار. د ومره کلونه یعني د وه کروړه اتهٔ اتیا لاکهه کاله سوزیدو نه پس به وتل
وي. هغه به هُم هله چه څهٔ بله گناه د زیاتو بیا تے کیدونهٔ وي. د دے نه علاوه
نور هُم څهٔ مقدار د دے نه کم و زیات حدیث کښ راغلے دے. او لیکن خو دا پوره تے
مقدار څو حدیثونو کښ راغلے دے. په دے وجه دا اَوَلنے صحیح دے. دوېم دا هم کیدے
شي چه د خلقو د حالت په اعتبار سره کمے زیاتے وي.

اَبُو اللَّیث سمرقندي رحمه الله قُرَّةُ الْعُیُون کښ د نبي اکرم ﷺ ارشاد نقل
کړے دے چه څوک یو فرض مونځ په قصد سره پریږدي د هغهٔ نوم د دوزخ په
دروازه اُولیکلے شي او د دهٔ ته په هغے کښ تلل ضروري دي. او د حضرت ابن عباس
رضی الله عنه نه یے نقل کړے دے چه یو ځل نبي ﷺ ارشاد اُوفرمایه، دا اُوایئ چه
اے الله! مونږ کښ څوک شقي (بد بخته) محروم مهٔ کړے. بیا یے اُوفرمایل پوهېږئ!
شقي محروم څوک دے؟ د صحابو رضی الله عنهم په تپوس یے ارشاد اُوفرمایه چه شقي
محروم د مونځ پریخودونکے دے. د دهٔ هیڅ حصه اسلام کښ نشته.

یو حدیث کښ دي چه قصداً بے عُذره مونځ پریخودونکي طرف ته به الله
جل شانه په قیامت کښ توجه نهٔ فرمائي او دردناک عذاب به ورته ورکولے
شي. یو حدیث نه یے نقل کړے دے چه لسو کسانو ته به خاص طور سره عذاب
کیږي. د هغے یو لونه مونځ پریخودونکے هم دے چه د دهٔ لاسونه به تړلے شوي
وي او فرښتے به یے په مخ او په شا وهي. جنت به ورته وائي چه ځما ستا هیڅ
تعلق نشته. نهٔ څهٔ ستا د پاره یم نهٔ ته ځما د پاره ئے دوزخ به ورته وائي چه راشه
ته ځما د پاره یے، څهٔ ستا د پاره یم. دا یے هُم نقل کړي دي چه په دوزخ کښ
یوه وادي (ځنګل) دے چه د هغے نوم لَمْلَم دے. په هغے کښ ماران دي چه د
اُوښ د سټ په برابرئ غټ دي او د هغے اُوږدوالے د یو میاشتے فاصلے برابر دے
په هغے کښ به بے لمانځه نو ته عذاب ورکولے شي.

یو بل حدیث کښې دی چه یو میدان دے چه دهغې نوم جُبُّ الحُزُن دے هغه دلرمانا نوکورے اوهر یو لرم دڅچرے برابر لوئ دے. هغه هم دبےلمانزانو دپیچلو دپاره دے البته که مولائے کریم معاف اُوکړی نوتپوس کُونکے څوك دے خو بيا څوك معافی غوختونکے هم وی کنه.

ابنِ حجر رحمة الله عليه (کتاب) زَوَاجِر کښې لیکلی دی چه یوه زنانه مړه شوے وه. دهغې رور په دفن کښې شریك وو. اتفاقاً دفن کولو کښې یوه تهیلئ قبر کښې پریوتله. هغه وخت یے خیال نهٔ شو. رُستو ورته یاده شوه نو پیر خفه شو. اراده یے اُوکړه چه په پته به قبر پرانزم او راوُبه یے باسم. قبر چه یے پرانستهٔ نو هغه د اُور دَلمبونه ډك وو. په ژړا مور له راغے او حال یے ورته بیان کړو. او تپوس یے ترے اُوکړو چه دا څه خبره ده؟ مور ورته اُوے چه هغې به په مانځه کښې سُستی کوله او قضا کوُوبه یے. اَعَاذَنَا اللهُ مِنْهَا.

⑨ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا سَهْمَ فِی الْاِسْلَامِ لِمَنْ لَّا صَلٰوةَ لَهٗ وَلَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَّا وُضُوْءَ لَـهٗ.

(اخرجه البزار واخرج الحاكم عن عائشة مرفوعا د يحمد ثلث احلف عليهن لا يجعل

دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دے چه اسلام کښې هیڅ حصه نشته دهغې کس چه څوك مونځ نهٔ کوی او بے اودسه مونځ نهٔ کیږی. بل حدیث کښې دی چه دین بے مونځه نشته. مونځ ددین دپاره داسے دے لکه څنګه چه دسری دبدن دَ پاره سر وی.

الله من له سهم فی الاسلام کمن لا سهم له وسهام الاسلام الصوم والصلوة والصدقة الحديث واخرج الطبرانی فی الاوسط عن ابن عمر مرفوعا لا دين لمن لا صلوة له انما موضع الصلوة من الدين كموضع الرأس من الجسد كذا فی الدر المنثور)

**فائده:** کوم خلق چه مونځ نهٔ کوی، او ځان ته مسلمان وائی یا د اسلامی غیرت اُو رډے اُو رډے دعوے کوی هغوی دِ دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په دے ارشاداتو لږ غور اُوکړی او دکوموبزرګانو دکامیابوته درسید لو خوبونه وینی، دهغوی د حالاتو دِهم تحقیق اُوکړی چه هغوی دین څومره په مضبوطیا سره نیولے وُو بیا به دُنیا دهغوی قدمونه ولے نهٔ ښکلول. دحضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه په سترګه کښې اُوبهٔ راغلے. خلقو ورته عرض اُوکړو چه ددے علاج خو کیدے شی.

خوخو ورځے به مونځ نه شئ کولے۔ وے فرمايل چه دا نشي کيدے ما د نبي علیہ الصلوٰۃ والسلام نه آوريدلي دي چه څوك مونځ نهٔ کوي هغه به الله جل شانهٔ ته په دا سے حالت کښ حاضريږي چه الله جل شانهٔ به په دهٔ ناراضه وي۔ په يو حديث کښ راغلي دي چه خلقو اُوے چه پنځه ورځے به په لرگي سجده کول وي۔ وے فرمايل چه يو رکعت به هم دا سے اُنهٔ کړم۔ تول عمر په ړوند والي صبر کول دے حضراتو ته دے نه آسانه وو چه مونځ پريږدي حال دا چه د دغه ړوند وجه په لرگي سجده جائز هم وه حضرت عمر رضی اللہ عنہ په آخري زمانه کښ کله چه په نيزه اُووهلے شو نو هر وخت به ترے وينه جاري وه او اکثر وختونو کښ به بيهوشه وو، تردے چه هم په دے بيهوشئ کښ وفات شو۔ خو د بيمارئ په دے ورځو کښ به چه کله دما غنه وخت شو نو بيدارولے به شو او د مونځ درخواست به ورته کولے شو هغهٔ به په دے حالت کښ مونځ اداکولو او دا به يے فرمايل چه اَوْ! اَوْ! ضرور- څوك چه مونځ نهٔ کوي اسلام کښ د هغهٔ هيڅ حصه نشته۔ مونږ د مريض خيرخواهي او راحت په دے کښ گڼړو چه هغهٔ ته د مونځ تکليف ورنهٔ کړو، رُستو به فِديه ورکړو۔ او د دے حضراتو په نزد خيرخواهي دا وه چه کوم عبادت هم څرنگے کولے شي اِيله يے اُونهٔ کړے شي۔ ؎

*ببيں تفاوتِ رہ از کجا است تا بہ کجا*

"اُوگوره فرق د لارے د کوم ځائ نه تر کومے پورے دے"

حضرت علي رضی اللہ عنہ يو ځلے د نبي کريم صلی اللہ علیہ وسلم نه يو خادم اُوغوښتلو چه په کاروبار کښ مدد اُوکړي۔ نبي علیہ الصلوٰۃ والسلام اُوفرمايل چه دا درے غلامان دي۔ کوم چه دِ خوښ وي واخله۔ هغوي عرض اُوکړهٔ تاسو راله خوښ کړئ۔ نبي علیہ الصلوٰۃ والسلام ديو کَس متعلق اُوفرمايل چه دا واخله۔ خو دا مونځگذار دے، وهه يے مهٔ۔ مونږ د مونځگذارو وهلو نه منع کړے شوي يو۔ د دے قِسمه واقعه يو بل صحابي اَبُوالهَيثَم رضی اللہ عنہ سره هم شوے وه۔ دوي هم د نبي علیہ الصلوٰۃ والسلام نه غُلام غوښتے وو۔ د دے مقابله کښ زمونږ نوکرکهٔ مونځگذار شي نو مونږ هغه ملامته کوو او د دنيا يو هئ نه د هغهٔ په مانځه کښ ځِل نقصان گڼړو۔

حضرت سُفیان ثوری رحمۃ اللہ علیہ باندے یو وارے د حال غلبه اُوشوه نو اُوږد وخو پورے کور کښ وو، نه یے څه خوړل نه یے څکل، نۀ اُوده کیده. شیخ ته د دے خبر ورکړے شو. پوښتنه یے اُوکړه چه د مونځ وختونه یے محفوظ دی؟ (یعنی د مانځه د وختونو خو ورته اهتمام وی) خلقو عرض اُوکړو چه د مانځه وختونه یے بے شکه محفوظ دی. ورے فرمایل، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ لَمْ یَجْعَلِ الشَّیْطٰنِ عَلَیْهِ سَبِیْلًا (ټول تعریفونه هغه الله تعالیٰ دپاره دی چه شیطان یے په هغۀ باندے غالب کولو ته پرے نښودهٔ. (بهجة النفوس)

# دویم باب

## د جماعت (یعنی د جمع د مونځ) په بیان کښ

څنګه چه د رسالے په شروع کښ لیکلے شوی دی چه ډیر حضرات مونځ کوی خو د جمع اهتمام نۀ کوی. حال دا چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه څنګه چه د مانځه باره کښ سخت تاکید راغلے دے د غسے د جمع په باره کښ هم ډیر تاکیدونه راغلی دی. په دے باب کښ هم دوه فصله دی.

اول فصل ——— د جمع په فضائلو کښ.

دویم فصل ——— د جمع پرېښودو په سزاګانو کښ

## اول فصل ——— د جمع په فضائلو کښ

① عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ صَلٰوةُ الْجَمَاعَةِ اَفْضَلُ مِنْ صَلٰوةِ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَّعِشْرِیْنَ دَرَجَةً

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارك دے چه د جمع مونځ د خان له مونځ نه اُووِیشت درجے زیات تیر دی.

(رواه مالك والبخاری ومسلم والترمذی والنسائی كذا فی الترغیب)

**فائده:-** هرکله چه سړے مونځ کوی او د ثواب په نیت یے کوی نو معمولی غوندے خبره ده چه په کور کښې دِ نهٔ کوی جماعت ته دِ لاړ شی د جمع سره دِ اوکړی چه نهٔ په کښې څهٔ مشقت شته او نهٔ تکلیف او دومره لوئ ثواب پرے حاصلیږی. څوك به داسے وی چاته چیرے روپئ اُویشت یا اتهٔ ویشت روپئ ملاویږی او هغه دا پریږدی. خو دین په خیز و نو کښې دومره لوئ فائدے نه هم بے توجهی کوُلے شی. د دے وجه د دے نه سواڅهٔ کیدے شی چه مونږ خلقو سره د دین پرواه نشته. د دے فائده څمونږ خلقو په نظر کښې اَهَمَ فائده نهٔ ښکاری. د دُنیا تجارت چه په هغے کښې یوه آنه دوه آنے په روپئ کښې نفع وی، هغې پسے تو له ورځ سرگردانه گرزو، د آخرت تجارت چه په کښې اُویشت چنده نفع ده هغه څمونږ د پاره مُصیبت دے. د جمع د ما نځهٔ د پاره په تلو کښې د دُوکان نقصان گنڑلے شی، د گنڑتے هم نقصان خودلے شی. د دُوکان بندیدلو خطره هُم ویلے شی. خو کومو خلقو په نزد چه د الله جل شانهٔ عظمت دے، د الله تعالیٰ په وعدو هغوی ته تسلی ده، د هغهٔ د اَجر و ثواب څهٔ قیمت دے. نو د هغوی په نزد دا عبث عُذر هیڅ هم حیثیت نهٔ لری. هم د داسے خلقو الله جل شانهٔ په قرآن پاك کښې تعریف فرمایلے دے. رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ الآیة د دریم باب په شروع کښې پوره آیت سره د ترجمے موجود دے. او د اصحابو رضی الله عنهم اجمعین چه کوم عادت د اذان نه پس د خپل تجارت سره وو هغه د حکایاتِ صحابه په پنځم باب (اتمه قصه) کښې مختصر طور تیر شوے دے.

سالم حدّاد رحمة الله علیه یو بزرگ وو، تجارت یے کوُلو. کله چه به یے اذان واوریدلو نو رنگ به یے بدل شو، تك زیړ به شو. بے قراره به شو. دوکان به یے پرانستلے پریخودو، پا به سید شو او دا اشعار به یے ویل.

إِذَا مَا دَعَا دَاعِيكُمُ قُمْتُ مُسْرِعًا مُجِيبًا لِمَوْلَى جَلَّ لَيْسَ لَهُ مِثْلُ

کله چه ستا مؤذّن د بلنے د پاره اُودریږی نو څهٔ زر اُودریږم د داسے مالك بلنے قبلولو د پاره چه د هغهٔ لوئے شان دے د هغهٔ څوك مِثل نشته.

أُجِيبُ إِذَا نَادَى بِسَمْعٍ وَّطَاعَةٍ وَبِي نَشْوَةٌ لَبَّيْكَ يَا مَنْ لَّهُ الْفَضْلُ

کله چه ستا موذن بلال کوی نوحهٔ دتازګۍ په حالت کښ اطاعت او فرمانبرداری
سره جواب کښ وایم چه لے دفضل او بزرګۍ والا لبیك یعنی حٔه حاضریم۔

وَیُصْفِرُلُوْنِیْ خِیْفَةً وَّمَهَابَةً وَیُرْجِعُ لِیْ عَنْ کُلِّ شُغْلٍ بِهٖ شُغُلُ

او حٔما رنګ دویرے او دهیبت نه زیړشي او دهغې پاك ذات
مشغولي ما دهر یو کار نه بے خبره کړي۔

وَحَقِّکُمْ مَّا لَذَّلِیْ غَیْرُ ذِکْرِکُمْ وَذِکْرُ سِوَا کُمْ فِیْ فَمِیْ قَطُّ لَایَحْلُوْ

ستا په حق م دِ قسم وی ستا د ذکر نه سوا ما ته هیڅ څیز هم مزیدار نهٔ معلومیږی
او ستا نه سِوا په هیڅ ذکر کښ هم ما ته مزه نهٔ راحٔي۔

مَتٰی یَجْمَعُ الْاَیَّامُ بَیْنِیْ وَبَیْنَکُمْ وَیَفْرَحُ مُشْتَاقٌ اِذَا اجْتَمَعَ الشَّمْلُ

اُوګوره! زمانه ما او تا سو کله جمع کوی او مُشتاق (عاشق) خوشحاله خوشحالیږی
چه کله ورته اجتماع (دیدار وصال) نصیب شي۔

فَمَنْ شَاهَدَتْ عَیْنَاهُ نُوْرَجَمَالِکُمْ یَمُوْتُ اِشْتِیَاقًا نَحْوَکُمْ قَطُّ لَایَسْلُوْ

دچا ستر ګو چه ستا دجمال نُور لیدلے دے، ستا په شوق کښ به مړ شي خو
هیڅ کله به بے تسلی اُونهٔ شي۔ (نزہۃ)

حدیث کښ راغلی دی چه کوم خلق زیات وخت جُمات کښ تیروی دوی
دجُمات مُوګی دی۔ فرښتے ددوی دنا ستے ملګری دی۔ که چرے دوی نا رُوغ
شی نو فرښتے یے بیمار پُرسی کوی۔ که چرے دوی کار ته لاړشي نو فرښتے
یے امداد کوی۔ (حاکم)

(۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةُ الرَّجُلِ فِیْ جَمَاعَةٍ تُضَعَّفُ عَلٰی صَلٰوتِهٖ فِیْ بَیْتِهٖ وَفِیْ سُوْقِهٖ خَمْسًا وَّعِشْرِیْنَ ضِعْفًا وَّذٰلِكَ اَنَّهٗ اِذَا تَوَضَّأَ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ خَرَجَ اِلَی الْمَسْجِدِ لَا یُخْرِجُهٗ اِلَّا الصَّلٰوةُ لَمْ یَخْطُ

دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارك دے چه دسړی هغه مونځ چه جمع سره اُوکړی دهغې مونځ نه چه په کور یا بازار کښ کړے وی پنځویشت درجے المضاعف کیږی۔ خبره دا ده چه کله سړے اودس اُوکړی او بشهٔ کامل اودس اُوکړی۔ بیا جُمات ته صرف دمانځهٔ په اراده سره حٔی، حٔهٔ بله اراده یے ورسره شامله نهٔ وی نو چه کوم قدم اخلی۔

خُطْوَةً اِلَّا رُفِعَتْ لَهٗ بِهَا دَرَجَةٌ وَّحُطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيْئَةٌ فَاِذَا صَلّٰى لَمْ تَزَلِ الْمَلٰٓئِكَةُ تُصَلِّىْ عَلَيْهِ مَا دَامَ فِىْ مُصَلَّاهُ مَا لَمْ يُحْدِثْ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ وَلَا يَزَالُ فِىْ صَلٰوةٍ مَّا انْتَظَرَ الصَّلٰوةَ۔

د هغه په وجه یے یوه نیکي زیاتیږي او ګناه یے معاف کیږي، بیا چه مونځ اوکړي او هم په هغه ځائ کینی نو ترڅو پورے چه په اوداسه کښ وي فرښتے د ده دپاره د مغفرت او د رحمت دُعا ګانے کوي او ترڅو پورے چه سړے د مانځه په انتظار کښ اوسي هغه د مونځ ثواب مومي۔

(رواه البخاري واللفظ له ومسلم وابوداؤد والترمذي وابن ماجة كذا في الترغيب)

**فائده:-** رُومبی حدیث کښ اُووِیشت درجے زیاتے ښودلے شوے وے او په دے حدیث کښ پنځویشت درجے۔ دے دواړو حدیثونو کښ چه کوم اختلاف شوے دے عالمانو دے ډیر جوابونه لیکلي دي چه د حدیث په شرحو کښ موجود دي. د هغے ټولونه دا هُم دے چه دا د مونځګذارو د حال د اختلاف په وجه سره دے چه بعضو ته پنځویشت درجے زیاتے دي او بعضو ته د اخلاص په وجه اُوویشت درجے زیاتے دے۔ بعضے عالمانو د مونځ په اختلاف اندازه کړے دے چه سِرِّي مونځونو کښ پنځویشت درجے دے او جَهْري کښ اُوویشت دے۔ بعضو اُوویشت د ماسخوتن او د سحر دپاره ښودلي دي چه دے دواړو مونځونو ته تلل مُشکل وي او پنځویشت په باقي مونځونو کښ دي۔ بعضو شرح کوُنکو لیکلي دي چه دے اُمت باندے د الله تعالیٰ له طرفه نعمتونو باران زیاتیدلو ځکه چه نور هُم ډیرو ځایونو کښ دے ظاهریدل شوي دي۔ له دے وجے نه اول پنځویشت درجے وُو، رستو ته اُوویشت شو۔ بعضے شرح کوُنکي په یوه عجیبه خبره پوهه شوي دي. هغوي وائي چه د دے حدیث ثواب د رُومبي حدیث نه ډیر زیات دے ځکه چه په دے حدیث کښ دا ارشاد نشته چه دا د پنځویشت درجے زیاتے دے بلکه دا ارشاد دے چه پنځویشت درجے اَلْمُضَاعَفُ کیږي چه د دے ترجمه په دوچند او دوه دونه سره کیږي یعني پنځویشت ځلو پورے دوچند در دوچند اجر کیږي. په دے حالت کښ

دجَمعِ دیو مونځ ثواب درے کروړه پنځه دیرش لکهه څلور پنځوس زره څلور سوه دوه دیرش (۳۲۵۵۴۴۳۲) درجے شو۔ د الله جلّ شانهٗ د رحمت نه دا ثواب څهٔ زیات نهٔ دے۔ چه هرکله د مونځ پریښودلو گناه یوه حُقبه ده کوم چه په رُومبی باب کښ تیر شو نو دکولو ثواب ئے دا کیدل هم ممکن دے۔ دِے نه پس نبی علیه الصلٰوة والسلام دِے طرف ته اشاره اُوفرمایله چه دا خو په خپله دفکر کولو خیز دے چه دجَمعِ په مانځه کښ څومره قدرے اجراو ثواب او څهٔ څهٔ قِسمه نیکئ زیاتیږی۔ چه څوك دکور نه اَودس اُوکړی، صرف دمانځه په نیت جمَات ته لاړشی نو دهغهٔ په هر یو قدم یوه نیکی زیاتیږی او یو گناه ئے مُعاف کیږی۔ بَنُوسَلَمَه مدینه طیبه کښ یوه قبیله وه۔ دهغوی کورونه دجُمات نه لرے وُو، هغو ارادہ اُوکړه چه دجُمات نزدے به چرته مُنتقل (لاړ) شو۔ نبی علیه الصلٰوة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ هلته اُوسئ، ستاسو جمَات ته د راتلو هر یو قدم لیکلے شی۔ یو بل حدیث کښ راغلی دی چه څوك دکور نه اَودس اُوکړی مانځه ته لاړشی۔ هغه داسے دے لکه څنګه چه دکور نه إحرام اُوتړی حج ته لاړ شی۔ دِے نه پس نبی علیه الصلٰوة والسلام یو بل فضیلت ته اشاره فرمائی چه کله څوك مونځ اُوکړی نو دے نه پس ترڅو پورے چه دمانځه په ځائ ناست وی نو فرښتے دده دپاره دمغفرت او درحمت دُعا کانے کوی۔ فرښتے د الله تعالیٰ مقبول او دگناه نه پاك مخلوق دے۔ دهغوی د دُعا برکتونه په خپله ښکاره دی۔

مُحَمّد بن سِمَاعَه رحمة الله علیه یو بزرګ عالِم دے چه دِامام اَبُویُوسف او دِ امام مُحَمّد رحمهما الله شاگرد دے۔ درے دپاسهٔ سل کالو عُمر کښ وفات شوے وو۔ تروغه وخته دوه سوه رکعته نفل به ئے هره ورځ کول، دِے وائی چه پرله پسے څلوېښتو کالو پورے ځما دیو ځل نه علاوه تکبیرِ اُولیٰ فوت شوے نهٔ دے۔ صرف یو ځل چه په کومه وُرځ ځما مور مړه شوے وه، د هغے دمشغولیت په وجه تکبیرِ اُولیٰ را نه فوت شوے وُو۔ نو ما په دے وجه چه دجَمعِ دَ مانځه ثواب پنځویشت درجے زیات دے، هغه مونځ پنځویشت وارے اُوکړو چه هغه شمیره پوره شی۔ نو په خوب کښ مے اُولیدل چه یو کس را ته وائی چه

محمد ته! پښخو پښت وارے مونځ خو د اوکړه خو د ملائکو د آمین به څه کیږي. (فوائدِ سیعه)

دملائکو د آمین مطلب دا دے چه ډیر وحدیثونو کښې دا ارشادِ نبوی راغلے دے چه کله امام د سورة فاتحے نه پس آمین وائی نو ملائکے هم ورسره آمین وائی نو د چا آمین چه د ملائکو آمین سره (یوځائی) شی، د هغه د رستنی تول گناهونه معاف شی۔ نو په خوب کښې دے حدیث طرف ته اشاره وه۔ مولٰنا عبدالحی صاحب رحمة الله علیه فرمائی چه په دے قصه کښې دے طرف ته اشاره ده چه د جمع ثواب په مجموعی طور چه کوم حاصلیږی هغه ځان له کولو کښې هیڅ کله حاصلیدے نشی۔ اگر که یو زر ځله هغه مونځ اوکړی۔ او دا ښکاره خبره ده چه دیو آمین موافقت خو صرف نهٔ دے بلکه د مجمع شرکت د مونځ فارغیدو نه پس د ملائکو دعا، د کوم چه په دے حدیث کښې ذکر دے دے نه علاوه نور ډیر خصوصیات دی چه د جمع په مانځه کښې بیا موندے شی۔ یو ضروری خبره د اهم د لحاظ قابله ده۔ عالمانو لیکلی دی چه د ملائکو د دے دعا حقدار به هله کیږی چه مونځ خو هم د مونځ په شان وی۔ او که چرے داسے مونځ وی چه په زړه کیږه کښې راغونډ کړے ورته په مخ ور او ویشتے شی نو بیا د ملائکو د دعا حقدار نهٔ کیږی۔ (بهجه)

۳ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رضی الله عنه قَالَ مَنْ سَرَّهٗ اَنْ يَّلْقَى اللّٰهَ غَدًا مُسْلِمًا فَلْيُحَافِظْ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ الصَّلَوَاتِ حَيْثُ يُنَادٰى بِهِنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى شَرَعَ لِنَبِيِّكُمْ صلی الله علیه وسلم سُنَنَ الْهُدٰى وَاِنَّهُنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدٰى وَلَوْ اَنَّكُمْ صَلَّيْتُمْ فِيْ بُيُوْتِكُمْ كَمَا يُصَلِّيْ هٰذَا الْمُتَخَلِّفُ فِيْ بَيْتِهٖ لَتَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ وَلَوْ تَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ لَضَلَلْتُمْ

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ارشاد فرمائی چه کوم کس دا غواړی چه صبا ته د قیامت په ورځ د الله جل شانهٗ په دربار کښې (کامل) مسلمان جوړ شوے حاضر شی نو هغه د دے مونځونو په داسے ځائی کښې دادا کولو اهتمام اوکړی کوم ځائی چه اذان کیږی (یعنی په جماعت کښې) ځکه چه الله جل شانهٗ ستاسو د نبی علیه الصلٰوة والسلام د پاره داسے سنتونه جاری فرمائیلی دی چه سراسر هدایت دی۔ د هغے نه دا د جمعے مونځونه هم دی که چرے تاسو خلق په خپلو کورونو

وَمَامِنْ رَجُلٍ يَتَطَهَّرُ فَيُحْسِنُ الطُّهُوْرَ ثُمَّ يَعْمِدُ اِلٰى مَسْجِدٍ مِنْ هٰذِهِ الْمَسَاجِدِ اِلَّا كَتَبَ اللهُ لَهٗ بِكُلِّ خَطْوَةٍ يَخْطُوْهَا حَسَنَةً وَّيَرْفَعُهٗ بِهَا دَرَجَةً وَّ يَحُطُّ عَنْهُ بِهَا سَيِّئَةً وَلَقَدْ رَاَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا اِلَّا مُنَافِقٌ مَّعْلُوْمُ النِّفَاقِ وَلَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ يُؤْتٰى بِهٖ يُهَادٰى بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ حَتّٰى يُقَامَ فِى الصَّفِّ وَفِىْ رِوَايَةٍ لَقَدْ رَاَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنِ الصَّلٰوةِ اِلَّا مُنَافِقٌ قَدْ عُلِمَ نِفَاقُهٗ اَوْمَرِيْضٌ اِنْ كَانَ الرَّجُلُ لَيَمْشِىْ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ حَتّٰى يَاْتِىَ الصَّلٰوةَ وَ

کښې مونځ کول شروع کړئ لکه څنګه چه فلانے کس کوی نو تاسو به د نبی علیه الصلوٰة والسلام د سُنتو پرېښودونکی شئ او په دے ځان پوهه کړئ که د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سُنت پرېږدئ نو ګمراه به شئ۔ او څوک چه په ښه شان اودس اوکړی، دِے نه پس جُمات ته لاړشی نو په هر یو قدم یے یوه نیکی لیکلے کیږی او یوه یوه ګناه یے مُعاف کیږی او مونږ خو به خپل داحال لیده چه څوک به ښکاره په ښکاره مُنافق وو هغه خو به د جمع نه پاتے کیده کنی د نبی علیه الصلوٰة والسلام په زمانه کښې به عامو منافقو ته هم د جمع د مونځ پرېښودو هِمت نه کیده۔ یا به څوک سخت ناجوړه شو کنی کوم کس چه به د دوه ؤ سړو په تکیه په خپو راښکلو تلے شو هغه به هُم په صَف کښې اودرَولے شو.

قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَنَا سُنَنَ الْهُدٰى وَاِنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدَى الصَّلٰوةَ فِى الْمَسْجِدِ الَّذِىْ يُؤَذَّنُ فِيْهِ۔ (رواه مسلم وابوداؤد والنسائی وابن ماجة كذا فى الترغيب والدر المنثور والسنة نوعان سنة الهدى وتاركها يستوجب اساءة كالجماعة والاذان والزوائد وتاركها لا يستوجب اساءة كسير النبى صلى الله عليه وسلم فى لباسه وقعوده كذا فى نور الانوار والاضافة فى سُنة الهدى بيانية اى سنة هى هدى والحمل مبالغة كذا فى قمر الاقمار۔)

**فائده**:- اصحابو کرامو رضی الله عنهم به د جمع دومره اهتمام کولو۔ که ناجوړه به څهٔ رنګے جمع ته تلے شو هغه به هُم لاړهٔ شریک به شو۔ اګرکهٔ د دوهٔ سړو به په راښکلو بوتلے شو او دا اهتمام به ولے نهٔ وو، هر کله چه د هغوی او ځمونږ اٰقا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته د غسے اهتمام ؤو۔ لکه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په مَرَضُ الوفات یعنی په کوم مرض کښې چه وفات شو، په هغې کښې هم دا حالت پیښ شو چه د

مرض د سختئ په وجه بار بار بے هوشه کیدهٔ ، او خو خو ځله به یے د اودهٔ اوبهٔ غوښتلے ۔ آخر یو وارے یے اودس اوکړو او د حضرت عباس رضی الله عنه او د یو بل صحابی په تکیه (یعنی لاسونه پرے اچولی) جماعت ته یے تشریف یوړلو چه په زمکه یے خپے مبارکے ښے لګیدے هم نه شوے ۔ حضرت ابوبکر رضی الله عنه د ارشاد مطابق مونځ ورکول شروع کړی وو چه نبی علیه الصلوة والسلام ورغے په مانځه کښې شریک شو ۔ (صحیحین)

حضرت ابُوالدَّرداء رضی الله عنه فرمائی چه ما د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه دا ارشاد اوریدلے چه د الله تعالیٰ عبادت دا سے کوه ګویا چه هغه بالکل مخامخ دے او ته یے وینے او خپل ځان د مړو په فهرست کښې شمارَه (ژوندو کښې اے دو ګڼړه مهٔ نو بیا به د ژوندو په ښهٔ خبره خوشحالی وی او نهٔ په خهٔ خبره غم) او د مظلوم د خیرے نه خپل ځان سا ته او چه تهٔ د ومره هم طاقت لرلے شے چه د ماسخوتن او د سحر په مانځه کښې په راتلو شریکیدے شے نو ایله مهٔ کوه ۔ په یو حدیث کښې راغلی دی چه په منافقانو د ماسخوتن او د سحر مونځونه درانهٔ وی ۔ که چرے دوی ته دا معلومه شي چه په جمع کښې څومره ثوابونه دی نو په زمکه به په راتلو باندے تلل او په جمع سره به یے کول ۔ (ترغیب)

| | |
|---|---|
| ④ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَنْ صَلّٰى لِلّٰهِ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا فِيْ جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيْرَةَ الْاُوْلٰى كُتِبَ لَهٗ بَرَاءَتَانِ بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ وَبَرَاءَةٌ | د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه څوک څلویښت ورځې په اخلاص دا سے مونځ اوکړي چه تکبیرِ اولیٰ ترے فوت نه شي نو دهٔ ته دوه پروانے ورکولے شي یوه پروانه د دوزخ نه د خلاصیدو دویمه د نفاق نه د برئ کیدو ۔ |

مِّنَ النِّفَاقِ ۔ (رواه الترمذی وقال لا اعلم احدا رفعه الا ما روی مسلم بن قتیبة عن طعمة بن عمرو قال المنذری رحمه الله ومسلم وطعمة وبقیة رواته ثقات کذا فی الترغیب قلت وله شواهد من حدیث عمر رضی الله عنه رفعه من صلی فی مسجد جماعة اربعین لیلة لا تفوته الرکعة الاولی من صلوة العشاء کتب الله له بها عتقا من النار ۔ رواه ابن ماجة واللفظ له والترمذی وقال نحو حدیث انس یعنی المتقدم ولم یذکر لفظه وقال مرسل ولم یدرک انسا وعزاه فی منتخب الکنز الی البیهقی فی الشعب وابن عساکر وابن النجار)

**فائده**:- یعنې چه څوک دا سې خلویښت ورځې اخلاص سره مونځ اوکړي چه د شروع نه امام سره شریك وي او د مونځ شروع کولو تکبیر چه کله امام اُوائي نو دغه وخت دِ ے هم په ماغځه کښ شریك شي، نو دغه کس به نهٔ دوزخ کښ داخلیږي، نهٔ به مُنافقانو کښ داخلیږي. مُنافق هغه خلقو ته ویلے شي چه خپل ځان مُسلمان ښکاره کوي خو په زړهٔ کښ کُفر ساتي. او د خلویښتو ورځو خصوصیت په ظاهر کښ په دے وجه دے چه د حالاتو بدلیدو کښ خلویښت ورځے ډیر اثر لري. لکه د بنیآدم د پیدا و ښت ترتیب چه کوم حدیثونو کښ راغلے دے، په هغے کښ هُم خلویښتو ورځو پورے نطفه پاتے کیدل، بیا د غوښے بوټئ خلویښتو ورځو پورے. د غنه خلویښتو خلویښتو ورځو کښ د هغے بدلیدل بیان ذکر فرمائیلي دي. هُم په دے وجه د صوفیانو په نزد چِلّه خاص اهمیت لري. څومره خوش نصیبه دي هغه خلق چه د هغوی په کلونو هُم تکبیرِ اُولیٰ نهٔ فوت کیږي.

⑤ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ فَاَحْسَنَ وُضُوْءَهٗ ثُمَّ رَاحَ فَوَجَدَ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا اَعْطَاهُ اللّٰهُ مِثْلَ اَجْرِ مَنْ صَلَّاهَا وَحَضَرَهَا لَا یَنْقُصُ ذٰلِكَ مِنْ اُجُوْرِهِمْ شَیْئًا. (رواه ابوداؤد

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارك دے چه څوك په ښهٔ شان اُودس اُوکړي بیا د ماغځه د پاره جُمات ته لاړ شي هلته چه اُورسي ورته معلومه شي چه جمع شوے ده نو بیا هُم د جمع د ماغځه ثواب ورته اُوشو او د دے ثواب په وجه د هغه خلقو په ثواب کښ هیڅ کمے نهٔ کیږي کوم چه جمع سره مونځ کړے دے.

والنسائي والحاكم وقال صحيح على شرط مسلم كذا في الترغيب وفيه ايضا عن سعيد بن المسيب قال حضر رجلا من الانصار الموت فقال اني محدثكم حديثا ما احدثكموه الا احتسابا اني سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول اذا توضأ احدكم فاحسن الوضوء الحديث وفيه فان اتى المسجد فصلى في جماعة غفر له فان اتى المسجد وقد صلوا بعضا وبقي بعض صلى ما ادرك واتم ما بقي كان كذلك فان اتى المسجد وقد صلوا فاتم الصلوٰة كان كذالك. رواه ابوداؤد)

**فائده**:- دا د الله تعالیٰ څومره انعام او احسان دے چه صرف کوشش او په محنت د جمع ثواب ورکوُلے شي اگرچه جمع بیا نهٔ مومي. دا د الله تعالیٰ ورکړے

نه هم مونږه په خپله وانخلو نو دا څه نقصان دے او دے نه دا هم معلومه شوه چه صرف په دے ویره چه جمع به شوے وی جماعت ته تلل پریښودل نه دی پکار۔ که چرے لا رشی معلومه شی چه شوے ده، بیا هم ثواب خو حاصل شو البته که درومبے نه یقینی معلومه شی چه جمع شوے ده نو بیا ئے نشته۔

⑥ عَنْ قُبَاثِ ابْنِ اَشْيَمَ اللَّيْثِيِّ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی اللہ علیہ وسلم صَلٰوةُ الرَّجُلَيْنِ يَؤُمُّ اَحَدُهُمَا صَاحِبَهٗ اَزْكٰى عِنْدَ اللهِ مِنْ صَلٰوةِ اَرْبَعَةٍ تَتْرٰى وَصَلٰوةُ اَرْبَعَةٍ اَزْكٰى عِنْدَ اللهِ مِنْ صَلٰوةِ ثَمَانِيَةٍ تَتْرٰى وَصَلٰوةُ ثَمَانِيَةٍ يَؤُمُّهُمْ اَحَدُهُمْ اَزْكٰى عِنْدَ اللهِ مِنْ صَلٰوةِ مِائَةٍ تَتْرٰى۔ (رواه البزار والطبرانی باسناد لا باس به كذا فی الترغيب وفی مجمع الزوائد رواه البزار والطبرانی فی الكبير ورجال الطبرانی موثقون وعزاه فی الجامع الصغير الی الطبرانی والبيهقی ورقم له بالصحة وعن ابی ابن كعب رضی الله عنه بمعنی حديث الباب وفيه قصة وفی آخره وكلما كثر فهو احب الی الله عز وجل رواه احمد وابو داؤد والنسائی وابن خزيمة وابن حبان فی صحيحيهما والحاكم وقد جزم يحيی بن معين والذهلی بصحة هذا الحديث كذا فی الترغيب)

د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم پاک ارشاد دے چه د دوؤ سړو د جمع مونځ چه یو امام وی او بل مقتدی الله تعالیٰ ته د څلورو سړو د ځان له ځان له مونځ نه زیات خوښ دے۔ د غسے د څلورو سړو د جمع مونځ د اتو سړو د جدا جدا مونځ نه زیات خوښ دے او د اتو سړو د جمع مونځ د سلو سړو د جدا جدا مونځونو نه زیات دے۔ یو بل حدیث کښې دی د غسے څومره لوئی جمع کښې چه مونځ اوکړے شی هغه الله تعالیٰ ته زیات خوښ دے د مختصرے جمع نه۔

**فائده:-** کوم خلق چه دا ګڼړی چه دوه څلور سړی به یو ځائ شو، کور یا دوکان وغیره کښې به جمع اوکړو، دا کافی ده۔ اول خو په دے کښې د جماعت ثواب د شروع نه نه کیږی۔ دویم د ډیرے جمع د ثواب نه هم محرومی کیږی۔ مجمع چه څومره زیاته وی هغه هومره الله تعالیٰ ته زیاته خوښه ده۔ او هر کله چه د الله تعالیٰ د رضا د پاره یو کار کول دی نو بیا په کومه طریقه کښې چه د هغهٔ رضا زیاته حاصلیږی په هغې طریقه کول پکار دی۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه الله جل شانهٔ د درے څیزونه چه اووینی، خوشحالیږی یو د جمع صف، بل هغه کس چه د نیمے شپے (د تهجد و) مونځ کوی۔ دریم هغه

کښې چه پولښکر سره جنګیږی۔ (جامع الصغیر)

⑦ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم بَشِّرِ الْمَشَّائِيْنَ فِي الظُّلَمِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِالنُّوْرِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ۔

حضرت سهل رضی اللہ عنہ فرمائی چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه کوم خلق په تیارهٔ کښې جماتونو ته ځی۔ هغوی ته دقیامت د ورځې پوره پوره دنور زیرے ورکړئ

(رواه ابن ماجة وابن خزيمة في صحيحه والحاكم واللفظ له وقال صحيح على شرط الشيخين كذا في الترغيب وفي المشكوة برواية الترمذي وابي داود عن بريدة ثم قال رواه ابن ماجة عن سهل بن سعد وانس اهـ قلت وله شاهد وفي منتخب كنز العمال برواية الطبراني عن ابي امامة بلفظ بشر المدلجين الى المساجد في الظلم بمنابر من نور يوم القيامة يفزع الناس ولا يفزعون ذكر السيوطي في الدر المنثور في تفسير قوله تعالى انما يعمر مساجد الله عدة روايات في هذا المعنى.)

**فائده** :- یعنی نن په دُنیا کښې تیارهٔ شپه کښې جُمات ته دتلو قدر به هغه وخت معلوم شی کله چه دقیامت هیبتناک منظر مخکښې وی او هر کس په مصیبت کښې گرفتار وی۔ دنن دتیرو دمُشقت بدله او ددے قدر به هغه وخت وی کله چه پو ځلیدونکے نور او دنمر نه زیاته رڼرا دوی سره سره وی۔

یو حدیث کښې دی چه دوی به دقیامت په ورځ دنور په منبرونو وی او بے فکره، او خلق به په ویره کښې وی۔

یو حدیث کښې دی چه الله جلّ شانهٗ به دقیامت په ورځ ارشاد اُوفرمائی چه ځما گاونډیان څهٔ شو؟ فرښتے به عرض اُوکړی چه ستا گاونډیان څوک دی؟ ارشاد به اُوشی دجُماتونو آبادونکی۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه الله تعالیٰ ته دټولو ځایونو نه زیات خوښ جُماتونه دی او په ټولو کښې زیات ناخوښه بازارونه دی۔ یو حدیث کښې دی چه جُماتونه دجنت باغونه دی۔ (جامع الصغیر)

یو صحیح حدیث کښې راغلی دی چه حضرت ابوسعید رضی اللہ عنہ دنبی علیه الصلوٰة والسلام نه نقل کوی چه څوک اُووینئ چه جُمات ته دتلو یے عادت دے نو دهغهٔ دایمان دائی گواهی ورکړئ (ایضًا) ددے نه پس اِنَّمَا یَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ دا ایت یے تلاوت اُوفرمایهٔ

یعنی جماعتونه هغه خلق اباد وی څوک چه په الله او په قیامت ایمان لری۔ (کذا)

یو حدیث کښې راغلی دی چه د مشقت په وخت اودس کول او جماعت طرفته قدم اوچتول او یو مونځ نه پس د دویم مونځ په انتظار کښې ناسته ګناهونه وینځی۔ (ابن ماجه)

یو حدیث کښې راغلی دی چه کوم کس د جماعت نه څومره لرے وی هغه هومره به یے زیات ثواب وی (ایضاً) د دے وجه دا ده چه په هر یو قدم باندے اجر او ثواب دے او څومره چه لرے جماعت وی هغه هومره به قدمونه زیات شی په دے وجه به بعضے صحابو واړه واړه قدمونه اخستل۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه درے څیزونه داسے دی که چرے خلقو ته د هغے ثواب معلوم شی نو په جنګ به یے حاصل کړی۔ یو اذان ویل، دویم د جمعے د مونځونو د پاره د غرمے په وخت تلل، دریم په اوومبی صف کښې مونځ کول۔ (ایضاً)

یو حدیث کښې ارشاد دے چه د قیامت په ورځ کله چه هر یو کس به پریشان حاله وی او نمر به ډیر په تیزئ وی۔ اووه کسان به داسے وی چه د الله تعالیٰ د رحمت د سوری لاندے به وی۔ په دوی کښې به یو هغه کس هم وی چه د هغه زړه جماعت سره لګیدلے وی چه کله څه ضرورت د پاره بهر راووزی نو بیا یے جماعت ته د واپس تلو خواهش وی۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه څوک جماعت سره محبت ساتی الله جل شانه د هٔ سره محبت کوی۔ (ایضاً)

د شریعتِ مطهره په هر کام کښې خیر او برکت، اجر او ثواب خو ډیر زیات دے د دے سره د ډیرو مصلحتونو هم په دے حکمونو کښې لحاظ کړے شوے دے چه د هغے حقیقت ته رسیدل خو مشکل دی ځکه چه د الله جل شانه علوم او د هغے مصلحتونو ته څوک رسیدلے شی؟ خو د خپل وس او حوصلے موافق ترکومے پورے چه خپله پوهه کار ورکوی د هغے مصلحتونه هم په پوهه کښې راځی او چه څومره وس وی هغه هومره صفتونه د هغے حکمونو معلومیږی۔

عالمانو د جمعِ مصلحتونه د خپلے خپلے پوهے موافق لیکلی دی۔ خو ښو حضرت

شاه وَلِیُّ اللّٰه نَوَّرَاللّٰهُ مَرْقَدَهٗ په حُجَّةُ اللّٰهِ الْبَالِغَه کښې یو تقریر د دے متعلق ارشاد فرمائیلے دے چه د هغے ترجمه او مطلب دا دے چه:-

د رسم او رواج د هلاکتونو نه د بچ کیدو د پاره د دے نه زیات فائده مند هیڅ خیز نشته چه عبادتونو کښې څه یو عبادت رسم و رواج دا سے عام کړے شی چه په څرګنده ادا کولے شی او د هر یو کس مخکښې که پوهه وی که ناپوهه، هغه ادا کیږی. د هغے په ادا کولو کښې د ښهر او د کلو خلق برابر وی، په هغے کښې یو بل نه وړاندے کیدل او فخر اوکړے شی. او دا سے عام شی او د ژوند په ضروریاتو کښې دا سے داخل شی چه د هغے نه جُدا کیدل ناممکنه او ګران شی. او د اللّٰه تعالیٰ د عبادت د پاره مددګار شی او هغه رسم او رواج چه د ضرر او د نقصان ذریعه وه، هم هغه حق طرف ته راخکونکے شی. چونکه په عباداتو کښې هیڅ یو عبادت هم د مونځ نه زیات مُهْتَمْ بِالشَّان او دیل او حجت په اعتبار سره زیات نشته. د دے د پاره ضروری شوه چه په خپلو کښې د دے رواج بنه عام کړے شی. او د دے د پاره اجتماع اوکړے شی او په خپلو کښې په اتفاق سره دا ادا کړے شی. د غه شان هر یو مذهب او دین کښې څه خلق پیشوایان وی او د هغوی تابعداری کولے شی. او څه مشران په دویمه درجه کښې دا سے وی چه د څه معمولی غوندے ترغیب او نصیحت محتاجه وی او څه خلق په درجه کښې ډیر ناکاره او کمزورے عقیدے والا دا سے هم وی که چرے هغوی ته په ډله کښې د عبادت زورَنه ورنه کړے شی نو سُستی او ناراستیا په وجه به عبادت هم پریږدی. په دے وجه د مصلحت تقاضا هم دا ده چه ټول خلق د په اجتماعی طور عبادت ادا کوی. او چه کوم خلق عبادت پریخودونکی دی هغوی د عبادت کونکو نه جُدا شی او رغبت کونکو او بے رغبتو کښې ښکاره فرق اوشی او ناخبره خلق د عالمانو تابعداری نه خبر شی او جاهلانو ته د عبادت طریقه معلومه شی او د اللّٰه تعالیٰ عبادت په دغه خلقو کښې د هغه ویلی شوو سپینو زرو په شان شی که د چا ما هر مخکښې کیخودلے شی چه په هغے سره جائز، ناجائز او کهره، کوټه کښې ښکاره فرق اوشی. جائز د قوی کړے

شي او نا جائز دِ منع کړے شي۔

درېم دَ دے نه علاوه د مسلمانانو په دا سے اجتماع کښې چه په هغې کښې الله تعالیٰ طرف ته رغبت کوُنکی، دهغهٔ د رحمت طلب کوُنکی، دهغهٔ نه وېرېدونکی، موجود وی او ټول په ټول الله تعالیٰ طرف ته پوره په پوره متوجه وی. دَ برکتونو نازلېدو او د رحمت متوجه کېدو عجیبه خاصیت لری۔

دغه شان دَ اُمتِ محمدیه دقیام مقصد هم دا دے چه د الله تعالیٰ کلمه دِ بلنده شي او دینِ اسلام دِ په ټولو دِینونو غالب شي او داگېدے نشي ترڅو چه دا طریقه جاری نهٔ شي چه ټول په ټول عوام، خواص، د ښهر او سیدونکی وارهٔ، لوئ یو ځائ جمع شي، دا څیز چه د اسلام د ټولو نه لوئ شِعَار (نښه) دهٔ او د ټولو نه اُوچت عبادت دے ادا نهٔ کړی۔ په دے وجوهاتو سره شریعت جُمعه او دجمع اهتمام طرف ته متوجه شو۔ ددے د اِظهار او د اعلان ترغیبونه او په پرېخودو یے عذابونه نازل شو۔ اوچونکه اِظهار او اجتماع یوه صرف دَ محلے او د قبیلے دهٔ او بله د ټول ښهر دهٔ۔ د محلے اجتماع هر وخت آسانه دهٔ او د ټول ښهر هر وخت گرانه دهٔ، پکښې تنگسیا دهٔ۔ په دے وجه د محلے اجتماع د هر یو مانځه په وخت اُوگرزولے شوه او دجمع مونځ دے دپاره مشروع (جائز) شو او د تمام ښهر اجتماع یے په اتمه ورځ مُقرر کړه او دجُمع مونځ دِے دپاره مُقرر شو۔

## دوېم فصل —— دجمع په پرېخودو د غُصے په بیان کښې

الله جلّ شانهٔ په خپلو حُکمونو باندے دَ عمل کولو څنگه چه د انعامونو وعدے فرمائیلے دهٔ، د غسے په حُکم نهٔ منلو یے ناراضتیا او غُصه هم فرمائیلے دهٔ۔ دا هم د الله تعالیٰ فضل دے چه په حُکم منلو کښې د بے حده انعامونو وعده دهٔ۔ کنې د بندگئ تقاضا صرف غُصه یکاروه ځکه چه د بندگئ فرض د حُکم منل دی بیا په دے د اِنعام څهٔ حق وو۔ او په نافرمانئ کښې چه څومره غُصه او عذاب وی هغه په ځائ دے، چه د آقا د نافرمانئ نه زیات نور څهٔ جُرم کېدے شي۔ پس د څهٔ خاصے غُصے یا تنبیه کولو ضرورت نهٔ وو۔ خو بیا هم الله جلّ شانهٔ او

دهغهٔ پاک رسول ﷺ په مونځ مهربانی اُوکړه چه په قسما قسم طریقو ئے خبرداره کړُو۔ او د هغې نقصانونه ئے راته اُوښودل۔ په مختلفو طریقو ئے پوهه کړُو۔ بیا هم که مونځ پوهه نهٔ شُونو هم خپل نقصان مو دے۔

(١) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يَمْنَعْهُ مِنِ اتِّبَاعِهٖ عُذْرٌ قَالُوْا وَمَا الْعُذْرُ قَالَ خَوْفٌ اَوْ مَرَضٌ لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ الصَّلٰوةُ الَّتِيْ صَلّٰى۔

دنبی اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه څوک د اذان اواز واوری او بے څهٔ عُذره ما ئحه ته لار نشی (رهلته اُوکړی) نو دهغهٔ مونځ نهٔ قبلیږی صحابو رضی الله عنهم عرض اُوکړه چه دعُذر نه څهٔ مُراد دے؟ ارشاد اُوشو چه مرض وی یا څهٔ ویره وی۔

(رواه ابوداؤد وابن حبان فی صحیحه وابن ماجة نحوه کذا فی الترغیب وفی المشکوٰة رواه ابوداؤد والدار قطنی)

**فائده**:- دنهٔ قبلیدو دا معنیٰ ده چه په دغے مونځ کوم ثواب او انعام د الله تعالیٰ له طرفه کیدهٔ هغه به نهٔ وی اګرچه فرض ئے اداشول۔ اوهم دا مُراد دے دهغې حدیثونه چه په کوم کښ راغلی دی چه دهغهٔ مونځ نهٔ کیږی ځکه چه داسے کیدل هُم څهٔ کیدل شوچه پرے انعام او اکرام نهٔ وی۔ دا مونځ د امامِ اعظم رحمة الله علیه په نزد دی کښ دا صحابو رضی الله عنهم او د تابعینو رحمهم الله د یو ډلے په نزد د هغې حدیثونو په بُنیاد چه بغیر عذره د جمعے مونځ پریخودل حرام دی او په جمع سره کول فرض دی تردے چه ډیرو عُلماؤ په نزد اُدو مونځ کیږی نه۔ دا حنافو په نزد اګرچه مونځ اُوشو خو د جمعے پریخودو مُجرم شو۔ دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه په یو حدیث کښ دا هم نقل کړے شوی دی چه دغے کس د الله تعالیٰ نافرمانی اُوکړه او د رسول ﷺ نافرمانی ئے اُوکړه۔ دحضرت ابن عباس رضی الله عنه دا هُم ارشاد دے چه څوک د اذان اواز واوری او د جمعے سره مونځ اُونهٔ کړی، نهٔ هغهٔ د ښیګړے اراده اُوکړه، نهٔ هغهٔ سره د ښیګړے اراده اُوکړے شوه۔ ابُوهُریره رضی الله عنه فرمائی چه څوک د اذان اواز واوری او جمعے ته حاضر نهٔ شی، د هغهٔ غوږُونه ویلے شوے سیکے نه ډک کړے شی، دا بهتره ده۔

(۲) عَنْ مُعَاذِ بْنِ اَنَسٍ رضی اللہ عنہ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰہِ صلی اللہ علیہ وسلم اَنَّہٗ قَالَ اَلْجَفَاءُ کُلُّ الْجَفَاءِ وَالْکُفْرُ وَالنِّفَاقُ مَنْ سَمِعَ مُنَادِیَ اللّٰہِ یُنَادِیْ اِلَی الصَّلٰوۃِ فَلَا یُجِیْبُہٗ۔ (رواہ احمد والطبرانی من روایۃ زبان بن فائد کذا فی الترغیب و فی مجمع الزوائد رواہ الطبرانی فی الکبیر وزبان ضعفہ ابن معین ووثقہ ابوحاتم اھ۔ وعزاہ فی الجامع الصغیر الی الطبرانی ورقم لہٗ بالضعف)

دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد مبارک دے چہ سراسر ظلم دے او کفر دے او نفاق دے دهغه کس دا کار چہ د اللہ تعالیٰ د مُنادی یعنی مؤذن اواز واوری او مونځ ته لا ړ نشی۔

**فائدہ**:۔ ځومره سخته سزا او زورَنه ده په دے حدیث پاک کښ چه ددهٔ دا کارِ ے دکافرانو کار او دمُنافقانو کار اُوخودلو۔ چه گویا دمُسلمان نه دا خبره اُد وکیدے نهٔ شی۔

یو بل حدیث کښ ارشاد دے چه دسړی دبد بختئ او بد نصیبئ دپاره دا بس ده چه دمؤذن اواز واوری او مونځ ته لا ړ نشی۔

سُلیمان بن اَبی حَثمَه رضی اللہ عنہ دجلیلُ القَدر خلقونه وو۔ دنبی علیہ الصلوٰۃ والسلام زمانه کښ پیدا شو خو دکم عمرئ په وجه دنبی علیہ الصلوٰۃ والسلام نه در روایت اوریدو موقعه ورته ملاؤ نهٔ شوه۔ حضرت عمر رضی اللہ عنہ دے دبازار نګران جوړکړے وو۔ یو ورځ اتفاقاً دسحر مانځه کښ موجود نهٔ وو۔ حضرت عمر رضی اللہ عنہ دهغهٔ طرفته تشریف یوړهٔ۔ دهغهٔ دمورنه ئے تپوس اُوکړو چه سُلیمان نن دسحر مانځه کښ نهٔ وو۔ مور ئې ئے اُویل چه ټوله شپه په نفلو کښ مشغول وو، دخوب دغلبے نه ئے سترګے ورغلے۔ دوی اُوفرمایل چه څهٔ دسحر په مانځه کښ شریک شم، دا ماته ددے نه زیاته خوښه ده چه ټوله شپه نفلونه اُوکړم۔

(۳) عَنْ اَبِیْ ھُرَیْرَۃَ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صلی اللہ علیہ وسلم لَقَدْ ھَمَمْتُ اَنْ اٰمُرَ فِتْیَتِیْ فَیَجْمَعُوْا اِلَیَّ حُزَمًا مِّنْ حَطَبٍ ثُمَّ اٰتِیَ قَوْمًا یُصَلُّوْنَ فِیْ بُیُوْتِھِمْ لَیْسَتْ بِھِمْ

نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد فرمائی چه ځما زړهٔ غواړی چه یو څو ځوانانو ته اُوایم چه ډیر خشاک راجمع کړی راوړی بیا څهٔ هغه خلقو ته ورشم چه بے عُذره په کورونو کښ مونځ کوی او ورشم دهغوی کورُونه اُوسوزوم۔

عِلَّةٌ فَأُحَرِّقُهَا عَلَيْهِمْ. (رواه مسلم وابوداؤد وابن ماجة والترمذی کذا فی الترغیب قال السیوطی فی الدر اخرج ابن ابی شیبة والبخاری ومسلم وابن ماجة عن ابی ہریرة رفعه اثقل الصلوٰة علی المنافقین صلوٰة العشاء وصلوٰة الفجر ولو یعلمون ما فیهما لاتوهما ولو حبوا ولقد ہممت ان آمر بالصلوٰة فتقام الحدیث بنحوه.)

**فائده:** نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته سره د هغې شفقت او رحمت چه کوم د اُمت په حال باندې وو، د چا یو معمولي غوندې تکلیف یې هم نهٔ خوښولو. په هغه خلقو چه کوم په کورونو کښې مونځ کوي په هغوی یې دومره غُصه ده چه د هغوی کورونو باندې اور لګولو ته هم تیار دې.

④ عَنْ اَبِی الدَّرْدَاءِ رضی الله عنه قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم يَقُوْلُ مَا مِنْ ثَلٰثَةٍ فِیْ قَرْيَةٍ وَّلَا بَدْوٍ لَا تُقَامُ فِيْهِمُ الصَّلٰوةُ اِلَّا اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ فَعَلَيْكُمْ بِالْجَمَاعَةِ فَاِنَّمَا يَاْكُلُ الذِّئْبُ

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارک دې چه په کوم کلي یا صحرا کښې درې سړي وي او هلته جمع مونځ نهٔ کیږي نو په هغوی شیطان غالب کیږي د دې کبله جمع ضروري اوګڼئ شرمخ ځان له چیلئ خوري او د سړو شرمخ شیطان دې.

مِنَ الْغَنَمِ الْقَاصِيَةَ. (رواه احمد وابوداؤد والنسائی وابن خزیمة وابن حبان فی صحیحهما والحاکم وزاد رزین فی جامعه وان ذئب الانسان الشیطان اذا خلا به اکله کذا فی الترغیب ورقم له فی الجامع الصغیر بالصحة وصححه الحاکم واقره علیه الذهبی)

**فائده:** د دې نه معلومه شوه چه کوم خلق زمیندارئ کښې مشغول وي که درې تنه وي نو په جمع ورله مونځ کول پکار دي بلکه دوه تنه وي نو هم په جمع سره مونځ کول یې بهتر دي. زمیندارانو اول خو عموماً مونځ کوي نه چه هغوی د پاره د یټي مشغولتیا په خپل خیال کافي عُذر دې. او چه کوم ډیر دیندار ګڼړلې شي هغوی یې هم ځان له کوي. حال دا که د یو څو یټو والا یو ځائ را جمع شي او په جمع یې اوکړي نو څومره لویه جمع به ترې جوړه شي او څومره ډیر ثواب به حاصل کړي. د څلورو پیسو په خاطر ګرمئ، یخنئ، نا ادمهٔ باران د تهولو نه بې نیازه شي او ټوله ورځ مشغول اوسي او دومره لوئ ثواب ضائع کوي، او د دې هیڅ پرواه نهٔ کوي. حال دا که دا خلق که چرې صحرا کښې جمع سره مونځ اوکړي نو ربه هم د زیات ثواب سبب شي. تر دې چه یو حدیث

کښې راغلې دي چه د پنځوسو مونځونو ثواب يې کيږي. په يو حديث کښې راغلي دي چه کله د بيلو څروونکے د يو غر په ونج کښې يا (صحرا) کښې اذان وائي او مونځ کوي نو الله تعالیٰ د هغهٔ نه بے حده خوشحاليږي او په حيرانتيا او فخر سره فرښتو ته فرمائي اُوګورئ! ځما بنده اذان اُوکړه، مونځ کوي. دا ټول ځما د ويرې له وجې نه کوي. ما د دهٔ بخښنه اُوکړه او جنت ته د داخليدو فيصله مې اُوکړه. (مشکوٰة)

⑤ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ يَصُوْمُ النَّهَارَ وَيَقُوْمُ اللَّيْلَ وَلَا يَشْهَدُ الْجَمَاعَةَ وَلَا الْجُمُعَةَ فَقَالَ هٰذَا فِي النَّارِ. (رواه الترمذي موقوفا كذا في الترغيب)

د حضرت عَبْدُ الله بنِ عَبَّاس رضي الله عنه نه چا تپوس اُوکړهٔ چه يو کس ټوله ورځ روژه نيسي او ټوله شپه نفلونه کوي خو د جمعې او د جمعې په مانځهٔ کښې نه شريکيږي (د دهٔ متعلق څهٔ حکم دے) دوي ورته اُوفرمايل دا کس دوزخي دے.

دفي تنبيه الغافلين روى عن مجاهد ان رجلا جاء الى ابن عباس فقال يا ابن عباس ما تقول في رجل فذكره بلفظه زاد في آخره فاختلف اليه شهرا يسأله عن ذلك وهو يقول هو في النار)

**فائده**:- اګرچه يو خاص زمانے پورے سزا خوړلو نه پس به د دوزخ نه راوُويستلے شي چه بهرحال مسلمان دے. خو نهٔ دهٔ معلومه، څومره زمانے پورے به په کښې پروت وي. جاهل صوفيانو کښې د وظيفو او د نفلونو زور وي خو جمعې پروا نهٔ ساتي، اَو داهغوي بزرګي ګڼړي. حال دا چه کامله بزرګي د الله تعالیٰ د محبوب تابعداري ده.

يو حديث کښې راغلي دي چه په دريو کسانو الله جل شانه لعنت ليږي. يو په هغه کس چه د هغهٔ نه مونځګذاري په څهٔ جائزه وجه ناراضه وي او هغه امامت کوي. دوېم په هغه ښځې چه خاوند ترے ناراضه وي. درېم په هغه چا چه د اذان اواز واوري او جمعې کښې شريک نهٔ شي.

⑥ اَخْرَجَ ابْنُ مَرْدَوَيْهِ عَنْ كَعْبِ الْحَبْرِ قَالَ وَالَّذِيْ اَنْزَلَ التَّوْرٰةَ عَلٰى مُوْسٰى وَالْاِنْجِيْلَ عَلٰى عِيْسٰى وَالزَّبُوْرَ عَلٰى دَاوٗدَ

حضرت کَعْب اَحْبَار رحمة الله عليه فرمائي چه قسم د وي په هغه پاک ذات چا چه تورات په حضرت موسیٰ او انجيل په حضرت عيسیٰ او زبور په حضرت داؤد (علیٰ نبينا وعليهم الصلوٰة والسلام) نازل کړے دے

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا) وَالْفُرْقَانَ عَلٰى مُحَمَّدٍ ﷺ اُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَاتُ فِي الصَّلَوٰاتِ الْمَكْتُوْبَاتِ حَيْثُ يُنَادٰى بِهِنَّ يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ اِلٰى قَوْلِهٖ وَهُمْ سَالِمُوْنَ اَلصَّلَوٰاتُ الْخَمْسُ اِذَا نُوْدِيَ بِهَا. واخرج البيهقي في الشعب عن سعيد بن جبير قال الصلوات في الجماعات واخرج البيهقي عن ابن عباس قال الرجل يسمع الاذان فلا يجيب الصلوة كذا في الدر المنثور

قلت وتمام الآية. يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَّيُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ وَقَدْ كَانُوْا يُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ وَهُمْ سَالِمُوْنَ ۝

او قرآن شریف یې په سیدنا محمد ﷺ نازل کړے دے "، دا آیتونه فرض مونځونه جمع سره دا سے ځائې کښې دکولو باره کښې چه کوم ځائې کښې اذان کیږی، نازل شوی دی (ترجمه دا آیتونو) کومه ورځ چه الله جل شانهٗ د ساق تجلّی اُو فرمائی (چه دا یو خاص قِسم تجلّی وی) او خلق به دغه ورځ سجدے دپاره راوبللے شی نو دا خلق به سجده نشی کولے، د دوی سترگے به د شرم نه ټیټے وی او ذلت به پرے خور شوے وی ځکه چه دا خلق به په دُنیا کښې د سجدے د پاره رابللے شو او دوی به روغ جوړ وُو (دپاره یې هم سجده نه کوله)

**فائده:-** د ساق تجلّی یو خاص قِسم تجلّی ده چه د حشر په میدان کښې به وی. دا تجلّی چه اُوینی نو ټول مُسلمانان به په سجده کښې پریوزی - خو بعضے خلق به دا سے وی چه د هغوی ملاگانے به تخته شی او په سجده به یے طاقت نهٔ وی. دا به کوم خلق وی. دے باره کښې تفسیرونه مختلف راغلی دی یو تفسیر دا دے چه کوم د کعب اَحبار رضی الله عنه نه نقل دے. او د دے موافق حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وغیره نه هم نقل کړے شوے دے چه دا به هغه خلق وی چه په دُنیا کښې به د جمع د مانځه دپاره رابللے شو او د جمع مونځ به یے نه کولو. دوېم تفسیر بخاری شریف کښې د حضرت ابُوسعید خُدری رضی الله عنه نه نقل دے چه ما د نبی اکرم ﷺ نه واوریدل چه دا به هغه خلق وی چه په دُنیا کښې د ریا او د خودنے دپاره به یې مونځ کولو. دریم تفسیر دا دے چه دا کافران دی چه په دُنیا کښې یې د سره اَصلاً مونځ کولو نه. څلورم تفسیر دا دے چه د دے نه مُراد مُنافقان دی. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ وَعِلْمُهٗ اَتَمُّ۔

بهرحال د دے تفسیر موافق چه کعب احبار رحمة الله علیه قسم اُوخوړلو او وې فرمایل. او د حضرت ابنِ عباس رضی الله عنه په شان جلیل القدر صحابي امام تفسیر نه د دے تائید کیږی. څومره سخته معامله ده چه د حشر په میدان کښې ذِلت او رسوائي وی چه هلته به ټول مسلمانان په سجده کښې مشغول وی او دوی به سجده نشی کولے.

د دے نه علاوه نور هم عذابونه د جمع په پرېخودو راغلی دی. د مسلمان دپاره خو د يو عذاب بیانولو هم ضرورت نِشته چه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم حکم او ارشاد بس هرڅهٔ دے. او چا سره چه د دے قدر نهٔ وی، د هغهٔ دپاره په زرګونو قسمه عذابونه هم بے کاره دی. کله چه د سزا وخت راشی نو پښیماني به وی چه بے کاره به وی.

# دریم باب

## د خشوعٔ خضوع په بیان کښې

ډیر خلق داسے دی چه مونځ کوی او په دوی کښې ډیر داسے هم دی چه د جمع هم پابندی کوی خو سره د دے داسے په بده طریقه یے کوی چه هغه مونځ په ځائ د دے چه د ثواب او د اجر سبب شی د نقصان په وجه په مخ ورویشتے شی، اګرچه نهٔ کولو نه دا هم بهتر دے. ولے چه د نهٔ کولو په حالت کښې چه کوم عذاب دے هغه ډیر زیات سخت دے. او په دے حالت کښې دا اُوشوه چه قبول نهٔ شو او په مخ ورا اُوویشتے شو، څهٔ ثواب یے اُونهٔ شو. خو نهٔ کولو کښې د کومے درجے نافرماني، غرور، تکبر وو هغه خو به په دے حالت کښې نهٔ وی. البته دا مناسبه ده چه هرکله سړے وخت لګوی، کاروبار پریږدی، مشقت اوچتوی نو د دے کوشش کول پکار دی چه څومره زیاتو نه زیات وزنی او قیمتی کولے

---

لے د ادواړه لفظونه ډیر یو بل سره استعمالیږی خو د دے دواړو کښې څهٔ لږ غوندے فرق هم شته خشوع ویلے شی په زړهٔ سره د الله تعالیٰ مخکښې عاجزی کولو ته. او خضوع وائی د ا واړو د نظر ښکته کولو ته. او د بدن په ټولو اندامونو سره د عاجزی اظهار کول ۱۲ م

شی په دے کښ دِ کمے نه کوی۔ د الله جل شانهٔ ارشاد دے، اگرچه د قربانئ په
باره کښ دے خو حکمتونه ټول یو دی، فرمائی۔ لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُوْمُهَا وَلَا
دِمَآؤُهَا وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ (الحج ع ۵) "نهٔ الله تعالیٰ ته د هغې غوښې
رسی نهٔ د هغې وینه بلکه هغهٔ ته خو ستاسو تقویٰ او اخلاص رسی". پس
د کومے درجے چه اخلاص وی د هغې درجے به قبولیت وی۔

حضرت معاذ رضی الله عنه ارشاد فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم کله څهٔ یمن ته لیږلم نو
ما د آخری وصیت درخواست اوکړهٔ۔ نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه د دین په هر
یو کار کښ د اخلاص اهتمام کوه چه په اخلاص سره لږ عمل هم ډیر څهٔ دے۔

حضرت ثوبان رضی الله عنه وائی چه ما د نبی علیه الصلوٰة والسلام نه واوریدل چه دا یے
فرمایل چه د اِخلاص والو د پاره د خوشحالئ وی چه دوی د هدایت ډیوے
دی د دوی په وجه د سختو نه سختے فتنے لرے کیږی۔

یو حدیث کښ د نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد دے چه الله تعالیٰ د ضعیفو خلقو په
برکت سره د دے اُمت مدد فرمائی۔ دغه شان د دوی په دُعا، د دوی په
مونځ، د دوی په اخلاص سره۔ (ترغیب)

د مانځه په باره کښ د الله جل شانهٔ ارشاد دے۔ فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ الَّذِيْنَ
هُمْ عَنْ صَلٰوتِهِمْ سَاهُوْنَ الَّذِيْنَ هُمْ يُرَآءُوْنَ (الماعون پ ۳۰) (ترجمه) "لویه
خرابی ده هغې خلقو د پاره کوم چه د خپل مونځ نه ناخبره دی۔ داسے دی چه
ښودنه کوی". د ناخبره کیدو هم مختلف تفسیرونه کړے شوی دی۔ یو دا چه
د وخت ورته پته نهٔ وی، قضا یے کړی۔ دویم دا چه متوجه نهٔ وی۔ اخوا
دیخوا مشغول وی۔ دریم دا چه دا ورته معلومه نهٔ وی چه څو رکعتونه
اُوشو۔ بل ځائے د منافقانو د پاره کښ ارشاد الٰهی دے وَاِذَا قَامُوْا اِلَى
الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى يُرَآءُوْنَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا قَلِيْلًا ۔
(النساء ع ۲۱) "او کله چه مانځه ته اُودریږی نو په سستئ را پاسی، صرف خلقو
ته ځان ښائی (چه مونږ هم مونځگذار یو) او د الله تعالیٰ ذکر نهٔ کوی خو
ډیر لږ شانے". یو ځائے د یو څو انبیاؤ علی نبینا وعلیهم السلام ذکر یے فرمایلے دے۔

ارشاد دے۔ فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ۙ (مریم۔ ع ۵) "پس د دے نبیانو نه رستو بعضے داسے نااهله خلق پیدا شول چه هغوی مونځ برباد کړهٔ او د نفس خواهشاتو پسے ورکیدل پس زر دے چه اخرت کښ به خرابی اُوینی." "د غی" ترجمه لغت کښ د گمراهئ ده چه د دے نه مراد د اخرت خرابی او هلاکت دے۔ نورو ډیرو مفسرینو لیکلی دی چه غی د دوزخ یوه طبقه ده چه په هغے کښ وینے زوے وغیره جمع کیږی په هغے کښ به دا خلق واچولے شی۔ یو ځائے ارشاد دے

وَمَا مَنَعَهُمْ اَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقٰتُهُمْ اِلَّاۤ اَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَبِرَسُوْلِهٖ وَلَا يَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ اِلَّا وَهُمْ كُسَالٰى وَلَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ۝ (التوبہ۔ ع ۷)

(ترجمه) "او د دوی خیر خیرات قبلید و نه نور هیڅ څیز سوا د دے نه منع کوونکے نشته دے چه دوی الله تعالیٰ سره او د هغهٔ رسول صلی الله علیه وسلم سره کفر کړے دے او مونځ نهٔ کوی خو سستئ سره او نیک کار کښ خرڅ نهٔ کوی خو په مات زړهٔ سره." د دے په مقابله کښ په ښهٔ شان سره د مونځ کوونکو باره کښ ارشاد دے۔

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ۝ اِلَّا عَلٰۤى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ۝ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ۝ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْوٰرِثُوْنَ ۝ الَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ ؕ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝

(المؤمنون۔ ع ۱) (ترجمه) "بیشکه کامیابئ او فلاح ته ورسیدل هغه مؤمنان چه په خپلو مونځونو کښ خشوع کوونکی دی او هغه خلق چه د عبثو کارونو نه مخ اړوونکی دی) او هغه خلق چه دوی د زکوٰة[1] ورکوونکی دی (یا خپل اخلاق درست کوونکی دی) او هغه کسان چه دوی د خپلو شرمګاهونو حفاظت کوونکی دی سوا د خپلو بیبیانو او وینځو نه چه په دے کښ هیڅ ملامتیا نشته.

[1] د زکوٰة په تفسیر کښ اختلاف دے چه ولته مشهوره معنیٰ د زکوٰة مراد ده یا زکوٰة بدنی یعنی خلق اصلاح یا د نفس تزکیه، ۱۲ کذا استفدنا من الشیخ رح

البته چه څوک دے نه علاوه بل ځائې شهوت پوره کول غواړی هغه خلق حد نه تیریدونکی دی او هغه کسان چه دوی د امانتونو خپلو او د وعدو خپلو لحاظ کونکی دی. او هغه چه خپلو مونځونو اهتمام کونکی دی. هم دا خلق د جنت وارثان دی چه د فردوس وارثان به جوړیږی او همیشه همیشه به په هغې کښې اوسی.

حدیث کښې راغلی دی چه فردوس په جنت کښې د ټولو نه اعلیٰ او بهترینه حصه ده. د هغې نه د جنت نهرونه وتلی دی او په هغې به عرشِ الٰهی وی. کله چه تاسو د جنت دعا کوئ نو جنتُ الفردوس غواړئ.

بل ځائې کښې د مانځه باره کښې ارشادِ الٰهی دے. وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخٰشِعِيْنَ ﴿٤٥﴾ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ وَاَنَّهُمْ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ○ (سورۃ بقرہ) (ترجمه) "بیشکه مونځ گران دے خو چه د چا په زړونو کښې خشوع وی په هغوی هیڅ هم گران نه دے. دا هغه خلق دی چه د دے خیال ساتی چه بیشکه دوی خپل رب سره قیامت کښې یو ځائې کیدونکی دی او د مرګ نه پس هم هغه طرف ته واپس تلونکی دی." د دا سے خلقو په تعریف کښې یو ځائې ارشادِ الٰهی دے. فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ ۙ يُسَبِّحُ لَهٗ فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۙ رِجَالٌ ۙ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَاِقَامِ الصَّلٰوةِ وَاِيْتَآءِ الزَّكٰوةِ ۙ يَخَافُوْنَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيْهِ الْقُلُوْبُ وَالْاَبْصَارُ ۙ لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَيَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۗ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ○ (النور ع ۵) (ترجمه) "دا سے کورونو کښې چه د هغې متعلق الله تعالیٰ حکم فرمایلے دے چه د هغې د ادب اوکړے شی یو رته د کړے شی. په دے کښې سحر او ماښام د الله تعالیٰ تسبیح کوی دا سے خلق چه هغوی ته د الله تعالیٰ د یاد نه او د مونځ قائمولو نه او د زکوٰة ورکولو نه، نه خو تجارت غافلوی او نه خرڅول په غفلت کښې اچوی. د غه خلق د دا سے ورځے د سختئ نه ویریږی په کومه ورځ چه زړونه او سترگے به پریشانه شی (یعنی د قیامت ورځ) او د غه خلق دا هر څه د دے د پاره کوی چه الله جلَّ شانُهٗ د هغوی د نیک عملونو بدله هغوی ته

ورکړی او د بدلے نه هَم ډیر زیات انعامونه په خپل فضل سره ورکړی او الله جلّ شانهٗ خوښ اوته چه اُوغواړی بے شمیره ورکوی. ؎

تُو وہ داتا ہے کہ دینے کے لئے ✦ در تری رحمت کے ہیں ہر دم کُھلے

ته هغه ورکوُنکے یے چه د ورکولو دپاره ✦ دَرستا د رحمت هر وخت پرانستلی دی

حضرت عبد الله بن عباس رضی اللہ عنہ فرمائی د مونځ قائمولو نه مُراد دا دے چه د دے رکوع، سجده په ښهٔ شان اداکړی. پوره په پوره متوجّه اُوسی، او خشوع سره کوی. د قتاده رضی اللہ عنہ نه هم دا نقل کړے شوے د ه چه د مونځ قائمول د هغے د وختونو حفاظت ساتل او د اُوداسهٔ او د رکوع، سجدے په ښهٔ شان اداکول یعنی کوم کوم ځائی چه قرآن شریف کښ اَقَامَ الصَّلٰوۃَ او یُقِیْمُوا الصَّلٰوۃَ راغلی دی. هُم دغه ترے مُراد دے (دُر) هم دا خلق دی چه د دوی تعریف بل ځائی په دے لفظونو ارشاد فرمائیلے شوے دے. وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِیْنَ یَمْشُوْنَ عَلَی الْاَرْضِ هَوْنًا وَّ اِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُوْنَ قَالُوْا سَلٰمًا ۝ وَالَّذِیْنَ یَبِیْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِیَامًا ۝ (الفرقان-ع۶) "د رحمٰن خاص بندګان هغه دی چه په زمکه باندے عاجزئی سره ګرزی (ایغ نیغ نهٔ ګرزی) او کله چه جاهلان هغوی سره (د جهالت) خبرهٔ اُوکړی نو وائی سلام (یعنی د سلامتیٔ خبره کوی چه د شر ختمولو وی یا بس دلرے نه سلام) او دا هغه کسان دی چه ټوله شپه خپل رب ته په سجده کښ تیروِی او مانځه کښ ولاړ وی." ورپسے یے نور څو صفتونه ذکر کړی دی بیا ارشاد دے. اُولٰٓئِكَ یُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوْا وَیُلَقَّوْنَ فِیْهَا تَحِیَّةً وَّسَلٰمًا ۝ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ۝ (الفرقان-ع۶) هم دا خلق دی چه دوی ته به د جنت بالاخانے بدله کښ ورکړے شی ځکه چه دوی صبر اُوکړو (یا په دین باندے محکم پاتے شو) او جنت کښ به یے د فرښتو له طرفه په دُعا او سلام سره استقبال اُوکړے شی. او په دغے جنت کښ به دوی همیشه همیشه اُوسی. څومره ښهٔ ځائی د قرارئ دے او د اُستوګنے." بل ځائی ارشاد دے. وَالْمَلٰٓئِكَةُ یَدْخُلُوْنَ عَلَیْهِمْ مِّنْ كُلِّ بَابٍ ۝ سَلٰمٌ عَلَیْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَی الدَّارِ ۝ (الرعد-ع۳) "او فرښتے به د هرے دروازے

نه په دوی باندے داخلیږی اَو وائی به چه په تاسو دِ سلام (اوسلامتی) وی په دے وجه چه تاسو صبر اُوکړهٔ (یا په دین باندے مضبوط او مُحکم پاتے شوئ) پس ښهٔ دے عاقبت د هغه جهان؟ د دے خلقو تعریف بل ځائی کښ په دے الفاظو سره کړے شوے دے. تَتَجَافٰى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُونَ ۝ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءً ۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ (السجده. ع ۲) "هغه خلق داسے دی چه د شپے د دوی ډډے د خوب د ځایونو او د بسترو نه جُدا اَوی (په مونځ کښ مشغول وی او) خپل رب بَلی د عذاب له ویرے او د ثواب په اُمید کښ. او څه مونږ ورکړے شوی څیزونو نه خرچ کوی. پس هیچا ته معلومه نهٔ ده چه د داسے خلقو دپاره څومره د سترګو د یخوالی سامان د غیب په پرده کښ موجود دے چه د دوی د نیک عملونو بدله ده." د دے خلقو به شان کښ دی. اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ۝ اٰخِذِيْنَ مَآ اٰتٰىهُمْ رَبُّهُمْ ۚ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُحْسِنِيْنَ ۝ كَانُوْا قَلِيْلًا مِّنَ الَّيْلِ مَا يَهْجَعُوْنَ ۝ وَبِالْاَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ۝ (الذاریات. ع ۱) "بیشکه چه مُتقیان به په جنتونو (باغونو) او د اُوبو د چینو په مینځ کښ وی او دوی ته د دوی رَب او مالک کوم ثواب ورکړے دے هغه به په خوشحالئ خوشحالئ اَخلی او ولے به به نهٔ وی چه دغه خلق د دے نه مُومبے (په دُنیا کښ) نیکی کوُنکی وُو. دوی به د شپے ویر کم خوب کوُلو او په اخره شپه کښ به یے استغفار کوُلو (د الله تعالیٰ نه به یے بخښنه غوښتله)

یو ځائی ارشادِ اِلٰهی دے. اَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ اٰنَآءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَّقَآئِمًا يَّحْذَرُ الْاٰخِرَةَ وَيَرْجُوْا رَحْمَةَ رَبِّهٖ ۗ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۗ اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ ۝ (الزمر. ع ۱) "(ایا برابر کیدے شی بے دینه او هغه کس چه عبادت کوُنکے وی د شپے په وختونو کښ. کله سجده کوُنکے او کله نیت اُوتړی ولاړ وی د اخرت نه ویریږی او د خپل رَب د رحمت اُمید وار وی (ویره ښهٔ ده ته د هغوی نه د تپوس اُوکړه) چې ته عالِم او

جاهل برابریدے شی؟ او دا ښکاره خبره ده چه عالِم به دخپل رَب عبادت کوی او چه څوک دا سے کریم سخی مَولیٰ عبادت نه کوی هغه جاهل بلکه اَجْهَلُ (لوئ جاهل) دے) بیشکه نصیحت هغه خلق اخلی چه دعقلونو خاوندان دی"۔ یو ځائ ارشاد دے۔

اِنَّ الْاِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا ۝ اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًا ۝ وَّاِذَا مَسَّهُ الْخَیْرُ مَنُوْعًا ۝ اِلَّا الْمُصَلِّیْنَ ۝ الَّذِیْنَ هُمْ عَلٰی صَلٰوتِهِمْ دَآئِمُوْنَ ۝ (المعارج۔ ع۱) "بیشکه چه انسان غیرمستقل مزاج (یعنی بے صبره) پیدا کړے شوے دے۔ کله چه ده ته تکلیف اُورسی نو ډیر زیات وارخطا کیږی او کله چه ورته خیر اُورسی نو بخل کوونکے شی، (چه نور وته دا خیر اُونهٔ رَسی خو اَو) هغه مونځ گذار چه دخپلو مونځونو همیشه پابندی کوی او په آرام او قلار یے کوی"۔ ورپسے یے دوی څو صفتونه ذکر کړی دی. بیا ارشاد دے چه، وَالَّذِیْنَ هُمْ عَلٰی صَلَاتِهِمْ یُحَافِظُوْنَ ۝ اُولٰٓئِكَ فِیْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ ۝ (المعارج۔ ع۱) او هغه کسان چه دمونځونو حفاظت کوی هم دا خلق دی چه ددوی به په جنتونو کښ اکرام (او عزت) کولے شی۔

دے نه علاوه نور هُم ډیر آیتونه دی چه په هغے کښ دمونځ حُکم او دَ مونځ گذارو فضیلتونه دهغوی اعزاز او اکرام ذکر کړے شوی دی۔ او په حقیقت کښ مونځ دے هُم دا سے دولت۔ هم په دے وجه ددوارو جهانونو سردار، فخرِرُسُل نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه ځما دسترگو یخوالے په مانځه کښ دے۔ هُم په دے وجه حضرت ابراهیم خلیل الله علیه السلام دُعا فرمائی رَبِّ اجْعَلْنِیْ مُقِیْمَ الصَّلٰوةِ وَمِنْ ذُرِّیَّتِیْ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ ۝ (ابراهیم۔ ع۶) "اے رَبه! ما دمونځ خاص اهتمام کوونکے جوړ کړے او ځما په اولاد کښ هُم داسے خلق پیدا کړے چه دمونځ اهتمام کوونکی وی۔ اے ځمونږه رَبه ځما دُعا قبوله کړے۔" دَ الله تعالیٰ یو خوږ نبی چه هغهٔ ته دخلیل (دالله تعالیٰ ددوستئ) هم فخر حاصل دے، هغه دمونځ پابندی او دهغے اهتمام دالله تعالیٰ نه غواړی۔ پخپله حق سُبْحَانَهٗ وَتَقَدَّسَ خپل محبوب سَیِّدُ الْمُرْسَلِیْنَ ته حکم فرمائی۔ وَاْمُرْ

اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْئَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى - (طٰہٰ - ۸) "خپل کور والو ته د مانځه حکم کوه او په خپله هم د دے پابندی کوه - مونږ له تا نه روزی (کټل) نه غواړو - روزی خو به تا ته مونږ درکوو - او بهترین انجام خو د پرهیزګارئ دے"

حدیث کښ راغلی دی چه کله به په نبی اکرم ﷺ څه تنګسیا وغیره راغله نو د کور خلقو ته به یې د مانځه حکم فرمایئ او دا ایت به یې تلاوت کړلو - او هم دا د انبیاء علیهم الصلوٰة والسلام عمل نقل کړے شوے دے چه کله به د وی حضراتو ته څه تکلیف پیښ شو نو مانځه کښ به مشغول شول - خو مونږ د دے ضروری څیز نه دا سے غافله او بے پروا یو چه د اسلام او د مسلمانئ لوئ لوئ دعوو سره هم د یخوا نه متوجه کیږو - بلکه که څوک بلونکے ویونکے را پاسی نو هغه پسے خبرے کوو او مخالفت یې کوو - او کوم خلق که مونځ هم کوی په هغوی کښ ډیرے داسے کوی که مونځ پورے تو قے ور ته اوډیلے شی نو بے ځایه به نه وی اکثر ارکان هم پوره نه ادا کوی - د خشوع خضوع به یې څه وایے - حال دا چه د نبی اکرم ﷺ نمونه څمونږ د مخکښ ده - هغوی هر کار په خپله خود لے دے - د اصحابو کرامو رضی الله عنهم اجمعین کارنامے هم څمونږ وړاندے دی - د هغوی تابعداری کول پکار دی - د اصحابو کرامو رضی الله عنهم اجمعین څو قصے د نمونے په طور خپله رساله "حکایاتِ صحابه" کښ م لیکلی دی - د لته د هغے دوباره ذکر کولو ضرورت نشته - البته په دے رساله کښ څو قصے د بزرګانو نقل کوم - بیا ورپسے به د نبی اکرم ﷺ ارشادات نقل کوم -

شیخ عبد الواحد رحمة الله علیه د مشهورو بزرګانو نه دے ، فرمائی چه یوه ورځ را باندے خوب دومره غالب شو چه د شپے اوراد او وظیفے رانه هم پاتے شوے په خوب کښ وینم چه یوه ډیره ښائسته ښکلے جینئ چه د شنو ریښمو جامے یې اغوستلے دی چه د هغے د پښو پیڅرے هم په تسبیح (او ذکر) کښ مشغولے دی - وائی چه ځما په طلب کښ کوشش کوه ، څه ستا په طلب کښ یم - د یے نه پس یې د عشق و محبت اشعار اوویل - چه د خوبه راپاسیدم قسم م اوخوړه

چه د شپې به نهٔ اُوده کیږم - وائی چه خلو ښتو کالو پورې یې د سحر مونځ
دما سخوتن په اُوداسهٔ کړے دے - (نزهته)

شیخ مظهر سعدی رحمته الله علیه یو بزرګ دے چه د الله جل شانهٔ په عشق و
محبت کښې یې تر شپیتو کالو پورې ژړل - یوه شپه یې خوب کښې اُولیدل
چه لکه یو واله ده چه خالص د مشکو نه ډکه ده - د هغې په غاړو د ملغلرو
وُنې د سروزرو د څانګو خوزی - هلته یو څو پیغلې جینکئ په زوره زوره
د الله تعالیٰ په تسبیح کښې مشغولې دی - ده ترې تپوس اُوکړهٔ، تاسو څوک یئ.
نو هغوی دوه شعرونه اُوویل چه د هغې مطلب دا دے چه مونږ د خلقو معبود
او د محمد صلی الله علیه وسلم پروردګار هغې خلقو د پاره پیدا کړی یُو چه د شپې د خپل
پروردګار د وړاندې په خپلو قدمونو باندې ولاړ وی او د خپل الله
تعالیٰ سره مناجات (راز و نیاز) کوی -

اَبُوبکر ضریر رحمته الله علیه فرمائی چه څما په خوا کښې یو ځلمے غلام اُوسیدهٔ -
ټوله ورځ به یې روژه نیوله او ټوله شپه به یې تهجد کوّل - یوه ورځ هغه ما
ته راغے بیان یې اُوکړهٔ چه څهٔ اتفاقاً نن شپه اُوده شوے وَم - خوب کښې م اُولیدل
چه د محراب دیوال اُوچوّدهٔ - د هغې نه یو څو جینکئ ډیرے ښائسته او ښکلے را ښکاره
شوے - خو په هغوی کښې یوه ډیره بد شکله هَم وه - ما د هغوی نه تپوس
اُوکړهٔ - تاسو څوک یئ او دا بد شکله څوک ده ؟ هغوی اُوویے چه مونږ ستا
تیرے شوے شپې یُو او دا ستا نننئ شپه ده - (نزهته)

یو بزرګ فرمائی چه ماته یوه شپه داسے سخت خوب راغے چه ستړے م
اُونهٔ غرپیدے - ما په خوب کښې اُولیدل چه یو داسے ښائسته جینئ ده چه د
هغې په شان م ټول عُمر کښې نهٔ وه لیدلے - د هغې نه داسے تیزه خوشبوئی تله
چه ما د غسے خوشبوئی چرے هم نهٔ وه بوئی کړے - هغې ماته د کاغذ یوه پرچه راکړه
په هغې کښې درے شعرونه لیکلی وُو، د هغې مطلب دا وُو چه تهٔ د خوب په خوند
کښې مشغول شوے او د جنت د بالاخانو نه غافل شوے چه هلته همیشه ستا
اُوسیدل دی - او مرګ هَم هلته نهٔ راځی - د خپله خوبه پاسه - دَ اُوده کیدو نه

په تهجد وکښې قرآن لوستل بهتر دی. دے وائی، دے نه پس چه کله ما ته خوب راځی او دا اشعار راپه یاد شی نو خوب رانه ېښنی اُوتختی.

حضرت عطاء رحمة الله علیه فرمائی چه څهٔ بازار ته لاړم هلته یوه وینځه خرڅیدله چه لیونئ خودلے شوه. ما په اُووۂ اشرفئ واخستله او کورته م راوسته. کله چه دَ شپے څهٔ حِصه تیره شوه، ما اُولیدل چه هغه پاسیدله، اُودس یے اُوکړهٔ، مونځ یے شروع کړهٔ او په مانځه کښې دَ هغې دا حالت وو چه په ژړا ژړا ترے ساه وتله. دَ مانځه نه پس یے مُناجات شروع کړل او دا یے اُووے. اے خُدائے! ستا دِ ما سره په محبت قسم وی چه په ما رحم اُوکړه. ما ورته اُووے، دا رنګے مهٔ وایه، داسے وایه چه خُدایه دِ تا سره په محبت سا تلو قسم وی. دا چه یے واوریدل نو غصه شوه. او وے ویل، قسم م دِ وی په هغه ذات کهٔ چرے دَ هغهٔ ما سره محبت نهٔ وے نو تهٔ به یے په خوږ خوب اُودهٔ کړے نهٔ او څهٔ به یے ځان ته داسے اُودرَولے نهٔ. بیا په مخے پریوتله او څو شعرونه یے اُووے چه دَ هغې مطلب دا دے "چه بے آرامی (ساعت په ساعت) زیاتیږی، زړهٔ م سوزی، صبر لاړو، اُوښکے م بهیږی. هغه کس ته څهٔ رنګے قرار راتلے شی چه هغه دَ عِشق او شوق پریشانو بے آرامه کړے دے. اے الله! کهٔ دَ خوشحالئ څهٔ څیز وی هغه ما ته راکړے په ما احسان اُوکړے". دِے نه پس یے په اُوچت آواز سره دا دُعا اُوکړه چه اے الله! خُدایا اوس تا معامله تر اوسه پورے پټه وه، اُوس مخلوق پرے خبر شو. اُوس ما واخله. دا یے اُووے او په زوره یے یوه چغه اُووَهله او مړه شوه.

دَدے قِسمه یوه واقعه حضرت سرِی رحمة الله علیه سره هُم پېښه شوے وه. دے وائی چه ما دَ خپل خدمت دپاره یوه وینځه واخسته، څه مُودے پورے هغې خُما خدمت کولو او خپل حالت به یے ما نه پټولو. دَ هغې دَ مانځه یو ځائے مُقرر وو. کله چه به دَ کار نه فارغه شوه، هلته به لاړله، مانځه کښې به مشغوله شوه. یوه شپه ما اُولیده چه هغه کله مونځ کوی او کله مُناجات کښې مشغوله شی، او وائی چه تهٔ دَ هغې محبت په وسیله چه ستا ما سره دے فلانے فلانے کار

اُوکړے۔ ماورته په زوره اُووے چه اے شیخ! دا سے وایه چه څما د محبت په وسیله سره چه څما تا سره دے۔ ورے ویل څما آقا! که چرے د هغهٔ ما سره محبت نهٔ وے نو ته به یے دما غځه نه کینولے نه اوځهٔ به یے ځان ته اُودرولے نه۔ بِسری وائی چه کله سحر شو نو ما راؤغوښتله، ورته م اُووے چه ته څما د خدمت قابله نهٔ یے۔ د الله تعالیٰ د عبادت لائقه یے۔ څهٔ سامان م ورته ورکړهٔ آزاده م کړه۔ (نزهة)

حضرت بِسری سقطی رحمة الله علیه دیو زنانه حال بیانوی چه کله به هغه د تهجّد و ما نځه ته اُودریدله، نو ویل به یے، اے الله! ابلیس هم ستا یو بنده دے۔ د هغهٔ تندے (او وجود) ستا په قبضه کښ دے۔ هغه ما وینی او ځهٔ هغه نهٔ وینم، ته هغه وینے او د هغهٔ په ټولو کارونو قدرت لرے۔ او هغه ستا په هیڅ کار قدرت نهٔ لری۔ اے الله! که چرے هغه څما بدی غواړی نو ته هغه لرے کړے او که هغه ما سره دوکه کوی نو ته د هغهٔ نه د دوکے بدله واخلے۔ د هغهٔ د شرنه په تا سره پناه غواړم او ستا په مدد سره هغه لرے کوم دے نه پس یے ژړل تر دے چه په ژړا ژړا کښ یے دیو سترگے نظر ختم شو. خلقو ورته اُووے د الله تعالیٰ نه اُویریږه چرته دِ بلے سترگے نظر ولاړ نشی. هغ اُوویل که چرے دا سترگه د جنت سترگه ده نو الله جل شانه به دد نه بهتره راکړی او که چرے د دوزخ سترگه ده نو د دے لرے کیدل بنهٔ دی.

شیخ ابو عبد الله جلاء رحمة الله علیه فرمائی چه یوه ورځ څما مور څما پلار ته د کب راوړلو اُووے۔ پلار صاحب بازار ته تشریف یوړهٔ۔ ځهٔ هم ورسره وم۔ کور ته راوړلو دپاره مو مزدور تلاش کولو۔ یو ځوان هلک خوا کښ ولاړ وو، ورے ویل، کاکا جی! د دے د اُوچتولو دپاره مزدور پکار دے؟ پلار م اُووے او۔ هغ هلک په خپل سر باند ے اُوچت کړو، مونږ سره راروان شو۔ په لاره کښ هغهٔ د اذان آواز واؤریده۔ ورے ویل چه د الله تعالیٰ له طرفه بلنه راغله ځهٔ به اودس هم کوم. د ما نځه نه پس به یے یوړے شم. که ستاسو زړهٔ غواړی انتظار اُوکړئ کنی خپل کب واخلئ۔ دا یے اُووے کب یے کیخودهٔ لاړو۔ څما

پلار خیال اُوکړو چه دا مزدور هلك خود دا سے کوی. مونږ ته خو دغه نه زیات په الله تعالیٰ باندے تکیه کول پکار دی. دا یے سوچ اُوکړو. هغهٔ هُم کټ هلته کیښودهٔ جُمات ته لاړو. د مانځه نه چه فارغ شُو تول راغلو، نو کټ هم هغسے پروت وُو. هغه هلك را اُوچت کړو څمونږ کور ته یے را اُورسَوُو. کور ته چه لاړو پلار م دا عجیبه قصه مور ته واوَرَوُله. هغې ور ته اُووے چه ایسار یے کړه چه هغه هم کټ اُوخوری بیا یې. هلك ته چه یے اُووے، هغهٔ اُووَیل څما خو روژه ده. پلار صاحب مے اصرار اُوکړو چه ماښام د لته را شه روژه ما ته کړه. هلك اُووے چه څهٔ یو وارے لاړ شم بیا نهٔ راځم. خو دا کیدے شی چه څهٔ به دے نزدے جُمات کښې یم چه ماښام ستا سو دعوت اُوخورم لاړ به شم. دا یے اُووے خوا کښې نزدے جُمات ته لاړو. ماښام دَ مانځه نه پس راغے او خوراك یے اُوکړو او د خوراك نه پس ور ته ځان له د شپے تیرولو ځائے اُوخودلے شو. څمونږ په خوا کښې نزدے یوه گوډه ښځه ژرانه اُوسیدله مونږ اُولیدل چه هغه یعنی روغه جوړه را رَوانه ده. مونږ ترے تپوس اُوکړو چه ته څنګه ښهٔ شوے. وے وئیل چه ما دے میلمه په وسیله دُعا اُوکړه چه اے الله! د دهٔ په برکت سره ما ښهٔ کړے ځکه فوراً ښهٔ شوم. د دے نه پس چه مونږ هغه ځائے ته د هغهٔ د لیدو د پاره ورغلو. نو څهٔ گورو چه دروازے بندے دی او د هغې مزدور چرته پته نهٔ وه.

دیو بزرګ قصه یے لیکلے ده چه د هغهٔ په پښه کښې ننګئ را اُوختله، طبیبانو اُووے که چرے د دهٔ پښه پرے نکړے شوه نو د هلاکت خطره ده. د هغهٔ مور صاحبے اُووے چه لږ صبر اُوکړئ چه دے د مانځه نیت اُوتړی نو بیا ترے پریکړئ نو هم دا سے اُوکړے شو. هغهٔ ته اُګړ و معلومه نهٔ شوه.

اَبُوعَامِر رَحۡمَۃُ اللّٰہِ عَلَیۡہِ فرمائی چه ما یوه وینځه اُولیدَه چه په کم قیمت خرڅیدله ویره کمزورے وه. د هغې گیډه د ملا سره لګیدلے وه. ویښتهٔ یے خواره واره وُو. ما ته پرے رَحم راغے، وَاخِستَه. ور ته م اُووے چه ما سره بازار ته لاړه شه چه د روژے د میاشتے د پاره څهٔ ضروری سامان واخلو. دے اُوویل

چه د الله تعالیٰ شکر دے چه هغهٔ ما د پاره ټول میاشتے پوشان کړی دی.
دے به همیشه دَورځے روژه نیوله او ټوله شپه به یے مونځ کولو. کله چه
اَختر نزدے راغے نوما ورته اُووے چه صبا سحر به بازارته ځو، ته هم راسره
لاړه شه. د اَختر د پاره به څهٔ ضروری سامان واخلو، راؤبه رُو. وے وَیل، ځما
آقا! ته خو په دُنیا کښ ډیر مشغول یے. بیا دَننه لاړه، او په مانځه کښ مشغوله
شوه. او په اطمینان سره یو یو ایت به یے په شوق او مزے سره لوستلو تردے چه
دے ایت ته اُورسیده وَيُسْقٰى مِنْ مَّآءٍ صَدِيْدٍ الآية (سورة ابراهيم - ع ۳) دا ایت یے بار بار
ویلو او یوه کریکه یے اُووَهله، د دے دُنیا نه رُخصت شوه.
دیوسَیّد صاحب قصه یے لیکلے ده چه دولس وَرځو پورے یے په یو اَودس
ټول مونځونه اُوکړل. او پنځلس کاله پورے په یے د سملاستو موقع یے را نغله. څو
څو وَرځے به داسے تیرے شوے چه د هیڅ څیز څکلو موقع به یے را نغله.
مجاهده کونکو خلقو کښ د دے قِسمه واقعات ډیر زیات مونده شی.
د دے حضراتو په شان دنیکئ حرص خو ډیر مشکل دے چه الله جلّ شانهٔ
د دوی پیدا کړی هُم د دے د پاره وُو. خو چه کوم بزرګان د دینی کارونو سره
په دُنیوی کارونو کښ مشغول وُو، د هغوی حرص هم نمونه په شان خلقو تهٔ کران دے.
حضرت عُمَر بن عَبْدُ الْعَزِيْز رحمة الله عليه نه ټول خلق واقف دی. د خُلفاءِ راشدینو
نه پس د دوی مُقام دے. د دوی بی بی صاحبه فرمائی چه عمر بن عبد العزیز
نه زیات په اَودسهٔ او مانځه کښ مشغولیدونکی خو به نورهُم وی خود دهٔ نه
زیات الله تعالیٰ نه ویَریدونکے مانهٔ دے لیدلے. د ماسخوتن مانځه نه پس
به په مُصَلیٰ کیناستهٔ او دُعا د پاره به یے لاس اُوچت کړهٔ او ژړل به یے.
تردے چه په دے کښ به پرے د خوب غلبه اُوشوه نو سترګے به یے ورغلے
بیا به چه کله پاسیدهٔ نو دا رنګے به یے ژړل او په دُعا کښ به مشغولیدهٔ. وائی
چه د خلافت نه پس د جَنابت د غُسل موقع ورته نهٔ وه راغلے. د دوی بی بی
صاحبه د عبد الملک بادشاه لُوروه. پلار ورته ډیر څهٔ کالی جواهرات
ورکړی وُو. او یو داسے ملغلره یے ورکړے وه چه د هغے مثال نهٔ وو. د دوی

خپلے بی بی ته اُوفرمایل چه په دوه وُخبرو کښ یوه واخله. یا خو هغه کالی دالله تعالیٰ دپاره راکړه چه څهٔ یے په بیتُ المال کښ داخل کړم. یا ما نه جُدائیَ اختیار کړه. ما ته داځیزونا خوښه دی چه څهٔ او دا مال دِ په یو کور کښ یو ځائ یُو. بی بی عرض اُوکړهٔ چه دا مال څهٔ ځیز دے، څهٔ خو به درے نه په څو چنده زیات باندے هم تاسو نهٔ پریږدم. دا یے اُووے، ټول مال یے په بیتُ المال کښ داخل کړهٔ. ددوی دوفات نه پس کله چه دعبدالملک ځوئ یزید بادشاه شو نو هغه دخور نه پوښتنه اُوکړه که چرے ته غواړے نو ستا کالی به تا ته واپس کړے شی. وے ویل چه کله د هغهٔ په ژوند کښ څهٔ په هغے خوشحاله نهٔ شوم نو دهغهٔ دمرګ نه پس به پرے څهٔ خوشحاله شم. مَرَضُ المَوْت (یعنی کوم مرض کښ چه وفات شو) دوی دخلقو نه تپوس اُوکړهٔ چه درے مرض متعلق دخلقو څهٔ خیال دے. چا عرض اُوکړهٔ چه خلق یے جادُو ګنړی. دوی اُوفرمایل دا نهٔ ده. بیا یو غُلام یے راُوبلهٔ، تپوس یے ترے اُوکړهٔ چه ما ته زهر راکولو باندے ته څهٔ ځیز تیار کړے. هغهٔ اُووے چه سَل اَشرفئی یے راکړے دی او دا زادئ وعده یے را سره کړیده. ورته یے اُوفرمایل هغه اَشرفئی راوَړه. هغهٔ راوړے. دوی هغه بیتُ المال کښ داخلے کړے. او هغے غُلام ته یے اُوفرمایل، ته داسے ځائ ته لاړ شه چه هلته دِ څوک اُونهٔ وینی. دوفات په وخت مَسْلَمَه رحمة الله علیه دَ دوی په خدمت کښ حاضر شو او عرض یے اُوکړهٔ چه تاسو اَولاد سره داسے اُوکړل چه هیچا به نهٔ وی کړی. ستا سو دیارلس ځامن دی او هغوی دپاره دِ نهٔ روپئ پریخودے او نهٔ پیسے. دوی ورته اُوفرمایل چه لږ ما کینوئ. کیناست نو وے فرمایل چه ما دَ هغوی هیڅ حق نهٔ دے لاندے کړے او دَ نورو حق مِ هغوی ته نهٔ دے ورکړے. پس که چرے هغوی صالحان وی نو الله جلّ شانهٔ په خپله دهغوی کفیل (ضامن) دے. په قرآنِ پاک کښ ارشاد دے. وَهُوَ يَتَوَلَّى الصّٰلِحِيْنَ. (الاعراف) "الله تعالیٰ د صالحانو کارساز دے." او که چرے هغوی ګنهګار وی نو څهٔ یے هیڅ پرواه نهٔ کوم.

حضرت امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه چه د فقهې مشهور امام دے، ټوله ورځ
به په مسئلو کښې مشغول وو. او سره د دے به یې شوا روز کښې درے
سوۀ رکعته نفل کول. حضرت سعید بن جبیر رحمة الله علیه به په یو رکعت
کښې یو قرآن شریف لوستلو.

حضرت محمد بن منکدر رحمة الله علیه د حدیث په حافظانو کښې دے. یوه
شپه یې په تهجد وکښې دومره اوژړل چه څۀ حد یې نۀ وو. چا ترے
پوښتنه اوکړه نو وے فرمایل په تلاوت کښې م دا آیت راغلے وو. وَبَدَا لَهُمْ
مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمْ يَكُوْنُوْا يَحْتَسِبُوْنَ ۝ (الزمر ع ۵) (تر آخره پورے) د دے نه
پورتنی آیت کښې د دے ذکر دے. که چرے ظلم کونکو سره د دُنیا ټول څیزونه
شی او هغومره ورسره نور هم شی نو هغوی به یې د قیامت په ورځ سخت
عذاب نه خلاصیدو د پاره فدیه کښې ورکړی. د دے نه پس ارشاد دے وَبَدَا لَهُمْ
(الآیة) او د الله تعالیٰ له طرفه به هغوی د پاره (د عذاب) هغه معامله مخکښې
راشی چه هغوی ته د دے ګمان هم نۀ وو. او دغه وخت به هغوی ته خپلے
ټولے بدعملئ ښکاره شی. حضرت محمد بن منکدر رحمة الله علیه د وفات په وخت
هم ډیر وېرېدلو او ویل به یې چه د دے آیت نه وېرېږم.

حضرت ثابت بُنانی رحمة الله علیه د حدیث په حافظانو کښې دے. دومره ډیر به
د الله تعالیٰ مخکښې ژړیدلو چه څۀ حد یې نۀ وو. چا ورته اووے چه د
سترګو نظر به د لاړ شی. وے فرمایل که په دے سترګو اونۀ ژاړم نو فائده
یې څۀ شوه. دا دُعا به یې کوله چه اے الله! که چرے چا ته په قبر کښې د مونځ
کولو اجازت کیدے شی نو ما ته د هم اوشی. ابوسنان رحمة الله علیه فرمائی، په
الله پاک د قسم وی څۀ په هغه خلقو کښې وم چا چه ثابت رحمة الله علیه دفن کړے وو
دفن کولو په وخت کښې د لحد نه یوه خښته پریوتله نو ما اولیدل چه هغه
ولاړ دے مونځ کوی. ما خپل ملګری ته اووے، اوګوره دا څۀ کیږی. هغه
ما ته اووے چپ شه. هر کله مونږ چه دفن کړه نو کور ته یې لاړم. د لور نه
م پوښتنه اوکړه چه د ثابت رحمة الله علیه عمل څۀ وو. هغې اووے ولے تپوس کوے؟

ما ورته قصه بیان کړه. هغه اُووے چه پنځوس کاله یے شوګیره اُوکړه او سحر به یے همیشه دا دُعا کوله. اے الله! که چرے ته چاته دا دولت ورکوے چه هغه دِ په قبر کښې مونځ اُوکړی نو ماته یے هم را اُکړے. (اقامة الحجة)

حضرت امام ابُویُوسف رحمة الله علیه سره د عِلمی مشغلو چه ټولو ته معلوم دی او دد ے نه علاوه د قاضِیُ القُضَاة په وجه د قضا مشغلے یے جُدا اوے خو بیا به یے هم دوه سوه رکعته نفل هره ورځ کول.

حضرت محمّد بن نصر رحمة الله علیه مشهور مُحدِّث دے. دومره په شوق او تَوجُّه سره به یے مونځ کولو چه د هغه مثال مُوندل ګران دی. یو وارے په ماتخه کښې په تنډی مچئ اُوچیچه چه د هغے په وجه وینه ترے هم را اُوتله خو نه یے څه حرکت اُوکړهٔ او نه یے په خشوع خضوع کښې څه فرق راغے. وئیلے شی چه په مانځه کښې به د لرګی په شان بے حرکته ولاړ وو.

حضرت بقی بن مخلد رحمة الله علیه به هره شپه د تهجد وا و دو ترو دیارلس رکعتونو کښې پوره قرآن شریف لوستلو.

حضرت هنّاد رحمة الله علیه یو محدّث دے. د هغهٔ شاګردان وائی چه دوی به ډیر زیات ژړل. یو ځل یے سحر مونځ ته سبق اُوخودهٔ. دے نه پس اودس وغیره نه فارغ شو، تر زواله پورے یے نفلونه کول. غرمه یے کور ته تشریف یوړهٔ او بیا ساعت پس راغے د ماسپخین مونځ یے ورکړهٔ او تر مازیګره په نفلو کښې مشغول وو. بیا یے د مازیګر مونځ ورکړهٔ او د قرآنِ پاک تلاوت یے تر ماښامه کولو. ماښام نه پس ترے څهٔ واپس راغلم. ما د هغهٔ یو ګاونډی ته په تعجب سره اُووے چه دا کس څومره عبادت کونکے دے. هغهٔ اُووے چه دا اویا کالو نه د دهٔ دا عمل دے. او که چرے ته د دهٔ د شپے عبادت اُووینے نو نور به هم تعجب اُوکړے.

مسروق رحمة الله علیه یو محدّث دے. د دهٔ بی بی وائی چه دهٔ به مونځونه دومره اُوږد دهٔ اُوږد کول چه د هغے په وجه یے په پښو کښې همیشه پړسوب وو. او څهٔ به د دهٔ نه رُستو ناسته وُمه او د دهٔ په حال به رحم راتلو ژړل به مې

د سَعِید بن المُسَیَّب رحمة الله علیه متعلق یے لیکلی دی چه پنځوس کالو پورے د ماسخوتن اودس سحر مونځونه یے په یو اودس کړی دی. او د ابو المُعتَمِر رحمة الله علیه متعلق یے لیکلی دی چه د څلویښتو کالو پورے یے دغسے کړی دی. امام غزالی رحمة الله علیه د ابو طالب مکی رحمة الله علیه نه نقل کړی دی چه د څلویښتو تابعینو نه د تواتر په طریقه دا خبره ثابته ده چه هغوی به د ماسخوتن په اودس د سحر مونځ کولو. په دوی کښں د بعضو تر څلویښتو کالو پورے هم دا عمل وو. (اتحاف)

د حضرت امام اعظم رحمة الله علیه متعلق خو ډیر زیات دا خبره نقل کړے شوے دے چه دیرش یا څلویښت یا پنځوس کاله د ماسخوتن او د سحر مونځونه یے په یو اودس کړی دی او د اِختلاف د نقل کونکو د اختلاف په وجه سره دے چه چا ته یے د څومره کالو علم وُو هغومره یے نقل کړو. لیکن چه د دوی عادت صرف د غرمے لږ ساعت د اُده کیدو وُو. او دا به یے فرمایل چه د غرمے د اُوده کیدو په حدیث کښں حکم دے.

د حضرت امام شافعی رحمة الله علیه عمل وُو چه په رمضان کښں به یے شپیته قرآن شریفه په مانځه کښں لوستل. یو کس وائی چه څو ورځو پورے امام شافعی رحمة الله علیه سره پاتے شوم. صرف د شپے به لږ ساعت اُوده کیدهٔ.

حضرت امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه به د ورځے درے سوه رکعته هره ورځ کول. او کله چه د وخت بادشاه په ګوزارو اُو وهلو نو د دے په وجه ډیر کمزورے شو نو بیا به یے یونیم سل رکعته کول او تقریباً د اتیاؤ کالو عمر یے وو.

ابو عتّاب سُلَمِی رحمة الله علیه تر څلویښتو کالو پورے به یے ټوله شپه ژړل او د ورځے به یے همیشه روژه نیوله.

دے نه علاوه په زرګونو لکهونو واقعات د توفیق والو د تاریخ په کتابونو کښں ذکر دی چه د هغے راجمع کول هُم ګران دی. د نمونے او د مثال د پاره بس دا واقعات کافی دی. الله جلّ شانهٔ دِ ماته هُم او تاسو ته هُم د دے حضراتو د تابعدارۍ څهٔ حِصه په خپلے مهربانۍ او فضل سره نصیب کړی. (آمین)

(۱) عَنْ عَمَّارِ بْنِ یَاسِرٍ رضی الله عنه | د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه سړے

قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ الرَّجُلَ لَيَنْصَرِفُ وَمَا كُتِبَ لَهٗ اِلَّا عُشْرُ صَلٰوتِهٖ تُسْعُهَا ثُمُنُهَا سُبُعُهَا سُدُسُهَا خُمُسُهَا رُبُعُهَا ثُلُثُهَا نِصْفُهَا

دمانځه نه فارغ شي نو دهٔ د پاره د ثواب لسمه حصه اُو لیکلے شي. دغسې د بعضو د پاره نهمه حصه، د بعضو د پاره اتمه، اُوومه، شپږمه پنځمه، څلورمه، دريمه، نيمه حصه ليکلے شي.

(رواه ابو داؤد وقال المنذري في الترغيب رواه ابو داؤد والنسائي وابن حبان في صحيحه بنحوه اھ وعزاه في الجامع الصغير الى احمد وابي داؤد وابن حبان ورقم له بالصحيح وفي المنتخب عزاه الى احمد ايضاً وفي الدر المنثور اخرج احمد عن ابي اليسر مرفوعاً منكم من يصلي الصلوٰة كاملة ومنكم من يصلي النصف والثلث والربع والخمس حتى بلغ العشر قال المنذري في الترغيب رواه النسائي باسناد حسن واسم ابي اليسر كعب بن عمرو السلمي شهد بدرا اھ)

**فائده:** يعني دکومې درجې خشوع او اخلاص په مانځه کښې وي هغومره مقدار به اجر او ثواب ورکولے شي. تردې چه بعضو ته د پوره اجر لسمه حصه ورکولے شي، که چرې د هغې موافق خشوع خضوع وي. او بعضو ته نيمه ورکولے شي او دا رنګې د لسې نه کم او د نيمې نه زيات هم ورکولے شي تردې چه بعضو ته به بيخي هيڅ نشي ورکولے چه هغوي به د دې اَدو قابل نهٔ وي. يو حديث کښې راغلي دي چه د فرض مونځ د پاره د الله تعالىٰ په نزد يو خاص وزن دے. (جامع الصغير) څومره چه په هغې کښې کمې پاتې شي د هغې به حساب کولے شي.

په حديثونو کښې راغلي دي چه د خلقو نه به د ټولو نه رومبې خشوع اُوچته کړے شي چه په ټوله جمع کښې به يو کس هم په خشوع سره مونځ کونکے بيا نهٔ موندے شي. (جامع الصغير)

② رُوِيَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى الصَّلَوَاتِ لِوَقْتِهَا وَاَسْبَغَ لَهَا وُضُوْءَهَا وَاَتَمَّ لَهَا قِيَامَهَا وَخُشُوْعَهَا وَرُكُوْعَهَا وَسُجُوْدَهَا خَرَجَتْ وَهِيَ بَيْضَاءُ مُسْفِرَةٌ تَقُوْلُ حَفِظَكَ اللّٰهُ كَمَا حَفِظْتَنِيْ

د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارك دے چه څوك مونځونه په خپل وخت کښې کوي. اَو د س هم په ښهٔ شان اُوکړي او په خشوع خضوع سره يې هم اُوکړي، و لاړ هم په پوره وقار عزت سره وي بيا دغسې رکوع او سجده هم په ښهٔ شان په اطمينان سره اُوکړي. غرض دا چه هر څيز په ښهٔ شان اَدا کړي نو دغه مونځ ډير روښانه

وَمَنْ صَلَّاهَا لِغَيْرِ وَقْتِهَا وَلَمْ يُسْبِغْ لَهَا وُضُوْءَهَا وَلَمْ يُتِمَّ لَهَا خُشُوْعَهَا وَلَا رُكُوْعَهَا وَلَا سُجُوْدَهَا خَرَجَتْ وَهِيَ سَوْدَاءُ مُظْلِمَةٌ تَقُوْلُ ضَيَّعَكَ اللّٰهُ كَمَا ضَيَّعْتَنِيْ حَتّٰى إِذَا كَانَتْ حَيْثُ شَاءَ اللّٰهُ لُفَّتْ كَمَا يُلَفُّ الثَّوْبُ الْخَلَقُ ثُمَّ ضُرِبَ بِهَا وَجْهُهٗ۔

(رواه الطبرانی فی الاوسط کذا فی الترغیب والدر المنثور وعزاه فی المنتخب الی البیهقی فی الشعب وفیه ایضا بروایة عبادة رضی الله عنه بمعناه وزاد فی الاولی بعد قوله کما حفظتنی ثم اصعد بها الی السماء ولها ضوء ونور ففتحت لها ابواب السماء حتی ینتهی بها الی الله فتشفع لصاحبها وقال فی الثانیة وغلقت دونها ابواب السماء. وعزاه فی الدر الی البزار والطبرانی وفی الجامع الصغیر حدیث عبادة الی الطیالسی وقال صحیح)

ځلیدونکے جوړشی ځي او مونځګذار ته دُعا کوي چه الله جلّ شانهٔ دِ ستا هم داسے حفاظت اُوکړي څنګه چه تا زما حفاظت اُوکړهٔ. او چه څوک مونځ په بد شان اُوکړي، دوخت هم خیال اُونهٔ ساتي، اُودس هم په ښهٔ شان اُونکړي رکوع، سجده هم په ښهٔ شان اُونهٔ کړي نو دغه مونځ بد شکله تور رنګ کښې ده ته خیرے کوي چه الله تعالیٰ دِ تا هم داسے برباد کړي څنګه چه تا زهٔ ضائع کړم، د ئنه پس هغه مونځ د زړے کپړے په شان راغونډ کړے شي د مونځګذار په مخ وَرَا وِ ویشتلے شي۔

**فائده**: خوش قسمه دي هغه خلق چه مونځ په ښهٔ شان کوي چه د الله تعالیٰ د ټولو نه ضروري عبادت د هغهٔ د پاره دُعا کوي. خو عمومًا چه څنګه مونځ کولے شي چه رکوع یے اُوکړه نو د هغه ځائے نه سجدے ته لاړ، د سجدے نه پاسیدهٔ نو سَر یے لا اُوچت کړے نهٔ وو چه زر دګارغهٔ په شان دوهم ټونګه یے اُووهله. د داسے مونځ چه کوم حال دے هغه یے په دے حدیث کښې ذکر کړے دے. او بیا چه کله دغه مونځ د برباد ئي خیرے کوي نو د خپلے بربادۍ ګله د ولے کوو. هم دا وجه ده چه نن مُسلمانان په پریوتو دي او هر طرف نه دتباهۍ تباهۍ آوازونه خیژي. یو بل حدیث کښې هم دا مضمون راغلے دے. په هغې کښې دا هم زیاتے دے چه کوم مونځ په خشوع خضوع سره اُوکړے شي. د اسمان دروازے هغهٔ د پاره پرانستے شي هغه ډیر نوراني وي او د مونځګذار د پاره د الله جلّ شانهٔ په دربار کښې سفارش شي چه څوک پرې دے نبي صلی الله علیه وسلم

ارشاد دے پہ کوم مونځ کښې چہ رکوع پہ بنہ شان اُونہ کړے شی چہ ملا پورہ نیغہ شی دهغې مثال دهغې زنانہ پہ شان دے چہ حاملہ (امیندوارہ) وی او چہ کلہ دیځې دپیدا کیدو وخت نزدے شی نو زیان اُوکړی۔ (ترغیب)

یو حدیث کښې ارشاد دے چہ ډیر روژه نیونکی داسے دی چہ هغوی تہ پہ روژه سِوا د لوږے تندے نہ هیڅ نہ حاصلیږی۔ او ډیر شوګیره کونکی داسے دی چہ هغوی تہ سِوا د شپے رُونړو لو نہ هیڅ خیز نہ حاصلیږی۔

حضرت عائشہ رضی اللہ عنہا فرمائی چہ ما د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نہ واوریدل چہ څوک د قیامت پہ ورځ پنځہ وختہ مونځونو سرہ داسے حاضر شی چہ دهغې دوختونو یے حفاظت کړے وی او د اودسہ یے هم اهتمام کړے وی او دا مونځونہ یے خشوع خضوع سرہ کړی وی نو اللہ جل شانہٗ وعدہ فرمایلے دہ چہ هغوی بہ نشی عذاب ورکولے او چہ څوک داسے مونځونو سرہ حاضر نہ شی هغوی دپارہ هیڅ وعدہ نشتہ، خو بنہ یے دہ چہ پہ خپل رحمت سرہ یے معاف کړی یا عذاب ورکړی۔ یو بل حدیث کښې دی چہ یو وارے نبی کرم صلی اللہ علیہ وسلم دصحابو رضی اللہ عنہم خوا تہ تشریف راوړہ او ارشاد یے اُوفرمایہ چہ ایا تاسو تہ معلومہ دہ چہ اللہ جل شانہٗ څہ اُوفرمایل. صحابو رضی اللہ عنہم عرض اُوکړہ چہ اللہ تعالیٰ او دهغہ رسول صلی اللہ علیہ وسلم بنہ پوهیږی۔ نبی علیہ الصلوٰۃ والسلام د اهتمام دپارہ درے وارے هم دا پوښتنہ اُوکړہ او صحابو رضی اللہ عنہم هم دا جواب ورکولو۔ دے نہ پس یے ارشاد اُوفرمایہ چہ اللہ جل شانہٗ دخپل عزت او دخپلے لوئیٔ قسم اُوکړو او وے فرمایل چہ څوک دا مونځونہ دوختونو پابندئ سرہ کوی هغہ بہ جنت کښې داخلوم، او چہ څوک یے پابندی نہ کوی کہ څما زړہ اُوغواړی پہ رحمت سرہ بہ یے اُوبخښم کنی عذاب بہ ورکړم۔

(٣) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ اِنَّ اَوَّلَ مَا یُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ مِنْ عَمَلِهٖ

د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد مبارک دے چہ پہ قیامت کښې د بندګانو پہ عملونو کښې بہ د ټولو نہ رومبے د فرض مونځ حساب کولے شی۔ کہ مونځ یے بنہ راؤوتہ نو دغہ کس کامیاب

صَلٰوتُهٗ فَاِنْ صَلُحَتْ فَقَدْ اَفْلَحَ وَاَنْجَحَ وَاِنْ فَسَدَتْ خَابَ وَخَسِرَ وَاِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيْضَتِهٖ قَالَ الرَّبُّ اُنْظُرُوْا هَلْ لِعَبْدِيْ مِنْ تَطَوُّعٍ فَيُكَمَّلُ بِهَا مَا انْتَقَصَ مِنَ الْفَرِيْضَةِ ثُمَّ يَكُوْنُ سَائِرُ عَمَلِهٖ عَلٰى ذٰلِكَ۔

شو او کټه یے اوکړه او که مونځ یے بے کاره ثابت شو نو هغه به نامُراده په نقصان کښ وی۔ او که په مانځه کښ یے څه کمے بیا مونده شو نو الله جل شانهٗ به اُوفرمائی چه اُوګورئ دے بنده سره څهٔ نفلونه هُم شته چه په هغې سره یے فرائض پوره کړے شی۔ که چرے را اُووتل نو به هغې سره به د فرضو پوره والے اُوکړے شی۔ دے نه پس به بیا د غسے د باقی عملونو روژه زکوٰة وغیره حساب وی۔

(رواه الترمذی و حسنه النسائی و ابن ماجة و الحاکم و صححه کذا فی الدر وفی المنتخب بروایة الحاکم فی الکنی عن ابن عمر اول ما افترض الله علی امتی الصلوات الخمس واول ما یرفع اعمالهم الصلوات الخمس الحدیث بطوله بمعنی حدیث الباب وفیه ذکر الصیام والزکوٰة نحو الصلوٰة وفی الدر اخرج ابو یعلی عن انس رفعه اول ما افترض الله علی الناس من دینهم الصلوٰة واخر ما یبقی الصلوٰة واول ما یحاسب به الصلوٰة یقول الله انظروا فی الصلوٰة عبدی فان کانت تامة کتبت تامة وان کانت ناقصة قال انظروا هل له من تطوع الحدیث فیه ذکر الصلوٰة والصدقة وفیه ایضاً اخرج ابن ماجة والحاکم عن تمیم الداری مرفوعاً اول ما یحاسب به العبد یوم القیٰمة صلوٰته الحدیث وفی اٰخره ثم الزکوٰة مثل ذٰلک ثم تؤخذ الاعمال حسب ذٰلک وعزاه السیوطی فی الجامع الی احمد وابی داؤد والحاکم وابن ماجة ورقم له بالصحیح۔)

**فائده:-** دے حدیث شریف نه معلومه شوه چه ځان سره د نفلو ذخیره هُم کافی ساتل پکار دی۔ که چرے فرضو کښ څهٔ کمے را اُوزی نو چه په هغې سره پوره شی۔ ډیر خلق وائی چه یَره مونږ نه فرض پوره شی نو لوئ غنیمت دے، نفل کول خو د لویو خلقو کار دے۔ په دِے کښ شک نشته که فرض پوره په پوره اُوشی نو کافی دی خو دے بالکل پوره په پوره ادا کول څهٔ اسان کار دے چه هر یو څیز بالکل پوره ادا شی۔ او که چه څهٔ لږ ډیر کمے اُوشی نو د هغې پوره کولو د پاره د نفلونه بغیر علاج نشته۔ یو بل حدیث کښ دا مضمون زیات په وضاحت سره راغلے دے۔ ارشاد دے چه الله تعالیٰ په عباد تونو کښ د ټولو نه رومبے مونځ فرض کړے دے او د ټولو نه رومبے

به په عملونو کښې مونځ پیش کولے شي او د تهولونه ړومبے به قیامت کښې دمانځه حساب کیږي. که چرے فرض مونځونو کښې څه کمے پاتے شو، نو د نفلونه به هغه پوره کړے شي. بیا به دے نه پس دغسے د روژو حساب اوکړے شي او فرض روژو کښې چه کوم کمے وي هغه به د نفلي روژونه پوره کړے شي. بیا به د زکوٰة حساب په دے طریقه سره اوشي. دے تهولو څیزونو کښې که نفل ورسره یوځائے کړے شي او دنیکو چابړے دروند شو نو دغه کس به په خوشحالئ خوشحالئ جنت کښې داخل شي کنې دوزخ کښې به اُوغورځولے شي. په خپله د نبي اکرم ﷺ معمول دا وو چه څوك به مُسلمان شو، د تهولونه اول به یے هغهٔ ته مونځ ښودلو.

④ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قُرْطٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَوَّلُ مَا يُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ الصَّلٰوةُ فَاِنْ صَلُحَتْ صَلُحَ سَائِرُ عَمَلِهٖ وَاِنْ فَسَدَتْ فَسَدَ سَائِرُ عَمَلِهٖ.

د نبي اکرم ﷺ ارشاد مُبارك دے چه په قیامت کښې به د تهولونه ړومبے د مونځ حساب کولے شي که چرے هغه ښهٔ او پوره راأووته نو باقي عملونه به هم پوره راأوزي. او که چرے هغه خراب شو نو باقي عملونه به هم خراب راأوزي.

(رواه الطبراني في الاوسط ولا بأس باسناده ان شاء الله تعالى كذا في الترغيب وفي المنتخب برواية الطبراني في الاوسط وايضاً عن انس بلفظه وفي الترغيب عن ابي هريرة رفعه الصلوة ثلثة اثلاث الطهور ثلث والركوع ثلث والسجود ثلث فمن اداها بحقها قبلت منه وقبل منه سائر عمله ومن ردت عليه صلوته رد عليه سائر عمله. رواه البزار وقال لا نعلمه مرفوعاً الا من حديث المغيرة بن مسلم قال الحافظ واسناده حسن اه. واخرج مالك في الموطا ان عمر بن الخطاب كتب الى عماله ان اهم اموركم عندي الصلوة من حفظها او حافظ عليها حفظ دينه ومن ضيعها فهو لما سواها اضيع كذا في الدر) .

حضرت عُمر رضي الله عنه د خپل خلافت زمانه کښې یو اعلان د تهولو ځایونو حاکمانو ته لیږلے وو چه د تهولونه زیات ضروري څیز ځما په نزد مونځ دے. څوك چه د دے حفاظت او اهتمام کوي هغه د دین د نورو حِصو هم اهتمام کولے شي او څوك چه دا ضائع کړي هغه به د دین نورے حصے زیاتے برباد ے کړي.

**فائده:-** د نبی اکرم ﷺ دغه پاک ارشاد او د حضرت عمر رضی الله عنه دغه اعلان مقصد په ظاهر کښ دا دے کوم چه په بل حدیث کښ راغلے دے چه شیطان د مسلمان نه ترهغه وخته وېرېږی ترڅوچه دے د مونځ پابندی کوی او په ښهٔ شان ئے ادا کوی، نو د ویرے له وجے پرے زیات جرأت نشی کولے خوچه کله دے مونځ ضائع کړی نو شیطان پرے ډیر زر ورشی او ددے کس د ګمراه کولو اُمید ئے پیدا اشی او بیا ئے ډیر تباه کونکو څیزونو او لویو لویو ګناهونو کښ ئے اخته کړی. (منتخب کنز) او هم دا مطلب دے د الله جل شانهٗ ددے ارشاد.

إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ ؕ چه ددے بیان نزدے را روان دے.

⑤ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اَبِیْ قَتَادَةَ رضی الله عنه عَنْ اَبِیْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَسْوَأُ النَّاسِ سَرِقَةً الَّذِیْ یَسْرِقُ صَلٰوتَهٗ قَالُوْا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَكَیْفَ یَسْرِقُ صَلٰوتَهٗ قَالَ لَا یُتِمُّ رُكُوْعَهَا وَلَا سُجُوْدَهَا.

د نبی اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه د ټولو نه بد ترین غل هغه دے چه د مانځه نه هم غلا کوی. صحابه رضی الله عنهم عرض اُوکړو چه اے د الله رسوله! د مانځه نه به څنګه غلا کوی. ارشاد ئے اُوفرمایهٔ چه د هغے رکوع سجده په ښهٔ شان سره نهٔ کوی.

(رواه الدارمی وفی الترغیب رواه احمد والطبرانی وابن خزیمة فی صحیحه وقال صحیح الاسناد اھ. وفی المقاصد الحسنة حدیث ان اسوء الناس سرقة رواه احمد والدارمی فی مسندیهما من حدیث الولید بن مسلم عن الاوزاعی عن یحیی بن ابی کثیر عن عبدالله بن ابی قتادة عن ابیه مرفوعا وفی لفظ بحذف ان وصححه ابن خزیمة والحاکم وقال انه علی شرطهما ولم یخرجاه لروایة کاتب الاوزاعی لرعة عن یحیی عن ابی سلمة عن ابی هریرة رواه احمد ایضا والطیالسی فی مسندیهما من حدیث علی بن زید عن سعید بن المسیب عن ابی سعید الخدری به مرفوعا ورواية ابی هریرة عند ابن منیع وفی الباب عن عبدالله بن مغفل وعن النعمان بن مرة عند مالک مرسلا فی آخرین اھ وقال المنذری فی الترغیب لحدیث ابن مغفل رواه الطبرانی فی معاجمه الثلاثة باسناد جید وقال لحدیث ابی هریرة رواه الطبرانی فی الاوسط وابن حبان فی صحیحه والحاکم وقال صحیح الاسناد قلت وحدیث ابی قتادة وابی سعید ذکرهما السیوطی فی الجامع الصغیر ورقم بالصحیح)

**فائده:-** دا مضمون په څو حدیثونو کښ راغلے دے. اول خو غلا بخپله څومره د ذلت څیز دے او غل ته څومره په سپک نظر سره کتلے شی. بیا په غلا کښ هم دې کار ته بد ترینه غلا اُوفرمایله چه رکوع سجده په ښهٔ طریقه نهٔ کوی.

حضرت ابُو الدَّرداء رضی الله عنه فرمائی چه یو وارے نبی کرم صلی الله علیه وسلم اسمان طرف ته نظر اُوچت کړهٔ او دا یے ارشاد اُوفرمایهٔ چه دا وخت عِلم د دُنیا نه پورته کیدو وخت په ما ښکاره شو. حضرت زیاد رضی الله عنه عرض اُوکړهٔ. اے دالله رسوله! عِلم به څنګه زمونږ نه خنګه اُوچت کړے شی؟ مونږ قرآن شریف وایُو او خپل اولادته یے ښایُو (او هغوی به د خپل اولاد ته ښائی او سلسله به روانه وی) نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل، ما خو ته ډیر پوهه ګڼړلے. دا یهود او نصاریٰ خو هم تورات انجیل وائی او ښائی، بیا یے په څهٔ کار راځی. د ابُو الدَّرداء رضی الله عنه شاګرد وائی چه څهٔ بل صحابی حضرت عُبادہ رضی الله عنه ته ورغلم دا قِصه مے ورته واورَوله هغوی اُوفرمایل چه ابو الدرداء رضی الله عنه رِښتیا وائی او څهٔ درته اُوښایم چه د ټولونه به رُومبے څهٔ څیز د دُنیا نه اُوچتیږی. د ټولونه به رُومبے د مونځ خشوع اُوچته شی. ته به اُوګورے چه په ډک جُمات کښ به یو کس هُم په خشوع سره مونځ کونکے نه وی. حضرت حُذیفه رضی الله عنه چه د نبی صلی الله علیه وسلم رازدار ورته ویلے شی هغه هم فرمائی چه د ټولونه به رُومبے د مونځ خشوع اُوچته کړے شی. (دُر)

یو حدیث کښ راغلی دی چه الله جلّ شانُهٗ هغه مونځ طرفته اَدو توَجُّه نهٔ فرمائی په کوم کښ چه رکوع سجده په ښهٔ شان اُونهٔ کړے شی.

یو حدیث کښ ارشادِ نبوی دے چه بنده ترشپیتو کالو پورے مونځ کوی خو یو مونځ یے هُم نهٔ قبلیږی. کهٔ کله رکوع ښهٔ اُوکړی نو سجده پوره نهٔ کوی کهٔ سجده ښهٔ اُوکړی نو رکوع پوره نهٔ کوی.

حضرت مجدّد الفِ ثانی رحمة الله علیه په خپلو خطونو کښ د مانځه په اهتمام ډیر زور ورکړے دے. او په ډیرو خطونو کښ یے په مختلفو مضامینو بحث فرمایلے دے. یو خط کښ لیکی چه په سجده کښ د لاسونو ګوتے یو ځائ کول او په رکوع کښ ګوتے بیلے بیلے ساتل هُم ضروری دی. شریعت د ګوتو یو ځائ کولو او د پرانستلو حکم بے فائدے نهٔ دے ورکړے یعنی د دا سے معمولی اداب لحاظ هُم ضروری دے، په دے سلسله کښ لیکی چه په مانځه کښ د اُودریدو په حالت کښ د سجدے په ځائ نظر ساتل او د رکوع په حالت کښ په پښو نظر ساتل او

په سجدهٔ کښې په پوزه نظر ساتل او دناستې په حالت کښې په لاسونو نظر ساتل په مانځه کښې خشوع پیدا کوی او په دُسره په مانځه کښې اطمینان نصیب کیږی. هر کله چه دا سے معمولی آداب هُم دومره اهمے فائدے لری نو دلویو ادابو او دسُنتو په رعایت تاسو په خپله پوهه شئ چه څومره قدرے فائدے به ورکوی.

⑥ عَنْ أُمِّ رُوْمَانَ وَالِدَةِ عَائِشَةَ رضی اللہ عنہا قَالَتْ رَآنِي أَبُوْبَكْرِ الصِّدِّيْقُ أَتَمَيَّلُ فِي صَلٰوتِي فَزَجَرَنِي زَجْرَةً كِدْتُ أَنْصَرِفُ مِنْ صَلٰوتِي قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم يَقُوْلُ إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَلْيُسْكِنْ أَطْرَافَهُ لَا يَتَمَيَّلُ تَمَيُّلَ الْيَهُوْدِ فَإِنَّ سُكُوْنَ الْأَطْرَافِ فِي الصَّلٰوةِ مِنْ تَمَامِ الصَّلٰوةِ.

(اخرجه الحکیم الترمذی من طریق القاسم بن محمد عن اسماء بنت ابی بکر عن ام رومان)

دحضرت عائشے رضی اللہ عنہا مور بی بی ام رومان رضی اللہ عنہا فرمائی چه ما مونځ کولو. یو وارے په مانځه کښې اخوا دیخوا اوخوزیدم. حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ اولیدم نو څهٔ یے داسے په زوره اُوټوکلم چه څهٔ (دویرے له وجے نه) مونځ ماتولو ته تړدے شوم. بیا یے ارشاد اُوفرمائیه چه ما دنبی علیه السلام نه آوریدلی دی چه کله څوك مانځه ته اُودریږی نو خپل ټول بدن دِ په سکون (او قلاره) ساتی، دیهودیانو په شان دِ نه خوزیږی دبدن ټول اندامونه په مانځه کښې بالکل په قلاره ساتل دمونځ پوره کولو حصه ده.

کذا فی الدرو عزاه السیوطی فی الجامع الصغیر الی ابی نعیم فی الحلیة وابن عدی فی الکامل ورقم له بالضعف وذکر ایضا بروایة ابن عساکر عن ابی بکر رضی اللہ عنہ من تمام الصلوٰة سکون الاطراف)

**فائده:-** په مانځه کښې په سکون سره اُوسیدلو تاکید په ډیرو حدیثونو کښې راغلے دے. دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم عادت شریف به اکثر اسمان طرف ته دکتلو وو چه دَ وحی دفرښتے انتظار به وُو، اوکله چه دڅهٔ څیز انتظار روی نو هغه طرف ته نظر هم اوړی. په دے وجه کله به یے په مانځه کښې نظر پورته اُوچت شو خو چه کله قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلٰوتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ٥ (سورة المؤمنون) نازل شو، نو بیا به یے نظر ښکته ساته. دصحابو رضی اللہ عنہم متعلق هم حدیث کښې راغلی دی چه اول اول کښې به یے اخوا دیخوا توجه کوله. خو دَ دے آیت

شریفه نازلیدونه پس به یې هیڅ طرف ته توجّه نهٔ کوله. حضرت عبدالله بن عُمر رضی الله عنهما د دے آیتِ شریفه په باره کښې فرمائی چه صحابه کرام رضی الله عنهم به چه کله مانځهٔ ته اُودریدل نو هیڅ طرف ته به یې توجّه نهٔ کوله. پوره په پوره به مانځهٔ طرف ته متوجّه وُو. خپل نظرونه به یې د سجدے په ځائی ساتل او دا به یې گنړل چه الله جلّ شانهٔ دوی طرف ته متوجه دے. حضرت علی رضی الله عنه نه چا پوښتنه اُوکړه چه خشوع څهٔ څیز دے؟ وے فرمایل چه خشوع په زړهٔ کښې وی (یعنی په زړهٔ سره مانځهٔ کښې متوجّه کیدل) او دا هم په دے کښې داخل دی چه هیڅ طرف ته توجّه نهٔ کوی.

حضرت ابنِ عبّاس رضی الله عنه فرمائی چه خشوع کوُنکی هغه دی چه الله جلّ شانهٔ نه ویریدُونکی دی او مانځهٔ کښې په قلاره اُوسیدُونکی دی.

حضرت ابُوبکر رضی الله عنه فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو وارے ارشاد اُوفرمایلو چه د نفاق د خشوع نه په الله تعالیٰ سره پناه اُوغواړئ. صحابه رضی الله عنهم عرض اُوکړهٔ چه حضور! د نفاق خشوع څهٔ څیز دے؟ ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه په ظاهر کښې سُکون وی او په زړهٔ کښې نفاق وی.

حضرت ابوالدّرداء رضی الله عنه هم د دے قِسمه یو واقعه نقل کوی چه په هغې کښې د نبی علیه الصلوٰة والسلام دا ارشاد نقل کړهٔ چه د نفاق خشوع دا ده چه ظاهری بدن خو خشوع والا معلومیږی او په زړهٔ کښې خشوع نهٔ وی. حضرت قتاده رضی الله عنه فرمائی چه د زړهٔ خشوع د الله تعالیٰ ویره او نظر ښکته ساتل دی. نبی علیه الصلوٰة والسلام یو وارے یو کس اُولیدهٔ چه په مانځهٔ کښې په ږیره لاس راکاږی. ارشاد یے اُوفرمایهٔ که چرے د دهٔ په زړهٔ کښې خشوع وے نو د بدن ټولو اندامونو کښې به یې قرار وے وُو.

حضرت عائشے رضی الله عنها یو وارے د نبی علیه الصلوٰة والسلام نه پوښتنه اُوکړه چه په مانځهٔ کښې اخوا دیخوا کتل څنګه دی؟ ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه دا د شیطان د مانځهٔ نه راښکول دی.

یو وارے نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه څوک په مانځهٔ کښې پورته گوری هغوی د دے

کار نه منع شی کنی نظرونه به یے پوره ته په پوره ته پاتے شی۔ (درمنثور)

دډیرو صحابو رضی اللہ عنہم او د تابعینو رحمهم اللہ نه نقل کړے شوے دی چه خشوع د سکون نوم دے یعنی مونځ د ډیر په سکون سره اوکړے شی. په کنزو حدیثونو کښ د نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد دے چه مونځ داسے کوئ چه گویا د آخری مونځ دے، دارنګے لے کوئ لکه څنګه چه یے هغه کس کوی څوک چه دا گمان وی چه د وخت نه پس به ما ته د بل مونځ ادوموقع ملاؤ نشی۔ (جامع الصغیر)

⑦ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رضی اللہ عنہ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صلی اللہ علیہ وسلم عَنْ قَوْلِ اللهِ تَعَالٰى إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ فَقَالَ مَنْ لَّمْ تَنْهَهُ صَلٰوتُهٗ عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ فَلَا صَلٰوةَ لَهٗ.

نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه چا د الله جل شانه د دے ارشاد إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى الخ (بیشکه مونځ منع کوی د بے حیائی نه او ناروا کارونونه) متعلق پوښتنه اوکړه نو نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اوفرمایئ چه د چا مونځ داسے نه وی او هغه د بے حیائی او ناروا کارونونه منع نه کړی هغه ادو مونځ نه دے.

(اخرجه ابن ابی حاتم وابن مردویه کذا فی الدر المنثور)

**فائدہ:** بیشکه مونځ یو داسے لوئی دولت دے او د دے په خپل اصلی حالت کولو فائده دا ده چه هغه د داسے نامناسبه خبرونه منع کړی. که چرے دا خبره پیدا نشی نو د مونځ په کمال کښ کمے دے. په ډیرو حدیثونو کښ دا مضمون راغلے دے۔ حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ فرمائی چه په مانځه کښ د ګناهونو نه بندیز دے او د ګناهونو نه لرے کیدل دی.

حضرت ابوالعالیه رضی اللہ عنہ فرمائی چه د الله جل شانه ارشاد إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى مطلب دا دے چه په مانځه کښ درے خیزونه دی. اخلاص، د الله تعالیٰ ویره او د الله تعالیٰ ذکر. کوم مونځ کښ چه دا خیزونه نه وی هغه ادو مونځ نه دے. اخلاص د نیک کارونو حکم کوی او د الله تعالیٰ ویره د بدو خبرونه منع کوی او د الله تعالیٰ ذکر قرآنِ پاک دے چه په مستقل طور د ښو خبرو حکم کوی او د بدو خبرونه منع کوی.

حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه نقل کوی چه کوم مونځ د بدو

خبرو او نامناسب کارونو نه نه منع کوی هغه مونځ په حای الله تعالیٰ ته د نزدے کید و الله تعالیٰ نه لرے والے پیدا کوی۔ حضرت حسن رضی الله عنه هم د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه دا نقل کوی چه د چا مونځ هغه د بدو خبرو نه منع نه کړی هغه اَو مونځ نه دے دے مونځ له وجے الله تعالیٰ نه لرے والے پیدا کیږی۔ حضرت ابنِ عمر رضی الله عنه هم د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه دا مضمون نقل کړے دے۔

حضرت ابنِ مسعود رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوی چه څوك د مونځ اطاعت نهٔ کوی د هغهٔ لاخهٔ مونځ دے۔ او د مونځ اطاعت دا دے چه د بے حیائی او بدو خبرو نه منع کړی۔

حضرت ابوهُریره رضی الله عنه فرمائی چه یو کس د نبی علیه السلام په خدمت کښ حاضر شو او عرض یے اُوکړهٔ چه فلانکے د شپے مونځ کوی او چه سحر شی نو غلا کوی۔ نبی علیه السلام اُوفرمایل چه دغه مونځ به هغه د دے نه ډیر زر منع کړی۔ د دے نه معلومه شوه کهٔ څوك په بدو خبرو کښ مشغول وی نو هغهٔ ته په اهتمام سره مانځه کښ مشغولیدل پکار دی، بدے خبرے به ترے په خپله پاتے شی۔ دهرے یو بدے خبرے ډیر بخو د لو اهتمام گران هم دی او وخت پکښ هم لګی۔ او په اهتمام سره مانځه کښ مشغولیدل آسان هم دی او وخت پکښ هم زیات نهٔ لګی۔ د دے په برکت سره به بدے خبرے د هغهٔ نه په خپله پاتے شی۔ الله جل شانهٔ د ما نه هم په ښهٔ شان د مونځ کولو توفیق راکړی (او تاسو ته هم)

⑧ عَنْ جَابِرٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم اَفْضَلُ الصَّلٰوۃِ طُوْلُ الْقُنُوْتِ اخرجه ابن ابی شیبة ومسلم والترمذی و ابن ماجة کذا فی الدر المنثور وفیه اَیْضًا عَنْ مُجَاهِدٍ فِیْ قَوْلِهٖ تَعَالیٰ وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِیْنَ قَالَ مِنَ الْقُنُوْتِ الرُّکُوْعُ وَ

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دے چه بهتر مونځ هغه دے چه پکښ اُوږده اُوږده رکعتونه وی. مجاهد رحمة الله علیه فرمائی چه د الله جل شانهٔ ارشاد قُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِیْنَ (او په مانځه کښ د الله تعالیٰ مخکښ په ادب سره اُودریږئ)۔ دے ایت کښ رکوع هم داخله ده او خشوع هم او اُوږد رکعت کول هم، او ستر گے ښکته کول او مټے راټیټول (یعنی په غرور سره نهٔ اُودریدل)

الْخُشُوْعُ وَطُوْلُ الرُّكُوْعِ يَعْنِيْ طُوْلَ الْقِيَامِ وَغَضَّ الْبَصَرِ وَخَفْضُ الْجَنَاحِ وَالرَّهْبَةُ لِلّٰهِ وَكَانَ الْفُقَهَاءُ مِنْ اَصْحَابِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ اَحَدُهُمْ فِي الصَّلٰوةِ يَهَابُ الرَّحْمٰنَ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰى اَنْ يَلْتَفِتَ اَوْ يُقَلِّبَ الْحَصٰى اَوْ يَشُدَّ بَصَرَهٗ اَوْ يَعْبَثَ بِشَيْءٍ اَوْ يُحَدِّثَ نَفْسَهٗ بِشَيْءٍ مِّنْ اَمْرِ الدُّنْيَا اِلَّا نَاسِيًا حَتّٰى يَنْصَرِفَ۔ (اخرجه سعيد بن منصور وعبد ابن حميد وابن جرير وابن المنذر وابن ابي حاتم والاصبهاني في الترغيب والبيهقي في شعب الايمان آه وهذا آخر ما اردت ايراده في هذه العجالة رعاية بعد الاربعين والله ولي التوفيق وقد وقع الفراغ من ليلة التروية من سنة سبع وخمسين بعد الالف وثلث مائة والحمد لله اولاً وآخراً)

او د الله تعالیٰ نه ویریدل پکښې هم شامل ږي چه لفظِ قُنُوت کښې چه د هغې په دے ایت کښې حکم ورکړے شوے دے دا ټول څیزونه داخل دي۔ د نبی کرم صلی الله علیه وسلم صحابو کښې به چه کله څوک مانځه ته اُودریدهٔ نو د الله تعالیٰ نه به ویریدهٔ (د اکارونه به یے نهٔ کول) چه اخوا دیخوا اُوګوری (یا سجدے ته تلو کښې) ګټکی وا اړوی (او اړوی (عربو کښې به د سجدے په ځائے ګټکی خورولے شو) یا په څهٔ عبث څیز کښې مشغول شي یا په زړهٔ کښې د څهٔ دُنیوی څیز خیال راولی او که په هیرهٔ خیال راشی نو بیله خبره ده (خیر دے)

**فائده:۔** قُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ په تفسیر کښې مختلف ارشادات راغلی دی یو دا هم دے چه د قٰنِتِيْنَ معنیٰ چُپ چاپ ده۔ په شروع د اسلام کښې په مانځه کښې خبرے کول، د سلام جواب ورکول وغیره وغیره کارونه جائز وو۔ خو چه کله دا ایتِ شریفه نازل شونو مانځه کښې خبرے کول ناجائز شوے۔ حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه نبی علیه الصلوٰة والسلام څما دا عادت جوړ کړے وُو چه کله به څهٔ حاضر شم که نبی علیه الصلوٰة والسلام به په مانځه کښې هم مشغول وو، سلام به م کولو نبی علیه الصلوٰة والسلام به جواب راکولو۔ یو وارے څهٔ حاضر شوم۔ نبی علیه الصلوٰة والسلام مانځه کښې مشغول وو۔ ما د عادت موافق سلام اُوکړهٔ۔ نبی علیه الصلوٰة والسلام جواب رانهٔ کړهٔ۔ ما سره ډیر فکر شو چه شاید څما باره کښې د الله جل شانه له طرفه څهٔ خفګان نازل شوے وی۔ نوی او زړو خیالونو ګیر کړم۔ زړے زړے خبرے م را یاد ولے

چه کیدے شی په فلانئ خبره نبی ﷺ ناراضه شوے وی یا فلانئ خبره شوے وی. کله چه نبی علیه السلام سلام اُوګرزَولو نو ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه الله جلّ شانهٔ په خپلو حکمونو کښ چه څهٔ غواړی بَدَلِی راوَلی. الله تعالیٰ په مانځه کښ خبرے کوَل منع کړے او دا آیت یے تلاوت اُوفرمایهٔ او ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه په مانځه کښ د الله تعالیٰ د ذکر دهغهٔ د تسبیح دهغهٔ د حمد وثنا نه سِوا خبرے کوَل جائز نهٔ دی.

معاویه بن حکم سُلَمی رضی الله عنه فرمائی کله چه زهٔ مدینه طیبه ته مُسلمانیدو دپاره حاضر شوم نو ما ته ډیر خیزونه اُوخودلے شو. دهغے نه یو دا هم وو چه کله څوک اَلْحَمْدُ لِلّٰه اُوکړی او اَلْحَمْدُ لِلّٰه اُووائی نو دهغهٔ په جواب کښ یَرْحَمُكَ اللهُ ویل پکار دی. چونکه نوے تعلیم وو. دغه وخت پورے را ته دا نهٔ وه معلومه چه په مانځه کښ ویل نهٔ دی پکار. یو صاحب ته په مانځه کښ اَلْحَمْدُ لِلّٰه راغے. ما ورته په جواب کښ یَرْحَمُكَ اللهُ اُووے. خو اکښ خلقو ما ته د تنبیه په طور بَد بَد اُوکتل. ما ته دغے وخته پورے دا هم پته نهٔ وه چه په مانځه کښ خبرے جائز نهٔ دی. نو ما اُووے، هائے افسوس، په تا سو څهٔ اُوشو چه ما ته په بد بد نظر ګورئ. دغے خلقو په اشاره څهٔ چپ کړم. څهٔ پرے پوهه نهٔ شوم خو څهٔ چپ شوم. کله چه مونځ ختم شو. نبی کریم ﷺ (زما مور پلار دِ پرے قربان وی) نهٔ یے څهٔ اُووهلم، نهٔ یے اُوزوَرلم، نهٔ یے را ته بَد رَد اُووے بلکه دا ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه په مانځه کښ خبرے کوَل جائز نهٔ دی. مونځ د تسبیح، تکبیر او د قرآن شریف د ویلو ځائ دے. په الله تعالیٰ م دِ قسم وی د نبی ﷺ په شان مهربانه اُستاذ نهٔ ما چرته رومبے لیدلے وُو نهٔ رُستو.

دویم تفسیر د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دے چه د قٰنِتِیْن معنیٰ خٰشِعِیْن ده یعنی په خشوع عاجزئ سره مونځ کوُنکی. د دے موافق مجاهد رحمه الله دا نقل کوی کوم چه پورته ذکر شو چه دا ټول خیزونه په خشوع کښ داخل دی. یعنی اُوږده اُوږده رکعتونه کوَل او خشوع خضوع سره لوُستل، نظر ښکته ساتل، د الله تعالیٰ نه ویریدل.

حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ابتداء کښ به چه کله نبی ﷺ

د شپے مانځه د پاره اُودریدلو نو ځيل ځان به يے په پښو تړهٔ چه چرته خوب را باندے غلبه اُونهٔ کړي، په دے نهٔ وُزم. په دے طٰهٰ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقٰٓى (سورة طٰهٰ) نازل شو. او دا مضمون خو څو حديثونو کښ راغلے دے چه نبي ﷺ به دومره اُوږدهٔ رکعتونه کول چه په ولاړه ولاړه به يے په پښو کښ پرسوب راغے. اګرچه مونږ باندے د شفقت د وجے نبي ﷺ ارشاد اُوفرمائيلو چه څومره زغمل شي هغومره تا سو ته محنت کول پکار دي. مطلب نهٔ چه د طاقت نه زيات بار اُوچتولو په وجه بيخي هر څهٔ پريږدئ. يو صحابيه زنانه هم د غسے ځيل ځان په پړي تړل شروع کړل نو نبي ﷺ منع کړه. خو دومره خبره ضروري ده چه د طاقت نه پس چه څومره اُوږد مونځ وي هغومره بهتر او غوره دے اخر د نبي ﷺ دومره اُوږد مونځ کول چه په پښو مبارکو به يے پرسوب راغے څهٔ خبره خو لري. صحابه کرام رضي الله عنهم په عرض هم کولو چه سورة فتح کښ ستا سو د بخښنے وعده الله تعالىٰ فرمائيلے ده نو نبي ﷺ به فرمائيل چه بيا څهٔ شکر ګذار بنده ولے جوړ نهٔ شم.

يو حديث کښ راغلي دي چه کله به نبي ﷺ مونځ کولو نو د سينے مُبارکے نه به يے د ژړا اُواز (د ساه بنديدو په وجه) داسے پرله پسے راتلو لکه څنګه چه د ميچنے اُواز وي.

يو بل حديث کښ راغلي دي چه داسے اُواز وو لکه څنګه چه د کټوئ پخيدو اُواز وي. (ترغيب)

حضرت علي رضي الله عنه فرمائي چه د بدر په جنګ کښ ما نبي ﷺ اُوليدهٔ چه د يو وُنے د لاندے يے مونځ کولو اُو ژړل يے چه په دے حالت کښ يے سحر کړهٔ. په ګڼړو حديثونو کښ ارشاد دے چه الله جل شانه خو کسانو نه بے حده خوشحاليږي چه د هغوي نه يو هغه کس دے چه په يخه شپه کښ په نرمه بستره په بړستن کښ ملاست وي او ښکلے بنا ښسته بي بي ورسره ملاسته وي او بيا دے د تهجد د پاره پاسي او مونځ کښ مشغول شي الله تعالىٰ د دے کس نه ډير خوشحاليږي او تعجب کوي. سره د دے چه په غيبو خبردار دے

دفرښتونه په فخر پوښتنه کوی چه دا بنده څۀ څيز مجبوره کړۀ چه دا سے اُودریدۀ. فرښتے عرض کوی چه ستا مهربانئ او عطا (دور کړے) اُمید۔ او ستا دعذاب نه ویرے۔ ارشاد اُوشی چه ډیره ښۀ ده چه دکوم څیز دے ځما نه اُمید لری هغه ما ورکړۀ او دکوم څیز څخه دۀ ته ویره ده دهغے نه مِ اَمن ورکړۀ دنبی ﷺ ارشاد دے چه یو بنده ته هیڅ ورکړه د الله تعالیٰ له طرفه د دے نه بهتره نۀ ده ورکړے شوے چه هغۀ ته دَ دوه و رکعتونو توفیق ورکړے شی۔ قرآن او حدیث کښې ډیر زیات راغلی دی چه فرښتے هر وخت په عبادت کښې مشغولے اُوسی۔ حدیثونو کښې راغلی دی چه یوه ډله دفرښتونه داسے ده چه تر قیامته به په رکوع کښې وی او یوه ډله دغسے هر وخت په سجده کښې مشغوله اُوسی او یوه ډله دغسے ولاړه اُوسی۔ الله جل شانهٗ دمؤمن دپاره اکرام او اعزاز اُوفرمایۀ چه د دے ټولو څیزونو مجموعه یے ورله په دوه و رکعتونو کښې ورکړه چه دفرښتو دهر یو عبادت نه دۀ ته حصه اُورسی او په مانځه کښې دقرآن شریف تلاوت دهغوی په عبادت باندے زیاتوالے دے او هر کله چه دا دفرښتو دعبادتونو مجموعه ده نو دهغوی دصفتونو نه په دے کښې مزه حاصلیږی۔ ځکه دنبی ﷺ ارشاد دے چه دمانځه دپاره ځپله ملا اوکیږه سپکه سا تئ۔ (جامع الصغیر)

ملا سپکه ساتلو دا مطلب چه ډیر جهګړے ځان پسے مه تړئ۔ او کیږۀ سپکه سا تل خوشکاره خبره ده چه زیاته په مړۀ کیږۀ مۀ خورئ د دے نه سُستی پیدا کیږی۔

صوفیان فرمائی چه په مانځه کښې دولس زره څیزونه دی چه هغه الله تعالیٰ په دولس څیزونو کښې راغونډ کړی دی۔ د دے دولسو څیزونو خیال ساتل ضروری دی چه مونځ مکمل شی او د دے پوره فائده حاصله شی۔ هغه دولس څیزونه دا دی۔

**اول علم**۔ دنبی ﷺ ارشاد دے چه علم سره لږ غوندے عمل هم دجهل دحالت دډیر عمل نه بهتر دے۔ **دویم اودس**، **دریم جامه**، **څلورم وخت**، **پنځم قبلے طرف ته مخ کول**، **شپږم نیت**، **اووم تکبیر تحریمه**

اتم ماغخه کښې اوُدریدل، نهم قرآن شریف لوستل، لسم رکوع یوولسم سجده، دولسم التحیات بانده کیناستل. او ددے ټولو مکمل کیدل په اخلاص سره دی. بیا ددے دولسو درے درے حصے دی. اوّل د علم درے حصے دا دی چه فرضونو او سنتوله دِ بیل بیل معلوم کړی. دوئیم دا معلوم کړی چه اودا سهٔ او ماغخه کښې څومره څیزونه فرض دی، څومره سُنت دی. دریم دا معلوم کړی چه شیطان په کوم کوم فریب سره په ماغخه کښې خرابی اچوی. دے نه پس د اودا سهٔ هم درے حصے دی. اوّل دا چه زړهٔ دِ د کینے او حسد نه پاك کړی لکه څنګه چه ظاهری اندامونه پاکوی. دوئیم ظاهری اندامونه دِ د ګناهونو نه پاك ساتی. دریم په اودس کولو کښې دِ نهٔ اِسراف (اوبهٔ زیاتے لګول کوی) نهٔ کمے. بیا د جامو هم درے حصے دی. اوّل دا چه د حلالے ګټے وی دوئیم دا چه پاکے وی، دریم د سُنت موافق وی چه ګیټئ وغیره په کښې پټے نهٔ وی. د تکبّر او د لوئیئ په خاطرے نهٔ اغوندی. بیا په وخت کښې هم د درے څیزونو رعایت ضروری دے. اوّل دا چه د نمر ستورو وغیره دِ خیال ساتی چه وختونه ورته صحیح معلومیږی (او څو نن په زمانه کښې ددے په ځائ ګهړئ ګهینټے شوے) دوئیم د اذان دِ خبر ساتی. دریم په زړهٔ سره دِ هر وخت د ماغخه د وخت خیال ساتی. هسے نه چه وخت تیرشی او پته اونهٔ لګی. بیا قبلے طرف ته دِ مخ کولو کښې هم د درے څیزونو رعایت ساتی. اول دا چه په ظاهری بدن سره دِ قبلے طرف ته متوجّه وی. دوئیم دا چه په زړهٔ سره دِ الله تعالیٰ طرف ته توجّه ساتی چه د زړهٔ کعبه هم هغه ده. دریم د مالك مخکښې چه څنګه پوره په پوره متوجه کیدل پکار دی هغه رنګے دِ متوجه شی. بیا نیت هم د دریو څیزونو محتاج دے. اوّل دا چه دا کوم مونځ دے. دوئیم دا چه د الله تعالیٰ مخکښې ولاړ دے او هغه وینی. دریم دا چه هغه د زړهٔ حالت هم وینی. بیا د تکبیرِ تحریمه په وخت کښې هم د دریو څیزونو رعایت کول ضروری دی. اوّل دا چه لفظونه صحیح وی. دوئیم دا چه لاسونه دِ غوږونو پورے اوچت کړی (ګویا اشاره ده چه د الله تعالیٰ نه سِوا ټول څیزونه یے رُستو

زوال )، دریم دا چه د الله اکبر ویلو په وخت کښې د الله تعالیٰ لوئي او غور
او عظمت یې هم په زړه کښې موجود وي. بیا قیام یعنې ولاړه کښې هم درې
خیزونه دي. اول دا چه نظر د سجدې په ځائې وي. دویم په زړه سره د
د الله تعالیٰ مخکښې د اودریدو خیال کوي. دریم بل طرف ته متوجّه نه وي.
وائي چه څوک په مانځه کښې اخوا دیخوا متوجه وي د هغه مثال داسې دے
لکه څنګه چه څوک ډیر په مشکله سره د دربا نچیانو منت زاري اوکړي چه د
بادشاه دربار ته اورسي او کله چه ورنزدې شي، بادشاه د هٔ طرف ته متوجّه
شي نو دې اخوا دیخوا اکتل شروع کړي. په داسې حالت کښې به بادشاه د هٔ
طرف ته څهٔ توجّه اوکړي. بیا په قرأت کښې د هم د دریو خیزونو رعایت اوکړي
اول صحیح په ترتیل (قلاره) سره د لوَلي. دویم د هغې په معنو د غور هم کوي.
دریم چه څهٔ لوَلي په هغې د عمل کوي. بیا په رکوع کښې هم درې خیزونه
دي. اول دا چه ملا د په رکوع کښې بالکل نیغهساتي. نهٔ د ښکته کوي او نهٔ
پورته. (عالمانو لیکلي دي چه سر او ملا او کُناتي درے واړه خیزونه د برابر
وي)) دویم د لاسونو ګوتې د پراندستې پلنې په زنګونو نوکیږدي. دریم تسبیحات
په عظمت او وقار سره وائي. بیا په سجده کښې د هم د دریو خیزونو رعایت
کوي. اول دا چه دواړه لاسونه د په سجده کښې د غوږو نو برابر وي. دویم
لاسونو څنګلې د اوچتې وي. دریم تسبیحات د په عظمت سره وائي. بیا په
ناسته کښې د هم د دریو خیزونو رعایت کوي. اول دا چه ښئي پښه د اودروي
او په کسه د کیني. دویم دا چه په عظمت سره د د معنو رعایت کوي او تشهد
چه په دے کښې نبي علیه الصلٰوة والسلام باندے سلام دے او د مؤمنانو د پاره دُعا ده.
په فرښتو او نبي او کس طرف ته چه کوم خلق دي په هغوي د د سلام نیت
وي. بیا د اخلاص هم درے حصے دي. اول دا چه د دے مونځ نه د صِرف
د الله تعالیٰ رضا مقصود وي. دویم دا د ګنړي چه د الله تعالیٰ په توفیق سره دا
مونځ اَدا شو. دریم په دے د د ثواب اُمید ساتي.
حقیقت کښې په مانځه کښې لوئې خیرا و لوئې برکت دے، د د په هر یو

ذکر کښې ډیرے فائدے او د الله تعالیٰ لوئي پرته ده. یو سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ ته اُوګوره چه د ټولو نه رُومبیٔ دعا ده. چه څو مره فضیلتونه پکښې دی سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ اے الله! ستا پاکی بیانوُم چه ته د هر یو عیب نه پاک یې او د هرے یو بدیٔ نه لرے یې. وَبِحَمْدِكَ څومره چه د تعریف خبرے دی او چه د تعریف قابل کارُونه دی هغه ټول تا د پاره ثابت دی او تا سره بنائی. وَتَبَارَكَ اسْمُكَ او ستا نوم برکت والا دے چه په کوم څیز ستا نوم واخستلے شی هغه هُم برکت والا شی. وَتَعَالٰی جَدُّكَ ستا شان ډیر اُوچت دے. ستا عظمت د ټولو نه پورته دے. وَلَا اِلٰهَ غَیْرُكَ ستا نه علاوه څوك معبود نشته، نهٔ څوك ذات د عبادت لائق کله شوے دے نهٔ به شی. د غسے په رکوع کښې سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِیْمِ ځما د عظمت او د لوئیٔ والا رب د هر عیب نه یعنی پاك دے. د هغهٔ د لوئیٔ مخکښې د خپلے عاجزیٔ او د بے کسیٔ اظهار دے چه ستا اُوچتوالی د غرور او تکبر ټخنه ده. او د دے ټیټوالی د نیا زمندیٔ او د فرمانبردارئ اقرار دے. نو رکوع کښې ګویا د دے اقرار دے چه ستا د حکمونو وړاندے خپل ځان ټیټوم او ستا اطاعت او بندګی په خپل سر لګلم یعنی منم) ځما دا ګنهګار وجود ستا مخکښې حاضر دے. او ستا په دربار کښې ټیټ شوے دے. نهٔ بیشکه د لوئیٔ والا ئے. او ستا د لوئیٔ مخکښې څهٔ سر خکته یم. د غسے په سجدا کښې سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰی کښې هم د الله تعالیٰ د بیحده اُوچتوالی او بلندیٔ اقرار دے او د بلندیٔ سره د هرے بدیٔ او عیب نه د پاکیٔ اقرار دے. خپل سَر د هغه مخکښې ایخودل دی چه په ټولو اندامونو کښې اشرف ګڼړلے شی او په دیکښې د ټولو نه محبوب څیزونه سترګے، غوږُونه، پوزه، ژبه دی. ګویا د دے اقرار دے چه ځما دا ټول اشرف او محبوب څیزونه ستا په دربار کښې حاضر او ستا مخکښې په زمکه پراته دی. په دے اُمید چه ته په ما فضل اُوکړے او رحم اُوکړے او د دے عاجزیٔ رومبی ظاهروَل د هغهٔ مخکښې لاسونه تړل په ادب سره اُودریدو کښې وُو او په دے پاندے ترقی د هغهٔ مخکښې سَر ټیټولو کښې وه او په دے هم ترقی د هغهٔ مخکښې په زمکه پوزه سُولُولو او سَر

یعنود لوکښې دهٔ. دا رنګې د پوره مونځ حالت دے او حقه خبره دا ده چه دا اصلی شکل د مونځ دے او دا هم هغه مونځ دے چه دَ دین دُنیا د کامیابۍ او بهترۍ اندرپایه ده. الله جل شانهٔ دِ په خپلے مهربانۍ سره ما ته او ټولو مسلمانانو ته په دے د عمل کولو توفیق ورکړی. (آمین)

او څنګه چه مجاهد رحمة الله علیه بیان کړے دے د فقهاؤ صحابه کرام رضی الله عنهم هُم دا مونځ وو. هغوی چه به کله مانځه ته اُودریدل، الله تعالیٰ نه به ویریدل.

حضرت حسن رضی الله عنه چه به کله اَودس کولو نو د مخ رنګ به یې بدل شو. چا ترے تپوس اُوکړهٔ چه دا ولے؟ نو ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه د یو لوئ جبّار (زبردست) بادشاه په حضور کښې د اُودریدو وخت راغے. بیا به یے اَودس اُوکړهٔ کله چه به یے جُمات ته تشریف اُوړهٔ نو د جُمات په دروازه کښې به اُودریدهٔ، دا به یے فرمایل. اِلٰهِیْ عَبْدُكَ بِبَابِكَ يَا مُحْسِنُ قَدْ اَتَاكَ الْمُسِيْءُ وَقَدْ اَمَرْتَ الْمُحْسِنَ مِنَّا اَنْ يَّتَجَاوَزَ عَنِ الْمُسِيْءِ فَاَنْتَ الْمُحْسِنُ وَاَنَا الْمُسِيْءُ فَتَجَاوَزْ عَنْ قَبِيْحِ مَا عِنْدِيْ بِجَمِيْلِ مَا عِنْدَكَ يَا كَرِيْمُ. (ترجمه) "اے الله! ستا بنده ستا په دروازه حاضر دے. اے احسان کوُنکیه! او د نیکۍ معامله کونکیه! بد عمله تا ته حاضر دے. تا مونږ ته دا حکم کړے دے چه بنهٔ خلق د بدانو نه معافی کوی. ته بنهٔ یې، څهٔ بد کاره یم. اے کریمه ربه! څما بدۍ د هغه بنهٔ صفتونو په برکت چه د هغے ته مالك یې، معاف کړے." دے نه پس به جُمات ته داخلیدهٔ.

حضرت زین العابدین رحمة الله علیه به هره ورځ یو زر رکعته کوُل. تهجّد ترے هیڅ کله سفر یا حضر کښې پاتے شوی نهٔ وُو. کله چه به یے اَودس کولو نو د مخ رنګ به یے زیړ شو او کله چه به مانځه ته اُودریدهٔ نو په بدن به یے رپیدل راغلهٔ چا ترے پوښتنه اُوکړه. نو وے فرمایل ایا تا ته خبر نهٔ یې چه د چا مخکښې اُودریږم. یو وارے یے مونځ کولو چه په کور کښې اُور اُولګیدهٔ. دے به مانځه کښې مشغول وو. خلقو ور ته عرض اُوکړهٔ نو وے فرمایل چه د دُنیا اَور نه د اخرت اُور غافله کړے وُم. د دوی ارشاد دے چه ما ته په تکبر کونکی تعجب

دے چه پړَونه پورے ناپاکه نطفه وه اوصبا ته به مُردار شي بیاهم تکبر کوي. دوي به فرمایل چه تعجّب دے چه خلق فنا کیدونکی کور دپاره خو فکر کوي او دهمیشه اوسید وکور فکر نهٔ کوي. ددوي معمول وو چه دشپے به که په پټه صدقه کوله. خلقوته به هیڅ پته نهٔ وه چه چا راکړه. کله چه دوي وفات شو نو شل کوره داسے را اُووتل چه دهغوي گذاره ددوي په امداد سره وه. (نزهة البساتین)

حضرت علی کرم الله وجهه متعلق نقل کړے شوے دی چه کله به د مانځه وخت راغے نو دهٔ رنګ به یے بدل شو. بدن به یے په رپیدو شو. چا ترے تپوس اُوکړهٔ نو وے فرمایل چه دهغے امانت دادا کولو وخت دے چه هغه زمکے او اسمان اُوچت نهٔ کړے شو. غرونه دهغے داُوچتولو نه عاجزه شو. څهٔ نهٔ پوهیږم چه هغه به پوره کړے شم یا نهٔ.

حضرت عبد الله بن عبّاس رضی الله عنهما به چه کله د اذان آواز واوریدهٔ نو دومره به یے ژړل چه څادر به یے لوند شو، رګونه به یے اُوپړسیدل. سترګے به یے سرے شوے. چا عرض اُوکړهٔ چه مونږ خو آذان آورو خو هیڅ اثر را باندے نهٔ کیږي او تاسو دومره ډیر ویریږئ. ارشاد یے اُوفرمایهٔ که چرے خلقو ته دا معلومه شي چه مؤذن څهٔ وائي نو د راحت او آرام نه به محرومه شي. او خوب به یے اُوتختي. دے نه پس یے د اذان د هرے یو جملے خبردارے په تفصیل سره ذکر کړهٔ.

یو کس نقل کوي چه ما حضرت ذُوالنُّون مِصرِي رحمة الله علیه پسے د مازیګر مونځ اُوکړهٔ کله چه هغوي اَللهُ اَکبر اُووے نو د لفظ الله په وخت په هغوي دالله تعالیٰ د جلال داسے غلبه وه چه ګویا د هغوي په بدن کښې اوږو رُوح پاتے نهٔ شو. بالکل بے دَمه شانے شو او کله چه اکبر یے په ژبه اُووے نو ځما زړهٔ د هغهٔ د دے تکبیر د هیبته ټکړے ټکړے شو. (نزهة البساتین)

حضرت اُویس قرنی رحمة الله علیه مشهور بزرګ او تابعینو کښې د ټولو نه بهتر دے. بعضے وارے به یے رکوع کوله او ټوله شپه به ئے په دے حالت کښې تیره کړه. کله به ئے سجده کښې دا حالت شو چه ټوله شپه به یے په یوه سجده

کښې تېره کړه (ایضاً)

عِصَام رحمة الله علیه د حضرت حَاتِمِ زاهد بَلخي رحمة الله علیه نه تپوس اُوکړهٔ چه تاسو مونځ څنګه کوئ وے فرمایل، هرکله چه د مانځه وخت راشي، اَول بښهٔ په اطمینان سره په ښهٔ شان اَودس کوم. بیا هغه ځائ ته لا ړشم کوم ځائ چې مونځ کوم. اول ښهٔ په اطمینان سره اَودریږم چه ګویا کعبه څما د وړاندے ده او څما پښه پُلِ صراط باندے ده، ښي طرفته مِ جنت دے اَو کس طرفته مِ دوزخ دے، د مرګ فرښته څما په سر ده او څهٔ داګڼړم چه دا څما آخري مونځ دے، بیا شاید دبل مونځ موقعه را ته ملاؤ نشي. او څما د زړهٔ حالت الله تعالیٰ وینې. د ګنه پس ډیر په عاجزئ سره اَللهُ اَکبَرُ وایم او د معنے سوچ کولو سره قرآن لولم او تواضع سره رکوع کوم او عاجزئ سره سجدهٔ کوم او په اطمینان سره مونځ پوره کوم. دا رنګے چه د الله تعالیٰ د رحمت نه د هغے د قبلید و اُمید لرم او د خپلو عملونو رَد کید و نه ویریږم. عِصَام رحمة الله علیه ترے تپوس اُوکړهٔ چه د څومره موُده نه تاسو دا سے مونځ کوئ. حاتم رحمة الله علیه اُوفرمایل د دیرشو کالو نه. عصام رحمة الله علیه په ژړا شو چه ما ته خو یو مونځ هم دا سے نصیب نهٔ شو. وائي چه حاتم رحمة الله علیه نه یو وارے د جَمع مونځ لاړهٔ چه د دے پرے بے حده اَثر وو. یو دوه دوستانو یے تعزیت یعنې غمرازي اُوکړ نو یے دے لے اُوژړل او دا یے اُوفرمایل که چرے څما یو ځوئ مړ شوے وے نو نیم بلخ به غمرازي کړے وے. یو روایت کښې راغلي دي چه د لسو زرو سړونه به زیا تو غمرازي کړے وے. د جَمعِ مونځ تلو باندے یو دوه کسو غم رازي اُوکړه. دا صرف د دے وجے نه چه د دین مُصیبت د خلقو په نظر کښې د دُنیا د مُصیبت نه سپک دے.

حضرتِ سَعِیدبنِ المُسَیِّبْ رحمة الله علیه فرمائي چه د شلو کالو موُده کښے راسے هیڅ کله دا سے نهٔ دي شوي چه اذان شوے وي او څهٔ په جَمَاعت کښې د وړاندے نه موجود نهٔ یم.

محمّد بنِ وَاسِع رحمة الله علیه فرمائي چه ما ته په دُنیا کښې صِرف د درے څیزونه پکار دي. یو دا سے دوست وي چه څما په غلطو ما خبر داره کوي. دویم د ژوند په اندازه روزي چه په هغے کښې هیڅ جهګړه نهٔ وي. دریم د جَمعِ دا سے مونځ وي چه په هغے کښې څهٔ نقصان اوشي هغه خو مُعاف شي او چه کوم ثواب وي هغه ما ته راکړے شي.

حضرتِ اَبُوعُبَیدَهٔ بنِ جَرَّاح رضی الله عنه یو وارے مونځ وړکړهٔ، د مانځهٔ نه پس یے اُوفرمایل چه

شیطان دا وخت په ما یو حمله اوکړه، ځما په زړه کښې نې دا خیال واچولو چه زه بهتریم ځکه
چه بهتر امام جوړولے شی، د استاذ دپاره به هیڅ کله امام نه جوړیږم. میمون بن مهران رحمة الله علیه
یو وار جماعت ته تشریف یوړه، د جماعت مونځ شوے وو۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ یې اُووے او
وې فرمایل چه د مونځ فضیلت ما ته د عراق د بادشاهئ نه هم زیات خوښ دے۔
وائی چه د حضراتو اکرامو نه به چه د چا تکبیرِ اولیٰ لاړه نو درې ورځې پورې به یې د هغې غم
کولو او چا نه چه به د جماعت مونځ لاړو، اووه ورځې پورې به یې د هغې افسوس کولو. (احیاء)
بکر بن عبد الله رحمة الله علیه فرمائی که چرې ته خپل مالک خپل مولیٰ سره بغیر واسطې خبرې
کول غواړې نو کله چه غواړې کولے شې، چا ترې تپوس اوکړه چه د دې به څه طریقه
وی؟ وې فرمایل چه په ښه شان اودس اوکړه او د مونځ نیت اوتړه۔
حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به مونږ سره خبرې کولے او مونږ
به هغوی سره کولے خو چه کله به د مانځه وخت راغے نو داسے به شو چه ګویا مونږ، او دوی
پیژنی نه او ټول پوره به الله تعالیٰ طرف ته متوجه شو. سعید تنوخی رحمة الله علیه به چه
ترڅو پورې مونځ کولو مسلسل د اوښکو قطار به یې په مخ روان وو۔
خلف بن ایوب رحمة الله علیه نه چا تپوس اوکړه چه دا مچان په مانځه کښې تا نه تنګوی.
وې ویل څه خپل ځان د داسې څیز عادتی نه جوړوم چه په هغې سره په مانځه کښې نقصان
راشی. دا بدکاره خلق د حکومت کوړې زغمی صرف د دې خبرې دپاره چه خلق
اُووائی چه خومره صبرناک مزاج والا دے او بیا یې د فخر په طور بیانوی، څه د خپل
مالک مخکښې ولاړ یم او د یو مچ د وجې حرکت اُوکړم۔
بهجة النفوس کښې لیکلی دی چه یو صحابی رضی الله عنه د شپې مونځ کولو. یو غل راغے
او آس یې پرانستلو بوتلو. د بوتلو په وخت کښې پرې نظر پریوتلو خو مونځ یې مات
نه کړو. وروستو ورته چا اُووے هم چه تا اُونه نیولو. وې فرمایل چه په کوم څیز کښې زه
مشغول وم هغه د دې نه ډیر بهتر وو. د حضرت علی کرم الله وجهه قصه خو مشهوره ده چه کله به په
جنګ کښې په غشی اُولګیدو نو هغه به ترې په مانځه کښې ایستلے شو. لکه یو وار یې
په پتون کښې یو غشے ننوتلو. خلقو د ایستلو کوشش اُوکړو خو اُونه وتلو خپلو ملګرو
کښې مشوره اُوکړه چه کله دے په مانځه کښې مشغول شی هغه وخت دِ ترې اُوویستلے شی

هر کله چه دوی نفلونه شروع کړل او سجدې ته لاړو نو هغوی خلقوته په زوره راښکلو. کله چه ماڼځه نه فارغ شو نو خوا او شا ئے ګنډ اولیده. وے فرمایل چه ولے تاسو غشی الشلو ډپاره راغلی یئ؟ خلقو عرض اوکړو چه هغه خو مونږه ایستلے دے. وے فرمایل چه ما ته اودوپته اونه لګیده.

مُسلم بن یسار رحمة الله علیه به چه کله مونځ کولو نو د کور خلقو ته به ویل چه تاسو خبرے کوئ ماته ستاسو د خبرو اودو پته نه لګی. ربیع رحمة الله علیه وائی چه کله څه ماڼځه ته اودریږم نو په ما دا فکر سور شی چه ما نه به څهٔ سوال او جواب کیږی.

عامر بن عبد الله رحمة الله علیه به چه کله مونځ کولو نو د کور خلقو د خبرو خو به ورته څهٔ پته لګیدله چه ډولکی داوازه ورته هم پته نهٔ لګیده. چا ترے تپوس اوکړو چه تا ته په ماڼځه کښ د څهٔ څیز خبر هم کیږی. وے فرمایل او. ما ته دے خبر کیږی چه یوه ورځ به د الله تعالیٰ په دربار کښ اودریدل وی او دواړو کورونو جنت یا دوزخ کښ به یو ته تلل وی. هغوی عرض اوکړو دا تپوس نه کوو. خو بز. دخبرو درته هم څهٔ پته لګی؟ وے فرمایل چه ما کښ دنیزو سوکے نوزی دا دیره ښهٔ ده درے نه چه ما ته په ماڼځه کښ ستاسو دخبرو پته اولګی. ددوی دا هم ارشاد دے کله چرے د آخرت منظر دا وخت ځما مخکښ شی نو ځما په ایمان او یقین کښ به زیاتوالے اونه شی. نحچه په غیبو م ایمان دومرهٔ پوخ دے خو مرهٔ چه په کتلو وی.) د یو صاحب څهٔ اندام خراب شوے وو چه د هغهٔ د پاره د هغے د پریکولو ضرورت وو خلقو تجویز اوکړو چه کله دے د ماڼځه نیت اوتړی هغه وخت ئے پریکول پکار دی. دهٔ ته به اړو پته اونه لګی. هم دغسے اوشوه په ماڼځه کښ ترے هغه اندام پریکړے شو.

دیو صاحب نه تپوس اوکړے شو چه تا ته په ماڼځه کښ د دُنیا خیال هم چرته راځی. وے فرمایل چه نهٔ په ماڼځه کښ راځی نهٔ بغیر د ماڼځه نه.

دیو بل صاحب قصه ئے لیکلے ده چه د هغهٔ نه چا تپوس اوکړو چه تا ته په ماڼځه کښ څهٔ څیز یادیږی. هغوی اوفرمایل چه د ماڼځه نه زیات هم څهٔ خوښ څیز شته چه ماڼځه کښ راته یاد شی. بهجة النفوس کښ لیکلی دی چه دیو بزرګ په خدمت کښ یو کس د ملاقات د پاره راغے. هغه د ماسپخین په ماڼځه کښ مشغول وو. دے په انتظار کښ کیناستو. هر کله چه د ماڼځه نه فارغ شو نو نفلو کښ مشغول شو او تر ما زیګره پورے ئے نفلونه کول. دے په انتظار کښ ناست وو. د نفلو نه فارغ شو نو د ما زیګر مونځ ئے شروع کړو او دے ته چه فارغ شو، دُعا کښ

مشغول شو او تر ماښامه پورې مشغول وو. بیا یې د ماښام مونځ اوکړه او نفلونه یې شروع کړل. تر ماسخوتنه پورې په دې کښې مشغول وو. د اعاجز به انتظار کښې ناست وو. د ماسخوتن مونځ یې چې اوکړه. بیا یې د نفلونیت اوتړه او تر سحره پورې په دې کښې مشغول وو. بیا یې د سحر مونځ اوکړه او ذکر یې شروع کړه او اوراد او وظائف یې لوستل. په دې کښې په مصلیٰ باندې په ناسته ناسته یې سترګې ورغلې، نو زر یې سترګې اومګلې، پاسیده استغفار او توبه یې اوویستله او دا دعا یې اوکړه اَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ عَيْنٍ لَّا تَشْبَعُ مِنَ النَّوْمِ (په الله تعالیٰ سره پناه غواړم د داسې سترګې نه چې د خوب نه نه مړیږي.)

دیو صاحب قصه یې لیکلې ده چې هغه به د شپې د خوب د پاره سملاسته نو کوشش به یې کولو چې سترګې م ورشي خو چې کله به خوب ورته راغې نو پا به سید و، مانځه کښې به مشغول شو او عرض به یې کولو چې اے الله تا ته معلومه ده چې د دوزخ د اور ویرې زما خوب اُتختولو او دا به یې د سحره په مانځه کښې مشغول وو.

تو له شپې بې آرامۍ او پریشانۍ یا شوق او اشتیاق کښې د ویښ پاتې کیدلو واقعات د ومره ډیر دي چې د هغې راجمع کول ګران دي. مونږ ته د دې د خوند نه دومره لرې شوي یو چې مونږ د دې واقعاتو صحیح کیدلو کښې هم شك کوو. اول خو چې څومره ډیر او تواتر سره دا واقعات نقل کړې شوي دي د هغې نه انکار او رد کول د تهول تاریخ نه یقین پورته کیږي چې د واقعې صحیح والي په کثرت سره نقل کولو نه ثابتیږي.

بل مونږ ه نن ورځې په خپلو سترګو داسې خلق وینو چې سنیما تیاتر کښې تو له شپه په ولاړه تیروي چې نه سترې کیږي نه یې خوب تنګوي. نو بیا څه وجه ده چې مونږ ه د داسې ګناهونو د خوندونو یقین کوو او د هغې نیکو د خوندونو نه انکار اوکړو. حال دا چې په نیکو کښې د الله جل شانه له طرفه قوت هم ورکولې شي. خو مونږ د د دې شك شبه وجه دا ده نه سوا بله څه کیدې شي چې مونږ ه د دې خوندونو نه ناآشنا یو او نابالغ خو د بلوغ د خوندونو نه ناخبره وي که الله جل شانه مونږ ته د دې خوندونو ورسوي نو خوش نصیبه به یو.



# اٰخری عرض

صوفیانو لیکلی دی چه مونځ په حقیقت کښ الله جل شانهٗ سره راز و نیاز او خبرے کول دی چه په غفلت سره اَدا کیدے نشي. د مانځه نه علاوه نورو عبادتونه په غفلت سره هم کیدے شي. مثلاً زکوٰة دے چه د دے حقیقت د مال خرڅ کول دی دا پخپله په نفس دومره مشقت دے که چرے د غفلت سره وی بیا هم په نفس مشقت وی. د غسے روژه توله ورځ اوږے تږے پاتے کیدل د صحبت رنځلے بی بی سره د کور والی، د مزے نه بندیدل چه دا تول څیزونه نفس لره لاندے کونکی دی. که چرے په غفلت سره هم اُوشی نو د نفس سختی او تیزی پرے کمیږی. خو د مانځه لویه حصه ذکر دے، د قرانِ پاك لوستل دی. دا څیزونه که د غفلت په حالت کښ وی نو راز و نیاز یا خبرے نه دی بلکه دا سے دے لکه څنګه چه د تبے په حالت کښ کړکو دے ویلے کیږی چه کوم څیزونه په زړهٔ کښ وی هغه په ژبه دا سے وخت کښ جاری کیږی. نه په دیکښ څهٔ مشقت وی نه څهٔ فائدهٔ. دا رنګے مونځ یے عادت ګرزیدلے دے. که چرے توجه یے نه وی نو د عادت موافق بغیر د سوچ او فکر د ژبے نه یے الفاظ اُوزی لکه څنګه چه د خوب په حالت کښ اکثرے خبرے د ژبے نه اُوزی چه نه یے اَوریدونکی ځان سره خبرے ګنړی نه د هغے څه فائده وی. د غسے الله جل شانهٗ هم دا سے مونځ طرف ته توجه نه فرمائی کوم چه بغیر ارادے وی. په دے وجه ډیر ضروری ده چه مونځ د خپل وَس او همت موافق پوره توجه سره اُوکړے شي. خو داخبره هم ډیره ضروری ده. که چرے دا حالات او کیفیات چه کوم درته معلوم شول حاصل هم نه شی بیا هم مونځ په کوم حالت سره چه کیدے شی ضرور دا اوکړے شي. دا هم د شیطان یوه سخته دهوکه ده چه هغه په ذهن کښ دا اَچوی چه په بد طریقے سره کولو نه خو نه کول بهٔ دی. دا غلطه ده، نه کولو نه په بد طریقے سره کول هم بهتر دی ځکه د نه کولو چه کوم عذاب دے هغه ډیر سخت دے. تر دے چه د عالمانو یوے ډلے په دا سے کس د کفر فتویٰ ورکړے ده. چه څوك په قصد سره

موږ پرېږدو دی لکه څنګه چه په رُومبي باب کښې په تفصيل سره تير شوی دی. البته د دے کوشش ضرور کول پکار دی چه د موږ کوم حق دے. او څومره چه زمونږ شرائو دهغې مطابق کړے دے او مونږ ته يې بنودلے دے. الله جل شانه د په خپل مهربانۍ سره دهغې توفيق را کړی او په ټول عُمر کښې کم نه کم يو موږ خو داسے اوشي چه د پيش کولو قابل وی (نو بيا هم بنۀ ده)

آخر کښې په دے خبره خبردارے هم ضروری دے چه د حضرات محدثينو رحمهم الله په نزد د فضائلو په روايا تو کښې فراخي ده او معمولي ضُعف قابل د معافۍ دے. باقي د صوفيانو رحمهم الله واقعات خو تاريخي حيثيت لري او شکاره خبره ده چه د تاريخ درجه د حديث د درجے نه ډيره کمه ده.

وَمَا تَوْفِيقِيْ إِلَّا بِاللهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيْبُ ، رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا وَإِنْ لَّمْ تَغْفِرْلَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ، رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَّسِيْنَا أَوْ أَخْطَأْنَا ، رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ، رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ، وَاعْفُ عَنَّا وقفہ وَاغْفِرْلَنَا وقفہ وَارْحَمْنَا وقفہ أَنْتَ مَوْلٰنَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝ وَصَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ سَيِّدِ الْأَوَّلِيْنَ وَالْآخِرِيْنَ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَأَتْبَاعِهِمْ وَحَمَلَةِ الدِّيْنِ الْمَتِيْنِ بِرَحْمَتِكَ يَا أَرْحَمَ الرّٰحِمِيْنَ ۝

جمع کوونکے
محمد زکریا عفی عنه
کاندهلوی
تاریخ د لیکلو
د ګل شپه ۷ محرم ۱۳۵۸ھ
موافق ۲۷ فروری ۱۹۳۹ء

ترجمه کوونکے
میاں محمد شفیق غفرلهٗ
(چارسده)
تاریخ د ختمید و نظرِ ثانی
د جُمعې ورځ ۲۰ رمضان المبارک
۱۴۱۶ھ موافق ۳۱ جنوری ۱۹۹۶ء

قَالَ اللّٰهُ تَبَارَکَ وَتَعَالٰی

أَلَمْ یَأْنِ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا أَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِکْرِ اللّٰهِ

(ترجمه)

"ایا ایمان والو دپاره ددے وخت نه دے راغلے چه ددوی زړونه د الله تعالیٰ د ذکر دپاره ټیټ شی".

# برکاتِ ذکر

یعنې

# فضائلِ ذکر

! چه په دې کښ !

دحضرت الحافظ الحاج مولانا محمد الیاس قدس سرّه په ارشاد سره حضرت الحافظ الحاج محمد زکریا نوّر الله مرقدهٗ شیخ الحدیث مدرسه مظاهر علوم سهارنپور هغه آیتونه او حدیثونه جمع کړی دی چه په هغے کښ د ذکر برکتونه د کلمے طیبے فضیلتونه او دریمے کلمے یعنی تسبیحاتِ فاطمے ثواب راغلے دے

په خاتمه کښ د صلوٰۃ تسبیح تفصیلی بیان دے

---

ترجمه کوونکے

میاں **محمد شفیق** غفرلهٗ (چارسدہ)

خورونکے

کتب خانه فیضی لاهور پاکستان

# فهرست دمضامینو د فضائلِ ذکر پښتو

تمت



# تمهید

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَاَتْبَاعِهٖ حَمَلَةِ الدِّيْنِ الْقَوِيْمِ

د الله جَلَّ جَلَالُهٗ عَمَّ نَوَالُهٗ په پاک نامه کښې چه کوم برکت، مزه، روائے، خوشحالي او تسلي ده، هغه د دے کس نه پته نهٔ ده چا چه څو ځله د پاک نامه بار بار ویلے وي او یو زمانے پورے یے دا دځان مشغله جوړه کړے وي۔ د پاک نوم د زړونو د خوشحالئ او د تسلئ سبب دے۔ خپله د الله جَلَّ شَانُهٗ ارشاد دے۔ اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ۔ د سورة مائده۔ رکوع ۴) (ترجمه) "بنه پوهه شئ چه د الله تعالیٰ په ذکر (کښې دا خصوصیت دے چه دے) سره زړونو ته تسلي کیږي۔" نن صبا عام طور په عالم کښې پریشاني ده۔ روزانه ډاک (یعني خطونو) کښې اکثر دیر زیات د مختلف قسمه پریشانو ذکر او د فکرونو قصے راځي۔ د دے رسالے مقصد هم دا دے چه کوم خلق پریشانه دي چه هغه دَدِهٔ ځانله پریشاني وي یا د ټولے او د قوم وي هغوي ته د خپل د درد دارُو معلوم شي او د الله تعالیٰ د ذکر د فضائلو عام کولو څیز ولو سره نیک بخت او مبارک خلق فائده مند شي۔ کیدے شي چه د دے رسالے په کتلو سره چا ته په اخلاص د دے پاک نوم اخستلو توفیق اوشي۔ د دا ملبے کاره او بے عمله د پاره هم په دا سے وخت کښې پکار راشي، کوم وخت چه صرف عمل پکار راځي۔ باقي الله تعالیٰ بغیر عمله په خپل فضل چا مدد اوکړي، دا بله خبره ده۔ د دے نه علاوه دا وخت د دے کار کولو وجه هُم پیښه شوه چه الله جَلَّ شَانُهٗ په خپلے مهربانئ او احسان ځما تره محترم حضرت مولانا الحافظ الحاج **مُحمّد الیاس** صاحب کاندهلوی مُقیم نظام الدّین دهلي ته په تبلیغ کښې یوه خاصه پوهه، فکر او جذبه ورکړے ده چه د هغهٔ د غه محنت د هندوستان د ملک نه بهر حجاز ه پورے هُم

رسیدلے دے، د هیڅ بیان محتاج نه دے. د دے د فائدو نه هندوستان وغیره ته عموماً او په هندوستان کښ کمیوات علاقے ته چه څومره قدر لے فائده اُوشوه او کیږی هغه د واقفو کسانو نه پټه نه ده. د دوی د تبلیغ اُصول ټول ډیر پاخه، مضبوط او محکم دی چه ورسره خاص فائدے او برکتونه حاصلیږی. د دوی د ټولو نه ضروری اصولو کښ دا هم ده چه مُبَلِّغین د ذکر پابندی کوی. او خصوصاً په تبلیغی وختونو کښ د الله تعالیٰ ذکر په کثرت سره کوی. د دے قاعدے برکتونه م په سترګو اُولیدل. په غوږ ونو م واؤریدل. په دے وجه د دے ضرورت راته پخپله محسوس شو. او د ترهٔ صاحب ارشاد هم اُوشو چه د ذکر فضائل د دے خلقو ته اُورسولے شی، د پاره د دے چه کوم خلق ترا اُوسه حکم منلو په وجه ذکر کوی، هغوی د دے فضائل معلوم کړی او په خپل شوق سره د دے اهتمام اُوکړی. چه د الله تعالیٰ ذکر لوئی دولت دے. د دے فضائل راجمع کول نه خو ځما په شان بے عمله په وَس کښ دی او نه په واقع کښ ممکن دی. د دے د پاره په مختصر طور د دے رساله کښ څو روایتونه ذکر کوم او دا په درے بابونو تقسیموم.

## اول باب:- د مطلق ذکر په فضائلو کښ.

## دویم باب:- د اَفضَلُ الذِّکر کلمے طیّبے په بیان کښ.

## دریم باب:- دریمے کلمے یعنی د تسبیحاتِ فاطمه په بیان کښ.

# اول باب

## د ذکر فضائل

د الله جل شانهٔ پاک ذکر کښ که چرے هیڅ یو آیت یا حدیث نه وے راغلے بیا هم دهغه حقیقی انعام کوونکی یعنے الله تعالیٰ ذکر داسے وو چه بنده ته په هیڅ یو وخت کښ هم د دے نه غافله کیدل نه وو بکار چه دهغه پاک ذات انعامات او احسانات هر وخت دومره ډیر دی چه دهغې نه څه حد شته نه مثال. د داسے انعام کوونکی ذکر، دهغه یاد دهغه شکر، دهغه احسان منډی فطری یعنی پیدائشی څیز دے. ؎

خداوند عالم کے قربان میں ✦ کرم جس کے لاکھوں ہیں ہر آن میں

د خداوند عالم نه شم قربان ✦ مهربانئ چه یے لکهونو دی هر آن

خو دے سره هر کله چه قرآن او حدیث او د بزرګانو اقوال او احوال د دے پاک ذکر د شوق او حرص پیدا کولو نه ډک دی نو بیا څه تپوس کوے د دے پاک ذکر د برکتونو، او څه حد د دے د دے د انوارانو نو ځکه بیا هم اول څو آیتونه بیا څو حدیثونه د دے مبارک ذکر متعلق پیش کوم.

## اول فصل ——— د ذکر آیتونو کښ

(۱) فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ۝ (بقره- ع ۱۸)

* پس تاسو ما یادوی (زما ذکر کوئ)، زه به تاسو یادوم- او زما شکر ادا کوئ او ناشکری مه کوئ-

(۲) فَإِذَا أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِندَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ وَإِن كُنتُم مِّن قَبْلِهِ لَمِنَ

* پس هر کله چه تاسو د حج په موقع کښ د عرفات نه واپس راشئ نو مزدلفه کښ (ایساری) الله یادوئ او داسے یے یادوئ څنګه چه هغه تاسو ته خودلی دی- په حقیقت کښ تاسو د دے نه

الضَّآلِّيْنَ ○ (بقرہ۔ ع ۲۵)

وړاندے یعنی نا واقفه وئ.

(۳) فَاِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا ؕ فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا وَمَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ○ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِى الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ ○ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّمَّا كَسَبُوْا ؕ وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ○ (بقرہ۔ ع ۵۵)

+ پس هر کله چه تاسو د حج عملونه پوره کړئ نو د الله تعالیٰ ذکر کوئ څنګه چه تاسو د خپلو پلرونو (او نیکونو) ذکر کوئ (چه د هغوی په تعریفونو کښ رَطْبُ اللِّسَان وئ یعنی اخته اُوسئ) بلکه د الله تعالیٰ ذکر د دینه هم زیات کول پکار دی. بیا چه کوم خلق د الله تعالیٰ ذکر هم کوی د هغوی نه (بعض خو داسے دی (چه خپلو دعاګانو کښ) داسے وائی اے پروردګاره! چه مونږ ته یے خو په دُنیا کښ راکړے (پس دوی ته چه څهٔ ورکړے شی په دُنیا کښ به ورکړے شی) او د دوی د پاره په آخرت کښ هیڅ حصه نشته. او بعض خلق داسے وائی چه اے زمونږ پروردګاره! چه مونږ ته په دُنیا کښ هم بهتری راکړے او آخرت کښ هم او مونږ د دوزخ د اُور نه بچ کړے. پس هم دا دی چا ته چه به د هغوی د عمل د وجے نه (په دواړه جهانونو کښ) حصه ورکړے شی او الله تعالیٰ زر حساب اخستونکے دے.

**فائده:-** حدیث کښ راغلی دی چه د دریو کسانو دُعا نه رد کیږی (بلکه ضرور قبلیږی) یو هغه چه په کثرت سره د الله تعالیٰ ذکر کوی. دویم مظلوم. دریم هغه بادشاه چه ظلم نهٔ کوی. (جامع الصغیر)

(۴) وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِىْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ ؕ (بقرہ۔ ع ۲۵)

+ او د حج په زمانه کښ مِنیٰ کښ هم (په دیارلسمه) څو ورځو پورے الله تعالیٰ یادوئ. (د هغهٔ ذکر کوئ)

(۵) وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِىِّ وَالْاِبْكَارِ ○ (آل عمران ع ۴)

+ او په کثرت سره خپل رب یادوئ او سحر او ماښام تسبیح کوئ.

(۶) اَلَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ

+ (د دُوی) د وجے نه د عقلمندانو ذکر دے هغوی داسے

# تمهید

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَاَتْبَاعِهٖ حَمَلَةِ الدِّيْنِ الْقَوِيْمِ

دالله جل جلاله عم نواله په پاک نامه کښې چه کوم برکت، مزه، خوند والے خوشحالی او تسلی ده، هغه د دا سے کس نه پټه نه ده چا چه څو ورځے دا پاک نامه بار بار ویلے وی او تو زمانے پورے یے دا دخان مشغله جوړه کړے وی۔ دا پاک نوم د زړونو د خوشحالئ او د تسلئ سبب دے۔ په خپله دالله جل شانهٗ ارشاد دے۔ اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ د (سورة مائده۔ رکوع ۴) (ترجمه) "بنه پوهه شئ چه دالله تعالیٰ په ذکر (کښې دا خاصیت دے چه دے) سره زړونو ته تسلی کیږی"۔ نن صبا عام طور په عالم کښې پریشانی ده۔ روزانه ډاک (یعنی خطونو) کښې اکثر دیر زیات دمختلف قسمه پریشانو ذکر او دفکرونو قصے راځی۔ ددے رسالے مقصد هم دا دے چه کوم خلق پریشانه دی چه هغه د دِ معاملے پریشانی وی یا د ډلے او د قوم وی هغوی ته دخپل درد دارو معلوم شی او دالله تعالیٰ د ذکر د فضائلو عام کولو خوړولو سره نیک بخت او مبارک خلق فائده مند شی۔ کیدے شی چه ددے رسالے په کتلو سره چا ته په اخلاص ددے پاک نوم اخستلو توفیق اوشی۔ او دا ملے کاره او بے عمله د پاره هم په دا سے وخت کښې بکار راشی، کوم وخت چه صرف عمل بکار راځی۔ باقی الله تعالیٰ بغیر عمله په خپل فضل د چا مدد اوکړی، دا بله خبره ده۔ دے نه علاوه دا وخت ددے کار کولو وجه دا هم پیښه شوه چه الله جل شانهٗ په خپلے مهربانئ او احسان څما تره محترم حضرت مولانا الحافظ الحاج **محمد الیاس** صاحب کاندهلوی مُقیم نظام الدین دهلی ته په تبلیغ کښې یوه خاصه پوهه، فکر او جذبه ورکړے ده چه د هغه د دغه محنت د هندوستان د ملک نه بهر حجاز ته پورے هم

خُفْيَةً ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ○ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا وَادْعُوهُ خَوْفًا وَطَمَعًا ۚ إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ ○ (اعراف - ع ۷)

(هم) بیشکه الله تعالیٰ د حد نه وتونکی نه خوښوی - او دنیا کښ پس د دې نه چه د هغې اصلاح شوې وی فساد مه خوروئ - او الله تعالیٰ بلئ په ویره سره (د عذاب نه) او د طمع سره (د رحمت کښ) بیشکه د الله تعالیٰ رحمت ښه کارکونکو ته ډیر نزدې دے.

⑬ وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا (اعراف - ع ۲۲)

+ او الله تعالیٰ د پاره دی ښه ښه نومونه پس په هغې سره الله تعالیٰ بلئ -

⑭ وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُن مِّنَ الْغَافِلِينَ ○ (اعراف - ع ۲۴)

+ او د خپل رب یاد کوه خپل زړه کښ او په ټیټ آواز سره هم - په داسے حالت کښ چه عاجزی و زاری سره هم وی او د الله تعالیٰ ویره هم وی (همیشه) د سحر او د ماښام هم - او د غافلینو نه مه کیږه -

⑮ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ○ (انفال - ع ۱)

+ ایمان والا خو هغه خلق دی چه کله د هغوی مخکښ د الله تعالیٰ ذکر کیږی نو د هغه د لوئی (د تصور نه) د هغوی زړونه ویریږی او کله چه په هغوی د الله تعالیٰ آیتونه لوستلے شی نو د هغوی ایمان زیاتوی - او هغوی په خپل الله تعالیٰ توکل کوی - (وړاندے د هغوی د مونځ وغیره ذکر نه پس ارشاد دے - هم دا خلق رښتنی ایمان والا دی - د دوی د پاره لوی لوی درجې دی خپل رب سره او بخښنه ده او د عزت روزی ده)

⑯ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَنْ أَنَابَ ○ الَّذِينَ آمَنُوا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُم بِذِكْرِ اللَّهِ ۗ أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ

+ او څوک چه الله تعالیٰ طرف ته متوجه کیږی هغوی ته هدایت فرمائی - هغوی داسے خلق دی چه په الله تعالیٰ ایمان لاوړی او د الله تعالیٰ په ذکر سره د هغوی زړونو ته اطمینان

الْقُلُوْبُ ○ (رعد - ع ٤)

کیږی. ښهٔ پوهه شئ چه د الله تعالیٰ ذکر کښې داسے خاصیت دے چه په هغے سره زړونو ته اطمینان کیږی.

(١٧) قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ ؕ اَيًّا مَّا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ۚ (اسراء - ع ١٢)

✦ تاسو ورته اُوفرمایئ چه خواه الله تعالیٰ په الله وئیلو بلئ یا په رحمٰن وئیلو بلئ، په کومه نامه چه یې بلئ (هُم هغه بهتره ده) ولے چه هغهٔ دپاره ډیر ښهٔ نومونه دی۔

(١٨) وَاذْكُرْ رَّبَّكَ اِذَا نَسِيْتَ (کهف)

وفی مسائل السلوک فیہ مطلوبیۃ الذکر ظاہر

✦ اوکله چه تا نه هیره وُشی نو د خپل رب ذکر کوه۔

(١٩) وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ ۚ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا ○ (کهف - ع ٤)

✦ ته خپل ځان هغه خلقو سره (د ناستې) پابند ساته، څوک چه سحرا و ماښام خپل رب بلي صرف د هغهٔ د رضا حاصلولو دپاره او صرف د دُنیا د رونق په خیال سره ستا نظر (یعنی توجّه) د هغهٔ نه لرے نهٔ شی (د رونق نه مُراد دے که مالدار مُسلمانان شی نو اسلام ته به ترقی اُوشی) او د داسے کس وینا مهٔ منه، چه د چا زړهٔ مونږ د خپل یاد نه غافله کړے دے او هغه د خپلو خواهشاتو پابند دے۔ او د هغهٔ حال د حد نه زیات شوے دے۔

(٢٠) وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكٰفِرِيْنَ عَرْضَا ۙ الَّذِيْنَ كَانَتْ اَعْيُنُهُمْ فِيْ غِطَآءٍ عَنْ ذِكْرِيْ ○ (کهف - ع ١١)

او مونږ به دوزخ هغه ورځ (یعنی د قیامت په ورځ) د کافرانو مخکښې پیش کړُو او دا هغه کسان دی چه د چا په سترګو مونږ د یاد نه پرده پرته وه۔

(٢١) ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا ۚ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا ○ (مریم - ع ١)

✦ دا یادګیرنه ده ستا د پروردګار د مهربانئ کولو خپل بنده زکریا (علیه السلام) باندے، کله چه هغوی خپل پروردګار ته پټه اُوبلهٔ۔

(۲۲) وَاَدْعُوْا رَبِّیْ عَسٰٓی اَلَّآ اَکُوْنَ بِدُعَآءِ رَبِّیْ شَقِیًّا (مریم۔ ع ۳)

✦ اوبلم خۀ رب خپل (یقینی) امید دے چه خۀ خپل رب بلم، محرومه به نۀ پاتے کیږم۔

(۲۳) اِنَّنِیْٓ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدْنِیْ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِکْرِیْ ۝ اِنَّ السَّاعَةَ اٰتِیَةٌ اَکَادُ اُخْفِیْهَا لِتُجْزٰی کُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا تَسْعٰی ۝ (طٰهٰ۔ ع ۱)

✦ بیشکه خۀ چه یم، الله یم. خما نه سوا هیڅوک معبود نشته. پس ته (اے موسٰی) خما عبادت کوه او خما دیاد دپاره مونځ کوه بیشکه قیامت راتلونکے دے. خۀ هغه پټ ساتل غوارم، دپاره د دے چه هرکس ته د هغۀ د کړو بدله ورکړے شی۔

(۲۴) وَلَا تَنِیَا فِیْ ذِکْرِیْ ۝ (طٰهٰ۔ ع ۲)

✦ حضرت موسٰی او حضرت هارون علیهما السلام ته ارشاد دے) او خما په ذکر کښ سستی مۀ کوئ۔

(۲۵) وَنُوْحًا اِذْ نَادٰی مِنْ قَبْلُ۔ (انبیاء۔ ع ۶)

✦ او د نوح (علیه السلام تذکره دوی ته اوکړه) کله چه هغۀ اوبلۀ رب خپل (د حضرت ابراهیم علیه السلام د قصے نه) رومبے۔

(۲۶) وَاَیُّوْبَ اِذْ نَادٰی رَبَّهٗٓ اَنِّیْ مَسَّنِیَ الضُّرُّ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِیْنَ ۝ (انبیاء۔ ع ۶)

✦ او د ایوب (علیه السلام ذکر اوکړئ)، کله چه هغۀ رب خپل اوبلۀ چه ما ته ډیر تکلیف اورسیدو او ته د ټولو مهربانانو نه زیات مهربان یے۔

(۲۷) وَذَا النُّوْنِ اِذْ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ عَلَیْهِ فَنَادٰی فِی الظُّلُمٰتِ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّیْ کُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِیْنَ ۝ (انبیاء۔ ع ۶)

✦ او د کب والا پیغمبر یعنی حضرت یونس علیه السلام ذکر اوکړه) کله چه هغه (د خپل قوم نه) خفه شو لاړو۔ او دا یے اوګڼله چه مونږ به د هغۀ نیول نۀ کوو۔ پس هغۀ په تیرو کښ اوبلل چه ستا نه سوا هیڅوک معبود نشته. ته د هر عیبه پاک یے۔ بیشکه خۀ قصوروار یم۔

(۲۸) وَزَکَرِیَّآ اِذْ نَادٰی رَبَّهٗ رَبِّ لَا تَذَرْنِیْ فَرْدًا وَّاَنْتَ

✦ او د زکریا (علیه السلام ذکر اوکړه) کله چه هغۀ خپل رب اوبلۀ چه اے خما ربه! ما لاوارثه

خَيْرُ الْوَارِثِيْنَ ○ (انبیاء۔ ع۶)

مه پریږده (حال دا دے چه ته خو) د ټولو وارثانو نه بهتر (او حقیق وارث) هم ته یې۔

۲۹ اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ فِى الْخَيْرٰتِ وَيَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّرَهَبًا ؕ وَكَانُوْا لَنَا خٰشِعِيْنَ ○ (انبیاء۔ ع۶)

ـــ بیشکه دے ټولو انبیاء علیهم السلام چه د چا ذکر وړاندے ته ذکر کیږی) نیک کارونو کښ به یے تلوار کوله۔ او بلکو یه یے مونږ ته (د ثواب) رغبت او (د عذاب) په یے ویره کوله۔ او دوی ټول به ټول خما د یاره عاجزی کونکی۔

۳۰ وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ ○ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ۔ (حج۔ ع۵)

ـــ او ته (جنت وغیره) خوشخبری واوروه دا سے خشوع کونکو ته چه د هغوی دا حال دے چه کله د الله تعالیٰ ذکر کیږی نو د هغوی زړونه ویریږی۔

۳۱ اِنَّهٗ كَانَ فَرِيْقٌ مِّنْ عِبَادِىْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ ○ فَاتَّخَذْتُمُوْهُمْ سِخْرِيًّا حَتّٰىٓ اَنْسَوْكُمْ ذِكْرِىْ وَكُنْتُمْ مِّنْهُمْ تَضْحَكُوْنَ ○ اِنِّىْ جَزَيْتُهُمُ الْيَوْمَ بِمَا صَبَرُوْٓا ۙ اَنَّهُمْ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ○ (مومنون ع۶)

ـــ (قیامت کښ کافرانو ته په رخبرو اترو په دوران کښ اُوویلے شی چه ایا تاسو ته یاد نه دی) خما د بندګانو یو ټولګے ووا چه هغوی به مونږ ته د (سے) ویل، اے خښتن پروردګاره مونږ ایمان راوړے دے، پس مونږ ته وبخښه او په مونږ رحمت اُوکړه، ته د ټولو نه زیات رحم کونکے یے۔ پس تاسو هغوی پورے ټوقے اُوکړے۔ تر دے چه دے مشغلے تاسو نه خما یاد هم هیر کړه۔ او تاسو به هغوی پورے خندا کوله۔ ما نن هغوی ته د هغوی د صبر بدله ورکړه چه هم هغوی کامیاب شول۔

۳۲ رِجَالٌ ۙ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ (نور۔ ع۵)

ـــ د کامل ایمان والو یه تعریف کښ دی) هغوی دا سے خلق دی چه هغوی د الله تعالیٰ د ذکر نه نه اخستل په غفلت کښ اچوی نه خرڅول۔

(۳۳) وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ (عنکبوت ع ۵)

✦ او د الله تعالیٰ ذکر ډیر لوئی څیز دے۔

(۳۴) تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ○ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّاۤ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ○ (السجده ع ۲)

✦ د هغوی اړخونه د خوب ځایونو نه بیل اوسی، داریګے چه د عذاب د ویرے او د رحمت په امید هغوی خپل رب بللی او څه مونږ ورکړے شوی څیزونو نه خرچ کوی۔ پس هیچا ته خبر نشته چه د داسے خلقو د سترګو د یخوالی څه څه سامان خزانهٔ غیب کښ محفوظ دےچه بدله ده د هغوی د عملونو۔

(فی الدر عن الضحاک هُمْ قَوْمٌ لَا يَزَالُوْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ وروی نحوه عن ابن عباس رضی اللہ عنہ)

**فائده:-** یو حدیث کښ راغلی دی چه بنده په اخری شپه کښ الله تعالیٰ ته ډیر نزدے وی. که چرے تا نه کیدے شی نو د غه وخت د الله تعالیٰ ذکر کوه۔ (جامع الصغیر)

(۳۵) لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا ○ (احزاب ع ۳)

✦ بیشکه تاسو خلقو د پاره د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم نمونه موجوده وه یعنی هر هغه کس د پاره خوک چه د الله تعالیٰ او د اخرت نه ویریږی او په کثرت سره د الله تعالیٰ ذکر کوی (یعنی هر کله چه نبی علیه الصلوٰة والسلام جنګ کښ شریک شو او جهاد یے اوکړو، نو د بل د پاره څه منع کونکے کیدے شی)

(۳۶) وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ○ (احزاب ع ۵)

✦ (د هغه ځایه ته د مومنانو د صفتونو بیان دے دے نه پس ارشاد دے) او په کثرت سره د الله تعالیٰ ذکر کونکی نارینه او د الله تعالیٰ ذکر کونکے زنانه، د دے ټولو د پاره الله تعالیٰ مغفرت او اجرِ عظیم تیار کړے دے۔

(۳۷) يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا ○ وَّسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ○ (احزاب ع ۶)

✦ اے ایمان والو! تاسو د الله تعالیٰ ښه په کثرت سره ذکر کوئی او سحر او ماښام د هغه تسبیح کوئی۔

(۳۸) وَلَقَدْ نَادٰىنَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيْبُوْنَ (صٰفّٰت ع ۳)

اُو نوح (علیه السلام) مونږ اُو بللو۔ پس مونږ ښه فریاد اَورېدونکی یُو۔

(۳۹) فَوَيْلٌ لِّلْقٰسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ○ (زمر۔ ع ۳)

پس هلاکت دے هغه خلقو دپاره چه د چا زړهٔ د الله تعالیٰ د ذکر نه اَثر نهٔ اخلی۔ دا خلق په ښکاره ګمراهۍ کښں دی۔

(۴۰) اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُوْدُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ۚ ثُمَّ تَلِيْنُ جُلُوْدُهُمْ وَقُلُوْبُهُمْ اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ (زمر۔ ع ۳)

الله جل جلالهٗ ډېر ښهٔ کلام (یعنی قرآن) نازل کړو۔ چه دا سے کتاب دے چه خپل مینځ کښں مُتشابه دے۔ بار بار ویلے شی چه په دے سره د هغه خلقو بدن زړیږی شی څوک چه د خپل رَب نه وېرېږی۔ بیا د هغوی بدنُونه او زړُونه نرم شی د الله تعالیٰ ذکر طرف ته مُتوجِّه شی۔ دا د الله تعالیٰ هدایت دے چا ته چه غواړی د دغے په ذریعه هدایت ورکوی۔

(۴۱) فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ○ (مؤمن۔ ع ۲)

پس بللیٔ الله تعالیٰ خالص کوُونکی هغهٔ دپاره دین، اګرچه په کافرانو بَد لګی۔

(۴۲) هُوَ الْحَيُّ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ؕ (مؤمن۔ ع ۷)

هغه ژوندے دے د هغهٔ نه سوا څوک لائق د عبادت نشته۔ پس تاسو خالص اعتقاد سره هغه بللی۔

(۴۳) وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ ○ (زخرف۔ ع ۴)

څوک چه د رحمٰن د ذکر نه (په قصد) ړوند شی، مونږ په هغهٔ یو شیطان مُقرر کړُو پس هغه (هر وخت) هغهٔ سره اُوسیږی۔

(۴۴) مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا

مُحَمَّد صلی الله علیه وسلم د الله تعالیٰ رسُول دے او کوم خلق چه د دوی صُحبت یافته دی (یعنی صحابهٔ کرام رضی الله عنهم) د کافرانو په مقابله کښں

سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ كَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْـَٔهٗ فَاٰزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوْقِهٖ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيْظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ۞ (الفتح ع ۴)

تیز دی او خپل مینځ کښې مهربانه دی. او اے مخاطبه! ته به دوی وینې چه کله رکوع کوی او کله سجدهٔ، او د الله تعالیٰ د فضل او د رضا منلئ په لټون کښې لګیا وی. (او د خشوع خضوع) نخښے یے په وجه د تاثیر د سجدے په مخونو ښکاره وی. (دا د دوی صفتونه په تورات کښې دی او په انجیل کښې لکه څنګه چه فصل، چه اول یے خپله تیغه را اُوخکله، بیا یے هغه قوی کړه. بیا هغه فصل نور غټ شو. بیا په خپله تنه نیغ اُودریدهٔ چه زمیندار و ته ښهٔ معلوم شو. (د غسے صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم کښې اول ضُعف وو. بیا یے روزانه قوت زیاتیدهٔ او الله تعالیٰ دا قوت ځکه ورکړهٔ) چه په دے سره کافران اُوسوزی. الله تعالیٰ د غے خلقو سره کوم چه ایمان راوړهٔ او نیک عمل کوی د مغفرت او د اجرِ عظیم وعده کړے ده".

**فائده:-** ایتِ شریفه کښې اګرچه ظاهری طور د رکوع سجدے او د مونځ فضیلت زیات مقصود دے او دغه خو ښکاره دے. خو د کلمے طیبے د دویم جز و مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ فضیلت هم د دے نه ښکاره دے.

اِمَامِ غزالی رحمة الله علیه لیکلی دی چه د پورته نه صُلح حُدَیبیه کښې د کافرانو په انکار او د دے خبرے په اِصرار کولو چه مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ مهٔ لیکه، مُحَمَّد بن عَبْدُ اللّٰه اُولیکه. الله جل شانهٔ فرمائی چه الله پخپله ګواه دے په دے خبره چه "مُحَمَّد" د الله رَسُول دے. او هر کله چه لیږونکے په خپله اقرار وکړی چه فلانے زما قاصد دے، نو بیا لا هم (څله) که څوک انکار وکړی، د هغه په انکار څهٔ کیږی. د دے ګواهئ د اقرار د پاره الله جل شانهٔ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

اُو فرمایۀ۔ دے نه پس آیتِ شریفه کښې نور هم ځو ضروری مضامین دی چه دهغے تعلق هغو لوته داری۔ چه د مخ آثرات ښکاره کیدو فضیلت دے درے په تفسیرکښې مختلف اقوال دی۔ یو دا هم دے چه دشو کیره کونکو په مخ کوم انوار و برکات ښکاریږی، هغه مراد دی۔ اِمام رازی رحمة الله علیه لیکلی دی چه دا تحقیق ته رسیدلے ده چه د شپے دوه کسان شو کیره و کړی یو لهو لعب کښې مشغول وی، بل مونځ، قرآن او علم زده کولو کښې مشغول وی۔ سحر د دواړو د مخونو په نور کښې به ښکاره فرق وی، کوم چه لهو لعب کښې مشغول وُو۔ دا دهغه شان اُو کیدے نشی کوم چه ذکر او شکر کښې تول شپه لګیا وُو۔ دریمه ضروری خبره داده چه حضرت اِمامِ مالک رحمة الله علیه او دعالمانو یو ډله دے آیت نه دهغه خلقو په کفر دلیل اخستے دے کوم چه اصحابِ کرامو رضی الله عنهم اجمعین ته کنځل کوی، بد وائی هغوی سره بُغض (کینه) ساتی۔ (ابن کثیر)

⑤ اَلَمْ یَاْنِ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ (حدید۔ ع ۲)

ترجمه: آیا ایمان والو د پاره د دے وخت لا نه دے راغلے چه د هغوی زړونه د الله تعالیٰ دیاد د پاره ټیټ شی۔

⑥ اِسْتَحْوَذَ عَلَیْهِمُ الشَّیْطٰنُ فَاَنْسٰىهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ اُولٰٓىٕكَ حِزْبُ الشَّیْطٰنِ اَلَاۤ اِنَّ حِزْبَ الشَّیْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ○ (مجادلہ۔ ع ۳)

ترجمه: د دروجے نه د منافقانو ذکر دے، په هغوی د شیطان قبضه اُوشوه۔ پس هغه دوی د الله تعالیٰ د ذکر نه غافله کړه۔ دا خلق د شیطان ډله ده۔ ښه پوهه شئ۔ دا خبره ثابته ده چه د شیطان ډله نقصان والا ده۔

⑦ فَاِذَا قُضِیَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِی الْاَرْضِ وَ ابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَ اذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِیْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ○ (جمعه۔ ع ۲)

ترجمه: بیا چه کله (د جمعے) مونځ پوره کړئ نو (تاسو ته اجازت دے چه) تاسو په زمکه خوارۀ شئ او د الله تعالیٰ روزی تلاش کوئ (یعنی د دُنیا په کارونو کښې د مشغولیدو اجازت دے خو په دے کښې هم) د الله تعالیٰ ذکر

په کثرت سره کوي، د پاره ددے چه فلاح (کامیابئ) ته اُورسي۔

(۴۸) يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ○ (منافقون۔ ع ۲)

✦ اے ایمان والو! تاسو دِ ستاسو مالونه او اولاد د الله تعالیٰ د ذکرنه، د هغهٔ د یاد نه غافله نهٔ کړي۔ او کوم خلق چه دا سے وکړي هم دغه نقصان والا دي۔ (ولے چه دا ځیزونه خو په دُنیا کښ ختمیدُنکي دي او د الله تعالیٰ یاد آخرت کښ کار ورکونکے دے)

(۴۹) وَاِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِاَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُوْلُوْنَ اِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ ○ (قلم۔ ع ۲)

✦ دا کافر خلق کله چه ذکر (قرآن) اَوري (نو د سختے دُشمنئ نه) داسے معلومیږي چه ګویا تاسو به په خپلو نظرُونو وُخوځئ اُوغورزَوي او وائي چه (نعوذ بالله) دا خو لیونے دے۔

فائده:۔ په نظرخوځولو غورزَولو اِشاره ده (د دُشمنئ د زیاتوالي نه) خُنګه چه حمونږ په ویناکښ وائي۔ داسے ګوري چه اُوبه م خوري۔ حَسَنِ بَصَري رحمة الله عليه فرمائي چا ته چه نظر لګیدلے وی په هغهٔ دا ایتِ شریفه ویل او دَمَول فائده مند دي۔ (جُمَل)

(۵۰) وَمَنْ يُّعْرِضْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا ○ (جن۔ ع ۱)

✦ او چه څوک د خپل پروردګار د یاد نه اعراض اُوکړي (یعني مخ واړوي) الله تعالیٰ به هغه سخت عذاب کښ داخل کړي۔

(۵۱) وَاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا ۞ قُلْ اِنَّمَآ اَدْعُوْا رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖٓ اَحَدًا ○ (جن۔ ع ۱)

✦ کله چه د الله تعالیٰ خاص بنده (یعني محمد صلی الله علیه وسلم) د الله تعالیٰ رابللو د پاره اُودریږي۔ نو دا کافران په هغے بنده راغونډیږي۔ تاسو ورته اُووایئ چه ځهٔ خو صرف خپل پروردګار بلم او هغه سره څوک شریک نه کوم۔

(۵۲) وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ اِلَيْهِ تَبْتِيْلًا ○

✦ او ته د خپل رَب نامه اَخله او ټولو سره تعلقات مُنقطع (یعني پریکړه) هم هغهٔ طرف ته

(مزمّل - ع ۱) | متوجّه اوسه.

(منقطع کولو مطلب دا دے چه دالله تعالیٰ د تعلق په مقابله کښ ټول خلک ته وی.

۴۳ وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَّأَصِيلًا ۞ وَمِنَ الَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهُ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيلًا ۞ إِنَّ هٰؤُلَاءِ يُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ وَيَذَرُونَ وَرَاءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيلًا ۞ (دهر - ع ۲)

ترجمه: اود خپل رَب سحرا و ماښام نامه اخله او څه قدر د شپے په حصه کښ هم هغهٔ ته سجده کوه. اود شپے په لویه حصه کښ دهغهٔ تسبیح کوه (مراد دِینه د تهجد لمونځ دے) د اخلق (کوم چه ستا مخالف دی) دُنیا سره محبت ساتی او خپل مخکښ (راتلونکے) یوه درنه وَرځ یے پریخے ده.

۴۵ قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى ۞ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ۞ (اعلیٰ - ع ۱)

ترجمه: بیشکه کامیاب شو هغه کس څوك چه (د بدو اخلاقو نه) پاك شو، اود خپل رَب نوم یے اخستلو او مونځ یے کولو.

# دویم فصل ـــــ د ذکر حدیثونو کښ

هر کله چه دے مضمون کښ د قرآنِ پاك ایتونه دومره ډیر زیات موجود دی، نو د حدیثونو به څهٔ وایے. ولے چه د قرآن شریف ټولے دیرش پارے دی او د حدیث بے شمیره کتابونه دی او هر کتاب کښ بے شمیره حدیثونه دی یو د بُخاری شریف لوئی لوئی دیرش پارے دی. او د ابو داوُد شریف دوه دیرش پارے دی. او هیڅ کتاب هم داسے نشته چه د دے مُبارك ذکر نه خالی دی. په دے وجه د حدیثونو راجمع کول څوك کولے شی. د نمونے او د عمل دپاره یو ایت او یو حدیث هم بس دے او چه څوك عمل نهٔ کوی، هغهٔ دپاره رجسترونه هم بے کاره دی. كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا ؕ

① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه الله جل شانهٔ

(۲۲) قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى اَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِىْ بِىْ وَاَنَا مَعَهٗ اِذَا ذَكَرَنِىْ فَاِنْ ذَكَرَنِىْ فِىْ نَفْسِهٖ ذَكَرْتُهٗ فِىْ نَفْسِىْ وَاِنْ ذَكَرَنِىْ فِىْ مَلَاٍ ذَكَرْتُهٗ فِىْ مَلَاٍ خَيْرٍ مِّنْهُمْ وَاِنْ تَقَرَّبَ اِلَىَّ شِبْرًا تَقَرَّبْتُ اِلَيْهِ ذِرَاعًا وَاِنْ تَقَرَّبَ اِلَىَّ ذِرَاعًا تَقَرَّبْتُ اِلَيْهِ بَاعًا وَاِنْ اَتَانِىْ يَمْشِىْ اَتَيْتُهٗ هَرْوَلَةً

(رواه احمد والبخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة والبیہقی فی الشعب واخرج احمد والبیہقی فی الاسماء والصفات عن انس بمعناه بلفظ یا ابن آدم اذا ذکرتنی فی نفسک الحدیث وفی الباب عن معاذ بن انس عند الطبرانی باسناد حسن وعن ابن عباس عند البزار باسناد صحیح والبیہقی وغیرهما وعن ابی ہریرة عند ابن ماجة وابن حبان وغیرہما بلفظ انا مع عبدی اذا ذکرنی وتحرکت بی شفتاه کما فی الدر المنثور والترغیب للمنذری والمشکوة مختصرا وفیہ بروایة مسلم عن ابی ذر بمعناه وفی الاتحاف علقه البخاری عن ابی ہریرة بصیغة الجزم ورواه ابن حبان من حدیث ابی الدرداء اھ)

ارشاد فرمائی چه حٔه بنده سره هغسې معامله کوم څنګه چه دے په ما ګمان ساتی او کله چه دے ما یاد وی، نو څهٔ ده سره یم. پس که چرے دے ما خپل زړهٔ کښې یادوی نو زهٔ یې هم خپل زړهٔ کښې یادوم. او که چرے دے څما ذکر ګڼړه کښې کوی نو څهٔ د هغې ګڼړے نه بهتر یعنی د فرښتو په ګڼړه کښې (چه معصوم او بے ګناه دی)، تذکره کوم. او که چرے بنده ما طرف ته یوه لیشت نزدې کیږی نو څهٔ یو لاس ده طرف ته متوجه کیږم او که دے یو لاس را نزدے کیږی نو څهٔ دوه لاسه ده ته متوجه کیږم. او که دے ما طرف ته را ژوان شی نو څهٔ ده طرف ته په منډه ورځم.

**فائده:-** دے حدیث شریف کښې څو مضمونونه راغلی دی.

**اول** دا چه بنده سره د هغهٔ د ګمان موافق معامله کوم. چه د دے مطلب دا دے چه الله جل شانهٗ نه د هغهٔ د مهربانئ اُمید ساتل پکار دی. د هغهٔ د رحمت نه هیڅ کله نا اُمیده کیدل نهٔ دی پکار. یقیناً مونږ خلق ګنهګار یو، او سر نه ترخپو ګناه او د خپلو حرکتونو او د ګناهونو د سزا او د بدلے یقین دے خو د الله تعالیٰ د رحمت نه نا اُمیده کیدل هم نهٔ دی پکار. څهٔ لرے نهٔ ده چه الله جل شانهٗ صرف په خپلے مهربانئ سره بیخی معاف کړی اِنَّ اللّٰهَ لَا یَغْفِرُ

أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ قرآن شریف کښې راغلی دی. (ترجمه) الله جل شانه د شرک ګناه خو نه معاف کوی، د دے نه علاوه چا ته چه وغواړی هر څه به معاف کړی. خو ضروری نه ده چه معاف یے کړی. هم په دے وجه عالمان فرمائی چه ایمان د امید او د ویرے ترمینځه دے. نبی کریم ﷺ یو ځلمی صحابی ته تشریف یوړه، هغه د ځنکدن په حالت کښې وو. نبی اکرم ﷺ ترے پوښتنه اوکړه چه په څه حال کښې یے؟ عرض یے اوکړه، اے د الله رسوله! د الله تعالیٰ د رحمت امید وار یم او د خپلو ګناهونو نه ویریږم. نبی اکرم ﷺ ارشاد اوفرمایه چه دا دواړه یعنی امید او ویره د کوم بنده په زړه کښې په داسے حالت کښې وی نو الله تعالیٰ نه یے چه کوم امید وی هغه ورکوی او چه د څه نه یے ویره وی د هغے نه امن ورکوی. (جمع الفوائد)

یو حدیث کښې راغلی دی چه مؤمن خپله ګناه داسے ګنړی چه ګویا د یو غرد لاندے ناست دے او هغه غر به د هٔ راغورزیږی. او فاجر (ګنهګار کس) ګناه داسے ګنړی، ګویا یو مچ ناست وو والیے لوزوو. یعنی ذره پرواه یے نهٔ وی. مقصود دا دے چه د ګناه نه ویره د هغے مناسب پکار ده. او د رحمت امید د هغے مناسب.

حضرت معاذ رضی الله عنه طاعون (مرض) کښې شهید شو. د وفات نزدے وخت کښې به بار بار بے هوشه کیده. کله چه به هوش کښې راغے نو اوبه یے فرمایل یا الله! تا ته معلومه ده چه ځما تا سره محبت دے. ستا په عزت م د قسم وی چه تا ته دا خبره ښهٔ معلومه ده. کله چه یے بیخی د مرګ وخت نزدے شو نو یے فرمایل، اے مرګه! ستا راتلل د مبارک وی. څومره مبارک میلمه راغے خو د لوږے په حالت کښې دا میلمه راغے. د دے نه پس یے اوفرمایل اے الله! تا ته معلومه ده چه ځهٔ همیشه لتا نه ویریدلم. نن ستا نه امید لرم. یا الله! ځما د ژوند سره محبت د وخوړو نو کښتلو او باغونو لګولو د پاره نهٔ وو. بلکه د ګرمئ سخته تنده برداشت کول او د دین له خاطره مشقتونه اوچتولو د پاره او د ذکر په حلقو کښې د عالمانو څخه کلک ناستے

دپاره وُو۔ (تهذیب اللغات)

بعضو عالمانو لیکلی دی چه پورتنی حدیث کښې (اول د) گمان موافق معامله دعام حالاتو په اعتبار سره ده خاص د مغفرت متعلق نهٔ ده. دُعا صحت وُسعت، اَمن وغیره ټول څیزونه په دے کښې داخل دی. مثلاً د دُعا متعلق ځان پوهه کړئ. مطلب یے دا دے که چرے بندهٔ دا یقین اُوکړی چه ځما دُعا به خامخا قبلیږی او ضروریه کیږی نو دهغهٔ دُعا قبلیږی او که چرے بندهٔ دا یقین اُوکړی چه ځما دُعا نهٔ قبلیږی نو هم هغسے معامله ورسره کولے شی. لکه نورو حدیثونو کښې راغلی دی چه د بنده دُعا قبلیږی ترڅو چه دا اُونهٔ وائی چه ځما دُعا خو نهٔ قبلیږی. دارنگے د صحت مالداری وغیره د ټولو کارونو حال دے. حدیث کښې راغلی دی چه په چا غریبی راغله او هغه ګړځی خلقو ته یے وائی، نو مالداری ورته نهٔ نصیب کیږی او که د الله تعالیٰ په پاک دربار کښې درخواست وُکړی نو زربه یے دا حالت لرے شی. خو دا ضروری ده چه الله جلّ شانهٔ باندے نیک گمان ساتل ځان له څیز دے او الله تعالیٰ باندے مغروره کیدل بل څیز دے. قرآن شریف کښې په مختلفو عنوانانو په دے خبردارے کړے شوے دے. ارشاد دے۔ وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ (او په دهوکه کښې دِ تاسو وانهٔ چوی دهوکه باز) یعنی شیطان دِ تا دا پوهه نکړی چه گناه کوه الله غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (بخښونکے مهربانه) دے بل ځائے ارشاد دے. اَطَّلَعَ الْغَيْبَ اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا كَلَّا (آیا هغه غیبو باندِ خبرداره شو یا الله تعالیٰ سره هغهٔ لوظ کړے دے داسے هرگز نهٔ ده)

دوئیم مضمون دا دے چه کله بنده ما یادوی نو ځهٔ ده سره یم. بل حدیث کښې دی چه کله بنده ما یادوی نو ترڅو چه د ده شونډے ځما په یاد کښې خوزی نو ځهٔ ده سره یم. یعنی خاصه توجّه د ده باندِ وی او خصوصی رحمت پرے نازلیږی۔

دریم مضمون دا دے چه ځینے د فرښتو په ډله کښې ذکر کوم یعنی د فخر په طور د هغهٔ ذکر کولے شی. اول په دے وجه چه د بنیادم پیدائش

چه کوم ترکیب سره شوے دے، د هغے موافق دهٔ کښې د اِطاعت (حکم منلو) او معصیّت (حکم نه منلو) دَ دواړو مَادّهٔ پرته ده ځکه چه اَتم نمبر حدیث د لاندے راځي. دے حالت کښې اِطاعت کول یقیناً د فخر سبب دے دوَیم په دے وجه چه فرښتو اول ځل د پیدا کولو په وخت عرض کړے وو (چه اے الله!) ته داسے مخلوق پیدا کوے چه په دُنیا کښې به وِینه تویوی (او فساد به کوی) او د دے وجه هم هغه ده چه د فساد مَادّهٔ په دهٔ کښې شته په خلاف د فرښتو چه په دوی کښې دا مَادّه اَصلاً شته نه. دے د پاره هغوی عرض کړے وو چه ستا تسبیح و تقدیس (یعنی ثناء ویل او پاکي بیانول) خو مونږه کوو. درَیَم په دے وجه چه د انسان اطاعت دهٔ عبادت که فرښتو د عبادت نه په دے وجه بهتر دے چه د انسان عبادت غیب سره یعنی د عالمِ آخرت کتلو نه بغیر دے او د فرښتو د عالمِ آخرت کتلو سره دے هم دے طرف ته د الله تعالیٰ په دے خبره کښې اشاره ده. که چرے هغوی جنّت دوزخ لیدلے وے نو څهٔ به وُو؟ په دے وجه هم سره الله جَلَّ شَانُهٗ خپل یاد کوُونکو او د خپل عبادت کوُونکو کارنامے ورته ښائي.

څلورم مضمون حدیث شریف کښې دا دے چه بنده په کومه درجه الله جلّ شانهٗ طرف ته مُتوجّه کیږی، د هغے نه زیاته توجُه او مهربانی د الله جلّ شانهٗ له طرفه هغے بنده ته کیږی. هم دا مطلب دے د را نزدے کیدو او په منډه ورتلو. چه څنګ مهربانی او څومره رحمت په تیزئ سره هغهٔ طرف ته ورځي. اوس د هر کس خپل اختیار دے چه څومره قدر دے رحمت او د الله تعالیٰ مهربانی خپل طرف ته متوجّه کول غواړی، هغومره د خپله توجُه الله جلّ شانهٗ طرف ته زیاته کړی.

پنځم بحث دے حدیث شریف کښې دا دے چه په دے کښې د فرښتو دَله بهتره خودلے ده د ذکر کوُونکو کسانو نه. حال دا دے چه دا مشهوره خبره ده چه انسان اَشرفُ الْمَخْلُوْقَات یعنی د ټولو مخلوقاتو نه بهتر دے. دے یو وجه خو ترجمه کښې ښکاره کړے شوے ده چه د هغوی بهتر والے یو

خاص حیثیت سره دے چه هغوی معصوم (پاک) دی۔ د هغوی نه گناه کیدے نه شی۔ دویمه وجه دا ده چه دا په اعتبار د اکثرو افرادو ده۔ چه اکثر افراد د فرښتو اکثرو بنیادمو بلکه اکثرو مؤمنانو نه بهتر دی، اگرچه خاص مؤمنان لکه انبیاء علیهم السلام د ټولو فرښتو نه بهتر دی۔ دے نه علاوه نور هم وجهے دی چه په هغے کښ اوږد بحث دے۔

(۲) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُسْرٍ رضی الله عنه اَنَّ رَجُلًا قَالَ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ شَرَائِعَ الْاِسْلَامِ قَدْ كَثُرَتْ عَلَیَّ فَاَخْبِرْنِیْ بِشَیْءٍ اَسْتَنُّ بِهٖ قَالَ لَا یَزَالُ لِسَانُكَ رَطْبًا مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ۔

یو صحابی عرض اوکړو، اے د الله رسوله! احکام د شریعت خو ډیر دی۔ ما ته یو څیز څه داسے اوښایئ چه څه یے خپل دستور او خپله مشغله جوړه کړم. نبی صلی الله علیه وسلم ورته ارشاد اوفرمایو چه د الله تعالیٰ په ذکر سره ته هر وخت رَطْبُ اللِّسَان اوسه یعنی ژبه مشغوله سا ته۔

یو بل حدیث کښ دی. حضرت معاذ رضی الله عنه فرمائی چه د جدائی په وخت آخری خبرے کومے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره اوشوے، هغه دا وے۔ ما پوښتنه اوکړه چه په ټولو عملونو کښ د ټولو نه خوښ عمل د الله تعالیٰ په نزد څه دے؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایو چه په داسے حالت کښ تا ته مرګ راشی چه د الله تعالیٰ په ذکر کښ رَطْبُ اللِّسَان یے (یعنی ژبه دِ لوند ه او مشغوله وی)

(اخرجه ابن ابی شیبة واحمد والترمذی وحسنه وابن حبان فی صحیحه والحاکم وصححه والبیهقی کذا فی الدر وفی المشکوٰة بروایة الترمذی وابن ماجة وحکی عن الترمذی حسن غریب اه قلت وصححه الحاکم واقره علیه الذهبی فی الجامع الصغیر بروایة ابی نعیم فی الحلیة مختصرا بلفظ اَنْ تُفَارِقَ الدُّنْیَا وَلِسَانُكَ رَطْبٌ مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ورقم بالضعف وبمعناه عن مالک بن یخامر اَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ قَالَ لَهُمْ اِنَّ اٰخِرَ كَلَامٍ فَارَقْتُ عَلَیْهِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم اَنْ قُلْتُ اَیُّ الْاَعْمَالِ اَحَبُّ اِلَی اللّٰهِ قَالَ اَنْ تَمُوْتَ وَلِسَانُكَ رَطْبٌ مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ اخرجه ابن ابی الدنیا والبزار وابن حبان والطبرانی والبیهقی کذا فی الدر والحصن الحصین والترغیب للمنذری وذکره فی الجامع الصغیر مختصرا وعزاه الی ابن حبان فی صحیحه وابن السنی فی عمل الیوم واللیلة والطبرانی فی الکبیر والبیهقی فی الشعب وفی مجمع الزوائد رواه الطبرانی باسانید۔)

فائده :- د جدائی د وخت مطلب دا دے چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ رضی الله عنه لره د اهلِ یمن د تبلیغ او تعلیم د پاره د یمن امیر جوړ کړو

لیږلو یئے. دغه وخت د رُخصت کولو په وخت کښې نبی ﷺ خه ومیتو فرمایلی وُو. او دۀ هم څۀ تپوسونه کړی وُو.

د شریعت احکام ډیرکیدلو مطلب دا دے چه هر حُکم په ځائی راوړل خو ضروری دی خو هر څیز کښې کمال پیدا کول او هغه مستقل مشغله جوړول گران دی. د دے د پاره د هغې نه یو څیز چه کوم د ټولو نه ضروری وی، ما ته راته اُوښائیئ چه هغه مضبوط اُونیسم او هر وخت هر ځائی تلو کرزیږم د ا پاسید و، کمینا ستو کښې یے کوم.

یو حدیث کښې ارشاد دے چه څلور څیزونه داسے دی چه چا ته دا ورکړے شُو، هغهٔ ته د دین دُنیا ښیگړے ورکړے شوے. یو هغه ژبه کومه چه ذکر کښې مشغوله وی. دویم هغه زړهٔ کوم چه شُکر کښې مشغول اُوسی. دریم هغه بدن کوم چه مُشقّت برداشت کونکے وی. څلورم هغه بی بی کومه چه خپل نَفس کښې او د خاوند په مال کښې خیانت نهٔ کوی. نفس کښې خیانت دا دے چه څۀ قسمه گند کئی کښې اَخته شی.

د رَطبُ اللِّسان مطلب اکثرو عالمانو د ډیرو الی لیکلے دے. او د ا عامه محاوره دهٔ خمونږ په عُرف کښې هم شته چه څوک د چا تعریف او یا د ډیر ډیر کری نو دا وئیلے شی چه د فلانی په تعریف کښې رَطبُ اللِّسان دے. خود بندهٔ عاجزه په خیال کښې یو بل مطلب هم کیدلے شی. هغه دا چه د چا سره عِشق او مُحبت وی د هغهٔ نُوم اَخستلو سره په خُلهٔ کښې یو لِذّت او مزه محسوسیږی. د چا چه د عِشق او مُحبت سره څۀ تعلق شوے وی هغوی د دے نه واقف دی. په دے وجه مطلب دا دے چه دا سے په لذّت خوند سره د الله تعالی پاک نُوم واخستلے شی چه مزه راشی. ما خپل بعض بزرگان ډیر خله لیدلی دی چه د ذکرِ بِالجَهر کولو په وخت پرے داسے تازگی راشی چه ورځنه ناست کښنا یے هم محسوسوی او په خُلهٔ کښې یے داسے اُوبهٔ راشی چه هر څوک یے محسوسولے شی. خو دا هله حاصلیږی چه هر کله په زړهٔ کښې خوږ خوږ درد (او مُحبت) وی او ژبه په ډیر ذکر کولو سره بلَدَه شوے وی.

یو حدیث کښ راغلی دی چه الله تعالیٰ سره د محبت نښه دهغهٔ ذکر سره محبت دے او الله تعالیٰ سره د بُغض نښه دهغهٔ ذکر سره بُغض دے۔

حضرت ابُوالدَّرداء رضی الله عنه فرمائی چه دکومو خلقو ژبے دالله تعالیٰ په ذکر ترا و تازه اُوسی، هغوی په جنت کښ په خندا داخلیږی۔

۳ عَنْ اَبِی الدَّرْدَاءِ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلَا اُنَبِّئُکُمْ بِخَیْرِ اَعْمَالِکُمْ وَ اَزْکَاهَا عِنْدَ مَلِیْکِکُمْ وَاَرْفَعِهَا فِیْ دَرَجَاتِکُمْ وَخَیْرٍ لَّکُمْ مِّنْ اِنْفَاقِ الذَّهَبِ وَالْوَرِقِ وَ خَیْرٍ لَّکُمْ مِّنْ اَنْ تَلْقَوْا عَدُوَّکُمْ فَتَضْرِبُوْا اَعْنَاقَهُمْ وَیَضْرِبُوْا اَعْنَاقَکُمْ قَالُوْا بَلٰی قَالَ ذِکْرُ اللهِ۔ (اخرجه احمد والترمذی وابن ماجه وابن ابی الدنیا والحاکم وصححه والبیهقی کذا فی الدر والحصن الحصین قلت قال الحاکم صحیح الاسناد ولم یخرجاه واقره علیه الذهبی ورقم له فی الجامع الصغیر بالصحة واخرجه احمد عن معاذ بن جبل کذا فی الدر وفی المشکٰوة بروایة احمد والترمذی والبیهقی عن ابی سعید سُئل رسول الله صلی الله علیه وسلم ای العباد افضل درجة عند الله یوم القیٰمة قال الذاکرون الله کثیرا قلت یا رسول الله ومن الغازی فی سبیل الله قال لو ضرب بسیفه فی الکفار والمشرکین حتی ینکسر ویختضب دما لکان الذاکرون لله افضل منه درجة)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو ځلے صحابه رضی الله عنهم ته ارشاد اُوفرمایهٔ چه آیا څهٔ تاسو ته داسے خیز اُونهٔ ښایم، کوم چه ټولو عملونو کښ بهترین خیز دے او ستاسو د مالک په نزد د ټولو نه زیات پاکیزه او ستاسو درجو لره ډیر زیات اُوچتونکے او د سرو او سپینو زرو دالله په لاره کښ خرچ کولو نه هم زیات بهتر او (جهاد کښ) تاسو دشمنان قتل کړئ او هغوی تاسو قتل کړی، د دے نه هم زیات وی؟ صحابه رضی الله عنهم عرض اُوکړهٔ، ضرور اُوښایئ. نبی علیه السلام ارشاد اُوفرمایهٔ، دالله تعالیٰ ذکر دے۔

**فائده:-** دا یے دعام حالت او دهر وخت په اعتبار سره ارشاد فرمایلے دے. کنی د وقتی ضرورت په اعتبار سره صدقه، جهاد وغیره کارُونه د ټولو نه زیات بهتر شی. هم په دے وجه بعضو حدیثونو کښ د دے خیزونو افضلیت بے هم بیان کړے دے. چه د دے ضرورتُونه وقتی دی او دالله تعالیٰ ذکر دهمیشه خیز دے او د ټولو نه زیات ضروری او بهتر دے۔

یو حدیث کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه هر یو څیز د پاره څۀ صفا کوونکے او څیز وے لرے کوونکے څیز وی (مثلاً جامے او بدن د پاره صابون، د اوسپنې د پاره د اور بهټی وغیره وغیره) د زړونو صفائی کوونکے څیز د الله تعالیٰ ذکر دے. او د الله تعالیٰ ذکر نه زیات بل هیڅ څیز د الله تعالیٰ د عذاب نه بچ کوونکے نشته دے حدیث کښې چونکه ذکر یې د زړهٔ د صفائیٔ ذریعه او سبب خودلے دے نو د دے نه هم د الله تعالیٰ ذکر د ټولو نه بهتر کیدل ثابتیږی. ځکه چه هر یو عبادت هم هغه وخت عبادت کیدے شی چه په اخلاص سره وی او د دے مدار د زړونو په صفائیٔ باندے دے. هم په دے وجه بعضو صوفیانو ویلی دی چه دے حدیث کښې د ذکر نه مراد ذکرِ قلبی دے، نه زبانی ذکر. او ذکرِ قلبی دا دے چه زړهٔ هر وخت الله تعالیٰ سره یو ځائی کړے شی او په دے کښې څۀ شک دے چه دا حالت د ټولو عبادتونو نه بهتر دے ځکه چه هر کله دا حالت شی نو بیا هیڅ یو عبادت پریخودے نشی چه ټول بنکاره او پټ اندامونه د زړهٔ تابع دی. کوم څیز سره چه زړهٔ اوتړلے شی ټول اندامونه هم هغه سره شی. د عاشقانو د حالاتو نه څوک بے خبره دی. نور هم ډیر و حدیثونو کښې د ذکر د ټولو نه بهتر کیدل راغلی دی.

حضرت سلمان رضی الله عنه نه چا تپوس اوکړو چه د ټولو نه لوئ عمل څۀ دے؟ هغوی اوفرمایل چه تا قرآن شریف نه دے ویلے. قرآن شریف کښې دی. وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ د هیڅ څیز د الله تعالیٰ د ذکر نه بهتر نشته. حضرت سلمان رضی الله عنه چه کوم آیتِ شریفه ته اشاره اوفرمایله، هغه د یویشتم پارے رکوع آیت دے. صاحبِ مجالس الابرار وائی چه دے حدیث کښې یې د الله تعالیٰ ذکر د صدقے او جهاد او ټولو عباداتو نه ځکه بهتر اوفرمایه چه اصل مقصود د الله تعالیٰ ذکر دے، او ټول عبادتونه د دے ذریعے او اوزار دی. او ذکر دوه قسمه دے. یو زبانی د ژبے، بل قلبی (د زړهٔ) چه ژبے نه هم غوره دے او دا مراقبه او د زړهٔ فکر دے او هم دا مراد دے، د دے حدیث نه کوم کښې چه راغلی دی چه د یو ساعت فکر کول د اویا کالو عبادت نه غوره دے.

مُسنَدِ احمد کښې دی، حضرت سهل رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه د الله تعالیٰ ذکر د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کولو نه اووه لاکهه حصه زیات تیری. د دې تقریر نه دا معلومه شوه چه صدقه او جهاد وغیره کوم چه وقتی خیزونه دی، د وقتی ضرورت په اعتبار د دې فضیلت ډیر زیات تیری په دې وجه په هغې حدیثونو کښې هیڅ اشکال نشته کوم کښې چه د دې خیزونو ډیر زیات فضیلت راغلے دے. لکه چه ارشاد دے چه لږ ساعت د الله تعالیٰ په لار کښې اودریدل په خپل کور کښې د اویاؤ کالو مونځونو نه غوره دی. حال دا دے چه مونځ بالاتفاق د ټولو نه بهترین عبادت دے. خو د کافرانو د حملے په وخت جهاد دے نه ډیر زیات بهتر گیری.

(۴) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ رضی الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ لَیَذْکُرَنَّ اللهَ اَقْوَامٌ فِی الدُّنْیَا عَلَی الْفُرُشِ الْمُمَهَّدَةِ یُدْخِلُهُمُ اللهُ فِی الدَّرَجَاتِ الْعُلٰی۔

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه ډیر خلق داسے دی چه دُنیا کښې په نرمو نرمو بسترو باندې د الله تعالیٰ ذکر کوی چه د دې په وجه الله جل شانهٗ دوی د جنت اعلیٰ درجوته رسوی۔

(اخرجه ابن حبان کذا فی الدر قلت ویؤیده الحدیث المتقدم قریبا بلفظ ارفعها فی درجاتکم وایضا قوله صلی الله علیه وسلم سَبَقَ الْمُفَرِّدُوْنَ قالوا وما المفردون یا رسول الله قال الذاکرون الله کثیرا والذاکرات رواه مسلم کذا فی الحصن وفی روایة قال المستهترون فی ذکر الله یضع الذکر عنهم اثقالهم فیاتون یوم القیمة خفافا رواه الترمذی والحاکم مختصرا وقال صحیح علی شرط الشیخین وفی الجامع رواه الطبرانی عن ابی الدرداء ایضا)

**فائده:-** یعنی دُنیا کښې مُشقتونه تیرول، تکلیفونه برداشت کول، د آخرت د درجو اوچتولو سبب دے. او خو مره چه په دینی کارونو کښې دلته مُشقت اوچت کرے شی، هغو مره به هلته د اوچتو مرتبو حقدار وی. خو د الله تعالیٰ د مُبارک ذکر دا برکت دے، که په راحت او آرام په نرمو بسترو هم اوکرے شی. بیا هم د درجو اوچتولو سبب گرزی. د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے که چرے تاسو هر وخت ذکر کښې مشغول اوسئ نو فرښتے به ستاسو په بسترو او ستاسو په لارو کښې تاسو ره لاس ملاوول شروع کړی. یو حدیث

کښې د نبي اکرم ﷺ ارشاد راغلے دے چه مُفَرِّد خلق ډیر وړاندے لاړل
صحابو رضی الله عنهم عرض اوکړهٔ چه مُفَرِّد څوک دي؟ نبي اکرم ﷺ ارشاد اوفرمايه
چه څوک د الله تعالی په ذکر کښې د عشق و محبت په سره مشغول وي. د دے
حديث په وجه صوفيانو ليکلي دي چه بادشاهان او اميران د الله تعالی د ذکر
په منع کول نه دي پکار چه هغوی د دے په وجه اعلی درجے حاصلولے شي.
حضرت ابُو الدَّرْدَاء رضی الله عنه فرمائي چه ته د الله تعالی ذکر د راحت او آرام او د
خوشحالی په وختونو کښې کوه، دا به تا ته د مشقتونو او د تکليفونو په وخت کښې
کار ورکړي. حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه فرمائي چه کله بنده د راحت، خوشحالی
مالدارئ په وختونو کښې د الله تعالی ذکر کوي. بيا چه دهٔ ته څه مُشقت او
تکليف اُورسي نو فرښتے وائي چه آشنا آواز دے چه د ضعيف بنده دے. بيا
الله تعالی ته د دهٔ سفارش کوي. او چه څوک د راحت په وختونو کښې الله تعالی
ياد نه کړي، بيا څه تکليف دهٔ ته اُورسي او هغه وخت يے ياد کړي نو فرښتے
وائي څنګه نا آشنا آواز دے. حضرت ابنِ عبّاس رضی الله عنه فرمائي چه د جنت
اتهٔ دروازے دي، يوه په هغې کښې صرف د ذاکرينو د پاره ده. يو حديث کښې
دي چه څوک د الله تعالی ذکر په کثرت سره کوي هغه د نفاق نه خلاص دے
بل حديث کښې دي چه الله تعالی هغهٔ سره محبت کوي. د يو سفر نه واپسي
کيدله، يو ځائي ته چه نبي کريم ﷺ راأورسيدهٔ، وے فرمايل چه وړاندے
ورتلونکي څهٔ شو. صحابو رضی الله عنهم عرض اُوکړهٔ چه بعضے تيز تلونکي وړاندے لاړل
نبي کريم ﷺ اُوفرمايل، هغه وړاندے تلونکي څهٔ شو څوک دي چه د الله تعالی
په ذکر کښې د محبت په انداز مشغول وي. څوک چه دا غواړي چه د جنت په
بستونو کښې موړ شي هغه دِ د الله تعالی ذکر ډير ډير کوي.

⑤ عَنْ أَبِي مُوسَى رضی الله عنه قَالَ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِي لَا يَذْكُرُ رَبَّهُ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ.

د نبي کريم ﷺ ارشاد دے چه څوک د الله تعالی ذکر کوي او څوک نه کوي د دے دواړو مثال د ژوندي او د مړي په شان دے چه ذکر کونکے ژوندے دے او ذکر نه کونکے مړ دے.

(اخرجہ البخاری ومسلم والبیہقی کذا فی الدر والمشکوٰۃ)

**فائدہ:** ژوند د هر چا خوښ دے او مرګ هر څوک ویریږی۔ د نبی کریم ﷺ ارشاد دے چه څوک د الله تعالیٰ ذکر نهٔ کوی هغه ژوندے هم د مړی په حکم کښ دے، د هغهٔ ژوند بے کاره دے۔

زندگانی نتوان گفت حیاتے کہ مراست ❊ زنده آن است که با دوست وصالے دارد

(ترجمه) وائی چه هغه ادو ژوند نهٔ دے کوم چه ما دے. ژوندے هغه دے چا ته چه د دوست ملاقات نصیب شی۔

بعضو عالمانو فرمایلی دی چه داد زړهٔ د حالت بیان دے چه څوک د الله تعالیٰ ذکر کوی د هغهٔ زړهٔ ژوندے وی او چه څوک ذکر نهٔ کوی د هغهٔ زړهٔ مړ کیږی. او بعضو عالمانو فرمایلی دی چه تشبیه د نفع او د نقصان په اعتبار سره ده چه د الله تعالیٰ ذکر کوونکی ته چه څوک تکلیف رسوی، هغه داسے دے لکه چه ژوندی ته تکلیف رسوی نو د دهٔ نه به بدله اخستلے شی. او د خپلو کړو به سزا ورکولے شی. او نهٔ ذکر کوونکی له تکلیف ورکوونکے داسے دے لکه مړی ته تکلیف ورکوونکے چه هغه په خپله بدله نشی اخستلے. صوفیان وائی چه د دے نه هميشه ژوند مُراد دے چه د الله تعالیٰ ذکر ډیر ډیر په اخلاص سره کوونکی او د مرهٔ نهٔ دی بلکه هغوی د دے دُنیا نه د تلو نه روستو هم د ژوندی په حکم کښ وی. لکه چه قرآن شریف کښ د شهید متعلق راغلی دی. بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ. دا رنګے د هغوی د پاره هم یو خاص قسم ژوند دے.

حکیم ترمذی رحمۃ اللہ علیہ فرمائی چه د الله تعالیٰ ذکر زړهٔ تروتازه کوی او نرمی پیدا کوی. او کله چه زړهٔ د الله تعالیٰ ذکر نه خالی وی نو د نفس په ګرمئ او د شهوت په اور سره اُوچ شوے سخت شی. بیا نو ال اندامونه سخت شی. د طاعت (یعنی حکم منلو) نه پاتے شی. که چرے دا اندامونه راکاږے نو مات به شی، لکه څنګه چه اُوچ لرګے په راګرځولو سره نه ماتیږی او بیا دَ ماتولو نه پس د سوزولو په کار راځی.

(۶) عَنْ اَبِی مُوسٰی رضی اللہ عنہ قَالَ | د نبی کریم ﷺ ارشاد مبارک دے که چرے یو کس

| | |
|---|---|
| قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَوْ اَنَّ رَجُلًا فِيْ حِجْرِهٖ دَرَاهِمُ يَقْسِمُهَا وَاٰخَرُ يَذْكُرُ اللهَ لَكَانَ الذَّاكِرُ | څوک چې ډيرې روپئ وي او هغه يې تقسيموي او بل کس د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغول وي نو ذکر کوونکے ترې بهتر دے. |

اَفْضَلُ. (اخرجه الطبراني كذا في الدر وفي مجمع الزوائد رواه الطبراني في الاوسط ورجاله وثقوا)

**فائده:-** يعنې د الله تعالیٰ په لار کښې خرچ کول خو لوئ څيز دے خو د الله تعالیٰ ياد د هغې په مقابله کښې هم بهتر دے. بيا څومره خوش نصيبه دی هغه مالداران چه د الله تعالیٰ په لار کښې خرچ هم کوی او ورته د الله تعالیٰ د ذکر توفيق هم نصيب شی.

يو حديث کښې دی چه د الله جل شانهٗ له خوا هره ورځ بندګانو باندے صدقه کيږی او هر کس ته د هغه د حيثيت مطابق څه نه څه ورکولے شی خو هيڅ ورکړه د دے نه زياته نشته چه هغه ته د ذکر توفيق ورکړے شی. کوم خلق چه کاروبار کښې مشغول دی. تجارت، زراعت، ملازمت کښې ګير دی، که چرے لږ ډير وخت د الله تعالیٰ ريا د دپاره د خپل وختونو نه او باسی نو څومره د ګټے کبه ده. د ورځے څپے خلير لغوټو کښينتونه د و مخلور کښينتے دے کار د پاره راويستل څه ګران خبره ده؟ اخر د فضوليا تو، لغويا تو، عبثيا تو کښې ډير څه وخت لګی، نو د دے فائده منه څيز د پاره وخت ويستل څه ګران دی؟

يو حديث کښې د نبی کريم ﷺ ارشاد دے چه د الله تعالیٰ بهترين بندګان هغه دی چه د الله تعالیٰ د ذکر د پاره سپوږمئ، نمر، ستوری او د سوری تحقيق ساتی يعنې د وختونو د تحقيق کوشش کوی. اګرچه د دے زمانه کښې د ګهړئ او د کهينټو ډيروالی خلق د دے نه بے پرواه کړه. بيا هم سره د دے څه نه څه واقفيت د دے څيزونو مناسب دے چه د ګهړئ د خرابئ او د غلطئ په وجه وختونه ضائع نه شی.

يو حديث کښې راغلی دی چه د زمکے په کومه حصه چه د الله تعالیٰ ذکر وکړے شی هغه حصه لاندے اوو زمکو پورے په نورو حصو فخر کوی.

(۷) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ | د نبی کريم ﷺ ارشاد مبارک دے چه جنت ته

قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ يَتَحَسَّرُ أَهْلُ الْجَنَّةِ إِلَّا عَلٰى سَاعَةٍ مَرَّتْ بِهِمْ لَمْ يَذْكُرُوا اللّٰهَ تَعَالٰى فِيْهَا.

تلونه پس به جَنتيانو ته د دُنيا هيڅ څيز افسوس نه وی، سوا دهغې ساعت نه چه کوم په دُنيا کښې د الله تعالیٰ د ذکرنه بغیر تیر شوے وی۔

(اخرجه الطبراني والبيهقي كذا في الدر وفي الجامع رواه الطبراني في الكبير والبيهقي في الشعب ورقم له بالحسن وفي مجمع الزوائد رواه الطبراني ورجاله ثقات وفي شيخ الطبراني خلاف واخرج ابن ابي الدنيا والبيهقي عن عائشة بمعناه مرفوعا كذا في الدر وفي الترغيب بمعناه عن ابي هريرة مرفوعا وقال رواه احمد باسناد صحيح وابن حبان والحاكم وقال صحيح على شرط البخاري)

**فائده**:۔ جنت ته تلونه پس کله چه د امنظر مخکښې راشی چه يو وارے د الله تعالیٰ د پاک نوم آخستلو اجر وثواب څومره زيات مقدار کښې دے چه د غرُونو برابر ورکړے کيږی۔ نو دغه وخت به د خپلې گټې په نقصانونو چه څومره قدر ے افسوس وی، ښکاره دے۔ داسے خوش نصيبه بندگان هم شته چه هغوی ته دُنيا د الله تعالیٰ د ذکرنه بغیر سُه نهٔ معلوميږی۔

حافظ ابنِ حجر رحمة الله عليه مُنبهات کښې ليکلی دی چه يحيیٰ بن مُعاذ رازی رحمة الله عليه به په خپل مُناجات يعنی دُعا کښې ويل۔ إِلٰهِيْ لَا يَطِيْبُ اللَّيْلُ إِلَّا بِمُنَاجَاتِكَ وَلَا يَطِيْبُ النَّهَارُ إِلَّا بِطَاعَتِكَ وَلَا تَطِيْبُ الدُّنْيَا إِلَّا بِذِكْرِكَ وَلَا تَطِيْبُ الْاٰخِرَةُ إِلَّا بِعَفْوِكَ وَلَا تَطِيْبُ الْجَنَّةُ إِلَّا بِرُؤْيَتِكَ. (ترجمه) يا الله! شپه ښهٔ نهٔ لگی خو تا سره راز و نياز کښې، او ورځ ښهٔ نهٔ معلوميږی خو ستا عبادت سره او دُنيا ښهٔ نهٔ معلوميږی خو ستا ذکر سره او آخرت ښهٔ نهٔ دے خو ستا معافئی سره۔ او جنت کښې مزه نشته خو ستا ديدار سره۔

حضرت سرِّی رحمة الله عليه فرمائی چه ما جُرجانی رحمة الله عليه اُوليدلو چه ستوان ئے خوړل۔ ما ترے تپوس اُوکړو چه دا اُوچ خوړے؟ هغه ويل چه ما په دوډئ ښخوَنه وَهلو او د ستوانو خوړلو هر کله چه حساب اُولگوو نو ښخوَنه وَهلو کښې دومره زيات وخت لگی چه په هغې کښې بنيادم اويا وارے سُبْحَانَ اللّٰهِ ويلے شی۔ څلوېښتو کالو نه دوډئ خوړل پريخی دی او ستوان خوړلو باندے گذاره کوم۔

دمنصور بن معتمر رحمة الله علیه متعلق یې لیکلي دي چه شلو کالو پورې
دما سخوتن ما نحه نه پس چا سره خبرې نه دي کړي.
ربیع بن خیثم رحمة الله علیه متعلق لیکلي دي چه د شلو کالو پورې چه کومه خبره
به یې کوله هغه به یې یوه پرچه باندې لیکله، او د شپې به یې خپل زړه سره حساب
کولو چه څومره خبرې په دې کښې ضروري وې او څومره غیر ضروري.

⑧ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ اَبِيْ سَعِيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا اَنَّهُمَا شَهِدَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ لَا يَقْعُدُ قَوْمٌ يَّذْكُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا حَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَنَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِيْنَةُ وَذَكَرَهُمُ اللّٰهُ فِيْمَنْ عِنْدَهٗ.

(اخرجه ابن ابي شيبة واحمد ومسلم والترمذي و ابن ماجه والبيهقي كذا في الدر والحصن و المشكوة)

حضرت ابو هریره او ابو سعید رضي الله عنهما دواړه حضرات د دې ګواهي ورکوي چه مونږه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه واوریدل، ارشاد یې فرمایلو چه کومه ډله د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغوله وي فرښتې هغه ډله د ټولو طرفونو نه ګیروي او رحمت پرې غوړیږي او سکینه پرې نازلیږي او الله جل شانه د هغوی ذکر خپل مجلس کښې د فخر په طور کوي.

وفي حديث طويل لابي ذر اُوْصِيْكَ بِتَقْوَى اللّٰهِ فَاِنَّهٗ رَأْسُ الْاَمْرِ كُلِّهٖ وَعَلَيْكَ بِتِلَاوَةِ الْقُرْاٰنِ وَذِكْرِ اللّٰهِ فَاِنَّهٗ ذِكْرٌ لَّكَ فِي السَّمَآءِ وَنُوْرٌ لَّكَ فِي الْاَرْضِ. الحديث

(ذكره في الجامع الصغير برواية الطبراني وعبد بن حميد في تفسيره ورقم له بالحسن)

حضرت ابوذر رضي الله عنه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوي چه ځه تا ته د الله تعالیٰ د تقوی وصیت کوم، چه د ټولو خیزونو جرړه ده او د قرآن شریف د تلاوت او د الله تعالیٰ د ذکر اهتمام کوه چه په دې سره به اسمانونو کښې ته یا دولې شې او په زمکه کښې به د نور سبب جوړیږي. اکثر وختونو کښې چُپ اوسه چه د نیکۍ نه بغیر څه خبره نه وي. دا خبره شیطان لرې کوي او د دین په کارونو کښې مدد ورکوي. د ډیرې خندا نه هم ځان ساته چه په دې سره زړه مړکیږي. او د مخ رونق پرې ځي. جهاد کوه چه ځما د امت فقیري هم داده. مسکینانو سره محبت ساته، هغوی سره کیناه، او د ځان نه کم حیثیته

خلقو ته ګوره او د خپل ځان نه یو رته خلقو ته مه ګوره چه په دے د الله تعالیٰ د هغې نعمتونو نا قدري پیدا کیږي کوم چه تا ته الله تعالیٰ درکړي دي. خپلوانو سره د تعلقاتو جوړ ولو فکر ساته اګرچه هغوي تا سره تعلقات پرېږدي. حق خبره وئیلو کښې تردُّد (شک شبهه) مه کوه اګر که په چا ترخه لګي. د الله تعالیٰ په معامله کښې د چا د ملامتیا پرواه مه کوه. ستا خپل عیبونه کتل د نورو عیبونو کتلو نه منع کړي. او په کوم عیب کښې چه پخپله اخته یې، په هغې کښې په نورو غصه مه کوه. اے ابوذره! د ښه تدبیر نه زیاته هیڅ عقلمندي نشته. او ناجائز کارونو نه بچ کیدل بهترینه پرهیزګاري ده او د خوش خلقئ برابر هیڅ شرافت نشته.

**فائده**:- د سکینې معنیٰ د سکون او وقار ده یا د خټه مخصوص رحمت. چه د دے په تفسیر کښې مختلف اقوال دي چه ما مختصر د فضائل قران چهل حدیث کښې لیکلي دي.

اِمَام نَوَوِیُ رحمة الله علیه فرمائي چه د اخته را سے مخصوص څیز دے چه طمانیت، رحمت وغیره ټولو له شامل دے او ملائکو سره راکوزیږي.

د الله جل شانهٗ دا څیزونه د فرښتو مخکښې د فخر په طور فرمایل یو خو په دے وجه دي چه فرښتو د آدم علیه السلام د پیدا کولو په وخت عرض کړے وو چه دا خلق به دُنیا کښې فساد کوي لکه څنګه چه د روميٰ حدیث د لاندې تیر شوي دي. دویم په دے وجه دي چه د فرښتو ټولګے اګرچه سر نه تر پښو ټول عبادت، بندګي او اطاعت کوي. خو په دوي کښې د مَعْصِیَّت ماده نشته. او انسان کښې چونکه دواړه ما دے موجود دے دي او د غفلت او د نا فرمانیٔ اسبابو دے ګیر کړے دے. شهوتونه او لذتونه د ده (دبدن) حصے دي. په دې وجه د ده نه دے ټولو په مقابله کښې چه کوم عبادت او کوم اطاعت اوشي، او د کوم مَعصیت مقابله اوکړي، د ازیات د تعریف او د قدر قابل دے.

حدیث کښې راغلي دي چه کله الله جل شانهٗ جنت جوړ کړه نو جبریل علیه السلام ته ارشاد اوشو چه اوګوره بیا راشه. هغه راغے عرض یې اوکړه، اے الله!

ستا په عزت م د قسم وی څوک چه د دے خبر واوری، په دے کښ به بغیر د تلو نه پاتے کیږی. یعنی لذتونه، راحتونه، خوشالی، نعمتونه څومره قدرے چه په دے کښ ایښودے شوی دی، د هغے د آوریدلو او د یقین راتلو نه پس دا سے به څوک وی چه په هغے کښ د تلو انتهائی کوشش اُونه کړی. د دے نه پس الله جل شانه هغه په مشقتونو بند کړه چه مونځونه کول، روژے نیول، جهاد کول، حج کول وغیره وغیره یے پرے سوارهٔ یعنی فرض کړهٔ چه دا په خائی راورهٔ نو جنت ته لاړ شه. بیا حضرت جبریل علیه السلام ته ارشاد اُوشو چه اُوس اُوګوره. هغهٔ عرض اُوکړهٔ چه اُوس خو یا الله ما ته دا ویره ده چه څوک به دے کښ اُدولاړ شی. دا رنګے چه کله یے دوزخ جوړ کړهٔ، نو حضرت جبریل علیه السلام ته د هغے د کتلو حکم اُوشو. د هغے عذاب، د هغے مصیبتونه، ګندګئ او تکلیفونه چه یے اُولیدل، عرض یے اُوکړهٔ چه اے الله تعالیٰ! ستا د عزت قسم څوک چه د دے حالات واوری، هیڅ کله به دے ته نزدے لاړ نشی الله جل شانه د دنیا په لذتونو سره هغه پټ کړل. زنا کول، شراب څکل، ظلم کول په حکمونو عمل نه کول وغیره وغیره پرده پرے واچولے شوه. بیا ارشاد اُوشو چه اُوس اُوګوره، هغهٔ عرض اُوکړهٔ چه اے الله! اُوس خو ما ته دا ویره ده چه شاید څوک د دے نه بچ نشی. هم په دے وجه کله چه څوک بنده د الله تعالیٰ اطاعت کوی، د ګناه نه بچ کیږی، نو د هغے ماحول په اعتبار سره کوم کښ چه هغه د دے د قدر و عزت قابل ګرزی. هم په دے وجه الله جل شانه د خوشالئ اظهار فرمائی. د کومو فرښتو چه په دے حدیث کښ او د دے قسمه د یرو حدیثونو کښ ذکر راغلے دے. هغه د فرښتو یوه خاصه ډله ده چه هم په د دے کار مقرره ده، چه چرته د الله تعالیٰ د ذکر مجلسونه وی، د الله تعالیٰ ذکر کولے شی، هلته جمع شی او هغه آوری. لکه یو حدیث کښ ارشاد دے چه د فرښتو یوه ډله ځی راځی ګرزی او کوم ځائی چه د الله تعالیٰ ذکر واوری، خپلو ملګرو ته آواز اُوکړی چه راځئ د ځائی ستاسو مقصود او غرض موجود دے او بیا یو بل باندے جمع کیږی. آن تر دے چه آسمانه پورے د دوی حلقه اُوړسی. څنګه چه

دریم باب کښې دوېم فصل څوارلسم نمبر حدیث کښې راځي۔

(۹) عَنْ مُعٰوِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَلٰى حَلْقَةٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَقَالَ مَا اَجْلَسَكُمْ قَالُوْا جَلَسْنَا نَذْكُرُ اللّٰهَ وَنَحْمَدُهٗ عَلٰى مَا هَدَانَا لِلْاِسْلَامِ وَمَنَّ بِهٖ عَلَيْنَا قَالَ آللّٰهِ مَا اَجْلَسَكُمْ اِلَّا ذٰلِكَ قَالُوْا آللّٰهِ مَا اَجْلَسَنَا اِلَّا ذٰلِكَ قَالَ اَمَا اِنِّيْ لَمْ اَسْتَحْلِفْكُمْ تُهْمَةً لَّكُمْ وَلٰكِنْ اَتَانِيْ جِبْرِيْلُ فَاَخْبَرَنِيْ اَنَّ اللّٰهَ يُبَاهِيْ بِكُمُ الْمَلٰٓئِكَةَ۔ (اخرجه ابن ابي شيبة واحمد ومسلم والترمذي والنسائي كذا في الدر والمشكوٰة)

نبي اکرم صلی اللہ علیہ وسلم یو وارے د صحابو یوې ډلې ته تشریف یوړه او پوښتنه یې ترې اوکړه چه کوم خبرے تاسو دلته کینولي یئ۔ هغوی عرض اوکړه چه د الله جل شانه ذکر کوو او په دے خبره د هغه حمد وثنا کوو چه هغه مونږ ته د اسلام دولت نصیب کړو دا د الله تعالیٰ لوئي احسان په مونږ دے۔ نبي اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد اوفرمایه آیا په الله تعالیٰ قسم صرف هم په دے وجه ناست یئ؟ صحابو عرض اوکړه په الله تعالیٰ قسم، صرف هم په دے وجه ناست یو نبي کرېم صلی اللہ علیہ وسلم اوفرمایل چه د څه بد ګمانئ په وجه ما تاسو ته قسم نه دے درکړے، بلکه جبریل علیه السلام اوس ما ته راغے او دا خبره یې را ته واورولې چه الله جل شانه ستا سو په وجه فرښتو باندے فخر کوي۔

**فائده:** یعنې ما چه کوم قسم درکړه او تپوس مې اوکړه، د دے نه مقصد اهتمام او تاکید وو چه ممکنه ده څه نوره خاصه خبره هم وي د دے نه علاوه او هغه خبره د الله جل شانه د فخر سبب وي۔ اوس معلومه شوه چه صرف هم دا تذکره کول د فخر سبب دے۔ څومره قدر دے خوش قسمته وو هغه خلق چه د هغوی عبادګانې مقبول وو او د هغوی حمد وثنا باندې الله جل شانه د فخر خوشخبري هغوی ته د نبي علیه السلام په ژبه مبارکه په دنیا کښې معلومیده۔ او ولې به نه وه چه د دے حضراتو کارنامې هم د دے حقدارې وې۔ د دوی د کارنامو مختصره تذکره ما په خپل کتاب "حکایاتِ صحابه" کښې د نمونې په طور کړې ده۔

مُلا علی قاری رحمۃ اللہ علیہ فرمائی چه د فخر کولو مطلب دا دے چه الله جل شانه د فرښتو ته فرمائی چه اُوګورئ دا خلق سره د دے چه نفس دوی سره دے، شیطان په دوی مُقرر دے، شهوتونه دوی کښې موجود دی، د دُنیا ضرورتونه دوی ته مخے ته لګیدلی دی۔ د دے ټولو با وجود، د دے ټولو مقابله کښې د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغول دی۔ او دومره په کثرت لوے کوټکی خیز و نو سره ستاسو د ذکرنه نه لرے کیږی۔ ستاسو ذکر و تسبیح په دے لحاظ سره چه تاسو د پاره هیڅ هم بند یز د دے نه نشته، د هغوی په مقابله کښې اَدو خهٔ څیز نهٔ دے۔

(۱۰) عَنْ اَنَسٍ رضی اللہ عنہ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صلی اللہ علیہ وسلم قَالَ مَا مِنْ قَوْمٍ اِجْتَمَعُوْا يَذْكُرُوْنَ اللهَ لَا يُرِيْدُوْنَ بِذٰلِكَ اِلَّا وَجْهَهٗ اِلَّا نَادَاهُمْ مُنَادٍ مِّنَ السَّمَاءِ اَنْ قُوْمُوْا مَغْفُوْرًا لَّكُمْ قَدْ بُدِّلَتْ سَيِّاٰتُكُمْ حَسَنَاتٍ۔ (اخرجه احمد والبزار وابو يعلى والطبرانى واخرجه الطبرانى عن سهل بن الحنظلية الخ واخرجه البيهقى عن عبد الله بن مغفل وزاد وما من قوم اجتمعوا فى مجلس فتفرقوا ولم يذكروا الله الا كان ذلك عليهم حسرة يوم القيمة. (كذا فى الدر قال المنذرى رواه الطبرانى فى الكبير والاوسط ورواته محتج بهم فى الصحيح وفى الباب عن ابى هريرة عند احمد وابن حبان وغيرهما وعزاه الحاكم على شرط مسلم فى موضع وعلى شرط البخارى فى موضع اخرى وعزاه السيوطى فى الجامع حديث سهل الى الطبرانى والبيهقى فى الشعب والضياء ورقم له بالحسن وفى الباب روايات ذكرها فى مجمع الزوائد)

د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد مُبارک دے چه کوم خلق د الله تعالیٰ د ذکر د پاره راجمع شی او د هغوی مقصد صرف د الله تعالیٰ رضا وی نو د آسمان نه یو فرښته آواز کوی چه تاسو خلق اُوبخښلے شوئ او ستاسو بدئ په نیکو سره بدلے کړے شوے۔ دویم حدیث کښې دی چه د دے په مُقابله کښې چه کوم راجمع کیدل داسے وی چه په هغے کښې د الله تعالیٰ اَدو خهٔ ذکر نهٔ وی۔ نو دا راجمع کیدل به د قیامت په ورځ د حسرت او د افسوس سبب وی۔

فائده:۔ یعنی د دے راغونډو دے په بے برکتئ او بربادئ باندے

به افسوس وی. نو کیدے شی چه په څه وجه د وبال سبب شی. یو حدیث کښې راغلی دی په کوم مجلس کښې چه د الله تعالیٰ ذکر نه وی، په نبی اکرم ﷺ باندې درود نه وی، دو دغه مجلس خلق دا سے دی لکه چه د مړخر نه څوک پاسی. یو حدیث کښې راغلی دی چه د مجلس کفاره دا ده چه د هغې په ختمیدو دا دُعا اُووائی. سُبْحٰنَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ. یو بل حدیث کښې راغلی دی چه کوم مجلس دا سے وی چه په هغې کښې د الله تعالیٰ ذکر، په نبی اکرم ﷺ درود شریف نه وی هغه مجلس به د قیامت په ورځ د حسرت او د نقصان سبب وی. بیا به الله جل شانهٗ په خپله مهربانئ که یے خوښه شی بخښنه ورته اُوکړی یا مطالبه ترے اُوکړی او عذاب ورکړی. یو حدیث کښې دی چه د مجلسونو حق ادا کوئ او هغه دا سے چه د الله تعالیٰ ذکر په هغې کښې په کثرت سره کوئ. په لاره تلونکو خلقوته (په وخت د ضرورت) لاره ښایئ او (که ناجائز څیز مخے ته راشی نو سترگے پټے کړئ (یا خکته کړئ چه په هغې نظر اُونه لگی)

حضرت علی کرم الله وجهه ارشاد فرمائی چه څوک دا غواړی چه د هغه ثواب یو لویه تله کښې اُوتللے شی (یعنی ثواب یے ډیر زیات مقدار کښې شی چه هغه په لویه تله کښې تللے شی، معمولی څیزونو په د لو یے تلے په پارسنگ کښې راشی) هغه له پکار دی چه د مجلس په ختمیدو د دا دُعا اُووائی. سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۝ وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ۝ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ (حصن د امشہ) یو روتنی حدیث کښې بدئ په نیکو سره د بدلیدو زیرے دے. قرآن شریف کښې هم د سورة فرقان په ختمیدو د مؤمنانو څو صفتونه ذکر کولو نه پس ارشاد دے فَاُولٰٓئِكَ يُبَدِّلُ اللهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ ؕ وَكَانَ اللهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ (پس هم دا خلق دی چه د کومو بدئ الله تعالیٰ په نیکو سره بدلوی او الله تعالیٰ غفور رحیم دے) د دے اٰیتِ شریفه متعلق د علماؤ د تفسیر څو قولونه دی.

اَوَّل دا چه بدئ به یے معاف کړے شی او نیکئ به باقی پاتے شی. گویا

راهم تبدیلی ده چه بڼری یے هیڅ باقی پاتے نه شوه۔

**دویم** داچه دے خلقو ته په ځائ دبد وعملونو کولو دنیکو عملونو توفیق د الله جلّ شانهٗ له خوا نصیب شی۔ لکه څنګه چه وائی چهلاګرمی په ځائ یخنی شوه۔

**دریم** داچه دهغوی دعادتونو تعلق به په ځائ دبدو څیزونو بنو څیزونو سره اوتړلے شی۔ ددے وضاحت دادے چه دبنیادم عادتونه طبعی وی چه بدلیږی نه۔ هم په دے وجه مثال مشهور دے "جبلت گردد و جبلت نگردد" یعنی غرید لیدلے شی خو عادت نه بدلیږی۔ او دا مثال هم دیو حدیث نه اخستلے شوے دے چه په هغې کښې ارشاد دے۔ که څوک تاسو ته اوړی چه غر دخپله ځایه اوخوځیدلو او بل ځائ ته لاړو، نو ددے تصدیق اوکړئ خو که څوک دا اوړی چه طبیعت بدل شو، نو ددے تصدیق مه کوئ. ګویا د حدیث مطلب دا شو چه عادتونه بدلیدل دغرد بدلید و نه هم زیات مشکل دی۔ ددے نه پس بیا دا سوال پیدا کیږی چه صوفیان او مشائخ چه کوم د عادتونو اصلاح کوی، د هغې څه مطلب شو؟ دهغې جواب دادے چه عادتونه نه بدلیږی بلکه دهغې تعلق بدلیږی۔ مثلاً دیو کس په مزاج کښې غصه ده، هغه دمشائخو په اصلاح او مجاهدو سره داسے نه شی چه غصه یے بیخی پاتے نشی، دا خو ګرانه ده، البته ددے غصے تعلق چه رُومبے دکومو څیزونو سره وو۔ مثلاً بے ځایه ظلم، تکبر وغیره۔ اوس به په ځائ دهغې د الله تعالیٰ په نافرمانو باندے، دهغه داحکامو خلاف کولو وغیره وغیره طرف ته بدله شی۔ هم هغه حضرت عمر رضی الله عنه چه چا به یو زمانه کښې مسلمانانو ته تکلیف رسولو کښې هیڅ کسر نه پریخودو۔ دایمان نه پس دنبی کریم صلی الله علیه وسلم د فیض صحبت په وجه به کافرانو فاسقانو باندے به هغه رنګے ورچیږه کیدلو۔ دغسے دنورو اخلاقو هم حال دے۔ ددے وضاحت نه پس اوس مطلب دا شو چه الله جلّ شانهٗ دداسے خلقو د اخلاقو تعلق په ځائ د ګناهونو نیکو سره اوګرځی۔

**څلورم** دا چه الله جل شانهٔ هغوی ته په خپلو بدو د توبې توفیق ورکړي چه د هغې په وجه ورته زاړهٔ زاړهٔ ګناهونه را په یاد شي، د پښیمانتیا او توبې سبب به شي، او د هرې ګناه په بدله یوه توبه چه عبادت او نیکي ده ثابته ربعني اُولیکلې) شي۔

**پنځم** دا دے که چرته الله تعالیٰ ته دچا اَدا خوښه شي او هغه ته په خپل فضل د بدو برابر نیکۍ ورکړي نو دچا د پلار څهٔ اِجاره ده؟ هغه په خپله مالک دے، باچا دے، د قدرت خاوند دے، د هغه د رحمت د وسعت به څهٔ وائے د هغهٔ د مغفرت دروازه څوک بندؤلے شي؟ د هغهٔ ورکړه څوک منع کولے شي؟ څهٔ چه ورکوي هغه هم د خپل مال نه ورکوي۔ هغه به د خپل قدرت نظارے هم ښائي۔ د خپل مغفرت ښيے نمونے به هم په هغې ورځ ښکاره کوي۔

حدیثونوکښې د محشر نظاره او د حساب امتحان مختلفو طریقو سره راغلے دے چه بَهْجَةُ النُّفُوس مختصر ذکر کړے دے او لیکلې یې دي چه حساب به په څو قسمه کولے شي۔ یو قسم به دا سے وي چه د بعضې بندګانو سره به پټ د رحمت په پرده کښې حساب اُوکړے شي۔ او د هغوی ګناهونه به په هغوی اُوشمیرلے شي۔ او ورته به اُوویلے شي چه تا په فلاني وخت دا ګناه کړے وه، فلاني وخت دا سے کړي وو۔ او هغهٔ سره به دا اقرار نه بغیر بله چاره نهٔ وي تر دے چه هغه به د ګناهونو په ډیروالي سره دا اُوګڼړي چه څهٔ هلاک شوم نو ارشاد به اُوشي چه مونږ په دُنیا کښې په تا پرده اَچولے وه، اُوس هم د دې پرده اچوو، او معاف کوو۔ هر کله چه دا کس او د دهٔ په شان چه څوک وي، هغوی د حساب د مقام نه واپس شي او خلق یې اُووینې نو وائي به دا څنګه مُبارک بنده دے چه دهٔ اَ رو څهٔ ګناه کړے نهٔ ده۔ ځکه چه دوي د هغهٔ د ګناهونو نه او وخبر نهٔ شو۔

دا رګلے یو قسم به دا سے وي چه د هغوی به واړهٔ او لوئې ګناهونه دي د دوي په باره کښې به ارشاد اُوشي چه د دوي واړهٔ ګناهونه په نیکو سره بدل

کړي نو هغوي ته زړا ؤوائي چه لاخو نور ګناهونه هم پاتې دي چه د هغې خو

آو د ذکر اؤنه شو.

دارنګه يې نور قسمونه ذکر کړي دي. چه په څه څه قسم به يې

پېشي او حساب کېږي.

حديث کښې يوه قصه راځي. نبي اکرم ﷺ ارشاد فرمائي چه څه هغه

کس پېژنم چه د ټولونه اخرې به د دوزخ نه وېستلې شي او د ټولونه اخرې

به جنت کښې داخلولې شي. يو کس به راؤغوښتلې شي او فرښتو ته به اؤويلې

شي چه د ده لوئې لوئې ګناهونه خولا مه ياد وئ. واړه واړه ګناهونه ورته

مخکښې کړئ او په هغې ترې تپوس اؤکړئ. نو دا سې به شروع اؤکړې شي

او يوه يوه ګناه به د وخت په حوالې سره هغه ته اؤ خودلې شي. هغه به ترې

انکار نه شي کولې، اقرار به کوي په دې کښې به د الله تعالیٰ له طرفه ارشاد

اؤشي چه ده ته د هرې ګناه په بدله کښې يوه نيکي ورکړې شي. نو هغه به زر

اؤوائي چه لا خو نور هم ډير ګناهونه باقي دي. د هغې خو آو د ذکر اؤنه شو. دې

قصې نقل کولو سره نبي اکرم ﷺ ته هم خندا راغله.

دې قصه کښې اول خو د دوزخ نه د ټولونه اخرې وتل دي، نو دا څه

کمه سزا ده. دويم معلومه نه ده چه څومره خوش قسمته به دا سې وي چه د

هغه ګناهونه به بدلولې شي. د دې د پاره د الله تعالیٰ د پاک ذات نه اميد

لرل، فضل غوښتل د بندګۍ شان دې. خو د دې باندې مطمئن کېدل زړه ورتيا

ده. البته بدئ په نيکو سره د بدلولو سبب چه د حديث نه معلومېږي

په اخلاص سره د ذکر مجلسونو کښې حاضري ده. خو اخلاص هم د الله تعالیٰ

په عطاء (يعني ورکړې) سره نصيب کېږي.

يوه ضروري خبره داده چه دوزخ نه اخيرکښې د وتونکي باره کښې مختلف

روايتونه راغلي دي. خو په هغې کښې هيڅ شک نشته. که چرې يوه د له

راؤوزي نو بيا هم هر کس اخيرکښې راوتونکې وي. او که څوک د اخير نزدې

راؤوزي، هغه ته هم اخري ويلې شي. د غه شان د خاص خاص ډلې اخير ترې

هم مُراد کیدے شي. دے حدیث کښې ضروري مسئله د اخلاص دعمل دقبولیدلو شرط تورو دیرو حدیثونو کښې راغلے دے. دے رساله کښې په هرو نظر نه تیرشي. حقیقت دا دے چه د الله تعالیٰ په نزد د اخلاص قدر دے. دکومے درجے چه اخلاص وي هم د هغې درجے په د عمل قیمت وي. د صوفیانو په نزد دَ اخلاص حقیقت دا دے چه قال او حال (یعنی وینا او عمل) یے برابر وشي.

یو حدیث کښې وړاندے راځي چه اخلاص دا دے چه دګناهونو نه دے منع کړي. بَهۡجَةُ النُّفُوس کښې لیکلي دي. یو بادشاه چه ډیر جابر او ظالم وو، یو جهاز کښې ورله ډیر شراب راوړلے شو. یو صاحب اُولیدل، نو خو مرګې چا تښې چه د شرابو نه ډکے وے، تو ټولے یے ماتے کړے، یوه یے پریخوده. د هغه همت د هغه د منع کولو اُونه شو. خو خلق حیران وُو چه د دغې بادشاه دَ ظُلم مقابله چا کولے نه شوه، نو بیا د ه خرنګه زړه ورتیا اُوکړه. بادشاه ته خبر ورکړے شو. هغه هم حیران شو. اول خو یه دے خبره چه د هغه په مال څه رنګ یو معمولي سړي جُرأت اُوکړه. او بیا په دے چه یوه چاټئ یے ولے پریخوده. هغه صاحب ئے را اُوغوختلو، تپوس یے ترے اُوکړه چه دا دِ ولے اُوکړه؟ دهٔ جواب ورکړه چه څما زړه دا اُوغوختل ځکه مې اُوکړل. ستا چه څنګه زړه غواړي سزا راکړه. هغه تپوس اُوکړه چه دا یوه دِ ولے پریخوده؟ دهٔ اُووے چه ما اول د اسلامي غیرت په تقاضا ماتے کړے خو هر کله چه یوه پاتے شوه. نو څما زړه کښې یو خوشحالي غوندے پیدا شوه چه ما یو ناجائز کار ختم کړه. نو ما ته د دے په ماتولو کښې دا شک اُوشو چه دا د نفس دخوشالي په وجه سره نهٔ وي، ځکه مې دا یوه پریخوَدله. بادشاه اُووے چه دے پریږدئ، دے مجبور وو.

إِحۡيَاءُ الۡعُلُوۡمِ (نومے کتاب) کښې لیکلي دي چه بني اسرائیلو کښې یو عابد وو چه هر وخت به عبادت کښې مشغول وو. یو ډله ورته راغله. دے وئیل چه دلته یو قوم دے چه دیو ونې عبادت کوي. دا چه یے واوریدل غصه ورته راغله، او تبر یے په اوګه کیخود هم هغې ونې پریکولو د پاره روان شو.

په لاره کښې ورته شیطان د یو بوډا سړی په شکل ملاو شو. عابد نه یې تپوس اوکړه کوم خواته؟ ده اووے د فلانئ وُنے دیریکولو د پاره. هم شیطان اووے ستا د غے وُنے سره څه تعلق دے، ته په خپل عبادت کښې مشغول اوسه. تا خپل عبادت د یو عبث کار د پاره پریخودو. عابد اووے دا هم عبادت دے. شیطان اووے چه څه تا پریکولو ته نه پریږدم. د دواړو مقابله وُشوه دا عابد هغه په سینه اوختلو. شیطان چه خپل ځان عاجزه اولیدهٔ، خوشامندی یې شروع کړه او وے ویل، بنه ده یوه خبره واوره. عابد پریخودهٔ شیطان اووے چه الله تا باندے دا خو فرض کړے نه ده. ستا په دے سره هیڅ نقصان نشته. ته خو د دے عبادت نه کوے. د الله ډیر نبیان دی. که چرے هغهٔ غوښتلے نو د چا نبی په ذریعه به یې پریکړے وه. عابد اووے، څهٔ به یې ضرور پریکوم. بیا مقابله اوشوه، عابد دهغهٔ په سینه اوختلو. شیطان اووے، بنه ده واوره یو د فیصلے خبره ستا د فائدے کوم. هغهٔ اووے وایه. شیطان اووے، ته غریب یې، دُنیا باندې بوجهٔ جوړ شوے یې. ته د دے کار نه منع شه. تا ته به هره ورځ درے اشرفئی درکوم، چه هره ورځ به ستا د بالخت لاندے پرتے وی. ستا به په دے هم ضرورتونه پوره کیږی او به خپلو خپلوانو به هم احسان کړے. د فقیرانو مدد به کړے شے او نور به پرے ډیر د ثواب کارونه کولے شے. په دے کښې یو ثواب دے او هغه هم بے کاره. چه هغه خلق به بله وُنه اولګوی. د عابد په پوهه کښې راغله قبوله یې کړه. دوه ورځے خو ورته اشرفئی ملاو شوے. دریمه ورځ نه وے. عابد بیا غصه شو او تبر یې واخست روان شو. لار کښې ورته هغه بوډا ملاو شو. تپوس یې ترے اوکړهٔ. کوم خواته؟ عابد اووے چه هغے وُنے د پریکولو د پاره ځم. بوډا ورته اووے چه ته هغه نهٔ شے پریکولے دواړو کښې جهګړه اوشوه، هغه بوډا پرے غالب شو او د عابد په سینه اوختلو. عابد ډیر حیران شو. تپوس یې ترے اوکړهٔ چه دا څهٔ وجه ده چه دا وارے ته غالب شوے؟ هغے بوډا ورته اووے چه اول وارے

ستا غُصه خالصه د الله تعالیٰ دپاره وه. په دے وجه الله جل شانهٗ ستا غلو ته زکمزورے اکړے وُم. دا وارے په کښې د آشرفو دخل وو، په دے وجه ته مغلوبه شوے. حقه داده چه کوم کار خالص د الله تعالیٰ دپاره کولے شی په هغے کښې لوئ طاقت وی.

⑪ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَا عَمِلَ آدَمِیٌّ عَمَلًا اَنْجٰی لَهٗ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ مِنْ ذِکْرِ اللهِ۔

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارک دے چه د الله تعالیٰ د ذکر نه زیات د چا بنیادم هیڅ عمل د عذابِ قبر نه زیات خلاصے ورکوونکے نشته.

(اخرجه احمد کذا فی الدر وال احمد عزاه فی الجامع الصغیر بلفظ اَنْجٰی لَهٗ مِنْ عَذَابِ اللهِ ورقم له بالصحة وفی مجمع الزوائد رواه احمد ورجاله رجال الصحیح الا ان زیادًا لم یدرک معاذًا ثم ذکره بطریق آخر وقال رواه الطبرانی ورجاله رجال الصحیح قلت وفی المشکوٰة عنه مرفوعًا بلفظ مَا عَمِلَ الْعَبْدُ عَمَلًا اَنْجٰی لَهٗ مِنْ عَذَابِ اللهِ مِنْ ذِکْرِ اللهِ وقال رواه مالک والترمذی وابن ماجة اه قلت وهکذا رواه الحاکم وقال صحیح الاسناد واقره علیه الذهبی وفی المشکوٰة بروایة البیهقی فی الدعوات عن ابن عمر مرفوعًا بمعناه قال القاری رواه ابن ابی شیبة وابن ابی الدنیا وذکره فی الجامع الصغیر بروایة البیهقی فی الشعب ورقم له بالضعف وزاد فی اوله لکل شیٔ صقالة وصقالة القلوب ذکر الله وفی مجمع الزوائد بروایة جابر مرفوعًا نحوه وقال رواه الطبرانی فی الصغیر والاوسط ورجالهما رجال الصحیح اه۔)

فائده:- د قبر عذاب خومره سخت خیز دے. د دے نه هغه خلق خبر دی د چا د کړاند ے چه هغه حدیثونه دی کوم چه د عذاب قبر پاره کښې راغلی دی. حضرت عثمان رضی الله عنه به چه کله قبر ته تشریف یوړه نو دومره به یے ژړل چه گیره مُبارکه به یے لوندهٔ شوه. چا ترے تپوس اوکړهٔ چه تاسو د جنت دوزخ د یاد نه دومره نه ژاړئ څومره چه د قبر په لیدو ژاړئ؟ دوی ارشاد اُوفرمایهٔ چه قبر د آخرت د منزلونو نه د تولو نه اُوړومبے منزل دے څوک چه د دے کښې خلاصے بیا مومی، د رستو تول منزلونه به په هغهٔ آسان شی. او څوک چه د دے نه خلاصے بیا نهٔ مومی، د رستو منزلونه به ورته گران ییږی. بیا دوی د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم پاک ارشاد واورولو، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به ارشاد

فرمایئ چه ما هیڅ یو منظر د قبر نه زیات دویرے والا نهٔ دے لیدلے۔
حضرت عائشه رضی الله عنها ارشاد فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به د هر مانځه نه پس د قبر د عذاب نه پناه غوختله. حضرت زید رضی الله عنه ارشاد فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ، ما ته دا خطره ده چه تا سو به دویرے او د خوف په وجه مړي نخښول پریږدئ، کنی ما به دُعا کړے وه چه الله جل شانهٔ تا سو ته هم د قبر عذاب واؤروی. د بنیاد موا و پیریانو نه علاوه نور ټول د ساه مخلوق د قبر عذاب اَوری۔
یو حدیث کښې راغلی دی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو وارے په سفر تشریف اُوړهٔ چه د نبی صلی الله علیه وسلم اوښه اُوبریدله. چا تپوس اُوکړهٔ چه د نبی صلی الله علیه وسلم په اوښه څهٔ اُوشو؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه یو سړی ته د قبر عذاب کیږی د هغهٔ د اَواز نه اُوبریدله. یو وارے نبی اکرم صلی الله علیه وسلم جُمات ته تشریف یوړهٔ، خلکسان یے اُولیدل چه په زوره زوره یے خندا کوله. نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ، کهٔ چرے مرګ موږ دیر یادولے نو دا خبره به نهٔ وے. په قبر یوه وَرځ هم داسے نهٔ تیریږی چه په هغې کښې هغه دا اعلان نهٔ کوی چه زهٔ د نا اشنائیٔ کور یم. (د خاورو) د چینجو او د څناورو کور یم. هرکله چه یو مؤمن (کامل ایمان والا) دفن کړے شی نو قبر ورته وائی، ستا راتلل مُبارک دی تا دیر ښهٔ اُوکړهٔ چه راغلے. څومره خلق چه ځما په شا (یعنی زمکه باندې) ګرزیدل، هغې ټولو کښې ته ما ته دیر خوښ وے. نن ما ته اُوسپارلے شوے نو ځما ښهٔ سلوک به هم اُووینے د دے نه پس هغه قبر دومره فراخه او اَرت شی څومره چه د سترګو نظر لګی او د جنت یوه دروازه هغې کښې پرانستلے شی چه په هغې سره د هغه ځائی هوا ګانے خوشبوئی وغیره وَرَرَسی او کله چه کافر یا فاجر (بدکار) دفن کړے شی نو قبر ورته وائی چه ستا راتلل سپیرهٔ او نامُبارک دی، څهٔ ضرورت وو ستا د راتلو، څومره بنیادم چه ځما په شا ګرزیدل، په هغې ټولو کښې زیات بُغض (او کینه) ځما تا سره وه نن ته ځما حواله شوے نو ځما معامله به اُووینے. د دے نه پس هغه له

دومره زور ورکړی چه پښتۍ ئې یو بل کښې ننوزی، خو رنګې چه لاس کښې لاس اچولو سره ګوتې یو بل کښې ننوزی. دے نه پس څلور نیم شپېتۀ یا یو کم شپېتۀ اژدهاګانې په هغه مقرر کړے شی چه هغه ئې چیچی او قیامت پورے به ورسره دا سے کیږی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائی که چرے یو اژدها دهغې نه په زمکه پوکے اووهی نو قیامته پورے به په زمکه واښه را ونۀ ټوکیږی دے نه پس نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایۀ چه قبر یا دجنت یو باغ دے یا د دوزخ یوه کنده.

یو حدیث کښې راغلی دی چه دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم په دوه قبرونو تیریدل اوشو. ارشاد ئې اوفرمایۀ چه دے دواړو ته عذاب کیږی، یو ته دچغل خورئ په جرم کښې، بل ته د متیازونه د احتیاط نۀ کولو په وجه (چه بدن په ئې د هغې نه نۀ ساتۀ) خو نن خو مره مهذب (تعلیم یافته) خلق دی چه د استنجاء کول عیب ګڼړی، دے پورے ټوقې کوی. عالمانو د متیازو نه ځان نۀ ساتل ګناهِ کبیره ګڼلے دہ. ابنِ حجر مکی رحمة الله علیه لیکلی دی چه صحیح روایت کښې راغلی دی چه اکثر عذابِ قبر د متیازو په وجه سره کیږی.

یو حدیث کښې راغلی دی چه قبر کښې به دټولو نه ړومبې مطالبه د متیازو کیږی. خلاصه دا چه عذابِ قبر ډیر سخت څیز دے. او څنګه چه د دے په کیدلو کښې بعضِ ګناهونو ته خاص دخل دے دغسې د دے نه بچ کیدلو کښې هم بعضِ عباداتو ته خصوصی شرافت حاصل دے. لکه چه ګڼړو حدیثونو کښې راغلی دی چه سورهٔ تَبٰرَكَ الَّذِیْ هره شپه لوستل دعذابِ قبر نه دخلاصی سبب دے او د دوزخ دعذاب نه هم دحفاظت سبب دے او دالله تعالیٰ دذکر باره کښې پورته حدیث خو ښکاره دے.

(۱۲) عَنْ أَبِی الدَّرْدَاءِ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم لَیَبْعَثَنَّ اللّٰهُ أَقْوَامًا یَّوْمَ الْقِیٰمَةِ فِیْ وُجُوْهِهِمُ النُّوْرُ عَلٰی

دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه د قیامت په ورځ به الله جل شانهٗ دبعضو قومونو حشر داسې اوکړی چه دهغوی په مخونو کښې به نور ځلیږی هغوی به دملغلرو په منبرونو

مَنَابِرُ اللُّؤْلُؤِ يَغْبِطُهُمُ النَّاسُ لَيْسُوْا بِاَنْبِيَاءَ وَلَا شُهَدَاءَ فَقَالَ اَعْرَابِيٌّ حَلِّهِمْ لَنَا نَعْرِفْهُمْ قَالَ هُمُ الْمُتَحَابُّوْنَ فِي اللّٰهِ مِنْ قَبَائِلَ شَتّٰى وَ بِلَادٍ شَتّٰى يَجْتَمِعُوْنَ عَلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ يَذْكُرُوْنَهُ۔

باندې وي خلق به هغوی ته په غبطه کوي، هغوی به نبیان او شهیدان نه وي. چا عرض اوکړو، اے د الله رَسُوْلَه! دهغوی حال بیان کړئ چه مونږ ئې اوپیژنو. نبی اکرم ﷺ اوفرمایل هغه خلق به وي کوم چه د الله تعالیٰ په محبت کښې د مختلفو ځایونو نه مختلف خاندانونو نه یو ځائې راغونډ شوي وي او د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغول وي"۔

بل حدیث کښې دي چه جنت کښې به د یاقوتو ستنې وي. هغې باندې به د زبرجدو (یعنې زمردو) بالاخانې وي. هغې کښې به ځلورو اړو طرفونه دروازې پرانستې وي، هغه به داسې ځلیږي څنګه چه ډیر روښانه ستورے ځلیږي. هغې بالاخانو کښې به هغه خلق اوسي څوک چه د الله تعالیٰ د پاره خپل مینځ کښې محبت ساتي او هغه خلق څوک چه د الله تعالیٰ د پاره یو ځائې راجمع شوي وي۔ او هغه خلق څوک چه د الله تعالیٰ د پاره خپل مینځ کښې یو بل سره ملاویږي۔

(اخرجه الطبراني باسناد حسن كذا في الدر ومجمع الزوائد والترغيب للمنذري وذكر ايضا الرمتابعة برواية عمرو بن عبسة عند الطبراني مرفوعا قال المنذري واسناده مقارب لا بأس به ورقم لحديث عمرو بن عبسة في الجامع الصغير بالحسن وفي مجمع الزوائد رجاله موثقون وفي مجمع الزوائد بمعنى هذا الحديث مطولا وفيه حلهم لنا يعني صفهم لنا فسر وجه رسول الله صلى الله عليه وسلم بسؤال الاعرابي الحديث قال رواه احمد والطبراني بنحوه ورجاله وثقوا وفي الباب عن ابي هريرة عند البيهقي في الشعب ان في الجنة لعمدا من ياقوت عليها غرف من زبرجد لها ابواب مفتحة تضيء كما يضيء الكوكب الدري يسكنها المتحابون في الله والمتجالسون في الله تعالى والمتلاقون في الله تعالى كذا في الجامع الصغير ورقم له بالضعف وذكره في مجمع الزوائد شواهد وكذا في المشكوة)

**فائده**:۔ دے کښې د طبیبانو اختلاف دے چه زبرجد او زمرد د یو کاڼړي دوه نومونه دي یا د یو کاڼړي دوه قسمونه دي یا د یو قسم دوه کاڼړي دي. بهرحال د دواړو کاڼړے دے چه ډیر روښانه ځلیدونکے وي. د دے

غښي جوړيږي او بازار کښې خرڅيږي.
ـ نن خانقاهګانو کښې ناستو خلقو باندې هر قسمه الزام دے، ځکه طرف ته
ورته سپورے ستغې ويلې شي. نن دوی ته خومره چه زړه غواړي بدُ رَد
اُو وايه، صبا ته چه کله پرده پورته شي او غبار ليرې شي هغه وخت به درته حقيقت
معلوم شي چه په دے پوړونو ناستو خلقو خومره څه اُو کتل يوړل، کوم
وخت چه دوی په هغې منبرونو او بالاخانو کښې وي. او دے خلقو کونګو او
کنځل کونکو خومره اُوکتل يوړل.
فَسَوفَ تَرٰى اِذَا انْكَشَفَ الْغُبَارُ ❊ اَفَرَسٌ تَحْتَ رِجْلِكَ اَمْ حِمَارُ
زر دے چه کله دوړه لرے شي نو معلومه به شي چه آس ستا لاندے
سور دے يا خَر يا ندے.
د دے خانقاهګانو د الله تعالیٰ په نزد خومره قدر دے کوم ته چه نن
دخلورو وار و طرفونه کنځل کيږي. دا د هغې حديثونو نه معلوميږي کوم
کښې چه د دے فضيلتونه ذکر کړے شوي دي.
يو حديث کښې راغلي دي کوم کور کښې چه د الله تعالیٰ ذکر کيږي هغه
د آسمان والو د پاره داسے ځليږي څنګه چه زمکے والو د پاره ستوري ځليږي.
يو حديث کښې دي چه د ذکر مجلسونو باندې سکينه (يو خاص نعمت)
نازليږي. فرښتے يے ګيروي. رحمتِ الٰهي پرے غوړيږي او الله جل شانهٗ
په عرش باندې هغوی يادوي.
آبورزين رضی الله عنه يو صحابي دے هغه وائي چه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم اُو فرمايل چه
تا ته د دين د مضبوطيا څيز اُو ښايم چه په هغې سره د دوارو جهانو ښيګړو ته
اُورسے. هغه د الله تعالیٰ د ذکر کونکو مجلسونه دي. دا مضبوط اُو نيسه او کله چه
ته ځان له ئے نو خومره چه طاقت وي د الله تعالیٰ ذکر کوه.
حضرت ابو هريره رضی الله عنه فرمائي چه کوم کورونو کښې د الله تعالیٰ ذکر
کيږي هغه آسمان والو ته داسے روښانه ښکاري څنګه چه د زمکے خلقو ته
ستوري روښانه ښکاري. دا کورونه کوم کښې چه د الله تعالیٰ ذکر وي

دا یې مؤثر او روښانه وی چه د خپلې رڼرا په وجه دستور و په شان ځلیږی او کوم خلق و ته چه الله جل شانهٔ د نور لیدلو سترګې ورکړی وی، هغوی دا ته هم د هغې ځلیدل وینی. ډیر دالله تعالیٰ بندګان داسې دی چه د بزرګانو نور هغوی د کور ونو نور په خپلو سترګو ځلیدونکې وینی. لکه حضرت فضیل بن عیاض رحمة الله علیه چه یو مشهور بزرګ وې فرمائی، کوم کورونو کښې چه دالله تعالیٰ ذکر کیږی هغه د آسمان د خلقو په نزد داسې ځلیږی لکه ډیوه.

شیخ عبد العزیز دباغ رحمة الله علیه اوس نزدې زمانه کښې یو بزرګ تیر شوې دې چه بیخی اُمّی وو. خو د قرآن شریف آیت، حدیث قدسی، حدیث نبوی او موضوع حدیث به یې بیل بیل ښودلو. او فرمایل به یې چه د متکلم (یعنی خبرې کونکی) د رڼې نه چه کله الفاظ اوزی نو د هغې الفاظو د نور نه معلومیږی چه دا کلام د چا دې چه دالله تعالیٰ د کلام نور بیل دې او د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د کلام نور بیل دې او په نورو کلامونو کښې دا دواړه نورونه نه وی.

تذکرة الخلیل یعنی سوانح حضرت مولانا خلیل احمد صاحب نور الله مرقدهٔ کښې په روایت د مولانا ظفر احمد صاحب رحمة الله علیه لیکلی دی چه د حضرت پنځم حج کښې څهٔ وخت چه حضرت مسجد حرام کښې طواف قدوم د پاره تشریف راوړهٔ نو څهٔ د مولانا محب الدین رحمة الله علیه الکوم چه د اعلیحضرت مولانا الحاج امداد الله صاحب مهاجر مکی نور الله مرقدهٔ د خاص خلفاؤ نه وو او صاحب کشف مشهور وو) څنګه ناست وم. مولانا د غمز خوص د درود شریف کتاب پړانستلے وو، خپله وظیفه یې کوله. ناساپه ما ته مخاطب شو. وې فرمایل دا وخت حرم کښې څوک راغے چه ناساپه ټول حرم د انوارو نه ډک شو. څهٔ چپ شوم. چه په دې کښې حضرت د طواف نه فارغ شو، د مولانا خوا کښې تیر شو. مولانا پاسید و، او په خندا کښې یې اوفرمایل چه ما هم داویل چه نن حرم ته څوک راغے.

د ذکر د مجلسونو فضیلت په مختلفو عنوانونو ډیرو حدیثونو کښې راغلے دے. یو حدیث کښې راغلی دی چه ټولو نه بهترین رباط موږ دے او د

ذکر مجلسونه دی. رِبَاط ویلے شی دَدَارُ الْاِسْلَام د سرحد حفاظت کولو ته. د پاره دے چه کافران له هغه طرفه حمله اُونکړی.

(۱۳) عَنْ اَنَسٍ رضی الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ اِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فَارْتَعُوْا قَالَ وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ قَالَ حِلَقُ الذِّكْرِ. (اخرجه احمد والترمذی

نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایه چه کله تاسو د جنت په باغونو تیریږئ نو ښهٔ اُوخریږئ. چا عرض اُوکړو، اے د الله رسُوله! د جنت باغونه څهٔ دی. ارشاد یے اُوفرمایه، د ذکر حلقے.

وحسنه وذکره فی المشکوٰة بروایة الترمذی وزاد فی الجامع الصغیر والبیهقی فی الشعب ورقم له بالصحة وفی الباب عن جابر عند ابن ابی الدنیا والبزار وابی یعلی والحاکم وصححه والبیهقی فی الدعوات کذا فی الدر وفی الجامع الصغیر بروایة الطبرانی عن ابن عباس بلفظ مجالس العلم وبروایة الترمذی عن ابی هریرة بلفظ المساجد محل حلق الذکر وزاد الرتع سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر.)

**فائده**:- مقصود دادے کهٔ دچا خوش قسمته دے مجلسونو او دے حلقوته رسیدل اُوشی نو هغهٔ له دیر زیات غنیمت گڼل پکار دی چه دا په دُنیا کښ د جنت باغونه دی. اُوښهٔ اُوخریږئ د دے طرفته اشاره وفرمایله لکه څنګه چه ځاروے په ښِنکی یا باغ کښ خړیدل شروع کړی نو په معمولی لرے کولو نه لرے کیږی، بلکه د مالک ډنډے وغیره خوری، خو د هغه ځائ نه مخ نه اړوی. دغه شان ذکر کونکو ته هم د دُنیوی فکرونو او بندشونو په وجه د هغه ځائ نه مخ اړول نه دی پکار. او د جنت باغ یے ورته ځکه اُووے لکه څنګه چه جنت کښ هیڅ قسمه آفت نشته، دغسے د ا مجلسونه هم د آفتونو نه محفوظ دی.

یو حدیث کښ راغلی دی چه د الله تعالیٰ ذکر د زړونو شفا ده. یعنی زړهٔ کښ چه څومره قسمه مرضونه پیدا کیږی، تکبر، حسد، کینه وغیره د ټولو مرضونو علاج دے.

صاحبُ الْفَوَائِد فِی الصَّلٰوةِ وَالْعَوَائِد لیکلی دی چه بنده د ذکر په همیشه والی د ټولو آفتونو نه محفوظ اُوسی. او صحیح حدیث کښ راغلی دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائی چه څهٔ تاسو ته د الله تعالیٰ د ذکر په کثرت سره د کولو حکم کوم.

او د مثال دا سے دے لکه څنګه چه چا پسے خوک دُشمن لګیدلے وی او دے و هغه نه اُو تختی په قلعه کښې محفوظ شی. او ذکر کونکے د الله تعالیٰ همنشین جوړیږی او د دے نه به زیاته لوره څه فائده وی چه د مالک الملک همنشین شی. د دے نه علاوه په ذکر سره شرحِ صدر یعنی سینه پرانستلے کیږی. زړه پرے روښانه کیږی، د زړهٔ سختی پرے لرے کیږی. د دے نه علاوه پکښې نور هم ډیر ظاهری او باطنی فائدے دی چه بعضِ عالمانو سلو پورے شمار کړی دی. انتهیٰ

د حضرت ابُو اُمامه رضی الله عنه په خدمت کښې یو کس حاضر شو او عرض یے اُوکړو چه ما په خوب کښې اُولیدل چه کله تاسو دننه ځئ، یا باهر راوځئ، یا اُودریږئ یا کیني نو فرښتے تاسو د پاره دُعا کوی. ابُو اُمامه رضی الله عنه ورته اُوفرمایل که چرے ستا زړهٔ غواړی نو تا د پاره هم دُعا کولے شی. بیا یے دا آیت اُولوسته يَآ أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا نه رَحِيمًا پورے. ګویا دے طرف ته اشاره ده چه د الله جل شانهٗ رحمت او د فرښتو دُعا ستاسو په ذکر موقوفه ده. څومره چه تاسو ذکر کوئ هغومره به له هغه خوانه ذکروی.

⑬ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَنْ عَجَزَ مِنْكُمْ عَنِ اللَّيْلِ أَنْ يُكَابِدَهٗ وَبَخِلَ بِالْمَالِ أَنْ يُنْفِقَهٗ وَجَبُنَ عَنِ الْعَدُوِّ أَنْ يُجَاهِدَهٗ فَلْيُكْثِرْ ذِكْرَ اللهِ.

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارک دے چه څوک تاسو نه عاجزه وی د شپې محنت کولو نه او د بُخل په وجه مال هم نشی خرچ کولے یعنی نفلی صدقات او د بُزدلی په وجه جهاد کښې هم شرکت نشی کولے. هغهٔ له پکار دی چه د الله تعالیٰ ذکر په کثرت سره کوی.

(رواه الطبرانی والبیهقی والبزار واللفظ له وفی سنده ابو یحیی القتات وبقیة محتج بهم فی الصحیح کذا فی الترغیب قلت هو من رواة البخاری فی الادب المفرد والترمذی وابی داؤد وابن ماجه وثقه ابن معین وضعفه آخرون وفی التقریب لین الحدیث وفی مجمع الزوائد رواه البزار والطبرانی وفیه القتات قد وثق وضعفه الجمهور وبقیة رجال البزار رجال الصحیح)

**فائده:**- یعنی هر قسمه نقصان کوم چه نفلی عبادتو کښې کیږی د الله تعالیٰ د ذکر کثرت د هغے نقصان پوره والے کولے شی.

حضرت انس رضی اللہ عنہ د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم نه نقل کړی دی چه دالله تعالیٰ ذکر د ایمان نښه ده. او د نفاق نه بری کیدل دی او د شیطان نه حفاظت دے او د دوزخ د اُور نه بچ کیدل دی. او هم د دے فائدو په وجه دالله تعالیٰ ذکر د ډیرو عبادتونو نه بهتر ګڼړلے شوے دے. خصوصاً د شیطان د غلبے نه بچ کیدو کښ دے ته خاص دخل دے.

یو حدیث کښ راغلی دی چه شیطان د بنیادم په زړهٔ باندې مګوله لګولے کلک ناست وی. کله چه هغه دالله تعالیٰ ذکر کوی نو دے عاجزه ذلیله شی واپس شی. او کله چه بنیادم غافله شی نو دے وسوسے اچول شروع کړی. په دے وجه صوفیه کرام په خلقو د ذکر کثرت کوی چه په زړهٔ کښ د شیطان د وَسوَسو اچولو ځائ پاتے نه شی او هغه ورته دومره قوی شی چه دهٔ مقابله اُوکړی. هم دا راز دے چه صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین ته د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم د صحبت په فیض سره دا د زړهٔ طاقت په اعلیٰ درجے حاصل وو. نو هغوی ته د ضربونو لګولو ضرورت نه پیښیده. نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم د زمانے نه چه څومره لرے وا کیږی هغومره د زړهٔ د پاره د دے مقوی قلب خمیرے (یعنی ذکرِ الٰهی) ضرورت زیاتیږی. اُوس زړونه دومره کمزوری شوی دی چه ډیر علاج کولو سره هم هغه درجه د قوت خو حاصلیدے نشی. لیکن بیا هم څومره چه اُوشی دغه ډیر غنیمت دے چه وَباَئی مرض کښ چه څومره قلت دے هغه اُوشی بهتر دے. د یو بزرګ قصه نقل کړے شوے ده چه دالله تعالیٰ نه یے دُعا اُوکړه چه د شیطان د وسوسے اچولو طریقه ماته ښکاره کړے چه څرنګے وسوسه اچوی. نو دهٔ اُولیدل چه د زړهٔ کس طرف ته د اُوګے رستو دما شی په شکل ناست دے. یو اُوږد غوند ے خرتم یے خُلهٔ باندې دے چه هغه رستنے په شان زړهٔ طرف ته اُوړی چه زړهٔ په ذکر کښ مشغول وی نو زر خرتم را کاږی، غافله یے بیا مومی. نو دمغه خرتم په ذریعه د وسوسو او د ګناهونو زهر د انجکشن په شان زړهٔ کښ ور اچوی. یو حدیث کښ هم دا مضمون راغلے دے چه شیطان د خپلے پوزے مخکښنئ حصه د

بنیادم نږه بانډو ابخې ناست وي. کله چې هغه د الله تعالیٰ ذکر کوي نو په ذکر سره رستو په شا شي. او کله چې هغه غافله وي نو د هغه زړه لقمه ريحي نو ږي، جوړه کړي.

⑮ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَكْثِرُوا ذِكْرَ اللهِ حَتَّى يَقُولُوا مَجْنُونٌ۔

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چې د الله تعالیٰ ذکر داسې په کثرت سره کوئ چې خلق درته مجنون اووائي.

بل حديث کښې دي چې داسې ذکر کوئ چې منافق خلق تاسو ته رياکار اووائي.

(رواه احمد وابويعلی وابن حبان والحاکم في صحيحه وقال صحيح الاسناد وروی عن ابن عباس مرفوعا بلفظ اذکروا الله ذکرا يقول المنافقون انکم مراؤون رواه الطبراني ورواه البيهقي عن ابي الجوزاء مرسلا کذا في الترغيب والمقاصد الحسنة للسخاوي وکذا في الدر المنثور للسيوطي الا انه عزا حديث ابي الجوزاء الی عبدالله بن احمد في زوائد الزهد وعزاه في الجامع الصغير الی سعيد بن منصور في سننه والبيهقي في الشعب ورقم له بالضعف وذکر في الجامع الصغير ايضا برواية الطبراني عن ابن عباس مسندا ورقم له بالضعف وعزا حديث ابي سعيد الی احمد وابي يعلی في مسنده وابن حبان والحاکم والبيهقي في الشعب ورقم له بالحسن)

**فائده:** دے حديث نه دا هم معلومه شوه چې د منافقانو يا د بے وقوفانو رياکار ويلو يا مجنون ويلو سره داسې لوئ دولت پرېښول نه دي پکار بلکه داسې په کثرت او اهتمام سره کول پکار دي چې دغه خلق تا پاگل اوګڼي او تا پرېږدي. او مجنون به هله ويلے شي چې کله ډير په کثرت او زور سره ذکر اوکړے شي. رو روکښې دا خبره نه شي کيدے.

ابن کثير رحمة الله عليه د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه نقل کړي دي هغه فرمائي چې الله جل شانه هيڅ يو خيز په بندګانو داسې نه دے فرض کړے چې د هغې به څه حد او اندازه مقرر کړے نه وي، او بيا به د هغه عذر قبول کړے نه وي سوا د الله تعالیٰ د ذکر نه. چې نه به د دے څه حد مقرر کړے دے او نه به د عقل پاتے کيدو پورے څوک معذور کړے دے. الله ارشاد دے اُذْكُرُوا اللهَ ذِكْرًا كَثِيرًا (د الله جل شانه ښه په کثرت سره ذکر کوئ)

شپه کښې، وُرځ کښې، ځنګل کښې، دریاب کښې، سفر کښې، خپل مقام کښې غریبۍ کښې، مالداریٔ کښې، بیمارئ کښې، صحت کښې، زړاو په زوره، او په هرحال کښې دِ الله تعالیٰ ذکر کوي۔

حافظ ابنِ حجر رحمۃ الله علیه مُنَبِّهَات کښې لیکلي دي چه حضرت عثمان رضی الله عنه نه د قرآن پاك د دے اِرشاد وَکَانَ تَحۡتَهٗ کَنۡزٌ لَّهُمَا کښې نقل کړے شوي دي چه هغه د سروزرو يوه تختۍ ده چه په هغې کښې اُووه کرښې لیکلي وه چه د هغې ترجمه داده. ① ما ته تعجب یعنې حیرانتیا ده په هغه کس چه مرګ مَنی بیا هم خاندي ② ما ته تعجب دے په هغه کس چه دامَنی چه دُنیا اخر یوه وُرځ ختمیدونکے ده، بیا هم دے کښې رغبت کوي۔ ③ ما ته تعجب دے په هغه کس چه داپیژني چه هرڅیز د مُقدّر نه دے، بیا د څه څیز په تلو افسوس کوي ④ ما ته تعجب دے په هغه کس، چا ته چه اخرت کښې د حساب یقین وي بیا هم مال جمع کوي۔ ⑤ ما ته تعجب دے په هغه کس چا ته چه د دوزخ د اُور علم وي بیا هم ګناه کوي ⑥ ما ته تعجب دے په هغه کس، چه الله تعالیٰ مني بیا څه د بل څیز ذکر کوي۔ ⑦ ما ته تعجب دے په هغه کس چا ته چه د جنت خبر وي، بیا دُنیا کښې په څه څیز سره راحت مومي۔ بعضو نسخو کښې دا هم دي چه ما ته تعجب دے په هغه کس چه شیطان دُشمن ګنړي بیا هم د هغهٔ اطاعت کوي۔

حافظ رحمۃ الله علیه د حضرت جابر رضی الله عنه نه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے دے چه حضرت جبرئیل علیه السلام ما ته د الله تعالیٰ د ذکر دومره زیات تاکید کولو، چه ما داګمان اُوشو چه بغیر د الله تعالیٰ د ذکر نه هیڅ یو څیز فائده نه ورکوي۔

د دے ټولو روایتونو نه دا معلومه شوه چه د ذکر څومره په پروا لے کیدے شي، ایله پرے مهٔ کوئ۔ د خلقو مجنون یا ریاکار ویلو په وجه ځان پریخودل خپل نقصان کول دي۔ صوفیا تو لیکلي دي چه دا هم د شیطان یوه دهوکه ده چه اول هغه د ذکر نه په دے خیال منع کوي چه خلق به اُوویني۔ چه څوك اُوویني نو څهٔ به وائي وغیره وغیره۔ بیا شیطان ته د

منع کړلو د پاره یوه مُستقله ذریعه او حیله ملاؤشی. په دې وجه داخو ضروري ده چه (ابله ته) دخودلو په نیت د هیڅ عمل نه کوي. خو که چرې خوک اُوویني نو اُو دې وینی. په دې وجه پرېخودل نه دي پکار.

حضرت عَبدالله ذُوالبِجَادین رضی الله عنه یو صحابي دې چه په وړوکوالي کښې یتیم شوې وو، تره څخه اُوسیدهٔ. هغهٔ ډیرښهٔ ساتهٔ. د کور د خلقو نه په پټه مُسلمان شوې وو. تره پرې خبر شو. نو هغهٔ په غُصه کښې یعني بربنډ کړهٔ وې وِیستلو. مور ترې هم ویزاره وه خو بیا هم مور وه. بربنډ یې اُولیدهٔ نو یو سټ غونډ ې څادر یې ورکړهٔ چه هغه دهٔ دوه ټکړې کړهٔ. په یو یې عورت پټ کړهٔ، بل یې په ځان واچولو. مدینې مُنورې ته حاضر شو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دروازه بانډ به پروت وو او ډیر په کثرت سره به یې په اُوچت آواز ذکر کولو. حضرت عُمر رضی الله عنه اُوفرمایل چه ایا دا کس ریا ء ر دې چه دا رنګې ذکر کوي. نبي کریم صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل بلکه دې اَوّاهینو کښې دې (یعني الله تعالی ته توجُه ساتونکو خلقو کښې دې) غزوهٔ تبوک کښې وفات شو. صحابو رضی الله عنهم اُولیدهٔ چه د شپې قبرونو ته نزدې ډیوه بلیږي. نزدې ورغلل وې لیدل چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم قبر کښې کُوز شوې دې. حضرت اَبُوبکر او عُمر رضی الله عنهما ته ارشاد فرمائي چه رادرُئ ځما رور ماته راکړئ. دواړو حضراتو ورته ورکړو. دفن کړلو نه پس نبي کریم صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل، اے الله! ځهٔ ددهٔ نه راضي یم، ته ترې هم راضي شې. حضرت ابنِ مَسعود رضی الله عنه فرمائي چه دا تول منظر ما اُولیدهٔ، ځما دا ارزو پیدا شوه چه دا مړې خو ځهٔ وې.

حضرت فُضَیل رحمة الله علیه چه اکابرِ صوفیه کښې دې. هغه فرمائي چه څهٔ عمل په دې وجه نهٔ کول چه خلق به یې اُووینی دا هم رِیا کښې شامل دې او په دې وجه سره عمل کول چه خلق یې اُووینی دا شرک کښې داخل دې.

یو حدیث کښې راغلي دي چه بعض بندګان د ذکر کنجیانې دي کله چه دهغوی شکل اُولید لې شي نو د الله تعالی ذکر اُوکړې شي یعني د هغوی شکل لیدلو سره الله تعالی را په یاد شي.

یو حدیث کښې راغلی دی چه د الله تعالیٰ ولیاؤ دی هغه خلق چه د هغوی په لیدو سره الله تعالیٰ را یاد یږی۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه تا سو کښې بهترین هغه خلق دی چه د هغوی لیدلو سره د الله تعالیٰ یاد تازه شی۔

یو حدیث کښې دی چه تا سو کښې بهترین هغه کس دے چه د هغهٔ په لیدلو سره الله تعالیٰ یادیږی او د هغهٔ په خبرو علم کښې ترقی کیږی او د هغهٔ په اعمالو د آخرت شوق پیدا کیږی۔ او دا خبره هله حاصلیدے شی کله چه څوک په کثرت سره د ذکر عادت وی۔ او څوک چه په خپله توفیق نه وی د هغهٔ په لیدلو چرته څوک ته الله تعالیٰ یادیږی۔

بعضے خلق په زوره ذکر کول بدعت او ناجائز گڼړی۔ دا خیال بے حدیث یا نو د نظر د کمی له وجے نه پیدا شوے دے۔ مولانا عبدالحی صاحب رحمة الله علیه یو رساله "سَبَاحَةُ الْفِكْرِ" هم دے مسئله کښې لیکلے ده چه په هغې کښې تقریباً پنځوس حدیثونه دا سے ذکر کړی دی چه د هغې نه په زوره ذکر ثابتیږی۔ البته د ضروری خبره ده چه د شرائطو سره د خپلو حدونو نه اوسی چا ته هم تکلیف ورکولو سبب نه وی۔

⑯ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ سَبْعَةٌ یُظِلُّهُمُ اللهُ فِیْ ظِلِّهٖ یَوْمَ لَا ظِلَّ اِلَّا ظِلُّهٗ اَلْاِمَامُ الْعَادِلُ وَالشَّابُّ نَشَأَ فِیْ عِبَادَةِ اللهِ وَرَجُلٌ قَلْبُهٗ مُعَلَّقٌ بِالْمَسَاجِدِ وَرَجُلَانِ تَحَابَّا فِی اللهِ اجْتَمَعَا عَلٰی ذٰلِكَ وَتَفَرَّقَا عَلَیْهِ وَرَجُلٌ دَعَتْهُ امْرَأَةٌ ذَاتُ مَنْصَبٍ

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه اووه کسان دی چه هغوی ته به الله جل شانهٔ د خپل (رحمت) سوری کښې په داسے ورځ ځائی ورکړی په کومه ورځ چه به د هغهٔ د سوری نه علاوه هیڅ سورے نه وی۔ یو عادل بادشاه، دویم هغه ځوان چه په ځوانئ کښې د الله تعالیٰ عبادت کوی، دریم هغه کس چه د هغهٔ زړه جماتونو سره تړلے وی، څلورم هغه دوه کسان چه د هغوی خپل مینځ کښې د الله تعالیٰ (د رضا) د پاره

وَجَمَالٍ فَقَالَ إِنِّي أَخَافُ
اللهَ وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ
فَأَخْفَاهَا حَتّٰى لَا تَعْلَمَ شِمَالُهُ
مَا تُنْفِقُ يَمِينُهُ وَرَجُلٌ
ذَكَرَ اللهَ خَالِيًا فَفَاضَتْ
عَيْنَاهُ۔ (رواه البخاري ومسلم و
غيرهما كذا في الترغيب والمشكوة وفي
جامع الصغير برواية مسلم عن ابي هريرة وابي
سعيد معا وذكر عدة طرقه آخرى)

محبت وی هم په دغه دهغوی جمع کیدل او وی
او هم په دغه بانډې جدا ای وی. پنځم هغه
کس چه یوه بنائسته شریفه زنانه یې
خپل طرف ته متوجه کړی او هغه ورته
اُووائی چه ځه د الله تعالی نه ویریږم. شپږم
هغه کس چه په داسې پټه طریقه صدقه
اُوکړی چه بل لاس ترې هم خبر نشی، اُووم
هغه کس چه د الله تعالی ذکر په تنهائی کښې
اُوکړی او اُوښکې یې اُوبهیږی۔

**فائده:**- د اُوښکو بهیدلو مطلب دا هم کیدې شی چه سړه د پوهې
یې چه کوم گناهونه کړې وی هغه یادوی او ژاړی۔ او بل مطلب دا هم
کیدې شی چه غلبهٔ شوق کښې یې بې اختیاره دسترگونه اُوښکې روانې
شی۔ په روایت د ثابت بنانی رحمة الله عليه دیو بزرگ مقوله روینا). یې نقل کړې
ده. هغه فرمائی چه ما ته معلومیږی چه ځما کومه دُعا قبولیږی. خلقو
ترې تپوس اُوکړو چه څنگه درته معلومیږی؟ دې فرمایل چه کومه دعا
کښې دیدن ویښته اُودریږی او زړه بې قراره شی او دسترگونه اُوښکې روانې شی نو
هغه دعا قبلیږی. دې اُووه کسانو کښې چه دکوم ذکر حدیث پاک کښې راغلې
دې یو هغه کس هم دې کوم چه د الله تعالی ذکر په تنهائی کښې اُوکړی او په
ژړا شی. دې کښې دوه خوبئی جمع دی او دواړه د اعلی درجې دی. یو اخلاص
چه په تنهائی کښې د الله تعالی په یاد کښې مشغول شو. دویم د الله تعالی نه
ویره یا شوق چه په دواړو کښې ژړا راشی او دا دواړه کمال دې۔ ـه

ہمارا کام ہے راتوں کو رونا یاد دلبر میں ✣ ہماری نیند ہے محو خیال یار ہو جانا

خمونږه کار دې د شپو، د دلبر یاد کښې ژړیدل
خمونږه خوب دې بس، خیالِ یار کښې ډوبیدل

د حدیث الفاظ دی رَجُلٌ ذَكَرَ اللهَ خَالِيًا د یو هغه سړي کوم چه د الله تعالی

ذکر اوکړی په داسے حال کښ چه خالی وی، صوفیانو لیکلی دی چه د خالی کیدو دوه مطلبه دی. یو دا چه د خلقو نه خالی وی چه د هغے معنی د تنهائیئ ده. دلعام مطلب دے. دویم دا چه زړهٔ د غیرو نه خالی وی هغوی فرمائی چه اَصْلِي خَلْوَتْ هم دا دے. په دے وجه ډیره کامله درجه خو دا ده چه د واړه خلوتونه ورته حاصل وی. خو که چرے څوک په کوټه کښ وی او زړهٔ یے د غیرو نه یعنی خالی وی. او د اسے وخت د الله تعالی په ذکر سره څوک اُوژاړی نو هغه هم دے کښ داخل دے چه کوټه او نهٔ کوټه د هغهٔ په حق کښ برابره ده. او هر کله د هغهٔ زړهٔ کوټه خوبیږی. ده د غیر الله د توجهٔ نه هم خالی دے نو کوټه هغهٔ ته څهٔ ضرر وَر رَسَولے شی. د الله تعالی په یاد کښ یا د هغهٔ له ویرے نه ژړا ډیر لوئ دولت دے. خوش نصیبا دے هغه کس چا ته چه الله جل شانهٔ داسا نه کړی.

یو حدیث کښ راغلی دی چه څوک د الله تعالی د ویرے اُوژاړی، دے هغه وخته پورے دوزخ ته نهٔ شی تلے ترڅو پورے چه پئ په تیونو کښ واپس لاړ شی (او ښکاره ده چه دا ناممکنه ده پس هم داسے د دهٔ دوزخ ته تلل هم ناممکن دی). یو بل حدیث کښ راغلی دی چه څوک د الله تعالی د ویرے نه اُوژاړی تر دے چه د هغهٔ د اُوښکو نه څهٔ به زمکه پریوزی. نو هغهٔ ته به د قیامت په ورځ عذاب نهٔ وی.

یو حدیث کښ راغلی دی چه په دوه و سترګو د دوزخ اُور حرام دے. یوه هغه سترګه چه د الله تعالی د ویرے نه یے ژړلی وی او دویمه هغه چه د اسلام او د مسلمانانو د حفاظت د پاره د کافرانو په مقابله کښ وِیښه پاتے شوے وی.

یو حدیث کښ راغلی دی چه کومه سترګه د الله تعالی د ویرے ژړیدلی وی په هغے د دوزخ اُور حرام دے او کومه سترګه چه د الله تعالی په لار کښ وِیښه پاتے شوے وی په هغے هم حرام دے، او کومه سترګه نا روا څیز (مثلاً نامحرم وغیره) کتو نه منع شوے وی په هغے هم حرام دے او کومه سترګه چه د الله تعالی په لار کښ ضائع شوے وی په هغے هم د دوزخ اُور حرام دے.

یو حدیث کښې راغلی دی چه په تنهائیئ کښې د الله تعالیٰ ذکر کونکے والے دے لکه چه یو اخے د کافرانو مقابلے ته تلے وی۔

⑭ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یُنَادِیْ مُنَادٍ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ اَیْنَ اُولُوا الْاَلْبَابِ قَالُوْا اَیَّ اُولِی الْاَلْبَابِ تُرِیْدُ قَالَ الَّذِیْنَ یَذْکُرُوْنَ اللّٰهَ قِیَامًا وَّ قُعُوْدًا وَّ عَلٰی جُنُوْبِهِمْ وَ یَتَفَکَّرُوْنَ فِیْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سُبْحٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ عُقِدَ لَهُمْ لِوَآءٌ فَاتَّبَعَ الْقَوْمُ لِوَآءَهُمْ وَ قَالَ لَهُمْ اُدْخُلُوْهَا خٰلِدِیْنَ (اخرجه الاصبهانی فی الترغیب کذا فی الدر)

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه د قیامت په ورځ به یو آواز کونکے آواز اوکړی چه عقلمند خلق چرته دی؟ خلق به تپوس اوکړی چه د عقلمندو نه څوك مراد دی؟ جواب به ورکړے شی، هغه خلق کوم چه د الله تعالیٰ ذکر کولو په ولاړه اوناسته او په ملاسته (یعنی په هر حال کښې یے د الله تعالیٰ ذکر کولو) او د اسمانونو او د زمکو پیدا کیدو کښې یے غور کولو او ویل یے چه اے الله! تا دا ټول بے فائدے خو پیدا کړی نه دی، مونږ ستا تسبیح کوو ته مونږ د دوزخ د عذاب نه اوساتے. د دے نه پس به د دے خلقو د پاره یو جهنډا جوړه کړے شی چه هغے پسے به دا ټول ځی او د وی ته به اوویلے شی چه همیشه د پاره جنت کښې داخل شئ۔

**فائده:-** اسمانونو او د زمکو پیدا کیدو کښې غور فکر کوی یعنی د الله تعالیٰ د قدرت نظارے او د هغه د حکمتونو عجائبو ته سوچ کوی چه په دے سره د الله جل جلاله پیژند ګلو کښې قوت پیدا کیږی۔

"برگ درختان سبز در نظر هوشیار هر ورقے دفتریست معرفت کردگار"

"یه عالم ہے گلزار ترا." اے خدا الله! دا عالم د دے گلزار ستا۔

ابن ابی الدنیا رحمة الله علیه یو مرسل روایت نقل کړے دے چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو وارے د صحابو یوے ډلے ته تشریف یوړه چه چپ چاپ ناست وو. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایهٔ، څهٔ خبره ده په څهٔ سوچ کښې ناست یئ؟ عرض یے اوکړه چه د الله تعالیٰ د مخلوقاتو په سوچ کښې یو. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایهٔ چه اؤ. د الله تعالیٰ په ذات کښې غور مهٔ کوئ (چه هغه

وَرَآءَ الْوَرَآءِ دے۔) د هغهٔ په مخلوقاتو کښې غور کوئ۔

حضرت عائشه رضی الله عنها ته یو کس عرض اُوکړو چه د نبی اکرم ﷺ څه عجیبه خبره واورَوه، ...فرمایل چه د نبی اکرم ﷺ کومه خبره داسے وه چه عجیبه نه وه. یو وار یے شپه تشریف اُوړو ...د ما بستره کښې ...برستن کښې سملاست. بیا یے ارشاد اُوفرمایهٔ، پریږده چه څهٔ خود خپل رَب عبادت اُوکړم، دا یے اُووے پاسیدو. اَودس یے اُوکړو او د مونځ نیت یے اُوترړو، ژړا یے شروع کړه، تر دے پورے چه اُوښکے یے سینه مبارکه باندے بهیدلے. بیا دا رنګے په رکوع کښې یے ژړل، بیا سجده کښې یے دارنګے ژړل. ټوله شپه یے دارنګے تیره کړه تر دے چه د سحر د مانځه د بللو د پاره حضرت بلال رضی الله عنه راغے. ما عرض اُوکړو، اے د الله رسوله! تاسو خو بخښلی شوی یئ. بیا تاسو دومره ولے اُوژړل؟ ارشاد یے اُوفرمایهٔ چه آیا څهٔ د الله تعالیٰ شکرګذار بنده جوړ نشم. بیا یے اُوفرمایل ما به ولے نه ژړل، حال دا دے چه نن دا آیتونه نازل شوی دی. (یعنی پورتنی آیتونه إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ نه فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ پورے) بیا یے اُوفرمایل چه هلاکت دے د هغه کس د پاره چه څوک دا اُولی او غور و فکر نهٔ کوی۔

عَامِرِ بن عَبْدِ قَیْس رحمه الله فرمائی چه ما د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه اَوریدلی دی، یو نه، دوه نه، درے نه بلکه (له دے نه د زیاتو نه مے اَوریدلی دی) چه د ایمان رڼا او د ایمان نُور غور و فکر دے۔

حضرت ابو هُرَیره رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه نقل کوی چه یو سړے چهت باندے ملاست وو، آسمان او ستورو ته یے کتل، بیا یے اُووے قسم په الله تعالیٰ ما ته یقین دے چه ستا سو پیدا کوونکے څوک ضرور شته. اے الله تعالیٰ! ته ما بخښنه اُوکړے. د رحمت نظر هغهٔ طرف ته متوجه شو، او د هغهٔ بخښنه اُوشوه۔

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه د یو ساعت غور د ټولے شپے د عبادت نه بهتر دے. حضرت اَبُو الدَّرْدَاء او حضرت انس رضی الله عنهما نه هم دا نقل کړے شوی دی. د حضرت انس رضی الله عنه نه هم دا نقل کړے شوی دی چه

یو ساعت غور په دے خیز ونو کښې د اتیا ؤ کالو عبادت نه بهتر دے. د ام الدرداء رضی الله عنها نه چا تپوس اوکړو چه د ابو الدرداء رضی الله عنه د ټولو نه بهترین عبادت څه وو. وے فرمایل غور و فکر. په روایت د ابو هریره رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه دا هم نقل کړے شوی دی چه د یو ساعت غور و فکر د شپیتو کالو د عبادت نه بهتر دے. خو د دے روایتونو دا مطلب نه دے چه بیا د عبادت ضرورت نه پاتے کیږی. هر یو عبادت چه په خپل ځائی کومه درجه لری، فرض وی یا واجب، سنت وی که مستحب، د هغے پرېښودو باندے به هم د هغے درجے عذاب یا ملامتیا وی، د کومے درجے چه هغه عبادت وی.

امام غزالی رحمة الله علیه لیکلی دی چه غور و فکر ته عبادتونو کښې بهتر ځکه ویلے شوی دی چه دے کښې معنیٰ د ذکر خو شامل وی، د وه خیزونه پکښې نور زیات دی. یو د الله تعالیٰ معرفت ځکه چه غور و فکر د معرفت کنجی ده، دویم د الله تعالیٰ محبت چه په فکر کولو سره دا پیدا کیږی. هم دا غور و فکر دے، کوم ته چه صوفیان مراقبه وائی. د ډیرو روایتونو نه د دے فضیلت ثابتیږی. مسند ابو یعلیٰ کښې په روایت د حضرت عائشے رضی الله عنها د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے دے چه هغه ذکر خفی کوم چه فرښتے هم نه شی اوریدے اویا درجے دوچنده کیږی. هر کله چه د قیامت په ورځ الله جل شانه ټول مخلوق د حساب دپاره جمع کړی، او کراماً کاتبین عملنامے راواخلی راشی نو ارشاد به اوشی چه د فلانی بندہ عملونه اوګوری، څه نور باقی دی. هغوی به عرض اوکړی چه مونږ هیڅ یو خیز داسے نه دے پریخے کوم چه مو لیکلے نه وی او محفوظ نه وی. نو ارشاد به اوشی چه مونږ څخه د ده یوه نیکی باقی ده، کومه چه ستاسو علم کښې نشته. هغه ذکر خفی دے. بیهقی شعب کښې د حضرت عائشے رضی الله عنها نه دا حدیث نقل کړے دے چه کوم ذکر فرښتے نه اوری. دا په هغے ذکر باندے کوم چه هغوی اوری، اویا درجے زیات دے. هم دا مراد دے د دے شعر نه په کوم کښې چه ویلے شوی دی. ؎

میان عاشق و معشوق رمزیست ❊ کراماً کاتبین را هم خبر نیست

چه عاشق مشعوق کښې دلے اشاره وی چه د هغې فرښتوته هم خبر نۀ ی
ګومره خوش نصیبه دی هغه خلق څوك چه یو ساعت هُم نۀ غافلیږی
چه په خپلو ظاهری عبادتُونو خو به خپل خپل اجر وثواب خامخا حاصلوی
دا د هر وخت ذکر وفکر د یوره ژوند په وختونو کښې پرے اَوګیا چندۀ لازیاتی
شو. هم دا هغه خیزدے کوم چه شیطان پریشانه کوی. د حضرت جُنید
رحمة الله علیه نه نقل کړے شوی دی چه هغهٔ یو وارے خوب کښې شیطان بیغی
بربنډ اُولیدۀ. ورته یے اُووے چه تا له شرم نۀ درځی چه د سړو مخکښې
بربنډ پیرے؛ هغهٔ اُووے، دا څۀ سړی دی. سړی خو هغه دی، کوم چه
شونیزیه جمات کښې ناست دی چه هغوی ځما بدن کمزورے کړۀ او ځما
ځیګر یے کباب کړۀ. حضرت جُنید رحمة الله علیه فرمائی چه ځۀ د شونیزیه جمات
ته لاړم ما اُولیدل چه څو حضرات په زنګنونو سَرُونه ایخی دی مُراقبه کښې
مشغول دی. هرکله چه څۀ هغوی اُولیدم نو وے ویل چه د خبیث
په خبرو سره چرته دهوکه کښې پریوٰنهٔ ځے.
مُسُوحی رحمة الله علیه نه هم دا رنګے ددے په شان نقل کړے شوی دی. دۀ
شیطان بربنډ اُولیدۀ نو ورته یے اُووے چه تا ته د سړو په مینځ کښې
دا رنګے په ګرځید و شرم نۀ درځی؟ وے ویل چه په الله قسم! دا سړی نۀ
دی. که چرے دوی سړی وے نو ما به ورسره دا سے لوبے نۀ کولے، څنګه
چه هلکان ګوټه شکی سره لوبے کوی. سړی هغه دی کوموچه ځما بدن
بیمار کړۀ او د صوفیانو طرف ته یے اشاره اُوکړه.
اَبُو سعید خزّار رحمة الله علیه وائی چه ما په خوب کښې اُولیدل چه شیطان
په ما حمله اُوکړه. ما په لرګی اُووَهلو. هغهٔ پرے هم پرواه اُونۀ کړه. د
غیب نه یو آواز راغے چه له دے نه دے نۀ ویریږی، دے د زړۀ د نُور نه ویریږی.
حضرت سَعد رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه بهترین ذکر
ذِکرِ خَفی یعنی پټ ذکر دے او بهترین رِزق هغه دے کوم چه د کافی کیدو
درجه لری.

حضرت عُبَادَہ رضی اللہ عنہ هم د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم نه دا ے نقل کړی دی چه بهترین ذکر ذکرِ خفی دے او بهترین رزق هغه دے کوم چه دکافی کیدو په اندازه وی یعنی نه کم وی چه گذاره پرے نه کیږی، نه زیات وی چه تکبرا و اوبے حیائی کښی یے اخته کړی. ابن حبان او ابو یعلیٰ رحمهما الله دا حدیث صحیح خودلے دے۔

یو حدیث کښی د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد نقل کړے شوے دے چه الله تعالیٰ ذکرِ خامِل سره یادوئ. چا پوښتنه اُوکړه چه ذکرِ خامِل څه دے؟ ارشاد یے اُوفرمایئ چه مخفی ذکر (یعنی پټ ذکر)

دے ټولو روایتونو نه د ذکرِ خفی بهتروالے معلومیږی. او اُوس نزدے هغه روایت تیر شو، په کوم کښی چه د مجنون ویلو ذکر تیر شوے دے. د دواړو مستقل ځیزونه دی چه د حالاتو په اعتبار سره مختلف دی. دا یا شیخ (پیر صاحب) تجویز کوی چه د کوم کس دپاره کوم وخت څه مناسب دی۔

(۱۸) عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَهْلِ ابْنِ حُنَيْفٍ رضی اللہ عنہ قَالَ نَزَلَتْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم وَهُوَ فِيْ بَعْضِ اَبْيَاتِهٖ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ فَخَرَجَ يَلْتَمِسُهُمْ فَوَجَدَ قَوْمًا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ فِيْهِمْ ثَائِرُ الرَّاْسِ وَجَافُ الْجِلْدِ وَذُو الثَّوْبِ الْوَاحِدِ فَلَمَّا رَاٰهُمْ جَلَسَ مَعَهُمْ وَقَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ جَعَلَ فِيْ اُمَّتِيْ مَنْ اَمَرَنِيْ

نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم کور کښی وو چه آیت وَاصْبِرْ نَفْسَكَ نازل شو چه د دے ترجمه دا ده "خپل ځان د هغے خلقو څخه (د ناستے) پابند کړه څوک چه سحرا و مابنام خپل رب بللی. نبی علیه الصلوٰة والسلام د دے آیت په نازلیدو د دغه خلقو په تلاش کښی اُووتلو. یوه ډله یے اُولیده چه د الله تعالیٰ په ذکر کښی مشغوله وه. بعضے خلق په هغوی کښی خوارهٔ وارهٔ ویښتو والا وُو او اُوچو څرمنو والا، او صرف دیوے جامے والا وُو (چه برېنډ بدن صرف یو لنگ ور څخه وُو) هرکله چه نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم دوی اُولیدل نو هغوی څخه کینا ستو۔ او ارشاد یے اُوفرمایئ چه ټول تعریفونه د

اَنْ اَصْبِرَ نَفْسِیْ مَعَهُمْ۔
(اخرجه ابن جرير والطبراني وابن مردويه كذا في الدر)

الله تعالٰی د پاره دی چه هغهٔ حٔما په اُمت کښې داسې خلق پیدا کړهٔ چه ځٔحپله ما ته یې دهغوی څخه د کیناستو حُکم اُوفرمایهٔ.

**فائده**:- یو بل حدیث کښې دی چه نبی اکرم ﷺ دهغوی تلاش اُوکړو، نو د جُمات آخری حِصه کښې یې ناست بیاموندل چه دالله تعالٰی په ذکر کښې مشغول وو. نبی اکرم ﷺ اُوفرمایل چه ټول تعریفونه دالله تعالٰی د پاره دی چه هغهٔ حٔما په ژوند ائه کښې داسې خلق پیدا کړل چه ما ته یې هغوی څخه د ناستې حُکم اُوفرمایهٔ. بیا یې اُوفرمایل، هم ستاسو خلقو سره م ژوند دے او هم تاسو سره م مرګ دے. یعنی د مرګ ژوند ملګری م هم تاسو خلق یئی.

یو حدیث کښې راغلی دی چه حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه وغیره حضرات د صحابه کرامو رضی الله عنهم یوې ډلې سره دالله تعالٰی په ذکر کښې مشغول وُو. نبی اکرم ﷺ تشریف راوړهٔ نو دوی چُپ شُو. نبی اکرم ﷺ اُوفرمایل تاسو څهٔ کول؟ عرض یې اُوکړهٔ، دالله تعالٰی ذکر کښې مشغول وُو. نبی اکرم ﷺ اُوفرمایل چه ما اُولیدل چه دالله تعالٰی رحمت په تاسو نازلیږی، نو حٔما زړهٔ هم اُوغوختل چه راشم تاسو سره شریک شم. بیا یې ارشاد اُوفرمایهٔ چه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ! الله جل شانهٔ حٔما اُمت کښې داسې خلق پیدا کړهٔ چه د هغوی څخه د ناستې ما ته حُکم اُوشو.

اِبراهیم نخعی رحمة الله علیه فرمائی چه اَلَّذِیْنَ یَدْعُوْنَ نه مُراد د ذاکرینو ډله ده. هم دد ے په شان حُکمونو نه صوفیانو دا مسئله راایستلے ده چه پیرانو ته هم مُریدانو څخه ناسته ضروری ده چه په دے کښې مُریدانو ته دفائدے رسَولو نه علاوه په ګډون سره د شیخ د نفس د پاره هم پوره مجاهده ده چه د غیر مُهَذّب خلقو په بد عنوانو صبرا و برداشت کولو سره نفس کښې تابعداری پیدا شی او د دے نفس قوّت کښې عاجزی پیدا شی. د ے نه علاوه د زړونو جمع کولو ته دالله جلّ شانهٔ رحمت او مهربانی

مُتوجِه کوُلو کښې خاص دخل دے. هم په دے وجه دجمع موځ مقرر کړے شوے دے. او هم دا لویه وجه ده چه دعرفات په میدان کښې ټول حاجیان په یو حال یو میدان کښې الله تعالیٰ طرف ته مُتوجِه کوُلے شی. لکه څنګه چه خو تبرېږ حضرت شاه ولی الله رحمة الله عليه حُجَّةُ اللهِ الْبَالِغَة (کتاب) کښې کثرو ځایونو کښې دا مضمون په اهتمام ذکر فرمایلے دے. دا ټول دهغو ولے باره کښې دی کوم چه دالله تعالیٰ ذکر کوُنکی وی چه حدیثونو کښې په کثرت سره ددے ترغیب راغلے دے. ددے بِالْمُقَابِل لکه څرنګے څوک دغافلینو په ډله کښې ګیر شی. او دغه وخت دے دالله تعالیٰ په ذکر کښې مشغول شی نو دهغهٔ باره کښې هم حدیثونو کښې په کثرت سره فضائل راغلی دی. په دا سے موقعو بنده ته نور هم په زیات اهتمام او توجُه سره الله تعالیٰ طرف ته مشغولیدل پکار دی. دپاره ددے چه دهغوی دسیرۀ والی نه محفوظ شی.

حدیث کښې راغلی دی چه دغافلینو ډله کښې دالله تعالیٰ ذکر کوُنکے دا سے دے لکه چه جهاد کښې دتختیدُ ونکو ډلے نه څوک کلک اودریږی او مُقابله اُوکړی.

یو حدیث کښې راغلی دی چه غافلینو کښې دالله تعالیٰ ذکر کوُنکے دا سے دے لکه چه څوک دتختیدُ ونکو له طرفه نه دکافرانو مقابله اُوکړی. دغه شان هغه دا سے دے لکه تیارهٔ کور کښې ډیوه. دغه شان هغه دا سے دے لکه په اُترو وُنو کښې یوه شنه تازه وُنه وی. دا سے کس ته الله جل شانهٔ دهغهٔ دجنت کور دُنیا کښې اُوښائی او دهر بنیادم او ځناور برابر به دهغهٔ بخښنه اُوکړے شی. داغله دی چه دغے مجلسونو کښې دالله تعالیٰ په ذکر کښې مشغول وی. کنی دا سے مجلسونو کښې دشرکت مُمانعت راغلے دے.

حدیث کښې دی چه دعُشیرَه یعنی دیارانے دمجلسونو نه ځان ساتئی. عزیزی رحمة الله عليه وائی یعنی ددا سے مجلسونو نه کوم کښې چه دغیرالله تذکرے په کثرت سره وی. غَبَتیا نو اولیو نبو تو کښې مشغول دی.

یو بزرګ وائی چه څهٔ یو وارے بازار ته تلم. یوه حَبَشی وینځه مَا سره وه

ملبا زار کښې یو ځائې کینوله چه واپسئ کښې به یې ځان سره واخلم. هغه د هغه ځائې نه لاړه. هرکله چه ما واپسئ کښې هلته اُونه لیدله نوما ته غُصه راغله. ځه کور ته واپس راغلم. نو هغه وِېنزه راغله اَو وې وېل مخما اقا! ځفګان کښې جلتي مه کوه. ځه تا د اسې خلقو ځخنه پریخودم چه د الله تعالیٰ د ذکر نه غافله وُو. ځه اُوویرېدم چه په دوی چرته عذاب نازل نشی او په زمکه کښې ځخ نشی او ځه هم ور سره چرته عذاب کښې ګیره نه شم.

⑲ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ فِیْمَا یَذْکُرُ عَنْ رَبِّہٖ تَبَارَكَ وَتَعَالٰی اُذْکُرْنِیْ بَعْدَ الْعَصْرِ وَبَعْدَ الْفَجْرِ سَاعَةً اَکْفِكَ فِیْمَا بَیْنَهُمَا. (اخرجه احمد کذا فی الدر)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله پاك ارشاد نقل کوی چه ته د سحر د مانځه نه پس او د مازیګر د مانځه نه پس لږ ساعت ما یاد کړه. مینځنی حصه کښې به ځه ستا د پاره کافی کیږم. (یو حدیث کښې راغلی دی چه د الله تعالیٰ ذکر کوه. مطلب پوره کولو کښې به ستا مدد ګار شی.)

**فائده**:- اخرت د پاره نه سهی، دُنیا د پاره مونږ خلق څومره څومره کوششونه کوُو. ځه به مو وُران شی که چرې لږ غوندې ساعت سحر او مازیګر نه پس د الله تعالیٰ ذکر هم اُوکړُو. په حدیثونو کښې ډیر زیات د صبح د وارو وختونو کښې د الله تعالیٰ د ذکر فضائل راغلی دی. او هرکله چه الله جل جلاله د کافی کیدلو وعده فرمائی نو بیا د بل څیز ځه ضرورت پاتې شو.

یو حدیث کښې راغلی دی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائی چه ځه د اسې خلقو سره کینم چه د سحر مانځه نه پس نمر ختو پورې د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغوله وی. ما ته زیاته خوښه ده د دې نه چه څلور عرب غلامان ازاد کړم. هم دغه رنګې د اسې خلقو سره کینم چه د مازیګر مانځه نه پس تر نمر پریوتو پورې د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغوله اُوسی، دا م زیاته خوښه د څلور غلامانو ازادولو نه.

یو حدیث کښې دی چه څوك د سحر مونځ د جمیع سره اُوکړی بیا د نمر ختو پورې د الله تعالیٰ په ذکر کښې مشغول اُوسی. او بیا دوه رکعته نفل (د اشراق)

کړی. هغه ته به داسې ثواب ورکړې شي لکه چه په حج او عمرې (نفلي) ورکولې شي او حج او عمره هم هغه کوم چه کامل وي.

د نبي اکرم ﷺ ارشاد مبارک دې چه څوک د یو ې ځل سره د سحر مانځه نه پس تر نمر ختو پورې ذکر کښې مشغول اوسم. دا ماته د دُنیا او د دُنیا د ټولو څیزونو نه خوښه ده. هم دغې د ماز یګر مانځه نه پس نمر پریوتو پورې یو ځاې ځل سره ذکر کښې مشغول اوسم، دا ماته د دُنیا او دُنیا کښې د ټولو څیزونو نه زیاته خوښه ده.

هم په دې وجه سره د سحر مانځه نه پس او د ماز یګر مانځه نه پس د اورادو معمول دې او د حضرات صوفیه په نزد خو د دې دواړو وختونو خاص اهتمام دې چه د سحر د مانځه نه پس عموماً اشغالو کښې اهتمام کوي او د ماز یګر نه پس د اورادو اهتمام کوي. خصوصاً د سحر مانځه نه پس فقهاء هم دا اهتمام فرمائي. مدونه کښې امام مالک رحمة الله علیه نه نقل کړې شوې دي چه د سحر مانځه نه پس نمر ختو پورې خبرې کول مکروه دي. د احنافو نه صاحب درمختار رحمة الله علیه هم د دغه وخت خبرې کول مکروه لیکلي دي.

یو حدیث کښې راغلي دي چه څوک د سحر مانځه نه پس هم په هغې شان ناست وي د خبرو کولو نه مخکښې دا دُعا لس ځل وائي او وائي لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ورنشته دې لائق د عبادت هیڅوک سوا د یو الله نه، هغه په خپل ذات او صفتونو کښې تنها دې، هیڅوک د هغه شریك نشته. ټول ملك دُنیا او آخرت هم د هغه دي او چه څومره خوبئي دي هغه هم هغې پاك ذات د پاره دي، هم هغه ژوندي کول کوي، هم هغه مړه کول کوي او هغه په هر څیز قادر دې. نو د ده د پاره لس نیکئ لیکلې شي، لس بدئ معاف کولې شي او جنت کښې یې لس درجې اوچتولې شي. او ټوله ورځ به د شیطان او د مکروهاتو نه محفوظ اوسي.

یو حدیث کښې راغلي دي چه څوك د سحر او ماز یګر نه پس اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ وَاَتُوْبُ اِلَيْهِ درې ځله د هغې الله تعالیٰ نه کوم چه

ژوندے دے او همیشه دے، د هغۀ نه سوا څوك معبود نشته، د خپلو ګناهونو بخښنه غواړم، او هم هغۀ طرف ته رُجوع کوم توبه کوم) د دے وارے اَوائی د هغۀ ګناه معاف کیږی اګرچه د سمندر برابر وی۔

(۴۰) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَۃَ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ الدُّنْیَا مَلْعُوْنَةٌ وَّمَلْعُوْنٌ مَّا فِیْهَا اِلَّا ذِکْرُ اللّٰہِ وَمَا وَالَاہُ وَ عَالِمًا وَّ مُتَعَلِّمًا۔ (رواہ الترمذی

دنبی اکرم صلی اللہ علیه وسلم ارشادِ مبارك دے چه دُنیا مَلعُونه ده او هر څۀ چه په دیکښ دی ټول مَلعون (د الله تعالیٰ د رحمت نه لرے) دی خود الله تعالیٰ ذکر او هغه څیز چه کوم د دے نزدے وی او عالِم او طالب عِلم۔

وابن ماجه والبیهقی وقال الترمذی حدیث حسن کذا فی الترغیب وذکرہ فی جامع الصغیر بروایة ابن ماجة ورقم له بالحسن وذکره فی مجمع الزوائد بروایة الطبرانی فی الاوسط عن ابن مسعود وکذا السیوطی فی الجامع الصغیر وذکره بروایة البزار عن ابن مسعود بلفظ اِلَّا اَمْرًا بِمَعْرُوْفٍ اَوْ نَهْیًا عَنْ مُنْکَرٍ اَوْ ذِکْرَ اللّٰہِ ورقم له بالصحة)

**فائده:-** د دے نزدے کیدو نه مُراد ذکر ته نزدے کیدل هم کیدے شی۔ په دے حالت کښی به هغه څیزونه مُراد وی کوم چه د الله تعالیٰ په ذکر کښی معین او مدد ګار وی چه په هغے کښی خوړل څښل هم په قدر د ضرورت داخل دی او د ژوند ضروری اسباب هم په دے کښی داخل دی او په دے حالت کښی د الله تعالیٰ ذکر هر څیز ته کوم چه د عبادت د قِسمه نه وی، شامل دے۔ او دا هم کیدے شی چه د دے نزدے کیدو نه د الله تعالیٰ قُرب مُراد وی، نو په دے حالت کښی به ټول عبادتُونه په دے کښی داخل شی او د الله تعالیٰ د ذکر نه به مخصوص ذکر مُراد وی۔ او د وار و حالتونو کښی عِلم په دیکښی په خپله داخل شوے وو۔ رُومبی حالت کښی په دے وجه هم علم د الله تعالیٰ ذکر ته نزدے کوی چه "بے علم نتوان خدا را شناخت" (بے علمه الله تعالیٰ پیژندلے نه شی)، او په دویم حالت کښی په دے وجه چه د عِلم نه به زیات کوم عبادت وی؟ خود دے باوجود بیا عالِم او طالب العلم یے ځان له بیل د اهتمام په وجه اوفرمایهٔ چه عِلم ډیر لوئ دولت دے۔

یو حدیث کښی راغلی دی چه عِلم صرف الله تعالیٰ د پاره زده کول

د الله تعالیٰ دویرے په حکم کښې دے او ددے طلب (یعنی تلاش د پاره چرته تلل) عبادت دے، او ددے یادول تسبیح ده، او ددے په تحقیقاتو کښې بحث کول جهاد دے، او ددے لوستل صدقه ده، او ددے په اهل باندې خرچ کول الله تعالیٰ ته نزدیکت دے ځکه چه علم جائز ناجائز پیژندلو د پاره نښه ده- او د جنت د لاره رونښه ده. په ویره کښې زړه خوشالوونکے دے او د سفر ملګرے دے (چه کتاب کتل دواړه کاره کوی دا رنګ) تنهایی کښې خبرې کوونکے دے، خوشالئ او غم کښې لاره خودوونکے دے. دشمنانو باندے وسله ده دوستانو د پاره (تسلّه ده) الله جل شانهٔ د علم په وجه یو ډلے (د علماؤ) ته اوچتے مرتبې ورکوی چه هغوی خیر طرف ته رابلونکی وی او داسے امامان وی چه د هغوی په نقش قدم تلل اوکړے شی او د هغوی د افعالو تابعداری اوکړے شی، د هغوی را ئے طرف ته رجوع اوکړے شی، فرښتې هغوی سره د دوستئ کولو شوق کوی، خپلے وزرے (برکت حاصلولو د پاره یا د محبت په طور) دوی باندے مږی.- او هر لوند او اوچ څیز د دُنیا دوی د پاره د الله تعالیٰ نه د بخښنے دُعا غواړی- تردے چه د سمند ر کبان او د ځنګل شرمخان او ښاروی او زهریله ځناور و (مار وغیره) پورے هم ورته دُعا د بخښنے کوی- او دا ټول د دے د پاره چه علم د زړونو رڼرا ده، د سترګو نُور دے. د علم په وجه بنده د اُمت بهترینو کسانو ته رسی- د دُنیا او د آخرت اوچتے مرتبے حاصلوی- ددے مطالعه د روژو برابر ده- ددے یادول د تهجّد و برابر دی- په دے سره خپلولی پاللے شی او په دے سره حلال او حرام پیژندلے شی علم د عمل امام دے- او عمل ددے تابع دے- نیک بخته خلقو ته ددے الهام کیږی او بد بخته ددے نه محرومیږی- په دے حدیث مجموعی طور بعضو کلام کړے دے خو چه کوم قسمه فضائل دے کښې ذکر کړے شوی دی، ددے مرسته د نورو روایتونو نه هم کیږی، د غه شان د دے نه علاوه نور ډیر فضائل د حدیث په کتابونو کښې په کثرت سره راغلی دی، په دے وجه عالم او طالب علم له په پوره تنی حدیث کښې خاص طور ذکر کړے دے-

حافظ ابنِ قیّم رحمۃ اللہ علیہ یو مشهور محدّث دے۔ ده یوه اَرَدَه واضحه رِساله عَرَبیٔ کښې "اَلوَابِلُ الصَّیِّبُ" په نامه د ذکر په فضائلو کښې لیکلې ده په هغې کښې هغه فرمائی چه په ذکر کښې د تسلونه هم زیاتې فائدې دی۔ د هغې نه نمبروار یو کم اتیا فائدے ذکر کړی دی چه هغه مختصره اجمالی ترتیب وار نقل کولې شی۔ او چونکه ډیرے فائدے په دیکښې داسے دی چه څو څو فائدې په کښې دی، په دے لحاظ سره د تسلونه زیاتې جوړیږی۔

① ذکر شیطان دفع کوی او د هغه قوّت ماتوی ② د اللہ جل جلالہٗ د خوشالئ سبب دے ③ د زړهٔ نه فکر او غم لرے کوی ④ زړهٔ کښې خوشالی پیدا کوی ⑤ بدن او زړهٔ ته قوّت ورکوی ⑥ مخ او زړهٔ روښانه کوی ⑦ رزق راکابږی ⑧ ذکر کوونکو ته د رُعب او د خوږ والی جامه اَغوندی یعنی د هغهٔ په کتلو رُعب پریوزی، او کتونکو ته خوږ والے نصیب کیږی ⑨ د اللہ جل شانہٗ محبت پیدا کوی۔ او هم دا محبت د اسلام روح او د دین مرکز دے او د سَعادت (نیک بختیٔ) او د خلاصی مدار دے۔ څوک چه داغواړی چه د اللہ تعالیٰ محبت ته دهٔ رسیدل اوشی هغه له پکار دی چه د اللہ تعالیٰ ذکر ډیر کوی۔ څنګه چه لوستل او تکرار کول د عِلم دروازه ده، د غسے د اللہ تعالیٰ ذکر د هغهٔ د محبت دروازه ده ⑩ په ذکر سره مُراقبه نصیب کیږی کوم چه د احسان مرتبے ته بندہ رسوی۔ هم دا مرتبه ده چه په دیکښې د اللہ تعالیٰ عبادت ولے نصیب کیږی گویا چه اللہ تعالیٰ وینی۔ (هم دا مرتبه د صوفیانو د مقصد مُنتهٰی ده) ⑪ اللہ تعالیٰ طرف ته رجوع پیدا کوی چه په دے سره رو رو دا وخت راشی چه هر څیز کښې اللہ جل شانہٗ د دهٔ دپناه ځائی او تهکانه جوړه شی او هر یو مُصیبت کښې هم هغهٔ طرف ته یے توجه اوشی ⑫ اللہ تعالیٰ ته نزدیکت پیدا کوی، او څومره چه یے ذکر زیاتیږی، هغومره یے اللہ تعالیٰ ته نزدیکت زیاتیږی او څومره چه د ذکر نه غفلت کیږی، هغومره یے د اللہ تعالیٰ نه لرے والے کیږی ⑬ د اللہ تعالیٰ د معرفت دروازه برانزی ⑭ د اللہ جل شانہٗ رُعب او د هغهٔ لوئی زړهٔ کښې پیدا کوی۔ او د اللہ تعالیٰ سره

حضوری (نزدیکت) پیدا کوی (۱۵) د الله جل شانهٗ په دربار کښې ذکر سبب دے لکه چه کلام پاک کښې ارشاد دے فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ. او حدیث کښې راغلی دی مَنْ ذَكَرَنِي فِي نَفْسِهٖ ذَكَرْتُهٗ فِي نَفْسِي الحدیث لکه چه دا یتونو او د حدیثونو په بیان کښې مخکښې په تفصیل سره تیر شوی دی. که چرے ذکر کښې دے نه سوا بل هیڅ فضیلت نه وی. بیا هم د شرافت او د عزت په اعتبار سره دا یو فضیلت کافی وو. د الاخه کوے چه په دیکښې نور هم ډیر فضیلتونه دی. (۱۶) زړهٔ ژوندے کوی. حافظ ابن تیمیه رحمة الله علیه فرمائی چه الله تعالیٰ ذکر زړهٔ د پاره داسے دے لکه د کب د پاره اوبهٔ. په خپله فکر او کړئ چه بغیر د اوبو په د کب څه حال کیږی (۱۷) د زړهٔ او د روح روزی ده او که دے دواړو ته خپله غذا ورنکړے شی نو داسے دی لکه بدن ته د هغهٔ خوراک ورنکړے شی. (۱۸) زړهٔ د زنګ نه صفا کوی، څنګه چه حدیث کښې هم راغلی دی. هر څیز یا نه د هغهٔ مناسب خیرے ویرے وی. د زړهٔ خیرے او زنګ خواهشات او غفلت دے. دا ذکر د هغې د پاره د صفائی کار ورکوی (۱۹) غلطئ او ګناهونه لرے کوی (۲۰) بنده ته چه د الله جل شانهٗ نه کومه وارخطائی وی، هغه لرے کوی چه په غافل زړهٔ د الله تعالیٰ له طرفه یو قسم وارخطائی وی چه هغه په ذکر لرے کیږی (۲۱) کوم ذکرونه چه بنده کوی هغه د عرش څلور واړه طرفه د بنده یاد کوی څنګه چه حدیث کښې راغلی دی (باب دریم، فصل دویم، حدیث اوولسم کښې) (۲۲) څوک چه په راحت کښې د الله جل شانهٗ ذکر کوی. الله جل جلالهٗ د مصیبت په وخت هغه یادوی (۲۳) د الله تعالیٰ د عذاب نه د خلاصی ذریعه ده. (۲۴) سکینه او د رحمت نازلیدو سبب دے او فرښتے ذکر کوونکو نه چاپیره کیږی (د سکینے معنیٰ د دے باب فصل دویم حدیث اتم کښې تیره شوے ده) (۲۵) د ذکر په برکت ژبه د غیبت، چغلی، دروغ، بد وینا، عبث وینا نه محفوظ اوسی. لکه چه تجربے او مشاهدے نه ثابته ده چه د کوم کس ژبه د الله تعالیٰ په ذکر عادت وی. هغه د دے څیزونو نه عموماً محفوظه وی.

اودچا زیه چه عادت نه وی هغه هرقسمه فضولیا تو کښې اَخته وی۔ (۲۶) د ذکر مجلسونه د فرښتو مجلسونه دی او د فضولیا تو او د غفلت مجلسونه د شیطان مجلسونه دی۔ اَوس انسان ته اختیار دے چه د کوم قسمه مجلسونه غواړی، خوښ دې کړی او هرکس هم هغه خوښوی د کوم سره چه مُناسبت ساتی (۲۷) د ذکر په وجه ذکر کوُنکی هم نیک بخته کیږی او ورسره ناست کسان هم۔ او غفلت یا فضولیاتو کښې اخته کسان په خپله هم بد بخته شی او ورسره ناست کسان هم۔ (۲۸) (ذکر) د قیامت په وَرځ د افسوس نه محفوظ ساتی ځکه چه حدیث کښې راغلی دی چه هر هغه مجلس کوم کښې چه د الله ذکر نهٔ وی د قیامت په وَرځ د افسوس او د نقصان سبب دے (۲۹) ذکر سره که ژړے د تنهائیٔ ژړا هم نصیب شی نو د قیامت د وَرځے تاؤ او گرمیٔ کښې به هرکس د حشر په میدان کښې تر قیږی، او دے به د عرش په سوری کښې وی۔ (۳۰) ذکر کښې مشغول کسانو ته به د هغے تپولو څیزونو نه زیات ورکولے شی کوم چه دُعا کانے غوختونکو ته ورکولے شی۔ حدیث کښې د الله جلّ شانهٗ ارشاد نقل کړے شوے دے خولهٔ چه څوک ما ذکر دُعا ته فارغ نه کړو، هغهٔ ته به څهٔ دُعا کانے غوختونکو نه بهتر ورکومه (۳۱) ذکر سره د دے چه د ټولو نه اسان عبادت دے، بیا یے د ټولو عبادتونو نه بهتر کیږے دے ځکه چه ژبه خوزول د بدن د ټولو اندامونو خوزولو نه اسان دی (۳۲) د الله تعالیٰ ذکر د جنت بوټی دی (لکه چه باب درېیم، فصل دویم حدیث شلورم کښې یے تفصیل راځی۔) (۳۳) څومره قدرے چه د بخښنه او انعام وعده په دے ده، په بل عمل نشته، لکه یو حدیث کښې راغلی دی، څوک چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ لَهٗ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ سل وارے ورځ کښې اُووائی نو دهٔ د پاره د لسو غلامانو آزادولو ثواب کیږی او سل نیکۍ د دهٔ د پاره لیکلے شی، او سل بدۍ ترے مُعاف کولے شی۔ او ما ښامه پورے شیطان نه محفوظ کیږی او بل هیڅوک له دهٔ نه بهتر نشی کیدلے۔ البته هغه څوک چه د دهٔ نه زیات عمل اُوکړی۔ د غسے نور ډیر حدیثونه دی چه د هغے نه د ذکر د ټولو

عملونو نه بهتر کیدل معلومیږی.» او ډیر د هغې نه دے رساله کښې ذکر دی)

(۳۳) د همیشه ذکر په برکت د خپل نفس د هیرولو نه آمن نصیب کیږی کوم چه د دواړو جهانو د بد بختئ سبب دے ځکه چه د الله تعالیٰ یادول هیرول سبب ګرزی په خپله د خپل نفس د هیرولو، او د خپل ټولو مصلحتونو د هیرولو. لکه چه د الله تعالیٰ ارشاد دے وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ نَسُوا اللَّهَ فَأَنسَاهُمْ أَنفُسَهُمْ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ۝ (سورة حشر ع ۳) "تاسو هغې خلقو په شان مه کیږئ چه د الله تعالیٰ نه یې بے پرواهی اوکړه. پس الله تعالیٰ هغوی د خپل ځانونو نه بے پرواه کړل." (یعنی د هغوی عقل داسے لاړو چه په خپله حقیقی ګټه پوهه نهٔ شو.) او هرکله چه بنده د خپل نفس هیر کړی نو د هغې د مصلحتونو او فائدو نه غافله شی. او دا یې د هلاکت سبب اوګرزی. لکه چه د چا پټی یا باغ وی او هغه هیر کړی او د هغې خبر نهٔ اخلی نو خامخا به هغه ضائع شی. او د دے نه آمن هله حاصلیدے شی هرکله چه د الله تعالیٰ په ذکر ژبه هر وخت تړه او تازه ساتی. او ذکر د هٔ ته داسے خوږ شی لکه د سختے تندے په وخت کښې اوبهٔ او د لوږے په وخت کښې خوراک او د سختے ګرمئ او د سختے یخنئ په وخت مکان او جامه. بلکه د الله تعالیٰ ذکر د دے نه د زیات حقدار دے. ځکه چه د دے څیزونو نهٔ کیدل لو سره د بدن هلاکت دے ګوچه د زړهٔ او د روح د هلاکت په مقابله کښې هیڅ هم نهٔ دے. (۳۴) ذکر د بنده ترقی کوی، بستره باندے هم او بازار کښې هم، صحت کښې هم او بیمارئ کښې هم، نعمتونو او لذتونو سره مشغولئ کښې هم. او بل هیڅ داسے څیز نشته چه کوم هر وخت د ترقئ سبب ګرزی. تر دے چه د چا زړهٔ د ذکر په نور سره روښانه شی، هغه اوده هم د غافله شو کیدهٔ کونکو نه زیاته کیږی (۳۵) د ذکر نور د نیا کښې هم ورسره وی، او قبر کښې هم ورسره وی، او آخرت کښې به په پل صراط باندے مخکښې مخکښې تر ے ځی. د الله جل شانهٔ ارشاد دے أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاسِ كَمَن مَّثَلُهُ فِي الظُّلُمَاتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا (انعام ع ۱۵) "داسے کس کوم چه مړ وو

مړ یعنې ګمراه وو، بیا مونږ هغه ژوندے یعنې مُسلمان جوړ کړۀ. او دا ئے نُور مونږ ورکړۀ چه دے دغه نُور سره خلقو کښې ګرځی راګرځی یعنې هغه نُور هر وخت دۀ سره وی. آیا دا ئے کس به حالتی کښې د هغه کس په شان کیدے شی کوم چه د ګمراهئ په تیرو کښې ګیر وی چه د هغے نه اُوتو وتے نشی. ) پس اولنے کس مؤمن دے کوم چه په الله تعالیٰ ایمان لری او د هغه محبت او د هغهٔ مَعْرِفَت او د هغهٔ په ذکر روښانه دے. او دویم کس د دے خیزونو نه خالی دے. حقیقت دا دے چه دا نُور د پیرلوئ شان خیز دے. او هُم په دے کښې پوره کامیابی ده. ځکه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د دے په طلب او دُعا کښې زیا تو الے کولو او خپل هر هر جُز کښې نُور طلب کولو لکه چه حدیثونو کښې ګنړے دُعاګانے راغلے دی چه په هغے کښې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د دے دُعا فرمائیلے ده چه الله جل شانهٔ دِ څما غوږنه کښې، هډوکو کښې، پلو کښې، وینو کښې، غوښه کښې، غوږ کښې، سترګه کښې پورته، خکته، ښے، ګس، مخکښې، رستو نُور نُور کړی. تر دے چه دا دُعا ئے هم اُوکړه چه په خپله ما سَرنه پښنو پورے نُور کړے چه څما ذات نُور جوړ شی. د هغے نُور په اندازه اعمالو کښې نُورانیت راځی. تر دے چه د بعضو خلقو نیک عمل دا سے حالت کښې آسمان ته ځی چه په هغے د نمر په شان رڼا وی. او هُم دغه شان نُور به د هغوی مخونو یا نه ئے د قیامت په ورځ وی. ⑳ ذکر د تصوّف بنیادی اصول دے او د ټولو صوفیانو په ټولو طریقو کښې شته. چا د پاره چه د ذکر دروازه پرانستے شوه، هغهٔ د پاره الله جل شانهٔ ته د رسیدلو دروازه پرانستے شوه. او څوک چه الله جل شانهٔ ته اُورسیدهٔ، هغه چه څهٔ غواړی، مُومی. چه الله جل شانهٔ څخه د هیڅ خیز کمے نشته. ⑳ د بنیادم په زړهٔ کښې یو کُټ دے چه د الله تعالیٰ د ذکر نه علاوه په هیڅ خیز سره نهٔ ډکیږی. او کله چه ذکر په زړهٔ قبضه اُوکړی نو دا نه صِرف دغه کُټ ډکوی بلکه ذاکر کوُنکے بے د ماله مالداره کړی. او بغیر د قام قبیلے او ولے یے د خلقو په زړهٔ کښې عزتمنا کړی او بے سُلطنته یے بادشاه جوړ کړی. او څوک چه د ذکر نه غافله وی هغه سَرهٔ د مَال او دَولت، د قام قبیلے

او د حکومته ذلیله کیږي. (۳۹) ذکر خوارۀ وارۀ راغونډوي او راغونډ خوارۀ وارۀ کوي. لرې را نزدې کوي، او نزدې لرې کوي. خوارۀ وارۀ د راغونډولو مطلب دا دے چه د بنده په زړۀ کوم مختلف غمونه فکرونه، پریشانئ وي هغه لرې کړي او زړۀ کښې تسلّي پیدا کړي. او راغونډ خوارۀ وارۀ کولو مطلب دا دے چه بنده باندے کوم فکرونه راغونډ وي هغه خوارۀ وارۀ کړي. او د بنده کومے غلطئ او ګناهونه جمع شوي وي، هغه خورې ورې کړي. او کوم د شیطان لښکر چه بنده باندے مقرر دے هغه خور ورکړي. او اخرت چه کوم لرے دے نزدے کړي. او دنیا چه کومه نزدے ده لرے کړي. (۴۰) ذکر د بنیادم زړۀ د خوبه پاسوي. د غفلت نه بیدار وي، او زړۀ چه کله اوده وي نو خپلے ټولے فائدے ضائع کوي. (۴۱) ذکر یوه ونه ده چه په دے د معارفو میوه لګی. د صوفیانو په اصطلاح کښې د احوالو او د مقاماتو میوه پرے لګی. او چه څومره د ذکر ډیر والے وي، هغومره به د دغے ونے ویخ مضبوط وي. او څومره چه ویخ مضبوط وي هغومره به زیاته میوه پرے راځي (۴۲) ذکر هغه پاک ذات طرفته نزدے کوي چه د چا ذکر کوي. تردے چه هغهٔ سره ملګرتیا نصیب شي. لکه چه قران پاک کښې دي اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الَّذِیْنَ اتَّقَوْا (الله جل شانهٔ متقیانو سره دے) او حدیث شریف کښې راغلي دي اَنَا مَعَ عَبْدِیْ مَا ذَکَرَنِیْ (حق تعالیٰ د خپل بنده سره یم ترڅو پورے چه هغه ما یادوي.) یو حدیث کښې دي چه څما ذکر کونکي څما سري دي. څهٔ دوي د خپل رحمت نه نهٔ لرے کوم، کهٔ چرے دوي د خپلو ګناهونو نه توبه کوي نو څهٔ د دوي دوست یم. او کهٔ چرے دوي توبه اونهٔ باسي، څهٔ د دوي طبیب یم چه دوي به په پریشانو کښې اختہ کړم دپاره د دے چه د دغے ګناهونو نه یے پاک کړم. دغه شان چه د ذکر په وجه کومه د الله جل شانهٔ ملګرتیا نصیب کیږي، هغه داسے ملګرتیا ده چه د هغے برابره بله هیڅ ملګرتیا نشته. نهٔ هغه په ژبه بیانیدے شي، نهٔ لیکلو کښې راتلے شي. د هغے خوند او مزه هغه څوک پیژندے شي چا ته چه دا

نصیب شی. (اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِیْ مِنْهُ شَیْئًا) ۴۳ ذکر د غلاما نو آزادولو برابر دے
د مالُونو خرچ کولو برابر دے، د الله تعالیٰ په لار کښې دجهاد برابر دے د دیرو
روایتونو کښې د دے قِسمه مضامین تیر شوی هم دی او مخکښې هم راتلونکی
دی، ۴۴ ذکر د شکر وېخ دے. ځوک چه د الله تعالیٰ ذکر نهٔ کوی هغه شکر هم
نهٔ ادا کوی. یو حدیث کښې راغلی دی چه حضرت موسیٰ علیه السلام الله جل شانهٔ
ته عرض اُوکړهٔ چه تا په ما ډیر احسانات کړی دی. ما ته طریقه اُوښایه چه
څهٔ ستا ډیر شکر ادا کړم. الله جل جلالهٔ ارشاد اُوفرمایهٔ. څومره چه تهٔ څما
ذکر کوے، هغومره به شکر ادا کیږی. بل حدیث کښې د حضرت موسیٰ علیه السلام
دا درخواست بیان کړے شوے دے چه اے الله! ستا د شان مُناسب به
شکر څنګه ادا کیږی. الله جل جلالهٔ اُوفرمایل چه ستا ژبه هر وخت په ذکر
سره تروتازه وی. ۴۵ د الله تعالیٰ په نزد پرهیزګارو خلقو کښې زیات عزتمند
هغه خلق دی ځوک چه ذکر کښې هر وخت مشغول وی ځکه چه د تقویٰ آخری
حَد جنت دے او د ذکر آخری حد د الله تعالیٰ مَعِیَّت دے ۴۶ زړهٔ کښې یو
خاص قِسم سختی ده چه ذکر نه علاوه په هیڅ څیز سره نهٔ نرمیږی ۴۷ ذکر
د زړونو د مرضونو علاج دے. ۴۸ ذکر د الله تعالیٰ سره د دوستیٔ جرړه ده او
د ذکر نه غفلت هغهٔ سره د دُشمنیٔ جرړه ده. ۴۹ د الله تعالیٰ د ذکر برابر هیڅ
څیز د نعمتونو راخکونکے او د الله تعالیٰ د عذاب نه لرے کونکے نشته ۵۰ په
ذکر کونکو د الله تعالیٰ صلوٰة (رحمت) او د فرښتو صلوٰة (دعا) وی. ۵۱ ځوک
کهٔ داغواړی چه په دُنیا کښې و یم او د جنت باغونو کښې د ِ اُوسیږم. هغه د
د ذکر مجلسونو کښې کینی ځکه چه دا مجلسونه د جنت باغونه دی ۵۲ د ذکر
مجلسونه د فرښتو مجلسُونه دی. (تیر شوُو حدیثونو کښې دا مضمون په تفصیل
سره تیر شوے دے) ۵۳ الله جل شانهٔ ذکر کونکو بانَدے د فرښتو مخکښې
فخر کوی. ۵۴ ذکر بانَدے همیشه والے کونکے به جنت ته په خندا داخلیږی.
۵۵ ټول عملونه هم د الله تعالیٰ د ذکر د پارهٔ مقرر کړے شوی دی. ۵۶ ټولو
عملونو کښې هم هغه عمل بهتر دے په کوم کښې چه ذکر ډیر اُوکړے شی

په روژو کښې هغه روژه بهتره ده کوم کښې چه د ذکر ډیر والے وی. حج کښې هغه
حج غوره دے کوم کښې چه د ذکر ډیر والے وی. دغه شان د نورو عملونو د جهاد
وغیره حکم دے ۵۷ ذکر چه د اهم نفل دے، د نورو نفلی عباداتو قائم مقام
دے. لکه چه حدیث کښې راغلی دی چه غریبانانو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته شکایت
اوکړو چه دا مالدار خلق لوی لوی درجے حاصلوی. دوی روژو او مانځه
کښې مونږ سره شریک دی او د خپلو مالونو په وجه حج، عمره، جهاد کښې
هم مونږ نه وړاندے کیږی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه چه څهٔ تاسو ته
داسے څیز اوښایم چه په هغې به هیڅوک تاسو ته نشی رسیدے، مګر هغه
څوک چه دا عمل اوکړی. دے نه پس نبی کریم صلی الله علیه وسلم د هر مانځه نه پس
سُبْحٰنَ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَللهُ اَکْبَرُ وئیلو د پاره اوفرمایل (څنګه چه باب دریم،
فصل دویم، حدیث اووم کښې راغلی) چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم حج، عمرے، جهاد وغیره
د هرے عبادت بدل ذکر مقرر کړے دے ۵۸ ذکر د نورو عباداتو د پاره لوئی
مددګار دے چه د دے په ډیروالی سره هرے عبادت محبوب جوړیږی او د دے
عباداتو کښې پرے خوند راځی. او هیڅ یو عبادت کښې مشقت او بوجهٔ پاتے
نهٔ کیږی. ۵۹ د ذکر په وجه هر یو مشقت آسانیږی. او هر ګران څیز آسانیږی
او هر قسمه بوجهٔ سپکیږی او هر مصیبت لرے کیږی ۶۰ د ذکر په وجه
زړهٔ نه ویره ترهه لرے کیږی. د ویرے په ځای اطمینان پیدا کولو، او
ویره لرے کولو کښې د الله تعالی ذکر ته خصوصی دخل دے. او دا د ذکر خاص
اثر دے. څومره چه د ذکر کثرت وی، هغومره به اطمینان نصیب کیږی،
او ویره به لرے کیږی. ۶۱ د ذکر په وجه بنده کښې یو خاص قوت پیدا کیږی
چه د هغې په وجه داسے کارونه د ده نه کیږی چه کوم ګران ښکاری. نبی اکرم
صلی الله علیه وسلم خپلے لور حضرت فاطمه رضی الله عنها ته هر کله چه هغې د میچنې د مشقت او د
کاروبار د ګرانئ په وجه یو خدمتګار اوغوختلو، نو د اوده کیدو په وخت
کښې ورته د سُبْحَانَ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ درے دیرش درے دیرش ځله او اَللهُ اَکْبَرُ
څلور دیرش ځله وئیلو حکم فرمائیلے وو. او دا ارشاد ئے فرمائیلے وو چه دا

دخادم نه بهتر دے ﴿۶۲﴾ دآخرت دپاره کارکوُنکی تول منهٔ ے وَهی. خو په دے منځ کښ دذاکرینو دپاره دټولو نه مخکښ ده. عُمرمَولیٰ غُفره رحمة الله علیه نه نقل کړے شوی دی چه قیامت کښ کله چه خلقوته دعملونو ثواب ورکولے شی نو ډیرخلق به دغه وخت افسوس اُوکړی چه مونږ دذکراهتمام وَلے اُونکړو چه دا دټولو نه زیات اسان عمل وو. یوحدیث کښ دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے شوے دے چه مُفَرِّدِ خلق وړاندے لاړل. صحابو عرض اُوکړو چه مُفَرِّدِ خلق څوک دی؟ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمائیلو چه په ذکرځان قربانوُنکی چه ذکر دهغوی بارونه سپکوی ﴿۶۳﴾ دذکرکوُنکو الله جلّ شانهٔ تصدیق کوی او هغوی رښتینی گڼړی. اوچا ته چه الله تعالیٰ په خپله رښتینے اُووائی، دهغهٔ حشر درو غږنو سره نشی کیدے. حدیث کښ راغلی دی کله چه بنده لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ وائی نو الله جلّ شانهٔ فرمائی چه بنده رښتیا اُووے. ځما نه سوا هیڅوک دعبادت لائق نشته. او ځهٔ دټولو نه لوئی یم. ﴿۶۴﴾ په ذکرسره جنت کښ کورابادیږی. هرکله چه بنده ذکرنه منع شی نو فرښتے دجوړولو نه منع شی. کله چه هغوی ته اُووئیلے شی چه فلانئ ابادی تا سو ولے بند کړه. نو هغوی وائی چه دهغهٔ اباد ئ سامان لا تراُوسه راغلے نهٔ دے. یوحدیث کښ راغلی دی چه څوک سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيْمِ اُووائی. یوکُنبد دهٔ دپاره جنت کښ جوړکړے شی ﴿۶۵﴾ ذکردوزخ دپاره پرده ده. که چرے دچا بد عملئ په وجه دوزخ حقدارشی. نو ذکربه په مینځ کښ پرده جوړه شی. او څومره چه د ذکر ډیر ولے وی هغومره به پخه پرده وی ﴿۶۶﴾ ذکرکوُنکو دپاره فرښتے بخښنه غواړی. حضرت عَمروبنِ العَاص رضی الله عنه نه نقل کړے شوی دی چه کله بنده سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ وائی، یا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وائی نو فرښتے دُعاکوی چه اے الله! دهٔ بخښنه اُوکړے. ﴿۶۷﴾ په کوم غرباندی میدان چه دالله تعالیٰ ذکراُوکړے شی، هغه فخرکوی. حدیث کښ راغلی دی چه یوغر بل غرته اوازکوی او پوښتنه تر ے کوی چه څوک ذکرکوُنکے

نن په تا تیر شوے دی؟ که چرے هغه اُووائی چه تیر شوے دے نو هغه خوشاله شی. ۴۸ د ذکر کثرت د نِفاق نه د بَرِی کید و اطمینان را وَسَنَد دے ځکه چه الله جلّ شانهٔ د مُنافقانو دا صِفت بیان کړے دے لَا یَذْکُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا قَلِیْلًا (د ذکر نه کوی د الله تعالیٰ خو لږ شان) کَعب احبار نه نقل کړے شوی دی چه څوک په کثرت سره د الله تعالیٰ ذکر کوی هغه د نِفاق نه بَرِی دے ۴۹ د ټولو نیکو عملونو په مُقابله کښې د ذکر د پاره یو خاص مَزه ده چه هیڅ یو عمل کښې نشی مُوندلے کیدے. که چرے ذکر کښې د دے مزے نه ماسوا نور هیڅ فضیلت نه وے. نو هم بس دا خبره د دے د پاره کافی وه. مالِك بن دِینار فرمائی چه مزے اخستونکی هیڅ شی کښې هم د ذکر برابر مَزه نشی مُوندلے. ۵۰ د ذکر کوُونکو په مخ کښې په دُنیا کښې رَوڼا او آخرت کښې به نُور وی ۵۱ څوك چه په لارو او په کورونو کښې، سفر او مُقام کښې په کثرت سره ذکر کوی، قیامت کښې به د هغهٔ د پاره گواهی ورکوُونکی ډیر وی. الله جلّ شانهٔ د قیامت د وَرځے باره کښې فرمائی یَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ اَخْبَارَهَا هغه وَرځ به زمکه خپل خبرُونه بیانوی، نبی کریم ارشاد اُوفرمایهٔ پیژنئ د زمکے خبرونه څهٔ دی؟ صحابهٔ کرامو نا پوهی ښکاره کړه. نو نبی کریم ارشاد اُوفرمایهٔ چه چا تا ربینه ژنانه څهٔ کار په زمکه کړے وی، هغه به اُوښائی چه په فلانئ وَرځ په فلانی وخت یے په ما دا کار کړے دے (نیک وی یا بد) په دے وجه مختلف ځایونو کښې په کثرت سره ذکر کوُونکو گواهان هم ډیر وی ۵۲ ژبه چه څو مره ساعت په ذکر کښې مشغوله وی، فضولیاتو، دروغ، غیبت وغیره نه محفوظه وی. ځکه چه ژبه خو چپ پاتے کیدے نشی. یا به د الله تعالیٰ ذکر کښې مشغوله وی، کنی فضولیاتو کښې. دغه رنګے د زړهٔ حال دے. که چرے دِے د الله تعالیٰ په محبت کښې مشغول نشی نو د مخلوق په محبت کښې به اَخته شی ۵۳ شیطانان د بنیا دمو ښکاره دُشمنان دی او هر قِسمه په وار خطائی کښې اچوی او هر طرف یے گیر وی. د کوم کس چه دا حال وی چه د دهٔ دُشمنان هر وخت د دهٔ

چاپیره وی، ددهٔ چه کوم حال وی بنکاره دے۔ او دشمنان هم داسے چه هر یو د هغوی نه داغواری چه کوم قِسمه تکلیف رسولے شم، اَوس سوم دومره لښکرو لرے کوم کښے څیز د ذکرنه سِوا هیڅ نِشته. وېره وحدیثونوکښ وېرے دُعاګانے راغلی دی چه دهغے په وئیلو سره شیطان نزدے نهٔ شی راتلے. داُودهٔ کیدلئ په وخت وئیلو سرهٔ ټوله شپه په حفاظت کښ اُوسی.

حافِظ ابنِ قیّم رحمۃ اللہ علیہ هم داسے ګنړے دُعاګانے ذکرکړی دی. د دے نه علاوه یے شپږ نمبروکښ د ذکر د قِسمونو بیل باندے فضیلت او د ذکر بعضِ ګلی فضیلتونه ذکرکړی دی۔ او دے نه پس یے پنځه اَویا فصلونه خصوصی دُعاګانوکښ کومے چه خاص خاص وختونوکښ راغلی دی، ذکرکړی دی چه د اختصار په وجه م پریخودے. توفیق والو دپاره کومے چه ذکرکړے شوے داهم دکافی نه زیاتے دی. او چا تهٔ چه توفیق نهٔ وی هغهٔ دپاره په زرګونو فضائل هم بے کاره دی. وَمَا تَوْفِيْقِيْ اِلَّا بِاللّٰهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ ؕ

# دویم باب
# دکلمے طیّبے فضائِل

کلمه طیّبه چه ورته کلمهٔ توحید هُم وئیلے شی څومره دیره چه په قرآن مجید او حدیث شریف کښ ذکرشوے دهٔ، شایدکهٔ دومره دیرځه بل څیز ذکرکړے شوے وی۔ او هرکله چه اصل مقصود د ټولو شریعتونو او د ټولو نبیانو دراٴلیږلو نه توحید دے. نو بیا څومره چه دیر درے بیان وی نو هغه ددے مُناسب دے. قرآن مجید کښ په مختلفو عنوانانو او په مختلفو نومونو دا پاګه کلمه ذکرکړے شوے دهٔ. لکه چه کلمه طیّبه، قولِ ثابت، کلمهٔ تقوی، مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ (د آسمانو او د زمکو ګنجیانے) وغیره الفاظو سره ذکرکړے شوے دهٔ څنګه چه مخکښ ایتونوکښ راځی.

امامِ غزالی رحمۃ اللہ علیہ په اِحیاء کښې نقل کړې دی چه دا کلمهٔ توحید ده، کلمهٔ اخلاص ده، کلمهٔ تقوی ده، کلمهٔ طیبه عُرْوَةُ الْوُثْقٰى ده، دَعْوَةُ الْحَقِّ ده، ثَمَنُ الْجَنَّةِ ده. اوچونکه قرآن شریف کښې دا په مختلفو عنوانانو ذکر کړې شوې ده، دے دپاره دا باب هم په دریو فصلونو تقسیم کړۀ.

**اول فصل** کښې د هغې ایتونو ذکر دے، د کومو نه چه کلمه طیبه مراد ده او د کلمې طیبې لفظ په کښې نشته دے. په دے وجه د دغې ایتونو مختصر تفسیر هم د صحابه کرامو رضی اللہ عنہم او په خپله د سَيِّدُ الْبَشَرِ عَلَيْهِ أَفْضَلُ الصَّلَوٰتِ وَالتَّسْلِيْم نه نقل کړو.

**دویم فصل** کښې د هغې ایتونو حواله ده کومو کښې چه کلمه طیبه پوره یعنی لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ تول په تول ذکر کړې شوې ده. یا ځۀ لږ بدلون سره لکه لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ. اوچونکه په دے کښې دا کلمه په خپله موجوده ده، یا د دے ترجمه په نورو الفاظو سره ذکر کړې شوې ده. په دے وجه د هغې ایتونو د ترجمې ضرورت هم اُونۀ ګڼړلو، صرف په حواله د سورة او د رکوع سره بس والے اُوکړۀ. او

**دریم فصل** کښې د هغې حدیثونو ترجمه او مطلب ذکر کړې شوې کومو کښې چه د دے پاکے کلمې ترغیب او حکم کړې شوې دے. وَمَا تَوْفِيْقِيْ اِلَّا بِاللّٰهِ ؕ

## اوّل فصل

هغه ایتونه کښې کومو کښې چه لفظ د کلمې طیبې شته دے، او مراد ترے کلمه طیبه ده.

① اَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ اَصْلُهَا ثَابِتٌ وَّفَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ ۝ تُؤْتِيْٓ اُكُلَهَا

ایا تا ته معلومه نۀ ده چه الله تعالیٰ څنګه بۀ مثال بیان کړے دے د کلمې چه دا مشابه ده د یوې پاکې وَنې سره چه د هغې جرړه زمکه کښې ټینګه وی او ښاخونه یې اسمان

كُلَّ حِيْنٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا ۗ وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ○ وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيْثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيْثَةِ ۨ اجْتُثَّتْ مِنْ فَوْقِ الْأَرْضِ مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ ○

(ابراهيم ـ ع ۴)

طرف ته ځي او دغه ونه د الله تعالیٰ په حکم هر فصل کښې میوه ورکوي (یعنې بنده ترقي کوي) او الله تعالیٰ مثالونه ځکه بیانوي چه خلق پنه پوهه شي. او د خبیثې کلمې (یعنې کلمۀ کفر) مثال داسې دے لکه یو خرابه ونه وي چه هغه د زمکې د پاسه پاسه را اوبیستلې شي او هغې ته زمکه کښې هیڅ مضبوطوالے نه وي.

**فائده:-** حضرت ابنِ عباس رضی الله عنهما فرمائي چه د کلمۀ طیّبه نه کلمۀ شهادت اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُراد ده. چه د دے جرړه د مؤمن په قول کښې ده او د دے ښاخونه آسمان کښې وي چه د دے په وجه د مؤمن اعمال آسمانه پورے ځي. او کلمه خبیثه شرك دے چه په دے سره هیڅ عمل نه قبلیږي.

یو بل حدیث کښې ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي چه هر وخت میوه ورکولو مطلب دا دے چه الله تعالیٰ په شپه او ورځ هر وخت یادوي.

حضرت قتاده تابعي رحمة الله علیه نقل کوي چه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته چا عرض اوکړو. اے د الله رسوله! دے مالدارو خلقو (د صدقو او خیراتونو په وجه) ټول ثوابونه یوړل. نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمایل. دا خو راته اوښایه، که چرے څوك سامان لاندے باندے کیږدي، نو آیا آسمان ته به اوخیژي. څه تا ته داسے څیز اوښایم چه د هغې جرړه زمکه کښې وي او ښاخونه یې په آسمان کښې وي. د هر مانځه نه پس لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ وَسُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ لس لس وارے وایه. د دے جرړه زمکه کښې ده او ښاخونه یې په آسمان کښې دي.

(۲) مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيْعًا ۗ اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهٗ ۗ (فاطر ـ ع ۲)

څوك چه عزت حاصلول غواړي (هغه د الله تعالیٰ نه عزت حاصل کړي ځکه چه) ټول عزتونه الله تعالیٰ د پاره دي. هغه ته ښې کلمې رسي او نیك عملونه هغه رسوي.

**فائده:-** د ښو کلمونه مُراد د ډیرو مفسّرینو په نزد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دے. لکه

چه علماءِ مفسرینو نقل کړے ده - او دویم تفسیر یے دا دے چه له دے نه مراد تسبیح کلمات دی څنګه چه په دویم باب کښ به راشی۔

| | |
|---|---|
| ⑵ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا ط (انعام - ع ۱۴) | او ستا د رب کلمه د رښتیا والی او د انصاف (او د اعتدال) په اعتبار سره پوره ده۔ |

**فائده:-** حضرت انس رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه د رب کلمے نه مراد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ده او د اکثرو مفسرینو په نزد د دے نه کلام الله شریف مراد دے۔

| | |
|---|---|
| ⑷ يُثَبِّتُ اللهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِى الْاٰخِرَةِ ۚ وَيُضِلُّ اللهُ الظّٰلِمِيْنَ ۙ وَيَفْعَلُ اللهُ مَا يَشَآءُ ۠ (ابراهیم - ع ۴) | الله تعالیٰ مؤمنان په پخه خبره (یعنی په کلمه طیبه) دنیا او آخرت دواړو کښ مضبوط ساتی او کافران په دواړو جهانونو کښ ګمراه کوی او الله تعالیٰ (په خپل حکمت سره) څه چه غواړی کوی۔ |

**فائده:-** حضرت براء رضی الله عنه فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایه چه هر کله قبر کښ سوال اُوشی نو مسلمان به د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ ګواهی ورکوی۔ آیتِ کریمه کښ د پخے خبرے نه مراد هم دا کلمه ده. حضرت عائشه رضی الله عنها نه هم دا نقل کړے شوے ده چه له دے نه مراد د قبر سوال وجواب دے۔ حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه مسلمان کله مری. نو فرښتے هغه وخت حاضرے شی هغه ته سلام کوی، د جنت زیرے ورکوی. کله چه هغه مړ شی نو فرښتے هغه سره ځی، د هغه د جنازے مونځ کښ شریکیږی او کله چه دفن شی نو هغه کینوی. او د هغه نه سوال وجواب کیږی چه په هغے کښ ترے دا هم تپوس کولے شی. چه ستا ګواهی څه ده؟ هغه وائی اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ هم دا مراد دے آیت کریمه کښ. حضرت ابو قتاده رحمة الله علیه فرمائی چه دنیا کښ د پخے خبرے نه مراد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ دے. او اخرت کښ قبر سوال وجواب مراد دے. حضرت طاؤس رحمة الله علیه نه هم دا نقل کړے شوی دی۔

| | |
|---|---|
| ⑸ لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ | رښتنی بلل هم هغه د پاره خاص دی او د الله تعالیٰ |

وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ بِشَيْءٍ اِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ اِلَى الْمَآءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهٖ وَمَا دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ○ (رعد - ع ٢)

نه سِوا چه څوك دا خلق بَلى. هغوى د دهٔ درخواست له دے نه زیات نهٔ شي مَنظورولے خو مرهٔ چه اُوبهٔ ددے غ کَس درخواست منظوروی څوك چه خپل دواړه لاسونه اُوبو طرف ته خوارهٔ کړی (او هغه اُوبهٔ خپل طرف ته راغواړی) دپاره ددے چه ددهٔ خُلے ته راشی او هغه اُوبهٔ اُلوتلے) ددهٔ خُلے ته هیڅ کله راتلونکے نهٔ وی. او د کافرانو درخواست بیخی بے اَثره دے۔

**فائده:**- حضرت علی کَرَّمَ اللهُ وَجْهَهٗ فرمائی چه دَعْوَةُ الْحَقِّ نه مُراد تَوحِید یعنی لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ دے. حضرت ابنِ عباس رضی الله عنهما نه هم دا نقل دے چه دَعْوَةُ الْحَقِّ نه شهادت د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُراد دے۔ دغه ریکے دبے ده علاوه د نورو حضراتو نه هم دغسے نقل کړے شوی دی۔

⑥ قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍۢ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللهِ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ○ (آلِ عمران ع ٧)

(اے محمد صلی الله علیه وسلم) ته اُووایه چه اے اَهلِ کتابو! راشئ یو دا سے کلمے طرف ته، چه څمونږ او ستاسو ترمینځه (منلوکښ) برابر ده. هغه دا چه د الله تعالیٰ نه به سِوا مونږ د هیچا عبادت نهٔ کوو. او الله تعالیٰ سره به هیڅوك شریك نهٔ جوړوو. او څمونږ نه به هیڅوك بل څوك رَب نهٔ جوړوی چه الله تعالیٰ پریږدو، بیا دے نه پس هم که هغه اِعراض (رَدّه) اُوکړی نو ته اُووایه چه تاسو دے گواه اُوسئ چه مونږ خلق خو مسلمانان یو۔

**فائده:**- ددے اٰیتِ شریفه مضمون په خپله صَفا دے چه د کلمے نه مُراد توحید او کلمه طیبه ده. حضرت اَبُو الْعَالِیَه او مُجَاهِد رحمهما الله نه هم دا نقل دے چه د کلمے نه مُراد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ دے۔

⑦ كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ | (اے اُمت د محمد صلی الله علیه وسلم) تاسو د ټولو نه غوره

لِلنَّاسِ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ؕ وَلَوْ اٰمَنَ اَهْلُ الْكِتٰبِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ؕ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ وَاَكْثَرُهُمُ الْفٰسِقُوْنَ ○

(آلِ عمران ۔ ع ۱۲)

دخاوندانو نه) بهترین جماعت یئ. چه هغه جماعت خلقوته دفائدے رسولو دپاره ظاهر کړے شوے دے. تاسو خلق نیک کارونه ښایئ او دبد وخبرونه منع کوئ او په الله تعالیٰ ایمان لرئ. که چرے اهلِ کتابو هم ایمان راوړے وے نو هغوی دپاره بهتره وه ۔ د هغوی نه بعض خومسلمانان دی اکومو چه ایمان راوړه) خو ډیره حصه دهغوی نه کافران دی.

**فائده:-** حضرت ابنِ عباس رضی الله عنه فرمائی چه تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ (دښوخبرو حکم کوئی) مطلب دا دے چه دوے حکم کوئ چه هغوی دِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ گواهی ورکړی او دالله تعالیٰ دحکمونو اقرار اوکړی. او لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دټولو ښه خیزونو نه بهتر خیز دے او دټولو نه اعلیٰ دے.

(۹) وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ ؕ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ؕ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ ○

(هود ۔ ع ۱۰)

(او محمد صلی الله علیه وسلم) ته دمونځ پابندی کوه، دورځے دواړو سرونو پانسے او دشپے څه حصوکښ بیشکه نیک کارونه ورانوی (دعملنامے نه) بد وکارونه ۔ دا خبره یو نصیحت دے نصیحت منونکو دپاره.

**فائده:-** ددے آیتِ کریمه په تفسیرکښ ډیرحدیثونه راغلی دی چه په هغے کښ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا آیتِ شریفه وضاحت کړے دے. ارشاد فرمائی چه نیکئ (دعملنامے نه) بدئ ورانوی.

حضرت ابوذر رضی الله عنه فرمائی چه ما نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه ماته څه نصیحت اوکړئ. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمایل چه دالله تعالیٰ نه ویریږه اوکله چه درنه څه بدی اوشی، زر ورپسے څه نیکی اوکړه چه دهغے بدله اوکرزی. وهغه بدی لرے شی. ما عرض اوکړو، اے دالله رسوله! لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ هم نیکو کښ شماردہ؟ یعنی ددے وظیفے ددے ویل هم دیکښ داخل دی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم

ارشاد اُو فرمايه چه داخو په نيکوکښې افضل ترين څيز دے.

حضرت انس رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه څوك بنده شپه کښې يا وَرځ کښې کوم وخت چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اُووائی. د هغه د عملنامے نه بدئ اُوو ينځلے شی.

⑨ اِنَّ اللهَ يَاْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْاِحْسَانِ وَاِيْتَآئِ ذِي الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۝ (نحل. ع ۱۳)

بيشکه الله تعالیٰ حکم فرمائی د عدل او د احسان او خپلوانو ته د ورکړے. او منع کوی د بے حيائی د خبرونه او د بدو خبرونه او په چا ظلم کولو نه. الله تعالیٰ تاسو ته نصيحت کوی د دے د پاره چه تاسو نصيحت قبول کړئ.

**فائده**:- د عدل معنی تفسيرونو کښې مختلفے راغلی دی. يو تفسير د عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه هم نقل دے چه د عدل نه مراد د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اقرار کول دی. او د احسان نه مراد د فرائضو اداکول دی.

⑩ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ۝ يُّصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَمَنْ يُّطِعِ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا ۝ (احزاب. ع ۹)

اے ايماندارو! د الله تعالیٰ نه اُويريږئ، د راستئ رښتيا خبره وايئ. الله تعالیٰ به ستاسو عملونه ښه کړی او ګناهونه به مو معاف کړی او چه څوك د الله تعالیٰ او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم اطاعت کوی، هغه به لوئ کاميابئ ته اُورسيږی.

**فائده**:- حضرت عبدالله بن عباس او حضرت عِکرمه رضی الله عنهما دواړو حضراتو نه دا نقل کړے شوی دی چه د قَوْلًا سَدِيْدًا معنیٰ دا ده چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وايئ.

يو حديث کښې راغلی دی چه د ټولو نه زيات پاخه عملونه درے څيزونه دی. (اول) په هر حال کښې د الله تعالیٰ ذکر کول (غموی که خوشالی، تنګی وی که فراخی)، دويم د خان باره کښې د انصاف معامله کول (دا نه دی

چه په نورو خوزو ربنا ئی او هر کله چه څۀ خپله معامله راشی، نو بیا دِ اخوا دیخوا وانۀ ګوری) در یم رو ر سره مالی همدردی کوَل.

⑪ فَبَشِّرۡ عِبَادِۙ الَّذِيۡنَ يَسۡتَمِعُوۡنَ الۡقَوۡلَ فَيَتَّبِعُوۡنَ اَحۡسَنَهٗ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ هَدٰٮهُمُ اللّٰهُ وَاُولٰٓئِكَ هُمۡ اُولُوا الۡاَلۡبَابِ ○ (زمر، ع ۲)

پس ته خما دا سے بند ګانو ته زیرے ورکړه څوک چه دا کلامِ پاک بنۀ په توجُّه اوری. بیا د دے بهترینو خبرو تابعداری کوی. هم دادی چا ته چه الله تعالیٰ هدایت اوکړو. او هم دادی دعقل خاوندان.

**فائده:-** حضرت ابنِ عمر رضی الله عنه فرمائی چه حضرت سعید بن زید، حضرت ابوذر غفاری او حضرت سلمان فارسی رضی الله عنهم دے درے وارو حضراتو به دجاهلیت (یعنی دکفر) په زمانه کښ لَآ اِلٰهَ اِلَّا الله ویله. او هم دا مُراد دے ایتِ کریمه کښ د اَحۡسَنُ الۡقَوۡل نه. حضرت زید بنِ اسلم رضی الله عنه نه هم د دے قریب نقل دی چه دا ایتونه د هغے درے سړو پاره کښ نازل شوی دی، کوم چه دجاهلیت په زمانه کښ هم لَآ اِلٰهَ اِلَّا الله ویله. زید بن عمرو بن نفیل او ابوذر غفاری او سلمان فارسی رضی الله عنهم.

⑫ وَالَّذِىۡ جَآءَ بِالصِّدۡقِ وَصَدَّقَ بِهٖۤ اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُتَّقُوۡنَ ○ لَهُمۡ مَّا يَشَآءُوۡنَ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ ؕ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الۡمُحۡسِنِيۡنَ ○ لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنۡهُمۡ اَسۡوَاَ الَّذِىۡ عَمِلُوۡا وَيَجۡزِيَهُمۡ اَجۡرَهُمۡ بِاَحۡسَنِ الَّذِىۡ كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ ○ (زمر، ع ۴)

او کوم خلقو (چه د الله تعالیٰ له طرفه یا دهغهٔ درسُول له طرفه) رښتنی خبره راوړله او په خپله یے هم دهغے تصدیق اوکړو (رهغه یے رښتنی اوګڼله) نو دا خلق پرهیزګاره دی، دا خلق چه څۀ غواړی، دهغوی دپاره دهغوی پروردګار سره هرڅۀ شته، دا بدله ده دنیک کارکونکو. دے دپاره چه الله تعالیٰ دهغوی بد عملونه دهغوی نه لرے کړی (او مُعاف یے کړی) او دنیک کارونو بدله ورکړی.

**فائده:-** کوم خلق چه د الله تعالیٰ له طرفه راوړونکی دی هغه انبیاء علیٰ نبینا وعلیهم الصلوٰة والسلام دی. او کوم خلق چه دهغهٔ درسُول له طرفه راوړونکی

دی هغه علماے کرام دی. شَکَرَ اللهُ سَعْیَهُمْ.

دحضرت ابنِ عباس رضی الله عنه نه نقل دے چه ربیتنی خبرے نه مراد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ دے. بعضِ مفسرینو نه نقل کړے شوے دہ چه اَلَّذِیْ جَآءَ بِالصِّدْقِ رسُول چه ربیتنی خبره د الله له طرفه راوړی) نه مراد نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دے. او صَدَّقَ بِهٖ (هغه خلق چا چه دهغوی تصدیق اوکړه) نه مراد مؤمنان دی.

﴿۱۳﴾ اِنَّ الَّذِیْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا تَتَنَزَّلُ عَلَیْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِیْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ○ نَحْنُ اَوْلِیٰٓؤُكُمْ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا وَفِی الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَكُمْ فِیْهَا مَا تَشْتَهِیْٓ اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِیْهَا مَا تَدَّعُوْنَ ○ نُزُلًا مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِیْمٍ ○ (حٰمٓ السجدة. ع ۴)

بیشکه کومو خلقو چه اُووے چه خمونږ رَب الله (جل جلاله) دے. بیا مُسْتَقِیم پاتے شو (یعنی کلک ولاړ وو، هغه یے پرے نخود) په هغوی به فرښتے راکوزیږی (د مرګ په وخت او قیامت کښ دا به وائی) مه ویره کوئ، مه غم کوئ او زیرے واخلئ دهغے جنت چه د کوم تاسو سره وعدا کړے شوے ده. مونږ ستاسو ملګری وُو د دنیا په ژوند کښ هم، او آخرت کښ به هم درسره یُو. او آخرت کښ تاسو دپاره کوم څیز چه ستاسو زړهٔ غواړی هرڅهٔ موجود دی، او هلته چه څهٔ تاسو غواړئ هغه به درکولے شی. او دا تول (انعام او اکرام) په طور د میلمستیا دے د الله جل شانه له طرفه (چه تاسو به دهغهٔ میلمانهٔ یئ او د میلمه عزت کولے شی.)

**فائده:** حضرت ابنِ عباس رضی الله عنه فرمائی چه ثُمَّ اسْتَقَامُوْا معنیٰ دا ده چه بیا د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ په اقرار باندے قائم وی. حضرت ابراهیم او مجاهد رحمه الله نه هم دا نقل کړے شوی دی چه بیا په لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ باندے د مرګه پورے قائم پاتے شی. وشرك وغیره کښ اَخته نهٔ شی.

﴿۱۴﴾ وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَآ اِلَی اللهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ اِنَّنِیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ○

دخبرے دښهٔ والی په لحاظ سره کوم کس دهغه چانه ښهٔ کیدے شی څوك چه الله طرف ته رابلی او نیك عمل کوی او دا وائی چه حـ‍ـهٔ د

(حٰمٓ السجدة - ع ۵)

مُسلمانانو نه یم۔

**فائده:** حضرت حسن رضی الله عنه فرمائی چه دَعَآ اِلَی اللهِ نه دا ذان وَیونکی لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ویل مُراد دے. عَاصِم بن هُبَیرَه رحمة الله علیه فرمائی چه کله ته دَاذان نه فارغ شے نو لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَکْبَرُ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ وایه.

⑮ فَاَنْزَلَ اللهُ سَکِیْنَتَهٗ عَلٰی رَسُوْلِهٖ وَعَلَی الْمُؤْمِنِیْنَ وَ اَلْزَمَهُمْ کَلِمَةَ التَّقْوٰی وَکَانُوْآ اَحَقَّ بِهَا وَاَهْلَهَا (الفتح - ع ۳)

پس الله تعالیٰ خپله سکینه (سکون، تحمّل یا خاص رحمت) په خپل رَسُول نازل کړه او په مؤمنانو. او هغوی یے د تقوی د دے کلمے پابند (د تقوی په خبره) کلک اَوساتل او هم هغوی د دے تقوی د کلمے حقدار او اَهل وُو۔

**فائده:** د تقوی د کلمے نه مُراد ډیرو روایتونو کښ دا راغلے دے چه کلمه طیبه ده. لکه حضرت اَبو هُرَیره او حضرت سَلمه رضی الله عنهما د نبی کرم صلی الله علیه وسلم نه هم دا نقل کړے ده چه له دے نه مُراد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ دے. او حضرت اُبَی بن کَعْب، حضرت علی، حضرت عمر، حضرت ابن عباس، حضرت ابن عمر وغیره ډیرو صحابو رضی الله عنهم نه هم دا نقل کړے شوی دی. عَطا خُراسانی رحمة الله علیه نه پوره کلمه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ نقل کړے شوے ده. حضرت علی رضی الله عنه نه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ. اَللهُ اَکْبَرُ هم نقل کړے شوے دے. ترمذی رحمة الله علیه د حضرت بَرَاء رضی الله عنه نه نقل کړے دے چه له دے نه مُراد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ده۔

⑯ هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ ○ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ○ (رحمٰن - ع ۳)

وَلے دَ اِحسان بدله د احسان نه سوا نوره هم څۀ کیدے شی. پس (اے پیریانو او انسانانو!) تاسو به د خپل رَب د کومو کومو نِعمتونو نه مُنکریږئ۔

**فائده:** حضرت ابن عباس رضی الله عنه د نبی کرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه د اٰیتِ کریمه مطلب دا دے چه په کوم کس ما په دُنیا کښ د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ویلو انعام اوکړۀ. نو اٰخرت کښ د جنت نه سوا نوره څۀ بدله یے هم کیدے شی. حضرت عکرمه رضی الله عنه نه هم دا نقل دی چه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ د ویلو بدله د جنت نه سوا نوره هم څۀ

کیدے شی. حضرت حسن رضی الله عنه نه هم دا نقل کړے شوی دی.

(۱۷) قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى ۝ (اعلیٰ. ع ۱)

کامیابی ته اورسیدهٔ هغه کس چا چه تزکیه اوکړه (پاکی یے حاصله کړه.)

**فائده:-** حضرت جابر رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه تزکّی نه مراد دا دے چه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ګواهی ورکړی او بُتان پریږدی. حضرت عکرمه رضی الله عنه فرمائی چه د تزکّی معنیٰ دا ده چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اُووائی. دا د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم نقل کړے شوی دی.

(۱۸) فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى ۝ وَصَدَّقَ بِالْحُسْنٰى ۝ فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْيُسْرٰى ۝ (لیل. ع ۱)

پس چا چه (د الله تعالیٰ په لار کښ مال) ورکړو او الله تعالیٰ نه اُویریدهٔ، او د ښهٔ خبرے یے تصدیق اوکړهٔ نو اسانی به کړو مونږ د هغهٔ ته د اسانئ څیز د پاره.

**فائده:-** د اسانئ د څیز نه جنت مُراد دے چه هر قسمه خوشالی او اسانئ هلته حاصلے دی. بل مطلب دا دے چه د داسے اعمالو توفیق به هغهٔ ته ورکړو چه په هغے به هغه عملونه په اسانئ سره اوکړی کوم چه جنت ته زر رسَوُنکی وی. د اکثرو مفسرینو نه نقل کړے شوی دی چه دا ایت د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په شان کښ نازل شوے دے. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه د ښهٔ خبرے د تصدیق نه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ تصدیق مُراد دے. حضرت ابوعبدالرحمٰن سُلَمی رحمة الله علیه نه هم دا نقل کړے شوی دی چه د ښهٔ خبرے نه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُراد دے. حضرت امام اعظم رحمة الله علیه په روایت د ابوالزبیر رحمة الله علیه د حضرت جابر رضی الله عنه نه نقل کړی دی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى اُولوسته او ارشاد یے اوفرمایهٔ چه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ تصدیق اوکړی او كَذَّبَ بِالْحُسْنٰى اُولوسته او ارشاد یے اوفرمایهٔ چه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ تکذیب (یعنی دروغ. والے) اوکړی

(۱۹) مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۝ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰى اِلَّا مِثْلَهَا

څوک چه نیک کار کوی هغهٔ ته به (کم نه کم) لس چنده د ثواب ورکیږی. او څوک چه بد کار اوکړی هغهٔ ته به د هغے برابر بدله ورکیږی

وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ○ (انعام - ع ۲۰)

او په دغې خلقو به ظلم نه کیږی رچه څه نیکی اونه لیکلی شی یا بدی زیات او لیکلی شی.

**فائده:-** یو حدیث کښ راغلی دی چه کله آیتِ شریفه مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ نازل شو. نو چا عرض اوکړو، اے د الله رسوله! لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ هم نیکی کښ داخله ده. نبی کرم ﷺ ارشاد اوفرمایه چه دا خو د ټولو نیکو کښ ډیره بهتره ده. حضرت عبدالله بن عباس او حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما فرمائی چه حسنه نه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُراد دی. حضرت ابوهریره رضی الله عنه غالباً د نبی کرم ﷺ نه نقل کوی چه حسنه نه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُراد ده. حضرت ابوذر رضی الله عنه د نبی کرم ﷺ نه نقل کړی دی چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ خو د ټولو نیکو کښ بهتره ده، څنګه چه د اتم نمبر آیت د لاندې تیر شوی دی. حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه لس چنده ثواب د عوامو د پاره دے. مهاجرینو د پاره اووه سوه چنده پورے ثواب کیږی.

(۲۰) حٰمٓ ○ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ○ غَافِرِ الذَّنْبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ ذِى الطَّوْلِ ؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ○ (مؤمن - ع ۱)

دا کتاب نازل کړے شوے دے د الله تعالیٰ له طرفه چه زبردست دے، د هر څیز پیژندونکے دے، د ګناه بخښونکے دے او د توبې قبلونکے دے، سخته سزا ورکونکے دے. قدرت یا عطا یعنی دورکړے والا دے. د هغه نه سوا څوک د عبادت لائق نشته. هم هغه ته واپس ورتلل دی.

**فائده:-** د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه د دے آیت شریفه په تفسیر کښ نقل کړے شوی دی چه د ګناه بخښونکے دے د هغه کس د پاره څوک چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وائی. او د توبه قبلونکے دے د هغه کس څوک چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وائی. سخته سزا ورکونکے دے هغه کس ته څوک چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ نه وائی. ذِى الطَّوْلِ معنیٰ غنا والا دے ریعنی غنی دے) لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ رد دے د قریشو کافرانو باندې کوم چه د توحید منونکی نه وو. او اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ معنی هم هغه طرف ته واپس تلل دی د هغه کس څوک چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وائی، د دے د پاره چه هغه جنت کښ داخل کړی. او هم هغه طرف ته واپس تلل دی د هغه کس چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ نه

وانی دے دپاره چه هغه دوزخ کښې داخل کړی۔

| | |
|---|---|
| (۲۱) فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى لَا انْفِصَامَ لَهَا ۔ (بقره۔ ع ۳۴) | پس کوم کس چه د شیطان نه بد اعتقاده شی (یعنی انکار او کړی) او په الله تعالیٰ ایمان اوړی نو هغه لویه مضبوطه کړئ اُونیوله، چه د هغې هیڅ کله ماتیدل نشته۔ |

**فائده**:۔ حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه عُرْوَةُ الْوُثْقٰى (مضبوطه کړئ) اُونیوله یعنی لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ئے اُوویله۔ د سُفیان رحمة الله علیه نه هم دا نقل ده چه د عُرْوَةُ الْوُثْقٰى نه مُراد کلمهٔ اخلاص ده۔

**تکمیل** قُلْتُ وَقَدْ وَرَدَ فِيْ تَفْسِيْرِ اٰيَاتٍ اُخَرَ عَدِيْدَةٍ اَيْضًا اَنَّ الْمُرَادَ بِبَعْضِ الْاَلْفَاظِ فِيْ هٰذِهِ الْاٰيَاتِ كَلِمَةُ التَّوْحِيْدِ عِنْدَ بَعْضِهِمْ فَقَدْ قَالَ الرَّاغِبُ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى فِيْ قِصَّةِ زَكَرِيَّا مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ قِيْلَ كَلِمَةُ التَّوْحِيْدِ وَكَذَا قَالَ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ الْاٰيَةَ قِيْلَ هِيَ كَلِمَةُ التَّوْحِيْدِ وَاقْتَصَرْتُ عَلٰى مَا مَرَّ لِلْاِخْتِصَارِ۔

## دویم فصل

(دے فصل) کښې د هغه ایتونو ذکر دے کوم کښې چه کلمه طیّبه ذکر کړے شوے ده۔ ویرو ځایونو کښې پوره کلمه ذکر ده۔ او چرته مختصره او چرته نورو الفاظو کښې بعینه د کلمے طیّبے معنیٰ ذکر ده چه کلمه طیّبه (د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ) معنیٰ ده د الله تعالیٰ نه سوا هیڅوک د عبادت لائق نشته، هم دا معنیٰ د مَا مِنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ده۔ چه د هغهٔ نه سوا هیڅوک د عبادت لائق نشته۔ هم دا معنیٰ د لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ده۔ او هم دا معنیٰ قریب ده د لَا نَعْبُدُ اِلَّا اللّٰهَ چه مونږ د الله تعالیٰ نه سوا د هیچا عبادت نهٔ کوو۔ او هم دا معنیٰ ده د لَا نَعْبُدُ اِلَّا اِيَّاهُ چه مونږ د هغهٔ نه سوا د هیچا عبادت نهٔ کوو۔ د غسے د اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ معنیٰ ده د هغهٔ نه سوا نشته چه معبود (د عبادت لائق) هُم هغه یو دے۔ دا رنګے نور ایتونه هم دی چه د هغې مفهوم (منشاء) د کلمے طیّبے د معنیٰ په شان ده۔ د هغې ایتونو

دسورتونو او درکوع گانو حواله په دے وجه لیکلے شی چه دپوره آیت ترجمه
څوك کتل غواړی، نو د ترجمے قرآن شریف دخپل مخکښ کیږدی، په حوالو سره
د اُوګوری. او حق خو دا دے چه ټول قرآن مجید د کلمے طیّبے مفهوم دے چه
اصل مقصد د ټول قرآن مجید او د ټول دین هم توحید دے. د توحید د تعلیم
دپاره مختلفو زمانو کښ مختلف انبیاء علیهم السلام راليږلے شوی دی. توحید ټولو
مذهبو نو کښ یو شان دے او د توحید ثابتولو دپاره مختلف عنوانات
اختیار کړے شوی دی، او هم دا مفهوم د کلمے طیّبے دے.

① وَإِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ ﴿سورۃ بقرہ۔ ع ۱۹﴾
② اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴿سورۃ بقرہ۔ ع ۳۴﴾ ③ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ
الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴿آل عمران۔ ع ۱﴾ ④ شَهِدَ اللّٰهُ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَأُولُوا
الْعِلْمِ ﴿آل عمران۔ ع ۲﴾ ⑤ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿آل عمران۔ ع ۲﴾ ⑥ وَمَا
مِنْ إِلٰهٍ إِلَّا اللّٰهُ وَإِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿آل عمران۔ ع ۶﴾ ⑦ تَعَالَوْا إِلٰى كَلِمَةٍ
سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللّٰهَ ﴿آل عمران۔ ع ۷﴾ ⑧ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ
لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ﴿سورۃ نساء۔ ع ۱۱﴾ ⑨ وَمَا مِنْ إِلٰهٍ إِلَّا إِلٰهٌ وَّاحِدٌ
﴿سورۃ مائدہ۔ ع ۱۰﴾ ⑩ قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ ﴿سورۃ انعام۔ ع ۲﴾ ⑪ مَنْ إِلٰهٌ غَيْرُ
اللّٰهِ يَأْتِيكُمْ بِهِ ﴿سورۃ انعام۔ ع ۵﴾ ⑫ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ ﴿انعام۔ ع ۳﴾
⑬ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ﴿انعام۔ ع ۱۳﴾ ⑭ قَالَ أَغَيْرَ اللّٰهِ
أَبْغِيكُمْ إِلٰهًا ﴿اعراف۔ ع ۱۶﴾ ⑮ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ ﴿اعراف۔ ع ۲۰﴾
⑯ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلٰهًا وَّاحِدًا لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ ﴿توبہ۔ ع ۵﴾ ⑰ حَسْبِيَ
اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ﴿توبہ۔ ع ۱۶﴾ ⑱
ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ﴿یونس۔ ع ۱﴾ ⑲ فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ
﴿یونس۔ ع ۴﴾ ⑳ قَالَ اٰمَنْتُ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا الَّذِيٓ اٰمَنَتْ بِهِ بَنُوٓا إِسْرَآئِيلَ
وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿یونس۔ ع ۹﴾ ㉑ فَلَآ أَعْبُدُ الَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِنْ
دُونِ اللّٰهِ ﴿یونس۔ ع ۱۱﴾ ㉒ فَاعْلَمُوٓا أَنَّمَآ أُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ وَأَنْ لَّا إِلٰهَ
إِلَّا هُوَ ﴿ہود۔ ع ۲﴾ ㉓ أَنْ لَّا تَعْبُدُوٓا إِلَّا اللّٰهَ ﴿ہود۔ ع ۳﴾ [۲۴۔ ۲۵۔ ۲۶] قَالَ

يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ (هود. ع ۵، ۶، ۸، ۱۰) ۲۷ ءَاَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُوْنَ
خَيْرٌ اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ (يوسف. ع ۵) ۲۸ اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ (يوسف ع ۵)
۲۹ قُلْ هُوَ رَبِّيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ (رعد. ع ۴) ۳۰ وَلِيَعْلَمُوْٓا اَنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ (ابراهيم
ع ۷) ۳۱ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاتَّقُوْنِ (نحل. ع ۱) ۳۲ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ (نحل ع ۳)
۳۳ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ (نحل. ع ۷) ۳۴ وَلَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ (بنی اسرائیل ع ۴)
۳۵ قُلْ لَّوْ كَانَ مَعَهٗٓ اٰلِهَةٌ كَمَا يَقُوْلُوْنَ (بنی اسرائیل. ع ۵) ۳۶ فَقَالُوْا رَبُّنَا رَبُّ
السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَنْ نَّدْعُوَا مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلٰهًا (کهف. ع ۲) ۳۷ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمُنَا
اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً (کهف. ع ۲) ۳۸ يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ
(کهف. ع ۱۲) ۳۹ وَاِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ (مريم. ع ۲) ۴۰ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا
هُوَ (طٰه. ع ۱) ۴۱ اِنَّنِيْٓ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدْنِيْ (طٰه. ع ۱) ۴۲ اِنَّمَآ اِلٰهُكُمُ
اللّٰهُ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ (طٰه. ع ۵) ۴۳ لَوْ كَانَ فِيْهِمَآ اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا
(انبیاء. ع ۲) ۴۴ اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً (انبیاء. ع ۲) ۴۵ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ
اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا (انبیاء. ع ۲) ۴۶ اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ مِّنْ دُوْنِنَا (انبیاء. ع ۳)
۴۷ اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكُمْ شَيْئًا وَّلَا يَضُرُّكُمْ (انبیاء. ع ۵)
۴۸ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ (انبیاء. ع ۶) ۴۹ اِنَّمَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ
وَّاحِدٌ (انبیاء. ع ۷) ۵۰ فَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَلَهٗٓ اَسْلِمُوْا (حج. ع ۵) ۵۱ - ۵۲
اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ (مؤمنون. ع ۲) ۵۳ وَمَا كَانَ مَعَهٗ مِنْ اِلٰهٍ
(مؤمنون. ع ۵) ۵۴ فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ (مؤمنون. ع ۶) ۵۵ وَمَنْ
يَّدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهٗ بِهٖ فَاِنَّمَا حِسَابُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ (مؤمنون. ع ۶)
۵۶ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ (پنځه واره د سورة نمل په پنځمه رکوع کښې راغلي دي.) ۵۷ وَهُوَ
اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لَهُ الْحَمْدُ (قصص. ع ۷) ۵۸ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ
(قصص. ع ۷) ۵۹ وَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ (قصص. ع ۹) ۶۰ وَاِلٰهُنَا
وَاِلٰهُكُمْ وَاحِدٌ (عنکبوت. ع ۵) ۶۱ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ (سورة فاطر. ع ۱)

له د ځینې د سورة قصص او ومه رکوع کښې دا ایت هم راغلی دے مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ
له د فضائل ذکر په نسخو کښې وَاِلٰهُنَا اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ليکلي شوي دي خو چې د کوم ايت حواله
ورکړې شوې ده په هغې کښې د اِلٰهُكُمْ نه پس اِلٰهٌ ورسره نشته نو ځکه مونږ دا لفظ حذف کړو ۱۲ م

(٦٢) إِنَّ إِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ (صافات ع ١) (٦٣) إِنَّهُمْ كَانُوٓا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يَسْتَكْبِرُونَ (صافات ع ٢) (٦٤) أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلٰهًا وَّاحِدًا (ص ع ١) (٦٥) وَمَا مِنْ إِلٰهٍ إِلَّا اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ (ص ع ٥) (٦٦) هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ (زمر ع ١) (٦٧) ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ (زمر ع ١) (٦٨) لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ إِلَيْهِ الْمَصِيرُ (مؤمن ع ١) (٦٩) لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَأَنّٰى تُؤْفَكُونَ (مؤمن ع ٧) (٧٠) هُوَ الْحَيُّ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَادْعُوهُ (مؤمن ع ٧) (٧١) يُوحٰٓى إِلَيَّ أَنَّمَآ إِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ (حم سجده ع ١) (٧٢) أَلَّا تَعْبُدُوٓا إِلَّا اللّٰهَ (حم سجده ع ٢) (٧٣) اللّٰهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ (شورى ع ٢) (٧٤) رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا (دخان ع ١) (٧٥) أَجَعَلْنَا مِنْ دُونِ الرَّحْمٰنِ آلِهَةً يُّعْبَدُونَ (زخرف ع ٤) (٧٦) لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ (دخان ع ١) (٧٧) أَلَّا تَعْبُدُوٓا إِلَّا اللّٰهَ (احقاف ع ٣) (٧٨) فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ (محمد ع ٢) (٧٩) وَلَا تَجْعَلُوا مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ (ذاريات ع ٣) (٨٠) هُوَ اللّٰهُ الَّذِي لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ (حشر ع ٣) (٨١) إِنَّا بُرَآءُ مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ (ممتحنه ع ١) (٨٢) اللّٰهُ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ (تغابن ع ٢) (٨٣) رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ (مزمل ع ١) (٨٤) لَآ أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ وَلَآ أَنْتُمْ عٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ (سورة كافرون) (٨٥) قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ (سورة اخلاص)

دا پنځه اتیا آیتونه دي کومو کښې چه کلمه طیبه یا د دې مضمون راغلې دې له دینه علاوه نور آیتونه هم ډیر موجود دي په کومو کښې چه د دې کلمې طیبې معنی او مفهوم راغلې دې. او څنګه چه ما د دې فصل په شروع کښې لیکلي دي چه هم توحید اصل دین دې. په دې وجه څومره چه په دیکښې په شوق و محبت سره مشغولیدل وي، دین کښې به پوخوالی پیدا کیږي. ځکه یې دا مضمون مختلفو عباراتو کښې په مختلفو طریقو ذکر فرمایلې دې چه و زړه په مینځ کښې کوږشي او د دننه زړه کښې بیخ شي. او زړه کښې د الله تعالی نه ماسوا هیڅ ځای باقي پاتې نشي.

# دریم فصل

د دې فصل کښې د هغې حدیثونو ذکر دې کومو کښې چه د کلمې طیبې ترغیب

او فضائل ذکر کړے شوی دی. دِے مضمون کښې چه هر کله ایتونه دومره دیر ذکر کړے شوی دی، نو د حدیثونو به څهٔ وایے. د ټولو راجمع کول ګران دی. په دے وجه څو حدیثونه په طور د نمونے ذکر کولے شی.

① عَنْ جَابِرٍ رضی اللہ عنہ عَنِ النَّبِيِّ صلی اللہ علیہ وسلم قَالَ اَفْضَلُ الذِّكْرِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَفْضَلُ الدُّعَآءِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ.

د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه ټولو ذکرونو کښې بهتر لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دے او ټولو دعاګانو کښې بهتره اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ده.

(کذا فی المشکوٰة بروایة الترمذی وابن ماجة وقال المنذری رواه ابن ماجة والنسائی و ابن حبان فی صحیحه والحاکم کلهم من طریق طلحة بن خراش عنه وقال الحاکم صحیح الاسناد قلت رواه الحاکم بسندین وصححهما واقره علیهما الذهبی وکذا رقم له بالصحة السیوطی فی الجامع.)

**فائده:-** لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَفْضَلُ الذِّكْرِ کرکیدل خوښکاره ده. او ډیرو حدیثونو کښې په کثرت سره راغلے ده. دغه شان د ټول دین دارومدار په کلمهٔ توحید دے نو بیا د دے افضل کیدلو کښې څهٔ شک وشبه ده. او اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ته یے افضله دُعا په دے لحاظ فرمایلے ده چه د کریم (سخی) د تعریف مطلب هغهٔ نه سوال وی، عام مُشاهده ده (یعنی لیدلے کتلے خبره ده) چه د چا رئیس، امیر، نواب تعریف کښې د قصیدے ویلو مطلب هم د هغهٔ نه سوال وی.

حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہما فرمائی چه څوک لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اُووائی دے نه پس هغهٔ ته اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ هم ویل پکار دی ځکه چه قرآن شریف کښې فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ نه پس اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ راغلے دے. مُلّا علی قاری رحمة اللہ علیہ فرمائی چه په دے کښې ذره هم شک نشته چه ټولو ذکرونو کښې بهترا و د ټولو نه زیات اُوچت ذکر کلمه طیبه ده. چه هم داد دین هغه بُنیا د دے په کوم باندې چه د ټول دین تعمیر دے. او دا هغه پاکه کلمه ده چه د دین ویجن د دے نه ګیر چا پیره ګرزی. په دے وجه صوفیان او عارفین د دے کلمهٔ طیبه د اهتمام کوشش کوی، او ټولو ذکرونو کښې دا غوره ګنړی او هم د دے چه څومره ممکنه وی دیر وائے کوی چه د تجربے نه دِے کښې څومره ډیرے فائدے او نفع معلومے شوی دی بله کلمه کښې نشته. لکه:-

دَ سَیّد عَلِی بنِ مَیمُون مَغرِبی رحمۃ اللہ علیہ قصه مشهوره ده چه هرکله شیخ عُلوَان حَمَوی رحمۃ اللہ علیہ کوم چه یو مُتَبَحِّر (دیر اُوچت) عالِم او مُفتی او مُدَرِّس وو، دَ سَیّد صاحب خدمت کښِ حاضر شو او دَ سَیّد صاحب په هغهٔ خصوصی تَوَجُّه اُوشوه، نو هغه یے د ټولو مَشَاغلو درس او تدریس فتویٰ وغیره نه منع کړو. او ټول وخت یے ورله په ذکر کښِ مشغول کړو. دَ عوامو خو کار اعتراض او کنځل کول دی. خلقو پرے شور جوړ کړهٔ چه دَ شیخ د فائدو نه یے دُنیا محرومه کړه او شیخ یے ضائع کړو وغیره وغیره. څهٔ وَرځے پس سَیّد صاحب ته معلومه شوه چه شیخ څهٔ وخت دَ قرآن شریف تلاوت کوی. سَیّد صاحب د هغے نه هم منع کړو، نو بیا خو څهٔ تپوس کوے؟ په سَیّد صاحب دَ زِندیقئ (مُلحِد) او دَ بے دینئ الزام اُولګیدهٔ. څو وَرځے پس په شیخ دَ ذکر اثر اُوشو او زړهٔ یے رنګ شو. نو سَیّد صاحب ورته اُوفرمایل چه اُوس تلاوت شروع کړه. قرآن شریف چه یے پرانستو، نو په هر یو لفظ باندے ورته هغه علوم او مَعَارِف ښکاره شول چه څهٔ به یے وایے. سَیّد صاحب ورته اُوفرمایل چه ما الله مکره تلاوت منع کړے نهٔ وو بلکه دا خیز مے پیدا کول غوختل.

چونکه دا پاک کلمه دَ دین اصل دے، دَ ایمان جرړه ده. په دے وجه څومره چه دَ دے ډیر وِرد اُوکړے شی هغومره به دَ ایمان جرړه مضبوطه شی. دَ ایمان دار و مدار هم په دے کلمه دے بلکه دَ دُنیا دَ وجود دار و مدار هم په دَ دے کلمه دے. لکه صحیح حدیث کښِ راغلی دی چه قیامت به تر هغے وخته پورے نهٔ قائمیږی، تر څو چه څوک لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَیُونکے په زمکه موجود وی. نورو حدیثونو کښِ راغلی دی، تر څو چه څوک اَللّٰه اَللّٰه وَیُونکے دَ زمکے په مخ موجود وی قیامت به نهٔ راځی.

(۲) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ رضی اللہ عنہ عَنِ النَّبِیِّ صلی اللہ علیہ وسلم اَنَّهٗ قَالَ قَالَ مُوْسٰی علیہ السلام یَا رَبِّ عَلِّمْنِیْ شَیْئًا اَذْکُرُکَ بِهٖ وَاَدْعُوْکَ

دَ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه یو وارے حضرت موسیٰ علیہ السلام دَ الله جل جلاله پاک دربار کښِ عرض اُوکړهٔ چه ما ته څهٔ وظیفه اُوښایه چه په هغے څهٔ تا یادوم او تا پرے

بِهٖ قَالَ قُلْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ يَارَبِّ كُلُّ عِبَادِكَ يَقُوْلُ هٰذَا قَالَ قُلْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ اِنَّمَا اُرِيْدُ شَيْئًا تَخُصُّنِيْ بِهٖ قَالَ يَامُوْسٰى لَوْ اَنَّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعَ وَالْاَرَضِيْنَ السَّبْعَ فِيْ كِفَّةٍ وَّلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فِيْ كِفَّةٍ مَّالَتْ بِهِمْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔

بَلَم۔ دالله تعالیٰ ارشاد اُوشو چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وايه۔ ده عرض اُوکړه، اے پروردګاره! دا خو ټوله دُنيا وائی۔ ارشاد اُوشو چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وايه۔ عرض يے اُوکړه څه اربه! څه خو ځانله داسے مخصوص څيز غوارم چه بس ماته راکړے شی۔ ارشاد اُوشو، که چرے اُووه اسمانونه او اُووه زمکے (د تلے) يو چا برې کښ کيخودلے شی او بل طرف ته لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ کيخودلے شی نو لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ والا چابرې به دروند شی۔

(رواه النسائی وابن حبان والحاکم کلهم من طريق دراج عن ابی الهيثم عنه وقال الحاکم صحيح الاسناد کذا فی الترغيب قلت قال الحاکم صحيح الاسناد ولم يخرجاه واقره عليه الذهبی واخرج فی المشکوٰة برواية شرح السنة نحوه زاد فی منتخب الکنز ابا يعلیٰ والحکيم وابانعيم فی الحلية والبيهقی فی الاسماء وسعيد بن منصور فی سننه وفی مجمع الزوائد رواه ابو يعلیٰ ورجاله وثقوا وفيهم ضعف)

**فائده:-** دالله تعالیٰ عادتِ شريفه دا دے چه کوم څيز څومره قدرے د ضرورت وی هغومره يے عام ورکوی۔ دُنيوی ضرورتونو کښ اُوګورئ چه ساه، اُوبه، هوا څومره عام د ضرورت څيزونه دی۔ الله جلّ جلاله دا څومره عام کړی دی۔ البته دا ضروری څيز دے چه دالله تعالیٰ په نزد وزن د اخلاص دے څومره قدرے چه په اخلاص يو کار اُوکړے شی هغومره به وزنی (او دروند) وی۔ او څومره قدرے چه د اخلاص کمی وی او ناخوالئ سره اُوکړے شی هغومره به سپک وی۔ اخلاص پيدا کولو دپاره هم چه څومره قدرے فائده مند دا دے کلمه ډيروالے دے هغومره بل څيز نشته چه دا دے کلمه نوم جِلَاءُ الْقُلُوْبِ (د زړونو صفائی) ده۔ هم په دے وجه حضرات صوفيه دا دے وظيفه ډيره ډيره بنائی۔ او په سوګونو نه بلکه د زرګونو په مقدار کښ ئے روزانه معمول تجويز کړی۔

مُلّا علی قاری رحمة الله عليه فرمائی چه يو مُريد خپل شيخ ته عرض اُوکړه چه څهٔ ذکر کوم خو زړهٔ مے غافله وی۔ هغوی ورته اُوفرمايل چه ذکر برابر کوه او په

رے د الله تعالیٰ شکر کوه چه هغه یو انداِم یعنی ژبے ته دخپل یاد توفیق ورکړو او الله تعالیٰ نه د زړهٔ د توجُه د پاره دُعا کوه. د دے قِصے واقعه اِحیاءُ العُلوم کښې هم د اَبُو عُثمان مَغربی رحمۃ اللہ علیہ مُتعلق نقل کړے شوے ده چه هغهٔ ته یو مُرید شکایت کړے وو چه په هغے یے ورله د اجواب ورکړے وو. په حقیقت کښې بهترینه نُسخه ده. قرآن شریف کښې ارشاد دے، که چرے تاسو شکر کوئ نو خامخا پکښې زیادت کوم. یو حدیث کښې راغلی دی چه د الله تعالیٰ ذکر د هغه لوئ نعمت دے، د دے شکر ادا کوئ چه الله تعالیٰ د ذکر توفیق درکړو.

(۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ اَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِكَ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ ظَنَنْتُ یَا اَبَا هُرَیْرَةَ اَنْ لَّا یَسْئَلُنِیْ عَنْ هٰذَا الْحَدِیْثِ اَحَدٌ اَوَّلُ مِنْكَ لِمَا رَاَیْتُ مِنْ حِرْصِكَ عَلَی الْحَدِیْثِ اَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِیْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ خَالِصًا مِّنْ قَلْبِهٖ اَوْ نَفْسِهٖ.

حضرت ابو هُریره رضی الله عنه یو وار دے نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه اوکړه چه ستاسو د شفاعت د ټولو نه زیات فائده اوچتونکے به د قیامت په ورځ څوك وی؟ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایهٔ چه په حدیثونو ستا حرص لیدهٔ نو دا م گمان وو چه د دے خبرے به تا نه وړاندے بل څوك تپوس نه کوی. بیا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د سوال جواب ارشاد اوفرمایهٔ چه د ټولو نه زیات سعادتمند او فائده اوچتونکے زما شفاعت نه به هغه کس وی چه د زړهٔ په اخلاص سره لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وائی.

(رواه البخاری وقد اخرج الحاکم بمعناه وذکر صاحب بهجة النفوس فی الحدیث اربعا وثلثین بحثا)

**فائده:** سعادت د الله تعالیٰ هغه توفیق ته وائی چه د ښنا خیر طرف ته د رسولو سبب اوګرزی. اوس په اخلاص سره د کلمے طیبے ویونکو د ټولو نه زیات د شفاعت حقدار کیدو د وه مطلبه کیدے شی. یو خو دا چه د دے حدیث نه هغه کس مراد دے چه اخلاص سره مُسلمان شوے وی او بل هیڅ نیك عمل سوا د کلمه طیبه ویلو هغهٔ سره نهٔ وی، په دے حالت کښې ښکاره ده چه د ټولو نه زیات سعادت د وه ته شفاعت سره حاصلیدے شی چه خپل ورځنه څه عمل نشته.

د دې مطلب موافق د احاديث د هغې حديثونو نزدې نزدې به شي کوم کښې چه ارشاد دے چه زما شفاعت زما د اُمت کبيره (لويو) گناهونو والو د پاره دے چه هغوی به د خپلو عملونو په وجه دوزخ کښې اچولے شي. خو د کلمې طيبې له برکته د نبي اکرم ﷺ شفاعت به هغوی ته نصيب شي. دوېم مطلب دا دے چه د دې حقدار هغه خلق دي چه په اخلاص د دې کلمې وظيفه کوي او نيک عملونه کوي، د هغوی د ټولو نه زيات سعادتمند کيدو مطلب دا دے چه زيات ته فائده به د نبي اکرم ﷺ د شفاعت نه دوی ته رسي چه د درجو د ترقئ سبب به يې جوړيږي.

علامه عينی رحمة الله عليه ليکلي دي چه د نبي اکرم ﷺ شفاعت به د قيامت په ورځ په شپږو طريقو وي.

**اوّل** به د ميدانِ حشر د قيدو نه د خلاصئ وي چه حشر کښې به ټول مخلوق قِسما قِسم مُصيبتو کښې پريشان حاله وي، دا به وائي چه مونږ د دوزخ کښې واچولے شو خو چه د دې مُصيبتونو نه خلاص شو. د غه وخت به د لوئ مرتبې نبيانو په خدمت کښې وار په وار حاضري اوشي چه تاسو الله تعالیٰ ته زمونږ سفارش اوکړئ خو هيچا به طاقت نه وي چه سفارش اوکړي. په آخر کښې به نبي اکرم ﷺ شفاعت اوکړي. دا شفاعت به د ټول عَالَم د ټول مخلوق پيريانو او انسانانو، مُسلمانانو او د کافرانو د ټولو په حق کښې وي او ټول به له دے نه فائده واخلي. د قيامت باره کښې چه کوم حديثونه دي په هغې کښې د دے تفصيلي قصه ذکر ده.

**دوېم** شفاعت د بعضِ کافرانو په حق کښې د کموالي د عذاب به وي لکه چه د ابو طالب باره کښې صحيح حديث کښې راغلي دي.

**درېم** شفاعت به د بعضِ مؤمنانو د پاره د دوزخ نه وتلو باره کښې وي کوم چه هغې کښې داخل شوی وي.

**څلورم** بعضِ مؤمنان چه د خپلو بدو عملونو په وجه دوزخ کښې د داخليدو مستحق شوي وي د هغوی د دوزخ نه د معافئ او دوزخ ته د

نه داخلیږ و باره کښې به وی۔

**پنځم** شفاعت د بعضو مؤمنانو بے حسابه بے کتابه جنت کښې داخلیدو به وی۔ او

**شپږم** شفاعت به د مؤمنانو درجے اوچتولو باره کښې وی۔

④ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُخْلِصًا دَخَلَ الْجَنَّةَ قِيْلَ وَمَا اِخْلَاصُهَا قَالَ اَنْ تَحْجُزَهُ عَنْ مَحَارِمِ اللهِ

(رواه الطبرانی فی الاوسط والکبیر)

حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه څوک په اخلاص سره لَا اِلٰهَ اِلَّا الله اووائی هغه به جنت کښې داخل شی چا تپوس اوکړو چه د کلمے د اخلاص نښه څه ده؟ نبی علیه السلام اوفرمایل چه د حرام کارونه هغه منع کړی۔

**فائده**:۔ او دا ښکاره خبره ده چه کله د حرام کارونو نه منع شی او د لَا اِلٰهَ اِلَّا الله ویونکے شی نو د دهٔ نیغ جنت ته تلو کښې څهٔ شک دے خو که چرے د حرام کارونو نه منع هم نشی بیا هم دے پاکه کلمه کښې دا برکت خو یقیناً دے چه د خپلو بدعملونو سزا خوړلو نه پس به څهٔ نه څهٔ وخت جنت کښې ضرور داخلیږی۔ البته که چرے الله مکره د بد عملونو په وجه د اسلام او ایمان نه محرومه شی نو دا بله خبره ده۔

حضرت فقیه ابواللیث سمرقندی رحمه الله تنبیه الغافلین کښې لیکی۔ مرحبا دپاره ضروری ده چه ډیر په کثرت سره لَا اِلٰهَ اِلَّا الله وائی او الله جل شانهٔ نه د ایمان پاتے کید و دعا هم کوی او خپل ځان د ګناهونو نه ساتی ځکه چه ډیر خلق داسے دی چه د ګناهونو د سپیرهٔ والی په وجه اخیره کښې ترے ایمان لاړ شی۔ او له دُنیا نه د کفر په حالت کښې ځی۔ د دے نه به زیات نور څهٔ مصیبت وی چه د یو کس نوم تول عمر د مسلمانانو په فهرست کښې پاتے شوے وی خو قیامت کښې هغه د کافرانو فهرست کښې شی۔ دا حقیقی افسوس او کمال افسوس دے۔ په هغه چا افسوس نه کیږی چه ګرجا یا بت خانه کښې همیشه پاتے شوے وی، او هغه د کافرانو په فهرست کښې اخیر کښې شمار کړے شی۔ افسوس

خو په هغې چا دے چه څوك جُمات کښې پاتې شوے وی او کافرانو کښې شمار کړے شی. او دا خبره د ګناهونو د ډیر والی او تنهائی کښې حراموکارونو کولو سره پیدا کیږی. ډیر خلق داسے وی چه هغوی ته د نور و خلقو مالونه وی او هغوی دا ګڼړی چه دا د نورو دے. خو زړه ته وائی چه څهٔ وخت به یے ورته واپس کړم او چه دچا حق دے د هغهٔ نه به یے مُعاف کړم. خو د دے نوبت را نشی او مرګ ورته د دے نه وړاندے راشی. ډیر خلق داسے دی چه ښځه پرے طلاقه شی او ښهٔ پرے پوهه وی خو بیا هم ورسره کوروالے کوی او هم په دے حالت کښې ورته مرګ راشی چه د توبے ورته توفیق اُونشی، په داسے حالتونو کښې آخیر کښې ایمان ترے واخستلے شی. اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا مِنْهُ.

د حدیث په کتابونو کښې یوه قصه لیکلے ده چه د نبی اکرم ﷺ په زمانه کښې یو ځوان مړکیدو. نبی علیه السلام ته عرض اُوکړے شو چه هغه کلمه نهٔ شی ویلے. نبی اکرم ﷺ تشریف یوړهٔ او پوښتنه یے ترے اُوکړه چه ولے، څهٔ خبره ده؟ عرض یے اُوکړهٔ چه اے د الله رسُوله! یوه جندره غوندے مے په زړهٔ لګیدلے ده. چه د حالاتو تحقیق یے اُوکړهٔ، معلومه شوه چه مور ترے ناراضه ده او مور ته یے تکلیف رسولے دے. نبی اکرم ﷺ یے مور راوغوښتله او پوښتنه یے ترے اُوکړه. که چرے څوك ډیر اُور بل کړی او ستا ځوئ پکښې اچوی نو ته به یے سفارش اُوکړے؟ هغې عرض اُوکړهٔ چه آؤ، د الله رسُوله! نو بیا به. نو نبی اکرم ﷺ اُوفرمایل چه هرکله داسے ده نو د دهٔ قصور مُعاف کړه. هغې ټول هرڅهٔ مُعاف کړل. بیا چه ورته د کلمے ویلو اُوویلے شو، نو زر یے اُوویله. نبی اکرم ﷺ د الله تعالیٰ شکر ادا کړهٔ چه ځما په وجه یے د اُور نه خلاصے بیامُونده. د دے قسمه په سوونو واقعات پیښیږی چه مونږ د خلق په داسے ګناهونو کښې اخته اُوسو چه د هغې سپیرهٔ والے دین او دُنیا دواړو ته نقصان رسوی.

صاحبِ اِحیاء لیکلی دی چه یو ځلے نبی اکرم ﷺ خطبه اُوویله چه په هغې کښې یے ارشاد اُوفرمایهٔ چه څوك لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ داسے اُووائی چه ګډون ورسره

ورسره نه وي نو هغه دپاره جنت واجب کیږي. حضرت علی رضی الله عنه عرض اُوکړو چه اے د الله رسوله! دا واضحه کړئ چه دګنو وړي څه مطلب دے؟ ارشاد یے اُوفرمایه چه د دُنیا محبت او ددے په طلب کښې لګیدل - ډیر خلق داسے دي چه دنبیانو په شان خبرے کوي او د مُتکبر او جابر خلقو په شان عمل کوي. که چرے څوک دا کلمه داسے اُووائي چه دا کار نه کوي نو جنت د هغه دپاره واجب دے.

⑤ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَا قَالَ عَبْدٌ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اِلَّا فُتِحَتْ لَهٗ اَبْوَابُ السَّمَآءِ حَتّٰی یُفْضِیَ اِلَی الْعَرْشِ مَا اجْتَنَبَ الْکَبَآئِرَ.

دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څوک بنده داسے نشته چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اُووائي او هغه دپاره د آسمانونو دروازے لرے نه شي، تر دے چه دا کلمه نیغه عرش ته پورے رسي په شرط د دے چه کبیره ګُناهونو نه ځان ساتي.

رواه الترمذی وقال حدیث حسن غریب کذا فی الترغیب وهٰکذا فی المشکوٰة لکن لیس فیها حسن بل غریب فقط قال القاری ورواه النسائی وابن حبان وعزاه السیوطی فی الجامع الی الترمذی ورقم له بالحسن وحکاه السیوطی فی الدر من طریق ابن مردویه عن ابی هریرة ولیس فیه ما اجتنب الکبائر وفی الجامع الصغیر بروایة الطبرانی عن معقل بن یسار لکل شئ مفتاح ومفتاح السمٰوٰت قول لا اله الا الله ورقم له بالضعف.

**فائده:** - څومره لوئي فضیلت دے او د قبلیدو انتها ده چه دا کلمه نیغه عرش مُعلّٰی پورے رسي. او دا درته دا دے اُوس معلومه شوے ده، که چرے کبیره ګناهونو سره هم اُووئیلے شي نو فائدے نه د هغه وخت هم خالي نه ده.

مُلا علی قاري رحمة الله علیه فرمائي چه د کبائرو نه د بچ کیدو شرط د زر قبلیدو او د آسمان د ټولو دروازو پرانستیدو په اعتبار سره دے ګنې ثواب او قبلیدل لویو ګناهونو سره هم کیږي. بعضے عالمانو د دے حدیث دا مطلب بیان کړے دے چه دا سے کس دپاره به د مرګ نه پس د هغه د روح په اعزاز کښې د آسمان

حدیث حضرة شیخ په حواله د ترغیب او مشکوٰة رانقل کړے دے خو ورپورې کښې الا الله نه لیکلی ... ترغیب کښې فقط په ... مقدم مے ... او په مشکوٰة کښې ما اجتنب دے او ترغیب کښې ما اجتنبت ... او ... په عربي عبارت کښې ... دے ځکه چه ترغیب کښې حسن غریب دی او مشکوٰة کښې صرف غریب حسن ورسره نشته ... شفیق.

تو لے دروازے پرانستلے شی۔

یو حدیث کښې راغلی دی، دوه کلمے داسے دی چه د هغے نه یو کې د پاره د عرش نه لاندے هیڅ مُنْتَهَا نشته۔ دویمه به آسمان او زمکه د ډکې کړی (یعنی د هغے ثواب نه) ډک کړی۔ یوه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ دویمه اَللهُ اَکْبَرُ ده۔

⑥ عَنْ يَعْلَى بْنِ شَدَّادٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ شَدَّادُ ابْنُ اَوْسٍ وَعُبَادَةُ رضي الله عنه ابْنُ الصَّامِتِ حَاضِرٌ يُصَدِّقُ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ هَلْ فِيْكُمْ غَرِيْبٌ يَعْنِيْ اَهْلَ الْكِتٰبِ قُلْنَا لَا يَا رَسُوْلَ اللهِ فَاَمَرَ بِغَلْقِ الْاَبْوَابِ وَقَالَ ارْفَعُوْا اَيْدِيَكُمْ وَقُوْلُوْا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ فَرَفَعْنَا اَيْدِيَنَا سَاعَةً ثُمَّ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ بَعَثْتَنِيْ بِهٰذِهِ الْكَلِمَةِ وَوَعَدْتَنِيْ عَلَيْهَا الْجَنَّةَ وَاَنْتَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ثُمَّ قَالَ اَبْشِرُوْا فَاِنَّ اللهَ قَدْ غَفَرَ لَكُمْ۔

حضرت شداد رضي الله عنه فرمائی او حضرت عبادة رضي الله عنه د دے واقعے تصدیق کوی چه یو ځلے مونږ د نبی اکرم صلى الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر وو۔ نبی اکرم صلى الله عليه وسلم پوښتنه اُوکړه۔ څوک نا اشنا (غیر مسلم) خو مجمع کښې نشته؟ مونږه عرض اُوکړه هیڅوک نشته۔ ارشاد یے اُوفرمایه، دروازه بنده کړی۔ دے نه پس یے ارشاد اُوفرمایه، لاسونه اُوچت کړئ او اُووایئ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ۔ مونږه لږ ساعت لاسونه اُوچت کړی وُو (کلمه طیبه مو ویله) بیا یے اُوفرمایل، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ۔ اے الله! تا ما دے کلمے سره رالیږلے یم۔ او په دے کلمه دِ ما جنت وعده کړے ده او ته وعده خلاف نه یے۔ دے نه پس نبی اکرم صلى الله عليه وسلم مونږ ته اُوفرمایل، خوشاله شئ۔ الله تعالیٰ ستاسو مغفرت (بخښنه) اُوکړه۔

(رواه احمد باسناد حسن والطبراني وغيرهما كذا في الترغيب قلت واخرجه الحاكم وقال اسمعيل بن عياش احد ائمة اهل الشام وقد نسب الى سوء الحفظ وانا على شرطي في امثاله وقال الذهبي راشد ضعفه الدارقطني وغيره ووثقه رحيم اهـ وفي مجمع الزوائد رواه احمد والطبراني والبزار ورجاله موثقون اهـ)

**فائده:-** غالبًا د نا اشنا یے خکه پوښتنه اُوکړه او د دے د پاره یے دروازه بنده کړے وه چه د دے خلقو کلمے ویلو ته وینا خوښه کړے وه نبی کریم صلى الله عليه وسلم ته د بخښنے د زیری اُمید وو۔ د نورو متعلق دا اُمید نه وو۔ صوفیانو د دے حدیث نه د

شاګردو خپلو مُریدانو له د ذکر تلقین بانده دلیل اخستے دے. لکه جامع الاصول کښ لیکلی دی چه د نبی اکرم ﷺ صحابو ته په ګډه او خان له ذکر تلقین کول ثابت دی. دلے ته تلقین کولو کښ یے داحدیث یے پیش کړے دے. دے حالت کښ دروازه بندول د فائده اخستونکو د پوره متوجه کولو په غرض سره وو. او هم په دے وجه یے دنا اشنا یو بندش او کړو. اګرچه دغیر سړی په مجمع کښ موجودګی د نبی ﷺ په توجه کښ خو فرق نه راوستلو، خو د فائده اخستونکو په توجه کښ د فرق راتللو احتمال وو. ـــه

چه خوش است با تو بزمی بنهفته ساز کردن ✦ در خانه بند کردن سرِ شیشه باز کردن

څومره مزے خیزدے تاسره پټ ساز کول

دکور دروازه بندول او دبوتل خُله پرانستل

⑤ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی اللہ عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ جَدِّدُوْا اِیْمَانَکُمْ قِیْلَ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ وَکَیْفَ نُجَدِّدُ اِیْمَانَنَا قَالَ اَکْثِرُوْا مِنْ قَوْلِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ.

نبی اکرم ﷺ ارشاد فرمایلے دے چه د خپل ایمان تجدید کوئی یعنی تازه کوئی. صحابو رضی اللہ عنہم عرض اوکړو اے د الله رسوله! د ایمان تجدید څنګه کوو؟ ارشاد یے اوفرمایه چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ډیر ډیر وایئی.

(رواه احمد والطبرانی واسناد احمد حسن کذا فی الترغیب قلت ورواه الحاکم فی صحیحه وقال صحیح الاسناد وقال الذهبی صدقة ضعفوه قلت هو من رواة ابی داؤد والترمذی واخرج له البخاری فی الادب المفرد وقال فی التقریب صدوق له اوهام وذکره السیوطی فی الجامع الصغیر بروایة احمد والحاکم ورقم له بالصحة وفی مجمع الزوائد رواه احمد واسناده جید وفی موضع آخر رواه احمد والطبرانی ورجال احمد ثقات.)

**فائده:** په دے روایت کښ د نبی کریم ﷺ ارشاد راغلے دے چه ایمان زړیږی څنګه چه جامه زړیږی. د دے د پاره د الله جل شانه نه د ایمان تازګی غواړئی. د زړیدو مطلب دا دے چه په ګناهونو سره د ایمان قوت او د ایمان رنړا ځی. لکه یو حدیث کښ راغلی دی چه کله بنده څه ګناه اوکړی نو یو تور نبنه (داغ) یے په زړه اولګی. که چیرے ریښتنے توبه اوباسی نو هغه نبنه او ویځلے شی. کنی مضبوطه شی. او بیا چه کله دویمه ګناه اوکړی نو دویمه نښه پرے

اوګئی. دا یکے اخر زړه بیخی تاله تور شی او زنګ اونیسی. کوم چه الله جل جلاله سورة تطفیف کښ ارشاد فرمایلے دے. كَلَّا بَلْ سَنرَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ه دے نه پس دهغه د زړه حالت داسے شی چه حقه خبره پرے اثر نه کوی او نه یے په زړه کښ ننوځی.

یو حدیث کښ راغلی دی چه څلور خیزونه د سړی زړه برباد وی. د ئم عقلو سره مقابله. د ګناهونو ډیروالے، زنانو سره ډیره ناسته پاسته او مړو خلقو څخه ډیره ناسته. چا تپوس اوکړه، دمړو نه څه مراد دے؟ ویے فرمایل هرهغه مالدار چا کښ چه مال تکبر پیدا کړے وی.

⑧ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم اَكْثِرُوْا مِنْ شَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَبْلَ اَنْ يُّحَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهَا. (رواه ابو یعلٰی باسناد جید قوی کذا فی الترغیب وعزاه فی الجامع الی ابی یعلٰی وابن عدی فی الکامل ورقم له بالضعف وزاد لقنوها موتاکم وفی مجمع الزوائد رواه ابو یعلٰی ورجاله رجال الصحیح غیر ضمام وهو ثقة.)

دنبی کریم صلى الله عليه وسلم ارشاد دے چه د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اقرار ډیر ډیر کوئی مخوا له دے نه چه داسے وخت راشی چه تا سو دا کلمه نه شئ ویلے.

**فائده**:- یعنی مرګ ترمینځه راشی چه دهغے نه پس بیا د هیڅ عمل وخت نه پاتے کیږی. د ژوند زمانه ډیره لږه ده او هم دا د عمل کولو او د تخم کرلو وخت دے. او د مرګ نه پس زمانه ډیره لویه ده او هلته به هغه څه ریبی کوم یے چه دلته کرلے وی.

⑨ عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم يَقُوْلُ اِنِّیْ لَاَعْلَمُ كَلِمَةً لَّا يَقُوْلُهَا عَبْدٌ حَقًّا مِّنْ قَلْبِهٖ فَيَمُوْتُ عَلٰى ذٰلِكَ اِلَّا حُرِّمَ عَلَى النَّارِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ.

دنبی اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارک دے چه څه یوه داسے کلمه پیژنم چه هیڅوک بنده داسے نشته چه په زړهٔ یے حقه اووائی او ددے وائی او په دے حالت کښ مړ شی. نو هغه به په دوزخ حرام شی. هغه کلمه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ده.

(رواه الحاکم وقال صحیح علی شرطهما ورویاه بنحوه کذا فی الترغیب)

فائده:- ورېرو روایتونو کښې دا مضمون راغلے دے۔ دغې تولونه که چرے دا مُراد وی چه هغه هُم دغه وخت مُسلمان شوے وی، نو بیا خو یکښې هیڅ شک نشته چه اسلام راوړلو نه پس دکُفر گناه بِالاِتِّفَاق مُعاف ده۔ او که چرے دا مُراد وی چه د روسبے نه مُسلمان وُو او په اخلاص یے دا کلمه اُووَیله مر شو، نو بیا هم کیدے شی چه الله جلّ شانهٔ یے په خپلے مهربانئ سره ټول گناهُونه مُعاف کړی۔ د الله تعالیٰ خو په خپله ارشاد دے چه د شرک نه علاوه ټول گناهونه چه غواړی مُعاف به یے کړی۔ مُلّا علی قاری رحمته الله علیه د بعضو عالمانو نه دا هُم نقل کړے دے چه دا او دے قسمه حدیثونه د هغې وخت د پاره وُو تر کومے چه نور احکامات لا نازل شوے نه وُو۔ بعضو عالمانو فرمائیلی دی چه د دے نه مراد دغه کلمه د حق ادا کولو سره ویل دی څنګه چه رُومبے څلورم نمبر حدیث کښې تیر شوی دی۔ حضرت حَسَن بَصری رحمته الله علیه وغیره حضراتو هُم دغه رائے ده۔ د اِمام بُخاری رحمته الله علیه تحقیق دا دے چه په پښیمانتیا یے دا کلمه ویلے وی چه هم دا حقیقت د توبے دے، او بیا هم په دغې حالت وفات شوے وی۔ د مُلّا علی قاری رحمته الله علیه تحقیق دا دے چه له دے نه همیشه په دوزخ کښې د اُوسید و حرام والے مراد دے۔ د دے تولونه علاوه یوه بنکاره خبره دا هُم ده۔ هغه دا ده چه د یو څیز خپله خاص اثر کیدل د دے خلاف نه دے چه د څه عارض په وجه هغه اثر اُونه کړی لکه د سَقمُونیا اثر د دستونه لاسل دی خو چه کله دا اُوخوری۔ بیا ورپسے څه سخت قابض (یعنی د دستونه بندوُنکی) څیز اُوخوری، تو یقیناً د سَقمونیا اثر به اُونه شی۔ خو د دے مطلب دا نه دے چه د دغې دارو هغه خپل اثر پاتے نه شو بلکه د عارض په وجه یے په دغې کس اثر اُونه شو۔

(۱) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَفَاتِیْحُ الْجَنَّةِ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ

دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارك دے چه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اقرار کول د جنت کنجیانے دی۔

رواه احمد کذا فی المشکوٰة و الجامع الصغیر و رقم له بالضعف و فی مجمع الزوائد رواه احمد و رجاله وثقوا

الاان شہر الم یسمعہ من معاذ اھ ورواہ البزار کذا فی الترغیب وزاد السیوطی فی الدر ابن مردویہ والبیہقی وذکرہ فی المقاصد الحسنۃ بروایۃ احمد بلفظ مفتاح الجنۃ لا الٰہ الا اللّٰہ واختلف فی وجہ حمل الشہادۃ وہی مفرد علی المفاتیح وہی جمع علی اقوال اوجہھا عندی انہا لما کانت مفتاحا لکل باب من ابوابہ صارت کالمفاتیح۔)

**فائدہ:**۔ کنجیانے ورته یے په دے وجه اُووے چه دهرے دروازے اودهر جنت کنجي هم دا کلمه ده. خکه تو لے کنجیانے هم دا کلمه شوه. یا په دے وجه چه درے کلمے دوه حصے دی. یوه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اقرار کول، دویمه دَ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ اقرار. په دے وجه دوه شوے چه د دوارو په ذریعه جنت پرانستلے شی. نور هم هغه روایتونو کښ کوم کوم کښ چه جنت ته دداخلیدو یا د دوزخ حرامیدو ذکر دے، د هغے نه مُراد هم پوره کلمه ده.

یو حدیث کښ راغلی دی چه د جنت قیمت لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دے.

(۱۱) عَنْ اَنَسٍ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم مَا مِنْ عَبْدٍ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فِیْ سَاعَةٍ مِّنْ لَیْلٍ اَوْ نَهَارٍ اِلَّا طُمِسَتْ مَا فِی الصَّحِیْفَةِ مِنَ السَّیِّاٰتِ حَتّٰی تَسْکُنَ اِلٰی مِثْلِهَا مِنَ الْحَسَنٰتِ. (رواہ ابو یعلی کذا فی الترغیب وفی مجمع الزوائد فیہ عثمان بن عبد الرحمٰن الزہری وہو متروک آھ)

دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه کوم بنده په څه وخت کښ د ورځے یا د شپے لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اُووائی نو د عملنامے نه یے بدئی ورانوُلے شی او د هغے په ځای نیکئ لیکلے شی.

**فائده:**۔ بدئ ورانولو نیکئ لیکلو په باره کښ د اول باب د دویم فصل لسم نمبر حدیث کښ په تفصیل تیر شوی دی. او د دے قسمه ایتونو او روایتونو یو څو معنے لیکلے شوی دی. د هرے یوے معنے په دے حدیث کښ د ګناهونو د عملنامے نه ورانول خو معلومیږی، البته اِخلاص په کښ ضروری دے او په کثرت د اللّٰه تعالیٰ پاک نوم اخستل او د کلمے طیبے ډیر ډیر ویل په خپله اخلاص پیدا کوی. په دے وجه د دے پاکے کلمے نامه کلمهٔ اخلاص ده.

(۱۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی اللہ عنہ عَنِ

دنبی کرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه د عرش مخکښ

النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِنَّ لِلّٰهِ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى عَمُوْدًا مِّنْ نُّوْرٍ بَيْنَ يَدَيِ الْعَرْشِ فَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ اهْتَزَّ ذٰلِكَ الْعَمُوْدُ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى اُسْكُنْ فَيَقُوْلُ كَيْفَ اَسْكُنُ وَلَمْ تَغْفِرْ لِقَائِلِهَا فَيَقُوْلُ اِنِّيْ قَدْ غَفَرْتُ لَهٗ فَيَسْكُنُ عِنْدَ ذٰلِكَ۔

د نور یو ستن دے کله چه څوک لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اُووائی نو دغه ستن په خوزیدو شی۔ د الله تعالیٰ ارشاد اوشی چه اودریږه۔ هغه عرض کوی څنګه اودریږم حال دا دے چه د کلمے طیبے ویونکی لا تراوسه بخښنه نه ده شوے۔ ارشاد اوشی چه ښه ده ما دهغه بخښنه اوکړه نو هغه ستنه اودریږی۔

(رواه البزار وهو غريب كذا في الترغيب وفي مجمع الزوائد فيه عبد الله بن ابراهيم بن ابي عمرو وهو ضعيف جدا انتهى قلت وبسط السيوطي في اللآلي على طرقه وذكر له شواهد۔)

**فائده:** محدثینو حضراتو په دے روایت کښ کلام دے (یعنی ضعیف یے بنودلے دے) خو علامه سیوطی رحمة الله علیه لیکلی دی چه دا روایت په څو طریقو په مختلفو الفاظو نقل کړے شوے دے۔ بعضو روایتونو کښ دے سره د الله جل شانه دا ارشاد هم راغلے دے چه ما کلمه طیبه د دے کس په ژبه څکه جاری کړه چه د هغه بخښنه اوکړم۔ څومره قدر مهربانی او کرم دے د الله تعالیٰ، چه په خپله توفیق ورکوی او بیا په خپله د دے مهربانئ په تکمیل کښ بخښنه فرمائی۔

د حضرت عطاء رحمة الله علیه قصه مشهوره ده چه دے یو ځلے بازار ته تشریف یوړو، هلته یوه لیونئ وینزه خرڅیدله۔ دے واخستله۔ هر کله چه د شپے څه حصه تیره شوه، نو هغه لیونئ پاسیدله، اودس یے اوکړو، مونځ یے شروع کړو او په مانځه کښ یے دا حالت وو چه د ډیرے ژړا نه یے ساه بندیدله۔ ورپسے نه یے هغے اُووے۔ اے خدائ! ستا د ما سره د محبت کولو قسم دی چه په ما رحم اوکړه۔ عطاء رحمة الله علیه چه دا اُوریدل، ورته فرمایل چه اے وینزے! دا ے وایه، اے الله! ستا د تا سره د محبت کولو قسم۔ دا چه یے واوریدل، په غصه شوه او وے ویل، د هغه په ذات دِ قسم وی، که چرے د هغه ما سره محبت نه وے نو ته به یے دا سے په خوب خوب اُوده کړے نه۔ او ځه به یے دا سے

خان ته اُودرولے نه. دے نه پس هغے دا شعرونه اُوویل. ؎

| | |
|---|---|
| اَلْكَرْبُ مُجْتَمِعٌ وَّالْقَلْبُ مُحْتَرِقٌ | وَالصَّبْرُ مُفْتَرِقٌ وَّالدَّمْعُ مُسْتَبِقٌ |
| كَيْفَ الْقَرَارُ عَلٰى مَنْ لَّا قَرَارَ لَهٗ | مِمَّا جَنَاهُ الْهَوٰى وَالشَّوْقُ وَالْقَلَقُ |
| يَا رَبِّ اِنْ كَانَ شَيْءٌ فِيْهِ لِيْ فَرَجٌ | فَامْنُنْ عَلَيَّ بِهٖ مَا دَامَ بِيْ رَمَقٌ |

(ترجمه) "بے قراری جمع کیږی او زړهٔ سوزی، او صبر جُدا شوا و اُوخکے بهیږی. هغه چا ته څنګه قرار راتلے شی چه دعِشق، شوق او دبے قرارئ دحملو په وجه ورته لږ هم آرام نشته. اے الله! که چرے څهٔ څیز داسے کیدےشی چه په هغے کښ دغم نه خلاصے وی نو په ژوند کښ هغه راکړه، په ما احسان اُوکړه. دے نه پس هغے اُووے. اے الله! ځما او ستا معامله اُوس په راز کښ پاتے نهٔ شوه. ما واخله. داے اُووے، یو کریکه یے اُووهله او مړه شوه. ددے قِسمه نور هم ډیر واقعات دی. او سکاره خبره ده چه توفیق تر خو شامِلِ حال نهٔ وی، هیڅ نشی کیدے. وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ او تاسو بغیر د الله رَبُّ الْعٰلَمِيْن دخوښے هیڅ نهٔ شی غوختلے.)

⑬ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ عَلٰى اَهْلِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْشَةٌ فِيْ قُبُوْرِهِمْ وَلَا مَنْشَرِهِمْ وَكَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى اَهْلِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَهُمْ يَنْفُضُوْنَ التُّرَابَ عَنْ رُءُوْسِهِمْ وَيَقُوْلُوْنَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ وَفِيْ رِوَايَةٍ لَيْسَ عَلٰى اَهْلِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْشَةٌ عِنْدَ الْمَوْتِ وَلَا عِنْدَ الْقَبْرِ.

دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه په لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ والُو به نهٔ په قبرونو کښ ویره وی نه د حشر په میدان کښ. دا وخت ګویا هغه منظر ځما ورانده دے چه دوی به دخپلو سرونو نه خاورے څنډی (د قبرونو نه به) راپاسی، او وائی به ټول تعریفونه هغه الله دپاره دی چا چه مونږ نه رهیشه دپاره) غم او تکلیف لرے کړو. بل حدیث کښ دی چه په لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ والُو به نهٔ دمرګ په وخت کښ ویره وی نهٔ دقبر په وخت کښ.

(رواه الطبرانی والبیهقی کلاهما من روایة یحیی بن عبدالحمید الحمانی وفی متنه نکارة کذا فی الترغیب وذکر فی الجامع الصغیر بروایة الطبرانی عن ابن عمرو رقم له بالضعف وفی اسنی المطالب رواه الطبرانی وابو یعلی

بسند ضعيف وفي مجمع الزوائد رواه الطبراني وفي رواية ليس على أهل لا إله إلا الله وحشة عند الموت ولا عند القبر وفي
...ه يحيى الحماني وفي الأخرى مجاشع بن عمرو كلاهما ضعيف اهـ وقال السخاوي في المقاصد الحسنة رواه
أبو يعلى والبيهقي في الشعب والطبراني بسند ضعيف عن ابن عمر اهـ قلت وما حكم عليه المنذري بالنكارة فبناء انه
على أهل لا إله إلا الله على الظاهر على كل مسلم ومعلوم أن بعض المسلمين يعذبون في القبر والحشر فيكون الحديث
مخالفا للمعروف فيكون منكرا لكن إن المراد المخصوص بهذه الصفة فيكون موافقا للنصوص الكثيرة من القرآن
والحديث والسابقون السابقون أولئك المقربون ومنهم سابق بالخيرات بإذن الله وسبعون ألفا يدخلون
الجنة بغير حساب وغير ذلك من الآيات والروايات فالحديث موافق لها لا مخالف فيكون معروفا لا منكرا
وذكر السيوطي في الجامع الصغير برواية ابن مردويه والبيهقي في البعث عن عمر مرفوعا سابقنا سابق ومقتصدنا ناج
وظالمنا مغفور له ورقم له بالحسن قلت ويؤيده حديث سبق المفردون المستهترون في ذكر الله يضع الذكر عنهم
أثقالهم فيأتون يوم القيامة خفافا رواه الترمذي والحاكم عن أبي هريرة والطبراني عن أبي الدرداء كذا في الجامع ورقم
له بالصحة وفي الإتحاف عن أبي الدرداء موقوفا الذين لا تزال ألسنتهم رطبة من ذكر الله يدخلون الجنة وهم يضحكون
وفي الجامع الصغير برواية الحاكم ورقم له بالصحة السابق والمقتصد يدخلون الجنة بغير حساب والظالم لنفسه
يحاسب حسابا يسيرا ثم يدخل الجنة.)

**فائده:-** حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه یو ځلې حضرت جبرئیل علیه السلام
نبی اکرم ﷺ ته تشریف راوړه نبی اکرم ﷺ ډیر غمژن وو. حضرت جبرئیل
علیه السلام عرض اوکړو چه الله جل جلاله په تا سلام وائی او فرمائی چه څه تا سو خفه
وغمژن وینم، ولې څه وجه ده؟ (حال دا دے چه الله تعالیٰ د زړه ونو رازیرتی
خو د اکرام او اعزاز او د اظهارِ شرافت دپاره درے قِسمه سوالونه کوئلے شو) نبی اکرم
ﷺ ارشاد اوفرمائیه چه جبرئیله! ماته د خپل اُمت ډیر فکر دے چه قیامت
کښې به د دوی څه حال وی؟ حضرت جبرئیل علیه السلام پوښتنه اوکړه چه د کافرانو
په باره کښې یا د مسلمانانو په باره کښې؟ نبی ﷺ ارشاد اوفرمائیه چه د مسلمانانو په باره کښې فکر دے. حضرت جبرئیل
نبی اکرم ﷺ ځان سره واخستو او یو مقبرے ته لاړل، کوم ځائ چه د بنو سلمه خلق
دفن وو. حضرت جبرئیل علیه السلام په یو قبر وزر اووهه او ارشاد یې اوفرمائیه
قُم بِإذنِ اللهِ (د الله تعالیٰ په حکم راپاسه.) د هغې نه ډیر ښائسته او د ښکلې
مخ سړے راپاسیده او دا یې وئیل، لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ، حضرت جبرئیل علیه السلام ورته اُووئے چه خپل ځای ته واپس لاړ شه. هغه لاړو. بیا په دویم تبریے دویم وَزر اُووهه. اُووئے ویل چه دالله په حکم راپاسه. دهغے نه یو کس دېرېدَ شکله تور مخے د شنو سترګو کس راپاسېدو او وائے ویل. هائے افسوس. هائے شرمندګی. هائے مُصیبت. بیا حضرت جبرئیل علیه السلام ورته اُووئے خپل ځای ته واپس لاړ شه. د ے نه پس به نبی اکرم ﷺ ته عرض اُوکړو چه په کوم حالت داخلق مری، په هغه حالت به راپاسی.

پورتنی حدیث کښ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ والونه په ظاهر کښ هغه خلق مُراد ی دی چا چه د ے پاک کلمے سره خصوصی تعلق، خصوصی مُناسبت خصوصی شُغل وی. ځکه چه پیو والا، پېړو والا، ملغلرو والا، واړے والا هغه کس ته ویلے شی بچا سره چه د ر ے څیزونو خصوصی ذخیره موجوده وی او خرڅوی یے. ځکه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ والو سره د اسے معامله کېدلو کښ هیڅ شک نشته. د قرآن شریف په سورۂ فاطر کښ د د ے اُمت درے طبقے بیان شوی دی. یوه طبقه سَابِقٌۢ بِالْخَیْرٰتِ ده چه د هغے متعلق حدیث کښ راغلی دی چه هغه به بے حسابه جنت کښ داخلیږی. یو حدیث کښ راغلی دی چه څوک ﷺ وارے لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وائی هغه به الله جل شانهٗ د قیامت په ورځ په داسے حالت کښ راپاسَوی، چه د څوارلسمے شپے د سپوږمئ په شان به یے مخ روښانه وی. حضرت اَبُوالدَّرداء رضی الله عنه فرمائی چه د کومو خلقو ژبے دالله تعالیٰ په ذکر تر و تازه وی، هغوی به په جنت کښ په خندا داخلیږی.

⑭ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رضی الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ یَسْتَخْلِصُ رَجُلًا مِّنْ اُمَّتِیْ عَلٰی رُءُوْسِ الْخَلَائِقِ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ فَیَنْشُرُ عَلَیْهِ تِسْعَةً وَّتِسْعِیْنَ سِجِلًّا کُلُّ سِجِلٍّ مِثْلُ مَدِّ الْبَصَرِ ثُمَّ یَقُوْلُ اَتُنْکِرُ مِنْ هٰذَا شَیْئًا

د نبی کرم ﷺ ارشاد د ے چه الله جل شانهٗ به د قیامت په ورځ خما د اُمت نه یو کس مُنتخب کړی، د ټولے دُنیا مخکښ به یے راؤغواړی او د ده مخکښ به یو کم سل دفترونه د هغوی د عملونو پرانستے شی، هر یو دفتر به دومره لوئ وی چه تر کومے پورے نظر لګی. د ے نه پس به د ده نه سوال اُوکړے شی چه

مك كتبتي الحافظون
ول لا يا رب فيقول افلك
و فيقول لا يا رب فيقول
ه تعالى بلى ان لك عندنا
سنة فانه لا ظلم عليك
وم فتخرج بطاقة فيها
شهد ان لا اله الا الله و
شهد ان محمدا عبده ورسوله
قول احضر وزنك فيقول
ارب ما هذه البطاقة مع
ذه السجلات فقال فانك
تظلم اليوم فتوضع السجلات
كفة والبطاقة في كفة فطاشت
السجلات وثقلت البطاقة
فلا يثقل مع الله شيء۔

دے عملنامو کښې ته د څه څیز انکار کوے
آیا ځما هغه فرښتو کړے چه په عملنامو لیکلو
مقرر دی په تا څه ظلم کړے دے (چه تا
یوه گناه نه وی کړے هغه یې لیکلی وی یا د
کولو نه یې زیاته لیکلے وی)، دے به عرض
اوکړی، نه۔ (نه د انکار ځائی شته او نه فرښتو
ظلم کړے دے) بیا به ارشاد اوشی چه تا
سره د دے بد عملو نو څه عذر شته؟ دے
به عرض اوکړی، هیڅ عذر هم نشته۔ ارشاد
به اوشی ښه ده ستا یوه نیکی مونږ سره شته
نن په تا هیڅ ظلم نشته۔ بیا به د کاغذ یوه
ټوټه راوویستلی شی۔ هغې کښې به اشهد ان
لا اله الا الله و اشهد ان محمدا عبده ورسوله
لیکلے شوے وی۔ ارشاد به اوشی چه لاړ شه، دا
اوتله۔ دے به عرض اوکړی چه د دے
دومره رجسترونو په مقابله کښې به دا ټوټه څه کار اوکړی۔ ارشاد به اوشی
چه نن به په تا ظلم نه کیږی۔ بیا به هغه ټول رجسترونه (د تلے) یو طرف ته
کښی کیخودے شی او دویم طرف ته به دا ټوټه وی۔ نو د رجسترونو والا طرف به
به سپک شی د دغے ټوټے د وزن په مقابله کښې۔ پس خبره داده چه د
الله تعالى د نامے نه هیڅ څیز وزنی نشته۔

(رواه الترمذی وقال حسن غریب وابن ماجة وابن حبان فی صحیحه والبیهقی والحاکم وقال صحیح علی شرط
مسلم کذا فی الترغیب قلت کذا قال الحاکم فی کتاب الایمان واخرجه ایضا فی کتاب الدعوات وقال صحیح الاسناد
واقره فی الموضعین الذهبی وفی المشکوٰة اخرجه بروایة الترمذی وابن ماجة وزاد السیوطی فی الدر فیمن عزاه الیهم
احمد وابن مردویه واللالکائی والبیهقی فی البعث وفیه اختلاف فی بعض الالفاظ کقوله فی اول الحدیث
یصاح برجل من امتی علی رؤس الخلائق وفیه ایضا فیقول افلك عذر او حسنة فیهاب الرجل فیقول

لا يارب فيقول بلى ان لك عندنا حسنة الحديث وعلم منه ان الاستدراك فى الحديث الى محله لا ماعية ازاال ما اورد القارى فى المرقاة وذكر السيوطى ما يؤيد الرواية من الروايات الآخر.)

**فائده**:- دا د اخلاص برکت دے چه یو واړے کلمه طیبه چه په اخلاص ویلے شوے وه، په دغے ټولو رجسټرونو غالبه شوه. په دے وجه ضروری ده چه بنده د څوک مُسلمان سپک نهٔ ګڼړی. او خپل ځان د هغهٔ نه غوره نهٔ ګڼړی. څهٔ معلومه ده چه د هغهٔ کوم یو عمل الله تعالیٰ ته قبول شی چه د هغهٔ د خلاصی دپاره کافی شی. او خپل حال معلوم نهٔ دے چه څهٔ عمل به م قابلِ قبول شی کهٔ نه.

حدیث کښې یوه قِصه راغلې چه بنی اسرائیلو کښې دوه سړی وُو، یو عابد یعنی عبادت ګذار وو، بل ګُنهګار. هغه عابد به د ګُنهګار همیشه تړټکلو. دهٔ به ورته وے چه ما په خپل الله پریږده. یوه ورځ د غه عابد په غُصَه کښې راغے، وے ویل چه په الله تعالیٰ م دِ قسم وی، ستا بخښنه به هیڅکله اونشی الله جل شانهٔ عالمِ اَرواح کښې دواړه جَمع کړل. او ګُنهګار یے په دے وجه چه د رحمت اُمید وار وو، مُعاف یے کړهٔ. او عابد دپاره یے د قسم خوړلو په بدله کښې د عذاب حُکم اُوکړهٔ. په دے کښې څهٔ شک دے چه دا قسم ډیر سخت وو. په خپله الله جل شانهٔ خو ارشاد فرمائی اِنَّ اللهَ لَا یَغۡفِرُ اَنۡ یُّشۡرَكَ بِهٖ وَیَغۡفِرُ مَا دُوۡنَ ذٰلِكَ لِمَنۡ یَّشَآءُ (الله جل شانهٔ د کفر او شرك بخښنه نهٔ کوی د دے نه علاوه هر یوه ګناه د چا دپاره چه وُ غواړی وے بخښی.) نو د چا د دے ویلو څهٔ حق دے چه د فلانی بخښنه نشی کیدے. خو د دے دا مطلب هُم نهٔ دے چه په ګناهونو به ناجائز خبرو ډِ نیول نشی کولے. یا ډیرے نهٔ شی تړکلے. قرآن او حدیث کښې په سوونو ځایونو کښې د دے حُکم دے. په نهٔ تړکلو سزا ده. په حدیثونو کښې ډیر زیات راغلی دی چه څوك چا په ګناه کولو اُولیدهٔ او د هغے په منع کولو طاقت لری او منع یے نهٔ کړه، نو هغه به په خپله د هغے په سزا کښې ګیر شی، عذاب کښې به شریك شی. دا مضمون ما په خپله رساله فضائل تبلیغ کښې په تفصیل سره لیکلے دے، د چا زړهٔ کِه غواړی هغه دِ ګوری.

ولے چه یو ضروری څیز دا هم د لحاظ قابل دے چه څنګه د دیندارانو اونېکانو د ډېر قطعی دوزخی کېدل د هلاکت خبره ده. دغه رنګے د جاهلانو هر کس لره مقتدا او پیشوا جوړول او سره دا چې هغه خو مره کفریات وائي قتل کوئ او نکے زهر او د هلاکت سبب دے۔

د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه څوک د چا بد عتی تعظیم کوی، هغه د اسلام په نړولو کښې امداد کوی۔ ډېرو حدیثونو کښې راغلی دی چه اخره زمانه کښې به دجّال، مکّار، کذّاب (دروغژن) پیدا شی چه داسے حدیثونه به تاسو ته اوروی چه تاسو به نه وی اوریدلی۔ هسے نه چرته هغوی تاسو ګمراه کړی۔ او فتنه کښې مو وا چوی۔

⑤ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ لَوْ جِیْئَ بِالسَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَنْ فِیْهِنَّ وَمَا بَیْنَهُنَّ وَمَا تَحْتَهُنَّ فَوُضِعْنَ فِیْ کِفَّةِ الْمِیْزَانِ وَوُضِعَتْ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ فِی الْکِفَّةِ الْاُخْرٰی لَرَجَحَتْ بِهِنَّ۔ (اخرجه الطبرانی كذا فی الدر وكذا فی مجمع الزوائد وزاد فی اوله لقنوا موتاكم شهادة ان لا اله الا الله فمن قالها عند موته وجبت له الجنة قالوا يا رسول الله فمن قالها فی صحته قال تلك اوجب واوجب ثم قال والذی نفسی بيده الحديث قال رواه الطبرانی ورجاله ثقات الا ان ابن ابی طلحة لم يسمع من ابن عباسؓ)

د نبی اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه په هغه پاک ذات مې دِ قسم وی د چا په قبضه کښې چه زما ساه ده که چرے ټول اسمانونه او زمکے او کوم خلق چه د دے په مینځ کښې دی هغه ټول او کوم څیزونه د هغے په مینځ کښې دی هغه ټول او کوم څه چه د هغے د لاندے دی هغه ټول یو چا برې کښې کیخودلے شی او د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اقرار بل طرف ته شی نو دا به په ټول کښې زیات شی۔

**فائده:-** د دے قسمه مضمون ډېرو مختلفو روایتونو کښې ذکر کړے شوے دے۔ دے کښې شک نشته چه د الله تعالیٰ د پاک نوم برابر هیڅ څیز نشته۔ بد قسمتی او محرومی ده د هغے خلقو څوله چه دا سپک ګڼړی۔ البته دے کښې وزن په اخلاص سره پیدا کیږی۔ څومره قدرے چه اخلاص وی هغومره

به داپاك نوم درُوند شي. دَے اخلاص پيدا كولو دپاره دپيرانو صاحبانو پَرے عمَول يعنی څه متونه كوَلے شي. په حديث كښ ددے ارشادِ نبوی نه روستو په بل مضمون ذكر دے هغه دا دے چه نبی اكرم ﷺ دا ارشاد اُوفرمايهٔ چه مړی ته دلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ تلقين كوئ. چا چه د مرګ په وخت داپاكه كلمه اُووئيله، هغهٔ دپاره جنت واجب كيږی. صحابه رضی الله عنهم عرض اوكړه، اے دالله رسُوله! كه چرے څوك يے په تندرستئ كښ اُووائی. نبی اكرم ﷺ اُوفرمايل بيا خو نور هم زياته دجنت واجب كوُنكے ده. دے نه پس يے دا د قسم مضمون ارشاد اُوفرمايهٔ، كوم چه پورته ذكر كړے شو.

⑫ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ جَآءَ النُّعْمَانُ بْنُ زَيْدٍ وَّ قُرْدُ بْنُ كَعْبٍ وَّ بَحْرِیُّ بْنُ عَمْرٍو فَقَالُوْا يَا مُحَمَّدُ مَا تَعْلَمُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا غَيْرَهٗ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ بِذٰلِكَ بُعِثْتُ وَاِلٰی ذٰلِكَ اَدْعُوْا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی فِیْ قَوْلِهِمْ قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً.

د نبی اكرم ﷺ په خدمت كښ يو وارے درے كافران حاضر شول او تپوس يے اُوكړو چه اے محمّد (ﷺ) ته دالله سره بل څوك معبود نه منے. نبی اكرم ﷺ ارشاد اُوفرمايهٔ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رښتيا دے (لائق دعبادت هيڅوك سوا د يو الله نه) هُم د دے كلمے سره څهٔ مبعوث شوے يم او هُم د دے طرف ته خلق رابلم. پس د دے پاره كښ ايت قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً نازل شو.

(اخرجه ابن اسحاق وابن المنذر وابن ابی حاتم وابو الشيخ كذا فی الدر المنثور)

**فائده:-** نبی اكرم ﷺ ارشاد اُوفرمايهٔ چه د دے كلمے سره څهٔ مبعوث شوے يم يعنی نبی جوړ كړے رالیږلے شوے يم هُم د دے كلمے طرف ته خلق رابلم. دنبی اكرم ﷺ د ارشاد مطلب دا نهٔ دے چه د نبی اكرم ﷺ په دے كښ خصوصيت دے. بلكه ټول نبيان په د دے كلمے سره نبيان جوړ كړے شو رالیږلے شو. او ټولو نبيانو هم د دے كلمے طرف ته دعوت وركړے دے. حضرت ادم عليه السلام نه چه واخلے، خو تر نبی خَتْمُ الْاَنْبِيَاءِ فَخْرِ رُسُل ﷺ پورے هيڅ يو نبی داسے نشته، چا چه د دے ځبارے كلمے دعوت نهٔ وی وركړے څو مره

برکتی او مُهتَمّ بِالشّان (اهم او ضروری) کلمه ده چه ټول نبیان او ټول ربښتنی مذهبونه دے پاکے کلمے طرف ته رابلونکی او ددے خورونکی دی. اخوخه خبره خوده چه له دے نه هیڅ یو ربښتنے مذهب خالی نه دے. ددے کلمے په تصدیق کښ د قرآن شریف ایت قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَکْبَرُ شَهَادَةً (سوره انعام ع ۲) نازل شو. کوم کښ چه د نبی اکرم ﷺ په تصدیق کښ د الله جل شانه د ګواهئ ذکر دے.

یو حدیث کښ راغلی دی چه کله بنده لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وائی نو الله جل شانه ددهٔ تصدیق کوی او ارشاد فرمائی، خما بنده ربښتیا اُووے، خما نه سوا هیڅوک د عبادت لائق نشته.

(۱۰) عَنْ کَعْبٍ قَالَ قَالَ عِیْسَی ابْنُ مَرْیَمَ علیه السلام اُمَّةُ مُحَمَّدٍ ﷺ اَثْقَلُ النَّاسِ فِی الْمِیْزَانِ ذَلَّتْ اَلْسِنَتُهُمْ بِکَلِمَةٍ ثَقُلَتْ عَلٰی مَنْ کَانَ قَبْلَهُمْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ (اخرجه الاصبهانی فی الترغیب کذا فی الدر)

حضرت عیسٰی علیه السلام فرمائی چه د محمد ﷺ د اُمت عملونه (د حشر په تله کښ خکه) د ټولو نه زیات درانهٔ دی چه د دوی ژبے یو داسے کلمے سره بلدے دی کومه چه په رومبنی اُمتونو درنه وه. هغه کلمه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ده.

**فائده**:- دا یو ښکاره خبره ده چه د محمد ﷺ په اُمت کښ چه د کلمے طیبے څومره زور او دیر والے دے، هیڅ یو اُمت کښ دومره دیر والے نشته. پیران صاحبان په لکهونونه د کردرونو په مقدار دی. او بیا هر یو پیر کم و زیات په سلګونو مریدان دی او تقریبًا د ټولو په نزد کلمه طیبه د زرګونو په مقدار کښ په روزانه معمولاتو کښ داخله ده. جَامِعُ الْاُصُوْل کښ لیکلی دی چه د لفظ اَللّٰه ذکر د وظیفے په طور کم نه کم د پنځو زرو مقدار دے او زیات د یاره څه حد نشته. او صوفیانو د یاره پنځویشت زره روزانه دے. او د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ متعلق یے لیکلی دی چه کم نه کم پنځه زره روزانه وی. دا اندازے د پیرانو صاحبانو د تجویز موافق کم و زیات کیدلے شی. خما مقصود د حضرت عیسٰی علیه السلام په مرسته کښ د پیرانو اندازه بیانول دی چه د یو یو کس د پاره د روزانه

مقدار کم نه کم دا خوړلے شوے دے۔

شمونږ حضرت شاه ولی الله صاحب رحمة الله علیه "قولِ جمیل" کتاب کښ د خپل پلار نه نقل کړے دے چه ما په شروع د سلوک کښ په یوه ساه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ دوه سوه وارے ونیله۔

شیخ ابوزید قرطبی رحمة الله علیه فرمائی ما دا واوریدل چه څوک اویا زره وارے لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اووائی، هغه ته به د دوزخ د اور نه خلاصے ورکړے شی۔ ما چه دا واوریدل، یو نصاب یعنی اویا زره په شمیر مې خپلے بی بی د پاره اُووے او څو نصابونه مې په خپله خپل ځان د پاره اُووے او د آخرت ذخیره مې کړه۔ مونږ سره یو ځوان اوسیده چه د هغه په باره کښ دا مشهوره وه چه دے صاحبِ کشف دے۔ د جنت او د دوزخ ورته هم کشف کیږی۔ ما ته د دے په رښتنوالی کښ څه شک شبه وه۔ یو وارے دغه ځوان مونږ سره خوراک کښ شریک وو چه ناګهانه ئے یوه چغه اُووهله او ساه یې په سلګو شوه۔ اُو دے وئیل چه ځما مور دوزخ کښ سوزی، د هغے حالت په ما ښکاره شو۔ قرطبی رحمة الله علیه وائی چه ما د هغه دا پریشانی اُولیده نو ما ته خیال راغے چه یو نصاب د دهٔ مور ته اُوبخښم چه په دے به ما ته د دهٔ د رښتنوالی تجربه هم اُوشی۔ نو ما یو نصاب د اویا زرو هغه نصابونو نه کوم چه ما خپل ځان د پاره وئیلی وُو د هغه مور ته اُوبخښه۔ ما خپل زړهٔ کښ په پټه بخښلے وو۔ او ځما د دے وئیلو خبر هم الله تعالیٰ نه سوا هیچا ته نه وو۔ هغه ځوان فوراً اُووئیل چه کاکا جی! ځما مور د دوزخ د عذاب نه لرے کړے شوه۔ قرطبی رحمة الله علیه وائی چه ما ته د دے قصے نه دوه فائدے اُوشوے۔ یو خو د دے کلمے برکت، کوم چه د اویا زرو په مقدار باندے ما آوریدلے وو، د هغے تجربه اُوشوه۔ دویم د هغه ځوان د رښتنوالی یقین مې اُوشو۔

دا یوه واقعه ده، د دے قسمه نه ده معلومه څومره واقعات د دے اُمت په افرادو کښ موندے شی۔ د صوفیانو په اصطلاح کښ یو معمولی څیز پاسِ انفاس دے یعنی د دے مشق چه هیڅ یوه ساه د الله تعالیٰ د ذکر نه بغیر دے

وَتَه لاړ شي، نه بَيرَ راشي. د اُمّتِ مُحَمّدِيَه په کروړونو افراد داسې دي.
چې ته چه دې عشق حاصل دے. نو بيا د حضرتِ عيسیٰ عليه السلام په دې ارشاد
کښې څه شک دے چه دعوی ئې په دې کلمې دلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه سره
بلَلې دے او فرمانبردارے دی۔

⑭ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ مَكْتُوْبٌ عَلٰى بَابِ الْجَنَّةِ اِنَّنِيْ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا لَا اُعَذِّبُ مَنْ قَالَهَا (اخرجه ابو الشيخ كذا في الدر)

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه دجنت په دروازه دا ليکلے شوي دي اِنَّنِيْ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا لَا اُعَذِّبُ مَنْ قَالَهَا څه الله يم څما نه سوا څوک دعبادت لائق نشته، څوک چه دا کلمه وائي څه به هغه ته عذاب نه ورکوم۔

**فائده**:- په ګناهونو عذاب کيدل نورو حديثونو کښې په کثرت راغلی دی. په دې وجه کۀ دے نه هميشه عذاب مُراد وی نو هيڅ شک نشته خو کۀ څوک خوش قسمته په داسې اخلاص درے ځلې وظيفه کوَنکے وی چه سره دګناهونو هغه ته بيخي عذاب ورنه کړے شي نو دا هم درحمتِ الٰهي نه لرې نه ده. څنګه چه څوارلسم نمبر حديث کښې تيره شوه. دې نه علاوه نهم نمبر کښې هم څه تفصيل تير شوے دے.

⑮ عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم عَنْ جِبْرِيْلَ عليه السلام قَالَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ اِنِّيْ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِيْ مَنْ جَآءَنِيْ مِنْكُمْ بِشَهَادَةِ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ بِالْاِخْلَاصِ دَخَلَ فِيْ حِصْنِيْ وَمَنْ دَخَلَ حِصْنِيْ اَمِنَ عَذَابِيْ

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د حضرت جبرئيل عليه السلام نه نقل کوی چه د الله جل جلاله ارشاد دے چه څه الله يم، څما نه سوا هيڅوک دعبادت لائق نشته پس څما عبادت کوئ، څوک چه تاسو نه په اخلاص سره د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ګواهي ورکوَنکے راشي، هغه څما قلعه کښې داخل شي او چه څوک څما قلعه کښې داخل شو هغه څما د عذاب نه محفوظ شو۔

(اخرجه ابو نعيم في الحلية كذا في الدر وابن عساكر كذا في الجامع الصغير وفيه ايضا برواية الشيرازي عن علي ورقم له بالصحة. وفي الباب عن عتبان بن مالك بلفظ ان الله قد حرم على النار من قال لا اله الا الله يبتغي)

يَبْتَغِيْ بِذَالِكَ وَجْهَ اللّٰهِ رواه الشيخان وعن ابن عمرؓ مرفوعاً اِنَّ اللّٰهَ لَا يُعَذِّبُ مِنْ عِبَادِهٖ اِلَّا الْمَارِدَ الْمُتَمَرِّدَ الَّذِيْ يَتَمَرَّدُ عَلَى اللّٰهِ وَاَبٰى اَنْ يَّقُوْلَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رواه ابن ماجة۔)

**فائده**:- که چرے دا هم د کبائرو نه د بچ کيدو سره مشروط وی خکه چه پيغمبر عليه السلام حديث کښې تير شوی دی، نو بيا خو او وخته شک نشته. او که چرے د کبائرو سره دا کلمه اُووائی، نو بيا د قاعدے موافق د عذاب نه مراد دائمی عذاب دے. البته د الله جل شانهٗ رحمت د قاعدو پابند نه دے. د قرآن شريف صفا ارشاد دے چه الله جل شانهٗ شرک خو نه معاف کوی، دے نه علاوه چا ته چه اُوغواړی، معاف به يے کړی. لکه په حديث کښې دی چه الله تعالیٰ هغه کس عذابوی کوم چه په الله تعالیٰ سرکشی کوی او د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ويلو نه انکار کوی.

په حديث کښې راغلی دی چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ د الله جل شانهٗ غصه لرے کوی، تر څو چه دُنيا ته په دين ترجيح (يعنی غلبه) ورنه کړی او کله چه دُنيا ته په دين ترجيح ورکړی او لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اُووائی، نو الله تعالیٰ فرمائی چه ته خپله دعوی کښې رښتينے نه يے.

(۲۰) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رضی الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم قَالَ اَفْضَلُ الذِّكْرِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَفْضَلُ الدُّعَاءِ الْاِسْتِغْفَارُ ثُمَّ قَرَءَ فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ الاٰية۔

د نبی کريم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه په ټولو ذکرونو کښې افضل لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه دے او په ټولو دُعاګانو کښې افضل استغفار دے. بيا دے په مرسته کښې د سورة محمد آيت فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يے تلاوت اُوفرمايه.

(اخرجه الطبرانی وابن مردويه والديلمی كذا فی الدر وفی الجامع الصغير برواية الطبرانی ما من الذكر افضل من لا اله الا الله ولا من الدعاء افضل من الاستغفار ورقم له بالصحة۔)

**فائده**:- د دے فصل د ټولو نه اوّلنی حديث کښې هم دا مضمون تير شوے دے چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ د ټولو ذکرونو نه افضل دے چه د دے وجه صوفيانو داليکلی ده، چه د زړه پاکولو کښې دے ذکر له خاص مناسبت دے. د دے په برکت

سره زيات دي تو لو پليټونه پاکيږي. اوهر کله چه د ے سره استغفار هم شامل شي، نو بيا به يے څهٔ وائے.

يو حديث کښ راغلي دي چه حضرت يونس علیه السلام لره چه کله کب اوخوړهٔ نو ده په کيډه کښ در دهٔ دا دعا وه. لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّیْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِیْنَ دُ څوك چه په د ے الفاظو سره دعا غواړي هغه به ضرور قبليږي. د ے د تو لونه روميې حديث کښ هم دا مضمون تير شوے د ے چه د ټو لونه افضل او بهترين ذکر لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ د ے. خو هلته د ټولونه افضله دعا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ويلے شوے ده. اودلته استغفار راغلے د ے. د د ے قسمه اختلاف د حالاتو په اعتبار سره هم کيږي. يو متقي پرهيزګار د ے. هغهٔ د پاره اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ويل د ټولونه افضل د ے. يو ګنهګار د ے هغه د توبے او د استغفار ډير محتاج د ے. د هغهٔ په حق کښ استغفار د ټولونه ضروري د ے. د ے نه علاوه افضليت هم په مختلفو وجوهاتو وي. فائده حاصلولو د پاره د الله تعالیٰ حمد وثنا د ټولونه زيات فائده ورکونکے ده. او ضرر، نقصان او تنګسيا لرے کولو د پاره استغفار د ټولونه زيات فائده من د ے. د ے نه علاوه دد ے قسمه د اختلاف نورے وجے هم وي.

(٢) عَنْ اَبِیْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ رضی الله عنه عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم عَلَيْكُمْ بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ الْاِسْتِغْفَارِ فَاَكْثِرُوْا مِنْهُمَا فَاِنَّ اِبْلِيْسَ قَالَ اَهْلَكْتُ النَّاسَ بِالذُّنُوْبِ وَاَهْلَكُوْنِیْ بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَالْاِسْتِغْفَارِ فَلَمَّا رَاَيْتُ ذٰلِكَ اَهْلَكْتُهُمْ بِالْاَهْوَآءِ وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُهْتَدُوْنَ.

حضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او استغفار ډير په کثرت سره وائي ځکه چه شيطان وائي چه ما خلق په ګناهونو هلاك کړهٔ او هغوي زما په لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او استغفار سره هلاك کړم هر کله چه ما اوليدل چه دا خو هيڅ هم اونه شو، نو ما دوي هوائے نفس (يعني بدعاتو) سره هلاك کړل اودوي خپل ځان په هدايت ګڼړلو.

(اخرجه ابو يعلیٰ كذا فی الدر والجامع الصغير ورقم له بالضعف)

**فائده:-** لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او استغفار سره دهلا کولو مطلب دا دے چه د شیطان انتهائی غرض زړه یا ندے خپل زهر خیرول دی چه هغے ذکر دا اول باب دریم فصل خوارلسم نمبر یاندے تیر شوے دے. او دا زهر هله خیری، کله چه زړه د الله تعالیٰ د ذکر نه خالی وی. کنی شیطان په ذلت سره د زړه نه واپس کیږی. او د الله تعالیٰ ذکر د زړونو د صفائیٔ ذریعه ده. لکه مشکوٰة کښ د نبی اکرم ﷺ نه نقل کړے دے چه د هر یو څیز دپاره یو صفائی وی، د زړونو صفائی د الله تعالیٰ ذکر دے. دغه رنګے د استغفار باره کښ په کثرت سره حدیثونو کښ دا راغلی دی چه د زړونو ځیرے او زنګ لرے کولکے دے.

ابو علی دقاق رحمۃ اللہ علیہ وائی کله چه بنده په اخلاص لَا اِلٰهَ او وائی نو یو دم زړه صفا شی. (لکه څنګه چه په آئینه لوند ٹوکر راښکلے شی) بیا چه هغه اِلَّا اللّٰهُ او وائی نو صفا زړه یا ندے د هغے نور بنکاره شی. په دا سے حالت کښ بنکاره خبره ده چه شیطان ټول کوشش بے کاره شو. او ټول محنت یے ضائع شو.

هوائے نفس سره دهلا کولو مطلب دا دے چه ناحق حق او ګڼړی او چه څه یے په زړه کښ راشی، هم هغه دین او مذهب جوړ کړی. قرآن شریف کښ د دے بدی بیان شوے ده. یو ځائی ارشاد دے اَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ وَّخَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَقَلْبِهٖ وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ غِشٰوَةً ؕ فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿سورة جاثیه ع ۳﴾ (ایا تا هغه کس حالت هم اولیده چا چه خپل اِله د خپل نفس خواهش جوړ کړو. او الله تعالیٰ د دے سره د پوهے ګمراه کړو او د ده په غوږ او زړه یے مهر اولګولو او په سترګو یے ورله پرده واچوله د چه حقه خبره نه آوری، نه ویې نه یے زړه ته کوزیږی، پس الله تعالیٰ چه څوک ګمراه کړی هغه ته څوک هدایت ورکولے شی. بیا هم تاسو نه پوهیږئ.)

بل ځائی ارشاد دے وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنِ اتَّبَعَ هَوٰىهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿سورة قصص ع ۵﴾ د دا سے کس نه

زیات گمراه به څوک وی کوم چه د خپل نفسانی خواهش تابعداری کوی بغیر د دے چه څهٔ دلیل د الله تعالیٰ له طرفه (ده څخه) وی. الله تعالیٰ دا سے ظالمانو ته هدایت نهٔ کوی.)

نور هم ګڼړو ځایونو کښ دا قسمه مضمون راغلے دے. دا د شیطان ډیره سخته حمله ده چه هغه بے دینو ته د دین جامه واغوندوی او سړے هغه دین اوګڼړی کوی یے. او په هغے د ثواب امید لری، او هر کله چه عبادت او دین یے ګڼړی کوی نو هغه نه به توبه څنګه کوی. کله چرے څوک زنا، غلا وغیره ګناهونو کښ اخته وی، نو څهٔ نه څهٔ وخت ترے د توبے او د پرغور د امید شته. خو چه کله ناجائز کار دے عبادت ګڼړی نو د هغے نه توبه ولے کوی او ولے به هغه پریږدی. بلکه ورځ په ورځ به هغے کښ به ترقی کوی. هم دا مطلب دے د شیطان د دے وینا چه ما په ګناهونو کښ اخته کړل خو د الله تعالیٰ په ذکر، توبه او استغفار سره یے څهٔ پریشانه کړم نو ما په دا سے جال کښ ګیر کړل چه د هغے نه ازو تلے نهٔ شی. په دے وجه د دین په هر کار کښ د نبی اکرم ﷺ او د صحابه کرامو رضی الله عنهم طریقه خپل رهبر جوړول ډیره ضروری خبره ده. او څهٔ دا سے طریقه اختیارول چه د سنتو خلاف وی نیکی یے برباد ګناه پرے لازمه ده.

امام غزالی رحمة الله علیه د حسن بصری رحمة الله علیه نه هم نقل کړے دے. دے فرمائی چه ما ته دا روایت را اورسیده چه شیطان وائی چه ما د امت محمدیه مخکښ ګناهونه زیب و زینت سره پیش کړل چه هغه دے آخر ګناه نهٔ ګڼړی چه په هغے استغفار (او توبه) اوکړی. او هغه اهواء یعنی بدعات دی چه هغه دے دین ګڼړی کوی یے.

وهب بن منبه رحمة الله علیه وائی چه د الله تعالیٰ نه اوویریږه. ته په مجلسونو کښ په شیطان لعنت کوے او په پټه د هغهٔ اطاعت کوے او هغهٔ سره دوستی کوے.

بعضو صوفیانو نه نقل دے چه څو مره د حیرانتیا خبره ده چه د الله

جل شانهٔ په شان محسنین د احسانانو معلومیدو نه پس او دهغې د اقرار نه پس دهغهٔ نافرمانی اُوکړے شي او د شیطان دُشمنی د هغهٔ مکارئ او سرکشي معلومه شي او بیا هم د هغهٔ اطاعت اُوکړے شي.

(۲۲) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم لَا يَمُوْتُ عَبْدٌ يَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ يَرْجِعُ ذٰلِكَ اِلٰى قَلْبٍ مُّوْقِنٍ اِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ وَفِيْ رِوَايَةٍ اِلَّا غَفَرَ اللّٰهُ لَهٗ.

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دے چه څوك په دے حال کښې مړشي چه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ په یوخ زړهٔ شهادت ورکوی ضرور به جنت کښې داخلیږی. بل حدیث کښې دی چه ضرور به دهغهٔ الله تعالیٰ بخښنه کوی.

(اخرجه احمد والنسائی والطبرانی والحاکم والترمذی فی نوادر الاصول وابن مردویه والبیهقی فی الاسماء والصفات کذا فی الدر ولابن ماجة فی الباب عن عمران بلفظ مَنْ عَلِمَ اَنَّ اللّٰهَ رَبُّهٗ وَاَنِّیْ نَبِیُّهٗ مُوْقِنًا مِّنْ قَلْبِهٖ حَرَّمَهُ اللّٰهُ عَلَی النَّارِ رواه البزار ورقم له فی الجامع بالصحة وفیه ایضا بروایة البزار عن ابی سعید مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُخْلِصًا دَخَلَ الْجَنَّةَ ورقم له بالصحة.)

**فائده:-** نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه صحیح حدیث کښې دا هم نقل شوی دی چه زیرے واوُرَی او نورو ته هم زیرے واوُرَوی چه څوك په ریښتنی زړهٔ د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اقرار اُوکړی، هغه به جنت کښې داخلیږی. د الله جل شانهٔ په نزد د اخلاص قدر دے او اخلاص سره لږ عمل هم ډیر زیات اجر و ثواب لری دُنیا ته خودنے د پاره، د خلقو خوشحالولو د پاره څهٔ کار اُوکړے شی هغه خو دهغهٔ په دربار کښې بیکاره دے بلکه کوَنګی د پاره وَبال دے.- او په اخلاص سره لږ غوندے عمل هم ډیر څهٔ رنګ راوړی.- په دے وجه په اخلاص چه څوك کلمهٔ شهادت اُووائی د هغهٔ به ضرور بخښنه کیږی، هغه به ضرور جنت کښې داخلیږی.- په دے کښې هیڅ قسمه شك نشته دا ممکنه ده چه هغه د خپلو ګناهونو په وجه څو ورځے سزا اُخوری بیا داخل شی، خو ضروری نهٔ ده کهٔ د چا مخلص اخلاص مَالِكُ الْمُلْك ته خوښ شی، په څهٔ خدمت پے راضی شی نو د هغه ټول ګناهونه مُعاف کړلے شی.- په دا سے کریم سخی ذات چه مونږ

ځان قربان نهٔ کړو، خو مره سخته محرومي ده.

بهرحال دے حدیثونو کښ د کلمے طیبے ویونکو دپاره ډیرے وعدے دي چه په هغے کښ دواړه خبرے شته. د قاعدے موافق دګناهونو سزا تیرول او نه پس معافي او یادګرم، مهرباني، احسان، رحم په خاطر بغیر عذاب ورکولو معافي.

یحیی بن اکثم رحمة الله علیه یو محدث دے. کله چه هغه مړ شو، نو څوک په خوب کښ اولیده، تپوس یے ترے اوکړه چه څنګه درباندے تیره شوه؟ دے ویل چه خدا پیشي اوشوه. ما ته یے اوفرمایل، اے ګنهګاره بوډا! تا فلانے کار کړے دے، فلانے دکړے دے. څه ګناهونه یے شمیر کړل او دے ویل چه تا داسے کارونه کړي دي، ما عرض اوکړه! اے الله! ما ته ستا له طرفه داحدیث نهٔ دے رارسیدلے، دے فرمایل چه څهٔ حدیث درته رسیدلے دے؟ عرض م اوکړه، ما ته عبد الرزاق رحمة الله علیه اووے، هغهٔ ته معمر رحمة الله علیه اووے هغهٔ ته زهري رحمة الله علیه اووے، هغهٔ ته عروه رضي الله عنه اووے، هغهٔ ته حضرت عائشے رضي الله عنها اووے، هغے ته نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه، هغهٔ ته حضرت جبرئیل علیه السلام عرض اوکړه او هغهٔ ته تاسو اوفرمایل چه څوک په اسلام کښ بوډا شي او څهٔ هغهٔ ته د هغهٔ د عملونو په وجه) دعذاب ورکولو اراده هم اوکړم خو د هغهٔ د بوډاوالي نه حیاء اوکړم، معاف یے کړم. او دا تاسو ته معلومه ده چه څهٔ بوډا یم. ارشاد اوشو چه عبد الرزاق رښتیا ویلي دي او معمر هم رښتیا ویلي دي، زهري هم رښتیا ویلي دي، عروه هم رښتیا نقل کړي دي، عائشے هم رښتیا ویلي دي او نبي صلی الله علیه وسلم هم رښتیا ویلي دي او جبرئیل هم رښتیا ویلي دي، او ما هم رښتینے خبره کړے ده. یحیی رحمة الله علیه وائي چه دے نه پس ما ته جنت ته د داخلے حکم اوشو.

(۲۲) عَنْ اَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم لَيْسَ شَيْءٌ اِلَّا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ اِلَّا قَوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَدُعَاءُ الْوَالِدِ.

دنبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه د هر عمل الله تعالی ته رسیدو دپاره په مینځ کښ پرده وي خو د لا اله الا الله او دپلار دعا څوی دپاره. دے دواړو دپاره هیڅ پرده نشته.

(اخرجه ابن مردویه کذا فی الدر المنثور وفی الجامع الصغیر بروایة ابن النجار ورقم له بالضعف وفی الجامع الصغیر بروایة الترمذی عن ابن عمرو ورقم له بالصحة اَلتَّسْبِیْحُ نِصْفُ الْمِیْزَانِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ تَمْلَأُهٗ وَلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ لَیْسَ لَهَا دُوْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ حَتّٰی تَخْلُصَ اِلَیْهِ.)

**فائده:-** پرده نه کیدو مطلب دادے چه دد ے څیزونو قبلیدو کښ لږ غوندے ساعت هم نه لګی. دنورو کارونو په مینځ کښ قبلیدو پورے نورے هم واسطے مانع وی. خودا څیزونه نیغ د الله تعالیٰ دربار ته رسی.

دیو کافر بادشاه قصه یے لیکلے ده چه ډیر سخت ظالم کینه ور وو. اتفاقاً د مسلمانانو یو جنګ کښ ګرفتار شو. مسلمانانو ته دده نه ډیر سخت تکلیفونه رسیدلی وُو. نو دبدلے اخستلو جوش په دوی کښ هم ډیر وو. هغه یے په یو دیګ کښ واچوو، په اور یا ندے یے کیخوده. هغه خو اول خپلو بتانو ته آواز ونه اوکړل، او مدد یے ترے اوغوختلو. خو چه هیڅ اونه شو، نو نو هلته مُسلمان شو، او د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وظیفه یے شروع کړه او پرله پسے یے ویله، او په داسے حالت کښ چه څومره په خلوص او جوش سره ویلے شی بنکاره ده. فورًا د الله تعالیٰ د طرفه مدد اوشو او داسے تیز باران اوشو چه هغه ټول اور مړ شو. او دیګ یخ شو. دِینه پس تیزه سیلئی راغله چه په هغے سره هغه دیګ والوتَه، او لرے په یو ښهر کښ کوم ځائی چه ټول کافران وُو، لاړو پریوَتَه. دهٔ پرله پسے کلمه ویله، خلق ترے کیرچاپیره جمع شول. دا عجیبه کار یے چه اولیدهٔ، حیرانه شول. ددهٔ نه یے دحال پوښتنه اوکړه. دهٔ دا خپله ټوله قصه واورؤله چه دے سره هغه خلق هم مسلمانان شول.

(۲۳) عَنْ عُتْبَانَ بْنِ مَالِكٍ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم لَنْ یُّوَافِیَ عَبْدٌ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ یَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ یَبْتَغِیْ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا حَرَّمَ عَلَی النَّارِ.

دنبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشادِ مُبارک دے، نه به راځی څوك دقیامت په ورځ چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دا سے وائی چه د الله تعالیٰ د رضا نه سِوا یے هیڅ مقصود نه وی، خو دوزخ به په هغهٔ حرام شی.

(اخرجه احمد والبخاری ومسلم وابن ماجة والبیهقی فی الاسماء والصفات کذا فی الدر)

**فائده:-** څوك چه په اخلاص دکلمے طیبے ورد کوی، په هغهٔ د دوزخ اور

رام کيد لو کښې (ظاهري قواعد ے موافق دا شرط دے چه د کبائرو (لويو)
اهونو نه يے ځان ساتلے وي. يا د دوزخ د حراموالي نه مُراد په هغ کښې
ميشه اُوسيدل پرے حرام دي. ځوکه الله جل شانُهٗ د دے پاکے کلمے په
خلاص وئيونکي د ګناهونو باوجود هيڅ د دوزخ نه مُعاف کړي نو ځوک يے
نع کولے شي. حديثونو کښې د داسے بندګانو هم ذکر راځي چه د قيامت په ورځ
ه الله جل شانُهٗ بعض خلقو ته اُوفرمائي چه تا فلانئ ګناه کړے وه، فلانئ د
رے وه. دا رنګے چه کله ډير ګناهونه اُوشميرلے شي نو هغه به پوهه شي چه ځه
لاک شوم، او د اِقرار نه بغير به يے څه لاره نهٔ وي نو ارشاد به اُوشي چه مونږ
په دُنيا کښې ستا ستّاري اُوکړه (يعني پرده مو درباندے واچوله) نن هم ستّاري
و. ته مو مُعاف کړے. د دے قِسمه ډير واقعات حديثونو کښې موجود دي. په
ے وجه کند هغ ذاکرينو د پاره هم د دے قِسمه معامله وي نو لرے نهٔ ده. د الله
تعالیٰ پاک نوم کښې لوئي برکت او فوائد دي. د دے د پاره چه څومره ډيروالے
يد شي، ايله پکښے نهٔ ده کول پکار. څومره خوش نصيبه دي هغه مبارکے
ستي، ځوک چه د دے پاکے کلمے په برکتونو پوهه شول او د دے په وِرد
(وظيفه) کښې يے عُمرونه ختم کړل.

(۲۹) عَنْ يَحْيَى بْنِ طَلْحَةَ رضي الله عنه بْنِ عُبَيْدِ اللهِ قَالَ رُؤِيَ طَلْحَةُ حَزِيْنًا فَقِيْلَ لَهٗ مَا لَكَ قَالَ إِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ إِنِّيْ لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَا يَقُوْلُهَا عَبْدٌ عِنْدَ مَوْتِهٖ إِلَّا نَفَّسَ اللهُ عَنْهُ كُرْبَتَهٗ وَأَشْرَقَ لَوْنُهٗ وَرَأَى مَا يَسُرُّهٗ وَمَا مَنَعَنِيْ أَنْ أَسْأَلَهٗ عَنْهَا إِلَّا الْقُدْرَةُ عَلَيْهِ حَتّٰى مَاتَ فَقَالَ عُمَرُ رضي الله عنه إِنِّيْ لَأَعْلَمُهَا

حضرت طلحه رضي الله عنه خلقو اُوليدهٔ چه ډير غمژن ناست وو. چا ترے تپوس اُوکړهٔ، دا ولے؟ وے فرمايل، ما د نبي اکرم ﷺ نه اُوريدلي وُو چه ما ته يو داسے کلمه معلومه ده چه ځوک د مرګ په وخت هغه اُووائي نو د مرګ تکليف به ترے لرے شي او رنګ به يے روښانه شي او د خوشالئ منظر به اُووينې خو ما ته د نبي اکرم ﷺ نه د هغه کلمے د تپوس طاقت اُونهٔ شو (د دے را ته غم دے) حضرت عمر رضي الله عنه اُوفرمايل، ما ته معلومه ده.

قَالَ فَمَا هِيَ قَالَ لَا نَعْلَمُ كَلِمَةً هِيَ أَعْظَمُ مِنْ كَلِمَةٍ أَمَرَ بِهَا عَمَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ قَالَ فَهِيَ وَاللّٰهِ هِيَ. (اخرجہ البیہقی فی الاسماء والصفات کذا فی الدر قلت اخرجہ الحاکم وقال صحیح علی شرط الشیخین و اقرہ علیہ الذہبی واخرجہ احمد واخرج ایضا

طلحه رضی اللہ عنہ (خوشاله شو) وے ویل اګومه ده. حضرت عمر رضی اللہ عنہ اُو فرمایل، مونږ ته معلومه ده چه هغه یوه کلمه ده ے نه لویه نشته کومه چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم خپل تره (ابو طالب) ته پیش کړے وه او هغه لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ده. طلحه اُو ویل والله هم داده، والله هم داده.

من مسند عمر بمعناه بزیادة فیہا واخرجہ ابن ماجة عن یحیی بن طلحة عن امہ وفی شرح الصدور للسیوطی واخرج ابو یعلی والحاکم بسند صحیح عن طلحة وعمر قالا سمعنا رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم یقول انی اعلم کلمة الحدیث)

**فائده**: - کلمه طیّبه سراسر نُورا وخوشالی کیدل ډیرو روایاتو نه معلومیږی. حافظ ابنِ حجر رحمۃ اللہ علیہ مُنبهات کښ حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ نه نقل کړی دی چه تیارے پنځه دی، او پنځه د هغے ډیارے دی. د دُنیا محبت تیاره ده، د دے ډیوه تقوی ده. او ګناه تیاره ده، د دے ډیوه توبه ده. او قبر تیاره ده، د دے ډیوه لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ده، او آخرت تیاره ده، د دے ډیوه نیک عمل دے. او پُلِ صراط تیاره ده، د دے ډیوه یقین دے.

رابعه عدویه مشهوره بزرګه ده. ټوله شپه به مانځه کښ مشغوله وه صبح صادق نه پس به لږ شان اُوده کیدله. او هرکله چه به د سحر رڼا به ښکاره شوه نو په ویره به راپاسیده او هغې به ملامته کوله، ترکومے پورے به اُوده یے، ډیره زر د قبر زمانه راتلونکے ده چه په هغے کښ به د شپیلئ پُوکو هلو پورے اُوده یے. چه کله یے د مرګ وخت نزدے شو، نو یو خدمتګارے ته یے وصیت اُوکړو چه دا معمولی کپړه چه ما به د تهجد لو په وخت اغوستلو په دے کښ م کفن کړه. او چا ته خما د مرګ خبر مه کوه. د وصیت مطابق یے د کفن دفن انتظام اُوکړے شو. رستو د غے خدمتګارے خوب کښ اُولیده، چه ډیرے ښکلے جامے یے اغوستے دی. تپوس یے ترے اُوکړو چه ستا هغه کپړ

ځکه نو، په کوم کښې چه درته کفن درکړے شوے وو. وے فرمایل چه هغه ئے لغوند کړه ځما عملونو سره به ئے کېخودۀ. خلهٔ مشکارے ورته درخواست اوکړو چه ما ته څۀ نصیحت اوکړه. وے فرمایل چه د الله تعالیٰ ذکر خو مرو چه کولے شے کوه چه د دے په وجه به تۀ په قبر کښې قابله د پېښېدو وجوړ شے.

⑳ عَنْ عُثْمَانَ رضی الله عنه قَالَ إِنَّ رِجَالًا مِّنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ حِيْنَ تُوُفِّيَ حَزِنُوْا عَلَيْهِ حَتّٰى كَادَ بَعْضُهُمْ يُوَسْوِسُ قَالَ عُثْمَانُ رضی الله عنه وَكُنْتُ مِنْهُمْ فَبَيْنَا أَنَا جَالِسٌ مَرَّ عَلَيَّ عُمَرُ رضی الله عنه وَسَلَّمَ فَلَمْ أَشْعُرْ بِهِ فَاشْتَكٰى عُمَرُ رضی الله عنه إِلٰى أَبِيْ بَكْرٍ رضی الله عنه ثُمَّ أَقْبَلَا حَتّٰى سَلَّمَا عَلَيَّ جَمِيْعًا فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ رضی الله عنه مَا حَمَلَكَ عَلٰى أَنْ لَّا تَرُدَّ عَلٰى أَخِيْكَ عُمَرَ رضی الله عنه سَلَامَهُ قُلْتُ مَا فَعَلْتُ فَقَالَ عُمَرُ رضی الله عنه بَلٰى وَاللهِ لَقَدْ فَعَلْتَ قَالَ قُلْتُ وَاللهِ مَا شَعَرْتُ أَنَّكَ مَرَرْتَ وَلَا سَلَّمْتَ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ رضی الله عنه صَدَقَ عُثْمَانُ رضی الله عنه قَدْ شَغَلَكَ عَنْ ذٰلِكَ أَمْرٌ فَقُلْتُ أَجَلْ قَالَ مَا هُوَ قُلْتُ تَوَفَّى اللهُ تَعَالٰى نَبِيَّهُ ﷺ قَبْلَ أَنْ نَّسْأَلَهُ عَنْ نَّجَاةِ هٰذَا الْأَمْرِ قَالَ

د نبی اکرم ﷺ (ځما روح ترے قربان شه) د وفات په وخت صحابه کرام رضی الله عنهم دومره سخت غمژن وو چه ډیر په مختلفو وسوسو کښې ګیر شول. حضرت عثمان رضی الله عنه فرمائی چه ځۀ هم د هغه خلقو نه وم کوم چه وسوسو کښې ګیر شوی وو. زۀ په دا سے حال کښې ناست وم، حضرت عمر رضی الله عنه ځما خوا ته تشریف راوړو او سلام ئے اوکړو خو ما ته ئے پته اونه لګیده. هغهٔ حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته شکایت اوکړو چه عثمان په ظاهر خفه دے چه ما سلام اوکړو هغهٔ ئے جواب رانۀ کړو. د دے نه پس دواړه حضرات یو ځائے راغلل او سلام ئے اوکړو. حضرت ابوبکر رضی الله عنه پوښتنه اوکړه چه تا خپل رور عمر رضی الله عنه ته د سلام جواب ولے ورنکړو (څۀ خبره ده؟) ما عرض اوکړو چه ما خو دا سے نۀ دی کړی. حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمایل، هم دا سے شوی دی. ما عرض اوکړو چه ځه نۀ ستا په راتلو خبر یم چه کله راغلے وے او نۀ د یه سلام پوهه شوے یم. حضرت ابوبکر رضی الله عنه اوفرمایل رښتیا دی. هم دا سے به شوی وی. غالبًا

اَبُوْبَکْرٍ رضی اللہ عنہ فَقَدْ سَاَلْتُهٗ عَنْ ذٰلِكَ فَقُمْتُ اِلَيْهِ وَقُلْتُ لَهٗ بِاَبِیْ اَنْتَ وَاُمِّیْ اَنْتَ اَحَقُّ بِهَا قَالَ اَبُوْبَکْرٍ رضی اللہ عنہ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا نَجَاةُ هٰذَا الْاَمْرِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم مَنْ قَبِلَ مِنِّی الْکَلِمَةَ الَّتِیْ عَرَضْتُ عَلٰی عَمِّیْ فَرَدَّهَا فَهِیَ لَهٗ نَجَاةٌ۔

(رواه احمد كذا فى المشكوة وفى مجمع الزوائد رواه احمد والطبرانى فى الاوسط باختصار وابو يعلى بتمامه والبزار بنحوه وفيه رجل لم يسم لكن الزهرى وثقه وابهم اه قلت وذكر فى مجمع الزوائد له متابعات بالفاظ متقاربة۔)

ته به په څهٔ سوچ فکر کښې ناست وې. ما عرض اُوکړهٔ واقعی څهٔ په یو ژور سوچ کښې وُم. حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ پوښتنه اُوکړه هغه څهٔ وو؟ ما عرض اُوکړهٔ چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم وفات شو او مونږ ترې دا اَهم تپوس اُونکړهٔ چه د دے کار خلاصے په څهٔ څیز کښې دے؟ حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ اُوفرمایل چه ما ترے تپوس کړے وُو، څهٔ پاسیدم او ما اُووے چه په تاسو دِ ځما مور پلار قربان وی. واقعی هم ته زیات حقدار وے د دے پوښتنے (چه د دین په هر یو څیز کښې د تولو نه مخکښې یے.) حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ اُوفرمایل ما د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه پوښتنه کړے وه چه د دے کار خلاصے په څهٔ کښې دے؟ هغوی ارشاد اُوفرمایهٔ چه څوک دغه کلمه قبوله کړی، کومه چه ما خپل تره (ابوطالب ته) د هغهٔ د وفات په وخت (پیش کړے وه، او هغهٔ رد کړے وه. هُم دغه کلمه هغهٔ دپاره خلاصے دے."

**فائدہ:-** وَسوسو کښې اَخته کیدو مطلب دا دے چه صحابه کرام رضی اللہ عنہم دغه وخت د رنج وغم په تکلیف کښې دا سے پریشانه شوی وُو چه د حضرت عمر رضی اللہ عنہ په شان دلوئی مرتبے بهادر تُوره لاس کښې اخستے ولاړ وو، چه څوک دا اُووائی چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم وفات شو، د هغهٔ سټ به وهم. نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم د خپل رَب ملاقات دپاره تشریف اُوړے دے لکه څنګه چه موسٰی علیہ السلام کوهِ طور ته تشریف اُوړے وو. د بعض صحابو خیال پیدا شو چه دین اُوس ختم شو. بعض په دے سوچ کښې وُو چه اُوس د دین د ترقئ هیڅ شکل نه شی کیدے. بعض بالکل وارخطا وُو چه اَهو خبرے نه شوے کولے.

بس یو د ابُوبکر صدیق رضی الله عنه ذات وو، چه سره د دے چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سره یے کامل عشق او کامل محبت وو. دغه وخت ثابت قدم په کلکو قدمونو ولاړ وو. بنه په اوچت آواز یے خُطبه اُوویله چه په هغے کښ وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ایت اُولوستهٔ چه د هغے ترجمه داده چه محمد صلی الله علیه وسلم صرف رسُول خو دے، الله خو نهٔ دے چه ورته مرګ نه راځی، پس که چرے دے مړشی یا شهید شی نو تاسو به د دین نه واپس اُوګرزئ، او چه څوک (د دین نه) واپس وګرزی، هغوی الله خو څهٔ نقصان کوُلے نشی (خپل نقصان به کوی). دا قصه مختصره ما خپله رساله "حکایات صحابهٔ" کښ لیکلے ده.

مخکښ چه کوم ارشاد دے چه د دے کار خلاصه څهٔ دے؟ د د دے دوه مطلبه دی. یو دا چه د دین کارُونه خو ډیر دی. د دے ټولو کارونو کښ مدار په کوم څیز دے چه د هغے نه بغیر څهٔ علاج نهٔ وی. د دے مطلب موافق جواب ښکاره دے چه د دین ټول دارومدار په کلمهٔ شهادت دے او د اسلام جرړه هم کلمه طیبه ده. دویم مطلب دا دے چه د دے کار یعنی دین کښ تکلیفونه هم پیښیږی، وسوسے په کښ هم راځی، د شیطان خلل اچول هم یو مستقل مُصیبت دے. دُنیوی ضرورتُونه هم خپل طرف ته راکاږی. د دے حالت کښ مطلب د حدیث دا دے چه د کلمے طیبے ډیر ډیر ورتیل د دے ټولو څیزونو علاج دے چه دا اِخلاص پیدا کوی، زړونه صفا کوی او د شیطان د هلاکت سبب دے څنګه چه د دے ټولو روایتونو کښ د دے اثرات ډیر ذکر کړے شوی دی.

یو حدیث کښ راغلی دی چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ کلمه مُخپل ویُونکی نه یو کم سل قسمه بلاګانے لرے کوی چه په هغے کښ د ټولو نه کمه بلا غم دے چه هر وخت په بنده راسورَوی.

⑭ عَنْ عُثْمَانَ رضی الله عنه قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صلی الله علیه وسلم يَقُوْلُ اِنِّیْ اَعْلَمُ کَلِمَةً لَا يَقُوْلُهَا عَبْدٌ حَقًّا مِّنْ قَلْبِهٖ اِلَّا حُرِّمَ عَلَی

حضرت عُثمان رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسُول الله صلی الله علیه وسلم نه اُوریدلی وُو چه زهٔ یو داسے کلمه پیژنم چه څوک دا حقه اُوګنړی په اخلاص او د زړهٔ په یقین سره، بیے اُووائی نو دوزخ

النَّارِ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ أَنَا أُحَدِّثُكَ مَا هِيَ هِيَ كَلِمَةُ الْإِخْلَاصِ الَّتِي أَعَزَّ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى بِهَا مُحَمَّدًا ﷺ وَأَصْحَابَهُ وَهِيَ كَلِمَةُ التَّقْوٰى الَّتِي أَلَاصَ عَلَيْهَا نَبِيُّ اللّٰهِ ﷺ عَمَّهُ أَبَا طَالِبٍ عِنْدَ الْمَوْتِ شَهَادَةَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ۔

او په هغهٔ حرام دے۔ حضرت عمر رضی الله عنه اُوفرمايل چه څهٔ درته اُوښايم هغه کلمه کومه ده. دا هغهَ کلمه ده په کومه چه الله تعالٰی خپل رسول ﷺ اود هغهٔ صحابو رضی الله عنهم ته عزت ورکړهٔ. دا هغه د تقوٰی کلمه ده د کومې چه نبی اکرم ﷺ د خپل ترهٔ ابوطالب رضی الله عنه د وفات په وخت اِرادو کړے وه. هغه گواهی ورکول دی د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔

(رواه احمد واخرجه الحاكم بهذا اللفظ وقال صحيح على شرطهما واقره عليه الذهبي واخرجه الحاكم برواية عثمان رضي الله عنه عن عمر رضي الله عنه مرفوعا اني لاعلم كلمة لا يقولها عبد حقا من قلبه فيموت على ذلك الا حرمه الله على النار لا اله الا الله وقال هذا صحيح على شرطهما ثم ذكر له شاهدين من حديثهما)

**فائده**:- د نبی اکرم ﷺ ترهٔ ابوطالب قصه حديث، تفسير او د تاريخ کتابونو کښې مشهوره ده چه کله د هغهٔ د وفات وخت نزدے شو، نو چونکه د هغهٔ احسانات په نبی اکرم ﷺ او په مُسلمانانو ډير وُو، ځکه نبی اکرم ﷺ هغهٔ ته تشريف يوړهٔ او ارشاد يے اُوفرمايهٔ چه اے ځما ترهٔ! لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اُووايه چه د قيامت په ورځ ما ته ستا د سفارش کولو موقع ملاؤ شی او څهٔ الله تعالٰی ته ستا د اسلام گواهی ورکړے شم. دهٔ اُووے چه خلق به ما ته پيغور راکوی چه د مرګ له ويرے يے د وراره دين قبول کړهٔ. که چرے دا خيال نهٔ وے نو ما به دا وخت د دے کلمے په وئيلو ستا سترگے يخے کړے وے. په دے خبره نبی اکرم ﷺ غمژن شو واپس راغے. د دے قصه کښې د قرآن شريف ايت اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ (سورة قصص. ع۴) نازل شو چه د دے ترجمه دا ده چه تهٔ چا ته غوارے هدايت نهٔ شے کولے بلکه الله تعالٰی چه چا ته غواړی هدايت کوی. د دے قصے نه دا هم ښکاره شوه چه کوم خلق فِسق و فجور (گناهونو) کښې اخته وی، الله تعالٰی او د هغهٔ د رسول ﷺ نه بے تعلقه وی او د اکثرو چه د خپلو خپلوانو بزرگانو په دُعا سره به موبيړے پورے وزی سخته غلطی

کیږي. کار ونه کولو والا صرف الله تعالی دے. هغه طرف ته رجوع کول پکار دي. هغه سره ریښتینے تعلق قائمول ضروري دي. البته الله والو سره ناسته پاسته، د هغوی دعا، د هغوی توجه مومن له ګټه کولے شي.

(۲۸) عَنْ عُمَرَ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَمَّا اَذْنَبَ اٰدَمُ الذَّنْبَ الَّذِيْ اَذْنَبَهٗ رَفَعَ رَاْسَهٗ اِلَى السَّمَاۗءِ فَقَالَ اَسْئَلُكَ بِحَقِّ مُحَمَّدٍ ﷺ اِلَّا غَفَرْتَ لِيْ فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلَيْهِ وَمَنْ مُحَمَّدٌ فَقَالَ تَبَارَكَ اسْمُكَ لَمَّا خَلَقْتَنِيْ رَفَعْتُ رَاْسِيْ اِلٰى عَرْشِكَ فَاِذَا فِيْهِ مَكْتُوْبٌ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَعَلِمْتُ اَنَّهٗ لَيْسَ اَحَدٌ اَعْظَمَ عِنْدَكَ قَدْرًا عَمَّنْ جَعَلْتَ اسْمَهٗ مَعَ اسْمِكَ فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلَيْهِ يَا اٰدَمُ اِنَّهٗ اٰخِرُ النَّبِيِّيْنَ مِنْ ذُرِّيَّتِكَ وَلَوْلَا هُوَ مَا خَلَقْتُكَ. (اخرجه الطبرانی فی الصغیر والحاکم وابو نعیم والبیہقی کلاهما فی الدلائل وابن عساکر فی الدر وفی مجمع الزوائد رواه الطبرانی فی الاوسط والصغیر وفیه من لم اعرفهم قلت ویؤیده الآخر الحدیث المشهور لَوْلَاكَ لَمَا خَلَقْتُ الْاَفْلَاكَ قال القاری فی الموضوعات الکبیر موضوع لکن معناه صحیح وفی التشرف معناه ثابت ویؤیده الاول ما ورد فی غیر روایة من انه مکتوب علی العرش واوراق الجنة لا اله الا الله محمد رسول الله کما بسط طرقها السیوطی فی مناقب اللآلی فی غیر موضع وبسط الشواهد ایضا فی تفسیره فی سورة الم نشرح.)

دنبي اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه د حضرت آدم علیه السلام نه چه کله هغه ګناه اوشوله (د کوم په وجه چه د جنت نه دنیا ته رااولیږلے شو نو هر وخت به یے ژړل او دعا او استغفار به یے کولو. یو وارے یے آسمان طرف ته مخ کړه، عرض یے اوکړه، اے الله! د محمد ﷺ په وسیله لتا نه بخښنه غواړم. وحي نازله شوه چه محمد څوک دے (د چا په وسیله چه تا بخښنه وغوخته) عرض یے اوکړه چه کله تا زه پیدا کړے ووم، نو ما په عرش لیکلے شوي لیدلي وو. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ نو ځکه پوهه شوم چه د محمد ﷺ نه اوچته هستي بله نشته چه د چا نوم تا خپل نوم سره ساتلے دے. وحي نازله شوه چه هغه خَاتَمُ النَّبِيِّيْن دے. ستا د اولاد نه دے. که چرے هغه نه وے نو ته به هم نه وے پیدا کړے شوے.

**فائده:** حضرت آدم علیه السلام به په دغه وخت څه څه دعاګانے کړے وے

او ښنګه ښنګه یے منت زاری، ژړا یے کړے وه. دِ بهاره کښ ډیر روایتونه راغلی دی. خو په هغے کښ هیڅ خلاف نشته. په چا چه د مالک نا راضتیا او د آقا خفګان وی هم هغه یے پیژنی. د دے به حقیقته مالکانو د نا راضتیا په وجه نوکرانو او مخادمانو باندے څه څه تیریږی. او هلته خو مَالِكُ الْمُلْكِ رَزَّاقِ عَالَمْ ټول دُنیا ته رزق ورکوونکے، یعنی د الله تعالیٰ غصه وه، او په چا تیریدله. په هغه کس چه چا ته یے په فرښتو سجده کړے وه خپل نزدے دوست یے جوړ کړے وو. څوك چه څومره نزدے دوست وی هغومره په هغهٔ د غصے اثر کیږی، په شرط د دے چه کمینه (رذیل) نه وی. او هغه خو نبی وو.

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه حضرت آدم علیه السلام دومره ژړلی وو، که چرے د ټولے دُنیا د بنیادموژړا کانے جمع کړے شی نو د هغے برابر نشی کیدے. څلویښتو کالو پورے یے سر پورته نه وو اُوچت کړے.

حضرت بُرَیدَه رضی الله عنه په خپله د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی. که چرے د آدم علیه السلام د ژړا د ټولے دُنیا د ژړا سره مقابله اوکړے شی نو د هغهٔ ژړا به ترزیاته شی.

یو حدیث کښ دی که چرے د هغهٔ اوښکے د هغه د ټول اولاد د اوښکو سره اوتللے شی نو د هغهٔ اوښکے به ترے زیاتے شی. د داسے حالت کښ به یے څهٔ څهٔ رنګے زاری منت کړے وی، ښکاره ده. ؎

یاں لب پہ لاکھ لاکھ سخن اضطراب میں ✦ واں ایک خاموشی مری سب کے جواب میں

دلته په شونډو لکهونو خبرے اضطراب کښ ✦ هلته یوه خاموشی ځما د ټولو په جواب کښ

په دے وجه کوم چه روایتونو کښ ذکر کړے شوی دی. د دے ټولو په مجموعه کښ هیڅ شك نشته. د هغے ټولو نه یو دا هم ده چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم وسیله یے اختیاره کړه. دویم مضمون په عرش باندے لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ لیکلے وه. دا هم ډیرو مختلفو روایتونو کښ راغلی دی.

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائی، څهٔ جنت کښ داخل شوم، نو ما د هغے دواړو اړخونو کښ درے کرخے د سرو زرو په اوبو لیکلے شوے اولیدلے. په ومبی کرخه کښ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ لیکلے وه. دویمه کرخه کښ مَا قَدَّمْنَا

وَجَدْنَا وَمَا اَکَلْنَا رَعَیْنَا وَمَا خَلَفْنَا خَبَرْنَا وه (کوم څهٔ چه مونږ مخکښې اولیږل
یعنې صدقه خیرات وغیره مو وُکړل هغه مونږ بیا مونده ل او کوم څهٔ چه مونږ په دُنیا
کښې وُخوړل هغه مو ګټه اُوکړه او کوم څهٔ چه مونږ پریخودل هغه مو نقصان
اُوکړو) او د رتیمه کښې رخه کښې وُو، اُمَّةٌ مُذْنِبَةٌ وَّ رَبٌّ غَفُوْرٌ (اُمت ګنهګار دے
او رب بخښونکے دے.)

یو بزرګ وائي چه د هندوستان یو ښهر ته اُورسیدم نو ما هلته یو ونه
اُولیدله چه د هغې میوه د بادام په شان وه، د هغې دوه پوستکي وُو. هرکله چه
هغه مات کړے شو نو د هغې د دننه نه یوه شنه پاڼړه اُنغښتے اُووته. هغې
پرانستلے شو نو په سره رنګ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ پرے لیکلے وُو. ما
دا قصه ابو یعقوب شکاری رحمة الله عليه ته ذکر کړه. هغهٔ اُووے د حیرانتیا خبره نه
ده. ما په ایله (بندر) کښې یو کب ښکار کړے وو، د هغهٔ په یو غوږ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ
او په دویم مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ لیکلے شوے وُو.

(۳) عَنْ اَسْمَاءَ رضي الله عنها بِنْتِ يَزِيْدَ بْنِ السَّكَنِ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم اَنَّهٗ قَالَ اِسْمُ اللّٰهِ الْاَعْظَمُ فِيْ هَاتَيْنِ الْاٰيَتَيْنِ وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ وَ الٓمٓ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ

حضرت اسماء رضي الله عنها د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي
چه د الله تعالیٰ د ټولو نه لوئي نوم (کوم چه د
اسم اعظم په نامه عام طور مشهور دے) په د ے
دوه وُ ایتونو کښې دے په شرط د دے چه په اخلاص
اُوویلے شي، وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ
الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ (سورة بقره ع ۱۹) او الٓمٓ اللّٰهُ لَآ
اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ (سورة آل عمران ع ۱)

(اخرجه ابن ابي شيبة واحمد والدارمي وابوداود والترمذي وصححه وابن ماجه وابو مسلم الكجي في السنن وابن الضريس وابن ابي حاتم والبيهقي في الشعب كذا في الدر.)

**فائده:** د اسم اعظم متعلق روایات حدیثونو کښې ډیر راغلي دي
چه کومه دُعا د هغې نه رستوا اُونه غوښتلے شي هغه قبلیږي. البته د اسم اعظم په
مقررتیا کښې روایات مختلف راغلي دي. او دا د الله تعالیٰ عادت دے چه
هر یو داسے ضروري خبر کښې د پټوالي په وجه اختلاف پیدا کوي. لکه

دشپِ قدر په مقررتیا کښې، دجُمعې په وُرځ دُعا قبلیدو خاص وخت کښې تقلاق شوے دے. په دے کښې ډیر مصلحتونه دی کوم چه ما خپله رسالهٔ فضائل رمضان" کښې لیکلی دی. دغسے د اسمِ اعظم په خاص کولو کښې مختلف روایتونه راغلی دی. دهغې ټولونه د روایت هم دے چه کوم پورته ذکر شو. نورو روایتونو کښې هم ددغې ایتونو متعلق ارشاد شوے دے.

حضرت انس رضی الله عنه دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه مُتَمَرِّد (سرکش) او شریر شیطانانو باندے ددے دوه ؤ ایتونو نه زیات سخت نور ایتونه نشته، هغه دوه ایتونه وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ نه شروع کیږی.

ابراهیم بن وَسْمه رحمة الله علیه وائی په چا چه دلیونتوب اثر شوے وی هغه دپاره ددے ایتونو لوستل فائدهٔ مند دی. او څوک چه ددے ایتونو دلوستلو پابندی کوی ددے قسمه څیزونو نه به محفوظ اوسی. وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ پوره ایت (سورة بقره. ع ۱۹) اَللّٰهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ "اٰیة الکرسی" او دسورة بقرے اخری ایت، او إِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِي خَلَقَ نه مُحْسِنِينَ پورے (سورة اعراف. ع ۷) او دسورة حشر اخری ایتونه (هُوَ اللّٰهُ الَّذِي لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ نه) مونږ ته داخبره رارسیدلے ده چه دا ټول ایتونه (کوم چه مو شمیر کړل) دعرش په کونټونو باندے لیکلے شوی دی. (وابراهیم بن وسمه) رحمة الله علیه به داهم ویل، کوم چرے بچی ویریږی یا پرے دنظر لګیدو خطره وی نو دا ایتونه هغوی دپاره لیکلی.

عَلامه شامی رحمة الله علیه دحضرت امام اعظم رحمة الله علیه نه نقل کړی دی چه اسم اعظم لفظ دالله دے او لیکلی دی چه هم دا قول دعلامه طحاوی رحمة الله علیه او ډیرو عالمانو نه نقل کړے شوے دے. او اکثرو عارفینو دلویو صوفیانو هم دا تحقیق دے. په دے وجه ددوی په نزد ذکر هم ددے پاک نامه ډیر کیږی. حضرت شیخ عبدالقادر جیلانی رحمة الله علیه نه هم دا نقل کړے شوے ده، فرمائی چه اسمِ اعظم اَللّٰه دے په شرط ددے چه ته داپاک نوم وائے نو ستا په زړه کښې دهغهٔ نه سوا نور هیڅ نهٔ وی. فرمائی چه عوامو له داپاک نوم داسے اخستل پکار دی چه کله دا په ژبه جاری شی نو عظمت او ویرے سره وی او خواصو دپاره

داسې وي چه د دغه پاك نوم دخاوند ذات او صفات هم په زړه کښې حاضر وي. او اَخَصُّ الْخَوَاص (یعنې ډیر خاص خلقو) دپاره داضروري ده چه د دغه پاك ذات نه سوا په زړه کښې هیڅ څیز نه وي. ویلې شي چه قرآن شریف کښې هم د پاك نوم د ومره ډیر ذکر کړے شوے دے چه څه حد وحساب یې نشته تعداد یې دوه زره درې سوه شپیته ۲۳۶۰ بنائي.

شیخ اسمٰعیل فرغاني رحمة الله علیه وائي چه ما ته څه موده د اسمِ اعظم زده کولو ارزو وه، مجاهدې به مې ډیرې کولې. څو څو ورځې به مې لوږې تیرولې تر دې چه د لوږې د وجه به بې هوشه پریوتلم. یوه ورځې د دمشق په جمات کښې ناست وم چه دوه سړي جمات ته راغلل او ځما نزدې اودریدل ما لیده هغوي وليدل خیال مې اوکړو چه دا فرښتې معلومیږي. هغوي کښې یو د بل نه تپوس اوکړو. آیا ته اسمِ اعظم زده کول غواړې، هغه اووې، او- راته اوښایه. ما چه دا خبرې اترې واوریدلې ورته مې فکر اوکړو، نو ورته یې اووې چه هغه خو لفظ د "الله" دے، په شرط د دې چه صِدق لجا سره وي. شیخ اسماعیل رحمة الله علیه وائي چه د صدقِ لجا مطلب دا دے چه د دویم نکی حالت دغه وخت داسې وي څنګه چه څوك دریاب کښې ډوبیږي او څوك دهغه بچ کوونکے نه وي. نو داسې وخت چه څومره خلوص سره نوم اخستلے شي دغه حالت ترې مُراد دے. اسمِ اعظم معلومولو دپاره دلوئي اهلیت او د لوئي صبر او د ډیر برداشت ضرورت دے.

د یو بزرګ قصه یې لیکلې ده چه هغه ته اسمِ اعظم ورتلو. یو فقیر یې په خدمت کښې حاضر شو، او درخواست یې ورته اوکړو چه ما ته هم اوښایه. هغې بزرګ ورته اووې چه تا کښې اهلیت نشته. فقیر اووے چه ما کښې د دے اهلیت شته. نو بزرګ اوفرمایل چه ښه ده، فلاني ځائي ته لاړ شه، کینه او چه څه واقعه هلته پیښه شي، د هغې ما ته خبر راکړه. فقیر هغه ځائي ته لاړه وې لیدل چه یو بوډا سړي په خر لرګي راباړ کړي دي راوړي یې. مخکښې ورته یو سپاهي راغے چه هغه د ابوډا اووهه او لرګي یې ترې واخستل، فقیر

ته په دے سپاهی ډیره غصه راغله، واپس راغے او بزرګ ته یے ټوله قصه واورووله، او وے ویل که چرے ما ته اسم اعظم راکړے نو دغه سپاهی ته به م خیرے کړے وے. بزرګ ورته او وے چه دغه لرګو والا نه ما اسم اعظم زده کړے دے.

(٣٠) عَنْ اَنَسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰی اَخْرِجُوْا مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَفِیْ قَلْبِهٖ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِّنَ الْاِیْمَانِ اَخْرِجُوْا مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَوْ ذَکَرَنِیْ اَوْ خَافَنِیْ فِیْ مَقَامٍ (اخرجه الحاکم برواية المؤمل عن المبارک بن فضالة

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه (د قیامت په ورځ به) الله تعالیٰ ارشاد او فرمائی چه د دوزخ نه هغه کس را اوباسئ، چا چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ویلے وی او د هغه په زړه کښ د یو ذرے برابر ایمان وی او هر هغه څوک ترے را اوباسئ چا چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ویلے وی، یا څه یے (په څه قسمه) یاد کړے یم یا په څه موقع ما نه ویریدلے وی.

وقال صحیح الاسناد واقره علیه الذهبی وقال الحاکم قد تابع ابو داؤد مؤملا علی روایته واختصره.)

**فائده**:- دے پاک کلمه کښ الله جل شانه څه څه برکتونه ایښی دی. د دے معمولی غوندے اندازه د و مره خبرے نه کیدے شی چه د ښلو کالو د پاره چه هغه ټول عمر کفر او شرک کښ تیر شوے وی، یو وارے دا پاک کلمه ایت (ن) سره او وائی مسلمان شی نو د ټول عمر ټول ګناهونه ترے لرے کړے شی او د ایمان راوړلو نه پس که چرے ګناهونه یے کړی وی، بیا به هم د دے کلمے په برکت څه نه څه وخت به د دوزخ نه ضرور اوزی. حضرت حذیفه رضی الله عنه چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم رازدار دے. فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد او فرمائیه (چه یو زمانه داسے را تلونکے ده) چه اسلام به داسے خیرن شی څنګه چه د جامے نقش و نګار (د زړوالی په وجه) خیرن شی چه نه به څوک روژه پیژنی، نه حج، نه زکوٰة. آخر به یوه شپه داسے راشی چه قرآن شریف به هم اوچت کړے شی، هیڅ ایت به د دے باقی پاتے نشی. بوډاګان نارینه او بوډیګانے زنانه به دا وائی چه مونږ د خپلو مشرانو نه کلمه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اوریدلے

وه، مونږ به هم داوایو. (حضرت حُذَیفه رضي الله عنه یو شاګرد تپوس اُوکړو چه هر کله زکوٰة، حج، روژه هیڅ رُکن نه وی، نو بیا ځے داکلمه به څهٔ کار ورکړي؟ حضرت حُذَیفه رضي الله عنه چُپ شو. هغهٔ بیا هم دغه تپوس اُوکړو، په دریم ځل حضرت حُذَیفه رضي الله عنه اُوفرمایل چه (څهٔ نه څهٔ وخت) به یې د دوزخ نه راُوباسي. د دوزخ نه به یې راُوباسي، د دوزخ نه به یې راُوباسي. یعنې د اسلام ارکان یې چه اداکړي نهٔ وي، د هغې عذاب تېرولو نه پس څهٔ نه څهٔ وخت د دے کلمے په برکت سره به خلاصے بیامومي. هم دا مطلب دے د یورتنی حدیث که چرے دایمان ذره غوندے حصه هم وي، بیا به هم د دوزخ نه څهٔ نه څهٔ وخت راُوباسلے شي. یو حدیث کښې دي چه څوک لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اُووائی، دا به د ده ته یو ورځ ضرور فائده ورکړي اګرچه دے به څهٔ نه څهٔ سزا تیره کړي.

(۳۶) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنه قَالَ اَتَى النَّبِيَّ ﷺ اَعْرَابِيٌّ عَلَيْهِ جُبَّةٌ مِّنْ طَيَالِسَةٍ مَكْفُوْفَةٌ بِالدِّيْبَاجِ فَقَالَ اِنَّ صَاحِبَكُمْ هٰذَا يُرِيْدُ اَنْ يَّرْفَعَ كُلَّ رَاعٍ وَّابْنَ رَاعٍ وَيَضَعَ كُلَّ فَارِسٍ وَّابْنَ فَارِسٍ فَقَامَ النَّبِيُّ ﷺ مُغْضَبًا فَاَخَذَ بِمَجَامِعِ ثَوْبِهٖ فَاجْتَذَبَهٗ وَقَالَ اَلَا اَرٰى عَلَيْكَ ثِيَابَ مَنْ لَّا يَعْقِلُ ثُمَّ رَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فَجَلَسَ فَقَالَ اِنَّ نُوْحًا لَّمَّا حَضَرَتْهُ الْوَفَاةُ دَعَا ابْنَيْهِ فَقَالَ اِنِّيْ قَاصٌّ عَلَيْكُمَا الْوَصِيَّةَ اٰمُرُكُمَا بِاثْنَيْنِ وَاَنْهٰكُمَا عَنِ اثْنَيْنِ اَنْهٰكُمَا عَنِ الشِّرْكِ وَالْكِبْرِ

دنبی اکرم ﷺ په خدمت کښې یو کس دباندو اُوسیدونکے راغے چه د ریښمو جُبّه یې اغوستې وه، او دهغې په غاړه دَیو خاص قِسم ریښمو ریشه وه. (صحابو ته مخاطب شو او وے وئیل چه ستاسو ملګرے (محمد ﷺ) داغواړي چه هر یو شپونکے او دشپونکي اولاد اُوچت کړي. اوشه سواران او دَ دوی اولاد اُوغورزوي. نبی اکرم ﷺ په غصه راپاسیدهٔ او دهغهٔ جامې د ګریوان نه اُونیولې، او راې خکلې او ارشاد یې اُوفرمایهٔ چه زهٔ اُوینایمه) تا دبیوقوفانو غوندې جامې ندی اغوستې. بیا خپل ځای ته واپس راغے کیناستو او ارشاد یې اُوفرمایهٔ چه حضرت نوح علیه السلام چه کله وفات کیدهٔ نو خپل دواړهٔ ځامن یې راُوغوښتل، او ورته یې اُووے چه زهٔ

وَاٰمُرُكُمَا بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَاِنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا فِيْهِمَا لَوْ وُضِعَتْ فِيْ كِفَّةِ الْمِيْزَانِ وَوُضِعَتْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فِي الْكِفَّةِ الْاُخْرٰى كَانَتْ اَرْجَحَ مِنْهُمَا وَلَوْ اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا فِيْهِمَا كَانَتْ حَلْقَةً فَوُضِعَتْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ عَلَيْهَا لَقَصَمَتْهُمَا وَاٰمُرُكُمَا بِسُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ فَاِنَّهُمَا صَلٰوةُ كُلِّ شَيْءٍ وَبِهِمَا يُرْزَقُ كُلُّ شَيْءٍ۔

تاسو ته (اخري) وصیت کوم. د دوو څیزونو نه مومنع کوم او د دوو څیزونو د رته حکم کوم. د کوم نه چه مومنع کوم، یو شرک دے دویم تکبر او د کوم چه د رته حکم کوم، یو لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ده چه ټول اسمانونه او زمکے او هر څه چه په دیکښې دی که چرے ټول په یو چابرې کښې کیخودلے شي او په دویم کښې (په اخلاص سره ویلے شوے) لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ کیخودلے شي نو دا چابرے به (د رُوندا و) خکته شي. او که چرے ټول اسمانونه او زمکے او څه چه په دے کښې دی یو حلقه (یعني کړئ) ترے جوړه شي، دا پاکه کلمه په دے کیخودلے شي نو دغه حلقه به د کلمے د درُوند والي په وجه ماته شي. او دویم څیز چه د هغے حکم کوم هغه سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ دے چه دا دوه لفظونه د هر مخلوق مونځ دے او هم د دے په برکت هر یو څیز ته رزق ورکولے شي۔

(اخرجه الحاكم وقال صحيح الاسناد ولم يخرجا للصقعب ابن زهير فانه ثقة قليل الحديث اهـ واقره عليه الذهبي وقال الصقعب ثقة ورواه ابن عجلان عن زيد بن اسلم مرسلا اهـ قلت ورواه احمد في مسنده بزيادة فيه بطرق وفي بعض منها فان السموات السبع والارضين السبع كن حلقة مبهمة قصمتهن لا اله الا الله وذكره المنذري في الترغيب عن ابن عمرو رضي الله عنه مختصرا وفيه لو كانت حلقة لقصمتهن حتى تخلص الى الله ثم قال رواه البزار ورواته محتج بهم في الصحيح الا ابن اسحاق وهو في النسائي عن صالح بن سعيد رفعه الى سليمان بن يسار الى رجل من الانصار لم يسمه ورواه الحاكم عن عبد الله وقال صحيح الاسناد ثم ذكر لفظه قلت وحديث سليمان بن يسار ياتي في بيان التسبيح وفي مجمع الزوائد رواه احمد ورواه الطبراني بنحوه ورواه البزار من حديث ابن عمر رضي الله عنه ورجال احمد ثقات وقال في رواية البزار محمد بن اسحق وهو مدلس وهو ثقة۔)

**فائده:** نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د جامو متعلق کوم ارشاد او فرمایه، د هغے مطلب

له مجمع الزوائد اللفظ لقصمتهما دے صحیح نه معلومیږي ځکه چه کتاب الترغیب حدیث ۲۲۴ او مجمع ۲۳۳ کښې لقصمتاهما دے نو دا صواب لیکه ۱۲

دا دے چه د ظاهر نه د باطن پته لګی. د چا چه ظاهری حال خراب وی، د هغهٔ باطنی حال به هم هغسے وی ځکه د ظاهر د بهتر ساتلو کوشش کولے شی چه باطن د هغے تابع دے. په دے وجه صوفیه کرام د په خلقو د ظاهری پاکوالی او د اسۀ وغیره اهتمام کوی چه د باطن پاکوالے پرے حاصل شی. کوم خلق چه داوائی چه باطن بنهٔ کول پکار دی ظاهر چه هر څنګه وی. (دا خبره) صحیح نهٔ ده. د باطن بنهٔ کول مستقل مقصود دے او د ظاهر بهتر کول مستقل رخیز دے) د نبی اکرم ﷺ دعا کانو کښ دی. اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ سَرِيْرَتِيْ خَيْرًا مِّنْ عَلَانِيَتِيْ وَاجْعَلْ عَلَانِيَتِيْ صَالِحَةً. (اے الله! زما باطن زما د ظاهر نه زیات بهتر جوړ کړے او زما ظاهر صالح او نیک جوړ کړے) حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی چه ما ته نبی اکرم ﷺ دا دعا خودلے وه.

(۳۶) عَنْ اَنَسٍ رضی الله عنه اَنَّ اَبَا بَكْرٍ رضی الله عنه دَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ وَ هُوَ كَئِيْبٌ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ ﷺ مَالِيْ اَرَاكَ كَئِيْبًا قَالَ يَا رَسُوْلَ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَمٍّ لِّي الْبَارِحَةَ فُلَانٌ وَهُوَ يَكِيْدُ بِنَفْسِهٖ قَالَ فَهَلْ لَقَّنْتَهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ قَالَ قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ فَقَالَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ يَا رَسُوْلَ اللهِ كَيْفَ هِيَ لِلْاَحْيَاءِ قَالَ هِيَ اَهْدَمُ لِذُنُوْبِهِمْ هِيَ اَهْدَمُ لِذُنُوْبِهِمْ.

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ په خدمت کښ په داسے حال کښ چه غمژن وو حاضر شو. نبی اکرم ﷺ ترے پوښتنه اوکړه چه څهٔ تا غمژن وینم څهٔ خبر دے؟ دهٔ عرض اوکړو چه بیګاه شپه زما د تره ځوئی وفات شو د هغهٔ په حالت کښ ورځخه ناست وم (د هغے منظر مے په طبیعت اثر دے) نبی اکرم ﷺ اوفرمایل، تا هغهٔ ته د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ تلقین کړے وو؟ عرض یے اوکړو، کړے مے وو. ارشاد یے اوفرمایهٔ چه هغهٔ دا کلمه ویلے وه. عرض یے اوکړو، ویلے یے وه. ارشاد یے اوفرمایهٔ چه جنت د هغهٔ د پاره واجب شو. حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه عرض اوکړو اے د الله رسوله! اکهٔ ژوندی خلق دا کلمه اُووائی نو څهٔ به وی؟ نبی اکرم ﷺ دوه وارے دا ارشاد اُوفرمایهٔ چه کلمه د هغوی د ګناهونو بالکل نړونکے ده.

(رواه ابو یعلی والبزار وفیه زائدة بن ابی الرقاد وثقه القواریری وضعفه البخاری وغیره کذا فی مجمع الزوائد واخرج

بمعناه من ابن عباس ایضاً قلت وروی من علی کرم الله وجهه مرفوعاً من قال اذا مر بالمقابر السلام علی اهل لا اله الا الله من اهل لا اله الا الله کیف وجدتم قول لا اله الا الله یا لا اله الا الله اغفر لمن قال لا اله الا الله واحشرنا فی زمرة من قال لا اله الا الله غفر له ذنوب خمسین سنة قیل یا رسول الله من لم یکن له ذنوب خمسین سنة قال لوالدیه ولقرابته ولعامة المسلمین رواه الدیلمی فی تاریخ همدان والرافعی وابن النجار کذا فی منتخب کنز العمال لکن رمی السیوطی فی ذیل اللآلی وتکلم علی سنده وقال الاسناد کله ظلمات ورمی رجاله بالکذب وفی تنبیه الغافلین وروی من بعض الصحابة من قال لا اله الا الله من قلبه خالصاً ومدها بالتعظیم کفر الله عنه اربعة آلاف ذنب من الکبائر قیل ان لم تکن له اربعة آلاف ذنب قال یغفر من ذنوب اهله وجیرانه اه قلت وروی بمعناه مرفوعاً لکنهم حکموا علیه بالوضع کما فی ذیل اللآلی نعم تریده الامر بدفن فی جوار الصالح وتأذیه بجوار السوء ذکره السیوطی فی اللآلی بطرق وورد السلام علی اهل القبور بالفاظ مختلفة کنز العمال وغیره.)

**فائده**:- مقبره کښې او مړي ته نږدې د کلمې طیبې ویلو متعلق ډیرې کثرت حدیثونو کښې راغلی دی. یو حدیث کښې دي چه جنازې سره ډیر ډیر لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وایئ. یو حدیث کښې راغلی دی چه ځما د اُمت شعار (یعنې امتیازی نښه) کله چه دوی پُلِ صراط باندې تیریږي، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ به وی. دویم حدیث کښې دی چه کله دوی د خپلو قبرونو نه راپاسی نو د دوی نښه به لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْیَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ وی. دریم حدیث کښې دی چه د قیامت په تیارو کښې به د دوی نښه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ وی. د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ډیرو ویلو برکتونه د مړاڼه نه روښې هم ډیر خلې د ښکلي دوختنه محسوسیږي او بعض د الله تعالیٰ بندګانو ته د دینه هم وړاندې ظاهریږی.

اَبُوالْعَبَّاس رحمة الله علیه وائی ځه خپل ښهر اشبیله کښې ناروغه پروت وم. ما اُولیدل چه ډیر مارغان لوئی لوئی او د مختلفو رنګونو سپین، سره، شنه دی چه په یو غاڼی وزرونه راغونډ دی او په یو وارې لې پرانزی او د پرسری دی چه دغوی په لاسونو کښې لوئی لوئی تالی دی (څه پرې، غوړیدلې دی، په کښې څه پراته دی. ما چه دا تول اُولیدل، پوهه شوم چه دا د مړاڼ تحفې دی. ما زر زر کلمه طیبه ویل شروع کړه. د دغوی نه یو کس ما ته اُووې چه ستا وخت لا اُوس نه دې راغلی دادیوبل مؤمن د پاره تحفه ده چه د هغه وخت راغلې دې.

عُمر بن عبد العزیز رحمة الله عليه چه کله وفات کیده نو ده اُووے ما کینوئ. خلقو کینولو. بیا یے اُوفرمایل (اے الله!) تا ما ته ډیرو کارونو حُکم کړے وو ما نه په هغے کښں کمے اُوشو. تا څهٔ ډیرو خبرو نه منع کړے وُم، ما نه هغے کښں نافرمانی اُوشوه. درے وارے یے دا اُووییل. ډے نه پس یے اُووے خو لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ. دا یے چه اُووے، بیو خوا ته یے په غور کتل شروع کړل. چا ترے تپوس اُوکړهٔ، څهٔ گورئ؟ وے فرمایل څهٔ شنهٔ څیزونه دی، نه بنیادم دی نه پیریان. دے نه پس وفات شو.

زُبیدهٔ بی بی چا په خوب کښں اُولیده. تپوس یے ترے اُوکړهٔ څهٔ درباندے تیرشو؟ هغے اُووے. درے څلورو کلمو په وجه څما بخښنه اُوشوه. لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اُفْنِيْ بِهَا عُمْرِيْ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَدْخُلُ بِهَا قَبْرِيْ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَخْلُوْبِهَا وَحْدِيْ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَلْقٰى بِهَا رَبِّيْ. (لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ سره به خپل عُمر ختموم. لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ به قبر ته ځان سره اُوړم. او لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ سره به دیو اخوالی وخت تیروم. او لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ به اخلم، خپل رب ته به ورځم.)

(۲۳) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ رضی الله عنه قَالَ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللهِ اَوْصِنِیْ قَالَ اِذَا عَمِلْتَ سَیِّئَةً فَاَتْبِعْهَا حَسَنَةً تَمْحُهَا قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللهِ اَمِنَ الْحَسَنٰتِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ قَالَ هِیَ اَفْضَلُ الْحَسَنٰتِ.

(رواه احمد وفي مجمع الزوائد رواه احمد ورجاله ثقات الا ان شمر بن عطية حدثه عن

حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه عرض اُوکړهٔ اے دالله رسوله! ما ته څهٔ وصیت اُوکړئ. ارشاد اُوشو چه کله در نه څهٔ بدی اُوشی نو د گناه په طور زر ورپسے څهٔ نیک کار وُکړه (دپاره ددے چه د بعضی سیرهٔ والے اُووینځلے شی.) ما عرض اُوکړهٔ اے دالله رسوله! لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ویل هم نیکو کښں داخله ده؟ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه دا خو په ټولو نیکو کښں ډیره بهتره ده.

اشياخ لم يسم احدا منهم قال السيوطي في الدر اخرجه ايضا ابن مردويه والبيهقي في الاسماء والصفات قلت واخرجه الحاكم بلفظ يا اباذر اتق الله حيث كنت واتبع السيئة الحسنة تمحها وخالق الناس بخلق حسن وقال صحيح على شرطهما واقره عليه الذهبي وذكره السيوطي في الجامع مختصرا ورقم له بالصحة)

فائده:- بدی که چرے صغیره (یعنی وړه) گناه وی نو په نیکئ ددے ورانیدل

اولرے کیدل ښکاره دی. او که چرے کبیره (لویه گناه) وی، نو د قاعدے موافق په توبه ورانیدے شی یا صرف د الله تعالیٰ په فضل سره. څنګه چه د رومبے تیر شوی دی. په هرحالت کښ د ورانیدو مطلب دا دے چه بیا دغه گناه نه په عمل نامه کښ پاتے کیږی، نه چرته د دغے ذکر کیږی. لکه یو حدیث کښ راغلی دی چه کله بنده توبه اُوباسی نو الله جلّ شانهٗ دغه گناه د کِرَامًا کَاتِبِیْن نه هیره کړی او د دغے گنهګار د لاسو پښونه یے هم هیروی او د زمکے د هغے حصے نه په کومه چه دغه گناه شوے وی. ترد دے چه هیڅوک هم د دغے گناه گواهی ورکونکے پاتے نشی. د گواهئ مطلب دا دے چه قیامت کښ به د انسان لاس پښے او د بدن نور حصو نیک یا بد عملونه هرڅه چه کړی وی، د هغے به گواهی ورکوی څنګه چه د دریم باب دویم فصل آتلسم نمبر حدیث لاندے راځی. د یو ورتی حدیث مرسته د هغے روایاتو نه هم کیږی کوم کښ چه ارشاد فرمائیلے دے چه د گناه نه توبه ایستونکے داسے دے لکه چه گناه یے اُو کړے نه وی. دا مضمون څو څو حدیثونو کښ راغلے دے. توبه هغه ته ویلے شی چه کومه گناه اُوشوه، هغه باندے انتهائی پښیمانتیا او شرم وی او د مخکښ د پاره یے پخه اراده وی چه بیا به چرے د گناه نه کوم. یو بل حدیث کښ د نبی اکرم ﷺ ارشاد راغلے دے چه د الله تعالیٰ عبادت کوه او هیڅوک د هغهٔ شریک مه جوړوه. او د اسے په اخلاص عمل کوه گویا چه دغه پاک ذات ستا مخکښ دے او خپل ځان مړو کښ شمار کړه. او د الله تعالیٰ یاد د هر یو کاڼی او د هرے ونے نزدے کوه (چه ډیر گواهان د د قیامت په ورځ شی) او کله چه څهٔ بدی د رته اُوشی نو د هغے په کفاره کښ څهٔ نیکی اُو کړه. که چرے بدی د پټه کړے وی نو نیکی د هم پټه وی او که بدی د ښکاره کړے وی نو د هغے په کفاره کښ نیکی د هم ښکاره وی.

(۳۳) عَنْ تَمِيْمِ الدَّارِيِّ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاحِدًا اَحَدًا صَمَدًا لَمْ يَتَّخِذْ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا وَّلَمْ

د نبی اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه څوک لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاحِدًا اَحَدًا صَمَدًا لَمْ يَتَّخِذْ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ لس واره اُووائی نو څلویښت زره نیکئ به د هغهٔ د پاره اُولیکلے شی.

يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ عَشَرَ مَرَّاتٍ كُتِبَتْ لَهٗ اَرْبَعُوْنَ اَلْفَ حَسَنَةٍ۔

(اخرجہ احمد قلت اخرج الحاکم شواہدہ بالفاظ مختلفۃ)

**فائده**:- د کلمې طیبې خاص خاص تعداد باندے هم د حدیث په کتابونو کښې ډیر فضیلتونه ذکر کړے شوی دی. یو حدیث کښې راغلی دی، کله چه تاسو فرض مونځ اُوکړئ نو هر فرض نه پس لس ځل وارے لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ اُووائئ، د دے ثواب داسے دے لکه چه یو غُلام مو آزاد کړو۔

(۲۵) **عَنْ** عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى رَضِيَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ اَحَدًا صَمَدًا لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ كَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ اَلْفَيْ اَلْفِ حَسَنَةٍ۔

بل حدیث کښې ارشاد دے چه څوک لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ اَحَدًا صَمَدًا لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ اُووائی الله تعالیٰ به هغه د پاره شل لاکهه نیکۍ اُولیکی۔

(رواه الطبرانی کذا فی الترغيب وفی مجمع الزوائد فیه فائد ابو الورقا متروک)

**فائده**:- څومره قدرے د الله جل شانه له طرفه د انعام او احسان باران دے چه ډیر آسان غوندے ځیز و ئیلو باندے چه په هغے کښې نه څه مشقت شته نه پرے ډیر وخت لګی، بیا هم په زرګونو زرګونو لکهونو نیکۍ ورکوی خو مونږ د خلق دومره غافله او د نیوی کارونو پسے داسے لګیدلی یو، چه د دے مهربانو د باران نه هیڅ نه اخلو۔ د الله تعالیٰ په نزد د هرے نیکۍ د پاره کم نه کم لس چنده ثواب خو مقرر دے په شرط د دے چه اخلاص سره وی۔ د دے نه پس د اخلاص په اعتبار ثواب زیاتیږی۔ د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه د اسلام راوړلو سره څومره ګناهونه چه د کفر په حالت کښې کړی وی هغه معاف کیږی۔ د دے نه پس بیا حساب دے۔ هره نیکی د لس چنده نه تر اُووه سوو پورے او څومره پورے چه الله تعالیٰ اُوغواړی لیکلے شی۔ او بدی صرف یوه لیکلے شی او که چرے الله تعالیٰ دغه معاف کړی نو بیا دغه هم نه شی لیکلے. بل حدیث کښې دی چه کله بنده د نیکۍ اراده اُوکړی نو صرف په اراده یوه نیکی لیکلے شی۔ او کله چه عمل کوی نو د

لسو نيکو په تراوو سوو پورې او دې نه پس څو مره پورې چه الله تعالیٰ غواړي بيکلې شي. د دې قسمه نور هم حديثونه ډير دي چه د هغې نه معلوميږي چه د الله جل شانهٔ له خوا ورکړو کښې کمی نشته خو چه څوك اخستونکي وي. هم دا خيزونه د الله تعالیٰ دَ ولياتو په نظر کښې وي چه د دې په وجه دَ دنيا لوی نه لوی دولت هم هغوی نهٔ شي تيرباسلې. اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنْهُمْ.

د نبي اکرم ﷺ ارشاد مبارك دې چه عملونه په شپږ قسمه دي او خلق په څلور قسمه دي. دوه عملونه خو واجب کونکي دي او دوه برابر سرابر او يو په کښې لس چنده او يو اووه سوه چنده دې. دوه عملونه کوم چه واجب کونکي دي يو دا چه څوك په داسې حال کښې مړ شي چه شرك نهٔ کوي هغه به ضرور جنت کښې داخليږي. دويم چه څوك د شرك په حالت کښې مړ شي ضرور به دوزخ ته ځي. او کوم عمل چه برابر سرابر دې هغه د نيکۍ اراده ده چه زړهٔ د هغې پخه اراده کړې وي. (خو د هغې د عمل وار لا نهٔ وي راغلې) او لس چنده ثواب دَ کله چرې عمل هم اوکړي، او د الله تعالیٰ په لار کښې (جهاد وغيره کښې) خرچ کول اووه سوه درجې ثواب لري. او گناه که چرې اوکړي نو ديو گناه بدله هم يو ده.

او څلور قسمه خلق دا دي چه بعض خلق داسې دي چه په هغوی په دنيا کښې فراخي ده، او اخرت کښې پرې تنگي ده. بعض داسې دي چه په هغوی په دنيا کښې تنگي ده، اخرت کښې پرې فراخي ده. بعض داسې دي چه په هغوی په دواړو ځايونو کښې تنگي ده (چه په دنيا کښې پرې غريبي او اخرت کښې پرې عذاب دې) بعض داسې دي چه په دواړو جهانو کښې پرې فراخي ده.

يو کس د ابو هريره رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شو او عرض يې اوکړو چا ما ته ويلي دي چه ته دا نقل کوې چه الله جل شانهٔ د بعضې نيکو بدله لس لاکهه چنده ورکوي. حضرت ابو هريره رضي الله عنه اوفرمايل دې کښې د حيرانتيا څهٔ خبره ده. ځما په الله تعالیٰ قسم وي هم دا شان م اوريدلي دي. بل حديث کښې دي چه ما د نبي اکرم ﷺ نه اوريدلي دي چه د بعضو نيکو ثواب شل لاکهه پورې ورکولې شي. او هر کله چه الله تعالیٰ يُضٰعِفْهَا وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ اَجْرًا عَظِيْمًا ارشاد فرمائي

د هغه ثواب زیات توی او د خپله خوا دېر ثواب ورکوی) کوم څیز نه چه الله جل شانه اجر عظیم اووائی د هغې د مقدار انداز ه څوک کولے شی. امام غزالی رحمة الله علیه فرمائی چه ثواب د ومره په لوی مقدار هله کیدے شی چه کله د دے الفاظو د معنو تمو الحاظ کوی او وائی چه دا د الله جل شانهٔ اهم صفتونه دی.

(٢٠) عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُبْلِغُ اَوْ فَيُسْبِغُ الْوُضُوْءَ ثُمَّ يَقُوْلُ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ اِلَّا فُتِحَتْ لَهٗ اَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ يَدْخُلُ مِنْ اَيِّهَا شَآءَ.

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه څوک او دس اوکړی (یعنی د سنتو او د ادابو پوره لحاظ اوساتی) بیا دا دعا اووائی اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ هغه د پاره د جنت اته واړه دروازے پرانستے شی په کومه دروازه چه غواړی داخل د شی.

(رواه مسلم وابوداود وابن ماجة وقالا فيحسن الوضوء زاد ابوداود ثم يرفع طرفه الى السماء ثم يقول فذكره و رواه الترمذى كابى داود وزاد اللهم اجعلنى من التوابين واجعلنى من المتطهرين الحديث وتكلم فيه كذا فى الترغيب زاد السيوطى فى الدر ابن ابى شيبة والدارمى.)

**فائده:** جنت کښ د اخلیدو د پاره یوه دروازه هم بس ده، بیا د اتو واړو دروازو پرانستیدل، دا د دیر عزت او د اکرام په خاطر دی. یو حدیث کښ راغلی دی چه څوک په دے حال کښ مړ شی چه الله سره شریک نهٔ جوړوی، او ناحق یے څوک مړ کړے نهٔ وی، هغه دِ د جنت په کومه دروازه چه غواړی داخل دِ شی.

(٢١) عَنْ اَبِى الدَّرْدَآءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ مِنْ عَبْدٍ يَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مِائَةَ مَرَّةٍ اِلَّا بَعَثَهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَوَجْهُهٗ كَالْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَلَمْ يُرْفَعْ لِاَحَدٍ يَوْمَئِذٍ عَمَلٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمَلِهٖ اِلَّا مَنْ قَالَ مِثْلَ قَوْلِهٖ اَوْ زَادَ.

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه څوک سل وارے لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اووائی، الله جل شانهٔ به د قیامت په ورځ هغه داسے روښانه مخ والا راپاسوی څنګه چه د څوارلسے شپے سپوږمئ وی. او په کومه ورځ چه دا کلمه اووائی په هغه ورځ به د هٔ نه د بهتر عمل والا هغه کس کیدے شی څوک چه د دهٔ نه زیات اووائی.

(رواه الطبرانی وفیه عبدالوهاب بن ضحاک متروک کذا فی مجمع الزوائد قلت هو من رواة ابن ماجة ولا شک انهم ضعفوه جدًا الا ان معناه مؤید بروایة منها ماتقدم من روایات یحیی بن طلحة ولا شک انه افضل الذکر وله شاهد من حدیث ام هانی الآتی.)

**فائده**:- کثرو آیتونو او روایتونو نه دا مضمون تابتیږی چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ زړهٔ دپاره هم نور دے او مخ دپاره هم نور دے. او دا خو لیدلے شوے هم ده چه د کومو بزرګانو دے کلمے ډیر ډیر ډیل معمول دی د هغوی مخ په دُنیا کښ هم نورانی وی.

(۳۸) **عَنِ** ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ افْتَحُوْا عَلٰی صِبْیَانِکُمْ اَوَّلَ کَلِمَةٍ بِلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَلَقِّنُوْهُمْ عِنْدَ الْمَوْتِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَاِنَّهُ مَنْ کَانَ اَوَّلُ کَلَامِهٖ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاٰخِرُ کَلَامِهٖ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ثُمَّ عَاشَ اَلْفَ سَنَةٍ لَمْ یُسْئَلْ عَنْ ذَنْبٍ وَّاحِدٍ. (موضوع ابن محمویة وابوه مجهولان وقد ضعف البخاری ابراهیم بن مهاجر حکاه السیوطی عن ابن الجوزی ثم

(د نبی اکرم صلی اللّٰه علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه بچو ته په شروع کښ کله چه هغوی خبرے زده کوی لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ورته یاد وی. او کله چه د مرګ وخت راشی بیا هم ورته د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه تلقین کوئی. د چا چه اوّله کلمه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وی او اخره کلمه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وی هغه که تر زر کاله ژوندی وی نو ان شاء اللّٰه) د څهٔ ګناه به هغهٔ نه مطالبه نهٔ وی (یا په دے وجه چه ګناه به تر ے شوے نهٔ وی یا که چرے تر ے شوے وی نو توبه وغیره به معاف شی یا په دے وجه چه اللّٰه تعالی به یے په خپل فضل معاف کړی)

تعقبه بقوله الحدیث فی المستدرک واخرجه البیهقی فی الشعب عن الحاکم وقال متن غریب لم نکتبه الا بهذا الاسناد واورده الحافظ ابن حجر فی امالیه ولم یقدح فیه بشیء الا انه قال ابراهیم فیه لین وقد اخرج له مسلم فی المتابعات کذا فی اللآلی وذکره السیوطی فی شرح الصدور ولم یقدح فیه بشیء قلت وقد ورد فی التلقین احادیث کثیرة ذکره الحافظ فی التلخیص وقال فی جملة من رواها من عروة ابن مسعود الثقفی رواه العقیلی باسناد ضعیف ثم قال وروی فی الباب احادیث صحاح عن غیر واحد من الصحابة ورواه ابن ابی الدنیا فی کتاب المحتضرین من طریق عروة ابن مسعود عن ابیه عن حذیفة بلفظ لقنوا موتاکم لا اله الا اللّٰه فانها تهدم ماقبلها من الخطایا وروی فیه ایضا عن عمر وعثمان وابن مسعود وانس وغیرهم اهـ وفی الجامع الصغیر لقنوا موتاکم لا اله الا اللّٰه رواه احمد ومسلم والاربعة عن

ابی سعید ومسلم وابن ماجة عن ابی هریرة والنسائی عن عائشة ورقم له بالصحة وفی الحصن اذا افصح اولاده فلیعلمه لا اله الا
الله وفی الحرز رواه ابن السنی عن عمرو بن العاص آخر قلت ولفظه فی عمل الیوم واللیلة عن عمرو بن شعیب وجدت فی
کتاب جدک الذی حدثه من رسول الله ﷺ قال اذا افصح اولادکم فعلموهم لا اله الا الله ثم لا تبالوا متی ماتوا واذا اثغروا
فمروهم بالصلوٰة وفی الجامع الصغیر بروایة احمد وابی داؤد والحاکم عن معاذ رضی الله عنه من کان آخر کلامه لا اله الا الله دخل الجنة
ورقم له بالصحة وفی مجمع الزوائد عن علی رضی الله عنه رفعه من کان آخر کلامه لا اله الا الله لم یدخل النار وفی غیر روایة مرفوعة
من لقن عند الموت لا اله الا الله دخل الجنة.)

**فائده:-** تلقین دے ته وائی چه (خوك مړی) د مرګ په وخت کښې ورته
کیني او کلمه دا سے وائی چه هغه یے واوري وے وائي دغه وخت پرے زبردستي
یا تقاضا نهٔ دي کول پکار. ځکه چه هغه په سخت تکلیف کښې وي، اخیر وخت کښې
د کلمے تلقین کولو حکم نور هم ډیرو صحیح حدیثو نو کښې راغلے دے. ګنړو حدیثونو
کښې دا هم راغلي دي چه چا ته د مرګ په وخت لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ نصیب شي، د هغهٔ
ګناه دا سے پریوزي لکه د سیلاب په وجه چه آبادي پریوزي. بعض حدیثونو
کښې دا هم راغلي دي چه چا ته د مرګ په وخت د مبارکه کلمه نصیب شي نو
د هغهٔ رُستني ګناهونه به معاف شي. یو حدیث کښې راغلي دي چه منافق ته
د دے کلمے توفیق نهٔ کیږي. یو حدیث کښې راغلي دي چه خپلو مړو ته د لَآ اِلٰهَ اِلَّا
اللهُ توښه ورکوئ. یو حدیث کښې راغلي دي چه څوك د چا بچی پرورش اوکړي
تر دے پورے چه هغه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اُووائی د هغهٔ نه حساب معاف دے. یو حدیث
کښې راغلي دي چه څوك د مونځ پابندي کوي د مرګ په وخت هغهٔ ته یوه
فرښته راځي چه شیطان ترے لرے کوي او د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ تلقین ورته کوي
یوه خبره ډیره په تجربه کښې راغلے ده چه عموماً د تلقین غافلا هله کیږي چه
په ژوندانهٔ یے هم دا پاکه کلمه ډیره ډیره ویلے وي. د یو سړي قصه لیکلے ده چه
بهس به یے خرڅول. کله چه د مرګ وخت راغے نو خلقو ورته د کلمے طیبے تلقین
کولو، او هغهٔ به وے، دا کیلاښ د دومره ده، دا د دومره ده. دغه رنګے ګنړ واقعات
یے نُزْهَةُ الْبَسَاتِیْن کښې هم لیکلي دي او (ورزانه) په لیدو کښې راځي.
ډیر خله د څهٔ ګناه کول هم د دے سبب جوړیږي چه د مرګ په وخت کښې

ورته کلمه نه نصیب کیږی. عالمانو لیکلی دی چه دا فیموًیه خورالهٔ کبن اوښیا نقصانه دی چه دهغه نه یو دا دے چه دمرګ په وخت کښ به ورته کلمه نه رایادیږی. ددے په مقابل مسواک کښ اویا فائدے دی چه دهغه نه یوه دا ده چه دمرګ په وخت کښ به ورته کلمه طیبه رایادیږی.

دیو سړی قیصه یے لیکلے ده چه دمرګ په وخت ورته دکلمهٔ شهادت تلقین اوکړے شو، هغهٔ اووے چه الله تعالیٰ ته دُعا اوغواړئ خما په ژبه نهٔ راځی خلقو ترے تپوس اوکړهٔ، ولے؟ وے ویل چه مابه په تول کښ بے احتیاطی کوله دیو بل کس قصه ده چه کله هغهٔ ته تلقین اوکړے شو، نو وے ویل چه نهٔ شم ویلے. خلقو ترے تپوس اوکړهٔ ولے؟ هغهٔ اووے چه یوه زنانه ما نه تولیه اخستلو دپاره راغلے وه، خما خوښه شوه، ما ورته کتل. نور هم ډیر واقعات ددے قسمه دی چه دهغے نه بعض تذکرهٔ قرطبیه کښ هم لیکلی دی. دبنده کار دے چه د ګناهونو نه دِ توبه اوباسی او د الله جَلّ شانهٔ نه دِ توفیق دُعا اوکړی.

| | |
|---|---|
| (۳۹) عَنْ اُمِّ هَانِیٍٔ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ لَا یَسْبِقُهَا عَمَلٌ وَّلَا | دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشادِ مُبارک دے چه دلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ نه هیڅ عمل نهٔ شی وړاندے کیدے او نه دا کلمه څهٔ ګناه پریږدی. |

تَتْرُكُ ذَنْبًا. (رواه ابن ماجة كذا في منتخب كنز العمال قلت واخرجه الحاكم في حديث طويل وصححه ولفظه قول لا اله الا الله لا يترك ذنبا ولا يشبهها عمل اهـ وتعقب عليه الذهبي بان زكريا ضعيف وسقط بين محمد و ام هانئ وذكره في الجامع الصغير برواية ابن ماجة ورقم له بالضعف.)

**فائده:-** دهیڅ عمل دَ دے نه وړاندے کیدل خو ښکاره ده چه هیڅ یو عمل دا سے نشته چه بغیر دکلمے طیبے دوینا نه په کار راتلے شی. مونځ روژه حج، زکوٰة غرض داچه هر عمل دایمان محتاج دے. که چرے ایمان وی نو دغه عملونه قبلیدے شی کنی نه. او کلمه طیبه خو په خپله ایمان راوړل دی. دا د هیڅ عمل محتاجه نهٔ ده. په دے وجه که چرے څوک فقط ایمان لری او دایمان نه علاوه هیڅ نیک عمل یے نهٔ وی نو بیا یه هم څهٔ نه څهٔ وخت اِنْ شَآءَ اللّٰهُ ضرور جنت ته لاړ شی. او چه څوک ایمان نه لری خواه هغه څومره نیک عملونه اوکړی او

خلاصی دپاره کافی نه دی.

دویم جُزء د حدیث څخه ګناه نه پریخودل دی. که چرے په دے اعتبار سره اوکتلے شی چه کوم کس آخری وخت کښې مسلمان شو او د کلمه طیبه ویلو نه پس زر مړ شو، نو ښکاره خبره ده چه د ایمان راوړلو نه روستو د کفر په حالت کښې چه څومره ګناهونه یے کړی وُو، هغه ټول په ټول لاړل معاف شول، او که چرے روستو نه ویل مراد وی نو د حدیث شریف مطلب دا دے چه دا کلمه د زړونو د صفائی او زنګ لرے کولو ذریعه ده. هر کله چه د دے پاکے کلمے ډیر ډیر ویل وی، نو د زړه د صفائی په وجه د توبے استغفار نه بغیر به ورله آرام نه راځی او آخر به د ګناهونو د معافی ذریعه اوګرځی. په حدیث کښې راغلی دی چه څوک د اودس کیدو په وخت او د بیدیدو په وخت د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اهتمام کوی، هم دغه د دنیا به دے آخرت ته تیار وی او د مصیبت نه به دغه خلاص کوی.

⑳ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلْاِیْمَانُ بِضْعٌ وَّسَبْعُوْنَ شُعْبَةً فَاَفْضَلُهَا قَوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَدْنَاهَا اِمَاطَةُ الْاَذٰی عَنِ الطَّرِیْقِ وَالْحَیَاءُ شُعْبَةٌ مِّنَ الْاِیْمَانِ.

(رواه الستة وغيرهم بالفاظ مختلفة واختلف البيهقي وغيره وآخرها اوردت الحديث في هذا الفصل رعاية لعدد الاربعين والله الموفق لما يحب ويرضى)

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دی چه د ایمان د اویا وته زیات شلخونه دی (بعض روایتونو کښې د اویا وتو اوویا راغلی دی) د هغے ټولو نه افضل د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ویل دی او د ټولو نه کم درجه د لارے نه تکلیف ورکوونکے څیز (غټه، لرګے، ازغی وغیره) لرے کول دی. او حیاء هم یوه خصوصی شُعبه د ایمان ده.

**فائده:** حیاء یے د خصوصی اهتمام په وجه ذکر کړه چه دا د ډیرو ګناهونو (زنا، غلا، بدے وینا، بربنډیدلو، لمنځلو پوچ ویلو وغیره نه د بچ کیدو سبب دے. دغه شرم په خیال ډیر نیک کارونه کول ضروری شی، بلکه شرم د دنیا او د آخرت په ټولو نیک کارونو اماده کوی. مونځ، روژه، حج وغیره خو ښکاره دی. دغه د نورو ټولو حکمونو په ځائی راوړلو هم سبب دے. په دے وجه متل مشهور دے. "بے حیا باش و هر چه خواهی کن" ته بے غیرته شه بیا چه دِ څه خوښه وی کوه. په دے

معنیٰ کښې صحیح حدیث راغلې دے إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ. هرکله چه ته حیا نه لرې بیا تے نه شوے نو بیا چه دِ څه خوښه وی کوه. چه ټول فکر دغیرتَ او د شرم دے. که چرے حیا وی نو بیا به دا خیال ضرور پیدا کیږی چه موږ ټوکرم نو آخرت کښې به څه مخ بنایم. او که چرے شرم نه وی نو بیا به دا خیال کوی که څوک او وائی نو څه به اوکړی.

خبردار ے | په حدیث شریف کښې یې د ایمان د اوویاؤنه زیات ښاخونه ارشاد فرمائیلی دی. دے باره کښې روایتونه مختلف راغلی دی. او ګڼړو روایتونو کښې د اووه اویا شمیر راغلی دے ځکه ترجمه کښې مونږ دے طرف ته ارشاره هم کړے وه. د دے اووه اویاؤ په تفصیل کښې عالمانو مستقل کتابونه لیکلی دی.

اِمام اَبُو حَاتِم بن حَبَّان رحمة الله علیه فرمائی چه ما د دے حدیث په مطلب څه موده پورے سوچ کړلو. هرکله چه عبادتونه مو اوشمیرل، نو هغه به اووه اویا نه ډیر زیات شو. حدیثونه چه مو تلاش کړل، او حدیث شریف کښې کوم څیزونه خاص طور د ایمان په ښاخونو کښې ذکر کړے شوی دی، هغه چه مو شمیر کړل نو هغه به د دے شمیر نه کم شول. څه قرآن پاک طرف ته متوجه شوم او قرآن شریف کښې چه کوم څیزونه د ایمان لاندے ذکر کړی دی هغه مو شمیر اوکړه نو هغه هم د دے شمیر نه کم وو. نو بیا ما قرآن پاک او حدیث شریف دواړه جمع کړل او دواړو کښې کوم څیزونه چه یې د ایمان حصه ګرځولی دی هغه مو شمیر کړل کوم څیزونه چه دواړو کښې مشترک وو هغه مو یو کو عدد شمیر کړل، چه میزان لټول مو اوکتلو، نو د دواړو مجموعه چه مُکررات ریعنی چه کوم بیا بیا ذکر کړے شوی دی) هغه مو ترے اوویستل، د دے شمیر برابر شول، نو هله پوهه شوم چه د حدیث شریف مفهوم هم دا دے.

قاضی عیاض رحمة الله علیه فرمائی چه یو ے ډلے د دے ښاخونو د تفصیل بیانولو اهتمام کړے دے، او په اجتهاد یې دا تفصیل صحیح ښودلے دے. حال دا چه د دے تعداد خصوصی تفصیل نه معلومیدو سره ایمان کښې څه نقصان نه پیدا کیږی ځکه چه د ایمان اُصول او فروع ریعنی بُنیادی او غیر بنیادی

خبوے) ټولے په تفصیل سره معلوم او تحقیق ته رسیدلے دی.

خطابي رحمة الله علیه فرمائي دے تعداد تفصیل د الله تعالیٰ او د هغه د رسول ﷺ په علم کښې دے. او شریعتِ مُطهّره کښې موجود دے، نو د دے تعداد سره تفصیل علم نه لرل هیڅ مُضِر نه دی.

اِمام نَوَوِي رحمة الله علیه فرمائي چه نبی اکرم ﷺ دے ښاخونو کښې د ټولو نه اعلیٰ توحید یعنی کلمه طیبه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ویلے دَه. دِ دے نه معلومه شوه چه ایمان کښې د ټولو نه اوچته درجه دَه. دوے نه اوچت بل څیز د ایمان ښاخ نشته دے چه دِ دے ته د اخبره معلومه شوه چه اصل توحید دے چه پر هر عاقل بالغ باندے ضروری او د (ایمان) د ټولو نه لاندے درجه لرے کول د هغه څیز د کوم نه چه د مُسلمانانو ته د نقصان رسیدو امکان وی. باقی ټول ښاخونه د دے په مینځ کښې دی چه د هغے تفصیل معلومول ضروری نه دی. اجمالًا په هغے ایمان راوړل کافی دی. لکه څنګه چه په ټولو فرښتو ایمان راوړل ضروری دی خو د هغوی تفصیل او د هغوی نومونه مونږ نه پیژنو. بیا هم د محدِّثینو یو ے ډلے د دے ټولو ښاخونو په تفصیل کښې مختلف کتابونه لیکلی دی. لکه اَبُو عَبدِالله حَلِیمی رحمة الله علیه یو کتاب په دے مضمون لیکلے دے چه د هغے نوم یے فَوَائِدُ الْمِنْهَاج ایخے دے. او امام بیهقی رحمة الله علیه یو کتاب لیکلے دے چه د هغے نوم یے شُعَبُ الْاِیْمَان ایخے دے. د غسے شیخ عَبدُ الجَلِیل رحمة الله علیه هم یو کتاب لیکلے دے، د هغے نوم هُم شُعَبُ الْاِیْمَان دے. او د اِسحَاق بن قُرطُبِی کِتَابُ النَّصَائِح دِ دے مضمون کښې لیکلے دے. او امام اَبُوحَاتِم رحمة الله علیه د خپل کتاب نُوم وَصْفُ الْاِیْمَان وَشُعَبُهٗ ایخے دے.

د بخاری شریف شارحینو په دے باب کښې د مختلفو کتابونو نه خُلاصه کړے دَه، او په مختصر طور یے جمع کړی دی چه د هغے حاصل دا دے چه په اصل کښې ایمان کامل د درے یو څیزونو مجموعے نوم دے. اوّل تصدیق قلبی یعنے په زړه سره د تمامو اُمورو یقین کول، او دویم د ژبے اقرار او عمل، دریم د بدن اعمال. یعنی د ایمان ټول ښاخونه په درے حصو تقسیم دی.

اول هغه چه د هغې تعلق نیت او عقیدې او د زړهٔ عمل سره دے.

دویم هغه چه د هغې تعلق ژبې سره دے.

دریم هغه چه د هغې تعلق د بدن د باقي حصو سره دے.

د ایمان ټول څیزونه د دے دریو کښې داخل دی.

## اول قسم

کوم چه ټولو عقیده ولرو شامل دے، د دے خلاصه د یشتر ش څیزونه دی.

① په الله تعالیٰ ایمان راوړل چه په دے کښې د هغه په ذات او صفتونو باندے ایمان راوړل داخل دی. او د دے یقین هم چه هغه پاک ذات یو دے او د هغه هیڅوک شریک نشته او نه د هغه څوک مثل شته. ② د الله تعالیٰ نه ماسوا ټول څیزونه ورستو پیدا شوی دی، د همیشه نه هم دغه یو ذات دے ③ په فرښتو ایمان راوړل ④ د الله تعالیٰ نازل شوی کتابونو باندے ایمان راوړل ⑤ د الله تعالیٰ په رسولانو ایمان راوړل ⑥ په تقدیر ایمان راوړل که ښهٔ وی یا بد ټول د الله تعالیٰ له طرفه دی. ⑦ په دے ایمان راوړل چه قیامت حق دے چه په دے کښې د قبر سوال وجواب، د قبر عذاب، د مرګ نه پس د دوباره ژوندي کیدل حساب کیدل، د اعمالو تلل او په پل صراط تیریدل ټول په کښې داخل دی. ⑧ د جنت یقین کول او دا چه مؤمن به انشاء الله همیشه په کښې اوسی ⑨ د دوزخ یقین کول او دا چه په هغې کښې سختونه سخت عذابونه دی او دغه به هم همیشه همیشه وی ⑩ الله جل شانهٔ سره محبت ساتل ⑪ د الله تعالیٰ د پاره نورو سره محبت ساتل او هم د الله تعالیٰ د پاره بغض ساتل (یعنی الله والو خلقو سره محبت ساتل او د هغهٔ نافرمانو سره بغض ساتل) او هم په دے کښې داخل دی صحابه کرام خصوصاً د مهاجرینو او انصارو محبت او د آل رسول صلی الله علیه وسلم محبت ⑫ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سره محبت ساتل چه په دے کښې د دوی تعظیم هم راغے او په نبی اکرم صلی الله علیه وسلم درود شریف ویل، او د دوی د سنتونو تابعداری کول په کښې هم داخله ده. ⑬ اخلاص چه په دے کښې ریا نهٔ کول او د نفاق نه بچ کیدل په کښې هم داخل دی ⑭ توبه یعنی د زړهٔ نه په ګناهونو د پښیمانتیا او د مخکښې د پاره د نهٔ کولو عهد (کول).

(۱۵) د الله تعالیٰ ویره (۱۶) د الله تعالیٰ د رحمت اُمید لرل (۱۷) د الله تعالیٰ د رحمت نه نا اُمیده کیدل۔ (۱۸) شکر گذاری (۱۹) وفا (۲۰) صبر (۲۱) تواضع چه په دیکښې مشرانو تعظیم هم داخل دے (۲۲) شفقت او رحمت چه په دیکښې په کشرانو شفقت کول هم داخل دے۔ (۲۳) په مُقدّر راضی کیدل (۲۴) توکل (۲۵) خود بینی او خود ستائی زخان نه ګټل او دخان تعریفه پریخودل چه په دیکښې اصلاح نفس هم داخله ده۔ (۲۶) کینه او په زړه کښې چاته څه نه ساتل چه په دے کښې حسد هم داخل دے (۲۸) عینیٔ کتاب کښې دا نمبر پاتے شوے دے، شاید د کاتب د غلطئ نه پاتے شوے وی۔ خو په خیال کښې د الله حیاء کول دی (۲۹) تُسنه کول (۳۰) دهوکه نه ورکول چه په دے کښې بدګمانی نه کول، چا سره مکر و فریب نه کول هم داخل دی (۳۱) د دُنیا محبت نه زړه نه ویستل چه په دیکښې د مال او د جاه (اقتدار) محبت هم داخل دے۔ علامه عینی رحمة الله علیه فرمائی چه پورته ذکر کړے شوی کښې ټول د زړه عملونه داخل دی۔ که په ظاهر کښې ترے څه خیز نهٔ معلومیږی خو په غور و فکر کولو سره به په دے نمبرونو کښې څه نه څه نمبر کښې به داخل شی۔

**دویم قسم** د ژبے عملونه دی۔ د دے اووه شعبے یعنی برخونه دی۔

(۱) د کلمے طیبے ویل (۲) د قرآن شریف تلاوت کول (۳) عِلم زده کول (۴) علم نور روته خودل (۵) دُعا کول (۶) د الله تعالیٰ ذکر چه په دیکښې استغفار هم داخل دے (۷) عبث خبرے پریخودل۔

**دریم قسم** د باقی بدن عملونه دی چه دا ټول څلوینښت دی او په دریے حصو تقسیم دی۔

اوله حصه:۔ خپل ذات سره تعلق لری، دا شپاړس برخونه دی۔

(۱) پاکی حاصلول چه په دے کښې د بدن پاکوالے، د جامو پاکوالے، د مکان پاکوالے ټول داخل دی۔ او د بدن پاکئ کښې اودس هم داخل دے او حیض او نفاس نه یعنی زړوکی او د څلویښتی او د جنابت غسل هم په کښې دے (۲) د مونځ پابندی کول او د دے قائمول چه په دیکښې فرض، نفل (۱۲۱)، قضا ټول مونځونه داخل دی

③ صدقه چه په دے کښې زکوٰة، صدقهٔ فطر نور سره وغیره هم داخل دي. او بخښش کول، په خلقو خوراک خورول، د میلمه عزت کول، مظلومانو آزادول پکښې هم داخل دي ④ روژے نیول فرض وي که نفل. ⑤ حج کول فرض وي که نفل، او په دیکښې عمره هم داخله ده او طواف هم ⑥ اعتکاف کول، په دیکښې د لیلة القدر تلاش کول هم داخل دي. ⑦ د دین د حفاظت د پاره کور پرېخودل چه په دے کښې هجرت هم داخل دے ⑧ نذر یعنی د منختے پوره کول. ⑨ د قسمونو پوره کولو خیال ساتل ⑩ د کفارو ادا کول ⑪ عورت د دیره دے اندامونو ماتحه کښې او د مانځه نه علاوه پټ ساتل ⑫ قربانی کول او د قربانئ د ځارو و خیرخبر اخستل، او د دے اهتمام کول ⑬ د جنازے اهتمام کول او د دے نورو کارونو انتظام کول ⑭ د قرض ادا کول ⑮ معاملے تهیک کول، د سود نه بچ کیدل ⑯ د ریښتیا خبرے گواهي ورکول، حق نه پټول.

**دویمه حصه:**- د نورو خلقو سره د معاملے ده، د دے شپږ بناخونه دي. ① د نکاح په ذریعه د حرامکارئ نه بچ کیدل ② د بال بچ د حقونو خیال ساتل او د هغے ادا کول. په دے کښې د نوکرانو او د خادمانو حقونه هم داخل دي. ③ مور پلار سره ښه سلوک کول، نرمي کول، فرمانبرداري کول ④ د اولاد ښه تربیت کول ⑤ صله رحمی یعنی خپلو خپلوانو سره خپلولي کول ⑥ د مشرانو ادب کول او خبره منل.

**دریمه حصه:**- حقوق عامه یعنی د عوامو د حقونو ده چه په اتلس شعبو تقسیم ده. ① انصاف سره حکومت کول ② د حق د پلے ملگرتیا کول ③ د حاکمانو حکم منل (په شرط د دے چه د شریعت نه خلاف حکم نه وي) ④ په خپل منځ کښې د معاملو اصلاح کول چه په دیکښې بد کارو ته سزا ورکول، باغیانو سره جهاد کول هم داخل دي ⑤ نیک کارونو کښې د نورو مدد کول. ⑥ نیک کارونو حکم کول او د بد و خبرو نه منع کول چه په دیکښې وعظ او تبلیغ هم داخل دے. ⑦ د حدودو (شرعی سزا گانو) قائمول ⑧ جهاد کول چه په دیکښې د مورچو حفاظت هم داخل دے ⑨ د امانت ادا کول چه په دیکښې

خُمس کوم چه د غنیمت مالونو کښې وی هغه هم داخل دے ⑩ د قرض ورکول او ادا کول ⑪ د کارونو یا نو حق ادا کول، د دوی اکرام کول. ⑫ معامله ښه کول چه په دیکښې په جائزه طریقه مال جمع کول هم داخل دی. ⑬ مال په خپل ځائی باندے خرچ کول. د اسراف او د بخل نه بچ کیدل هم په دیکښې داخل دی ⑭ سلام کول او د سلام جواب ورکول ⑮ اَنږیونکی کوونکی ته يَرْحَمُكَ اللهُ ویل ⑯ د دُنیا خلق د خپل نقصان او د خپل تکلیف نه بچ کول ⑰ لَهْو ولَعِب او بوتوقو نه بچ کیدل ⑱ د لارے نه ضرر ورکوونکے خیز لرے کول.

دا اووه اویا (۷۷) ښاخونه شو. په دیکښې بعضے یو په بل کښې داخلولے هم شی لکه څنګه ښه معامله کښې د مال جمع کول او خرچ کول دواړه داخلیدے شی. رغبے په غور و فکر سره نور هم شمیر په کښې کمولے شی. او په دے لحاظ د اویا او (۷۹) روایت یا د اووشپیتو د روایت لاندے هم دا تفصیل راتلے شی. دے تفصیل کښې بنده د علامه عینی رحمة الله علیه کلام کوم چه د بُخاری شریف په شرح کښې دے اصل ګرځولے دے چه هغه نمبروار دا خیزونه هم ذکر کړی دی. او د حافظ ابن حجر رحمة الله علیه فَتْحُ الْبَارِی او د علامه عینی رحمة الله علیه د مرقات نه هم وضاحت او اضافه کړے دی. عالمانو لیکلی دی چه د ایمان ټولے شعبے اجمالاً دا دی کومے چه ذکر شوے. بنده لیکار دی چه په دیکښې غور و فکر اوکړی. کوم صفتونه چه په ده کښې له دے نه موجود وی په هغے د الله جل شانه شکر ادا کړی چه هم د هغه په توفیق او مهربانئ سره هره نیکی حاصلیږی. او د کومو صفتونو چه په ده کښې کمے وی، د هغے د حاصلولو د کوشش اوکړی، او د الله تعالیٰ نه د هغے د حاصلولو توفیق اوغواړی. وَمَا تَوْفِيْقِيْ اِلَّا بِاللّٰهِ ط

# دریم باب

## د دریمے کلمے فضائل

یعنی سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ. بعض روایاتو

کښې دے کلمو سره لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ هم راغلی دی. حدیثونو کښې دوے کلمو ډیر زیات فضیلت راغلے دے. دا کلمے د تسبیحاتِ فاطمه په نامه هم مشهورې دی. ځکه چه دا کلمے نبی اکرم ﷺ د تهولو نه زیاته خپلے نیاز بینے لور حضرت سیده فاطمه رضی الله عنها ته خودلے وے لکه څنګه چه مخکښې راغلی.

په دے باب کښې هم د قران شریف ایتونه او حدیثونه ډیر راغلی دی ځکه م په دوه فصلونو دا تقسیم کړو. اول فصل اٰیاتِ قرانیه کښې او دویم فصل احادیث نبویه کښې.

# اول فصل

دهغه ایتونو په بیان کښې کوم کښې چه سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَکْبَرُ مضمون ذکر کړے شوے دے. دا د قاعدے خبره ده، کوم څیز چه څومره اهم او ضروری وی، هغه هومره په اهتمام ذکر کولے شی، او په مختلفو طریقو ذهن کښې کینولے شی. په دے وجه د دے کلماتو مفهوم هم قران پاک کښې په مختلفو طریقو ذکر کړے شوے دے. په دیکښې د ټولو نه رومبے کلمه سُبْحَانَ اللهِ ده. د سُبْحَانَ اللهِ معنیٰ ده الله تعالیٰ د هر عیب او د بدئ نه پاک دے خو دهغه د پاکئ پوره پوره اقرار کوم. دا مضمون ئے په حکم سره هم ذکر کړے دے چه د الله تعالیٰ پاکی بیا نوئ. او په خبر سره ئے هم ارشاد فرمائیلے دے چه فرشتے او نور مخلوقات د الله تعالیٰ د پاکئ اقرار او بیان کوی وغیره وغیره. دغه د نورو الفاظو ئے هم دا حال دے چه په مختلفو عنوانانو قران شریف کښې د دے مضامین ئے ذکر کړی دی.

(۱) وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ط (بقره - ع ۴)

د فرښتو وینا د انسان د پیدا کیدو په وخت مونږ ره بِحَمْدِ اللهِ ستا تسبیح کوو، او ستا د پاکئ په زړه سره اقرار کوو.

(۲) قَالُوْا سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا اِنَّكَ اَنْتَ

(دملائکو چه کله په مقابله د انسانانو امتحان اوشو نو، نو ئے وویل ته خو د هر عیب نه پاک ئے مونږ

الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ﴿٣٢﴾ (بقره - ع ۴) | ته خوله ډیر ښه پوهیږې هم علم نشته خو مره چه

تا (الله) خودلې دے بیشکه ته د لوئی علم خاوند یې د لوئی حکمت خاوند یې۔

③ وَاذْكُر رَّبَّكَ كَثِيرًا وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ﴿٤١﴾ (آل عمران - ع ۴)

او خپل رب ډیر یاد وئ او دهغه تسبیح کوئ مابنام کښې او د سحر په وخت کښې۔

④ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَٰذَا بَاطِلًا سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿١٩١﴾ (آل عمران - ع ۲۰)

(پوهه خلق کوم چه د الله تعالیٰ په ذکر کښې هر وخت مشغول اوسی او د قدرت په کارونو کښې غور و فکر کوی، داوائی اے خمونږ ربه!

تا دا ټول بے فائدے پیدا کړی نه دی (بلکه لوئی حکمتونه په دیکښې دی) ستا ذات د هر عیب نه پاک دے۔ مونږ ستا تسبیح کوو، ته مونږ د دوزخ د عذاب نه اوساتے۔

⑤ سُبْحَانَهُ أَن يَكُونَ لَهُ وَلَدٌ (نساء - ع ۲۳)

هغه ذات له د دې نه پاک دے چه دهغه اولاد وی۔

⑥ قَالَ سُبْحَانَكَ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ (مائده - ع ۱۶)

(قیامت کښې چه کله د حضرت عیسیٰ علیه السلام نه سوال اوشی چه ایا تا خپل امت ته د تثلیث تعلیم ورکړے وو؟ نو هغه به اووائی (توبه توبه) خدایه تا د شرك نه او د هر عیب نه پاك گڼړم، ما به داسے خبرے څنګه کړلے چه د کومے د وینا ما ته هیڅ حق نه وو۔

⑦ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿١٠٠﴾ (انعام - ع ۱۲)

الله جل جلاله د دے ټولو خبرو نه پاك دے کومے چه دا کافران د الله تعالیٰ په شان کښې وائی (چه دهغه اولاد دے یا شریك دے وغیره وغیره)

⑧ فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ سُبْحَانَكَ تُبْتُ إِلَيْكَ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٤٣﴾ (اعراف - ع ۱۷)

(کله چه کوه طور باندے د الله جل شانه د نور تجلی نه حضرت موسیٰ علیه السلام بیهوشه پریوتے وو) بیا هر کله چه په هوش کښې شو نو عرض یے اوکړه چه بیشکه ستا ذات (په دے دنیا کښې د سترګو د لیدو نه او د هر عیب نه) پاك دے (د دیدار د درخواست نه) توبه کوم، او د ټولو نه وړومبے ایمان راوړونکے یم۔

⑨ إِنَّ الَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا

بیشکه خوك چه د الله تعالیٰ مقرب دی (یعنی

يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ ۩

فرښتے) هغوی د هغهٔ د عبادت نه تکبر نه کوی او د هغهٔ تسبیح کوی او هغهٔ ته سجدے لګوی.

**فائده:** صوفیا نو لیکلی دی چه ایت کښې د تکبر نهٔ کولو بیان مخکښې کولو دے طرف ته اشاره ده چه د تکبر ختمول په عبادا تو باندے د اهتمام ذریعه ده. او په تکبر سره عبادا تو کښې سستی پیدا کیږی.

(۱۰) سُبْحٰنَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ (توبه. ع ۵)

د هغهٔ ذات پاک دے د هغه څیزونو نه کوم چه دغه (کافران) د هغهٔ شریک جوړوی.

(۱۱) دَعْوٰىهُمْ فِيْهَا سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ (یونس. ع ۱)

د دے جنتیانو خلے نه به دا خبره اوزی. سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ او په خپل مینځ کښې به د هغوی سلام وی اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ او کله چه د دنیا نعمتونو یادکړی او خیال اوکړی چه اوس همیشه د پاره د هغے نه خلاص اوشونو) اخرکښې به اووائی اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ.

(۱۲) سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ (یونس. ع ۲)

هغه ذات پاک او لوی دے د هغے څیزونو نه کوم چه دا کافران شریک جوړوی.

(۱۳) قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ الْغَنِيُّ ؕ (یونس. ع ۷)

دغه خلق وائی چه د الله جل شانهٗ اولاد شته الله تعالیٰ له دے نه پاک دے. هغه څوک محتاج نهٔ دے او الله جل شانهٗ د هر عیب نه پاک دے او څهٔ د مشرکانو نه نه یم.

(۱۴) وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَاۤ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ (یوسف. ع ۱۲)

(۱۵) وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ خِيْفَتِهٖ ۚ (رعد. ع ۲)

او رعد (فرښته) د هغهٔ په حمد سره تسبیح کوی او نور ټول فرښتے هم د هغهٔ د ویرے نه (تسبیح او تحمید کوی)

**فائده:** عالمانو لیکلی دی چه څوک د (اسمان) د بریښنا او ګړزاری په وخت سُبْحَانَ الَّذِيْ يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ خِيْفَتِهٖ اووائی هغهٔ ته به د بجلۍ د نقصان نه حفاظت حاصل شی. یو حدیث کښې راغلی دی چه کله د بجلۍ ګړزا واورئ نو د الله تعالیٰ ذکر کوئ، بجلی ذکر کوونکی ته نه شی ورتلے. بل حدیث کښې راغلی

دی چه رجبلی) بربېښنا او ګرزاری په ځوف کښ تسبيح وايي تکبيرونه وايي.

(۱۶) وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ ۝ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ ۝ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ۝

(حجر. ع ٦)

او مونږ ته معلومه ده چه دا خلق کوم نامناسب کلمې ستا په شان کښ) وائي په هغې ستا زړه تنګيږي پس (د دې پرواه مه کوه) ته د خپل رب تسبيح او تحميد کوه او سجده کونکو (يعني مونځګذارو) کښ شامل اوسه او د خپل رب عبادت کوه تر دې پورې چه ستا وفات وخت راشي.

(۱۷) سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ۝ (نحل. ع ۱)

هغه ذات د خلقو د شرک نه پاک او ډير لوئ دے.

(۱۸) وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ الْبَنَاتِ سُبْحَانَهُ وَلَهُم مَّا يَشْتَهُونَ ۝ (نحل ع ۷)

او هغوی الله تعالى د پاره لونړه تجويز کوی هغه ذات د دې نه پاک دے (او عجيبه دا ده چه) خان د پاره دا سے څيز تجويز کوی کوم چه پخپله خوښوی.

(۱۹) سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى (بنی اسرائیل. ع ۱)

(هر عيب نه) پاک دے هغه ذات چا چه خپل بنده (محمد صلی الله عليه وسلم) د شپې په وخت د مسجد حرام (يعني خانه کعبې) نه مسجد اقصی ته بوتلو (د معراج قصه (د شلم نمبر نه تر وويشتم پورې ترجمه) دا خلق چه څه وائي الله تعالى د هغې نه پاک او ډير زيات د اوچتې مرتبې دے.

(۲۰) سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يَقُولُونَ عُلُوًّا كَبِيرًا ۝

(بنی اسرائیل. ع ۵)

(۲۱) تُسَبِّحُ لَهُ السَّمَاوَاتُ السَّبْعُ وَالْأَرْضُ وَمَن فِيهِنَّ ۝

(بنی اسرائیل. ع ۵)

ټول اووه اسمانونه او زمکه او څوموره څه (بنيادم فرښتې او پيريان) د دې په مينځ کښ دی ټول په ټول د هغه تسبيح کوی.

(۲۲) وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ۝

(بنی اسرائیل. ع ۵)

(او صرف دا نه بلکه) هيڅ څيز هم (د ساه وی که بے ساه) دا سے نشته چه د هغه په تعريف سره تسبيح نه کوی خو تاسو خلق د هغوی په تسبيح نه پوهيږئ.

(۲۳) قُلْ سُبْحَانَ رَبِّيْ هَلْ كُنْتُ اِلَّا بَشَرًا رَّسُوْلًا (بنی اسرائیل ع ۱۰)

(تهٔ دوی عبثو مطالبو په جواب کښې کوم چه هغوی کوی، اُووایه چه سُبْحَانَ اللهِ زهٔ خو یو سړے یم، رسول یم (الله نهٔ یم چه څهٔ غواړم هغه اُوکړم.)

(۲۴) وَيَقُوْلُوْنَ سُبْحَانَ رَبِّنَآ اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا (بنی اسرائیل ع ۱۲)

(په دغه عالمانو چه کله قرآن شریف لوستے شی نو هغوی د ژړکو په طرف په سجدا کښې پریوزی) اُو وائی چه زمونږ رب پاک دے. بیشکه د هغهٔ وعدا ضرور پوره کیدونکے ده.

(۲۵) فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰٓى اِلَيْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا (مریم ع ۱)

پس (حضرت زکریا علیه السلام) د کوټې نه بهر تشریف راووړهٔ، او خپل قوم ته یې په اشاره اُووے چه تاسو سحر او مابنام د الله تعالیٰ تسبیح کوئ.

(۲۶) مَا كَانَ لِلّٰهِ اَنْ يَّتَّخِذَ مِنْ وَّلَدٍ سُبْحٰنَهٗ (مریم ع ۲)

د الله جل شانهٔ دا (آهو) شان نهٔ دے چه هغه اولاد اختیار کړی. هغه د ټولو قصونه پاک دے.

(۲۷) وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا وَمِنْ اٰنَآئِ الَّيْلِ فَسَبِّحْ وَاَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضٰى (طٰهٰ ع ۸)

(محمد صلی الله علیه وسلم! ته د دے خلقو په نامناسب خبرو صبر کوه) او د خپل رب حمد و ثنا) سره تسبیح کوه د نمر ختلو نه ړومبے او د پریوتلو نه ړومبے او د شپے په وختونو کښې تسبیح کوه او د ورځے په اول او اخر کښې د پاره د دے چه ته (د هغے ثواب او بے انتها بدلے کښو ممکنے چه د دغے په مقابله کښې ملاویدونکے دی بے اندازے) خوشاله شے.

(۲۸) يُسَبِّحُوْنَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ (انبیاء ع ۲)

(د الله تعالیٰ مقبول بندګان هغهٔ د عبادت نه ستړی کیږی) شپه او ورځ د الله تعالیٰ تسبیح کوی، هیڅ وخت یې نه پریږدی.

(۲۹) فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُوْنَ (انبیاء ع ۲)

الله تعالیٰ چه د عرش مالک دے د دے ټولو خبرو نه پاک دے کوم چه د اخلق بیانوی (چه نعوذ بالله د هغهٔ شریک شته یا د هغهٔ اولاد شته.)

(٣٠) وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ (انبياء. ع ٢)

دا (کافران) داوائي چه (نعوذ بالله) رحمٰن (يعنې الله تعالىٰ فرښتې په) اولاد نيولے دي، دهغه ذات د دې نه پاک دے.

(٣١) وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ (انبياء. ع ٦)

موږ غرونه د داؤد علیه السلام تابع کړي وو چه دهغه تسبيح سره هغوي هم تسبيح کوي او د دارنګه مارغان مو تابع کړي وو چه هغوي هم دحضرت داؤد علیه السلام تسبيح سره تسبيح کوي.

(٣٢) لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحٰنَكَ ۖ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۚ (انبياء. ع ٦)

(حضرت يونس علیه السلام په تياره کښې اوويل) چه ستا نه سوا څوک معبود نشته ته د ټولو عيبونو نه پاک يې، څه بيشکه قصوروار يم.

(٣٣) سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۙ (مؤمنون. ع ٥)

الله تعالىٰ د دې ټولو خبرونه پاک دے کومې چه دوي بيانوي.

(٣٤) سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ ۚ (النور. ع ٢)

سبحان الله، دا (خلق کوم څه چه حضرت عائشه رضی الله عنها په شان کښې تهمت لګوي) ډير لوئ بهتان دے.

(٣٥) يُسَبِّحُ لَهٗ فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۙ رِجَالٌ ۙ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَإِقَامِ الصَّلٰوةِ وَإِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ ۙ يَخَافُوْنَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيْهِ الْقُلُوْبُ وَالْاَبْصَارُ ۙ (النور. ع ٥)

د دے (جماتونو) کښې داسې خلق سحر او ماښام د الله تعالىٰ تسبيح کوي کوم چه د الله تعالىٰ د ياد نه او د مونځ کولو نه، او د زکوٰة ورکولو نه اخستل غفلت کښې اچوي نه خرڅول. هغوي د داسې ورځ (دعذاب) نه ويريږي کوم کښې چه ډير زړونه او ډيرې سترګې واوړي (يعنې د قيامت د ورځې نه)

(٣٦) أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللّٰهَ يُسَبِّحُ لَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالطَّيْرُ صٰٓفّٰتٍ ؕ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَتَسْبِيْحَهٗ ؕ وَاللّٰهُ

(اے مخاطبه!) ايا تا ته (د دلائلو او مشاهدې نه) دا معلومه نه شوه چه د الله جل شانه تسبيح کوي هغه هر څه چه اسمانونو او زمکو کښې دي (او خصوصًا) مارغان هم چه وزرې يې

عَلِيْمٌ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ۝ (النور ع ۶)

خوَرے کړی دی (الهام ئے کړے) تولو ته خپله دُعاګانے او خپله د تسبیح (طریقه) معلومه ده، او الله جل شانهٔ ته د تولو حال او هر څهٔ چه خلق کوی هغه ټول ورته معلوم دی۔

(۳۷) قَالُوْا سُبْحٰنَكَ مَا كَانَ يَنْبَغِيْ لَنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ مِنْ دُوْنِكَ مِنْ اَوْلِيَآءَ وَلٰكِنْ مَّتَّعْتَهُمْ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى نَسُوا الذِّكْرَ وَكَانُوْا قَوْمًا بُوْرًا ۝ (الفرقان۔ ع ۲)

(د قیامت په ورځ هر کله چه الله تعالیٰ دا کافران او د چا چه دوی عبادت کولو، تول راجمع کړی، د غے معبودانو نه به تپوس اوکړی، آیا تاسو دوی ګمراه کړی وُو، نو) هغوی به اُووائی سُبْحَانَ الله څمونږ څهٔ طاقت وو چه د تا نه سوابل څوک موکارساز مقرر کړی وے، بلکه دا ربیوقوفان په خپله په ځائی د فکر ګټو کښ اخته شُو، چه تا دوی ته او د دوی مشرانو ته بنهٔ مالداری ورکړه، تر دے چه دا خلق (د دولت په نشه کښ شهوتونو کښ اخته شو، او) ستا یاد یے هیر کړو۔ او په خپله برباد شول۔

(۳۸) وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِيْ لَا يَمُوْتُ وَسَبِّحْ بِحَمْدِهٖ وَكَفٰى بِهٖ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِيْرًا ۝ (الفرقان۔ ع ۵)

او په هغه پاك ذات باندے توکل کوه کوم چه ژوندے دے او هیڅ کله هغهٔ ته فنا نشته او د هغهٔ تعریف سره تسبیح کوه (یعنی تسبیح او تحمید کښ مشغول اوسه د چا د مخالفت پرواه مهٔ کوه) ولے چه هغه پاك ذات د خپلو بندګانو د ګناهونو نه کافی خبردار دے (قیامت کښ به هریو کس ته د هغهٔ د مخالفت بدله ورکړے شی۔)

(۳۹) وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ (نمل۔ ع ۱)

الله رَبُّ الْعٰلَمِيْن د هر قسمه عیب نه پاك دے۔

(۴۰) سُبْحٰنَ اللّٰهِ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ (قصص۔ ع ۷)

الله جل شانهٔ د هغے ټولو څیزونو نه پاك دے کوم چه مشرکان بیانوی۔ او د هغے نه بالاتر دے۔

(۴۱) فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ۝ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَ

پس تاسو الله تعالیٰ تسبیح کوئی د ماښام په وخت (یعنی شپه کښ) او د سحر په وخت او هم د هغهٔ حمد (کوئے شی)، ټولو آسمانونو کښ او

وَالْاَرْضِ وَعَشِيًّا وَّحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ ۝ (الروم. ع ۲)

(ملکه کښې او هم دغه تسبیح او تحمید کوئ) د ماښام په وخت کښې هم (یعنی د ماځیګر په وخت کښې هم) او د ماسپخین په وخت کښې هم.

(۴۲) سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ (الروم. ع ۴)

د الله جل شانه ذات پاک او بالاتر دے د هغه څیزونو نه د کوم چه د اخلق هغه طرفته (نسبت کړے) بیا کوی.

(۴۳) اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ۝ (سجده. ع ۲)

پس خمونږ په ایتونو خو هغه خلق ایمان راوړی کله چه هغوی ته هغه ایتونه یاد ولے شی نو هغوی سجده کښې پریوزی او د خپل رب تسبیح او تحمید شروع کړی او دغه خلق تکبر نه کوی.

(۴۴) يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا ۝ وَّسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ۝ (احزاب. ع ۶)

(اے ایماندارو! د الله تعالیٰ ذکر ښه په کثرت سره کوئ. او سحر ماښام د هغه تسبیح کوئ.

(۴۵) قَالُوْا سُبْحٰنَكَ اَنْتَ وَلِيُّنَا مِنْ دُوْنِهِمْ (سبا. ع ۵)

(هر کله چه قیامت کښې ټول مخلوق جمع کړی. الله جل شانهٗ به د فرښتو نه تپوس اوکړی ایا دے خلقو ستاسو عبادت کولو؟ نو) هغوی به اووائی ته (د شرک وغیره عیبونو نه) پاک یې. خمونږ خو صرف تا سره تعلق دے نه چه هغوی سره.

(۴۶) سُبْحٰنَ الَّذِيْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا (یٰسٓ. ع ۳)

هغه ذات پاک دے چه هغه د ټولو جوړے (یعنی د یو بل مقابل) څیزونه پیدا کړه.

(۴۷) فَسُبْحٰنَ الَّذِيْ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ (یٰسٓ. ع ۵)

پس پاک دے هغه ذات چه د هغه په قبضه کښې د هر څیز پوره پوره اختیار دے. او هم هغه طرف ته به واپس کولے شئ.

(۴۸) فَلَوْلَآ اَنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ ۝ لَلَبِثَ فِيْ بَطْنِهٖٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ۝ (صافات. ع ۵)

پس که چرے یونس علیه السلام تسبیح کوونکو کښې نه وے نو تر قیامته پورے به د (کب) په ګېډه کښې وے.

(۴۹) سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۝ (صافات ـ ع ۵)

د الله تعالیٰ ذات پاک دے د هغې خیزونو نه کوم چه دا خلق بیانوی.

(۵۰) وَ اِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُوْنَ ۝ (صافات ـ ع ۵)

(فرښتې وائی چه مونږ تول په ادب سره صفونو کښې ولاړ یو) او تول د هغه تسبیح کوو.

(۵۱) سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ۝ وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ۝ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ (صافات ـ ع ۵)

ستا رب چه د عزت (او د عظمت) خاوند دے پاک دے د هغې خیزونو نه کوم چه دوی بیانوی. او سلام دے په پیغمبرانو. او تول تعریفونه هم د الله تعالیٰ د پاره ثابت دی چه د تول عالم پروردګار دے.

(۵۲) اِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهٗ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْاِشْرَاقِ ۝ وَالطَّيْرَ مَحْشُوْرَةً ؕ كُلٌّ لَّهٗ اَوَّابٌ ۝ (صٓ ـ ع ۲)

مونږ غرونو ته حکم کړے وو چه د هغه (حضرت داؤد علیه السلام) سره شریک شی سحر ماښام تسبیح کوی. د غه رنګې مو مارغانو ته هم حکم کړے وو (چه د تسبیح په وخت کښې به) هغوی جمع کیدل. او تول (غرونه او مارغان یو ځائ شوی حضرت داؤد علیه السلام سره) الله تعالیٰ طرف ته رجوع کونکی (او تسبیح و تحمید کښې مشغولیدنکی) وو.

(۵۳) سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝ (زمر ـ ع ۱)

هغه د عیبونو نه پاک دے. داسے الله دے چه یو دے (هیڅوک د هغه شریک نشته) زبردست دے.

(۵۴) سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ (زمر ـ ع ۷)

هغه ذات پاک او برتر دے د هغې خیز نه کوم چه دا خلق شریک جوړوی.

(۵۵) وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ۚ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ (زمر ـ ع ۸)

ته به (قیامت کښې) فرښتې اووینې چه د عرش څلور واړو طرفو ته به په حلقه کښې ولاړے وی او د خپل رب په تسبیح او تحمید کښې به مشغولے وی او (هغه ورځ) به د تولو بندګانو نه په مینځ کښې په حق فیصله اوکړے شی او د هر طرف نه) به اووئیلے شی اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (تول تعریفونه هغه الله د پاره دی کوم چه د تول عالم پروردګار دے.)

(۵۶) اَلَّذِیْنَ یَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهٗ یُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَیُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَیَسْتَغْفِرُوْنَ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَا وَسِعْتَ کُلَّ شَیْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِیْنَ تَابُوْا وَاتَّبَعُوْا سَبِیْلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِیْمِ ۝ (مؤمن - ع ۱)

کوم فرښتو چه عرش اوچت کړے دے او کوم فرښتے چه د هغے څلور وارو طرفو ته دی هغوی د خپل رب تسبیح کوی او حمد کوی او په هغه ایمان لری او ایمانوالو دپاره استغفار کوی (او وائی) چه اے زمونږ پروردګاره! ستا رحمت او علم هر څیز ته شامل دے پس هغه خلق اوبخښه چاچه توبه کړے ده او ستا په لار روان دی او هغوی د دوزخ د عذاب نه اوساتے۔

(۵۷) وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِیِّ وَالْاِبْکَارِ ۝ (مؤمن - ع ۶)

سحر او ماښام (همیشه) د خپل رب تسبیح او تحمید کوه۔

(۵۸) فَالَّذِیْنَ عِنْدَ رَبِّكَ یُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّیْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا یَسْئَمُوْنَ ۝ (حٰم سجده - ع ۵)

کوم چه ستا رب ته نزدے دی (یعنی مقربے دی مراد ترے فرښتے دی) هغوی شپه او ورځ د هغه تسبیح کوی ذره هم نه ستومانه کیږی۔

(۵۹) وَالْمَلٰٓئِکَةُ یُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَیَسْتَغْفِرُوْنَ لِمَنْ فِی الْاَرْضِ ۝ (شوریٰ - ع ۱)

او فرښتے د خپل رب تسبیح او تحمید کوی او هغه خلقو دپاره کوم چه په زمکه کښ اوسی هغوی دپاره استغفار کوی۔

(۶۰) وَتَقُوْلُوْا سُبْحٰنَ الَّذِیْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا کُنَّا لَهٗ مُقْرِنِیْنَ ۝ وَاِنَّآ اِلٰی رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ ۝ (زخرف - ع ۱)

(او تاسو سورلو باندے چه کینئ نو د خپل رب یاد کوئ) او وائئ پاك دے هغه ذات چاچه دا سورلئ زمونږ تابع کړے او مونږ خو داسے نه وو چه دوی مو تابع کړے وے۔ او بیشکه مونږ خپل رب ته واپس تلونکی یو۔

(۶۱) سُبْحٰنَ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا یَصِفُوْنَ ۝ (زخرف - ع ۷)

د اسمانونو او د زمکو پروردګار چه مالك د عرش هم دے پاك دے د هغه څیزونو نه کوم چه دوی بیانوی۔

(۶۲) وَتُسَبِّحُوْهُ بُکْرَةً وَّ

او تسبیح کوئ د هغه د سحر په وخت او د ماښام

اَصِیْلًا ۝ (الفتح - ع ۱)
په وخت۔

(۶۳) فَاصْبِرْ عَلٰی مَا یَقُوْلُوْنَ وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّکَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ ۝ وَ مِنَ الَّیْلِ فَسَبِّحْهُ وَاَدْبَارَ السُّجُوْدِ ۝ (قٓ - ع ۳)

پس د دے خلقو (په نامناسبه خبرو) هر څه چه هغوی وائی صبر کوه۔ او د خپل رب تسبیح او تحمید کوه، نمر ختلو نه وړومبے او د نمر پریوتلو نه پس او شپه کښې هم د هغه تسبیح او تحمید کوه او (فرض) مونځونو نه پس هم تسبیح او تحمید کوه۔

(۶۴) سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا یُشْرِکُوْنَ ۝ (طور۔ ع ۲)

د الله تعالیٰ ذات پاک دے د هغه څیزونو نه کوم چه دوی شریک کوی۔

(۶۵) وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّکَ حِیْنَ تَقُوْمُ ۝ وَ مِنَ الَّیْلِ فَسَبِّحْهُ وَاِدْبَارَ النُّجُوْمِ ۝ (طور۔ ع ۲)

او د خپل رب تسبیح او تحمید کوه (د مجلس نه پاڅه او د کید ونه) د پاسیدو نه پس (یعنی د تهجد د په وخت کښې) او د شپے په وخت کښې هم د هغه تسبیح کوه، او د ستورو (پریوتلو نه) روستو هم۔

(۶۶-۶۷) فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّکَ الْعَظِیْمِ ۝ (واقعہ ع ۲، ۳۔ دوه ځایه)

پس د هغه خپل لوئ عظیم رب د نوم تسبیح کوه۔

(۶۸) سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۝ وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ۝ (حدید۔ ع ۱)

د الله تسبیح کوی هغه ټول کوم څه چه اسمانونو کښې دی او زمکه کښې دی او هغه زبردست دے حکمت والا دے۔

(۶۹) سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ۝ وَ هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ۝ (حشر۔ ع ۱)

د الله تسبیح کوی هغه ټول څیزونه کوم چه اسمانونو کښې دی او هغه ټول څیزونه کوم چه زمکه کښې دی او هغه زبردست دے حکمت والا دے۔

(۷۰) سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا یُشْرِکُوْنَ ۝ (حشر۔ ع ۳)

د الله تعالیٰ ذات پاک دے د هغه څیزنه کوم چه دوی شریک جوړوی۔

(۷۱) یُسَبِّحُ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۝ وَ هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ۝ (حشر۔ ع ۳)

د الله جل شانه تسبیح کوی هغه ټول څیزونه کوم چه اسمانونو او زمکه کښې دی او هغه زبردست دے حکمت والا دے۔

(۷۲) سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ۝ (صف - ع ۱)

دالله جل شانهٔ تسبیح کوی هغه ټول څیزونه کوم چه اسمانونو کښې دی او زمکه کښې دی او هغه زبردست دے حکمت والا دے۔

(۷۳) یُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ الْمَلِکِ الْقُدُّوْسِ الْعَزِیْزِ الْحَکِیْمِ ۝ (جمعه - ع ۱)

دالله جل شانهٔ تسبیح کوی هغه ټول څیزونه کوم چه اسمانونو کښې دی او کوم څیزونه چه زمکه کښې دی. هغه بادشاه دے (د ټولو عیبونو نه) پاک دے زبردست دے حکمت والا دے۔

(۷۴) یُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ۚ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۝ (تغابن - ع ۱)

دالله جل شانهٔ تسبیح کوی هغه ټول څیزونه کوم چه اسمانونو کښې دی او هغه څه چه زمکه کښې دی هم هغهٔ دپاره ټوله بادشاهی ده او هم هغه د تعریف قابل دے او په هر څیز قادر دے۔

(۷۵-۷۶) قَالَ اَوْسَطُهُمْ اَلَمْ اَقُلْ لَّکُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُوْنَ ۝ قَالُوْا سُبْحٰنَ رَبِّنَآ اِنَّا کُنَّا ظٰلِمِیْنَ ۝ (قلم - ع ۱)

په هغوی کښې چه څوک افضل وُو هغهٔ اُووے چه ما تاسو ته (د هر څه نه) وئیلی نه وُو، دالله تسبیح ولے نه کوئ. هغه خلقو اُووے سبحٰن ربنا (زمونږ رب پاک دے) بیشکه مونږ خطاوار یُو۔

(۷۷) فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّکَ الْعَظِیْمِ ۝ (الحاقه - ع ۲)

پس د خپل عظمت والا پروردګار د نوم تسبیح کوه۔

(۷۸) وَاذْکُرِ اسْمَ رَبِّکَ بُکْرَةً وَّاَصِیْلًا ۝ وَمِنَ الَّیْلِ فَاسْجُدْ لَهُ وَسَبِّحْهُ لَیْلًا طَوِیْلًا ۝ (دهر - ع ۲)

د خپل پروردګار سحر او ماښام نوم اخله او د شپے هم د هغهٔ دپاره سجده کوه۔ او د شپے لویه حصه کښې د هغهٔ تسبیح کوه۔

(۷۹) سَبِّحِ اسْمَ رَبِّکَ الْاَعْلٰی ۝ (اعلیٰ - ع ۱)

ته د خپل عالی شان پروردګار د نوم تسبیح کوه۔

(۸۰) فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّکَ وَاسْتَغْفِرْهُ ۚ اِنَّهٗ کَانَ تَوَّابًا ۝ (نصر - ع ۱)

پس ته د خپل رب تسبیح او تحمید کوه او د هغهٔ نه بخښنه غواړه بے شکه هغه لوئ توبه قبلوُنکے دے۔

**فائده:-** دا ټول آیتونه دي کوم کښې چه الله جل جلاله د تسبیح حکم دے. د هغه پاکي بیانولو او د اقرار کولو حکم دے، یا د هغې ترغیب دے. کوم مضمون چه الله مالک الملک دا سے اهتمام سره خپل قرآن پاک کښې بار بار فرمایلے وي، د هغې لوئي شان کیدو کښې څه شک شبه کیدے شي. د دے نه پیرو آیتونو کښې تسبیح سره د دویمے کلمے تحمید یعنې د الله تعالیٰ تعریف کول د هغه حمد و ثناء بیانول او هغې کښې اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ویل هم ذکر شوے ده، څنګه چه د پورته آیتونو نه معلومه شوه. د دے نه علاوه خاص طور د الله تعالیٰ د تعریف بیان کوم چه د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ مفهوم دے، نورو آیتونو کښې هم راغلے دے. او د ټولو نه ضروري دا دے چه د الله جل شانهٗ د کلام پاک شروع هم اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ نه ده. د دے نه به زیات د دے پاکے کلمے نور څه فضیلت وي چه الله جل جلالهٗ د قرآن پاک شروع په دے سره فرمایلے ده.

① اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝ (فاتحه. ع ۱)

د ټولو تعریفونو لائق الله تعالیٰ دے چه د ټولو جهانونو پروردګار دے.

② اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ثُمَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ یَعْدِلُوْنَ ۝ (انعام. ع ۱)

ټول تعریفونه الله تعالیٰ د پاره دي چا چه آسمانونه او زمکه پیدا کړه. او تیارې او رڼا یې جوړه کړه. بیا هم کافران (نورو لره) د خپل رب برابر وي.

③ فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝ (انعام. ع ۵)

بیا رحمونږ د نیولونه) د ظالمانو جرړے پریکړے شوے. او ټول تعریفونه د الله تعالیٰ د پاره دي (د هغه شکر دے) چه د ټولو جهانونو پروردګار دے.

④ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ هَدٰىنَا لِهٰذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِیَ لَوْلَا اَنْ هَدٰىنَا اللّٰهُ ۝ (اعراف. ع ۵)

او جنت ته رسیدلو نه پس) هغې خلقو او وے ټول تعریفونه الله تعالیٰ د پاره دي چا چه مونږ دے مقام ته راورسولو او مونږ به هیڅکله هم دے ځائې ته نه وے رارسیدلے که چرے الله جل شانهٗ مونږ ته نه وے رارسولے.

۵ اَلَّذِیْنَ یَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِیَّ الْاُمِّیَّ الَّذِیْ یَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِی التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِیْلِ (اعراف - ع ۱۹)

کوم خلق چه د دا ـــ رسول نبی اُمّی تابعداری کوی کوم چه دغه خلق خپل خان ته تورات او انجیل کښې لیکلے شوے مومی۔

**فائده:-** تورات کښې چه کوم صفتونه د نبی اکرم ﷺ نقل کړے شوی دی هغې کښې دا هم ذکر کړے شوی دی چه د هغهٔ اُمت به ډیرپه کثرت سره د الله تعالی حمد وثناء کوونکی وی. لکه دُرِّمنثور کښې څو روایتونو نه دا مضمون نقل کړے شوے دے۔

۶ اَلتَّآئِبُوْنَ الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّآئِحُوْنَ الرّٰكِعُوْنَ السّٰجِدُوْنَ الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ ؕ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِیْنَ (توبه - ع ۱۴)

(دوے مجاهدینو صفتونه، چه د چا ځانونه الله تعالی د جنت په بدله کښې په بیعه اخستلی دی دا دی چه) هغوی د ګناهونو نه توبه ایستونکی دی، د الله تعالی عبادت کوونکی دی، د الله تعالی حمد وثناء کوونکی دی، روژے ساتونکی دی یا د الله تعالی رضا دپاره سفر کوونکی دی، رکوع او سجده کوونکی دی (یعنی مونځ کذار دی)، د نیکو خبرو حکم کوونکی دی او د بدو خبرو نه منع کوونکی دی (تبلیغ کوونکی دی)، او د الله تعالی د حدودو (یعنی حکمونو) حفاظت کوونکی دی (دا ـــ) مؤمنانو ته خوشخبری واوروه۔

۷ وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ (یونس - ع ۱)

او اخری بلنه د هغوی دا ده. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ (ټول تعریفونه الله تعالی دپاره دی چه د ټولو جهانونو پروردګار دے۔

۸ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَهَبَ لِیْ عَلَى الْكِبَرِ اِسْمٰعِیْلَ وَاِسْحٰقَ (ابراهیم - ع ۶)

ټول تعریفونه د الله تعالی دپاره دی چا چه په بوډاوالی کښې ما ته (دوه ځامن) اسمٰعیل او اسحٰق (علیهما السلام) راکړل۔

۹ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا یَعْلَمُوْنَ

ټول تعریفونه الله تعالی دپاره دی (بیا هم دغه خلق دے طرف ته نهٔ متوجه کیږی)

(نحل ۔ ع ۱۰)

بلکه اکثر دهغوی نه نا پوهه دی.

⑩ يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهٖ وَتَظُنُّونَ إِنْ لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا ۝ (بنی اسرائیل ۔ ع ۵)

کومه ورځ رشپیلئ پوکل وهلے شی) او تاسو به ژوندی کړے شوی راؤبللے شئ نو تاسو به مجبوراً دهغه حمد (وثنا) کوئ (دحکم تعمیل به کوئ) او د احالات چه اووینئ) ګمان به کوئ رچه تاسو دنیا کښ او قبر کښ) ډیره کمه موده حصار شوی وئ.

⑪ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا ۝ (بنی اسرائیل ۔ ع ۱۲)

او ته رښکاره) اووایه چه ټول تعریفونه دهغه الله دپاره دی چه نه اولاد لری او نه دهغه خوك پادشاهئ کښ شریك شته او نه دکمزورئ په وجه دهغه خوك مددګار شته، او دهغه ښه تکبیر ر دلوئ بیان) کوه.

⑫ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَلَمْ يَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا ۝ (کهف ۔ ع ۱)

ټول تعریفونه دهغه الله دپاره دی چا چه په خپل بنده رمحمد ﷺ) کتاب نازل کړو، او په دغه کتاب کښ هیڅ قسمه ذره غوندے هم کږلیچ او نه ساتله.

⑬ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي نَجّٰنَا مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِينَ ۝ (مومنون ۔ ع ۲)

رحضرت نوح علیه السلام ته خطاب دے کله چه ته کشتئ کښ کینئ) نو اووایه چه ټول تعریفونه دهغه الله تعالیٰ دپاره دی چا چه مونږ ته د ظالمانو نه خلاصے راکړو.

⑭ وَقَالَا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي فَضَّلَنَا عَلٰى كَثِيرٍ مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِينَ ۝ (نمل ۔ ع ۲)

او رحضرت سلیمان او حضرت داؤد علیهما السلام) اووے ټول تعریفونه هغه الله تعالیٰ دپاره دی چا چه مونږ ته په خپلو ډیرو ایماندارو بندګانو باندے فضیلت راکړو.

⑮ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِينَ اصْطَفٰى ۝ (نمل ۔ ع ۵)

ته رخطبے په طور) اووایه، ټول تعریفونه دالله تعالیٰ دپاره دی او دهغه په هغه بندګانو سلام دی څوك چه هغه غوره کړی.

(۱۶) وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ سَيُرِيكُمْ اٰيٰتِهٖ فَتَعْرِفُوْنَهَا (نمل۔ ع ۷)

او ته اُووایه چه ټول تعریفونه الله تعالیٰ دپاره دی هغه به تا ته ډیر زر خپلې نښې اُوښائی۔ پس ته به هغه اُوپیژنې۔

(۱۷) لَهُ الْحَمْدُ فِی الْاُوْلٰی وَالْاٰخِرَةِ وَلَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ (قصص۔ ع ۷)

د حمد و ثنا لائق دُنیا او اٰخرت کښې هم هغه دے او حکومت هم هغهٔ دپاره دے او هم هغهٔ طرف ته به واپس کړے شئ۔

(۱۸) قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ۝ (عنکبوت۔ ع ۶)

ته اُووایه ټول تعریفونه دالله تعالیٰ دپاره دی (دا خلق مَنی نه) بلکه اکثر دهغوی نه ناپوهه دی۔

(۱۹) وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِیٌّ حَمِيْدٌ ۝ (لقمٰن۔ ع ۲)

او چا چه کُفر اُوکړهٔ (نا شکری اُوکړه) نو الله تعالیٰ خو بې نیازه دے، ثنا یې ویلې شوے دهٔ۔

(۲۰) قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ (لقمٰن۔ ع ۳)

ته اُووایه ټول تعریفونه الله تعالیٰ دپاره دی (دا خلق مَنی نه) بلکه اکثر دوی نه جاهلان دی

(۲۱) اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِيْدُ ۝ (لقمٰن۔ ع ۳)

بې شکه الله تعالیٰ بې نیازه دے، ثنا یې ویلې شوے دهٔ۔

(۲۲) اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ وَلَهُ الْحَمْدُ فِی الْاٰخِرَةِ (سبا۔ ع ۱)

ټول تعریف دهغهٔ دپاره دے دچا چه قبضه کښې دی هغه څهٔ چه اسمانونو کښې دی او هغه څهٔ چه زمکه کښې دی. هم دهغهٔ به حمد (او ثنا) وی اٰخرت کښې (دبل چا به تپوس نهٔ وی)

(۲۳) اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ (فاطر۔ ع ۱)

ټول تعریف الله تعالیٰ دپاره دے چه د اسمانونو پیدا کوُنکے دے او د زمکے۔

(۲۴) يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ اِلَى اللّٰهِ وَاللّٰهُ هُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِيْدُ ۝ (فاطر۔ ع ۳)

اے خلقو! تاسو محتاج یئ د الله تعالیٰ او هغه بې نیازه دے ثنا یې ویلې شوے دهٔ۔

(۲۵) وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ

اَلله چه مُسلمانان جنت کښې داخل شی، نو د

أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ۖ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ ۙ الَّذِي أَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهِ ۚ لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ ۝ (فاطر۔ ع ۴)

رینبمو جا مے به ورته واغو ستو لے شی، اَو وائی به ټول تعریف هغه الله تعالیٰ لره دے چا چه مونږ نه (دهمیشه دپاره) خفګان لرے کړو. بیشکه زمونږ رب ډیر بخښونکے لوئی قدر کوونکے دے چا چه مونږ په خپل فضل د همیشه اُسیدلو ځائی ته اُورسولو. نه به مونږ ته څهٔ مشقت رسیږی او نهٔ به مونږ ته څهٔ ستومانی رسیږی۔

(۲۶) وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ۝ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ (صافات۔ ع ۵)

او سَلام د وی په رَسُولانو، او ټول تعریف الله تعالیٰ دپاره دے چه د ټولو جهانونو پروردګار دے۔

(۲۷) الْحَمْدُ لِلَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝ (زمر۔ ع ۳)

ټول تعریف الله تعالیٰ دپاره دے (خو دا خلق پوهیږی نه) بلکه اکثر جاهلان دی۔

(۲۸) وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ ۖ فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ ۝ (زمر۔ ع ۸)

او کله چه مسلمانان جنت کښ داخل شی نو وائی به، چه ټول تعریف دهغهٔ دپاره دے چا چه مونږ سره خپله وعدهٔ رښتیني کړه او مونږ لے ددے زمکے مالکان جوړ کړو چه مونږ جنت کښ کوم ځائی غواړو اُوسیږو. د نیک عمل کوونکو څومره ښه بدله ده۔

(۲۹) فَلِلَّهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَرَبِّ الْأَرْضِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ (جاثیه۔ ع ۴)

پس الله تعالیٰ دپاره ټول تعریف دے چه پروردګار دے د آسمانونو او د زمکے، او د ټولو جهانونو پروردګار دے۔۔

(۳۰) وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَنْ يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ۝ الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ (بروج۔ ع ۱)

(د یو کافر بادشاه دپورته نه ذکر دے چه مسلمانانو به یے تنګول او تکلیفونه به یے ورته رسول) او دغه کافر به دے مسلمانانو کښ نور څهٔ عیب نهٔ وو مونده، سِوا د دے نه چه دوی په هغه الله ایمان راوړے وو کوم چه زبردست دے او د تعریف لائق دے۔ جم

هغه دپاره بادشاهي ده د اسمانونو او د زمکې.

**فائده:-** دے ایتونو کښې د الله تعالیٰ د حمد (ثنا) او د هغه د تعریف ترغیب، د هغې حکم د هغې خبر دے. حدیثونو کښې هم په کثرت سره د الله تعالیٰ د تعریف کونکو فضائل په خاص طور ذکر کړے شوي دي.

یو حدیث کښې راغلي دي چه جنت ته به د ټولو نه رومبے هغه خلق راوبللے شي څوک چه هر حال کښې راحت وي یا تکلیف، د الله تعالیٰ تعریف کونکي وي.

یو حدیث کښې ارشاد دے چه الله جل شانهٔ ته خپل تعریف ډیر خوښ دے او ښکاره هم دے چه په حقیقت کښې د تعریف لائق صرف د الله تعالیٰ پاک ذات دے. د الله تعالیٰ د ماسوا به تعریف څه وي چه د هغوي په قبضه کښې هیڅ هم نشته. ان تر دې چه د هغه خپل ځان هم خپله هم خپل قبضه کښې نه دے.

یو حدیث کښې راغلي دي چه د قیامت په ورځ به بهترین بندګان هغه وي څوک چه ډیر ډیر د الله حمد وثنا کوي.

یو حدیث کښې راغلي دي چه حمد د شکر اصل بنیاد دے. چا چه د الله تعالیٰ حمد اُو نه کړو، هغه د الله تعالیٰ شکر هم ادا نه کړو.

یو حدیث کښې راغلي دي چه په یو نعمت حمد کول د هغې نعمت د تلو نه حفاظت دے.

یو حدیث کښې دي که چرے دُنیا ټوله په ټوله څما د اُمت نه د چا په لاس کښې وي او هغه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اُو وائي نو دا وېل د هغې ټولو نه بهتر دي. یو حدیث کښې راغلي دي چه هر کله الله تعالیٰ څه نعمت چا بنده ته ورکړي او هغه په دغې نعمت حمد کوي نو دغه حمد زیاتیږي که نعمت هر څومره لوئي وي.

یو صحابي نبي اکرم ﷺ سره ناست وو، هغه رو غونډے اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ کَثِیْرًا طَیِّبًا مُّبَارَکًا فِیْهِ اُو وے. نبي اکرم ﷺ یو بنتنه اُوکړه چه دا دُعا چا اُو وېله؟ هغه صحابي اُو ویریدلو چه شاید څه نامناسبه خبره شوے وي. نبي اکرم ﷺ اُو فرمایل هیڅ باک نشته، هغه بده خبره نه ده کړے. بیا هغې صحابي عرض اُوکړو چه دا دُعا ما ویلے ده. نبي اکرم ﷺ اُو فرمایل چه ما دیارلس فرښتې

اُولیدے، هڅه کوے دد کوشش کوّلو چه داکلے دتهولونه زیات مبے هغه یوسی. او داحدیث خو مشهور دے چه کوم ضروری او اَهم کاربغیر د الله تعالیٰ د تعریف نه شروع کړے شی هغه به بے برکته وی. هم په دے وجه عموماً هر یو کتاب د الله تعالیٰ په تعریف سره شروع کوّلے شی.

یو حدیث کښې راغلی دی چه کله دچا بچے مړ شی نو الله جل شانهٗ فرښتو ته فرمائی چه تاسو د بنده دبچی رُوح مو اُووِیستلو؟ هغوی عرض اُوکړی چه اُوموویستلو بیا ارشاد اُوشی چه دهغه د زړهٔ ټکړه مو واخستله؟ هغوی عرض کوی بے شکه واموخستله. ارشاد اُوشی، بیا خما بنده څهٔ اُووے؟ عرض اُوکړی ستا حمد یے اُوکړهٔ او اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَیْهِ رٰجِعُوْنَ یے اُووے. ارشاد اُوشی چه بنده دهٔ ددے په بدله کښې جنت کښې یو کور دهغه دپاره جوړ کړئ، او دهغے نوم بَیْتُ الْحَمْد ر دتعریف کور، کیږدئ.

یو حدیث کښې راغلی دی چه الله جل شانهٗ دهغه چا نه ډیر خوشحالیږی چه کله هغه څهٔ نمړئ اُوخوری یا اُوبهٔ اُوڅکی او په هغے اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اُووائی.

دریم کلمه تهلیل وه یعنی لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ویل چه ددے بیان په تفصیل سره له دے نه رُومبی باب کښې تیر شوے دے.

څلورمه کلمه تکبیر ویلے شی یعنی د الله تعالیٰ لوئی بیانول دهغه دبلندی او دعظمت اقرار کول چه ددے مصداق اَللّٰهُ اَکْبَرُ ویل هم دی، دادغے آیتونو کښې هم تیر شو. دے نه علاوه صرف تکبیر یعنی د الله تعالیٰ دعظمت او لوئی بیان هم ډیرو آیتونو کښې راغلے دے چه دهغے نه څو آیتونه ذکر کوّلے شی.

① وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝
(بقره - ع ۲۳)

او دپاره ددے چه تاسو د الله تعالیٰ لوئی بیان کړئ په دے خبره چه تاسو ته یے هدایت اُوکړهٔ او دپاره ددے چه تاسو شکر اُوکړئ د الله تعالیٰ.

② عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ ۝
(رعد - ع ۲)

هغه دټولو پټو او ښکاره څیزونو پیژندونکے دے ر دټولونه، لوئی دے، او د اُوچتے مرتبے خاوند دے.

③ كَذٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ (حج - ع ۵)

دغه رنګ (الله تعالىٰ) د قربانئ شاروي تاسو د پاره مسخر کړې د پاره د دے چه تاسو د الله تعالىٰ لوئي بيان کړئ، په دے خبره چه هغه تاسو ته هدايت اوکړو (او د قربانئ کولو توفيق يې درکړو)، او (اے محمد ﷺ) مخلص خلقو ته (د الله تعالىٰ د رضا) زيرے واوروه.

④-⑤ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ۝ (حج ع ۸، لقمٰن ع ۳)

او بيشکه الله جل شانه هم د لوئی مرتبے او د لوئی عزت مالک دے.

⑥ حَتّٰى اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ۝ (سبا ع ۳)

ره تر کله چه فرښتو ته د الله تعالىٰ له طرفه څه حکم اوشی نو د ويرے له وجے هغوی ګهبرا شی، او کله چه د هغوی د زړونو نه ويره لرے شی نو د يو بل نه تپوس کوی چه پروردګار څه حکم اوفرمايه، هغوی وائی چه (ره فلانئ) حقه خبره حکم اوشو. واقعی هغه د لوئی شان او د لوئی مرتبے خاوند دے.

⑦ فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيْرِ ۝ (مؤمن - ع ۲)

پس حکم الله تعالىٰ د پاره دے چه د لوئی شان او د لوئی مرتبے خاوند دے.

⑧ وَلَهُ الْكِبْرِيَآءُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝ (جاثيه - ع ۴)

او د هغه (پاک ذات) د پاره لوئی ده اسمانونو کښ او زمکه کښ او هم هغه زبردست د حکمت خاوند دے.

⑨ هُوَ اللّٰهُ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اَلْمَلِكُ الْقُدُّوْسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ ۝ (حشر ع ۳)

هغه داسے معبود دے چه د هغه نه سوا هيڅوک د عبادت لائق معبود نشته، هغه بادشاه دے (د ټولو عيبونو نه) پاک دے (د ټولو نقصانونو نه) سالم دے، امن ورکوونکے دے، نګهبانی کوونکے دے (يعنې افتونو نه حفاظت کوونکے دے)، زبردست دے، د خرابو درست کوونکے دے، لوئی والا دے.

**فائده:** دے آيتونو کښ د الله جل شانه لوئی او د عظمت ترغيب او د دے حکم کړے شوے دے، حديثونو کښ هم په خصوصيت سره د الله تعالىٰ د لوئی

حُکم د هغې ترغیب په کثرت سره راغلے دے۔

یو حدیث کښې ارشاد دے چه کله دا اُووینې چه اور اُولګیدلو نو تکبیر (یعنی اَللّٰهُ اَکْبَرُ) ډیر ډیر وایئی، دا به یې مړ کړی۔ بل حدیث کښې دی چه تکبیر (یعنی اَللّٰهُ اَکْبَرُ) اور مړکوی۔ یو حدیث کښې راغلی دی چه کله بنده تکبیر وائی نو د دے رڼرا زمکے نه اسمانه پورے ټول څیزونه پټوی۔ یو حدیث کښې ارشاد دے چه ماته جبرئیل علیه السلام د تکبیر حکم اُوکړو۔

د دے ایتونو او حدیثونو نه علاوه د الله تعالیٰ عَظمت او رِفعت (لوئی او بلندی) د هغه حمد وثنا او عالی شان یې مختلف عنوانانو سره قران شریف کښې ډیر و مختلفو الفاظو سره ذکر کړے دے۔ د هغې نه علاوه ډیر ایتونه داسے دی کوموکښې چه د دے تسبیحاتو الفاظ ذکر کړی نۀ دی خو مُراد ترے د اتسبیحات دی، لکه څو ایتونه لاندینی دی۔

| | |
|---|---|
| ① فَتَلَقّٰٓى اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ۝ (بقره۔ ع ۴) | پس حاصل کړے آدم علیه السلام د خپل رَب نه څو کلمے (د هغې په ذریعه یې توبه اُوکړه) پس الله تعالیٰ په رحمت سره په هغه توجه اُوکړه، بیشکه هم |

هغه دے لوئی توبه قبلونکے لوئی مهربان۔

**فائده**:- د دے کلمو په تفسیر کښې مختلف حدیثونه راغلی دی چه د هغې نه یو دا هم دے چه هغه کلمے دا وے۔ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ وَبِحَمْدِكَ رَبِّ عَمِلْتُ سُوْٓءًا وَّظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْلِيْ اِنَّكَ اَنْتَ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ۔ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ وَبِحَمْدِكَ رَبِّ عَمِلْتُ سُوْٓءًا وَّظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَارْحَمْنِيْ اِنَّكَ اَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ۔ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ وَبِحَمْدِكَ رَبِّ عَمِلْتُ سُوْٓءًا وَّظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَتُبْ عَلَيَّ اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ۔ د دے قسمه مضمون نور هم ګڼړو حدیثونوکښې راغلے دے کوم چه علامه سیوطی رحمة الله علیه د رمنثور کښې لیکلی دی او هغې کښې د تسبیح او د تحمید ذکر دے۔

| | |
|---|---|
| ② مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۚ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ | څوک چه یوه نیکی راوړی هغۀ ته به لس چنده ثواب ورکړے شی او څوک چه بدی راوړی |

| | |
|---|---|
| فَلَا يُجْزٰى اِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿ (انعام - ع ۲۰) | هغه ته به د هغې برابر سزا ورکړې شي او په هغوی به ظلم نه شي کولې. |

**فائده**:- د نبي اکرم ﷺ ارشاد دے چه دوه خصلتونه داسے دي چه څوک مسلمان د هغې اهتمام اُوکړي جنت کښې به داخل شي. او هغه دواړه ډیر اسان څیزونه دي خو عمل کوونکي یې ډیر کم دي. یو دا چه سُبْحَانَ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَللّٰهُ اَکْبَرُ د هر مانځه نه پس لس لس ځله وائي نو هره ورځ به یو سل پنځوس (۱۵۰) د پنځو مونځونو نه پس ټول تعداد جوړ شي، او لس (۱۵۰۰) چنده کیدو په وجه به پنځلس سوه نیکۍ حساب کښې شمار کړے شي. او دویم څیز دا چه د اُوده کیدو په وخت اَللّٰهُ اَکْبَرُ څلور دیرش ځله، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ درے دیرش ځله، سُبْحَانَ اللهِ درے دیرش ځله وائي نو سل کلمے شوے چه د دے ثواب یو زر نیکۍ شوے. اُوس د دے او د ټولے ورځے د مونځونو نه پس ټوله شمیر یے دوه زره پنځه سوه نیکۍ شوے خیال اُوکړئ د عملونو تللو په وخت دوه نیم زره بدۍ به هره ورځ د چا وي چه په دے غالبے راشي. بنده عاجز یعنې شیخ الحدیث رحمة الله علیه وائي صحابه کرامو کښې اګر چه داسے به څوک نه وو چه د هغوی دوه نیم زره بدۍ هره ورځ وے، خو دے زمانه کښې څمونږ خلقو بد عملۍ هره ورځ د دے نه هم په څو چنده زیاتے دي. خو نبي اکرم ﷺ (زما روح دے ترے قربان شي، د خپلے مهربانۍ نه په بدو باندے د نیکو غالب کولو نسخه ارشاد اُوفرمایله. عمل کوول نه کوول د بیمار کار دے. یو حدیث کښې راغلي دي چه صحابه کرامو عرض اُوکړه: اے د الله رسوله! دا څه خبره ده چه دا دواړه څیزونه داسے اسان او د دے کوونکي ډیر کم دي؟ نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایه چه د اُوده کیدو وخت شي نو شیطان یے د دے ویلو نه رومبے اُوده کړي، او د مانځه وخت شي نو هغه ته داسے خبره ور په یاد کړي چه د ویلو نه رومبے پا سي او لاړ شي. یو حدیث کښې نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایه چه آیا تاسو د دے نه عاجز یئ چه یو زر نیکۍ هره ورځ اُوکټئ؟ چا عرض اُوکړه اے د الله رسوله! زر نیکۍ هره ورځ څنګه کټلے شي؟ ارشاد یې اُوفرمایه چه سُبْحَانَ اللهِ سل ځله وائي زر نیکۍ به شي.

③ اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا ۝ (کهف - ع ۶)

مال او اولاد د دُنیا دی ژوند (بس) یو رونق دے او باقیاتِ صالحات (هغه نیک عملونه کوم چه همیشه پاتے کید ونکی دی) هغه ستا د رب په نزد د ثواب په اعتبار سره هم او دیر زیات بهتر دی او د اُمید په اعتبار سره هم بهتر دی (چه د کُسره اُمید ئ قائم کړے شی په خلاف د مال او د اولاد چه دے سره اُمید ونه ترانړل بیکاره دی.

④ وَيَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى ۝ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ مَّرَدًّا ۝ (مریم - ع ۵)

او الله تعالیٰ د هدایت والو هدایت زیاتوی او باقیاتِ صالحات ستا د رب په نزد د ثواب په اعتبار سره هم بهتر دی او د انجام په اعتبار سره هم.

**فائده:-** اګرچه باقیاتِ صالحات (هغه نیک عملونه چه همیشه پاتے کیدونکی دی) کښ ټول داسے عملونه داخل دی چه د هغے ثواب همیشه ملاویږی خو ډیرو حدیثونو کښ دا هم راغلی دی چه د دے نه مراد د تسبیحات دی نبی اکرم ﷺ ارشاد فرمایلے دے چه باقیاتِ صالحات ډیر ډیر وایئ. چا پوښتنه اُوکړه چه هغه کوم څیزونه دی؟ نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایئ چه تکبیر (اَللّٰهُ اَکْبَرُ ویل)، تهلیل (لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ویل)، تسبیح سُبْحَانَ اللّٰهِ ویل، تحمید (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ویل) او لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ. یو بل حدیث کښ راغلی دی نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایئ چه ګورئ خبردار اُوسئ سُبْحَانَ اللّٰهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ باقیاتِ صالحات کښ دی. یو حدیث کښ راغلی دی چه نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایئ چه ګورئ د خپل حفاظت انتظام اُوکړئ. چا تپوس اُوکړه، اے د الله رسوله! د چا دُشمن حمله کیدونکے ده؟ نبی اکرم ﷺ اُوفرمایل نا بلکه د دوزخ د اُورنه د حفاظت انتظام اُوکړئ. او هغه سُبْحَانَ اللّٰهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ ویل دی چه دا د قیامت په ورځ مخکښ وړاندے کیدونکے کلمے دی (چه سفارش به کوی، یا مخکښ وړاندے کیدونکے دی چه وړونکے به جنت ته وړاندے کوی.) او وروستو پاتے کیدونکے دی (چه حفاظت اُوکړی) (الحصن)

کوټکے دی او هم دا باقیات صالحات دی۔ نورهم ډیرو روایتونو کښې دا مضمون راغلے دے چه هغه علامه سیوطی رحمة الله علیه دُرمنثور کښې ذکر کړے دے۔

⑤ لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ (زمر ۶۳، شوریٰ ۱۲) | الله تعالیٰ د پاره دی کنجیانے د اسمانونو او د زمکے.

**فائده:-** د حضرت عثمان رضی الله عنه نه نقل کړے شوی دی چه ما د نبی اکرم ﷺ نه د مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ یعنی د اسمانونو او د زمکے د کنجیانو په باره کښې پوښتنه اوکړه نو نبی اکرم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْاَوَّلُ وَالْاٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ يُحْيِیْ وَيُمِيْتُ وَهُوَ حَیٌّ لَّا يَمُوْتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ دی۔ بل حدیث کښې دی چه مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ دی۔ او دا د عرش د خزانو نه نازلے شوی دی۔ نورو روایتونو کښې هم دا مضمون راغلے دے۔

⑥ اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهٗ (فاطر ۲) | هم هغه طرف ته پاکے کلمے رسی او نیک عمل هغه رسوی۔

**فائده:-** د کلمے طیبے په بیان کښې هم د دے ایت ذکر تیر شوے دے۔ حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه کله تاسو ته مونږ یو حدیث اورَوُو، نو قران شریف نه د هغے سَنَد او تائید بنایو۔ مسلمان چه کله سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ او اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ تَبَارَكَ اللّٰهُ وائی نو فرښته په خپلو وَزَرُو کښې ډیر په احتیاط سره دا کلمے اسمان ته اوړی۔ په کوم اسمان چه تیریږی د هغے اسمان فرښتے د هغے ویونکی دپاره د مغفرت دعا کوی۔ او د دے تائید د ایت شریفه اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ نه۔

حضرت کعب احبار رحمة الله علیه فرمائی چه سُبْحَانَ اللّٰهِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ د پاره د عرش چار چاپیره د شهد د مچو د اواز په شان یو اواز دے چه په هغے کښې د خپل ویونکی تذکره کوی۔ بعضے روایتونو کښې حضرت کعب رحمة الله علیه د نبی اکرم ﷺ نه دا مضمون نقل کړے دے۔ او یو صحابی حضرت

عثمان رضی اللہ عنہم دا قصه مضمون په خپله د نبی اکرم ﷺ نه نقل کړے دے.

# دویم فصل

ده حدیثونو په بیان کښې کوموکښې چه د دے کلمو فضیلت او ترغیب ذکر کړے شوے دے.

① عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ النَّبِیُّ ﷺ کَلِمَتَانِ خَفِیْفَتَانِ عَلَی اللِّسَانِ ثَقِیْلَتَانِ فِی الْمِیْزَانِ حَبِیْبَتَانِ اِلَی الرَّحْمٰنِ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِیْمِ. (رواه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه کذا فی الترغیب)

د نبی اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه دوه کلمے داسے دی چه په ژبه ډیرے سپکے (یعنی اسانے) او په تله کښې ډیرے درنے او د الله تعالیٰ ډیرے خوښے دی، هغه سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ او سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِیْمِ دی.

**فائده**:- په ژبه سپکے یعنی اسانے دی، مطلب دا دے چه په ویلو کښې نه څه وخت لګی، ځکه چه ډیرے مختصرے دی، او نه یے په یادولو کښې څه یو څه ساعت لګی. او سره د دے کلمه د عملونو تللو وخت راشی نو تله به د دے کلمو (د ثواب) د ډیروالی د وجے نه ډیره زیاته درنه شی. او که چرے نور هیڅ فائده نه وے نو بیا هم لدے نه زیات څه خیز دے چه الله تعالیٰ ته دا دواړه کلمے د ټولو نه زیاتے خوښے دی. امام بخاری رحمة الله علیه خپل کتاب صحیح بخاری په دے دواړو کلمو ختم کړے دے او هم دا حدیث یے د کتاب په خاتمه کښې ذکر کړے دے.

یو حدیث کښې ارشاد دے چه هیڅوک د لتاسو نه داخبره نه پریږدی چه یو زر نیکۍ روزانه کوی. سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ سل واره ووائی یو زر نیکۍ به شی دومره ګناهونه به اِنْ شَاءَ اللّٰه روزانه دچا نه وی، او د دے تسبیح نه علاوه څومره چه نیکۍ کارونه به کړی وی، د هغه ثواب به بیل په ګټه کښې شی.

یو حدیث کښې راغلی دی چه څوک سحر او ماښام یو یو تسبیح یعنی سل سل ځله سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ ووائی د هغه ګناهونه به معاف کړے شی اګرکه د سمندر

ذکرونو نه هم زیات دی۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَكْبَرُ

سره ګناهونه داسې رژیږی څنګه چه (ژمی کښې) د ونې پاڼې رژیږی۔

(۲) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم اَلَا اُخْبِرُكَ بِاَحَبِّ الْكَلَامِ اِلَى اللهِ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ اَخْبِرْنِیْ بِاَحَبِّ الْكَلَامِ اِلَى اللهِ فَقَالَ اِنَّ اَحَبَّ الْكَلَامِ اِلَى اللهِ سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ. رواه مسلم والنسائی والترمذی الا انه قال سُبْحَانَ رَبِّیْ وَبِحَمْدِهٖ وقال حسن صحیح وعزاه السیوطی فی الجامع الصغیر الی مسلم واحمد والترمذی ورقم له بالصحة

حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه فرمائی چه یو ځلې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه چه څه تا سوته اوښایم چه د الله تعالیٰ په نزد د ټولو نه زیات خوښ کلام څه دے؟ ما عرض اوکړو، ضرور اوښایئ. ارشاد یې اوفرمایه، سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ. بل حدیث کښې دی سُبْحَانَ رَبِّیْ وَبِحَمْدِهٖ. یو حدیث کښې داهم راغلی دی چه الله تعالیٰ کوم څیز د خپلو فرښتو د پاره اختیار کړے دے هم هغه د ټولو نه بهترین دے او هغه سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ دے۔

وفی روایة لمسلم ان رسول الله صلی الله علیه وسلم سئل ای الکلام افضل قال ما اصطفی الله لملائکته او لعباده سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ کذا فی الترغیب قلت واخرج الاخیر الحاکم وصححه علی شرط مسلم واقره علیه الذهبی و ذکره السیوطی فی الجامع بروایة احمد عن رجل مختصرا ورقم له بالصحة۔

**فائده:-** د دویم فصل څو ایتونو کښې دا مضمون تیر شوے دے چه فرښتې کومې چه عرش ته نزدې دی او د هغوی نه علاوه نورې ټولې د الله جل شانه تسبیح او تحمید کښې مشغولې اوسی. د هغوی مشغله هم دا ده چه د الله تعالیٰ پاکی بیانولو او حمد کولو کښې مشغولې وی. هم په دې وجه کله چه د آدم علیه السلام د پیدا کولو وخت شو، نو هغوی هم د الله تعالیٰ په دربار کښې عرض اوکړو چه نَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ. څنګه چه د اول فصل په دویمې ایت کښې تیر شوی دی۔

یو حدیث کښې راغلی دی چه اسمان د الله تعالیٰ د عظمت د بوجه نه ونګی (یعنی چیارې کوی څنګه چه کټ وغیره د ډیر وزن نه وشیږی) او اسمان د پاره

حق دے چه هغه اُو وَیُئیلی (چه د هیبت بوجه سخت وی)، قسم م د وی په هغه پاك ذات د چا په قبضه کښې چه د محمد ﷺ ) ساه ده چه آسمان کښې یو لویشت ځائ هم داسے نشته، کوم ځائ چه فرښته د سجدے په حالت کښې د الله تعالیٰ په تسبیح او تحمید کښې مشغوله نه وی۔

(۳) عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِیْ طَلْحَةَ عَنْ اَبِیْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ اَوْ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ وَمَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ مِائَةَ مَرَّةٍ كَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ مِائَةَ اَلْفِ حَسَنَةٍ وَّاَرْبَعًا وَّعِشْرِيْنَ اَلْفَ حَسَنَةٍ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِذًا لَّا يَهْلِكُ مِنَّا اَحَدٌ قَالَ بَلٰى اِنَّ اَحَدَكُمْ لَيَجِیْءُ بِالْحَسَنٰتِ لَوْ وُضِعَتْ عَلٰى جَبَلٍ اَثْقَلَتْهُ ثُمَّ تَجِیْءُ النِّعَمُ فَتَذْهَبُ بِتِلْكَ ثُمَّ يَتَطَاوَلُ الرَّبُّ بَعْدَ ذٰلِكَ بِرَحْمَتِهٖ۔

نبی اکرم ﷺ ارشاد اُو فرمایهٔ چه چا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اُو وے هغهٔ د پاره جنت واجب شو او چه خوك سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ سل واره اُو وائی هغهٔ د پاره الله تعالیٰ یو لاکھ څلیرویشت زره نیکی لیکی۔ صحابو عرض اُو کړهٔ اے د الله رسوله! د اسے حالت کښې خو به هیڅوك هم نوبیا (په قیامت کښې) هلاك کیدلے نهٔ شی۔ (ځکه چه نیکئ به یے غالبے وی)، نبی اکرم ﷺ اُو فرمایل (بعضے خلق به بیا هم هلاك شی او ولے به نه شی) بعضے خلق له تا سو نه به د ومره نیکو سره راځی له چرے په غر کیخودے شی نو هغه به هم ځکته کړی خود الله تعالیٰ د نعمتونو په مقابله کښې به هغه نیکئ کالعدم هیشت شی البته الله تعالیٰ به بیا خپل رحمت او فضل سره امداد اُو فرمائی۔

(رواه الحاکم وقال صحیح الاسناد کذا فی الترغیب قلت و اقره علیه الذهبی۔)

**فائده** :- د الله تعالیٰ د نعمتونو په مقابله کښې د ځکته کید واو کالعدم کید و مطلب دادے چه قیامت کښې یو خوا که نیکئ او بدئ تللے شی نو بل خوا به تر دے څیز هم مطالبه او محاسبه کیږی چه الله تعالیٰ در ته کوم نعمتونه درکړی وو، د هغه و څه حق ادا کړهٔ، او څه شکر د ادا کړهٔ۔ بندهٔ څه هر څیز د الله تعالیٰ ورکړے شوے دے۔ د هر یو څیز یو حق دے، د هغه حق د ادا کولو مطالبه

به کیږی. لکه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه، يُصْبِحُ عَلٰى كُلِّ سُلَامٰى مِنْ اَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ الحديث (فی المشکوٰة بروایة المسلم قلت رواه ابوداؤد وابن ماجة) چه د دے مطلب دا دے چه هر سحر د هر یو بنده په هر یو جوړ او په هډوکی یوه صدقه واجب کیږی. بل حدیث کښ دی چه بنده کښ درے سوه شپیته جوړونه دی. د هغه په ذمه دا ضروری ده چه د هر جوړ له طرفه یوه صدقه اُوکړی، یعنی د دے خبرے په شکریه کښ چه الله تعالیٰ د اُودهٔ کیدو نه پس چه د مرګ کیدو په شان حالت وُو بیا سر دوباره ژوندی اُکړو، او هر یو اندام صحیح او سالم پاتے شو. صحابو عرض اُوکړو چه د دومره صدقو روزانه کولو طاقت څوك لرلے شی؟ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اُو فرمایل چه هره یوه تسبیح صدقه ده، هر یو تکبیر صدقه ده، لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ یو وارے ویل صدقه ده، اَللّٰهُ اَکْبَرُ ویل صدقه ده، د لارے نه څهٔ تکلیف ورکوُنکے څیز لرے کول صدقه ده. غرض دا چه ډیرے صدقے یے اُوشمیرلے. د دے قسمه نور هم حدیثونه شته چه د هغه نه د بنده په خپل ذات کښ چه د الله تعالیٰ کوم نعمتونه دی، د هغے بیان دے. د دے نه علاوه د خوراك، څښلو، د راحت او آرام متعلق څومره ډیر د الله تعالیٰ نعمتونه هر وخت حاصل دی، هغه خو بیخی لا د بیا نه دی.

د قرآن شریف سورة اَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ کښ هم د هغے ذکر دے چه قیامت کښ به د الله تعالیٰ د نعمتونو نه هم سوال وی. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه د بدن صحت، د سترګو صحت په باره کښ به سوال کیږی. چه الله تعالیٰ په خپلے مهربانئ دا نعمتونه ورکړل، دا د الله تعالیٰ په کوم کار کښ خرچ کړل، ریا د څاروو په شان د صرف کیدو پالو کښ خرچ کړل، لکه بل ځائی سورة بنی اسرائیل کښ ارشاد دے اِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ اُولٰٓئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُوْلًا (غوږ، سترګه، زړهٔ د هر یو کس نه به د دے ټولو باره کښ د قیامت په ورځ تپوس کیږی چه د دے ټولو څیزونو استعمال دِ کوم ځائی اُوکړهٔ) د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه د کومو نعمتونو نه به سوال کیږی، د هغے کښ بے فکری هم ده، کوم چه د الله تعالیٰ لوئی دولت دے او د بدن صحت پکښ هم دے. مجاهد رحمة الله علیه وائی چه د دُنیا

هر یو خوند نعمتونو کښې داخل دے چه د ځنې باره کښې به سوال کیږی. حضرت نبی ﷺ فرمائی چه په دے کښې عافیت (سلامتیا او صحت) هم داخل دے. یو کس د حضرت علی رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه ثُمَّ لَتُسْئَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ (بیا به هغه ورځ د نعمتونو هم سوال کولے شی) مطلب څۀ دے؟ دوی ورته اوفرمایل چه د غنمو وډوئی او یخے اوبه ترے مُراد دی چه ددے به هم سوال کیږی، او د اُسیدو د پاره د مکان هم. یو حدیث کښې راغلی دی چه کله دا آیت نازل شو نو بعضو صحابو عرض اوکړو چه اے د الله رسوله! د کومو نعمتونو نه به سوال کیږی چه په نیمه کیږه د وړئی ملاویږی او هغه هم د اُوړه نشوی په مړه ګیډه ډوډئی هم حاصله نۀ ده) وحی نازل شوه "ایا په خپو کښې پڼړه نۀ پسخیو کوئی" ایا یخے اوبه نۀ څکوئی، دا خو هم د الله تعالیٰ نعمتونه دی. یو حدیث کښې راغلی دی چه بعضو صحابو ددے آیتِ کریمه په نازلیدو عرض اوکړو، اے د الله رسوله! د کومو نعمتونو نه به سوال وی. کهجورے او اوبۀ صرف دا دوه څیزونه د خوړلو څکلو د پاره ملاویږی او خمونږ توره ردجهاد د پاره) هر وخت په اوګو وی. او دښمن رکافر خوک نه خوک) راسره مقابله کښې وی چه ددے په وجه دا دواړه څیزونه هم په اطمینان او بے فکرئ سره نۀ نصیب کیږی) نبی اکرم ﷺ ارشاد اوفرمایه چه ډیر زر نعمتونه حاصلیدونکی دی. یو حدیث کښې د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه قیامت کښې د کومو نعمتونو باره کښې سوال وی په هغې کښې به د ټولو نه اول دا وی چه مونږ ستا بدن ته تندرستی ورکړے وه (یعنی ددے تندرستی د څۀ حق ادا کړو او په دے کښې د الله تعالیٰ د رضا څۀ خدمت ادا کړو.) او مونږ به یخو اوبو ته سیرابه کړے ای یخے اوبه په حقیقت کښې د الله تعالیٰ لوئی نعمت دے کوم ځائی چه یخے اوبۀ نۀ وی د هغوی نه د څوک ددے د قدر تپوس اوکړی، دا د الله تعالیٰ دومره لوئی نعمت دے چه څۀ اندازه یے نشته. خو خمونږ خلقو دے لوئی نعمت طرفته اوږد پام نشته، د الاخره چه ددے شکر اوکړی د ادا کولو حق.) یو حدیث کښې راغلی دی چه د کومو نعمتونو به سوال وی هغه دادی. د ووډئی هغه ټکړه چه پرے ګیډه مړه شی. هغه اوبه چه پرے تنده مړه شی.

هغه جامه چه پورے بدن پټ شی۔

یو وارے دغرمے په وخت کښې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه پریشانی کښې د کوره اووتلو جمات ته لاړو۔ چه حضرت عمر رضی الله عنه هم په دے حالت کښې تشریف راوړو۔ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ناست وو، چه او ئے لیده پوښتنه ئے تربے اوکړه چه ته دا وخت دلته دکومه؟ وے فرمایل چه دلوږے بیقراری پریشانه کړے یم۔ حضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړه چه والله، دے څیز زه هم مجبوره کړم چه چرته لاړ شم۔ دے دواړو حضراتو دا خبرے اترے کولے چه سردار دوعالمو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم تشریف راوړو، دوی ئے اولیدل پوښتنه ئے ترے اوکړه چه تاسو دا وخت دکومه؟ عرض ئے اوکړه اے دالله رسوله! لوږے پریشانه کړی یو، چه ددے نه بے قراره شو، راووتلو۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه، هم ددے مجبورئ نه څه هم راغلے یم۔ درے واړو حضرات په جمع د حضرت ابو ایوب انصاری رضی الله عنه کورته لاړل، هغه موجود نه وو۔ بی بی ئے په ډیره خوشالئ او فخر سره دا حضرات کینول۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم پوښتنه اوکړه چه ابو ایوب چرته تلے دے؟ عرض ئے اوکړو، دلته اوس حاضر یږی، څه ضرورت دپاره تلے دے۔ په دے کښې ابو ایوب رضی الله عنه خدمت کښې حاضر شو۔ او په ډیره خوشالئ کښې د کهجورو یو لویه غنچه ئے راوشوکوله، را ئے وړله۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه چه ټوله غنچه دولے راوشوکوله۔ دے کښې کچه، نیمے کچه راوشوکولے شوے۔ پخے به دترے راچنړ کړے وے۔ هغه عرض اوکړو، په دے خیال م راوشوکوله چه کوم موخوښے وی اوخوری (چه کله د غنونه نیمه پخه زیاتے خوښولے شی)۔ غنچه ئے وړته مخکښې کیښوده، ځان لاړلو او یو د چیلئ بچے ئے حلال کړو، او ورے ئے څه خود غنمے اوریت کړو، او څه نه ئے لګولے تیار کړو۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په یوه ډوډئ لږه غوښه کےښوده کیښودله ابو ایوب رضی الله عنه ته ئے ورکړه چه دا فاطمے ته اورسوه، هغے هم د څو ورځو نه څه نه دی خوړلی هغه زر اورسوله راغے۔ دے حضراتو هم په مړه ګیډه اوخوړله۔ دګه پس نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه چه ګوری دا د الله تعالیٰ نعمتونه دی، ډوډئ

ده، غوښه ده، هر قسمه کجړ او مخې کهجورے دی۔ دا چه نبی اکرم ﷺ او ویل
دپاکو سترګو نه یې اوښکې اوبهیدلے، او ارشاد یې اوفرمایل چه په هغې ذات مې دِ
قسم وی دچا په قبضه کښې چه ځما ساه ده، هم دا هغه نعمتونه دی دکوم چه به
قیامت کښې پټوس کیږی. (په کوم حالاتو کښې چه دا وخت دا ښیزونه حاصل
شوی وُو په دے لحاظ، صحابه رضی الله عنهم ته لویه ګرانی او فکر پیدا شو، چه دومره د
مجبورئ او دبیقرارئ حالت کښې دا ښیزونه حاصل شو او په دے باندے به هم
سوال او حساب وی.) نبی اکرم ﷺ ارشاد اوفرمایه چه دالله تعالیٰ شکر اداکول
خو ضروری دی. کله چه په دے قسمه ښیزونو شروع کوئ نو اول بِسۡمِ اللّٰهِ
وایئ او کله چه اوخورئ نو اووایئ اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡ هُوَ اَشۡبَعَنَا وَ اَنۡعَمَ
عَلَیۡنَا وَ اَفۡضَلَ (ټول تعریفونه دالله تعالیٰ دپاره دی چا چه په موږ، په مړه
ګیډه وخوړولو او په موږ ئے انعام اوفرمایه او ډیر زیات یې راکړه.)
دا دُعا وَییل شکر اداکولو دپاره کافی دی۔
د دے قسمه واقعات خو ځله پیښ شوی دی چه په ګڼړو حدیثونو کښې
په مختلفو عنوانا نو سره ذکر کړے شوی دی. لکه یو وارے دابُوالۡهَیۡثَمۡ مَالِكِ
بنِ تَیِّهَان رضی الله عنه کورته د تشریف اوړلو نوبت راغے، د دے قسمه یوه واقعه یو
بل صاحب سره هم شوے وه چه ورته واقفی ویلے شی۔
د حضرت عُمر رضی الله عنه تیریدل په یو کس اوشو چه ګډ امی هم وُو، او روند ګوڼ
او کونګے هم وو۔ دهٔ دخپلو ملګرو نه پوښتنه اوکړه چه تاسو دالله تعالیٰ کوم
نعمتونه په دهٔ کښې وینئ؟ هغوی عرض اوکړه چه په دهٔ ځنګه کوم نعمت دے؟
وئے فرمایل ایا درکوتے اودس ماتے په رام سانتیا نه کوی؟
حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه قیامت کښې به درے دربارونه وی
یو دربار کښې به دنیکو حساب وی، دویم کښې به دالله تعالیٰ دنعمتونو حساب وی
دریم کښې به دګناهونو مطالبه وی. نیکی به د نعمتونو په مقابله کښې شی او بلا
به باقی پاتے شی چه دالله تعالیٰ دفضل لاندے به وی. د دے ټولو مطلب دا
دے چه دالله جل شانهٔ څومره قدر دے نعمتونه هر ساعت او هر دم په بندګا وی

دهغه شكر اداكول، دهغه حق اداكول هم دبنده په ذمه دى. په دے وجه څومره قدرے نيكى زياته كولے شى دهغه په حاصلولو كښ كمے مه كوئى، او دهغې نومقدار هم زيات مه ګڼړئ چه هلته او ږدى معلومه به شى چه څومره څومره ګناهونه مونږ دخپلو سترګو، پوزے غوږونو او نورے دبدن حصے نه داسے كړى دى كوم چه مونږ او ګنا هونه نه ګڼړل.

دنبى اكرم ﷺ ارشاد مبارك دے چه تاسو كښ هيڅوك داسے نشته چه هغه به په قيامت كښ دالله تعالىٰ مخے ته پيشى نه وى، چه هغه وخت به نه څه مينځ كښ پرده منع كونكے وى، نه ترجمان (وكيل وغيره) چه ښى طرفته اوګورى نو دخپلو عملونو انبار به وى، ګس طرفته چه اوګورى هم دا منظر به وى. دكوم قسمه چه ښه يا بد عملونه يے كړى وى هغه ټول به ورسره وى، ددوزخ اور به مخكښ وى. په دے وجه څومره پورے چه ممكنه وى په صدقے ددوزخ اور مركړئ، اګرچه دكهجورے يوے ټكړے سره څه نه وى.

يو حديث كښ راغلى دى چه قيامت كښ به دټولو نه اول دا سوال وى چه مونږ تاته دبدن صحت دركړے وو، او يخے اوبه مو څكلوله دركړے وې (يعنى ددے څيزونو موڅه حق اداكړه.)

بل حديث كښ دى چه ترهغه وخته پورے به بنده دحساب دميدان نه نه خوزيږى، ترڅو پورے چه ترے دپنځو څيزونو سوال اونشى. عمرم دكوم كار كښ خرچ كړه؟ ځوانى (يعنى ددے قوت) دڅه مشغله كښ خرچ كړه؟ مال دے په كومه طريقه اوګټلو او په كومه طريقه دے خرچ كړو؟ (يعنى دګټلو او دخرچ كولو طريقے دے جائزے وے كه ناجائزے). كوم علم چه دے حاصل كړے وو او خواه په كومه درجه كښ وو، په هغه دے څه عمل اوكړه (يعنى كومے مسئلے چه درته معلومے وے په هغے دے عمل اوكړه كه نه؟)

⑭ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَقِيْتُ اِبْرَاهِيْمَ لَيْلَةَ اُسْرِيَ بِيْ فَقَالَ

دنبى اكرم ﷺ ارشاد مبارك دے چه دمعراج په شپه كله چه زما ملاقات حضرت ابراهيم عليه السلام سره اوشو، نو هغوى اوفرمايل اے

فقال يا محمد أقرئ أمتك
مني السلام وأخبرهم أن
الجنة طيبة التربة عذبة
الماء وأنها قيعان وأن غراسها
سبحان الله والحمد لله ولا
إله إلا الله والله أكبر. رواه
الترمذي والطبراني في الصغير والاوسط و
زاد لاحول ولا قوة إلا بالله
وقال الترمذي حسن غريب من هذا الوجه و
رواه الطبراني ايضا باسناد واه من
حديث سلمان فارسي وعن ابن عباس رضي الله عنه
مرفوعا من قال سبحان الله
والحمد لله ولا إله إلا الله و
الله أكبر غرس له بكل واحدة
منهن شجرة في الجنة.
رواه الطبراني واسناده حسن لا بأس به في
المتابعات وعن جابر رضي الله عنه مرفوعا
من قال سبحان الله العظيم
وبحمده غرست له نخلة في
الجنة. رواه الترمذي وحسنه والنسائي

محمده ﷺ! خپل امت ته زما سلام اورسوایه
او دا ورته اووایه چه دجنت زمکه ډیره پاکیزه
خاوره ده، او بهترینه خوږې اوبه دي، خو
هغه بالکل هموار میدان دے او هغه بوټي
رونے سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله
والله اکبر دی. (څومره چه دچا زړه غواړي
کرنے دې اولګوی -) یو حدیث کښ دے نه
پس لاحول ولا قوة الا بالله هم شته. بل
حدیث کښ دي چه دے کلمو نه دهر کلمے په
په بدله کښ یوه ونه جنت کښ لګولے شي.
یو حدیث کښ دي چه څوک سبحان الله
العظیم وبحمده اووائي، یوه ونه په جنت
کښ ورله لګولے شي. یو حدیث کښ دي چه
نبی اکرم ﷺ تشریف اوړه، حضرت ابوهریره
رضي الله عنه یے اولیده چه یو بوټے یے لګوو. پوښتنه
یے ترے اوکړه څه کوے؟ هغه عرض اوکړه
اوونه لګوم. ارشاد یے اوفرمائیله، څه تا ته
اوښایم بهترین بوټي چه اولګولے شي،
سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر
په هر کلمے یوه ونه جنت کښ لګي.

الا انه قال شجرة وابن حبان في صحيحه والحاكم في الموضعين باسنادين قال في احدهما على شرط مسلم وفي الآخر
على شرط البخاري وذكره في الجامع الصغير برواية الترمذي وابن حبان والحاكم ورقم له بالصحة وعن ابي هريرة
رضي الله عنه ان النبي ﷺ مر به وهو يغرس غرسا الحديث رواه ابن ماجة باسناد حسن والحاكم وقال صحيح الاسناد
كذا في الترغيب وعزاه في الجامع الى ابن ماجة والحاكم ورقم له بالصحة قلت وفي الباب عن حديث ابي ايوب
مرفوعا رواه احمد باسناد حسن وابن ابي الدنيا وابن حبان في صحيحه ورواه ابن ابي الدنيا والطبراني من حديث

ابن عمر ایضا مرفوعا مختصرا الا انه قال حدیثها الزعفران تعط کما فی الترغیب قلت وذکر السیوطی فی الدر حدیث
ابن عباس مرفوعا بلفظ حدیث ابن مسعود بنحوه وقال اخرجه ابن مردویه وذکر ایضا حدیث ابن مسعود وقال
اخرجه الترمذی وحسنه الطبرانی وابن مردویه قلت وذکره فی الجامع الصغیر بروایة الطبرانی ورقم له بالصحة
وذکر فی مجمع الزوائد عدة روایات فی معنی هذا الحدیث۔

**فائده:-** د نبی اکرم ﷺ په ذریعه حضرت ابراهیم خلیل الله علیه السلام سلام رالیږلے دے. په دے وجه عالمانو لیکلی دی چه چا ته دا حدیث اورسی هغه له پکار دی چه د حضرت ابراهیم علیه السلام د سلام په جواب کښې وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ اُووائی. دے نه پس ارشاد دے چه د جنت خاوره بهترینه ده او اوبه یے خوږے دی. د دے دوه مطلبه دی، اول دا چه صرف د هغه ځائ د حالت بیان دے چه بهترین ځائ دے چه د هغے د خاورے متعلق حدیثونو کښې راغلی دی چه د مشکو او د زعفرانو ده او اوبه یے ډیرے خوږے دی دا ځائ هر څوک خپل د اوسیدو ځائ جوړول غواړی. او که د تفریح او د دپاره د باغ وغیره لګولو اسباب هم موجود وی نو څوک یے پریږدی؟ دویم مطلب دا دے چه کوم ځائ زمکه او اوبه بهترینے وی، هلته پیداوار ډیر ښه کیږی. په دے حالت کښې مطلب دا شو چه تپوارے سُبْحَانَ اللهِ وغیره یوه ونه چه هلته اولګی، نو د اوبو د ښه والی په وجه هغه ځائ په خپله ترقی کوی، صرف تپوارے تخم اچول دی باقی ټول هرڅه به په خپله کیږی۔

په دے حدیث کښې یے جنت هموار میدان فرمایلے دے او نورو کومو حدیثونو کښې چه د جنت حال بیان کړے شوے دے په هغے کښې جنت کښې د هر قسم میوے باغ د ونو وغیره موجودګی خودلے ده. بلکه د جنت معنی هم د باغ ده. په دے وجه په ظاهر کښې شبه پیدا کیږی. بعضی عالمانو فرمایلی دی چه د اصل په اعتبار هغه میدان دے خو په کوم حالت چه د هغے د نیک عمل له نیکانو خلقو ته ورکولے شی، د هغوی د عملونو موافق به په هغے کښې باغ او ونے وغیره موجود دے وی. دویمه توجیه بعض عالمانو دا فرمایلے ده چه د جنت هغه باغ وغیره به د هغوی د عملونو موافق ملاویږی. هرکله چه د هغوی د عملونو

په وجه سره اود هغې برابر ملاؤ شي. نو ګویا هم دا عملونه دوئ نوسبب شول. د تیمه

توجهه و او یلې شوې ده چه ګم نه ګم مقدار کوم چه د هر کس په حصه کښې د هغه

د ټولې دُنیا نه ډیر زیات دے په هغې کښې په ډیره حصه کښې خپله خپل اصلي

باغونه موجود دي او ډیره حصه په کښې خالي پرته ده. څو مره چه څوک ذکر تسبیح

وغیره اوکړي هغو مره به وُنې نورې اولګولې شي. د شیخ المشائخ حضرت

مولٰنا ګنګوهي رحمة الله علیه ارشاد کوم چه کوکبِ دري کښې نقل کړے شوے دے،

دادے چه د جنت ټولې وُنې د بوټي په شان یو ځائې جمع دي. هر څوک

چه څومره قدرے د خیر عملونه کوي هغومره د هغه د حصے په زمکه کښې

وُنې لګي او لوئیږي ترقي کوي.

⑤ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ هَالَهُ اللَّيْلُ أَنْ يُكَابِدَهُ أَوْ بَخِلَ بِالْمَالِ أَنْ يُنْفِقَهُ أَوْ جَبُنَ عَنِ الْعَدُوِّ أَنْ يُقَاتِلَهُ فَلْيُكْثِرْ مِنْ سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ فَإِنَّهَا أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنْ جَبَلِ ذَهَبٍ يُنْفِقُهُ فِي سَبِيلِ اللهِ.

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه څوک د مشقت د عملونه ویریږي (چه د شپے د شوګیرے او عبادت کښې مشغولید ونه عاجزه دي) یا د بخیلۍ په وجه مال خرچ کول ورته ګران دي یا د بزدلۍ په وجه د جهاد همت یے نه کیږي هغه لیکار دي چه سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ ډیر ډیر وائي چه د الله تعالیٰ په نزد دا کلمے د غر په الله اره خرچ کولو نه هم زیاتے دي.

(رواه الفریابي والطبراني واللفظ له وهو حدیث غریب ولا بأس باسناده ان شاء الله کذا في الترغیب وفي مجمع الزوائد رواه الطبراني وفیه سلیمان بن احمد الواسطي وثقه عبدان وضعفه الجمهور والغالب علی بقیة رجاله التوثیق وفي الباب عن ابي هریرة مرفوعا اخرجه ابن مردویه وعن ابن عباس عند ابن مردویه کذا في الدر.)

**فائده**:- څومره د الله تعالیٰ فضل دے چه د هر قسم مشقت نه بچ کید ونکو

د پاره یے هم د فضائلو او د درجاتو دروازه بنده کړے نه ده. د شپو شوګیره

له د حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمة الله علیه د درس ترمذي شریف تقریر د حضرت شیخ الحدیث رحمة الله علیه والد صاحب مولانا محمد یحیٰی صاحب رحمة الله علیه په فصیح عربي ژبه کښې اوليکله او نامے یے ورله کوکب دري کیخوده. بیا پرے حضرت شیخ حاشیه هم کړے ده ۱۲

نئي کړو لے، د کنجوسئ په وجه پیسه نه شي خرچ کولے، د کمزورئ او کم همتئ نه جهاد په شان مبارک عمل ترے نه کیږي. و دے نه پس که چرے د دین قدر او د اخرت فکر وي نو د هغه د پاره لاره پرانستے ده. بیا هم څه ګټه اونه کړي نو د که نصیبۍ نه سوا نور څه دی. رومبے دا مضمون لږ په تفصیل سره تیر شوے دے.

⑥ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم اَحَبُّ الْكَلَامِ اِلَى اللهِ اَرْبَعٌ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَكْبَرُ لَا يَضُرُّكَ بِاَيِّهِنَّ بَدَأْتَ۔ (رواه مسلم وابن ماجه والنسائي وزاد وهن من القرآن ورواه النسائي ايضا وابن حبان في صحيحه من حديث ابي هريرة كذا في الترغيب وعزاه السيوطي بحديث سمرة الى احمد ايضا ورقم له بالصحة وحديث ابي هريرة الى مسند الفردوس للديلمي ورقم له ايضا بالصحة.)

(نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارک دے چه د الله تعالی په نزد د ټولو نه زیات خوښ کلام څلور کلمے دی سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَكْبَرُ. دے کښې چه کومه غواړے رومبے اووایه او کومه چه غواړے رستو (یعنی خاص ترتیب نشته.) یو حدیث کښې دی چه دا کلمے قرآن پاک کښې هم موجودے دی.

**فائده:**- یعنی د قرآن پاک دغه الفاظو کښې هم دا کلمے په کثرت راغلے دی. او قرآن پاک کښې د دے حکمونه او ترغیب راغلے دے. لکه چه اول فصل کښې تفصیلی بیان شوے دے. یو حدیث کښې راغلی دی چه اختر و شپه د کلمو سره ښائسته کوئ یعنی د اختر زینت دا دے چه دا کلمے ډیرے اُووئیلے شی.

⑦ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ اِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِيْنَ اَتَوْا رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالُوْا قَدْ ذَهَبَ اَهْلُ الدُّثُوْرِ بِالدَّرَجَاتِ الْعُلٰى وَالنَّعِيْمِ الْمُقِيْمِ فَقَالَ مَا ذَاكَ قَالُوْا يُصَلُّوْنَ كَمَا نُصَلِّيْ وَيَصُوْمُوْنَ كَمَا نَصُوْمُ وَيَتَصَدَّقُوْنَ وَلَا نَتَصَدَّقُ وَ

(نبي اکرم صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې یو ځلے غریبان مهاجرین په جمع حاضر شو او عرض یے اوکړو، اے د الله رسوله! د مال دارانو خو لوے درجے واخستلے او همیشه پاتے کیدونکے نعمت د دوی په حصه کښې راغے. نبي اکرم صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل ولے؟ عرض یے اوکړو چه مونږ، روژه کښې خو دوی ځمونږ سره شریک دی چه مونږ یے هم کړو او دوی هم. او د مالدارئ په وجه

يُعْتِقُوْنَ وَلَا نُعْتِقُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفَلَا أُعَلِّمُكُمْ شَيْئًا تُدْرِكُوْنَ بِهٖ مَنْ سَبَقَكُمْ وَتَسْبِقُوْنَ بِهٖ مَنْ بَعْدَكُمْ وَلَا يَكُوْنُ أَحَدٌ أَفْضَلَ مِنْكُمْ إِلَّا مَنْ صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُمْ قَالُوْا بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ تُسَبِّحُوْنَ وَتُكَبِّرُوْنَ وَتَحْمَدُوْنَ دُبُرَ كُلِّ صَلٰوةٍ ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ مَرَّةً قَالَ أَبُوْ صَالِحٍ فَرَجَعَ فُقَرَاءُ الْمُهٰجِرِيْنَ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا سَمِعَ إِخْوَانُنَا أَهْلُ الْأَمْوَالِ بِمَا فَعَلْنَا فَفَعَلُوْا مِثْلَهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَاءُ (متفق عليه وليس قول ابي صالح الى آخره الا عند مسلم وفي رواية للبخاري تسبحون في دبر كل صلوة عشرا وتحمدون عشرا وتكبرون عشرا بدل ثلاثا وثلثين كذا في المشكوة وعن ابي ذر رضي الله عنه نحو هذا الحديث وفيه ان بكل تسبيحة صدقة وبكل تحميدة صدقة وفي بضع احدكم صدقة قالوا يا رسول الله يأتي احدنا شهوته يكون له فيها اجر الحديث اخرجه احمد وفي الباب عن ابي الدرداء عند احمد)

دوی صدقه کوی، غلامان آزادوی او مونږ دې خیزونو نه عاجزه یو. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمایل چه څه تاسو ته داسې خیز اوښایم چه تاسو په هغې عمل اوکړئ د خپل ځان نه رومبې په رې را اونیسئ او ورستو نه پرې ورانده لاړ نه شی او هیڅوک به له تاسو نه هغې وخته پورې افضل نه وی تر څو پورې چه دا عملونه اونکړی. صحابو رضی الله عنهم عرض اوکړه ضرور اوښایئ. ارشاد یې اوفرمایه چه د هر مانځه نه پس سُبْحَانَ اللّٰهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ درې دیرش ۳۳ درې دیرش وارې وایئ. (دې حضراتو شروع کړه خو د دې زمانې مالداران هم د دې نمونې وو، هغوی ته چه معلومه شوه هغوی هم شروع کړه) نو غریبانان دوباره بیا حاضر شول چه اې د الله رسوله اخموږ مالدارو رونړو واوریدله هغوی هم د غې شروع کړه. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمایل چه دا د الله تعالیٰ فضل دې چا ته چه غواړی ورکوی، هغه څوک منع کولې شی. یو بل حدیث کښې هم د غه رنګې دا قصه ذکر کړې شوې ده په هغې کښې د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه تاسو د پاره هم الله تعالیٰ د صدقې قائم مقام جوړ کړې دې. سُبْحَانَ اللّٰهِ یو وارې ویل صدقه ده. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ یو وارې ویل صدقه ده. خپلې بی بی سره کور والې کول صدقه ده صحابو رضی الله عنهم په حیرانتیا سره عرض اوکړه، اې د الله رسوله! بی بی سره

کوروالي کښې خپل شهوت پوره کوي او دا په صدقه شي. نبي اکرم ﷺ اوفرمایل که چرے حرام کښې اخته شي نو ګناه به وي یا نه؟ صحابو عرض اوکړو ضرور به وي ارشاد ئے اوفرمایو دغه رنګے حلال کښې صدقه او ثواب دے.

**فائده:-** مطلب دا دے چه په ښه نیت کوروالے کول چه حرام کارئ نه بچ شي ثواب او د اجر سبب دے. د دے قصے دویم حدیث کښې د دے اشکال په جواب کښې چه بي بي سره کوروالے خپل شهوت پوره کول دي د نبي اکرم ﷺ دا جواب نقل کړے شوے دے، اوبنایئ که چرے بچے پیدا شي بیا هغه ځوان شي او تاسو د هغه د ښه صفتونو امید اولرئ بیا هغه مړ شي، ایا تاسو د ثواب امید لرئ؟ عرض اوکړے شو بیشکه امید لرو. نبي اکرم ﷺ اوفرمایل ولے تا هغه پیدا کړے وو؟ تاسو هغه ته هدایت کړے وو؟ تاسو هغه ته روزي ورکړے وه؟ بلکه الله تعالى پیدا کړے دے، هم هغه هدایت ورکړو، هم هغه روزي ورکوي. دغه رنګے په کوروالي سره نطفه (منئ) ځائے حلال ځائ کښې کیخودو، بیا د الله تعالى په قبضه کښې ده خوښه ئے خپله ده چه ئے ژوندے کړي، ترے اولاد پیدا کړي یا ئے مړ کړي چه اولاد پیدا نه شي. د دے حدیث منشاء دا ده چه د اجر او ثواب د پیدا کیدو سبب په وجه سره دے.

(۸) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ سَبَّحَ اللهَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلٰوةٍ ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ وَحَمِدَ اللهَ ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ وَكَبَّرَ اللهَ ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ فَتِلْكَ تِسْعَةٌ وَّتِسْعُوْنَ وَقَالَ تَمَامَ الْمِائَةِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ غُفِرَتْ لَهٗ خَطَايَاهُ وَاِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ.

(رواه مسلم كذا في المشكوة وكذا في مسند احمد.)

د نبي اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه څوک د هر مانځه نه پس سُبْحَانَ اللهِ درے دیرش وارے اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ درے دیرش وارے، اَللهُ اَكْبَرُ درے دیرش وارے او یو وارے لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ اووائي، د هغه ګناهونه معاف کیږي خواه رومره ډیر وي څومره چه د سمندر زګ دے.

**فائدہ**: د گناهونو بخښنے باره کښې روسبے د څو حدیثونو لاندے بحث تیر شوے دے چه د دے گناهونو نه مُراد د عالمانو په نزد واړه گناهونه دی. دے حدیث کښې درے کلمے درے دیرش درے دیرش واره او لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ یو واره راغلے ده. دے پسے حدیث کښې دوه کلمے درے دیرش درے دیرش واره او اَللهُ اَکْبَرُ څلور دیرش واره راغی. حضرت زید رضی الله عنه نه نقل کړے شوے دے چه مونږ ته نبی اکرم صلی الله علیه وسلم سُبْحَانَ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَللهُ اَکْبَرُ هره یوه درے دیرش واره د هر مانځه نه پس دویلو حکم فرمایلے وو. یو انصاری په خوب کښې اولیدل چه څوک ورته وائی چه هره یوه کلمه پنځویشت واره کړه، او ورسره لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ پنځویشت واره زیاته کړه. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړے شو، نو هغوی قبوله کړه، او دد ے یے اجازت ورکړه چه خیر دے داسے اوکړه. یو حدیث کښې سُبْحَانَ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَللهُ اَکْبَرُ هره کلمه د هر مانځه نه پس یوولس واره د ویلو حکم دے. او یو حدیث کښې لس لس واره راغلے ده. یو حدیث کښې لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ لس واره باقی درے واړه کلمے هره یوه درے دیرش واره. یو حدیث کښې د هر مانځه نه پس څلور واړه کلمے سل سل واره راغلی دی څنګه چه حصنِ حصین کښې د ا روایتونه ذکر کړے شوی دی. دا اختلاف په ظاهر کښې د حالاتو د اختلاف په وجه سره دے، چه خلق د فراغت او د مشاغلو په اعتبار سره مختلف دی. کوم خلق چه نورو ضروری کارونو کښې مشغول دی، هغوی دپاره یے کم مقدار تجویز کړه او کوم خلق چه فارغ دی هغوی دپاره زیات مقدار. خود محققینو رائے داده چه کوم شمیر حدیثونو کښې ذکر دے. د دے لحاظ ضروری دے. چه کوم شیز د دارو په طور استعمالولے شی په هغے کښې د مقدار لحاظ هم ضروری دے.

(۹) عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعَقِّبَاتٌ لَا يَخِيْبُ قَائِلُهُنَّ اَوْ فَاعِلُهُنَّ دُبُرَ كُلِّ صَلٰوةٍ مَّكْتُوْبَةٍ ثَلٰثٌ وَّثَلٰثُوْنَ تَسْبِيْحَةً وَّثَلٰثٌ

دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشادِ مبارک دے چه یو څو دستور اتلونکے (کلمے) داسے دی چه هغه ویونکے نامراده کیږی نه. هغه دا دی چه د فرض مانځه نه رستو دې درے دیرش واره سُبْحَانَ اللهِ، درے دیرش واره اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ او څلور دیرش

وَتُقَدِّسُوْنَ تَحْمِیْدَةٌ وَّاَرْبَعٌ وَّثَلٰثُوْنَ | وارے اَللّٰهُ اَکْبَرُ۔

تَکْبِیْرَةً۔ (رواه مسلم کذا فی المشکوٰة وعزاه السیوطی فی الجامع الی احمد ومسلم والترمذی والنسائی ورقم له بالضعف وفی الباب عن ابی الدرداء بمعناه عند الطبرانی)

**فائدہ:**۔ دے کلمو تہ پہ رستو راتلونکے یا خو پہ دے وجہ او وئیلے چہ دا دما لہ منہ پس وئیلے شی یا پہ دے وجہ چہ رکُنا مونونہ پس وئیلے شی نو هغه وئیلی او وراتوی۔ یا پہ دے وجہ چہ دا کلمے پو بل پسے وئیلے شی۔ حضرت ابو الدرداء رضی اللہ عنہ فرمائی چہ مونږ تہ د مونځونو نه پس سُبْحَانَ اللّٰهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ درے دیرش درے دیرش وارے او د اَللّٰهُ اَکْبَرُ څلور دیرش وارے د وئیلو حکم کړے شوے دے۔

(۱۰) عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَیْنٍ رضی اللہ عنہ رَفَعَهٗ اَمَا یَسْتَطِیْعُ اَحَدُکُمْ اَنْ یَّعْمَلَ کُلَّ یَوْمٍ مِّثْلَ اُحُدٍ عَمَلًا قَالُوْا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَنْ یَّسْتَطِیْعُ قَالَ کُلُّکُمْ یَسْتَطِیْعُ قَالُوْا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَاذَا قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ اَعْظَمُ مِنْ اُحُدٍ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَعْظَمُ مِنْ اُحُدٍ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ اَعْظَمُ مِنْ اُحُدٍ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ اَعْظَمُ مِنْ اُحُدٍ۔ (کذا فی جمع الفوائد وعزاه للکبیر والبزار وفی مجمع الزوائد وقال رجالهما رجال الصحیح)

نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم یو وارے ارشاد او فرمایه چہ تاسو کښې څوک دا نه شته دے چہ روزانه د اُحد (چہ مدینه منوره کښې دیو غر نوم دے) برابر عمل اوکړی۔ صحابو رضی اللہ عنہم عرض اوکړو چہ اے د اللہ رسوله! د دے څوک طاقت لرلے شی (چہ د دومره لوئی غر برابر عمل اوکړی) نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد او فرمایه هر څوک طاقت لرلے شی صحابو عرض اوکړو، د دے څه طریقه ده؟ ارشاد ئے او فرمایه چہ د سُبْحَانَ اللّٰهِ ثواب د اُحد نه زیات دے، د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ د اُحد نه زیات دے، د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ د اُحد نه زیات دے، د اَللّٰهُ اَکْبَرُ د اُحد نه زیات دے۔

**فائدہ:**۔ یعنی د دے کلمو نه هره یوه کلمه داسے ده چہ د هغې ثواب د اُحد غر نه زیات دے۔ او یو غر څه دے؟ دا معلومه نه څومره د داسے غرونو نه زیات دے۔ حدیث کښې راغلی دی چہ سُبْحَانَ اللّٰهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ بتول اسمانونه او زمکے د ثواب نه ډکوی۔ یو حدیث کښې راغلی دی چہ سُبْحَانَ اللّٰهِ ثواب نیمه تله ده او اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

هغه دکوی. او اللّٰهُ اَکْبَرُ اسمان او دزمکے مینځ ډکوی. یو حدیث کښې دنبی اکرم ﷺ ارشاد نقل کړے شوے دے چه سُبْحَانَ اللّٰهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اللّٰهُ اَکْبَرُ دکلمات دَ هغه څیزونه زیاتے خوښے دی په کوم چه نمر راخیژی. مُلّا علی قاری رحمه الله فرمائی چه مُراد دادے چه ټوله دُنیا د الله تعالیٰ دپاره خرچ کړم، نوله دینه هم زیاتے محبوبے دی. ویلے شی چه حضرت سُلیمان علیه السلام په هوائی تخت تشریف اوړه. مارغانو پرے سورے کړے وو، او د پیریانو انسانانو وغیره لښکرو د سره دوه قطارے وو. په یو عابد تیریدل. هغه د سُلیمان علیه السلام د دومره فراخ مُلک او دعامے بادشاهئ تعریف اوکړو، هغوی ورته ارشاد اوفرمایئ چه د مؤمن په عملنامه کښې یوه تسبیح د سُلیمان بن داؤد علیهما السلام د ټولے بادشاهئ نه ښه ده چه دا بادشاهی به فنا شی او تسبیح باقی پاتے کیدونکے ده.

⑪ عَنْ اَبِیْ سَلَامٍ رضی الله عنه مَوْلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَخٍ بَخٍ خَمْسٌ مَا اَثْقَلَهُنَّ فِی الْمِیْزَانِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ وَسُبْحَانَ

یو ځل نبی اکرم ﷺ ارشاد اوفرمایئ چه واه واه پنځه څیزونه د عملنامے تللو تله کښې څومره زیات درانه دی. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَللّٰهُ اَکْبَرُ، سُبْحَانَ اللّٰهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ او هغه بچے کوم چه مړ شی او پلار د غمے مور هم) په هغه صبر اوکړی.

اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَالْوَلَدُ الصَّالِحُ یُتَوَفّٰی لِلْمَرْءِ الْمُسْلِمِ فَیَحْتَسِبُهٗ (اخرجه احمد في مسنده و بسط الكلام في مجمع الزوائد والحاكم وقال صحيح الاسناد واقره عليه الذهبي وذكره في الجامع الصغير برواية البزار عن ثوبان وبرواية النسائي وابن حبان والحاكم عن ابي سلمى وبرواية احمد عن ابي امامة ورقم له بالحسن وذكره في مجمع الزوائد برواية ثوبان وابي سلمى راعي رسول الله صلى الله عليه وسلم وسفينة خادم رسول الله صلى الله عليه وسلم لم يسم وصحح بعض طرقها.)

**فائدہ:** دا مضمون د څو صحابو نه کثرو حدیثونو کښې نقل کړے شوے دے بَخٍ بَخٍ د ډیرے خوشالئ او د فرحت کلمه ده. کوم څیز چه نبی اکرم ﷺ دومره خوشالئ او مسرّت سره ارشاد فرمائی او ورکوی، ایا د محبت دعوی کونکو په ذمه نه ده چه په دے کلمو ځان قربان کړی چه د نبی اکرم ﷺ د دے خوشالئ قدردانی او د دے استقبال هم دادے.

⑫ عَنْ سُلَیْمَانَ بْنِ یَسَارٍ رضی الله عنه | د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه حضرت نوح علیه السلام

عن رجل من الانصار ان النبي صلى الله عليه وسلم قال قال نوح لابنه اني موصيك بوصية وقاصرها لكي لا تنساها اوصيك باثنين وانهاك عن اثنين اما اللتان اوصيك بهما فيستبشر الله بهما وصالح خلقه وهما يكثران الولوج على الله اوصيك بلا اله الا الله فان السموات والارض لو كانتا حلقة قصمتهما ولو كانتا في كفة وزنتهما واوصيك بسبحان الله وبحمده فانهما صلوة الخلق وبهما يرزق الخلق وان من شيء الا يسبح بحمده ولكن لا تفقهون تسبيحهم انه كان حليما غفورا واما اللتان انهاك عنهما فيحتجب الله منهما وصالح خلقه انهاك عن الشرك والكبر۔

رواه النسائي واللفظ له والبزار والحاكم من حديث عبد الله بن عمرو وقال صحيح الاسناد كذا في الترغيب قلت وقد تقدم في بيان التسبيل حديث عبد الله بن عمرو مرفوعا و

خپل ځوی ته اوفرمایل چه ځه تا ته وصیت کوم او په دې خیال چه هیر نه کړې ۔ ډیر مختصر وایم، او هغه دا دې چه دوه کارو د کولو دپاره وصیت کوم او د دوه کارونو نه د منع کوم ۔ د کوم دوه کارونو چه د پاره وصیت کوم هغه دواړه داسې دی چه الله جل شانه په هغې ډیر خوشالیږی، او د الله تعالی نیک مخلوق په هغې خوشالیږی ۔ د دې دواړو کارونو الله تعالی ته رسیدل (او مقبولیت) هم ډیر زیات دې. هغې دواړو نه یو لا اله الا الله دې. که چرې ټول اسمانونه او زمکه یوه حلقه (کړۍ) شی نو بیا به هم دا پاک کلمه دغه ماته کړی اسمان ته تلو نه بغیر به پاتې نشی او که چرې ټول اسمانونه او زمکې په یو چابړی کښې کیخودې شی او دویم کښې دا پاک کلمه وی نو بیا به هم دا چابړې دروند شی ۔ او دویم کار کوم چه کول دی هغه د سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ ویل دی چه دا کلمه د ټول مخلوق عبادت دې او هم د دې په برکت ټول مخلوق ته روزی ورکولې شی ۔ هیڅ څیز مخلوق کښې داسې نشته چه د الله تعالی تسبیح نه کوی خو تاسو خلق د هغې په تسبیح نه پوهیږئ نه ۔ او د کومو دوه څیزونو نه د منع کوم هغه شرک او تکبر دې چه د دې دواړو په وجه د الله تعالی نه پرده کیږی او د الله تعالی د نیک مخلوق نه پرده کیږی ۔

تقدم فیه الغنۃ ما فی الباب وتقدم فی الآیات قوله عز اسمه وان من شیء الا یسبح بحمده الآیة واخرج ابن جریر وابن ابی حاتم وابو الشیخ فی العظمة عن جابر مرفوعا الا اخبرکم بشیء امر به نوح ابنه ان نوحا قال لابنه یا بنی آمرک ان تقول سبحان الله فانها صلوة الخلق وتسبیح الخلق وبها یرزق الخلق واخرج احمد وابن مردویه عن ابن عمر مرفوعا ان نوحا لما حضرته الوفاة قال لابنیه آمرکما بسبحان الله وبحمده فانها صلوة کل شیء وبها یرزق کل شیء کذا فی الدر.

**فائده:-** د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ په بیان کښې هم دے حدیث مضمون تېر شوے دے، د تسبیح متعلق چه کوم ارشاد دے حدیث کښې دے، د قرآنِ پاک په ایتونو کښې هم تېر شوے دے. وَاِنْ مِّنْ شَیْءٍ اِلَّا یُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ د قرآن پاک ایت دے. د نبي اکرم ﷺ ارشاد د ډیرو حدیثونو کښې راغلے دے چه د معراج په شپه د اسمانونو تسبیح نبي اکرم ﷺ په خپله واورېده. یو وارے د نبي اکرم ﷺ تېرېدل په یو داسے ډله اُوشو چه په خپلو اسونو او اوښانو باندے سواره وُو. نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایه چه ځناورو نه منبر او کرسئ مه جوړوئ. ډیر ځناور د سورلو نه بهتر او ددوئ نه زیات د الله تعالیٰ ذکر کوونکی وی. حضرت اِبنِ عَبّاس رضی الله عنه فرمائی چه فصل هم تسبیح وائی او پټئ والوته دے ثواب ملاویږی. یو ځلے د نبي اکرم ﷺ په خدمت کښې یو پیاله پیش کړے شوه چه په کښې ثرید (یعنی د غوښے په خوروا کښې ماته ډوډئ) وه. نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایه چه دا طعام تسبیح کوی. چا عرض اُوکړو، تاسو دے په تسبیح باندے پوهیږئ؟ نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایه، او پوهیږم. د دے نه پس نبي اکرم ﷺ یو کس ته اُووے چه دا فلانی کس ته نزدے کړه. دغه پیاله هغهٔ ته نزدے کړے شوه، نو هغهٔ هم تسبیح واورېدله. د دے نه پس یو دریم صاحب ته نزدے کړے شوه، هغهٔ هم واورېدله. چا درخواست اُوکړو چه مجمع کښې د ټولو خلقو ته واورولے شی. نبي اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایه که چرے څوک پکښې واؤری، نو خلق به دا اُګڼړی چه دا ګنهګار دے. د دے څیز تعلق کشف سره دے. حضراتِ انبیاء علیهم السلام ته دا څیز په کامله درجه حاصل وو، او بیا ډیرهم قدر حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم ته هم ډیرو ختونو کښې د نبي اکرم ﷺ د فیضِ صحبت او انوارِ قلب په وجه دا څیز ونسحا صلیدل. په سرُونو واقعات د دے ګواه دی.

صوفیانو ته هم دا څیزونه اکثر د مجاهدو په برکت سره حاصلیږي چه د دې په وجه هغوی د جسمانیاتو رکا ټټرې، لوټې بې ساه څیزونو او د حیواناتو تسبیح د هغوی کلام او په خبرو اترو پوهیږي. خو د محققینو مشائخو په نزد چونکه دا څیزونه نه د کمال دلیل دې، نه سبب د نزدیکت. ځکه چه دا قسمه مجاهده کوي هغه حاصلولے شي خواه هغه ته د الله جل شانهٗ نزدیکت حاصل وي یا نه وي. په دې وجه محققین دا غیر ضروري ګڼړي. بلکه په دې لحاظ ئې مضر ګڼړي چه کله مبتدئ (یعني نوے کس) په دیکښې اولګي نو د دنیا د سیل ئې شوق پیدا شي د ترقئ د پاره بند پیږشي. ماته رښیل حضرت مولانا خلیل احمد صاحب رحمة الله علیه د بعضے مریدانو متعلق معلومه ده چه کله هغوی ته دا شکل د کشف پیدا شو، حضرت به څو ورځو د پاره په اهتمام سره ذکر و شغل بند پریخودهٗ چه هغے ته دا حالت ترقي اوکړي. د دے نه علاوه دا حضرات به د دے د پاره تر دے هم بچ کیدل چه په دے حالت کښې د نورو ګناهونه ښکاره کیږي، او د دے حضراتو د پاره د خفګان سبب ګرزي.

علامه شعراني رحمة الله علیه میزان الکبری کښې لیکلي دي چه حضرت امام اعظم رحمة الله علیه به چه کله څوک په اودس کولو اولیدهٗ نو په هغه اوبو کښې به ئې کومه ګناه وه بخښلی شوه هغه به ئې لیدله. دا په وړه هم معلومیدله چه ګناه کبیره ده که صغیره. مکروه کار دے که خلاف اولي. څنګه چه حسي (یعني په نظر راتلونکي) څیزونه ښکاري دا رنګے به دا هم معلومیدهٗ. یو ځل د کوفے د جامع مسجد د اودس په ځائ کښې تشریف فرما وو. یو ځوان اودس کولو، د هغه د اودس اوبه ئې اولیدے چه تر ده څورزیدلے هغه ته ئې پټ نصیحت اوکړهٗ چه بچیه! د مور پلار د نافرمانئ نه توبه اوباسه. هغه توبه اوکړه. یو بل کس ئې اولیدهٗ نو هغه ته ئې نصیحت اوکړهٗ چه رورهٔ! زنا مه کوه، ډیره بد عیب دے. دغه وخت هغه هم د زنا نه توبه اوکړه. یو بل کس ئې اولیدهٗ د شرابو څکلو او د لهو و لعب او بد ترے پرېوتلے، هغه ته ئې هم نصیحت اوکړهٗ. هغه هم توبه اوکړه. خلاصه دا چه د دے نه پس امام اعظم رحمة الله علیه د الله جل شانهٗ نه دعا اوکړه چه اے الله! دا څیز خما نه لرے کړے، چه څه د خلقو

په ګناهو نو خبریدل نه غواړی. الله تعالیٰ دې دُعا قبوله کړه، او دا خیز ترې کړې شو. ویلې شی چه په دغه زمانه کښې امام صاحب د استعمال شوې اوبو د ناپاکۍ فتوی ورکړې وه. ولې چه ورته دغه اوبه ګنده او بد بوداره په نظر راتلې نو ځکه به یې ورته پاکې ویلې خو هرکله چه ترې دا خیز لرې کړې شو، نو بیا یې (استعمال شوې اوبو ته) ناپاکې ویل هم پریښودل. خمونږ د حضرت مولانا الشاه عبدالرحیم صاحب رائپوری رحمة الله علیه په مُریدانو کښې یو صاحب د ریچه ځوځوورګې به په دې وجه استنجا ته نه تلو، چه هر ځائې به ورته انوارات په نظر راتلل، نور هم په سوونو زرګونو واقعات د دې قسمه دی چه په هغه کښې هیڅ قسمه د شک ګنجائش نشته. کومو خلقو ته چه د کشف نه څه حصه ورکړې شوې ده هغوی ته د هغې حصې په انداز ے احوال معلومیږی.

⑭ عَنْ أُمِّ هَانِئٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ مَرَّ بِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ كَبِرَتْ سِنِّي وَضَعُفْتُ أَوْ كَمَا قَالَتْ فَمُرْنِي بِعَمَلٍ أَعْمَلُهُ وَأَنَا جَالِسَةٌ قَالَ سَبِّحِي اللهَ مِائَةَ تَسْبِيحَةٍ فَإِنَّهَا تَعْدِلُ لَكِ مِائَةَ رَقَبَةٍ تُعْتِقِينَهَا مِنْ وُلْدِ إِسْمٰعِيلَ وَاحْمَدِي اللهَ مِائَةَ تَحْمِيدَةٍ فَإِنَّهَا تَعْدِلُ لَكِ مِائَةَ فَرَسٍ مُسْرَجَةٍ مُلْجَمَةٍ تَحْمِلِينَ عَلَيْهَا فِي سَبِيلِ اللهِ وَكَبِّرِي اللهَ مِائَةَ تَكْبِيرَةٍ فَإِنَّهَا تَعْدِلُ لَكِ مِائَةَ بَدَنَةٍ مُقَلَّدَةٍ مُتَقَبَّلَةٍ وَهَلِّلِي اللهَ مِائَةَ

حضرت اُمِّ هانی رضی الله عنها فرمائی چه یو ځل نبی اکرم صلی الله علیه وسلم تشریف راوړلو ما عرض اُوکړو، اے د الله رسوله! زه بوډۍ شوې یم او کمزورې یم. ما له داسې عمل را تر اُوښایه چه په ناسته ناسته یې کومه. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ورته اُوفرمایل سُبْحَانَ اللهِ سل وارې وایه. د دې ثواب داسې دے چه ګویا سل عرب غلامان دې آزاد کړل. او اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ سل وارې وایه، د دې ثواب داسې دے ګویا تا سل آسونه سره د سامان او د واګو وغیره د جهاد کښې د سورلۍ د پاره ورکړل. او اَللهُ اَکْبَرُ سل وارې وایه، دا داسې ده ګویا تا سل اوښان قربانۍ کښې حلال کړل او هغه قبول شو. او لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ سل وارې وایه د دې ثواب خو د آسمان او زمکې مینځ ډکوی. د دې نه زیات د هیچا څخه عمل نشته چه قبول شي.

تَهْلِيلَةٍ قَالَ اَبُوْ خَلَفٍ اَحْسِبُهٗ قَالَ تَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ وَلَا يُرْفَعُ يَوْمَئِذٍ لِاَحَدٍ عَمَلٌ اَفْضَلُ مِمَّا يُرْفَعُ لَكِ اِلَّا اَنْ يَّاْتِيَ بِمِثْلِ مَا اَتَيْتِ۔

(حضرت ابو رافع رضی الله عنه بی بی صاحبه حضرت سلمٰی رضی الله عنها هم نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړه چه ما ته څه وظیفه لنډه غونډے اوښایئ چه ډیره اوږده نه وی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه اَللهُ اَکْبَرُ لس ځل وایه الله جل شانه ددے په جواب کښې فرمائی چه دا خما دپاره ده. بیا سُبْحَانَ اللهِ لس ځل وایه، الله تعالیٰ بیا دا وائی چه دا خما دپاره ده. بیا اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ لس ځل وایه، الله تعالیٰ فرمائی چه ما دِ بخښنه اوکړه. لس ځل وایه ته اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ وایه، لس ځل وایه الله تعالیٰ فرمائی چه ما دِ بخښنه اوکړه.)

(رواه احمد باسناد حسن واللفظ له والنسائی ولم یقل ولا یرفع الی آخره والبیهقی بتمامه ورواه ابن ابی الدنیا بنحو ثواب القلب فی التحمید والفرس فی التسبیح وابن ماجة بمعناه باختصار والطبرانی فی الکبیر بنحو احمد ولم یقل احسبه وفی الاوسط باسناد حسن بمعناه کذا فی الترغیب باختصار قلت رواه الحاکم بمعناه وصححه وعزاه فی الجامع الصغیر الی احمد والطبرانی والحاکم ورقم له بالصحة وذکره فی مجمع الزوائد بطرق وقال اسانیدهم حسنة وفی الترغیب ایضا عن ابی امامة مرفوعا نحو حدیث الباب مختصرا وقال رواه الطبرانی ورواته رواة الصحیح خلا سلیمن بن عثمان الفوزی یکشف حاله فانه لا یحضرنی الآن فیه جرح ولا عدالة آه وفی الباب عن سلمی ام بنی ابی رافع قالت یا رسول الله اخبرنی بکلمات ولا تکثر علی الحدیث مختصرا وفیه التکبیر والتسبیح عشرا عشرا واللهم اغفرلی عشرا قال المنذری رواه الطبرانی ورواته محتج بهم فی الصحیح آه قلت وبمعناه من عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده مرفوعا بلفظ من سبح الله مائة بالغداة ومائة بالعشی کان کمن حج مائة حجة الحدیث وجعل فیه التحمید کمن حمل علی مائة فرس والتهلیل کمن اعتق مائة رقبة من ولد اسمٰعیل ذکره فی المشکوة بروایة الترمذی وقال حسن غریب.)

**فائده:-** ضعیفانو بوډاګانو دپاره خصوصًا زنانو دپاره څومره اسان او مختصر څیز نبی اکرم صلی الله علیه وسلم تجویز کړو. اوګورئ، دا مختصر څیزونو پاندې چه نه په کښې زیات مشقت شته، نه په کښې ګرزیدل راګرزیدل شته، څومره دلویو لویو ثوابونو وعدې دي. څومره بدکم نصیبی وی، که چرې دا حاصل نه کړے شی.

حضرت اُمّ سلیم رضی الله عنها وائی چه ما نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړه چه څه څیز ما ته اوښایه چه دهغې په ذریعه ما هغه کښې دعا کومه. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایه چه

سُبْحَانَ اللهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَللهُ اَکْبَرُ لس لس واره وایه او څه چه د خوښه وي د ے
نه پس دعا اوکړه. بل حدیث کښې د ے نه پس دا ارشاد د ے چه څه د خوښه وي
دعا اوکړه، الله جل شانه به د ے دعا فرمائي آو آو (ما قبوله کړه). څومره اسان او مختصر
الفاظ دي چه یادول او محنت او چتول پکښې نشته. بوله ورځ مونږ خلق بکواس
کښې تیروو. تجارت سره دوکان کښې په ناسته ناسته یا پتې کښې زمکے انتظاماتو
کښې مشغولیدو سره سره که چرے په تربه دا تسبیحات وایو، نو د دنیا د ګټے سره
د آخرت څومره لوئ دولت به په لاس راشي.

⑭ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِلّٰهِ مَلٰٓئِكَةً يَّطُوْفُوْنَ فِي الطُّرُقِ يَلْتَمِسُوْنَ اَهْلَ الذِّكْرِ فَاِذَا وَجَدُوْا قَوْمًا يَّذْكُرُوْنَ اللهَ تَنَادَوْا هَلُمُّوْا اِلٰى حَاجَتِكُمْ فَيَحُفُّوْنَهَا بِاَجْنِحَتِهِمْ اِلَى السَّمَآءِ فَاِذَا تَفَرَّقُوْا عَرَجُوْا وَصَعِدُوْا اِلَى السَّمَآءِ فَيَسْاَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَهُوَ يَعْلَمُ مِنْ اَيْنَ جِئْتُمْ فَيَقُوْلُوْنَ جِئْنَا مِنْ عِنْدِ عِبَادٍ لَّكَ يُسَبِّحُوْنَكَ وَيُكَبِّرُوْنَكَ وَيَحْمَدُوْنَكَ فَيَقُوْلُ هَلْ رَاَوْنِيْ فَيَقُوْلُوْنَ لَا فَيَقُوْلُ كَيْفَ لَوْ رَاَوْنِيْ فَيَقُوْلُوْنَ لَوْ رَاَوْكَ كَانُوْا اَشَدَّ لَكَ عِبَادَةً وَّاَشَدَّ لَكَ تَمْجِيْدًا وَّاَكْثَرَ لَكَ تَسْبِيْحًا فَيَقُوْلُ فَمَا يَسْاَلُوْنَ فَيَقُوْلُوْنَ يَسْاَلُوْنَكَ الْجَنَّةَ فَيَقُوْلُ وَ

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک د ے چه د فرښتو یوه
ډله ده چه لارو کوڅو کښې ګشت کوي او کوم ځاے
چه ورته خلق د الله تعالی ذکر کوونکي ملاؤ شي نو
دوي خپل ملګرو ته اواز اوکړي چه راشئ، تاسو ته رسیدل ضروري
شي او د ذکر کوونکو په چاپیره تر اسمانه پورے جمع
شي. کله چه دغه مجلس ختم شي نو دوي اسمان
ته لاړے شي او الله تعالی سره د چه هر څیز ورته
معلوم د ے بیا هم پوښتنه کوي چه تاسو د کومه
راغلئ؟ دوي عرض اوکړي ستا د بندګانو فلانئ
ډلے نه راغلي یو چه ستا په تسبیح او تکبیر او تحمید
(لوئي بیانولو، تعریف کولو) کښې مشغول څو. ارشاد
اوشي، ایا ما د غو خلقو لیدلے یم؟ عرض کوي
اے الله! لیدلے خو یې نه یې. ارشاد اوشي که چرے
هغوي ما اووینې نو څه حال به وي؟ عرض کوي
که چرے تا اووینی، نو نور به هم زیات عبادت
کښې مشغول شي او له د ے نه به هم زیات ستا
تعریف او تسبیح کښې لګیا شي. ارشاد اوشي چه
هغوي څه غوښتل؟ عرض اوکړي چه هغوي

هَلْ رَأَوْهَا فَيَقُولُوْنَ لَا فَيَقُولُ
كَيْفَ لَوْ رَأَوْهَا فَيَقُولُوْنَ لَوْ
أَنَّهُمْ رَأَوْهَا كَانُوْا أَشَدَّ عَلَيْهَا
حِرْصًا وَأَشَدَّ لَهَا طَلَبًا وَأَعْظَمَ
فِيْهَا رَغْبَةً قَالَ فَمِمَّ يَتَعَوَّذُوْنَ
يَقُولُوْنَ يَتَعَوَّذُوْنَ مِنَ النَّارِ
فَيَقُولُ وَهَلْ رَأَوْهَا فَيَقُولُوْنَ
لَا فَيَقُولُ فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْهَا
فَيَقُولُوْنَ لَوْ أَنَّهُمْ رَأَوْهَا كَانُوْا
أَشَدَّ مِنْهَا فِرَارًا وَأَشَدَّ لَهَا
مَخَافَةً فَيَقُولُ أُشْهِدُكُمْ أَنِّيْ
قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ فَيَقُولُ مَلَكٌ
مِنَ الْمَلٰئِكَةِ فُلَانٌ لَيْسَ مِنْهُمْ
إِنَّمَا جَاءَ لِحَاجَةٍ قَالَ هُمُ الْقَوْمُ
لَا يَشْقٰى بِهِمْ جَلِيْسُهُمْ.
(رواه البخاري ومسلم والبيهقي في الاسماء
والصفات كذا في الدر والمشكوٰة)

جنت غوښتلو. ارشاد اُوشی چه ایا هغوی جنت
لیدلے دے؟ عرض کوی چه لیدلے خو یے نۀ
دے. ارشاد اُوشی که چرے وے لیدلے، نو څۀ
به وی؟ عرض کوی چه لۀ دے نه به زیات په
شوق او تمنا او هغے په طلب کښې به اُولګی.
بیا ارشاد اُوشی چه کوم څیز نه یے پناه غوښتله؟
عرض اُوکړی چه د دوزخ نه یے پناه غوښتله.
ارشاد اُوشی ایا هغوی دوزخ لیدلے دے؟ عرض
کوی چه لیدلے خو یے نۀ دے. ارشاد اُوشی
که چرے وے لیدلے نو څۀ به وی؟ عرض کوی
نور هم زیات د هغے نه تختیدلے او د بچ کیدو
کوشش به یے کولو. ارشاد اُوشی ښه تاسو
ګواه اُوسئ چه ما دا مجلس والا اُوبخښل
یو فرښته عرض اُوکړی اے الله! چه فلانے
کس د مجلس کښې اتفاقی څۀ ضرورت له پیسے
راغلے وو، هغه د دے مجلس شریک نۀ وو.
ارشاد اُوشی چه دا جماعت داسے مبارک دے چه د دوی
مناست هم نۀ محرومه کیږی. (الهٰنا هغه هم اُوبخښئ.)

**فائده**:- د دے قسم مضمون کثرو حدیثونو کښې راغلے دے چه د فرښتو یوه
ډله د ذکر مجلسونو او د ذکر کوونکو جماعتونو او د کسانو په تلاش کښې وی. او کوم
ځائے چه ورته ملاؤ شی، هغوی څخه دوی کینی، د هغوی ذکر اوری، لکه د اول
باب اتم نمبر حدیث کښې دا مضمون تیر شوے دے، او هغے کښې دا هم تیر شوی
چه فرښتو ته د فخر په طور الله جل شانهٔ د هغوی ذکر وړاندے کوی. د فرښتو دا عرض
کول چه یو کس مجلس کښې داسے هم وو چه خپل څۀ ضرورت له پیسے راغلے وو، د واقع
اظهار دے چه د هغه ذات د دوی په شان ذکر اهانو دی، او د هغے خلقو د عبادت او د الله تعالی

په ذکر کښې دمشغولئ ګواهي ورکوي. په دے وجه د دغے دظاهرولو ضرورت پيښ شو چه هسے نه اعتراض اوشي. خو دا د الله تعالیٰ مهرباني ده چه ذاکرينو له برکته هغوی غمخه دخپل ضرورت دپاره ناست يے هم محرومه نه کړه. د الله جل شانه ارشاد دے يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ (سورة توبه ع ۱۵) (اے ايماندارو! د الله نه اُووېرېږئ او رښتنو سره شئ.) دصوفيانو ارشاد دے چه د الله تعالیٰ سره اُوسئ، او که چرے دا نشي کيدے نو بيا د هغے خلقو سره اُوسئ کوم چه الله تعالیٰ سره اُوسي. الله تعالیٰ سره د اُوسيدو مطلب دا دے. څنګه چه صحيح بخاري کښې ارشاد دے (حديثِ قدسي دے) الله جل شانه فرمائي چه بنده د نفلو په ذريعه ځما قُرب (نزديکت) کښې ترقي کوي. تر دے پورے چه ځه يے خپل محبوب جوړ کړم. او کله يے چه محبوب جوړ کړم، نو ځه د هغه غوږ جوړ شم چه په هغے سره هغه اَوري. د هغه سترګے جوړه شم چه په هغے سره وينې. د هغه لاس جوړ شم چه په هغے سره نيسي. د هغه خپه جوړه شم چه په هغے سره ګرزي. بيا هر څه چه ما نه غواړي هغه ته ورکوم. د لاس خپو جوړيدو مطلب دا دے چه د هغه هر يو کار د الله تعالیٰ د رضا او محبت دپاره کيږي. د هغه هيڅ يو عمل د الله تعالیٰ د مرضئ نه خلاف نه کيږي. د صوفيانو حالات او د هغوی واقعات چه په کثرت د تاريخ (کتابونو) کښې موجود دي. هغه انصافي ګواهان دي، او هغه دومره ډير دي چه د هغے نه د انکار ګنجائش نشته. يوه رساله دے باب کښې د "نُزْهَةُ الْبَسَاتِيْن" په نامه مشهوره ده چه د هغے نه د دے قسمه دحالاتو پته لګي.

شيخ ابوبکر کتاني رحمة الله عليه وائي چه يو وار دے د حج په موقع مکه مکرمه کښې ځو صوفيان جمع وُو چه په هغوی کښې د ټولو نه کم عمره حضرت جُنيد بغدادي رحمة الله عليه وُو. دے مجمع کښې په محبتِ الٰهي بحث شروع شو چه محِب (الله تعالیٰ سره محبت ساتونکے) څوک دے؟ مختلفو حضراتو مختلف ارشادات فرمائيل. حضرت جُنيد رحمة الله عليه چپ وُو. دے حضراتو هغه ته اُوفرمائيل چه ته هم څه اُووايه. په دے کښې هغه سر ښکته کړو په ژړا کښې يے اُوفرمائيل چه عاشق هغه دے چه خودئ (غرور تکبر) نه ترے اُوزي، د الله تعالیٰ ذکر سره تړلے شوے وي، او د هغه حق ادا کوي

تَهْلِيْلَةً قَالَ اَبُوْخَلَفٍ اَحْسِبُهُ قَالَ تَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلَا يُرْفَعُ يَوْمَئِذٍ لِاَحَدٍ عَمَلٌ اَفْضَلُ مِمَّا يُرْفَعُ لَكَ اِلَّا اَنْ يَّاْتِيَ بِمِثْلِ مَا اَتَيْتَ۔

د حضرت ابورافع رضی الله عنه بی بی صاحبه حضرت سلمٰی رضی الله عنها هم نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړه چه ماته څه وظیفه کښلې غوندې اوښايئ چه ډیره اوږده نه وی۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد وفرمايه اَللّٰهُ اَكْبَرُ لس ځل وايه الله جل شانه د دې په جواب کښ فرمائی چه دا خما دپاره ده۔ بيا سُبْحَانَ اللّٰهِ لس ځل وايه، الله تعالٰی ياداوائی چه دا ما دپاره ده۔ بيا اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ لس ځل وايه، الله تعالٰی فرمائی چه آو ما د بخښنه اوکړه۔ لس ځل ته اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ وايه، لس ځل به الله تعالٰی فرمائی چه ما د بخښنه اوکړه۔

(رواه احمد باسناد حسن واللفظ له والنسائی ولم يقل ولا يرفع الی آخره والبيهقی بتمامه ورواه ابن ابی الدنيا فی ثواب التهليل فی التمجيد والفرس فی التسبيح وابن ماجة بمعناه باختصار والطبرانی فی الكبير بنحو احمد ولم يقل احسبه وفی الاوسط باسناد حسن بمعناه كذا فی الترغيب باختصار قلت رواه الحاكم بمعناه وصححه وعزاه فی الجامع الصغير الی احمد والطبرانی والحاكم ورقم له بالصحة وذكره فی مجمع الزوائد بطرق وقال اسانيدهم حسنة وفی الترغيب ايضا عن ابی امامة مرفوعا نحو حديث الباب مختصرا وقال رواه الطبرانی ورواته رواة الصحيح خلا سليم بن عثمان الفوزی يكشف حاله فانه لا يحضرنی الآن فيه جرح ولا عدالة آه وفی الباب عن سلمٰی ام بنی ابی رافع قالت يا رسول الله اخبرنی بكلمات ولا تكثر علی الحديث مختصرا وفيه التكبير والتسبيح عشرا عشرا واللهم اغفرلی عشرا قال المنذری رواه الطبرانی ورواته محتج بهم فی الصحيح آه قلت وبمعناه عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده مرفوعا بلفظ من سبح الله مائة بالغداة ومائة بالعشی كان كمن حج مائة حجة الحديث وجعل فيه التحميد كمن حمل علی مائة فرس وما التهليل كمن اعتق مائة رقبة من ولد اسمٰعيل ذكره فی المشكوٰة برواية الترمذی وقال حسن غريب۔)

**فائده**:- ضعيفانو بوډاګانو دپاره خصوصاً زنانو دپاره څومره آسان او مختصر څيز نبی اکرم صلی الله علیه وسلم تجويز کړو۔ اوګوره، دا مختصر څيزونو باندې چه نه په کښ زيات مشقت شته، نه پکښ ګرزيدل راګرزيدل شته، څومره دلويو لويو ثوابونو وعده ده۔ څومره بدکم نصيبی وی، که څوک دا حاصل نه کړې شی۔

حضرت ام سليم رضی الله عنها وائی چه ما نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه څه څيز ماته اوښايئ چه د هغې په ذريعه ما څه کښ دعا اوکړم۔ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمايه چه

اُوم کتل چه حضرت سَعید بن المُسَیِّب دے. ما عرض اُوکړه، تا سو څه وې اُونه بللم
وے فرمایل، خُما را تلل مُناسب وو. ما عرض اُوکړه څه ارشاد دے؟ اُوفرمایل
چه ما ته دا خیال راغے چه اوس خو ستا نکاح شوے ده، یوا ځے شپه تیروَل
مُناسب نه دی. په دے وجه ستا بی بی م راوَستلے ده. دا یے اُوفرمایل، خپله
لور یے د دروازے د ننه کړه، او دروازه یے بنده کړه لاړو. هغه جینئ له شرمه نه
پریوتله. ما دننه نه دروازه بنده کړه، او هغه ډوډئ او تیل کوم چه د دیوے
څنګښ پراته وُو، د هغه ځائ نه م لرے کړل چه وے نه وینی او د مکان په
چهت اُوختلم، ګاونډیانو ته م اواز ورکړو، خلق جمع شول، نو ما اُو ویل
چه حضرت سَعید خپله لور سره څما نکاح کړے ده. او دا وخت یے هغه پخپله
دا رَسولے ده. ټول ډیر حیران شول، وے ویل چه واقعی هغه ستا په کور کښ
ده؟ ما اُو وے، اُو. خلق حیران شول، څما مور ته هم خبر اُوشو. هغه دغه وخت
راغله، اُو وے ویل که چرے درے وُرځو پورے ته دے ته ورنزدے شوے
نو ستا مخ به اُونه ګورم. مونږ به درے ورځو کښ د دے تیاری کوو. درے ورځے
پس چه څه هغه جینئ سره ملاوُ شوم، نو اُوم لیده، ډیره ښائسته، قرآن شریف
هم حافِظه او د رسول ﷺ د سُنتونه هم ډیره زیاته واقِفه. د خاوند د حقونو نه
هم ډیره زیاته خبر داره وه. یو میاشت پورے نه خو حضرت سَعید مونږ کره
راغے، نه څه د هغه خدمت کښ حاضر شوم. یو میاشت پس څه حاضر شوم.
نو هلته ګڼړه وه. ما سَلام اُوکړه کیناستم. هر کله چه ټول خلق لاړل، نو وے فرمایل
هغه بندیادم د څنګه بیا موندہ؟ ما عرض اُوکړه ډیر بهتر دے چه دوست یے اُوینی
خوشاله شی، دُشمن پرے سوزی. وے فرمایل، که څه خبره د نا خوښئ پکښ وی نو
په لرګی یے خبر اُخله. څه واپس راغلم نو یو سړے یے را اُولیږه چه شل زره
درهمه (یعنی تقریباً پنځه زره روپئ پاکستانی) یے ماته را کړے. دا جینئ عبد الملك
بن مروان بادشاه د خپل ځوئ وَلید د پاره کوم چه وَلی عهد وو، غوختلے وه خو
حضرت سعید ورته عُذر کړے وُو چه د دے په وجه عبد الملك ناراضه شو او په
یوه حِیله (بهانه) یے حضرت سعید رحمة الله علیه سَل کورے په سخته یخنئ کښ وهلے وُو

او د اُوبو پو منګے یې پرې اَوړولے وُو۔

(۵) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَکْبَرُ کُتِبَتْ لَهٗ بِکُلِّ حَرْفٍ عَشْرُ حَسَنَاتٍ وَمَنْ اَعَانَ عَلٰی خُصُوْمَةٍ بَاطِلٍ لَمْ یَزَلْ فِیْ سَخَطِ اللهِ حَتّٰی یَنْزِعَ وَمَنْ حَالَتْ شَفَاعَتُهٗ دُوْنَ حَدٍّ مِّنْ حُدُوْدِ اللهِ فَقَدْ ضَادَّ اللهَ فِیْ اَمْرِهٖ وَمَنْ بَهَتَ مُؤْمِنًا اَوْ مُؤْمِنَةً حَبَسَهُ اللهُ فِیْ رَدْغَةِ الْخَبَالِ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ حَتّٰی یَخْرُجَ مِمَّا قَالَ وَلَیْسَ بِخَارِجٍ۔ (رواه الطبرانی فی الکبیر والاوسط ورجالهما رجال الصحیح کذا فی مجمع الزوائد قلت اخرجه ابوداؤد بدون ذکر التسبیح فیه)

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څوک سُبْحَانَ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَللهُ اَکْبَرُ اُووائی۔ د هر یو حرف په بدله کښې به ورته لس نیکۍ اُولیکلے شي۔ او چه څوک په غلط جهګړه کښې د نا حقه مدد کوی هغه د الله تعالیٰ په غصه کښې اُوسی ترڅو پورې چه د هغې نه توبه اُونه باسی۔ او چه څوک د الله تعالیٰ په غټه سزا کښې سفارش کوی (او شرعی سزا ورکولو کښې منع کوونکے شي) هغه د الله تعالیٰ مقابله کوی۔ او چه څوک په چا مؤمن سړی یا زنانه تهمت اُولګوی هغه به د قیامت په ورځ رَدْغَةُ الْخَبَالِ کښې قید کړے شي ترڅو چه د دے تهمته اُووزی۔ او څنګه به د هغې نه اُووزی۔

**فائده:-** د نا حقه امداد کول نن صبا خمونږ طبیعت جوړ شوے دے۔ یو څیز مونږ ته پیژنو چه مونږ په غلطئ یو۔ خو د خپلوانو طرفداری ده، د پارټئ سوال دے، لاکهه ځلے د الله تعالیٰ غصه کښې داخل شُو، الله تعالیٰ ناراضه شي، د هغه غصه دې خو د قام قبیلے د خبرے په مقابله کښې هیڅ هم نه وی۔ مونږ که د ناحق کار کوونکے تو که نه شو، نو خاموشي اُوکړو، دا هم نه کوو، بلکه په هر قسمه د هغه امداد کوو۔ که چرې په دے څوک مطالبه کوونکے اودریږی، نو د هغه مقابله کوو۔ خمونږ دوست غلا اُوکړه، ظلم یې اُوکړه، عیاشي یې اُوکړه، د هغه حوصلے اُوچتوو، هر قسمه مدد یې کوو۔ آیا دا د خمونږ د ایمان منشا، آیا دا د دینداری؟ په دے سره په اسلام مونږ فخر کوو۔ یا خپل اسلام د نورو په نظر کښې بدنامَوو، او د الله تعالیٰ په نزد په خپله

هم ذلیله کیږو.

یو حدیث کښې دي چه خوك په عَصَبِيَّتْ یعنې خپلولئ او قومیت خلق را اُوبلي یا په عصبیت جنګیږي هغه ځمونږ نه نه دے. بل حدیث کښې دي چه د عصبیت نه مُراد دا دے چه په ظلم د خپل قوم مدد کوي. رَدْغَةُ الْخَبَالِ هغه ځنه ده چه د دوزخیانو زوبینو زووَ وغیره نه جمع شي. خومره ګناه او تکلیف وړکوکې خائي دے چه په هغې کښې به داسے خلق تیندولے شي چه خوك په مُسلمانانو تهمت لګوي. نن په دُنیا کښې ډیر معمولي معلومیږي. د چا متعلق چه ځنه اوغوختل په وکه ځلے د اُوروے. صبا به چه په خُلهٔ د ځنه ویلي وي هره خبره به ثابتوے، او ثبوت هم هغه کوم چه په شریعت کښې مُعتبر وي. د دُنیا په شان نه، چه په چالاکۍ او په دروغو خبرو بل چُپ کړے شي. هغه وخت به پسترګے اوغړیږي چه مونږ ځنه ویلي وُو او ځنه اُوختل. د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه بنده بعضے خبره داسے اُوباسي چه پرواه یے نه کوي خو د هغې په وجه دوزخ کښې اوغورزولے شي. یو حدیث کښې دي چه بنده بعضے خبره صرف په دے وجه وائي چه خلق لږ اُوخاندي خو د هغې د وجے نه دومره لرے (دوزخ کښې) اوغورزولے شي څومره لرے چه د اسمان نه زمکه ده. بیا یے ارشاد اُوفرمائیلو چه د ژبے تیروتل د پښو د خوږیدلو نه سخت دي. یو حدیث کښې دي چه څوك بل په څه ګناه سره شرمنده کوي، هغه به په خپله د مرګ نه وړاندے په دغې ګناه کښې اخته شي. امام احمد رحمة الله علیه فرمائي چه هغه ګناه مُراد ده د کوم نه چه ګنهګار توبه ایستلے وي. حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه به خپله ژبه اُونیوله، راپه یے څکله، چه ستا په وجه مونږ په هلاکتونو کښې پریوتو. اِبْنُ الْمُنْکَدِر رحمة الله علیه مشهور مُحدِّث دے او تابعي هم دے. د وفات په وخت په ژړا شو. چا ترے تپوس اُوکړه چه ولے ځنه خبره ده؟ ورته فرمائیل، ما ته ځنه ګناه خو داسے معلومه نه ده کومه چه ما کړے وي. په دے ژاړم چه ځنه خبرے را نه داسے شوے وي چه ما هغه معمولي ګڼړلے وي او هغه د الله تعالیٰ په نزد سخت وي.

(۱۶) عَنْ اَبِیْ بَرْزَةَ الْاَسْلَمِیِّ رضی الله عنه قَالَ کَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم معمول په اخیره زمانه د عُمر شریف کښې دا وو چه کله به د مجلس نه پاسیدلو

يَقُولُ بِأَخِرَةٍ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَقُومَ مِنَ الْمَجْلِسِ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّكَ لَتَقُولُ قَوْلًا مَا كُنْتَ تَقُولُهُ فِيمَا مَضَى قَالَ كَفَّارَةٌ لِمَا يَكُونُ فِي الْمَجْلِسِ.

(رواه ابن ابی شیبة وابو داؤد والنسائی والحاکم)

سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ به يې ويل. چا عرض اوکړو، اے د الله رسوله، نن صبا ستاسو دعا ستاسو معمول دے، رومبے خو دا معمول نه وو. نبی اکرم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه دا د مجلس کفاره ده. بل روايت کښې هم دا قصه ذکر ده چه - په هغې کښې د نبی اکرم ﷺ دا ارشاد نقل دے چه دا کلمے د مجلس کفاره دی حضرت جبرئيل علیه السلام ما ته خودلے دی.

(وله شواهد ذکرها فی الدر وفيه ايضا برواية ابن ابی شيبة عن ابی العالية بزيادة علمنيهن جبرئيل)

**فائده:** - حضرت عائشه رضی الله عنها نه هم نقل کړے شوی دی چه نبی اکرم ﷺ چه به کله د مجلس نه پاسيدلو، سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ رَبِّي وَبِحَمْدِكَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ به يې ويل. ما عرض اوکړو چه تاسو دا دعا ډيره زيات وائي. ارشاد يې اوفرمائيلو چه څوک د مجلس په ختم دا اووائي، نو هغه مجلس کښې چه کوم غلطی ورځنه شوے وی هغه ټولے به معاف شی. مجلسونو کښې عموماً فضول خبرے بيکاره تذکرے خامخا کيږی. څومره مختصره دعا ده که چرے څوک دعا کا نو نه هره يوه دعا اووائي نو د مجلس د عذاب نه خلاصے موندلے شی. الله جل شانه څنګه اسانی راکړی دی.

(١٤) عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ الَّذِينَ يَذْكُرُونَ مِنْ جَلَالِ اللّٰهِ مِنْ تَسْبِيحِهِ وَتَحْمِيدِهِ وَتَكْبِيرِهِ وَتَهْلِيلِهِ يَتَعَاطَفْنَ حَوْلَ الْعَرْشِ لَهُنَّ دَوِيٌّ كَدَوِيِّ النَّحْلِ يُذَكِّرْنَ بِصَاحِبِهِنَّ أَلَا يُحِبُّ

د نبی اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه کوم خلق د الله تعالیٰ لوئی بيانوی يعنی سُبْحَانَ اللّٰهِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ اللّٰهُ أَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وائي، نو دا کلمے د عرش څلور واړه طرف ته ګشت کوی چه دوی د پاره داسے روغونده آواز د ګبو د مچو آواز په شان وی او د خپل وئيونکو تذکره کوی، نو ايا تاسو دا نه غواړئ چه څوک ستاسو تذکره کوی

| اللہ تعالیٰ څخه موجود وی چه ستاسو ذکرِ خیر کوی۔ | أَحَدُكُمْ أَنْ لَا يَزَالَ لَهُ عِنْدَ اللّٰهِ شَيْءٌ يَتَذَكَّرُ بِهِ۔ |
| --- | --- |

(رواه احمد والحاكم وقال صحيح الاسناد وقال الذهبي موسٰى بن سالم قال ابو حاتم منكر الحديث ولفظ الحاكم كذا في النحل اليقين الصالحين واخرجه بسند آخر وصححه على شرط مسلم واقره عليه الذهبي وفيه كمعنى انحل يذكرون بصالحين)

**فائده:-** کوم خلق چه حاکمانو ته خان رسوی، کرسی نشین بللے شی خوله دد هغوی نه تپوس اوکړی چه بادشاه ته، وزیر ته، والسرائے هم پرېږده، دچا گورنر سره د ده تعریف او ذکرِ خیر راشی، دخوشالئ نه به په جامو کښ نه ځائیږی دماغ به یې اسمان ته اورسی، حال دا چه په دے تذکره نه څه د دین فائده شته نه د دُنیا. د دین فائده نه کیدل خو ښکاره ده- او د دُنیا فائده نه کیدل په دے وجه چه شاید څومره فائده د دے قسمه تذکرو نه وی، د دے نه زیات نقصان د دے قسمه مرتبے او تذکرے حاصلولو کښ رسی- چاته ادخر خوړلے شی، سُودی قرضه اخلی- نو هغه د دا سے مرتبو حاصلولو کوشش کوُلے شی- د مفتو دُشمنئ اخلی، او د هر قسمه ذِلتونه برداشت کوُلے شی۔ د اِلیکشنونو حالت دټولو مخکښ دے چه څه څه کوُلے شی۔ د دے په مُقابل د اللہ تعالیٰ په عرش تذکره، د مَالِكُ الْمُلْك په حضور کښ تذکره، د هغه پاك ذات څخه تذکره چه دچا په قبضه کښ د دین او د دُنیا او د ټولو جهانونو هر یو څیز دے، د هغه قدرت دخاوند څخه تذکره دچا په قبضه کښ چه د بادشاهانو زړونه دی، د حاکمانو اختیارات د هغه په اختیار کښ دی، د نفع او د نقصان مالِك هم هغه دے- د ټول جهان ټول بنیادم حاکم او محکوم، بادشاه او رعیت که چاته نقصان رسوُل غواړی، او هغه ذات مَالِكُ الْمُلْك نه غواړی نو هیڅوك ورته نقصان نشی رسوُلے- ټول مخلوق چاته نفع رسوُل غواړی او د هغه رضا نه وی نو یو څاڅکے د اوبو پرے نشی څښکوُلے۔ د اسے پاك ذات څخه خپل ذکرِ خیر اوشی- کوم دولت د دُنیا د دے مقابله کوُلے شی؟ کوم عزت د دُنیا خواه څومره لوئ شی د دے برابری کوُلے شی؟ تا هیڅ کله نا- د دے په مقابله کښ د دُنیا څه عزت که چرے مُحبّت وګڼړلے شی نو ایا خپل ځان باندے ظلم نه دے؟

(۱۹) عَنْ يُسَيْرَةَ رضي الله عنها وَكَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ قَالَتْ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم عَلَيْكُنَّ بِالتَّسْبِيْحِ وَالتَّهْلِيْلِ وَالتَّقْدِيْسِ وَاعْقِدْنَ بِالْاَنَامِلِ فَاِنَّهُنَّ مَسْئُوْلَاتٌ مُسْتَنْطَقَاتٌ وَلَا تَغْفُلْنَ فَتَنْسَيْنَ الرَّحْمَةَ۔

حضرت یُسَیْرَہ رضي الله عنها کومه چه د هجرت کوونکی صحابیاتو نه ده، فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمائیلو چه په خپل ځان باندے تسبیح (سُبْحَانَ اللّٰهِ وئیل) او تهلیل (لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وئیل) او تقدیس (د الله تعالیٰ پاکی بیانول مثلاً سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ یا سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلٰٓئِكَةِ وَالرُّوْحِ وئیل) لازم کړه۔ او په گوتو شمیر کوه ځکه چه د گوتو نه به قیامت کښې سوال کولے شی او د هغې نه به جواب طلب کولے شی چه څه عمل د اُوکړو، وجواب کښې به د دوئ طاقت ورکړے شی۔ او د الله تعالیٰ د ذکر نه غفلت مه کوه (که چرے دا سے اُوکړے نو د الله تعالیٰ د رحمت نه به محرومه کړے شے۔

(رواه الترمذي وابوداؤد كذا في المشكوة وفي المنهل اخرجه ايضا احمد والحاكم اهـ وقال الذهبي في تلخيصه صحيح وكذا رقم له بالصحة في الجامع الصغير وبسط صاحب الاتحاف في تخريجه وقال وفي الباب عن عمرو رايت رسول الله صلى الله عليه وسلم يعقد التسبيح رواه ابوداؤد والنسائي والترمذي وحسنه والحاكم كذا في الاتحاف وبسط في تخريجه ثم قال قال الحافظ معنى العقد المذكور في الحديث احصاء العدد وهو اصطلاح العرب بوضع بعض الانامل على بعض عقد انملة اخرى فالاحاد والعشرات باليمين والمئون والآلاف باليسار اهـ)

**فائده:-** قیامت کښې به د بندهٔ د بدن نه د هغهٔ د لاس خپو نه هم سوال کیږی چه د بدن هر یو حصے څه څه نیک کار کړے دے، او څه څه ناجائزه او بد کار یے کړے دے۔ قرآن پاک کښې گڼو ځایونو کښې د دے ذکر دے۔ یو ځائ ارشاد دے۔ يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ وَاَيْدِيْهِمْ الآية۔ (سورة نور۔ ع ۳) کومه ورځ چه د هغوی خلاف گواهی ورکړی د هغوی ژبے او د هغوی لاسونه او خپے، د هغه کارونو (متعلق) کوم چه به دوی کول۔ بل ځائ ارشاد دے وَيَوْمَ يُحْشَرُ اَعْدَآءُ اللّٰهِ اِلَى النَّارِ الآية۔ (سورة حم سجده۔ ع ۳) دے ځائ کښې څو ایتونو کښې د دے ذکر دے چه د هغې ترجمه دا ده۔ چه په کومه ورځ (حشر کښې) د الله تعالیٰ دشمنان به دوزخ طرف ته جمع کړے شی، بیا به هغوی یو ځائ ایسار کړے شی۔ بیا به تول په جمع د دغے دوزخ ته نزدے راشی،

نو د هغوی غوږونه او د هغوی سترګې د هغوی څرمنې به په هغوی ګواهي ورکوي (او اوبه ښائي چه څومونږ په ذریعه دے کښ څه څه ګناهونه کړي دي) دغه وخت به دغه خلق (په حیرانتیا سره) هغوی ته اووائي چه تاسو څومونږ خلاف ولے ګواهي ورکړه؟ (مونږ خو دنیا کښ ستاسو مزے او د راحت دپاره ګناهونه کول) هغوی به جواب ورکړي چه مونږ ته هغه پاک الله ګویائی (د وینا طاقت) راکړو چا چه ټولو څیزونو ته ګویائی ورکړے ده. هم هغه تاسو اول پیدا کړي یئ. او هم هغه ته اوس تاسو واپس کړے شوي یئ. حدیثونو کښ دے ګواهئ کنړو اقسام ذکر کړے شوي دي.

یو حدیث کښ راغلي دي چه د قیامت په ورځ به کافر سړه تړے چه خپله بد عملي به پیژني، بیا به هم انکار اوکړي چه ما ګناه نه ده کړے. هغه ته به اوویلے شي چه دا ستا ګاونډیان په تا ګواهي کوي. هغه به اووائي چه دا خلق د دشمنۍ په وجه دروغ وائي. بیا به ورته اوویلے شي چه ستا خپل خپلوان ګواهي کوي، هغه به دوي ته هم دروغژن اووائي. نو د هغوی الله امونه به ګواه جوړ کړے شي. یو حدیث کښ دي چه د ټولو نه به رومبے پتون ګواهي ورکړي چه څه څه بد عملي په دے سره کړے شوے وے. یو حدیث کښ دي چه په پل صراط اخري تیریدونکے به داسے په غورزیدو او راغورزیدو تیریږي څنګه چه بچے چه کله پلار وهي، او هغه کله دیخوا پریوزي او کله اخوا. فرښتے به هغه ته اووائي چه ښه ده، که چرے ته تیغ لاړشے په پل صراط تیر شے، نو خپل ټول عملونه به اوښائیے؟ هغه به ددے وعده اوکړي چه خما د الله تعالی په عزت قسم دي چه زه به ستاسو ته به ټول ښایم او هیڅ به نه پټوم. ورته به اوویلے شي چه ښه ده نیغ اودریږه او روان شه. هغه به په اسانتیا په پل صراط تیر شي. او بیا به ورته پس به د هغه نه تپوس اوکړي چه ښه ده اوس اوښایه. هغه به سوچ اوکړي، که چرے ما اقرار اوکړه نو هسے نه چه واپس کړے شم. په دے وجه به صفا انکار اوکړي چه ما هیڅ بد عمل نه دے کړے. فرښتے به اووائي چه ښه ده، که چرے مونږ ګواه پیش کړو؟ نو دے به اخوا دیخوا اوګوري چه هیڅ څوک ورځنه نشته. خیال به اوکړي چه اوس

په گواه د کومے نه راځی، نو هغوی خپلو خپلو ځایونو ته رسیدلی دی. په دے وجه به اُورانی چه بنده راؤله گواه. نو دده الله اَمونو ته په حکم اُوکړے شی او هغوی به دیل شروع کړی. نو مجبوراً به دے اقرار اُوکړی، او اُوبه وائی چه بیشکه ما دِیر هلاکونکے گناهونه پاتے دی. نو ارشاد به اُوشی چه ټه دِه مونږ اُو بخښلے.

خُلاصه دا چه دے وجوهاتو په بناء ضرورت دے چه دبنیادم دا نيک اَمونو ته نیک کارونه هم شوی وی، د پاره دے چه دد وا ړو قسمونو گواهان موجود وی. حُکم نبی اکرم ﷺ دے پورتنی حدیث کښې په گوتو د شمیر کولو حُکم فرمایلے دے. هم په دے وجه بل حدیث کښې جُمات ته په کثرت سره د تلو راتلو حُکم دے چه د قدم نښے به هم گواهی ورکوی او دهغے ثواب به لیکلے شی. څومره خوش قسمته دی هغه خلق په چا چه دبدئ گواه هیڅوک نه وی چه گناه یے اُوکړے نه وی یا په توبه وغیره سره مُعاف شوے وی. او د نیکئ گواهان په سَوونو زرگونو وی، چه دهغے د تولو نه اسانه طریقه دا ده چه کله څه گناه اُوشی، زر په توبه سره هغه ورانه کړی. چه بیا هغه کالعدم (پیښان دنیشت) شی. څنګه چه د دویم باب دریم فصل کښې د حدیث نمبر دے دیرش د لاندے تیر شوی دی. او نیکو عملونو کښې باقی پاتے شی چه دهغے گواه هم موجود وی او په گوتو گوتو الله اَمونو یے دا نیک عملونه کړی وی، هغه تول گواهی ورکړی. کثیرو حدیثونو کښې په خپله د نبی اکرم ﷺ په گوتو شمیرل په مختلفو الفاظو سره نقل کړے شوی دی. حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه فرمائی چه نبی اکرم ﷺ به په گوتو تسبیح شمیرل. دِے نه پس پورتنی حدیث کښې د الله تعالیٰ د ذکر نه غفلت باندے د الله تعالیٰ د رحمت نه محرومیدلو وعید یعنی سزا ده. دا دے نه معلومیږی چه څوک د الله تعالیٰ د ذکر نه محرومه دی، هغوی د الله تعالیٰ د رحمت نه محرومه دی. قرآنِ پاک کښې ارشاد دے چه تاسو ما یادوئ زۀ به (رحمت سره) تاسو یادوم. الله جل شانهٔ خپل یاد د بندګانو په یاد مرتب کړے دے. قرآنِ پاک کښې ارشاد دے، وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ ۝ وَاِنَّهُمْ لَيَصُدُّوْنَهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ۝ (زخرف - ع ۴) او چا څوک د

الله تعالیٰ د ذکرنه (خوا دخهٔ قِسمه وی، قرآن پاك وی یاد څهٔ دبل قسمه تفصلا) خان روند کړی مونږ په هغهٔ یو شیطان مُقرر وُو. پس هغه شیطان هر وخت دهٔ سره وی او هغه شیطان خپلو ملګرو سره یو ځائی شی او په جمع هغه خلق ګرم چه د الله تعالیٰ د ذکرنه راندهٔ شوی وُو، د نیغ الارے نه لرے کوی او دا خلق خیال کوی چه مونږ په هدایت باندے یو۔

حدیث کښ دی چه هر یو کس سره یو شیطان مُقرر دے، کافر سره خو هر وخت شریك حال وی، خوراك، څکاك او اوده کیدو کښ هم. خو د مؤمن نه لږ لرے اوسی، او هر وخت په انتظار کښ وی. کله چه دے لږ غافل بیا مومی، زر پرے حمله کوی. بل ځائی ارشاد دے. یَاأَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ وَلَا اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللهِ اِلٰی اٰخرالسورة (سورة منافقون. ع۲) اے ایما ندارو! تاسو د ستاسو مالونه او اولاد (او دغه رنګے نور څیزونه) د الله تعالیٰ دیاد نه غافله نه کړی. او کوم خلق چه دا سے اُوکړی، هم هغوی نقصان والا دی. او مونږ چه کوم څهٔ (مال دولت) درکړے دے د هغے نه (د الله تعالیٰ په لاره کښ) د مے نه ګوراندے وُراندے خرچ کوئی چه تا سو کښ د چا مرګ راشی. او بیا (د حسرت او افسوس نه) وائیی چه اے ځما پروردګاره! ما ته د څو ورځے نور مُهلت ولے را نکړه چه ما خیرات کړے وے، او نیکو بندګانو کښ شمار شوے وے. او الله تعالیٰ هیچا ته هم د مرګ وخت راتلو نه پس مُهلت نهٔ ورکوی، او الله تعالیٰ ستاسو د ټولو عملونو نه پوره پوره خبر دے (څنګه چه کوی بنهٔ یا بد هُم هغے به بیا مومی.) د الله تعالیٰ دا سے بندګان هم شته چه هغوی هیڅ وخت هم نهٔ غافله کیږی.

حضرت شِبلی رحمة الله علیه فرمائی چه ما یو ځائی اُولیدهٔ چه یو مجنون (لیونی) سړے. هلکان پسے په لوټو اُولی. ما ترے هغوی اُوشړل. هغه هلکانو ما ته اووئیل چه دا سړے وائی چه ځهٔ الله وینم. ځهٔ د هغهٔ خوا ته ورغلم، نو هغهٔ څهٔ وئیل. ما په غور سره واؤریدل نو هغه وئیل چه تا ډیره ښهٔ اُوکړه چه دا هلکان د په ما مقرر کړل. ما ورته اُووے چه دا هلکان په تا یو تهمت لګوی. هغه وئیل څهٔ

دانې! ما اُووې دوی دانې چه ته د الله تعالی د لیدلو دعوی کوې. دا یې چه واوریدل نو بیهوشه چغه یې اُوویستله، او دا یې اُووې، شبلی! په هغه ذات مې دې قسم وی چا چه په خپل محبت کښې څه پریشانه حال کړی دی یم او خپل وصال او فراق کښې یې څه هوانې کړې یم. که چرې لږ ساعت هم هغه ما نه غائب شی (یعنی حضوری راته حاصله نه شی) نو څه به د جدائی د دَرده ټکړې ټکړې شم. دا یې اُووې ما نه یې مخ واړوو، دا شعر یې اُووې او منډې یې کړې ؎

خِيَالُكَ فِيْ عَيْنِيْ وَذِكْرُكَ فِيْ فَمِيْ + وَمَثْوَاكَ فِيْ قَلْبِيْ فَأَيْنَ تَغِيْبُ

"ستا صورت ځما په نظر کښې دے او ستا ذکر ځما په ژبه هر وخت جاری وی ستا ځائ ځما زړه دے. پس ته څنګه غائب کیدے شې؟"

حضرت جُنَيْد بغدادی رحمة الله علیه چه کله وفات کیده، نو چا ورته د کلمه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ تلقین اُوکړو. وې فرمایل چه ما هیڅ وخت هم هغه نه دے هیر کړے (یعنی یاد خو هغه چا ته کوه چا ته چه څه وخت غفلت شوے وی.)

حضرت مَمْشَاد دِيْنَوَرِي رحمة الله علیه مشهور بزرګ دے، کله چه وفات کیدلو نو وړځنه ناستو کسانو کښې چا دعا اُوکړه، الله تعالی دې تا ته (د جنت) فلانے فلانے دولت درکړی، نو وې خندل، وې فرمایل چه د دیرشو کالو نه جنت ټول ساز و سامان سره ما ته مخکښې ښکاره کیدلو، ما یو وارے هم د الله جل شانه طرف نه توجه نه سِوا) اَخوا توجه نه ده کړے.

حضرت رُوَيْم رحمة الله علیه ته د وفات په وخت چا د کلمے تلقین اُوکړه نو وې فرمایل چه څه د هغه نه غیر په بنه شان اَوو پیژنم نه.

احمد بن خضرویه رحمة الله علیه د وفات وخت ؤو. چا ترے د څه خبرې تپوس اُوکړه، د سترګو نه یې اُوښکے روانے شوے، وې ویل، پنځه کم سلو کالو نه یوه دروازه ټکوم. هغه اُوس لرے کیږی، ما ته معلومه نه ده چه هغه په نیک بختئ سره بدلیږی یا په بد بختئ سره. ما ته دا وخت د خبرو فرصت چرته دے.

⑲ وَعَنْ جُوَيْرِيَةَ رضي الله عنها | د مؤمنانو مور حضرت جُوَيْرِيَه رضي الله عنها فرمائی چه

أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا بُكْرَةً حِيْنَ صَلَّى الصُّبْحَ وَهِيَ فِي مَسْجِدِهَا ثُمَّ رَجَعَ بَعْدَ أَنْ أَضْحٰى وَهِيَ جَالِسَةٌ قَالَ مَا زِلْتِ عَلَى الْحَالِ الَّتِي فَارَقْتُكِ عَلَيْهَا قَالَتْ نَعَمْ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ لَقَدْ قُلْتُ بَعْدَكِ أَرْبَعَ كَلِمَاتٍ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ لَوْ وُزِنَتْ بِمَا قُلْتِ مُنْذُ الْيَوْمِ لَوَزَنَتْهُنَّ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ عَدَدَ خَلْقِهٖ وَرِضَا نَفْسِهٖ وَزِنَةَ عَرْشِهٖ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهٖ۔

نبی اکرم ﷺ د سحر د مانځه په وخت ځما د کوره د مانځه د پاره تشریف یوړه ، او دا په خپله مُصَلّٰی ناسته وه (تسبیح کښی مشغوله وه) نبی اکرم ﷺ د څاښت مانځه نه پس (غرمے ته نزدے) تشریف راوړه ، نو دا هم په هغه ځای ناسته وه ـ نبی اکرم ﷺ تربے پوښتنه اوکړه ته هم په هغه حال یے ، په کوم چه ما پریخودے وے ؟ عرض یے اوکړه ، آو جی ـ نبی اکرم ﷺ اوفرمایل ، ځهٔ چه لګا نه جدا شوے یم ، څلور کلمے مے درے وارے ویلی دی ، که چرے هغه ستا د دے ټولو په مقابله کښی اوتللے شی کومے چه تا د سحر نه ویلی دی نو هغه به غالبے شی ، هغه کلمے دا دی ـ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ عَدَدَ خَلْقِهٖ وَرِضَا نَفْسِهٖ وَزِنَةَ عَرْشِهٖ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهٖ (د الله تعالیٰ تسبیح کوم ، او د هغه تعریف کوم په اندازه د هغه د مخلوقاتو د شمیرے او په اندازه د هغه د رضا او د خوشالئ او په اندازه د وزن د هغه د عرش او د هغه د کلمو په مقدار ـ)

(رواه مسلم كذا في المشكوة قال القاري ورواه اصحاب السنن الاربعة وفي الباب عن صفية قالت دخل علي رسول الله ﷺ وبين يدي اربعة آلاف نواة أسبح بهن الحديث اخرجه الحاكم وقال الذهبي صحيح)

وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رضي الله عنه أَنَّهٗ دَخَلَ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ عَلَى امْرَأَةٍ وَبَيْنَ يَدَيْهَا نَوًى أَوْ حَصًى تُسَبِّحُ بِهٖ فَقَالَ أَلَا أُخْبِرُكِ بِمَا هُوَ أَيْسَرُ عَلَيْكِ مِنْ هٰذَا أَوْ أَفْضَلُ سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي السَّمَآءِ وَسُبْحَانَ

بل حدیث کښی دی چه حضرت سعد رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ سره یو صحابیه زنانه کره تشریف یوړه ، د هغے مخکښی د کهجورو هډوکی یا ګټکی پراته وو چه په هغے یے تسبیح ویله ـ نبی اکرم ﷺ اوفرمایل ځهٔ تا ته داسے څیز اوښایم چه د دے نه آسان دی (یعنی په کچه کو د څیزونه اسان دی) یا به دا ارشاد اوفرمایه چه) د دے نه افضل

اللّٰهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي الْأَرْضِ وَ سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا بَيْنَ ذٰلِكَ وَسُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا هُوَ خَالِقٌ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ مِثْلَ ذٰلِكَ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ مِثْلَ ذٰلِكَ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مِثْلَ ذٰلِكَ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ مِثْلَ ذٰلِكَ۔

(رواه ابوداود والترمذی وقال الترمذی حدیث غریب کذا فی المشکوٰة قال القاری وفی نسخة حسن غریب آه وفی المنهل

وی سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ اخره پورے۔ د الله تعالیٰ تعریف کوم په اندازه د هغې مخلوق کوم یے چه اسمان کښې پیدا کړے دے، او په اندازه د هغې مخلوق کوم یے چه زمکه کښې پیدا کړے دے، او په اندازے د هغې مخلوق کوم چه د دے دواړو په مینځ کښې دے یعنی د اسمان او زمکے تر مینځه دے۔ او د الله تعالیٰ پاکی بیانوم په اندازے د هغې د کوم چه هغه پیدا کونکے دے او د هغې په تولو برابر اَللّٰهُ اَکْبَرُ او د هغې په برابری اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ او د هغې په شان لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔

اخرجه ایضًا النسائی وابن ماجة وابن حبان والحاکم والترمذی وقال حسن غریب من هذا الوجه کذا قلت ورمز له السیوطی بالحسن۔)

**فائده:** ملا علی قاری رحمة الله علیه لیکلی دی چه په دے کیفیا تو سره د تسبیح بهتر والی مطلب دا دے چه د دے الفاظو ذکر کولو سره هغه کیفیاتو او صفاتو طرف ته ذهن متوجه شی۔ او دا ښکاره ده چه څومره تدبر په تسبیح (سمجهولو سره) او غور و فکر زیات وی، هومره به ذکر افضل وی۔ په دے وجه قرآنِ پاک کوم چه په تدبر سره اولوستلے شی، هغه لږ هم ډیر غوره دے هم د هغې تلاوت نه ډیر زیات افضل او غوره دے کوم چه بغیر تدبر کړے وی۔ او بعض علماؤ ویلی دی چه افضلیت په دے حیثیت سره دے چه په دے کښې د الله تعالیٰ د حمد و ثناء د شمیر نه د عاجزی اظهار دے کوم چه کمال دے د عبدیت۔ هم په دے وجه د بعض صوفیانو نه نقل کړے شوے ده، هغوی وائی چه ګناه خو بے حسابه او بے شماره کوو او د الله تعالیٰ پاکی توم په شمیر لو وایو۔ د دے مطلب دا نه دے چه شمیرل ته دی بیکار، که چیرے داسے وے، نو بیا حدیثونو کښې به په کثرت خاص خاص وختونو کښې به شمیر دے خودلو۔ حال دا چه ډیرو حدیثونو کښې خاص خاص مقدار یا ته د خاص خاص وعدے فرمائیلے شوے دی۔ بلکه د دے

مطلب دا دے چه صرف په شمیر صبرنه دی کول پکار۔ بلکه کومه وظیفه چه خاص وخت کښ مقرره ده د هغے د پوره کولو نه علاوه خالی وختونو کښ هم خومره چه درنه کیږی دے شی بے شماره د الله تعالیٰ ذکر کښ مشغولیدل پکار دی۔ چه دا اسے لوئی دولت دے چه د شمیر د پابندوا و د دے دحدونو نه بالاتر دے۔ د دے حدیثونو نه د تسبو یعنی په تار کښ د پیئیلو شوو دانو جائز کیدل ثابتیږی۔ بعضو خلقو ورته بدعت (د سنت خلاف) ویلی دی۔ خو دا صحیح نه ده۔ هر کله چه اصل (بنیاد) یے ثابت دے۔ نبی اکرم ﷺ په گټکو او ردکهجورو، په هډوکو شمیرل اولیدل او انکار یے پرے اونه کړه، نو بیا اصل یے ثابت شو، په تار کښ د پیئیلے شوو او نه پیئیلے شوو کښ هیڅ فرق نشته۔ په دے وجه بتول بزرگانو او فقهاو (عالمانو) د دے استعمال کوی۔ مولنا عبد الحی صاحب رحمة الله علیه په مستقل رساله نزهة الفکر د دے باره کښ لیکلے ده۔ ملا علی قاری رحمة الله علیه فرمائی چه دا حدیث صحیح دلیل دے د تسبو متعارف جائز کیدلو باره کښ ځکه چه نبی اکرم ﷺ په گټکو یا دکهجورو په هډوکو شمیره اولیدله او انکار یے پرے اونکړه، دا شرعی دلیل شو۔ اوبیا د نښتلے دانے یا پیئیلے شوو کښ هیڅ فرق نشته دے په دے وجه کوم خلق چه دے تسبه بدعت وائی دهغوی و بنا د اعتماد قابله نه ده۔ ویلے شی چه د صوفیانو په اصطلاح کښ تسبو ته د شیطان کروړه وائی۔ د حضرت جنید بغدادی رحمة الله علیه په لاس کښ چا په دا سے وخت کښ تسبے اولیدلے چه هغه د کمال درجو ته رسیدلے وو۔ نو د هغه نه یے دے باره کښ تپوس اوکړه۔ دے فرمایل چه د کوم څیز په ذریعه مونږ الله تعالیٰ ته رسیدلی یو، هغه څنګه پریږدو۔ ډیرو صحابو رضی الله عنهم نه دا نقل کړے شوے ده چه هغوی سره به دکهجورو هډوکی یا گټکی وو او هغوی به پرے به شمیر تسبیح ویله۔ لکه ابو صفیه رضی الله عنه صحابی نه نقل کړے شوی دی چه هغه به په گټکو شمیر کولو۔ د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه د کهجورو هډوکی او گټکی دواړه نقل کړے شوی دی۔ د حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه هم په گټکو ویل نقل کړے شوی دی۔ مرقاة کښ لیکلی دی چه حضرت ابو هریره رضی الله عنه سره به یو مزے وو چه په هغے کښ غوټے لګیدلے وے، په هغے به یے د تسبیحاتو

شمیر کړ الو. او ابو داؤد شریف کښې دی چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه یو تهیلۍ وه چه هغه به د کهجورو دهړوکو یاد ګچکونه ډکه وه، په هغه به یې تسبیح کوله او کله چه به هغه تهیلۍ خالي شوه نو یوه وینزه وه هغه به ډکه کړه او بیا به یې هغه سره کینوده. د خالي کیدو مطلب دا دے چه هغه به د تهیلۍ نه را ایستلې، او بهر به یې ایښودلې، او کله چه به هغه خالي شوه نو ټولې دانې به هغه وینزې راغونډې کړې او هغه تهیلۍ به یې ترې ډکه کړه. حضرت ابو الدَّرداء رضی الله عنه نه هم دا نقل کړے شوے ده چه هغه سره یوه تهیلۍ کښې د عَجْوَه (کهجور دهړوکې) به جمع وُو. د سحر مونځ چه به یې اُوکړو، هغه تهیلۍ به یې را واخستله کیبه نا ستو، تر هغې وخته پورے به نا ست وُو، تسبیح به یې ویلې چه هغه به خالي شوه. حضرت ابو صفیه رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم غلام وو، د هغه مخکښې به یوه څرمنه غوړیدلې وه، په هغې به کټکې پراته وُو، او د سحر نه د زوال تر وخته پورے به یې په هغې وظیفه کوله. کله چه به د زوال وخت شو، نو هغه څرمنه به اُوچته کړے شوه. د دے به خپلو ضروریاتو کښې مشغول شو. د ماسپخین د مانځه نه پس به بیا هغه غوړولے شوه، او ماښامه پورے به یې پرے وظیفه کوله. د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نوسے نقل کوی چه نیکه ئې یو مزے وو چه په هغې کښې د وه زره غوټے لګیدلې وے، تر هغې وخته پورے به نه اُوده کیده تر څو چه به یې یو وارے په هغې تسبیح اُونه ویلې. د حضرت امام حسین رضی الله عنه لور حضرت فاطمه (صغرٰی) رضی الله عنها نه هم دا نقل کړے شوی دی چه هغې څخه یو مزے وو چه په هغې کښې غوټے لګیدلې وے، په هغې به یې تسبیح ویلې. د صوفیانو په اصطلاح کښې د تسپو نوم مُذَکِّره (وریادونکے) هم دے. په دے وجه چه کله دا په لاس کښې وی، نو خامخا ویل پرے زړه غواړی. په دے وجه ګویا دا الله تعالیٰ نوم وریادونکی دی. د دے باره کښې یو حدیث هم نقل کړے شی چه د حضرت علی رضی الله عنه نه نقل کړے شوے دے چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایه چه تسپے څنګه ښه مُذَکِّره (وریادونکے) څیز دے. د دے باب کښې یو مُسلسل حدیث حضرت مولانا عبدالحی صاحب رحمة الله علیه نقل کړے دے چه د هغې مطلب دا دے

[1] د حضرت امام حسین رض د دوو لونو نوم هم فاطمه وو، لوئې هغه ته فاطمة الکبرٰی ویلې شی او لوړې نومې هم فاطمه وه خو هغې ته فاطمة الصغرٰی ویلې شی ۱۲م.

چه د مولنا نه وا خلے پورته پورے هر یو اُستاد خپل شاگرد ته تسپے ورکړے دی او د هغے د ویلو اجازت یے هم ورکړے دے. آخیر کښې د حضرت جُنید بغدادی شاگرد پورے دا سلسله رسی. هغه وائی چه ما د خپل اُستاد حضرت جُنید رحمة الله علیه په لاس کښې تسپے اُولیدے، نو ما ورته اُووے چه تاسو دومره اُوچتے مرتبے سره هم تسپے په لاس کښې ساتئ؟ هغه اُوفرمایل چه ما د خپل اُستاد سِرّی سَقَطِی رحمة الله علیه په لاس کښې لیدلے وے نو د هغه نه م هم دا سوال کړے وو، کوم چه تا اُوکړه. هغه اُوفرمایل چه ما هم د خپل اُستاد حضرت معروف کرخی رحمة الله علیه په لاس کښې تسپے لیدلے وے نو هم دا سوال م ترے کړے وو. هغه فرمایلی وو چه ما د خپل اُستاد حضرت بِشرِ حافی رحمة الله علیه په لاس کښې لیدلے وے نو هم دا سوال م ترے کړے وو، هغه اُوفرمایل چه ما د خپل اُستاد حضرت عُمَر مَکّی رحمة الله علیه په لاس کښې تسپے لیدلے وے نو هم دا سوال م ترے کړے وو. هغه فرمایلی وو چه ما د خپل اُستاد حَسَن بَصری رحمة الله علیه (چه د ټولے سلسلهٔ چشتیه د بزرگانو مشر دے) په لاس کښې تسپے لیدلے وے، نو ورته م عرض کړے وو چه ستا د دے اُوچت شان او لوئی مرتبے سره هم تر اُوسه پورے تسپے ستا په لاس کښې دی. نو هغه اُوفرمایل چه مونږ د تصوف په شروع کښې د دے نه کار اخستلے وو او د دے په ذریعه مو ترقی حاصله کړے وه، نو د ا مو زړه نه غواړی چه اُوس په آخیر کښې دا پریږدُو. زه غواړم چه په خپل زړه، ژبه، لاس سره هر قسمه د الله تعالیٰ ذکر اُوکړم. په محدثینو کښې د دے کلام (خبرے) هم کړے شوی دی.

(۲۰) عَنْ ابْنِ اَعْبُدٍ قَالَ قَالَ عَلِيٌّ رضی الله عنه اَلَا اُحَدِّثُكَ عَنِّيْ وَ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ رَسُوْلِ اللهِ صلی الله علیه وسلم وَكَانَتْ مِنْ اَحَبِّ اَهْلِهٖ اِلَيْهِ قُلْتُ بَلٰى قَالَ اِنَّهَا جَرَّتْ بِالرَّحٰى حَتّٰى اَثَّرَ فِيْ يَدِهَا وَ اسْتَقَتْ بِالْقِرْبَةِ حَتّٰى اَثَّرَ فِيْ

حضرت علی رضی الله عنه خپل یو شاگرد ته اُوفرمایل چه زه تا ته خپل او د خپلے بی بی د فاطمے رضی الله عنها چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم لور او د ټول کور په خلقو کښې زیاته پیاریه وه قصه اُونه کړم؟ هغه عرض اُوکړه، ضرور اُوکړئ. ورته فرمایل چه هغه به په خپله میچنه گرځوله، چه په هغے سره یے په لاس نو پُولئی راختلے وے. او په خپله به یے

نَحْرِهَا وَكَنَسَتِ الْبَيْتَ حَتّٰى
اغْبَرَّتْ ثِيَابُهَا فَاَتَى النَّبِيَّ
صلى الله عليه وسلم خَدَمٌ فَقُلْتُ لَوْ اَتَيْتِ
اَبَاكِ فَسَاَلْتِيْهِ خَادِمًا فَاَتَتْهُ
فَوَجَدَتْ عِنْدَهُ حُدَّاثًا فَرَجَعَتْ
فَاَتَاهَا مِنَ الْغَدِ فَقَالَ مَا كَانَ
حَاجَتُكِ فَسَكَتَتْ فَقُلْتُ اَنَا
اُحَدِّثُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جَرَّتْ
بِالرَّحٰى حَتّٰى اَثَّرَتْ فِيْ يَدِهَا
وَحَمَلَتْ بِالْقِرْبَةِ حَتّٰى اَثَّرَتْ
فِيْ نَحْرِهَا فَلَمَّا اَنْ جَاءَكَ الْخَدَمُ
اَمَرْتُهَا اَنْ تَاْتِيَكَ فَتَسْتَخْدِمَكَ
خَادِمًا يَقِيْهَا حَرَّ مَا هِيَ فِيْهِ
قَالَ اتَّقِي اللّٰهَ يَا فَاطِمَةُ وَاَدِّيْ
فَرِيْضَةَ رَبِّكِ وَاعْمَلِيْ عَمَلَ
اَهْلِكِ فَاِذَا اَخَذْتِ مَضْجَعَكِ
فَسَبِّحِيْ ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ وَاحْمَدِيْ
ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ وَكَبِّرِيْ اَرْبَعًا وَّ
ثَلٰثِيْنَ فَتِلْكَ مِائَةٌ فَهِيَ خَيْرٌ
لَّكِ مِنْ خَادِمٍ قَالَتْ رَضِيْتُ
عَنِ اللّٰهِ وَعَنْ رَّسُوْلِهٖ اخرجه
ابوداؤد، وفي الباب
عن الْفَضْلِ بْنِ الْحَسَنِ الضَّمْرِيِّ
اَنَّ اُمَّ الْحَكَمِ اَوْ ضُبَاعَةَ ابْنَتَيِ
الزُّبَيْرِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ حَدَّثَتْهُ

دا اوبو مشک ورله راوړلو چه په هغې یې په سینه
باندې د رسۍ نښې جوړې شوې وې.
په خپله یې جارو وهله چه د هغې په وجه به
یې جامې خیرنې وې. یو ځل د نبی اکرم
ﷺ خدمت کښې څه وینزې غلامان راغلل
ما حضرت فاطمې ته اووې. که چرې ته د خپل
پلار خدمت کښې لاړه شې یو خادم ترې اوغواړه
نو ستا به وړې اسانی پیدا شي. هغه لاړله. د نبی کریم
ﷺ خدمت کښې خلقو ګڼړه وه نو واپس
راغله. نبی اکرم ﷺ دویم ورځ په خپله موږ
کره تشریف راوړو، او وې فرمایل چه تا
پرون څه کار له راغلې وې؟ هغه چپ شوه
د حیا نه یې څه اونه وې. ما عرض اوکړو
اے د الله رسوله! په میچنه یې لاس پړولې
شوی دی. د ګډې مشک په وجې یې په سینه
نښې جوړې شوې دی. د جارو وهلو په وجه
یې جامې خیرنې دی. پرون تاسو څخه څه
وینزې غلامان راغلی وو. ما دې ته ویلی وو
که چرې یو خادم اوغواړې نو د مشقتونو
کښې به د رته اسانی اوشي. نبی اکرم ﷺ اوفرمایل
اے فاطمې! د الله تعالیٰ نه ویریږه او د هغه فرض
ادا کوه او د کور کار روبار کوه. او کله چه اوده کیدو
د پاره پریوزې نو سُبْحَانَ اللّٰهِ درې دیرش
ځله، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ درې دیرش ځله، اَللّٰهُ اَکْبَرُ
څلور دیرش ځله وایه، دا کلمې د خادم نه بهترې

عَنْ إِحْدٰهُمَا أَنَّهَا قَالَتْ أَصَابَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ سَبْيًا فَذَهَبْتُ أَنَا وَأُخْتِيْ وَفَاطِمَةُ بِنْتُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَشَكَوْنَا إِلَيْهِ مَا نَحْنُ فِيْهِ وَسَأَلْنَاهُ أَنْ يَأْمُرَ لَنَا بِشَيْءٍ مِنَ السَّبْيِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ سَبَقَكُنَّ يَتَامٰى بَدْرٍ وَلٰكِنْ سَأَدُلُّكُنَّ عَلٰى مَا هُوَ خَيْرٌ لَّكُنَّ مِنْ ذٰلِكَ تُكَبِّرْنَ اللهَ عَلٰى إِثْرِ كُلِّ صَلٰوةٍ ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ تَكْبِيْرَةً وَّثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ تَسْبِيْحَةً وَّثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ تَحْمِيْدَةً وَّلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ. (رواه ابو داود وفي الجامع الصغير برواية ابن منده عن عابس كان يأمر نساءه اذا ارادت احداهن ان تنام ان تحمد الحديث ورقم له بالضعف.)

دی. هغې عرض اوکړو چه څنګه د الله تعالیٰ رپه تقدیر او د هغه د رسول ﷺ په تجویز اسیر
بل حدیث کښې د نبي اکرم ﷺ د تره د دوو لونړو قصه هم د دے قِسمه راغلے ده. هغوی وائي چه مونږ دوه خوینډے او د نبي اکرم ﷺ لور فاطمه رضي الله عنها درے واړه د نبي اکرم ﷺ خدمت کښې حاضرے شُو، او خپل مُشقت او تکلیفونه مو ذکر کړه، یو خادم مو طلب کړه، نبي اکرم ﷺ اوفرمایل چه د خادم ورکولو کښې خو د بدر یتیمان له تاسو نه وړاندے دی. خُه تاسو ته د خادم نه بهتر خیز اوښایم. د هر مانځه پس دا درے واړه کلمے سُبحان الله، اَلحمد لله، الله اکبر درے دیرش، درے دیرش ځلے او یو ځلے لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ وائی، دا د خادم نه بهتر دے.

**فائده:-** نبي اکرم ﷺ به د خپل کور خلقو ته او خپلو خپلوانو ته خصوصًا د دے تسبیحاتو حکم کولو. یو حدیث کښې راغلي دي چه نبي اکرم ﷺ به خپلو بیبیانو ته دا حکم کولو چه کله د اُودۀ کیدو اراده وکړي نو سُبْحَانَ اللهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، اَللهُ اَکْبَرُ هر یو درے دیرش ځله وائي. پورتني حدیث کښې نبي اکرم ﷺ د دُنیا د مشقتونو او تکلیفونو په مُقابله کښې دا تسبیحات اوخودل. د دے ظاهري وجه خو ښکاره ده، چه د مُسلمان د پاره د دُنیا مشقت او تکلیف قابل د توجُه نه دے هغه ته هر وخت د آخرت او د مرګ نه پس د راحت او آرام فکر ضروري دے. ځکه نبي اکرم ﷺ د دیو څو ورځو د ژوند، د مُشقت او تکلیف نه بے توجُه لرے کړه.

او د اخرت د راحت سامان زیات تو لو طرفته یې متوجه کړه. او د دې تسبیحاتو نه په اخرت کښې زیات نه زیات فائده مند کیدل یې روایا تو نه کوم چه په دې باب کښې ذکر کړے شوې دی ښکاره دی. د دې نه علاوه دویمه وجه دا هم کیدے شي چه د دې تسبیحاتو ته الله تعالیٰ د اشرافت ورکړے دے چه یو خوا دینې ګټې او فائدے پرے حاصلیږي، بل خوا دُنیا ګټې پکښې هم پرتے دي. الله تعالیٰ په پاک کلام کښې د هغه د رسول ﷺ په پاک کلام کښې ډیر څیزونه داسے دي چه په هغې کښې اخرت سره سره د دُنیا فائدے هم حاصلیږي. لکه یو حدیث کښې راغلي دي چه د دجّال په زمانه کښې به د مؤمنانو خوراک د فرښتو خوراک وي یعنې تسبیح او تقدیس (د سُبْحَانَ اللهِ وغیره الفاظ ویل) څوک چه د تسبیح والی، الله تعالیٰ به د هغه نه د لوږے مشقت لرے کړي. د دے حدیث نه دا هم معلومه شوه چه د دے دُنیا کښې بغیر خوراک څکاک د الله تعالیٰ په ذکر ګذاره ممکن کیدے شي. او د دجّال په زمانه کښې به عامو مؤمنانو ته دا دولت حاصل وي. نو د دے زمانه کښې د خواصو د احالت پیدا کیدل هیڅ مشکل نه دي. په دے وجه د کومو خلقو نه چه د دے قسمه واقعے ډیرے نقل دي چه په معمولي خوراک یا بغیر خوراکه هغوي څو څو ورځے تیرے کړي دي، په دے کښې هیڅ وجه د انکار یا د دروغژن والي نشته. یو حدیث کښې راغلي دي کله چرته اوسه اوګۍ نو تکبیر (یعنې اَللهُ اَکْبَرْ ډیر ډیر) وایئ، دا اُور مړ کوي. حِصنِ حصین کښې نقل کړي دي چه کله چاته په څه کار کښې تکلیف او مشقت معلوم شي یا قوت زیاتول غواړي، نو د اوده کیدو په وخت د سُبْحَانَ اللهِ درے دیرش ځله اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ درے دیرش ځله، اَللهُ اَکْبَرْ څلور دیرش ځله وائي. یا د درے واړو کلمو درے دیرش درے دیرش ځله وائي یا په کښې یوه له دے نه څلور دیرش ځله وائي (چونکه مختلف حدیثونو کښې مختلف تعداد راغلے دے ځکه مو ټول نقل کړل). حافظ ابن تیمیه رحمة الله علیه هم د دے حدیثونو نه کومو کښې چه نبی اکرم ﷺ حضرت فاطمے رضي الله عنها ته د خادم په بدله کښې دا تسبیحات خودلي دي دا (مسئله) ترے راایستلے ده چه څوک دا همیشه وائي هغوي ته به د مشقت په کارونو کښې ستوماني او تکلیف

نه وي. حافظ ابنِ حجر رحمة الله علیه فرمائي، کهٔ چرے معمولي تکلیف وي نو اوشو نو بیا به هم پکښې نقصان نه وي. مُلّا علي قاري رحمة الله علیه لیکلي دي چه دا عمل په تجربه ثابت شوے دے چه د تسبیحات د اَودهٔ کیدو په وخت ویل دستومانی لرے کولو او طاقت زیاتولو سبب گرزي. علامه سُیُوطي رحمة الله علیه مِرْقَاةُ الصُّعُوْد کښې لیکلي دي چه د دے تسبیحاتو د خادم نه بهتر والے د اخرت په اعتبار سره هم کیدے شي، چه اخرت کښې به د تسبیحات ښو مره فائده منله، په کار راتلونکی او نفع ورکوونکی وي، د ومره خادم دنیا کښې په کار راتلونکے او نفع ورکوونکے نه شي کیدلے. او د دُنیا په اعتبار سره هم کیدلے شي چه د دے تسبیحاتو په وجه به په کار باندے دومره طاقت او همت ورکړے شي چه د خادم نه به هغو مره کار نشي کیدے. یو حدیث کښې راغلي دي چه دوه خصلتونه داسے دي چه څوک په هغے عمل اُوکړي هغه به جنت کښې داخل شي. او هغه دواړه ډیر اسان دي خو په هغے عمل کوونکی ډیر کم دي. یو دا چه د تسبیحات دهر مانځه نه پس لس لس وارے اُووائی چه دا په وَنیا کښې خو یو نیم سل شوے خو د اعمالو په تله کښې به پنځلس سوه وي. دویم دا چه د اُودهٔ کیدو په وخت سُبْحَانَ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ دیرش دیرش ځله اُووائی او اَللّٰهُ اَکْبَرُ څلور دیرش ځله اُووائی چه دا په وَیناکښې سل ځله شوے او د ثواب په اعتبار سره یو زر شوے. چا تپوس اُوکړو اے د الله رَسُوله! چه دا ولے په دے عمل کوونکی ډیر کم دي؟ نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه د مانځه په وخت شیطان راشي او دا وائي چه فلانے ضرورت دے او فلانے کار دے، او کله چه د اُودهٔ کیدو وخت شي، د غه وخت شیطان ورته دغوا اَخوا ضرورتونه وریادوي چه د هغے په وجه ترے ویل پاتے شي رهیدے شي). د دے حدیثونو کښې دا خبره هم د غور قابله ده چه حضرت فاطمه رضی الله عنها د جنتي زنانو سرداره او د دواړو جهانونو سردار لُورده، په خپل لاس به یې مېچنه اُوړه کوي، تردے چه په لاسونو کښې یې پولئي راختلے وے، په خپله یې اُوبه د کوکې راوړلے، تردے چه په سینه یې د مشک د رسۍ نښے جوړے شوے وے. په خپله یې د کور جارو وغیره ټول کارکولو چه په هغے سره به یې هر وخت جامے خیرنے

وې. او دوئ اشکال، دوئ ئې څخول خلاصه دا چه تول کار ونه به ئې په خپل لاس کول. ایا خو نن بیبیانې د اتول کار ونه خو څه، لا دې ته نیم هم په خپله کوي! او کپړې نه کوي نو څو مره دغیرت خبره ده چه د چا آقا گانو سردارانو دا ژوند وې او دهغوی نوم اخستونکو، دهغوی په نوم فخر کونکو ژوند هغوی نه هم نه وي. په کار خو دا وه چه د خادمانو عمل او دروی مشقت د آقا گانو نه څه مخکښې وې. خو افسوس چه د لته د هغې خو ذکر شا نه دې ورسره هم نشته. فَاِلَى اللّٰهِ الْمُشْتَكٰى وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ۔

# خاتمه

خاتمه کښې یو ډیر اهم او ضروري څیز ذکر کوم، او هم په دې دا رساله ختموم. د تسبیحات دکومو چه پورته ذکر اوکړې شو، ډیر ضروري او په دین دنیا کښې په کار را تلونکي او فائده من دي. څنګه چه د پورته توحید یو نو به معلومه شوه. نبي اکرم ﷺ ددې د اهتمام او د فضیلت په وجه د یو خاص موځ ترغیب هم فرمایلې دې چه د صَلوٰةُ التَّسْبِيْح (د تسبیح موځ) په نامه مشهور دې او هم په دې وجه ورته صَلوٰةُ التَّسْبِيْح ویلې شي. چه د اتسبیحات په هغې کښې ډیر سوره ځله ویلې شي. نبي اکرم ﷺ په ډیر اهتمام او ترغیبو نو سره د دې موځ تعلیم ورکړې. لکه چه حدیث کښې را غلي دي۔

① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ لِلْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَا عَبَّاسُ يَا عَمَّاهُ اَلَا اُعْطِيْكَ اَلَا اَمْنَحُكَ اَلَا اُخْبِرُكَ اَلَا اَفْعَلُ بِكَ عَشْرَ خِصَالٍ اِذَا اَنْتَ فَعَلْتَ ذٰلِكَ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ ذَنْبَكَ اَوَّلَهٗ وَاٰخِرَهٗ

نبي اکرم ﷺ یو ځلې خپل تره حضرت عباس رضي الله عنه ته اوفرمایل، اې عباسه! اې ځما تره! ایا ځه تا ته یوه عطیه ورکړم، یو بخشش اوکړم، یو څیز درته اوښایم، تا د لسو څیزونو مالک جوړ کړم، کله چه ته دا کار کوې نو الله تعالی به ستا تول ګناهونه زوړ هم نوی، زاړه او نوی، په غلطۍ ډکړي وي یا قصدًا ډکړي وي، وارهٔ

قَدِيْمَهُ وَحَدِيْثَهُ خَطَأَهُ وَعَمْدَهُ صَغِيْرَهُ وَكَبِيْرَهُ سِرَّهُ وَعَلَانِيَتَهُ اَنْ تُصَلِّيَ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ تَقْرَأُ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً فَاِذَا فَرَغْتَ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِيْ اَوَّلِ رَكْعَةٍ وَاَنْتَ قَائِمٌ قُلْتَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ خَمْسَ عَشَرَةَ ثُمَّ تَرْكَعُ فَتَقُوْلُهَا وَاَنْتَ رَاكِعٌ عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَاْسَكَ مِنَ الرُّكُوْعِ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا ثُمَّ تَهْوِيْ سَاجِدًا فَتَقُوْلُهَا وَاَنْتَ سَاجِدٌ عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَاْسَكَ مِنَ السُّجُوْدِ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا ثُمَّ تَسْجُدُ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَاْسَكَ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا فَذٰلِكَ خَمْسٌ وَّسَبْعُوْنَ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ تَفْعَلُ ذٰلِكَ فِيْ اَرْبَعِ رَكَعَاتٍ اِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تُصَلِّيَهَا فِيْ كُلِّ يَوْمٍ مَرَّةً فَافْعَلْ فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّةً فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ كُلِّ شَهْرٍ مَرَّةً فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ كُلِّ

اولوی - په پټه، وکړی وی یا ښکاره شوی وی ټول به معاف کړی. هغه کار دا دے چه څلور رکعته نفل (د صلوٰة تسبیح په نیت) اوکړه او هر رکعت کښې کله چه اَلْحَمْد او سورت اووایې نو رکوع نه مخکښې سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ پنځلس وارے اُووایه، بیا چه رکوع اُوکړے نولس وارے هغه کښې اُووایه، بیا چه د رکوع نه اودریږے نولس وارے اُووایه - بیا سجده اُوکړه نولس وارے هغه کښې اُووایه، بیا د سجدے نه رُستو چه پاسے کینه نولس وارے اُووایه. بیا چه دویمے سجدے ته لاړشے، نولس وارے هغه کښې اُووایه. بیا چه د دویمے سجدے نه پاسے نو (دویم رکعت ته) اُودریږه نه مخکښې کینه لس وارے په ناستے اُووایه. دغه ټولو جمع پنځه اویا شوه. دغه مقدار به په هر رکعت کښې پنځه اویا وارے شی. که چرے طاقت لرلے شے نو روزانه یو وارے دا مونځ کوه. که دا نشی کیدے نو هره جمعه یو وارے کوه. دا هم نشی کیدلے نو هره میاشت کښې یو وارے کوه. که چرے دا هم نشی کیدلے نو په هر کال کښې یو وارے کوه دا هم نشی کیدلے نو په ټول عمر کښې یو وارے خو اُوکړه -

سَنَةٍ مَرَّةً فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ عُمُرِكَ مَرَّةً. (رواه ابوداؤد وابن ماجة والبيهقي في الدعوات الكبير وروى الترمذي عن ابي رافع نحوه كذا في المشكوٰة قلت واخرجه الحاكم وقال هذا حديث وصله موسى

(بن عبد العزيز عن الحكم بن ابان وقد اخرجه ابوبكر محمد بن اسحاق وابوداؤد وابوعبد الرحمن احمد بن شعيب في الصحيح ثم قال جماعة ذكرته في رواته واما ارسال ابراهيم بن الحكم عن ابيه فلا يوهن وصل الحديث فان الزيادة من الثقة اولى من الارسال على ان امام العصر في الحديث اسحاق بن ابراهيم الحنظلي قد اقام هذا الاسناد عن ابراهيم بن الحكم ووصله اهـ قال السيوطي في اللآلي هذا الاسناد حسن وما قال الحاكم اخرجه النسائي في كتاب الصحيح لم نره في شيء من نسخ السنن لا الصغرى ولا الكبرى اهـ)

(۶) وَعَنْ اَبِي الْجَوْزَاءِ عَنْ رَجُلٍ كَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ يَرَوْنَ اَنَّهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ قَالَ لِي النَّبِيُّ ﷺ اِئْتِنِي غَدًا اَحْبُوكَ وَاُثِيبُكَ وَاُعْطِيكَ حَتّٰى ظَنَنْتُ اَنَّهُ يُعْطِينِي عَطِيَّةً قَالَ اِذَا زَالَ النَّهَارُ فَقُمْ فَصَلِّ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فَذَكَرَ نَحْوَهُ وَفِيهِ وَقَالَ فَاِنَّكَ لَوْ كُنْتَ اَعْظَمَ اَهْلِ الْاَرْضِ ذَنْبًا غُفِرَ لَكَ بِذٰلِكَ قَالَ قُلْتُ فَاِنْ لَمْ اَسْتَطِعْ اَنْ اُصَلِّيَهَا تِلْكَ السَّاعَةَ قَالَ صَلِّهَا مِنَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ.

(رواه ابوداؤد)

يو صحابي وائي، ما ته نبي اكرم ﷺ اُو فرمايل صبا سحر ته راشه، تا ته به يو بخشش كوم، يو څيز به دركوم، يو عطيه به كوم. هغه صحابي وائي ما د دے الفاظو نه دا اُوګڼل چه څه (مال) به راكوي، هر كله چه حاضر شوم، نو وے فرمايل چه كله د غرمے نمر اُوګرزي، نو څلور ركعته مونځ اُوكړه چه هغه طريقه يے ورته اُوخودله كومه چه په وړومبي حديث كښ تيره شوه. او دا يے هم ورته اُوفرمايل، كه چرے ته د ټولے دُنيا د خلقو نه زيات ګنهګار يے نو ستا ګناهونه به معاف شي. ما عرض اُوكړو كه چرے د غه وخت كښ په دغه وجه سره اُو نه كړے شم نو ارشاد يے اُوفرمايو چه كوم وخت د ورځے يا شپے كښ كوے يے.

(۷) عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ وَجَّهَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ جَعْفَرَ بْنَ اَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِلٰى بِلَادِ الْحَبَشَةِ فَلَمَّا قَدِمَ اعْتَنَقَهُ وَقَبَّلَهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَلَا اَهَبُ لَكَ اَلَا اُبَشِّرُكَ اَلَا اَمْنَحُكَ

نبي اكرم ﷺ د خپل تره خوئي حضرت جعفر طيار رضي الله عنه حبشے ته ليږلے وو، كله چه هغه د هغه ځائي نه واپس مدينه منوره ته راورسيدو، نو نبي اكرم ﷺ هغه ته ورتر غاړه وتو، او په تندي يے ښكل كړو. بيا يے ورته اُوفرمايل، آيا تا ته يو څيز دركړم، يو زيرے درته واوروم، يو بخشش

أَتُحِفُكَ قَالَ نَعَمْ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ تُصَلِّيْ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ.
(فذكر نحوه اخرجه الحاكم وقال اسناد صحيح لاغبار عليه وتعقبه الذهبي بان احمد بن داؤد كذبه الدارقطني كذا في المنهل وكذا قال غيره تبعًا للحافظ لكن في النسخة التي

درته اُوکرم، یوه تحفه درته درکرم، هغه عرض اُوکړو ضرور. نبي اکرم ﷺ اُوفرمایل څلور رکعته مونځ اُوکړه. بیا یې په هغې طریقه ورته اُوخودله کومه چه پورته تیره شوه. د دے حدیث کښ دے څلورو کلمو سره لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ الْعَظِيْمِ هم را غلے دے.

بايدينا من المستدرك وقد صحت الرواية عن ابن عمر ان رسول الله ﷺ علم ابن عمه جعفرا ثم ذكر الحديث بسنده قال في آخره هذا اسناد صحيح لاغبار عليه كذا قال الذهبي في اول الحديث وآخره ثم لايذهب عليك ان في هذا الحديث زيادة لاحول ولاقوة الا بالله العظيم ايضًا على الكلمات الاربع.)

④ وَعَنِ الْعَبَّاسِ رضي الله عنه بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ أَلَا أَهَبُ لَكَ أَلَا أُعْطِيْكَ أَلَا أَمْنَحُكَ فَظَنَنْتُ أَنَّهٗ يُعْطِيْنِيْ مِنَ الدُّنْيَا شَيْئًا لَمْ يُعْطِهٖ أَحَدًا مِّنْ قَبْلِيْ قَالَ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ. (فذكر الحديث وفي آخره غير انك اذا جلست للتشهد قلت ذلك عشر مرات قبل التشهد الحديث اخرجه الدارقطني في الافراد وابو نعيم في القربان وابن شاهين في الترغيب كذا في اتحاف السادة شرح الاحياء)

حضرت عباس رضي الله عنه فرمائي ماته نبي اکرم ﷺ اُوفرمایل چه څه تاته بخشش اُوکرم، یو عطیه درکرم، یو څیز درکرم، دے وائي څه پوهه شوم چه د دُنیا څه داسے څیز راکولو اراده یې ده چه بل چاته یې نه دے ورکړے (ځکه دے وجه دا قسمه الفاظ بخشش، عطیه وغیره بار بار فرمائي)، بیا نبي اکرم ﷺ څلور رکعته مونځ اُوخودلو کوم چه پورته تیر شو. په دے کښ یې دا هم اُوفرمایل چه کله اَلتَّحِيَّات د پاره کینے، نو رومبے دا تسبیحات اُووایه بیا اَلتَّحِيَّات وایه.

⑤ قَالَ التِّرْمِذِيُّ وَقَدْ رَوَى ابْنُ الْمُبَارَكِ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِّنْ أَهْلِ الْعِلْمِ صَلٰوةَ التَّسْبِيْحِ وَذَكَرُوا الْفَضْلَ فِيْهِ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ ابْنُ عَبْدَةَ نَا أَبُوْ وَهْبٍ سَأَلْتُ

حضرت عبد الله بن مبارك رحمة الله عليه او د ډیرو عالمانو نه د دے مونځ فضیلت نقل کړے شوے دے او د دے یې دا طریقه نقل کړے ده چه سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ ویلو نه پس د اَلْحَمْد شریف لوستلو نه رومبے پنځلس ځلے دا کلمے

سُئِلَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنِ الصَّلٰوةِ
الَّتِیْ یُسَبَّحُ فِیْهَا قَالَ یُکَبِّرُ ثُمَّ
یَقُوْلُ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ
وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰی جَدُّكَ
وَلَا اِلٰهَ غَیْرُكَ ثُمَّ یَقُوْلُ خَمْسَ
عَشَرَةَ مَرَّةً سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ
لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ
ثُمَّ یَتَعَوَّذُ وَیَقْرَأُ بِسْمِ اللّٰهِ
الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ وَفَاتِحَةَ الْکِتَابِ
وَسُوْرَةً ثُمَّ یَقُوْلُ عَشْرَ مَرَّاتٍ
سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ
اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ ثُمَّ یَرْکَعُ

او وایه، بیا اَعُوْذُ بِاللّٰهِ او بِسْمِ اللّٰهِ بیا الحمد
شریف او بیا څه سورت او وایه۔ د سورت نه
پس د رکوع نه مخکې لس واره، بیا د رکوع نه
چه او دریږے لس واره او وایه، بیا دواړه
سجدو کښې او د دواړو سجدو مینځ کښې چه کینے
لس لس واره او وایه۔ دا پنځه اویا یو ره شوے
د ے حالت کښې د دویمے سجدے نه پس په
ناسته کښې د ویلو حاجت پاتے نه شو)
رکوع کښې دے سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ او سجده
کښې دے سُبْحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی وایه، بیا دا
تسبیحات وایه د نبی کریم ﷺ نه هم په دے
طریقه نقل کړے شوے دے۔)

فَیَقُوْلُهَا عَشْرًا ثُمَّ یَرْفَعُ رَأْسَهٗ فَیَقُوْلُهَا عَشْرًا ثُمَّ یَسْجُدُ فَیَقُوْلُهَا عَشْرًا ثُمَّ یَرْفَعُ
رَأْسَهٗ فَیَقُوْلُهَا عَشْرًا ثُمَّ یَسْجُدُ الثَّانِیَةَ فَیَقُوْلُهَا عَشْرًا یُصَلِّیْ اَرْبَعَ رَکَعَاتٍ عَلٰی
هٰذَا فَذٰلِكَ خَمْسٌ وَّسَبْعُوْنَ تَسْبِیْحَةً فِیْ کُلِّ رَکْعَةٍ ثُمَّ قَالَ قَالَ اَبُوْ وَهْبٍ اَخْبَرَنِیْ
عَبْدُ الْعَزِیْزِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ قَالَ یَبْدَأُ فِی الرُّکُوْعِ سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ وَفِی السَّجْدَةِ
سُبْحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی ثَلٰثًا ثُمَّ یُسَبِّحُ التَّسْبِیْحَاتِ۔

قال عبد العزیز قلت لعبد اللّٰه بن المبارك ان سها فیها یسبح فی سجدتی السهو عشرا عشرا قال لا انما هی ثلث مائة
تسبیحة اه مختصرا قلت وکذا رواه الحاکم وقال رواة هذا عن ابن المبارك کلهم ثقات اثبات ولا یتهم عبد اللّٰه
ان یعلمه ما لم یصح عنده سنده اه وقال الغزالی فی الاحیاء بعد ما ذکر حدیث ابن عباس المذکور وفی روایة اخری انه
یقول فی اول الصلوة سبحانك اللهم ثم یسبح خمس عشرة تسبیحة قبل القراءة وعشرا بعد القراءة والباقی کما سبق عشرا
عشرا ولا یسبح بعد السجود الاخیر وهذا هو الاحسن وهو اختیار ابن المبارك اه قال الزبیدی فی الاتحاف ولفظ القوت
هذه الروایة احب الوجهین الی اه قال الزبیدی ای لا یسبح فی الجلسة الاولی بین الرکعتین ولا فی جلسة التشهد
شیئا کما فی القوت قال وکذلك روینا فی حدیث عبد اللّٰه بن جعفر بن ابی طالب ان النبی صلی اللّٰه علیه وسلم علمه صلوة
التسبیح فذکره اه ثم قال الزبیدی واما حدیث عبد اللّٰه بن جعفر فاخرجه الدارقطنی من وجهین عن عبد اللّٰه بن زیاد

بن سمعان قال فی احدہما عن معاویۃ و اسمٰعیل بن عبید اللہ ابنی جعفر عن ابیہما وقال فی الاخری عن عون بن
اسمٰعیل عن ابیہما قال قال رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم الا اعطیک فذکر الحدیث وابن سمعان ضعیف و
ہذہ الروایۃ ہی التی اشار الیہا صاحب القوت وہی الثانیۃ عندہ قال فیہا یفتتح الصلوٰۃ فیکبر ثم یقول فذکر
الکلمات وزاد فیہا الحوقلۃ ولم یذکر بہذا السجدۃ الثانیۃ عند القیام ان یقولہا قال وہو الذی اختارہ ابن المبارک
اھ قال المنذری فی الترغیب وروی البیہقی من حدیث ابی جناب الکلبی عن ابی الجوزاء عن ابن عمرو بن العاص
فذکر الحدیث بالصفۃ التی رواہا الترمذی عن ابن المبارک ثم قال وہذا یوافق مارویناہ عن ابن المبارک ورواہ
قتیبۃ بن سعید عن یحییٰ بن سلیم عن عمران بن مسلم عن ابی الجوزاء قال نزل علی عبد اللہ بن عمرو بن العاص فذکر الحدیث
وخالفہ فی رفعہ الی النبی صلی اللہ علیہ وسلم ولم یذکر التسبیحات فی ابتداء القراءۃ انما ذکرہا بعدہا ثم ذکر جلسۃ الاستراحۃ
کما ذکرہا سائر الرواۃ اھ قلت حدیث ابی الجناب مذکور فی السنن علی ہذا الطریق طریق ابن المبارک وما ذکر
من کلام البیہقی لیس فی السنن بہذا اللفظ فلعلہ ذکرہ فی الدعوات الکبیر وما فی السنن انہ ذکر اولاً حدیث ابی جناب
تعلیقاً مرفوعاً ثم قال قال ابو داؤد ورواہ روح ابن المسیب وجعفر بن سلیمان عن عمرو بن مالک النکری عن
ابی الجوزاء عن ابن عباس قولہ وقال فی حدیث روح فقال حدیث النبی صلی اللہ علیہ وسلم اھ وظاہرہ ان الاختلاف
فی السند فقط لا فی لفظ الحدیث وذکر شارح الاقناع من فروع الشافعیۃ صلوٰۃ التسبیح واقتصر علی صفۃ ابن
المبارک فقط قال البجیرمی نبہ روایۃ ابن مسعود والذی علیہ مشائخنا انہ لا یسبح قبل القراءۃ بل بعدہا خمسۃ عشر
والعشرۃ فی جلسۃ الاستراحۃ فہذا روایۃ ابن عباس اھ مختصراً وعلم منہ ان طریق ابن المبارک مروی عن ابن
مسعود ایضاً لکن لم اجد حدیث ابن مسعود فیما عندی من الکتب بل المذکور فیہا علی ما بسط صاحب المنہل وشارح
الاحیاء وغیرہما ان حدیث صلوٰۃ التسبیح مروی عن جماعۃ من الصحابۃ منہم عبد اللہ والفضل ابنا العباس
وابوہما عباس بن عبد المطلب وعبد اللہ بن عمرو بن العاص وعبد اللہ بن عمر بن الخطاب وابو رافع مولیٰ رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم
وعلی بن ابی طالب واخوہ جعفر بن ابی طالب وابنہ عبد اللہ بن جعفر وام المؤمنین ام سلمۃ والانصاری غیر مسمی
وقد قیل انہ جابر بن عبد اللہ قالہ الزبیدی وبسط فی تخریج احادیثہم وعلم مما سبق ان حدیث صلوٰۃ التسبیح مروی
بطرق کثیرۃ فقد افرط ابن الجوزی ومن تبعہ فی ذکرہ فی الموضوعات ولذا تعقب علیہ غیر واحد من
ائمۃ الحدیث کالحافظ ابن حجر والسیوطی والزرکشی قال ابن المدینی قد اساء ابن الجوزی بذکرہ ایاہ فی
الموضوعات کذا فی اللآلی قال الحافظ وممن صححہ او حسنہ ابن مندہ والفقیہ کتابا والآجری والخطیب
وابو سعد السمعانی وابو موسیٰ المدینی وابو الحسن بن المفضل والمنذری وابن الصلاح والنووی فی تہذیب
الاسماء والسبکی وآخرون کذا فی الاتحاف وفی المرقاۃ عن ابن حجر صححہ الحاکم وابن خزیمۃ وحسنہ

بما ذکرہ قلت وبسط السیوطی فی اللآلی فی تحسینہ وحکی عن ابی منصور الدیلمی صلوٰۃ التسبیح اشہر الصلوات واصحہا اسنادا۔)

**فائده ①** :- صلوٰۃ التسبیح ډیر ضروري مونځ دے چه د دې حکم اندازه ډیرو زیاتو حدیثونو نه اوشو چه نبي اکرم ﷺ څومره په شفقت او اهتمام سره بیان کړے دے. د اُمت علماؤ، محدثینو، فقهاؤ، صوفیانو هر زمانه کښې د دے اهتمام کړے دے.

امامِ حدیث حاکم رحمة الله علیه لیکلي دي چه د دے حدیث په صحیح کیدو د اهم دلیل دے چه د تبع تابعین د زمانے نه څخه د زمانے پورے مقتدا (پیشوا) حضراتو په دے همیشه والے کړے دے او خلقو ته یې د دے تعلیم نه کړے دے چه په دې کښې عبدالله بن مبارک رحمة الله علیه هم دے. د اعبدالله بن مبارک رحمة الله علیه د امامِ بخاري رحمة الله علیه د استاذانو استاذ دے. بیهقي رحمة الله علیه فرمائي چه د ابن مبارک رحمة الله علیه نه وړاندے ابوالجوزاء رحمة الله علیه چه قابلِ اعتماد تابعي دے، د دے اهتمام به یې کولو. روزانه چه به د ماسپخین اذان اوشو، نو جماعت ته به لاړلو او د جمع د ماسخته پورے به یې ادا کولو. عبدالعزیز بن ابي رواد رحمة الله علیه چه د ابن مبارک رحمة الله علیه هم استاذ دے، لوی عابد او زاهد او متقیانو کښې دے، فرمائي چه څوک د جنت اراده کوي هغه له ضروري ده چه صلوٰۃ التسبیح مضبوط اونیسي. ابوعثمان حیری رحمة الله علیه چه لوی زاهد دے، فرمائي چه ما د غمونو او مصیبتونو د لرے کولو دپاره د صلوٰۃ التسبیح په شان بل څیز نه دے لیدلے. علامه تقي سبکي رحمة الله علیه فرمائي چه دا مونځ ډیر ضروري دے. د بعضو خلقو د انکار په وجه چرته دهوکه نه شي. څوک چه د دے مونځ ثواب واؤري، بیا هم غفلت کوي، هغه د دین باره کښې سستي کونکے دے، د صالحانو د کارونو نه لرے دے، هغه پوخ بنده نه دی ګڼړل کیدے. مرقاة کښې لیکلي دي چه حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه به هره جمعه دا مونځ کولو.

**فائده ②** :- بعضے عالمانو په دے وجه د دے انکار کړے دے چه دومره زیات ثواب صرف په څلور رکعته مشکل دے. خصوصاً کبیره ګناهونو معاف

کیدل خو چه هر کله روایت د ډیرو صحابو نه نقل دے نو انکار ترے مشکل دے، البته د نورو روایتونو حدیثونو په وجه د کبیره ګناهونو د معافئ دپاره توبه شرط ده .

**فائده ③** :- پوره تفصیل حدیثونو کښ د دے مونځ د دوه طریقے خودلے شوی دی. اول دا چه کله مونځ شروع کړے نو اَلْحَمْدُ شریف او سورت نه پس پنځلس واره څلور واړه کلمے سُبْحَانَ اللهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ، اَللهُ اَکْبَرُ اُووایه. بیا رکوع کښ د سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ نه پس لس واره اُووایه. بیا چه د رکوع نه پاسے، د سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ، رَبَّنَا لَکَ الْحَمْدُ نه پس لس واره اُووایه. بیا دواړو سجدو کښ سُبْحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی نه پس لس لس واره اُووایه. او د دواړو سجدو تر مینځه چه کله کینے، لس واره اُووایه. او چه کله د دوهمے سجدے نه اَللهُ اَکْبَرُ اُووائے نو په ځائ د اودریدو کینه او لس واره اُووایه، بیا بغیر د اَللهُ اَکْبَرُ ویلو اُودریږه، او دوه رکعتونه پس هم دغسے د څلورو رکعتونو پس په هر یو کښ دا کلمے لس لس واره اُووایه، بیا اَلتَّحِیَّات اُووایه.

دویمه طریقه دا ده چه د سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ نه پس اَلْحَمْدُ نه مخکښے پنځلس واره اُووایه، او بیا د اَلْحَمْدُ او سورة نه پس لس واره اُووایه او باقی ټوله طریقه د اَوَلے طریقے په شان ده. البته په دے حالت کښ نه خو د دویمے سجدے نه پس د ناستے ضرورت شته او نه د اَلتَّحِیَّات سره د ویلا. علماؤ لیکلی دی چه بهتره دا ده چه کله داسے کوه او کله هغسے.

**فائده ④** :- چونکه دا مونځ عام طور رواج کښ نشته په دے وجه د دے متعلق څو مسئلے لیکلے شی چه د دے مونځ کونکو ته آسانی شی.

**مسئله ①** :- د دے مونځ دپاره د قرآن څه سورت مقرر نشته، کوم سورت چه د زړه غواړی اُووایه. خو بعض عالمانو لیکلی دی چه سورة حدید، سورة حشر، سورة صف، سورة جمعه، سورة تغابن. څلور سورتونه اُووایه. بعض حدیثونو کښ د شلو آیتونو په اندازه راغلے دی، نو داسے سورتونه اُووایه چه د شلو آیتونو نزدے وی. بعضو اِذَا زُلْزِلَتْ، وَالْعٰدِیٰتِ

تکاثر، وَالْعَصْرِ، کافرون، نصر، اِخلاص لیکلی دی چه دے سورتونو نو به اُووایه۔ مسئله ②:۔ د تسبیحات په ژبه هیځ کلمه شمیره چه په ژبه شمیرلو سره مونځ ماتیږی. گوتے چه بندے وی پرے شمیرے، تسبیح په لاس کښ واخلے پرے شمیرے، نو دا جائز دی خو مکروه دی۔ بهتره داده چه گوتے ځنګه په خپل ځای پروتے وی، هم هغسے دِپروتے وی، او به هره یوه کلمه یوے یوے گوتے له هم په هغه ځائی زور ورکوه۔

مسئله ③:۔ که چرے یو ځائی د تسبیح ویل دَرنه هیر شی نو بل رُکن کښ یے هغه پوره کړه. البته د هیر شوو قضا د رکوع نه پاسیدو نه پس اود دوه ؤ سجدو ترمینځ منځ کښ مه کوه۔ د غسے اول او دریم رکعت نه پس که چرے کینئ نو په هغے کښ هم د هیر شوو قضا مه کوه، بلکه صرف به د هغے تسبیح وایے، او د هغے نه پس چه کوم رُکن وی په هغے کښ هیر شوے هم اُووایه۔ مثلاً که چرے رکوع کښ د ویل هیر شو، نو دغه به دوېمے سجده کښ اُووایه، د غسے که په ومبے سجده کښ هیر شو، نو دوېمه سجده کښ اُووایه، او د دوېمے سجدے دویم رکعت ته چه پاسے اُووایه۔ او که چرے درنه پاتے شی نو اخری قعده کښ د التحیات نه مخکښے اُووایه۔

مسئله ④:۔ که چرے سجده سهوه په څه وجه پیښه شی نو په هغے کښ دغه لس تسبیحات وئیل نه دی پکار. ځکه چه مقدار درے سوه دے هغه پوره شو۔ هاں که چرے دے مقدار کښ کمی راشی نو بیا سجده سهوه کښ اُووایه۔

مسئله ⑤:۔ بعضے حدیثونو کښ راغلی دی چه د التحیات نه پس د سلام نه مخکښے دا دُعا اُووایه:۔

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْۤ اَسْئَلُكَ تَوْفِیْقَ اَهْلِ الْهُدٰی وَ اَعْمَالَ اَهْلِ الْیَقِیْنِ وَمُنَاصَحَةَ اَهْلِ التَّوْبَةِ وَعَزْمَ اَهْلِ

اے الله! ځه له تا نه د هدایت والو په شان توفیق غواړم او د یقین والو عمل۔ او د توبے والو خلوص غواړم او د صبر کوونکو به خوالے۔ او له تا نه د ویریدونکو په شان

الصَّبْرِ وَجِدَّ اَهْلِ الْخَشْيَةِ وَطَلَبَ اَهْلِ الرَّغْبَةِ وَتَعَبُّدَ اَهْلِ الْوَرَعِ وَعِرْفَانَ اَهْلِ الْعِلْمِ حَتّٰی اَخَافَكَ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ مَخَافَةً تَحْجُزُنِیْ بِهَا عَنْ مَّعَاصِیْكَ وَحَتّٰی اَعْمَلَ بِطَاعَتِكَ عَمَلًا اَسْتَحِقُّ بِهٖ رِضَاكَ وَ حَتّٰی اُنَاصِحَكَ فِی التَّوْبَةِ خَوْفًا مِّنْكَ وَحَتّٰی اُخْلِصَ لَكَ النَّصِیْحَةَ حُبًّا لَكَ وَ حَتّٰی اَتَوَكَّلَ عَلَیْكَ فِی الْاُمُوْرِ حُسْنَ الظَّنِّ بِكَ سُبْحَانَ خَالِقِ النُّوْرِ رَبَّنَا اَتْمِمْ لَنَا نُوْرَنَا وَ اغْفِرْ لَنَا اِنَّكَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ بِرَحْمَتِكَ یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ۔

کوشش (یا احتیاط) غواړم، او د رغبت کوونکو په شان طلب او د پرهیزګارانو په شان عبادت او د عالمانو په شان معرفت او تر دې چه له تانه ویریږم. اے الله! دا سے ویره چه ما ستا د نا فرمانئ نه منع کړي. او تر دې چه څه ستا په اطاعت دا سے عمل اوکړم چه د هغے په وجه ستا د رضا او د خوشحالئ حقدار جوړ شم. او تر دې چه د خلوص توبه ستا له ویرے اوباسم، او تر دے چه رښتنی اخلاص ستا د محبت له وجے اوکړم. او تر دے چه ستا سره د نیک ګمان په وجه پورا توکل اوکړم. اے د نور پیدا کوونکیه! ستا ذات پاک دے. اے خمونږه ربه! مونږ ته کامل نور راکړے. او ته خمونږ بخښنه اوکړه. ته بیشکه په هر څیز قادر یې. اے اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ په خپل رحمت سره مو درخواست قبول کړے.

(رواه ابو نعیم فی الحلیة من حدیث ابن عباس ولفظه اذا فرغت قلت بعد التشهد قبل التسلیم اللهم الخ کذا فی الاتحاف وقال اورده الطبرانی ایضا من حدیث العباس وفی سنده متروك اه قلت زاد فی المرقاة فی آخر الدعا بعض الالفاظ بعد قوله خالق النور زدها تکمیلا للفائدة.)

مسئله ⑥ :- د دے موږ د مکروهه وختونو نه علاوه باقی د ورځے د شپے په ټولو وختونو کښې کول جائز دی. البته د زوال نه پس کول زیات

بهتر دی۔ بیا په وَرځ کښې څه وخت بیا د شپې

**مسئله ④:۔** بعضې حدیثونو کښې د دریمې کلمې سره لَاحَوْلَ هم ذکر کړے شوے دے۔ څنګه چه پوره دریم حدیث کښې تیر شوی دی۔ په دے وجه که چرے کله کله ورسره د ازیات کړی نو ښه ده۔

وَاٰخِرُ دَعْوٰنَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ؕ

---

اردو کښې لیکونکے
**محمّد زکریّا**
کاندهلوی
تاریخ د لیکلو
شپه د جمعې ۲۶۔ شوال
سنه ۱۳۵۸ھ ۔ مطابق
۸۔ دسمبر سنه ۱۹۳۹ء)



پښتو کښې ترجمه کونکے
میاں **محمّد شفیق** غفرلهٗ
(چارسده)
تاریخ د ختمیں و نظرِ ثانی
ورځ د ګلی ۱۲۔ ربیع الاول
سنه ۱۴۱۷ھ ۔ مطابق
۲۹۔ جولائی سنه ۱۹۹۶ء)

---



قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ بَلِّغُوْا عَنِّیْ وَلَوْ اٰیَۃً (رواہ البخاری)

ترجمه

او رسول ﷺ فرمایلي دي چې زما له طرفه اورسوئ که یو ایت یعني یو خبره وي

د پښتو

# فَضَائِلِ تَبْلِیْغ

لیکونکے

شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب نور اللہ مرقدہٗ

ترجمه کوونکے

میاں محمد شفیق غفرلہٗ (چارسده)

خورونکے

کتب خانه فیضی لاهور پاکستان

# دمضامینو فهرست

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ
نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ

# تمهيد

د الله جل جلاله ثناء او صفت او نبي اكرم صلى الله عليه وسلم باندے درود او سلام نه پس د مجدّد دين اسلام يو نوراني جوهر د عالمانو او بزرګانو د زمانے ځليدونکے ملغلرے (يعني حضرت مولٰنا محمد الياس رحمه الله) ماته اوفرمايل چه د دين د تبليغ د ضرورت متعلق په مختصر طور څو ايتونه او حديثونه اوليکم او ورته يے وړاندے کړم - چونکه ماغوندے ګناهګار د پاره د داسے حضراتو رضامندي او خوشحالي د نجات وسيله او د ګناهونو کفاره کيدے شي. په دے وجه په جلدئ ليکلے شوے نفعر رسونکے يوه مجموعه په خدمت کښ پيش کوم او د هرے يوے اسلامي مدرسے، اسلامي انجمن، اسلامي اسکول او هر يو اسلامي طاقت بلکه هر يو مسلمان ته عرض دے چه د اوخت د دين زوال څومره قدرے چه ورځ تر ورځه په زياتيدو دے. په دين باندے يواځے د کافرانو له طرفه نه بلکه پخپله د مسلمانانو له طرفه حملے کيږي، په فرائضو او واجباتو عمل کول نه يواځے د عام مسلمانانو نه بلکه له خاصو او په خاصو کښ خاص مُسلمانانو نه پاتے کيږي. د موږ روږے د پريخودو په څه وائے چه په لکهونو خلق بنکاره کفر او شرک کښ اخته دي او غضب دادے چه دا کفر او شرک نه ګڼړي. د حرامو او بدو کارونو عام کيدل څومره په صفا او واضحه طريقے سره زياتيږي او د دين نه بے پرواهي بلکه سپکوالے او دين پورے ټوقے چه څومره عامے کيږي دا د هيڅ يو کس نه پټه نه ده.
په دے وجه د خاصو عالمانو بلکه د عامو عالمانو هم د خلقو نه وړه کول او نفرت زياتيږي چه د دے لازمي اثر دا پيدا شو چه د دين او ديني علم نه ناپوهتيا ورځ په ورځ زياتيږي، عوام حيل ځان: معذور ګڼړي

چه دوی ته خوك بنودونكی نشته، او عالمان خپل ځان معذور گڼړی چه د دوی خوك اوریدونكی نشته. لیكن د الله جل شانهٔ په نزد ئه د عوا مو د اعذر كافی كیدلے شی چه چارانه بنودلی نهٔ وو ځكه چه د دینی كارونو معلومول او تحقیق كول دهر یو كس خپل فرض دی. د قانون نه د ناخبری عذر په هیڅ یو حكومت كښ معتبر نهٔ دے. د اَحْكَمُ الْحَاكِمِیْنَ په دربار كښ به دا فضول عذر څنګه اوچلیږی د اخود "عذر گناه بدتر از گناه" په شان دے. دغے د عالمانو د پاره دا جواب هیڅ كله مناسب نهٔ دے چه څوك اوریدونكے نشته. د كومو پخوانو مشرانو د ژوند نه بیا بیا ثابت چه تا سو حضرات د عوید اره یئ ایا هغوی د تبلیغ له خاطره هر څهٔ نهٔ دی برداشت كړی؟ په كانړونهٔ دی ویشتلے شوی؟ تحمل یے نهٔ دی اوریدلی؟ مصیبتونه یے نهٔ دی زغملی؟ هر قسمه تكلیفونو نه پس د خپل تبلیغی ذمه دارو احساس یے فرمائیلے دے او خلقو ته یے دین رسولے دے. د هر سخت نه سخت مخالفت سره یے په ډیر شفقت د اسلام او د هغے د احكامو خوروول كړی دی.

عام طور مسلمانانو تبلیغ عالمانو پورے خاص كړے دے. حال دا دے چه دا صحیح نهٔ ده بلكه هر هغه كس چه د هغهٔ په مخكښ څهٔ ناروا كار كیږی او هغه د هغے د منع كولو وس لری یا د هغے د منع كولو اسباب پیدا كولے شی د هغهٔ په ذمه واجب دی چه هغه د منع كړی. كهٔ فرض كړو دا اووځلے شی چه دا د عالمانو كار دے. بیا هم هر كله چه هغوی د خپلے كمزورئ نه یا د څهٔ مجبورئ نه دا حق نهٔ پوره كوی یا د هغوی نه پوره كیدے نشی نو ضروری ده چه د هر یو كس په ذمه دا فریضه لازمی شی. په قرآن او حدیث كښ چه څومره په اهتمام د تبلیغ او د اَمْرِ بِالْمَعْرُوْفِ اَوْ نَهْیِ عَنِ الْمُنْكَرِ ارشادات فرمائیلے شوی دی، هغه د مے آیتونو او حدیثونو نه ظاهره ده چه كوم په راتلونكو فصلونو كښ راروان دی. په دا سے حالت كښ صرف د عالمانو په ذمه نكولو او د هغوی كمزوری بنودلو سره هیڅوك د ذمه دارئ نه نهٔ خلاصیږی. د دے د پاره ځما عام درخواست دے چه هر یو مسلمان ته دا وخت په تبلیغ كښ څهٔ نه څهٔ

حِصه اخستل پکار دی او څومره وخت چه د دین په تبلیغ او حفاظت کښ
لګولے شی لګول یې پکار دی. ۔

ہر وقت خوش کہ دست دہد مغتنم شمار ❖ کس را وقوف نیست کہ انجام کار چیست

"هر یو ښه وخت چه په لاس درشی غنیمت یې اوګڼره ځکه چه هیچا ته
پته نشته چه انجام څهٔ کیدونکے دے."

دا معلومول او ځان پرے پوهول هم ضروری دی چه د تبلیغ د پاره
یا اَمر بِالمَعرُوف او نَهی عَنِ المُنکَر د پاره پوره کامل او مکمل عالم کیدل
ضروری نهٔ دی. هر هغه کس چه په څهٔ مسئله پوهیږی هغه د نورو ته
رسَوی. کله چه د هغهٔ د وړاندے څهٔ ناروا کار کیږی او هغه د دے د منع کولو
وس لری نو د هغے منع کول په دهٔ باندے واجب دی.

په دے رساله کښ م په مختصر طور اوهٔ فصلونه ذکر کړی دی.

# اول فصل

کښ د برکت حاصلو د پاره د الله جَلَّ جَلَالُهٗ برکتناك کلام (قرآن شریف) نه
د یو څو ایتونو ترجمه چه په هغے کښ د تبلیغ او د اَمر بِالمَعرُوف ترغیب او
تاکید فرمائیلے شوے دے، پیش کوم چه د هغے نه د دے اندازه کیدے شی
چه په خپله الله جَلَّ شَانُهٗ ته د دے څومره اهتمام دے چه د دے د پاره یے په
مختلفو طریقو سره په خپل کلام پاک کښ بیا بیا ویل کړی دی. تقریباً شپیته
ایتونه خو ما په کم نظر سره د دے په ترغیب او صفت کښ تیر شوی دی. که
چرے څوك باریك نظر په غور سره اوګوری، معلومه نهٔ ده چه څومره
ایتونه به ورته معلوم شی. چونکه د هغے ټولو ایتونو په دے ځائ کښ جمع کول
به سبب د اوږد والی شی ځکه په یو څو ایتونو بس ولے کوم.

(۱) قَالَ اللهُ عَزَّ اِسْمُهٗ وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَآ اِلَی اللهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ اِنَّنِیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ اٰیۃ

او د هغهٔ نه بهتره خبره د چا کیدے شی څوك چه الله تعالیٰ طرف ته بلنه کوی او نیك عمل کوی او وائی چه بیشکه زهٔ د مسلمانانو نه یم. (پ ۲۴ ع ۱۸)

مُفَسِّرِینو لیکلی دی کوم کَس چه الله تعالیٰ طرف ته خلق را اوبلی هغه دے خیری او د صفت حقدار دے، خواه په هره طریقه یے را اوبلی مثلاً انبیاء علیہم السلام په مُعجزو وغیره سره رابلی، او عالمان په دلیلو نو سره او مجاهدین په تورو سره او مؤذنین په اذان سره. غرض دا چه هر څوک چه مخیر طرف ته رابلل اوکړی هغوی په دے کښ داخل دی. برابره خبره ده که ظاهری اعمالو طرف ته یے را اوبلی یا باطنی اعمالو طرف ته، لکه پیران صاحبان د الله تعالیٰ پیژندګلو طرف ته بلنه کوی. (خازن)

مُفَسِّرِینو دا هم لیکلی دی چه قَالَ اِنَّنِیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ کښی دے طرف ته اشاره ده چه مسلمان کید و سره فخر هم وی. او دا د خپل ځان د پاره سبب د منت هم ګنړی او د دے اسلامی امتیاز د په فخر و عزت سره ذکر هم کوی.

بعضو مُفسرینو دا هم ارشاد فرمایلے دے چه مقصد دا دے چه په دے وعظ ونصیحت او تبلیغ د ځان ته لویه هستی نه واږی بلکه دا د واږی چه د عامو مُسلمانانو نه یو مسلمان څه هم یم.

② وَذَكِّرْ فَاِنَّ الذِّكْرٰى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ ○ (پاره ۲۷. رکوع ۲) | (اے محمد صلی الله علیہ وسلم) خلق پوهه کوه ځکه چه پوهه کول مؤمنانو ته نفع رسوی.

مُفَسِّرِینو لیکلی دی چه د دے نه د قرآنِ پاك آیتونه اَوْرَوْلو سره نصیحت کول مقصود دی چه دا نفع رسونکے دے. مؤمنانو د پاره خو ښکاره خبره ده. او کافرانو د پاره هم د دے لحاظ سره چه هغوی به اِنْشَاءَ الله د دے په ذریعه په مؤمنانو کښ داخل شی او آیت به په هغوی د نِشتنے شی. څو مونږ په دے زمانه کښ د وعظ و نصیحت لاره تقریباً بنده شوے ده، د وعظ مقصد عموماً مزیدار تقریر کرزیدلے دے چه اَورید ونکی یے صفت اوکړی حال دا چه د نبی کریم صلی الله علیہ وسلم ارشاد دے چه څوك تقریر او بلاغت د دے د پاره زده کړی چه خلق ځان ته مائله کړی نو د قیامت په ورځ به د هغه هیڅ یو عبادت قبول نه وی نه فرض نه نفل.

③ وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْئَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ | (اے محمد صلی الله علیہ وسلم) خپل اهل وعیال ته د مانځه حکم کوه او خپله یے هم پابند اوسه. مونږ تا نه روزی

| نَرْزُقُكَ ۖ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى. (پ۱۶ ۔ ع ۱۷) | نهٔ غواړو، روزي خو به تا ته مونږ درکوُو. او بهتر انجام خو د پرهیزګارئ دے. |
|---|---|

په کثرو روایتونو کښې دا مضمون راغلے دے چه کله به نبیِ کریم ﷺ ته دچا د روزئ تنګسیا لرے کوُلو فکر شونو هغهٔ ته به یے دمانځه تاکید اُوفرمایلو او د اپورتنئ آیت به یے تلاوت کړو ګویا دے طرف ته به یے اشاره اُوفرمایله چه د روزئ د فراخئ وعده د مانځه اهتمام سره تړلے ده.

عالمانو لیکلی دی چه په دے آیتِ شریفه کښې د مانځه حُکم کوُلو سره خپله په هغے باندے د اهتمام کوُلو حُکم دے. دا دِے د پاره فرمایلے شوی دی چه دا ډیره زیاته فائده منده ده چه د تبلیغ سره سره د کوم څیز چه بل ته حُکم کوُلے شی په خپله دِهم په هغے باندے اهتمام او پابندی اُوکړے شی چه په دے سره په نورو باندے اثر هم زیات کیږی او د نورو د اهتمام سبب ګرزی ځکه یے دهٔ آیت دپاره انبیاء علیهم السلام رالیږلی دی چه هغوی په طور د نمونے ځانونه پیش کړی نو عمل کوُنکو ته به عمل کوُل آسان شی او د اشک شُبه دِ په زړهٔ کښې) نهٔ تیریږی چه فلانکے حُکم مشکل دے په هغے عمل چرته کیدے شی.

د دے نه پس د رِزق د وعدے کوُلو مصلحت (او فائدهٔ) دا ده چه د مونځ په خپلو وختونو کښې اهتمام کوُلو سره د یر ځله په اسبابو د معاش اُوګذران کښې په ظاهره سبب د نقصان معلومیږی خصوصاً تجارت او ملازمت وغیره کښې. ځکه یے دا شک ورسره لرے کړو چه دا څومره په ذمه دی. دا اُول د دُنیوی کارونو په اعتبار سره دی. پس له دے نه یے په طور د قاعدهٔ کُلیے او تکاره کاریے اُوفرمایل چه بهترین انجام خو بس مُتقیانو د پاره دے په هغے کښې د بل چا اُرو شرکت نشته.

| (۴) يٰبُنَيَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ وَاْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَاصْبِرْ عَلٰى مَآ اَصَابَكَ ۖ اِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ. (پ۲۱ ۔ رکوع ۱۱) | څوئیه! مونځ کوه او د ښو کارونو نصیحت کوه او د بدو کارونو نه منع کوه او په تا چه څهٔ مصیبت راشی په هغے صبر کوه. دا د همت د کارونو نه دی. (بیان القرآن) |
|---|---|

په دے آیتِ شریفه کښې یے ډیر ضروری کارونه ذکر کړی دی۔ او په حقیقت کښې دا کارونه ډیر اَهم او ضروری دی، د ټولو کامیابو ذریعه ده۔ خو موږه خلقو دا خیزونه بالکل شاته غورزولی دی۔ د اَمر بِالمعروف په څهٔ ذکر کوے، دا خو تقریبًا د ټولو په نزد پریخودلے شوے دے، مونږ چه په تمامو عبادتونو کښې د ټولو نه زیات اَهم او ضروری دے او د ایمان نه پس د ټولو نه مخکښې د دے درجه ده۔ د دے نه هم ګومره غفلت کولے شی۔ هغه خلق پریږده چه کوم بیلمازه دی، مونځګذار هم د دے پوره کامل اهتمام نهٔ کوی۔ خصوصًا د جَمع مونځ چه ورته اِقَامَتِ الصَّلٰوة سره اشاره ده دا خو صِرف د غریبانانو د پاره پاتے شوے دے۔ امیرانو او دولتمند خلقو د پاره جُمات ته تلل ګویا شرم ګرزیدلے دے فَاِلَی اللّٰهِ الْمُشْتَکٰی۔ ؎

آں چه عارِ تُست اے افرِ من است۔ "کوم چه شرم ستا دے هغه فخر دے ځما"۔

| | |
|---|---|
| ⑤ وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ۔ (پ۴ - ع ۲) | له تاسو نه یو داسے جماعت ضروری دے چه نیکئ طرف ته بلنه کوی او د ښهٔ کارونو کولو حکم کوی او له بد وکارونو نه منع کول کوی او دغه خلق به پوره کامیاب وی۔ |

الله جل شانهٔ په دے آیتِ شریفه کښې د یو ډیر ضروری مضمون حکم فرمایلے دے هغه دا چه دَ اُمَّت نه د یوه ډله د دے کار د پاره مخصوصه وی چه هغه اسلام طرف ته خلقو ته تبلیغ کوی۔ دا حکم خو د مسلمانانو د پاره وُو خو افسوس دے چه دا اصل کار مونږه خلقو سَرنه پریخے دے، او نورو قومونو په ډیر اهتمام سره دا نیولے دے۔ د نصارٰی (عیسایانو) مُستقل جماعتونه په دُنیا کښې د تبلیغ د پاره مخصوص دی۔ او هم داسے په نورو قومونو کښې د دے کار د پاره مخصوص کارکوونکی موجود دی۔ خو آیا په مُسلمانانو کښې هم چرته داسے جماعت شته؟ د دے جواب کهٔ په نا کښې نهٔ وی نو په اَو کښې هم مُشکل دے۔ کهٔ چرے یوه ډله یا یو کس د دے د پاره پاسی نو په خلقو د اِمداد وړاندے داسے اعتراضونه کول شروع شی چه هغه کهٔ نن نهٔ وی نو صبا ته ستړے شی کینی، حال دا

چه دخیرخواهئ دپاره دا ضروری وهچه دهغهٔ مدد کولے شوے او دهغهٔ دکمزورو اصلاح کولے شوے۔ نهٔ داچه په خپله هم څهٔ کار نهٔ کوی او کار کونکی دا عتراضونو نښنه کړی او دکار کولو نه یے کویا منع کړی۔

(۶) كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ط (پ۴۔ رکوع۳)

تاسو بهترین اُمت یئ چه خلقوته (فائدے رسولو) دپاره ایستلے شوی یئ۔ تاسو دنیک کار حکم کوئ او له بدو کارونو نه منع کوئ او په الله تعالیٰ باندے ایمان لرئ (بیان القرآن او ترجمه عاشقی)

دمُسلمانانو اَشْرَفُ النَّاس او د اُمَّتِ مُحَمَّدِیَه اَشْرَفُ الْاُمَم کیدل په کثرو حدیثونو کښ په ښکاره طورسره راغلی دی۔ دقرآن شریف په ایتونو کښ هم په څو ځایه دا مضمون په ښکاره او اشارةً بیان کړے شوے دے۔ په دے ایتِ شریفه کښ هم دخَیْرَ اُمَّةٍ خطاب فرمایلے شوے دے او ورسره یے ددے وجے طرف ته هم اشاره فرمایلے ده چه تاسو بهترین اُمت یئ ځکه چه تاسو اَمْر بِالْمَعْرُوف او نَهِی عَنِ الْمُنْكَر کوئ۔

مُفَسِّرِیْنُو لیکلی دی چه په دے ایتِ شریفه کښ اَمْر بِالْمَعْرُوْف او نَهِی عَنِ الْمُنْكَر یے دایمان نه هم رومبے ذکراُوفرمایلو، حال داچه ایمان دټولو خیزونو اَصَل (او بُنیَاد) دے او بغیر ایمانه هیڅ یوه نیکی مُعتبره نهٔ ده۔ ددے وجه دا ده چه په ایمان کښ تیرشوی اُمَّتُونه هم شریك وُو، دا خاص خصوصیت چه دهغے په وجه دټولو پیغمبرانو علیهم السلام اُمتونو نه اُمَّتِ مُحَمَّدِیَّه ته اوچتوالے حاصل دے هغه د اَمْر بِالْمَعْرُوْف او نَهِی عَنِ الْمُنْكَر دے چه ددے اُمَّت خصوصی نښنه ده۔ او چونکه بے دایمان نه هیڅ یوه نیکی معتبره نهٔ ده نو ددے دپاره ورسره یے په طور د شرط ددهٔ هم ذکراُوفرمایلو، کنی اصل مقصود په دے ایتِ شریفه کښ هم دهغے ذکرفرمایل وُو او هم هغه دا ځائ بیانول مقصد دے ځکه یے هغه رومبے ذکرکړو۔

ددے اُمت دپاره دخصوصی نښے کیدو مطلب دا دے چه ددے خاص اهتمام اُوکړے شی، کنی هسے خو په کړزیدو راکړزیدو کښ بغیر د

اهتمام نه تبلیغ کول په دے کښې نه کافی کیږی ځکه چه دا کار خو په پرومبو امتونو کښې هم موندلے شو چه هغه یے فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهٖ وغیره ایتونو کښې ذکر فرمایلی دی. خطاب په مخصوص اهتمام دے چه د امُستقل کار او گنړی. او د دین د نورو کارونو په شان په دے کښې مشغول اوسی.

(۷) لَا خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوٰىهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ۔ (پ۵۔ رکوع ۱۷)

دعامو خلقو په اکثرو پټو خبرو کښې خیر (او برکت) نه وی خو کوم خلق چه دا سے دی چه د صدقے، خیرات یا د بل یو نیک کار یا د خلقو په مینځ کښې د اصلاح کولو ترغیب ورکوی (او د دے تعلیم او ترغیب د پاره پټ تک بیرونه او مشورے کوی البته د هغوی په مشورو کښې خیر و برکت شته) او هر څوک چه دا کار (یعنی د نیکو عملونو ترغیب ورکول صرف) د الله تعالیٰ د رضا د پاره کوی (نه چه د لالچ او د شهرت په غرض نزدے ده چه هغهٔ ته به مونږ لوئی اجر ورکړو.

په دے ایت کښې الله جل شانهٗ د اَمَرَ بِالْمَعْرُوف کوونکو د پاره د لوئی اجر وعده فرمایلے ده، او کوم اجر ته چه الله جل شانهٗ لوئی اجر اوفرمائی د هغے انتها مچرته کید ے شی (یعنی نهٔ ختمیږی)

د دے ایتِ شریفه په تفسیر کښې د نبی کرم ﷺ ارشاد نقل کړے شوے دے چه د بنیا دم هره خبره په دهٔ باندے وبال دے خو دا چه اَمَرَ بِالْمَعْرُوف او نَهٖی عَنِ الْمُنْكَر وی یا د الله تعالیٰ ذکر وی.

په نورو حدیثونو کښې د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه ایا څهٔ تاسو ته دا سے یو څیز اونهٔ ښایم چه د نفلی مونځ، روژے، صدقے د ټولو نه بهتر وی. اصحابو رضی الله عنهم عرض اوکړو، ضرور ارشاد اوفرمائی. نبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد اوفرمایل چه د خلقو روغه کول، ولے چه په خپلو کښې یو تربله ورانی او دُشمنی نیکئ د اسے صفا کوی ځکه چه (د ناښکانو) چاړهٔ ویښته صفا کوی. نور هم په ډیرو ایتونو کښې د خلقو په مینځ کښې صلح کولو په باره کښې تاکید فرمایلے شوے دے. په دے حای

کښې دغې ذکر مقصود نه دے. دے ځائې کښې د دے خبرے بیانول مقصود دی چه اَمر بِالمعروف کښې داهم داخل دی چه د خلقو په مینځ کښې د صُلح شکل په کومه طریقه پیدا کولے شی، د دے د هم ضرور اهتمام اُوکړے شی۔

# دویم فصل

کښې دغې حدیثونه د بعضو ترجمه ده چه د پورتنی مضمون متعلق راغلی دی. د ټولو حدیثونو جمع کول مقصود دی او نه کیدے شی. داهم ده که چرے په ځه زیات مقدار کښې ایتونه حدیثونه جمع کړے شی نو د دے ویره ده چه ګوری به یے څوك؟ نن صبا د اسے کارونو د پاره چا ته فرصت دے او چا سره وخت دے. صرف د دے خودنے د پاره او تاسو حضراتو ته د رسُولو د پاره چه نبی اکرم ﷺ څومره په اهمیت د دے تاکید فرمایلے دے. او د نه کولو په حالت کښې یے څومره سخته سزا او زورنه فرمایلے ده. یو څو حدیثونه ذکر کولے شی۔

(۱) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِنِ الْخُدْرِیِّ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰہِ ﷺ یَقُوْلُ مَنْ رَاٰی مِنْکُمْ مُنْکَرًا فَلْیُغَیِّرْہُ بِیَدِہٖ فَاِنْ لَّمْ یَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِہٖ فَاِنْ لَّمْ یَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِہٖ وَذٰلِكَ اَضْعَفُ الْاِیْمَانِ۔

د نبی کرم ﷺ ارشاد مُبارك دے، هر څوك چه له تاسونه ناروا کار اُوینی (که طاقت یے وی) په لاس د دے بند کړی که د و مره یے هم طاقت نهٔ وی نو په ژبه د په هغې انکار اُوکړی او که د د سره نے هم طاقت نهٔ وی نو په زړهٔ کښې د هغه بد اُوګنړی او دا د ایمان ډیره کمه درجه ده۔

(رواه مسلم والترمذی وابن ماجة والنسائی کذا فی الترغیب)

یو بل حدیث کښې راغلی دی که چرے په ژبه یے د بندولو طاقت وی نو بند د کړی کنې په زړهٔ سره د هغه بد اُوګنړی په دے حالت کښې هم د دهٔ غاړه خلاصه شوه۔

په یو بل حدیث کښې راغلی دی چه څوك یے په زړهٔ بد اُوګنړی هغه هم مؤمن دے خو د دے نه کمه درجه د ایمان نشته. د دے مضمون په باره

کښې بې شمار ارشادات د نبي کریم ﷺ نه په مختلفو حدیثونو کښې نقل کړې شوي دي. اوس له دې سره د دې ارشاد په منلو باندې هم یو نظر واچوئ چه څو مره کسان په مونږ کښې داسې دي چه څه ناجائز کار په کید واوینې، په لاس یې بندوي یا صرف په ژبه د هغې د بندې او ناجائز والي اظهار کوي یا کم نه کم هغه د ایمان د ضعیف درجې برابر په زړه سره هغه بد ګڼړي یا هغه کار په کید وینې نو زړه یې بې قراره کیږي. ځان له یو لحظه چه کینئ لږ شان غور خو اوکړئ چه څه کیدل پکار وو او څه کیږي.

② عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ رضي الله عنه قَالَ مَثَلُ الْقَائِمِ فِيْ حُدُوْدِ اللّٰهِ وَالْوَاقِعِ فِيْهَا كَمَثَلِ قَوْمٍ اِسْتَهَمُوْا عَلٰى سَفِيْنَةٍ فَصَارَ بَعْضُهُمْ اَعْلَاهَا وَبَعْضُهُمْ اَسْفَلَهَا فَكَانَ الَّذِيْ فِيْ اَسْفَلِهَا اِذَا اسْتَقَوْا مِنَ الْمَاءِ مَرُّوْا عَلٰى مَنْ فَوْقَهُمْ فَقَالُوْا لَوْ اَنَّا خَرَقْنَا فِيْ نَصِيْبِنَا خَرْقًا وَلَمْ نُؤْذِ مَنْ فَوْقَنَا فَاِنْ تَرَكُوْهُمْ وَمَا اَرَادُوْا هَلَكُوْا جَمِيْعًا وَاِنْ اَخَذُوْا عَلٰى اَيْدِيْهِمْ نَجَوْا وَنَجَوْا جَمِيْعًا (رواه البخاري والترمذي)

د نبي اکرم ﷺ ارشاد مبارک دې چه د هغې کس مثال چه کوم د الله تعالیٰ په حدودو باندې قائم دې او د هغې کس چه کوم د الله تعالیٰ په حدودو کښې پریوتونکې دې (یعني چه څوک د الله تعالیٰ حکمونه پوره کوي او چه څوک یې ماتوي) د هغې قوم په شان دې چه په یو (د اوبو) جهاز کښې ناست وي او په قرعه یعني حصې سره (مثلاً) د جهاز منزلونه او (درجې) مقرر شوې وي چه بعضې خلق د جهاز په برنئ درجه کښې وي او بعضې په لاندینئ درجه کښې وي. هر کله چه د لاندینئ درجې خلقو ته د اوبو ضرورت شي نو هغوي د اوبو اخستو د پاره برنئ حصې ته خیژي. که چرې هغوي د اخیال اوکړي چه مونږه بیا بیا بره د اوبو د پاره ختلو سره پاسنو خلقو ته تکلیف رسیږي. راځئ چه مونږه هم په دې خپله حصه کښې یعني د جهاز په لاندینئ درجه کښې یو سوری سمندر طرفته اوکړو چه د هغې نه به مونږ ته اوبه هم د لته حاصلیږي او برني خلقو ته به تکلیف نه ورکوو. په داسې حالت کښې که چرې هغه برنئ (خلق) د دې کم عقلو د تجویز

بند نه کړي او دا خیال اوکړي چه دوی پوهه شه او د دوی کار، خصوصًا د دوی سرو شهٔ کار. نو په دے حالت کښ به هغه جهاز ډوب شي او دوا به په لښه هلاک شي او که چرے هغوی دوی بند کړي نو دوا به په لے به د ډوبیدو نه بچ شي"۔

اصحابو کرامو رضی اللہ عنہم د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه پوښتنه اوکړه چه آیا مونږ خلق به داسے حالت کښ هم تباه او برباد کیدے شو چه مونږه کښ نیکان او مُتّقیان خلق موجود وي؟ نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد اوفرمایهٔ چه هو. کله چه خباثت (یعني فِسق وفجور، نا کاروالے ګناهونه) غالب (او زیات) شي.

نن صبا د مسلمانانو د تباهۍ او بربادۍ هر طرف ته سندرے ویلے شي، شور او غوغا کولے شي، نوے نوے طریقے د دوی د اصلاح دپاره تجویز کولے شي. خو دچا روشن خیاله (د نوي تعلیم عاشق) په خهٔ وایے، دچا تاریک خیاله (مُلا صاحب) نظر هم دے طرف ته نهٔ ځي چه حقیقي طبیب او شفیق مُربّي خُهٔ مرض تشخیص فرمایلے دے او خهٔ علاج یے خودلے دے او په هغے باندے څومره درجے عمل کولے شي. آیا د دے ظلم خهٔ انتها شته؟ کوم چه سبب د مرض دے، د کوم نه چه مرض پیدا شوے دے هم هغه علاج تجویز کولے شي. (چه د دین د ترقۍ دپاره د دین نه او د اسبابو د دین نه بے توجهي او بے پرواهي کولے شي او خپل ناقص رائیو باندے عمل کولے شي) نو دا مریض چه د صبا په ځائې نن نه هلاکیږي نو کله به کیږي. ؎

میرؔ کیا سادہ ہیں بیمار ہوئے جس کے سبب ❋ اسی عطار کے لڑکے سے دوا لیتے ہیں

میرؔ (شاعر) څومره ساده دے چه دچا د وجے بیمار شوے دے هم د هغے دارو خر څونکي د هلک نه دارو اخلي ".

(۳) عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اَوَّلُ مَا دَخَلَ النَّقْصُ عَلٰى بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اَنَّهٗ كَانَ الرَّجُلُ يَلْقَى الرَّجُلَ فَيَقُوْلُ يَا هٰذَا اِتَّقِ اللّٰهَ وَدَعْ

د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد مُبارک دے چه په بني اسرائیلو کښ د ټولو نه وړومبے زوال په دے شان شروع شو چه یو کس به د بل سړي یو ځائې شو او په یو ناجائز کار کولو به یے اولید و نو هغه به یے منع کولو چه ګوره د الله تعالیٰ نه

مَا تَصْنَعُ بِهٖ فَاِنَّهٗ لَا يَحِلُّ لَكَ ثُمَّ يَلْقَاهُ مِنَ الْغَدِ وَهُوَ عَلٰى حَالِهٖ فَلَا يَمْنَعُهٗ ذٰلِكَ اَنْ يَّكُوْنَ اَكِيْلَهٗ وَشَرِيْبَهٗ وَقَعِيْدَهٗ فَلَمَّا فَعَلُوْا ذٰلِكَ ضَرَبَ اللّٰهُ قُلُوْبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ ثُمَّ قَالَ لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْۢ بَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ اِلٰى قَوْلِهٖ فٰسِقُوْنَ ثُمَّ قَالَ كَلَّا وَاللّٰهِ لَتَاْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَتَاْخُذُنَّ عَلٰى يَدِ الظَّالِمِ وَلَتَاْطِرُنَّهٗ عَلَى الْحَقِّ اَطْرًا۔

(رواه ابی داؤد والترمذی كذا فی الترغيب)

اُو ویریږه وائے مه کوه خو دَ هغهٔ په نهٔ منلو باندے به هم هغهٔ دخپلو تعلقاتو په وجه په خوراک څکاک او ناسته ولاړه کښې ورسره هم هغه معامله کوله څنګه چه ړومبے به یے کوله. هرکله چه عام طور دا کار شروع شو نو الله تعالیٰ دبعضو زړونه دبعضو سره ګډ کړل (یعنی دنا فرمانو زړونه چه څنګه وُو، دهغوی په سپیره توب سره دَ فرمانبردارو زړونه یے هم هغے کړل) بیا دد ے په تائید کښې دقرآن شریف آیتونه لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا نه تر فٰسِقُوْنَ پورے یے اُولوستل له دے نه پس نبی اکرم ﷺ په ډیر تاکید سره داحکم اُوفرمایلو چه اَمْر بِالْمَعْرُوْف اَو نَهْی عَنِ الْمُنْكَر کوئ او ظالم د ظلم نه منع کوئ او هغه حق خبرے طرف ته را اُخکلے راولئ۔

دویم حدیث کښې راغلی دی چه نبی اکرم ﷺ تکیه وهلے وه ناست وُو په جوش کښې پاسید و کیناسته او قسم یے اُوخوړ، ویے فرمایل چه تاسو خلاصے نهٔ شئ مُوندے، ترڅو چه ظالم د ظلم نه منع نهٔ کړئ۔

یو بل حدیث کښې دی چه نبی اکرم ﷺ قسم اُوخوړ او ویے فرمایل چه تاسو اَمْر بِالْمَعْرُوْف اَو نَهْی عَنِ الْمُنْكَر کوئ او ظالمان د ظلم نه منع کوئ او حق خبرے طرف ته یے راکاږئ راولئ، ګنې ستاسو زړونه به هم هغه شان ګډ وډ کړے شی بلکه څنګه چه دهغے خلقو ګډ وډ کړے شو او دغه شان په تاسو باندے به هم لعنت اُوشی څنګه چه په هغوی یعنی په بنی اسرائیلو اُوشو۔

دقرآن شریف آیتونه یے په تائید کښې دد ے دپاره اُولوستل چه په دے آیتونو

کښې په هغې خلقو باندې لعنت کړے شوے دے او سبب د لعنت یې د هغې تو لو ډ نورو سببونو نه دا هُم دے چې هغوی به د مُنکراتو نه اَرَوَاوُنه یو بل نه منع کول.

نن صبا د ا صفت او کمال ګڼړلے شی چې سړے صُلح کُل اُوسی، کوم ځائی ته چې لاړ شی هغه سره خبرے کوی. د ا کمال او اُوچت اخلاق ګڼړلے شی حال دا چې دا عام طور غلطه ده بلکه کوم ځائی کښې چې اَمَر بِالْمَعْرُوف وغیره قطعاً فائده مند نه وی ممکنه ده چې صِرف د خاموشئ ګنجائش راوُزی (نهٔ چې په اوُ کښې دَ او شاملو لو) لیکن کوم ځائی کښې چې فائده مند کیدے شی مثلاً په خپل اولاد کښې خپلو ماتحتو (نوکرانو خدمت ګارانو) خلقو کښې - په هغه ځائی کښې په هیڅ شان خاموشی د اخلاقو کمال نهٔ دے بلکه چُپ پاتے کیدو نکے شرعًا او عُرفاً په خپله مُجرم او ګنهګار دے.

سُفیان ثَوری رحمة الله علیه فرمائی، کوم کس چې په خپلو ګاونډیانو کښې محبوب وی او په خپلو رونړو کښې محمود (ښهٔ) وی (غالبه دا ده) چې هغه به مُدَاهِن وی.

ګڼړو روایتونو کښې دا مضمون راغلے دے چې کله یو ګُناه پټه کولے شی د هغې ضَرَر او وبال په کونکی باندے وی خو کله چې ګناه ښکاره کولے شی او خلق د هغې په منع کولو باندے طاقت لری او بیا یې نهٔ منع کوی نو د هغې ضرر او نقصان به هم عام وی.

اُوس دِ هر یو کس په خپل حالت باندے غور اُوکړی چې څو مره ګناهونه د دهٔ په عِلم کښې داسے کولے شی چې دے هغه بندَوُلے شی او بیا دے د بے توجُهئ بے پرواهئ او بے فکرئ نه کار اخلی. او د دے نه لوئی ظلم دا دے چې څوک د الله تعالیٰ بنده د هغې د بندَوُلو کوشش کوی نو د هغهٔ مخالفت کولے شی هغهٔ ته تنګ نظره وئیلے شی، د هغهٔ د امداد کولو په ځائی د هغهٔ مقابله کولے شی.

وَسَيَعْلَمُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا اَیَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ ط

(۳) عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رضي الله عنه قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم يَقُوْلُ مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُوْنُ فِيْ قَوْمٍ يَعْمَلُ فِيْهِمْ بِالْمَعَاصِيْ يَقْدِرُوْنَ

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارک دے کهٔ په یو ډله او قوم کښې څوک سړے د څهٔ ګناه عمل کوی او هغه ډله او قوم سره له قدرته هغه سړے د هغې ګناه نهٔ نهٔ منع کوی نو هغوی ته د

عَلٰی اَنْ یُّغَیِّرُوْا عَلَیْهِ وَلَا یُغَیِّرُوْنَ اِلَّا اَصَابَهُمُ اللّٰهُ بِعِقَابٍ قَبْلَ اَنْ یَّمُوْتُوْا۔

مرګ نه رومبے په دُنیا کښ الله تعالیٰ عذاب وَرَرَسَوِی۔

(رواه ابوداؤد وابن ماجة وابن حبان والاصبهانی وغیرهم کذا فی الترغیب)

خپل مخلص بزرګانو! او د اسلام او د مسلمانانو د ترقۍ آرزومندو دوستانو! دا دی د مسلمانانو د تباهۍ اسباب، او ورځ په ورځ د بربادۍ وجوهات۔ هر سړے دِ پردوته نه، سیالانوته نه، د خپل کور خلقو ته، خپلو کشرانو ته، خپل اولاد ته، خپلو ماتحتوته څه لږ ساعت په دے نظر سره اُوګوری چه څومره په ښکاره ګناهونو کښ دغه خلق اخته دی او تاسو حضرات په خپل ذاتی وجاهت او اثر رُسُوخ سره هغوی منع کوئ که نه۔ منع کول خو پرېږده، د منع کولو اراده هم کوئ که نه؟ یا ستاسو په زړه کښ څه وخت چرے دا خطره هم تیره شوې چه دا نیازبین خوئ م څه کوی۔ که چرے هغه د حکومت څه جُرم اُوکړی جُرم هم نه، په سیاسی مجلسونو کښ ګډون قدرے اُوکړی نو ته فکرمند شے، هسے نه چرته مونږ ورسره پکښ لتاړ نه شو۔ هغه ته زُورَنه ورکوئے شی او د خپلے صفائۍ او ویزارۍ تدبیرونه اختیار وئے شی خو چرته د اَحْکَمُ الْحَاکِمِیْن د مجرم سره هم دغسے معامله کوئے شی کومه چه د معمولی عارضی حاکِمِ د مجرم سره کوئے شی۔

ته ښۀ پوهیږے چه نیازبین خوئ م د شطرنج شوقین دے، په تاش باندے زړۀ مشغولوی۔ څو څو وخته د مانځه وربانده تیرشی پرواه یے نۀ لری۔ خو افسوس! ستا د خُلے نه چرے په غلطئ سره هم دا نۀ اُوزی چه دا څۀ کوے؟ دا د مُسلمانانو کار ونه نۀ دی، حال دا چه تا د پاره دا حُکم دے چه خورا ک څکاک ورسره پرېږده۔ لکه څنګه چه رومبے تیرشوی دی۔ ؎

ببین تفاوتِ ره از کجا است تا به کجا

اُوګوره دلارے فرق د کوم ځائی نه تر کومے پورے دے۔

دا مے به ډیر خلق بیاموے چه د خپل خوئی نه په دے وجه ناراضه وی چه هغه ناراسته دے، کور پروت وی د نوکرئ کوشش نۀ کوی یا د دُوکان کار په جلتۍ سره نۀ کوی۔ خو دا سے خلق به ډیر کم بیاموے چه د خوئی نه په دے ناراضه وی

چه هغه د جَنِبع دماغه پرواه نه کوی یا مونځ قضا کوی۔

بزرګانو او دوستانو! ګله چرے صِرف د آخرت وبال وے، بیا هُم دا کارونه دومره قابل وُو چه ددے نه په میلونو لرے تختید لے وے خو مُصیبت (او غم) خو دا دے چه ددے دُنیا تباهی هُم چه مونږ ډیرے په عمل سره د آخرت نه مخکښ ګټړو، هم ددے کارونو په وجه سره ده۔

غور خو اوکړئ ددے پرُوند والی څهٔ حد شته مَنْ كَانَ فِيْ هٰذِهٖٓ اَعْمٰى فَهُوَ فِى الْاٰخِرَةِ اَعْمٰى. حقیقی خبره دا ده چه دخَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ وَعَلٰٓى اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ سورے پرے پریوتلے دے۔

⑤ رُوِیَ عَنْ اَنَسٍ رضی اللہ عنہ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم قَالَ لَا تَزَالُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ تَنْفَعُ مَنْ قَالَهَا وَتَرُدُّ عَنْهُمُ الْعَذَابَ وَالنِّقْمَةَ مَا لَمْ يَسْتَخِفُّوْا بِحَقِّهَا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْاِسْتِخْفَافُ بِحَقِّهَا قَالَ يَظْهَرُ الْعَمَلُ بِمَعَاصِي اللّٰهِ فَلَا يُنْكَرُ وَلَا يُغَيَّرُ.

(رواه الاصبهانی۔ ترغیب)

د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم نه دا هُم نقل کړے شوے دی چه (کلمهٔ توحید) لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ویُونکی ته همیشه نفع ورکوی او له هغهٔ نه عذاب او بلا لرے کوی تر څو چه ددے دحقونو نه بے پرواهی او استخفاف اُونه کړے شی. اَصحابو رضی اللہ عنہم عرض اُوکړو چه ددے دحقونو نه د بے پرواهئ او استخفاف کید لو څهٔ مطلب دے؟ نبی علیه السلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه د الله تعالیٰ نافرمانئ په ښکاره طور کولے شی او د هغه بندولو کوشش اُونهٔ کړے شی۔

اُوس تا سو لږ شان په انصاف سره اُوفرمایئ چه په دے زمانه کښ د الله تعالیٰ د نافرمانو څهٔ انتها څهٔ حد شته او د هغے د منع کولو یا بندولو یا کم نه کم د کمولو څهٔ محنت کوشش شته؟ هرګز نشته. په دا سے خطرناک ماحول (ګیر چاپیره خوا اُوشا) کښ د مسلمانانو په عالم کښ موجودګی د الله تعالیٰ حقیقی انعام دے کنی مونږ د خپلے بربادئ او تباهئ دپاره کوم هغه اسباب دی چه پید اکړی مُونهٔ دی۔

حضرت عائشے رضی اللہ عنہا د نبی کرم صلی اللہ علیہ وسلم نه پوښتنه اُوکړه که چرے د الله تعالیٰ څهٔ عذاب د زمکے په خلقو باندے نازلیږی او هلته څهٔ دیندار ه خلق هم وی نو آیا

هغوی ته به هم نقصان رسی؟ نبی علیه السلام وفرمایل چه په دُنیا کښې خوبه تولوته اثر رسی خو په آخرت کښې به هغه خلق د گنهگارانو نه بیل کړے شی۔

دے دپاره هغه حضرات چه په ځلے دیندارئ مطمین دی او د دنیا دخلقو نه یو طرف ته ناست دی، د دے نه دِ نه بے فکره کیږی، که چرے الله مه کړه دنا روا کارونو په خوریدو او عام کیدو سره څه بلا نازله شوه نو دوی ترے هم نشی بچ کیدے) دوی ته به هم هغه عذاب وررسی۔

⑥ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ اَنْ قَدْ حَضَرَهُ شَيْءٌ فَتَوَضَّأَ وَمَا كَلَّمَ اَحَدًا فَلَصِقْتُ بِالْحُجْرَةِ اَسْتَمِعُ مَا يَقُوْلُ فَقَعَدَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ وَقَالَ يَا اَيُّهَا النَّاسُ اِنَّ اللهَ تَعَالٰى يَقُوْلُ لَكُمْ مُرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ قَبْلَ اَنْ تَدْعُوْا فَلَا اُجِيْبَ لَكُمْ وَتَسْاَلُوْنِيْ فَلَا اُعْطِيَكُمْ وَتَسْتَنْصِرُوْنِيْ فَلَا اَنْصُرَكُمْ فَمَا زَادَ عَلَيْهِنَّ حَتّٰى نَزَلَ۔ (رواه ابن ماجة وابن حبان في صحيحه كذا في الترغيب)

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم یو ځلے کور ته تشریف راوړو، نوما یے په مخ مبارک باندے یو خاص اثر اولیدهٔ، محسوس مے کړه چه څهٔ ضروری خبره پیښه شوے ده۔ نبی علیه السلام چا سره څهٔ خبره اتره اُونهٔ فرمایله او اُودس یے اُوکړو، جمات ته یے تشریف یوړو۔ ځهٔ د کوټګئ دیوال سره یوسته اُودریدلو دپاره اُودریدمه چه څهٔ ارشاد فرمائی۔ نبی علیه السلام په منبر تشریف فرما شو او حمد وثنا نه پس یے وُفرمایل اے خلقو! دالله تعالیٰ ارشاد دے چه تاسو امر بِالْمَعْرُوف او نهی عَنِ الْمُنْكَر کوئ، هسے نه چه هغه وخت راشی چه تاسو به دُعا غواړئ او هغه به نهٔ قبلیږی او تاسو به سوال کوئ او سوال به مو نهٔ پوره کیږی، تاسو به د خپلو دُشمنانو خلاف ما نه مدد غواړئ او ځهٔ به ستاسو مدد نهٔ کوم۔ دا پاکے مُبارکے خبرے نبی علیه السلام ارشاد اُوفرمایلے او د منبر نه ښکته راکوز شو۔

دے مضمون ته دِ هغه حضرات په خصوصیت سره توجهٔ وفرمائی چه دَ دُشمن دمقابلے دپاره په دینی کارونو کښې چشم پوشئ او اسانتیا باندے زور

ورکوی حال دا چه د مسلمانانو اعانت او امداد رهم د دین په پوخوالی کښې پټ پروت دے۔

حضرت اَبُو دَرْدَاء رضی اللہ عنہ یو د لوئی مرتبې صَحابی دے، فرمائی چه تاسو اَمر بِالْمَعْرُوف او نَهی عَنِ الْمُنْکَر کوئ، کنې الله تعالیٰ به په تاسو داسے ظالم بادشاه مقرر کړی چه ستاسو د مشرانو به عزت نه کوی او ستاسو په کشرانو به رحم نه کوی. په هغه وخت کښې به ستاسو غوره بزرګان خلق دعا ګانے کوی نو قبلیږی به نه، تاسو به مدد غواړئ مدد به درسره نشی کوَلے، بخښنه به غواړئ بخښنه به درته نشی کوَلے. په خپله د الله جل جلاله ارشاد دے:

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ اَقْدَامَكُمْ (سورۂ محمد ع۱) | اے ایمان والو اکه چرے تاسو د الله تعالیٰ مدد وکړی نو الله تعالیٰ به ستاسو مدد اُوکړی (او د دشمنانو په مقابله کښې به) ستاسو قدمونه محکم کړی۔ (بیان القرآن) |
|---|---|

بل ځائے د الله تعالیٰ ارشاد دے اِنْ يَّنْصُرْكُمُ اللّٰهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ الاٰية۔

ترجمه:- که چرے الله جل شانهٔ ستاسو مدد وکړی نو هیڅوک په تاسو غالب نه شی راتلے او که چرے هغه ستاسو مدد اُونه کړی نو بیا بل څوک دے چه ستاسو مدد کوَلے شی او صرف هم الله تعالیٰ باندے مؤمنانو ته اعتماد (او تکیه) ساتل پکار دی۔

دُرِّ مَنْثُور کښې په روایت د تِرْمِذِیُ وغیره د حضرت حُذَیْفَه رضی اللہ عنہ نه نقل کړے دے چه نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم قسم اُوخوړ، دا ارشاد یے اُوفرمایلو چه تاسو خلق اَمر بِالْمَعْرُوف او نَهی عَنِ الْمُنْکَر کوئ، کنې الله جل جلاله به خپل عذاب په تاسو باندے مقرر کړی بیا که تاسو دعا ګانے هم غواړئ نو قبلیږی به نه۔

تر دے حالته رارسیدلے څما بزرګان د اول دا سوچ او فکر اوکړی چه مونږ خلق د الله تعالیٰ څومره نافرمانئ کوُو، بیا به معلومه شی چه څمونږ کوششونه ولے بے کاره کیږی او دعا ګانے مو ولے بے اثره کیږی (او نه قبلیږی) مونږ د خپلے ترقئ څخم کړو یا په خکته د تلو د برباد ئ۔

| ⑦ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اِذَا عَظَّمَتْ | د نبی کرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد مبارک دے چه کله څما اُمت دُنیا لوئی څیز اُوګڼړی نو د اسلام هیبت |
|---|---|

أُمَّتِيَ الدُّنْيَا نُزِعَتْ مِنْهَا هَيْبَةُ الْإِسْلَامِ وَإِذَا تَرَكَتِ الْأَمْرَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيَ عَنِ الْمُنْكَرِ حُرِمَتْ بَرَكَةَ الْوَحْيِ وَإِذَا تَسَابَّتْ أُمَّتِي سَقَطَتْ مِنْ عَيْنِ اللّٰهِ (كذا في الدر عن الحكيم الترمذي)

او عظمت به د دوی د زړونو نه اُوزی او کله چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر پریږدی نو د وحی له برکاتو نه به محرومه کړے شی او کله چه په خپلو کښې یو تر بله سره کنځل شروع کړی نو د الله جل شانه د نظر (د رحمت) نه به اُوغورزیږی.

اے د قوم خیرخواهانو! د اسلام د ترقئ او د مسلمانانو د ترقئ د پاره هر سړے کوشش او محنت کوونکے دے خو کوم اسباب چه مے د پاره اختیارولے شی هغه ته خلکه غور ږدلو طرف ته بوتلونکی دی. که چرې په حقیقت کښې تاسو خپل رسول (حمّارُوح د ترے قربان دی ﷺ) له رښتنی رسول گڼړئ، د هغه تعلیم رښتنے تعلیم گڼړئ نو بیا خبره وجه ده چه کوم څیز هغه سبب د مرض بنائی کوم څیزونو ته چه هغه د بیمارئ جرړه فرمائی، هم هغه څیزونه ستاسو په نزد سبب د شفا او صحت گرځولے شی. "د نبی کرم ﷺ ارشاد دے چه هیڅ یو کس تاسو نه تر هغه وخته پورے (کامل) مسلمان کیدے نشی ترڅو چه د هغه خواهش د هغه دین تابع نه شی کوم چه ما راوړے دے". خو ستاسو رائے داده چه د مذهب پرده د له مینځه لرے کړے شی چه مونږه هم د نورو قومونو په شان ترقی اُوکړو.

د الله جل شانه ارشاد دے:-

مَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ وَمَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ نَصِيبٍ (پ ۲۵ . ع ۴)

هغه څوک چه د اخرت د فصل طلبگار وی مونږ به د هغه په فصل کښې ترقی ورکړو او څوک چه د دُنیا د فصل طلبگار وی مونږ به هغه له څه قدرے دُنیا ورکړو او په اخرت کښې د هغه هیڅ حصه نشته (بیان القرآن)

حدیث شریف کښې راغلی دی چه کوم مسلمان اخرت خپل اصلی مقصود جوړه کړی نو الله جل شانه به د هغه زړه غنی کړی او دُنیا به ورته ذلیله راځی او چه څوک دُنیا اصل مقصد اُوگرځوی، په پریشانو کښې به اخته شی، او له دُنیا نه به چه

خو صره حصه په تقدیر کښې لیکلے شوے وی دهغې نه به زیاته بیا نهٔ مومی.

نبی کرم ﷺ د دغے ایتِ پاک تلاوت نه پس ارشاد وُفرمایلو چه د الله جلّ شانهٔ ارشاد دے، اے د آدم ځویه! ته ځما عبادت دپاره ځان فارغ کړه، ځهٔ به ستا سینه د غِنیٰ نه ډکه کړم او د ګکرونو نه به ئے خالی کړم، او ستا غریبی به لرے کړم، کنې ستا زړهٔ به د سوَو نو مشغلونه ډک کړم او ستا غریبی به بندَ به نهٔ کړم دا د الله تعالیٰ او دهغهٔ د رسول ﷺ ارشاد دے او ستاسو رائے دا ده چه مسلمانان په ترقی کښې ځکه رُستو شوی دی چه کومه لار د ترقیٔ دپاره اختیارَوُلے شی دملایا نو په هغے کښې بندِیز پید اکوی. تاسو لږ د انصاف په نظر سره اُوګورئ که چرے د ملایان داسے لالچیان دی نو ستاسو حضراتو ترقی خو به د دوی دپاره د خوشحالیٔ سبب وګرزی - ولے چه هرکله د دوی روزی ستاسو په ګُمان کښې ستاسو په ذریعے سره ده. نو بیا چه څومره فراخی او د مال دولت زیاتوالے په تاسو وی هغه به د دوی دپاره هم سبب د فراخیٔ، مالدارئ او اسانتیا وی. خو دا خود غرضه (او لالچیان) بیا هم ستاسو مخالفت کوی، نو معلومه شوه چه ضرور څهٔ مجبوری خو د وی ته پیښه ده چه: هغې له کبله دوی هغه خپله فائدهٔ هم ضائع کوی او ستاسو په شان احسان کوُنکو او پرورش کوُنکو سره وَرانَوی نو ګویا چه خپله دُنیا خرابَوی.

ځما دوستانو لږ شان غور خو اُوکړئ، که چرے د ملایان یو داسے خبره اُوکړی چه په قرآن شریف بښکاره طور موجود وی نو بیا د دوی د ضد نه له هغے نه منکر زوَل نهٔ صرف د عقل نه لرے خبره ده بلکه د اسلام د شان نه هم لرے ده. د ملایان که هر څومره نااهله وی خو هرکله چه بښکاره ارشاد د الله جلّ شانهٔ او ارشاد د نبی کریم ﷺ تاسو ته رسَوی، نو تاسو ته په دغے ارشاداتو عمل کوُل فرض دی او د نهٔ منلو په حالت کښې جواب ورکوُل (الله جلّ شانهٔ ته) په تاسو لازمی دی. - څوک بے وقوف نه بے وقوف هم دا نهٔ شی ویلے چه د سرکاری قانون ځکه پرواه نهٔ کوُم چه اعلان کوُنکے چوړے وو.

تاسو حضرات دا مهٔ وائئ چه د ملایان چه د دینی کارونو دپاره خپل ځان

مخصوص کیدلو دَعوے کوی، همیشه دَ دُنیا دَ خلقو نه سوال کوی ځکه چه
تر کومے پورے چه څما خیال دے، حقیقی مُلا دخپل ذات دپاره چرے سوال نه کوی
بلکه هر څو مره چه هغوی دالله تعالیٰ په عبادت کښ غرق او مشغول وی،
هُم هغه قدرے په استغناء او بے پرواهئ سره هدیه هم قبلوی. البته که څه
دینی کار دپاره سوال کوی، په هغے به انشاء الله دځان دپاره دنه سوال کولو
نه زیات اجر مومند ونکی وی.

یو عامه شُبه داکولے شی چه دینِ محمّدی کښ دَ رَهبانیت یعنی د ترکِ دُنیا تعلیم نشته، په
دے کښ دین او دُنیا دواړه یو ځائے راغونډ لے شوی دی. دالله تعالیٰ ارشاد دے
رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ، او په دے
ایتِ شریفه باندے ډیر زور ورکولے شی گویا چه په ټول قرآن شریف کښ دَ
عمل کولو دپاره هم دا یو ایت نازل شوے دے. لیکن اول خو دا ایتِ شریفه
تفسیر دعلم دماهرو عالمانو نه معلومولو ضرورت وو. هُم له دے وجے عالمانو
فرمایلی دی چه په لفظی ترجمه کتلو سره خپل ځان دقرآن عالم گنړل
جهالت دے. صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم او حضرات تابعین رحمهم الله نه چه دَ دے ایتِ شریفه
کوم تفسیرونه نقل شوی دی هغه لاندے لیکلے شوی دی.

دَحضرت قتاده رحمة الله علیه نه روایت دے چه دَ دُنیا د ښیگړے نه مُراد عافیت
او په قدر دکفایت روزی ده. دَحضرت علی کرم الله وجهه نه نقل شوے دے چه دَ دے
نه نیکه بی بی مُراد ده. دَحضرت حسن بصری رحمة الله علیه نه روایت شوے دے
چه د دے نه مُراد علم او عبادت دے. سُدی رحمة الله علیه نه نقل شوے دے چه
پاک مال ترے مُراد دے. حضرتِ ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت شوے دے چه نیک
اولاد او دخلقو تعریف ترے مُراد دے. دَحضرت جعفر رضی الله عنه نه نقل شوے
دے چه صحت او د روزئ کافی کیدل او دالله تعالیٰ په کلام پوهیدل او په
دُښمنانو فتح او دصالحانو صحبت ترے مُراد دے. دویمه داکه چرے هر قسمه
دَ دُنیا ترقی ترے مُراد وی لکه چه څما زړه یے هم غواړی نو بیا هم په دے کښ
دالله تعالیٰ نه دَ دُعا ذکر دے، نه چه دَ دے په حاصلولو کښ پوره طور کوشش کول.

او مشغول لیدل - او الله تعالیٰ نه غوښتل اگرچه د شلید لے پېرے جوړول ولے نه وی، دا غوښتل دین دے - دریمه دا چه د دُنیا حاصلولو او د کتابونو څخه منع کوی، یقیناً ضرور یے حاصلوئ او په ډیر شوق یے حاصلوئ، خو نن خلقو هرگز دا غرض نه دے چه الله تعالیٰ دِ نه کړی تاسود دُنیا غونډے غنیمتی او مقصودی خیز پیژنئ -

مقصد دا دے چه څومره کوشش د دُنیا د پاره کوئ دهغه نه زیات نه وی نو کم نه کم دهغے برابر خو دین د پاره کوئ ځکه چه ستاسو دِ دُنیا موافق د دین او د دُنیا د واړو تعلیم راکړے شوے دے. کنی څۀ تپوس کوم چه کوم قران شریف کښې دا ایتِ کریمه ذکر شوے دے دهغے قران شریف دغه ایت هم دے چه کوم اُوس ذکر شو. مَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ نَزِدْ لَهٗ فِي حَرْثِهٖ (پ۲۵ ع۳) او هم هغے قران شریف کښې دا ایت هم دے مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيهَا مَا نَشَاءُ لِمَنْ نُّرِيدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ يَصْلٰهَا مَذْمُومًا مَّدْحُورًا وَمَنْ اَرَادَ الْآخِرَةَ وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُهُمْ مَّشْكُورًا ۝ (پاره ۱۵ - رکوع ۲) هم په هغے قران شریف کښې دی - ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ۝ (آل عمران - رکوع ۲) هم په هغے قران شریف کښې دی مِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيدُ الدُّنْيَا وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيدُ الْآخِرَةَ (پ۴ آل عمران) هم په هغے قران شریف کښې دی قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيلٌ وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى (پ۵). هم په هغے قرانِ پاک کښې دی وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا اِلَّا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ وَلَلدَّارُ الْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَ (سورة انعام) هم په هغے کلامِ پاک کښې دی وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا (سورة انعام) هم په هغے قرانِ پاک کښې دی تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللّٰهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ (پ۱۰) هم په هغے قرانِ پاک کښې دی اَرَضِيتُمْ بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ اِلَّا قَلِيلٌ (پ۱۰) هم په هغے کلامِ پاک کښې دی مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ اِلَيْهِمْ اَعْمَالَهُمْ فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ اِلَّا النَّارُ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝ (پ۱۲) هم په هغے کلامِ پاک کښې دی.

وَفَرِحُوا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ إِلَّا مَتَاعٌ (پ۱۳) هم په هغې
كلام پاك كښې دي. فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللّٰهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ٥ ذٰلِكَ
بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ (پ۱۴)

ددے نه علاوه ډيرے ايتونه دي چه په هغو كښې د دُنيا او د اٰخرت مقابله كړے شوے ده - دا وخت د ټولونه را جمع كول مقصود دي اونه يے ضرورت شته - د نمونے د پاره مے يو څو ايتونه مختصر اُوليكل - او د مختصر والي په وجه د ترجمے په ځائې مے د سيپارے حواله اُوليكله - په يو ترجمه والا قراٰن شريف كښې يے ترجمه اُوګورئ - مقصود د ټولونه دا دے چه د اٰخرت په مقابله كښې كوم خلق چه دُنيا غوره كنړي - هغوي ډير په خُسران او زيان كښې دي - كه چرے د دارو تا سو نه شي پوره كولے نو بيا صرف اٰخرت اختيار كړل او غوره كول ضروري دي. ځكه د دے خبرے نه انكار نشته چه د دُنيا په ژوند كښې سړے د دُنيوي ضرورتونو سخت محتاج وي. خو په دے وجه چه د سړي بَيْتُ الْخَلَاء (ټټي) ته تلل ضروري دي او د تلو نه بغير ګذاره نشته نو ټوله ورځ په هغې كښې ناسته كوي - دا به هيڅ يو د صحيح عقل خاوند برداشت نه كړي -

د الله تعالىٰ په حكمتونو يو ژور نظر واچوئ نو تا سو ته به معلومه شي چه پاك شريعت كښې د يو يو څيز با قاعده ګي ده - الله جل جلاله وعم نواله يو يو څيز واضح فرمايلے دے - د موځو نو د وختونو تقسيم كښې يے صفا او واضحه دے ته اشاره اُوكړه چه د شپے ورځے په ځلير ويشت ګهينټو كښې نيم د بنده حق دے، خوښه يے خپله ده چه په خپل اٰرام وراحت كښې يے خرچ كوي يا د معيشت (يعني د ژوند د ضروريا تو) په طلب كښې - او نيم د الله تعالىٰ حق دے - او ستا سو د تجويز موافق د دين او دُنيا د واړو برابر وُلو حق دا دے چه په شپه او ورځ كښې نيم وخت د دين د پاره اُولګولے شي او نيم د دُنيا د پاره - او كه چرے دا لے اُونه شول، او دُنيوي مشغلے كه هغه د روزئ فكر وي يا د بدن د راحت وي د نيمے نه زياتے شوے نو يقيناً تا سو دُنيا غوره اُوګڼړله - پس ستا سو تجويز موافق حُكم د انصاف تقاضا دا ده چه د شپے ورځے د ځلير ويشتو ګهينټو نه دولس

کېښنې دَدِين دپاره وُلګوَلے شي. دپاره ددے چه ددواړو حق اداشي اوپه
هغه وخت کښې به یقیناً داویل په ځائ وي چه دَدُنیا اودَ آخرت ددواړو دَ
نیکوحاصلولوحکم شوے دے اواسلام رَهبانِيَتْ نه دَې خوښوے. دامضمون
دے ځائ کښې مقصود نهٔ وو بلکه دهغې شبې په جواب کښې تبعًا په ضِمن
کښې راغے ځکه م مختصرطور اشاره کولو سره پرېښودہ.

په دے فصل کښې مقصود دتبلیغ دحدیثونو ذکرکول وُو، په هغې کښې په
اوهٔ حدیثونوبسْوالے کوم چه منونکودپاره اوهٔ خواوهٔ دي یوهم کافي دے، او
دنهٔ منونکو دپاره "وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنْقَلَبٍ يَنْقَلِبُونَ"
دکافي نه زیات دے.

په آخرکښې یوضروري عرض داهم دے چه دبعضوحدیثونونه معلومیږي
چه دفتنې په زمانه کښې کله چه شومتوب اختیارکړے شي اودنفساني خواهشاتو
تابعداري اُوکړے شي، دُنیا د دین نه غوره اُوګنړلے شي، هریوکس خپله رائے
خوښوي، دبل نهٔ مني، په هغه وخت کښې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم دنوروخلقو دَ
اصلاح پرېښودلو او دځان یوخواته کولوحکم فرمائیلے دے. خودعلمائے کرامو
په نزدتراوسه هغه وخت لانهٔ دے راغلے (اوس موقعه ده) ځکه چه کوم وکړي
الله تعالیٰ دِنهٔ کړي که ناځاپه هغه وخت راشي نوبیا په هغه وخت کښې به
هیڅ قسم اصلاح نهٔ شي کیدے. دارنګے له هغې عیبونونه چه دهغو ذکرپه
دے حدیث کښې راغلے دے، په اهتمام اوکوشش سره بچ کیدل ضروري دي
ځکه چه داد فتنو دروازے دي. دهغې نه رُستو سراسرفتنې او فتنه دي. نبي کرم
صلی الله علیه وسلم په یوحدیث کښې دا په هلاکوونکوخیزونوکښې شمارلې دي. اَللّٰهُمَّ احْفَظْنَا
مِنَ الْفِتَنِ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ.

# دریم فصل

کښې په یوخاص مضمون باندے خبردارے مقصود دے اوهغه دا چه
څرنګے په دے زمانه کښې په نفسِ تبلیغ کښې سستي کیږي اوعام طورخلق

له دې نه ډیر زیات غافله دي. هم دارنګې بعضو خلقو کښې یو خاص مرض دا دې
چه کله هغوی په یو دیني مَنْصَبْ او عهدې مثلاً تقریر، تحریر، تعلیم، تبلیغ وعظ
وغیره باندې اولګولې شي نو د نورو خلقو په فکر کښې داسې اخته شي چه خپل
ځان ترې هیر شي، حال دا چه څومره د نورو خلقو د اصلاح ضرورت دې، د هغې نه
ډیر زیات خپل نفس د اصلاح محتاج دې. نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په بې شماره ځایونو
کښې په ډیر زیات اهتمام سره منع فرمائیلې ده چه خلقو ته خو نصیحت کوې ګرځې
او خپله په ګناهونو کښې اخته اوسې. نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د معراج په شپه یو داسې ډله اولیدله
چه د هغوی شونډې د اور په قینچیانو پرې کولې شوې. نبي صلی الله علیه وسلم پوښتنه اوکړه چه دا
کوم خلق دي؟ نو حضرت جبرئیل علیه السلام عرض اوکړو چه دا خلق ستا د اُمت واعظان
او تقریر کوونکي دي چه نورو خلقو ته به یې نصیحت کولو او خپله به یې په هغې عمل نه کولو.
(مشکٰوة شریف) په یو حدیث کښې راغلي دي چه د جنتیانو نه به یو څو کسان لاړ شي او د بعضې
دوزخیانو نه به پوښتنه اوکړي چه تاسو د لته څنګه راسیدلي یئ؟ مونږ خو جنت
ته ستاسو خودلې شوي خبرو باندې د عمل کولو په برکت سره راسیدلي یو. هغوی به اووائي
مونږ به تاسو ته خودلې خو خپله مونږ پرې عمل نه کولو. یو بل حدیث کښې راغلي دي چه
بدکاره قاریانو او عالمانو طرفته به د دوزخ عذاب ډیر په تیزئ سره ورځي نو هغوی
به په دې حیران شي چه د بُت پرستونه هم رومبو مونږ ته عذاب راکولې شي. نو جواب
به ورکړې شي چه سره د پوهې نه د یو جُرم کول د ناپوهۍ سره د کولو برابر نشي کیدې.
عالمانو لیکلي دي چه د هغې کس وعظ فائده نه رسوي چه خپله یې پرې عمل نه وي.
هم دا وجه ده چه په دې زمانه کښې هره ورځ جلسې وعظونه او تقریرونه کیږي خو تول
بې اثره. قِسما قسم رسالې شائع کیږي خو ټولې بې فائدې. په خپله د الله جل شانه ارشاد دې

أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ
أَنْفُسَكُمْ وَأَنْتُمْ تَتْلُونَ الْكِتٰبَ ط
أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۝ (بقره - ع ۵)

ایا تاسو حکم کوئ خلقو ته د نیک کار او هیروئ
ځانونه خپل او حال دا دې چه لولئ تاسو کتاب
ایا تاسو پوهیږئ نه. (ترجمه عاشقي)

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې:

مَا تَزَالُ قَدَمَا عَبْدٍ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

په قیامت کښې به د بنده قدمونه تر هغې وخته

حَتّٰی یُسْأَلُ عَنْ اَرْبَعٍ عَنْ عُمُرِہٖ فِیْمَ اَفْنَاہُ وَعَنْ شَبَابِہٖ فِیْمَ اَبْلَاہُ وَعَنْ مَالِہٖ مِنْ اَیْنَ اکْتَسَبَہٗ وَفِیْمَ اَنْفَقَہٗ وَعَنْ عِلْمِہٖ مَاذَا عَمِلَ فِیْہِ۔ (ترغیب عن البیہقی وغیرہ)

پورے دخپل ځایه نه شی اخوا کیدے ترڅو چه ترے څلور سوالونه اُونه کړے شی۔ عمر دِ څهٔ مشغله کښ ختم کړهٔ۔ ځوانی دِ په څهٔ کار کښ لګولے وه۔ او مال دِ په څهٔ شان ګټلے وو او په کوم ځائی کښ دِ لګولے وو او په خپل علم دِ څهٔ عمل کړے وو۔

حضرت ابُوالدَّرداء رضی الله عنه یو لوئی صحابی دے، فرمائی چه ما ته هرڅهٔ نه زیاته ویره د دے خبرے ده چه د قیامت په ورځ د ټولو خلقو په مخکښ ما ته آواز اُوشی او سوال را نه اُوشی چه څومره عِلم دِ حاصل کړے وو په هغے دِ څهٔ عمل کړے وو۔

په خپله د نبیٔ کرم صلی الله علیه وسلم نه یو صحابی رضی الله عنه پوښتنه اُوکړه چه بد ترین د خلقو نه څوك دی؟ نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه د بَد وخبرو تپوس نهٔ دی کول پکار، د ښو خبرو پوښتنه کوه۔ بد ترین په مخلوقاتو کښ بد ترین عالمان دی۔

په یو حدیث کښ ارشاد دے چه عِلم دوه قسمه وی۔ یو هغه چه تش په ژبه باندے وی، هغه د الله تعالیٰ الزام دے او ګویا په هغے عالِم پورے د جُرم ثبوت دے۔ دویم هغه عِلم دے چه په زړهٔ اثر اُوکړی هغه عِلمِ نافع دے۔ حاصل دا دے چه عِلمِ ظاهری سره عِلمِ باطنی هم حاصل کړے شی د پاره د دے چه په عِلم سره په زړهٔ هُم اثر اُوشی او کهٔ دا سے نهٔ وی او په زړهٔ کښ دَ هغے اثر اُونهٔ شی نو هغه به د الله تعالیٰ الزام شی او د قیامت په ورځ به پرے نیولے شی چه په هغے عِلم دِ څهٔ عمل کړے وو۔

نور هم په ډیرو روایتونو کښ په دے باندے سخت نه سخت عذابونه او زورنے راغلی دی۔ په دے وجه ځما درخواست دے چه مُبَلِّغِیْن حضرات دِ دَ خپلے اصلاح د ظاهر او د باطن د رو ډیے نه فکر اُوکړی، هسے نهٔ چه په هغے عذاب کښ داخل شی۔ الله جل جلاله دِ هُم ټولو ته دِ دخپل فراخه رحمت په خاطر ما ګنهګار ته هُم د ظاهر او د باطن د اصلاح توفیق راکړی چه دَ

خپل ځان نه زيات بد عمله هيڅوک نه مومم. إِلَّا أَنْ يَتَغَمَّدَنِيَ اللّٰهُ بِرَحْمَتِهِ الْوَاسِعَةِ

# څلورم فصل

کښې هم يو خاص او ډير ضروري کار ته د مبلغينو حضراتو توجه

ګرزول مقصود دی چه ډيره زياته ضروري دا هغه دا چه په تبليغ کښې ډيرخله د لوئے شان بے احتياطئ په وجه فائدے سره نقصان هم شامل شي. دے د پاره ډيره ضروري ده چه د احتياط د هرے خوا لحاظ اوساتلے شي. ډيرخلق د تبليغ په جوش کښې د دے پرواه نه کوي چه د يو مسلمان بے پردګي کيږي. حال دا چه د مسلمان حيا او عزت ساتل يو عظيمُ الشّان او قيمتي خيز دے.

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه مَرْفُوعًا مَنْ سَتَرَ عَلٰى مُسْلِمٍ سَتَرَهُ اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللّٰهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ. (رواه مسلم وابوداود وغيرهما. ترغيب)

چه څوک په يو مسلمان پرده واچوله الله جل شانه به په دنيا او اخرت کښې په ده پرده واچوي. او الله تعالیٰ د بنده مدد فرمائي ترڅو چه هغه د خپل رور (مسلمان) مدد کوي.

بل ځائ کښې ارشاد مبارک دے.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما مَرْفُوعًا مَنْ سَتَرَ عَوْرَةَ أَخِيهِ سَتَرَ اللّٰهُ عَوْرَتَهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَمَنْ كَشَفَ عَوْرَةَ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ كَشَفَ اللّٰهُ عَوْرَتَهُ حَتّٰى يَفْضَحَهُ بِهَا فِي بَيْتِهِ (رواه ابن ماجه. ترغيب)

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه څوک په چا مسلمان پرده اچوي. الله جل شانه به د قيامت په ورځ په ده پرده واچوي او چه څوک د چا مسلمان پرده اخلي (يعني بے عزتي ئے کوي) نو الله جل شانه به د ده پرده واخلي تر دے چه کور کښې به ناست وي او رسوا به ئے کړي.

غرض دا چه په ډيرو روايتونو کښې دا قسمه مضمون راغلے دے. په دے وجه مبلغين حضراتو ته په مسلمانانو پردے اچولو اهتمام هم ډير ضروري دے.

او ورے نه زیات د هغهٔ د عزت حفاظت د ے۔

د نبی کرم ﷺ ارشاد دے چه څوك په داسے وخت کښ د مُسلمان مَدد اُونه کړی چه د هغهٔ بے عزتی کیږی نو الله جلّ شانهٗ به د هغهٔ مَدد نه په داسے وخت کښ هم دا اُونه کړی چه هغه به د مدد محتاج وی۔

یو بل حدیث کښ د نبی کرم ﷺ ارشاد مُبارك دے چه بد ترین سُود د مسلمان بے عِزتی ده۔

د غسے ډیرو روایتونو کښ د مسلمان په بے عزتی سخت نه سخت عذابونه راغلی دی۔ په دے وجه ډیره ضروری ده چه مُبلّغین حضرات د دے ډیر زیات اهتمام اُوساتی چه نَهی عَنِ الْمُنْکَر کښ د خپل طرفه پرده اخستل نهٔ وی۔ کوم بد کار چه په پټه ورته معلوم شی (چه کیږی) نو هغه دِ په پټه بند کړی، او کوم چه ښکاره اُوکړے شی هغه دِ په ښکاره بند کړے شی۔ د غه شان بندولو کښ هم د هغهٔ د عزت ترخیله وَسه فکر ساتل پکار دی، هسے نه چه "نیکی برباد د گناه راتلو" سبب شی۔ حاصل دا دے چه د بد کارنه دِ مَنع ضرور اُوکړے شی ځکه چه تیر شوی عذابونه هم ډیر سخت دی۔ خو په دے کښ د هغهٔ د عزت هم ترخپله وَسَه سخت اهتمام اُوکړے شی۔ د هغے طریقه دا ده چه کومه گناه په ښکاره کیږی په هغے دِ بے تکلّفه ښکاره انکار اُوکړے شی خو د کومے گناه چه د کوُنکی له طرفه اظهار نهٔ وی په هغے دِ انکار کولو کښ د خپل طرفه څهٔ داسے شکل اختیار نهٔ کړے شی چه په هغے سره د هغهٔ بے پردگی اُوشی۔

د غه شان دا هُم د تبلیغ د آدابونه دی چه نرمی دِ اختیار کړے شی۔ مَامُونَ الرَّشِیْد خلیفه ته چا په سخت کلامئ سره نصیحت اُوکړو۔ هغهٔ ورته اُوفرمایل چه په نرمیٔ وایه ځکه چه الله جلّ شانهٗ تا نه بهتر یعنی حضرت موسیٰ، حضرت هارون علیهما السلام تا نه زیات ناکاره یعنی فرعون ته لیږلی وُو، نو ورته یے فرمایلی وُو ﴿فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّیِّنًا﴾ یعنی تاسو هغهٔ سره په نرمی خبرے کوئ شاید چه هغه نصیحت قبول کړی۔

د نبی کرم ﷺ په خدمت کښ یو ځوان حاضر شو او خواست یے اُوکړو

چه ماله د زنا اجازت راکړه. اصحاب کرامو رضی الله عنهم دے خبرے برداشت اُونه کړے شوا او ناراضه شول. نبی علیه السلام هغه تپوس کوُنکی ته اُووئے رانزدے شه. بیائے ورته اُوفرمایل چه آیا ته غواړے چه څوك ستا مور سره زنا اُوکړی؟ وے وَیل، څهٔ دِ په تا سو قربان شم. داخهٔ هیچرے نهٔ غواړم. وے فرمایل، رغیے نور خلق هم نهٔ غواړی چه دهغوی میندو سره دِ زنا اُوکړے شی. بیا یے اُوفرمایل چه تهٔ خوښوے چه څوك ستا لُور سره زنا اُوکړی. عرض یے اُوکړو څهٔ دِ په تا سو قربان شم، نهٔ غواړم. وے فرمایل دغسے نور خلق هم نهٔ غواړی چه دهغوی لوُنړو سره زنا اُوکړے شی. غرض دغسے دخور ترور تپوس یے اُوکړو. بیا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم لاس مُبارك دهغهٔ په سینه کیخودهٔ او دُعا یے اُوفرمایله. یا الله! دده زړهٔ پاك کړے او گناهونه یے معاف کړے او شرمګاه یے د گناه نه محفوظ کړے. راوی وائی دے نه پس د زنا برابر هیڅ یو څیز دغه کس ته قابل دنفرت نهٔ وو. حاصل د کلام دا چه په دُعا په دارو په نصیحت په نرمئ سره دِ پوهه کړی او دا خیال دِ اُوکړی که څه دده په ځائے وے نوما به څنګ ځان د پاره څهٔ طریقه خوښوُله چه خلق ماته په هغه طریقه نصیحت اُوکړی.

# پنځم فصل

کښ هم د مبلغینو په خدمت کښ یو ضروری درخواست دے، هغه دا چه خپل هر یو تقریر او تحریر کښ دِ د اخلاص صفت پیدا کړی ځکه چه اخلاص سره لږ شان عمل هم د دینی او دُنیوی فائدو په اعتبار سره ډیر اُوچت دے او بے اخلاصه نهٔ په دُنیا کښ د هغه څهٔ اثر، نهٔ په آخرت کښ یے څهٔ اجر شته.

دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارك دے:-

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَنْظُرُ إِلٰى صُوَرِكُمْ وَ | الله جل شانهٔ ستا سو شکلونو او ستا سو

| اَمْوَالِكُمْ وَلٰكِنْ يَّنْظُرُ اِلٰى قُلُوْبِكُمْ وَاَعْمَالِكُمْ. (مشکوٰة عن مسلم) | مالونو ته نه ګوری بلکه ستاسو زړونو او عملونو ته ګوری. |
|---|---|

یو بل حدیث کښې راغلی دی چه د نبی اکرم ﷺ نه چا تپوس اوکړو چه ایمان څه څیز دے؟ نبی ﷺ ورته اوفرمایل چه اخلاص دے.
ترغیب (کتاب کښې یے) په مختلفو روایتونو کښې دا مضمون ذکر کړے دے.
دغه شان یو حدیث کښې راغلی دی چه کله نبی کریم ﷺ حضرت مُعاذ رضی الله عنه د یمن حاکم جوړ کړو، او لیږلو یے، نو هغه درخواست اوکړو چه ما ته څه وصیت اوکړئ. نبی ﷺ اوفرمایل چه په دین کښې د اخلاص خیال ساته چه اخلاص سره لږ شان عمل هم کافی دے.
یو حدیث کښې ارشاد دے چه الله جل شانه په عملونو کښې صرف هغه عمل قبلوی چه خالص هم د هغه د پاره کړے شوے وی.
یو بل حدیث کښې ارشاد دے.

| قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى اَنَا اَغْنَى الشُّرَكَآءِ عَنِ الشِّرْكِ مَنْ عَمِلَ عَمَلاً اَشْرَكَ فِيْهِ مَعِىَ غَيْرِىْ تَرَكْتُهٗ وَشِرْكَهٗ وَفِىْ رِوَايَةٍ فَاَنَا مِنْهُ بَرِىْءٌ فَهُوَ لِلَّذِىْ عَمِلَهٗ (مشکوٰة عن مسلم) | د الله جل شانه ارشاد دے چه څه په ټولو شریکانو کښې د شرکت نه ډیر زیات بے نیازه یم (یعنی د نورو شریکان د شرکت محتاج او په شرکت راضی وی او څه ایکی تنها د ټول مخلوق پیدا کونکے یم، بے پرواه یم) په عبادت کښې د غیر د شرکت نه ویزاره یم) څوک چه څه داسے |

عمل اوکړی چه په هغے کښې ما سره بل څوک هم شریک کړی، څه هغه د هغه شریک نه سپارم. دویم روایت کښې دی چه څه د هغه نه ویزاره کیږم.
یو بل حدیث کښې راغلی دی چه د قیامت په ورځ د حشر په میدان کښې به یو آواز کونکے په اوچت آواز آواز اوکړی چه چا په څه عمل کښې بل شریک کړے وی هغه دِ د هغے بدله د هغه نه اوغواړی، الله تعالیٰ په ټولو شریکانو کښې د شرکت نه ډیر زیات بے نیازه دے.
یو بل حدیث کښې راغلی دی، ا

مَنْ صَلّٰى يُرَائِيْ فَقَدْ اَشْرَكَ وَمَنْ صَامَ يُرَائِيْ فَقَدْ اَشْرَكَ وَمَنْ تَصَدَّقَ يُرَائِيْ فَقَدْ اَشْرَكَ (مشكوٰة عن احمد)

څوک چه په ریاکارئ مونځ کوی هغه مُشرِک شی او څوک چه په ریاکارئ روژه نیسی هغه مُشرِک شی۔ څوک چه په ریاکارئ صدقه ورکوی هغه مُشرِک شی۔

دمُشرِک کیدو مطلب دا دے چه هغه نورو خلقوله چه ښائته دخودنے دپاره دا عملونه کړی دی، دالله تعالیٰ شریک جوړوی، په دغه حالت کښې دا عملونه دالله تعالیٰ دپاره نهٔ پاتے کیږی بلکه د هغې خلقو دپاره کیږی دچا دَ خودنے دپاره چه کړے شی۔

یو بل حدیث کښې دنبی علیه الصلوٰة والسلام ارشاد مُبارک دے۔

اِنَّ اَوَّلَ النَّاسِ يُقْضٰى عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ رَجُلٌ اُسْتُشْهِدَ فَاُتِيَ بِهٖ فَعَرَّفَهٗ نِعْمَتَهٗ فَعَرَفَهَا فَقَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيْهَا قَالَ قَاتَلْتُ فِيْكَ حَتّٰى اُسْتُشْهِدْتُّ قَالَ كَذَبْتَ وَلٰكِنَّكَ قَاتَلْتَ لِاَنْ يُّقَالَ جَرِيْءٌ فَقَدْ قِيْلَ ثُمَّ اُمِرَ بِهٖ فَسُحِبَ عَلٰى وَجْهِهٖ حَتّٰى اُلْقِيَ فِي النَّارِ۔ وَرَجُلٌ تَعَلَّمَ الْعِلْمَ وَعَلَّمَهٗ وَقَرَاَ الْقُرْاٰنَ فَاُتِيَ بِهٖ فَعَرَّفَهٗ نِعَمَهٗ فَعَرَفَهَا قَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيْهَا قَالَ تَعَلَّمْتُ الْعِلْمَ وَعَلَّمْتُهٗ وَقَرَاْتُ فِيْكَ الْقُرْاٰنَ قَالَ كَذَبْتَ

دقیامت په ورځ اول دخلقوته چه چاته فیصله اَوَرَوْلے شی دهغوی نه یو هغه شهید هم وی چه هغه به راوغوختلے شی اول به الله تعالیٰ دهغې خپل نعمت اظهار اُوفرمائی چه کوم په هغهٔ کړے شوی وُو هغه به یے اُوپیژنی او اقرار به اُوکړی ددے نه پس به ترے سوال اُوکړے شی چه ددغے نعمت نه دِ څهٔ کار واخست. دے به اُووائی چه ستا د رضا دپاره مے جهاد اُوکړو تر دے چه شهید شوم. ارشاد به اُوشی چه دروغ دی. دا دِ ددے دپاره کړے وُو چه خلق درته بهادر اُووائی پس اُوویلے شو او دکوم غرض دپاره دِ چه جهاد کړے وو هغه درته مِلاوُ شو. ددے نه پس به هغهٔ ته حُکم واوَرَوْلے شی چه په مخ راښکلے دِ په دوزخ کښې اُوغورځَولے شی. دوَیَم هغه عالِم به وی چا چه علم لوستے وو او

وَلٰكِنَّكَ تَعَلَّمْتَ الْعِلْمَ لِيُقَالَ إِنَّكَ عَالِمٌ وَقَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ لِيُقَالَ هُوَ قَارِئٌ فَقَدْ قِيْلَ ثُمَّ أُمِرَ بِهٖ فَسُحِبَ عَلٰى وَجْهِهٖ حَتّٰى أُلْقِيَ فِي النَّارِ۔ وَرَجُلٌ وَسَّعَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَأَعْطَاهُ مِنْ أَصْنَافِ الْمَالِ كُلِّهٖ فَأُتِيَ بِهٖ فَعَرَّفَهٗ نِعَمَهٗ فَعَرَفَهَا قَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيْهَا قَالَ مَا تَرَكْتُ مِنْ سَبِيْلٍ تُحِبُّ أَنْ يُّنْفَقَ فِيْهَا إِلَّا أَنْفَقْتُ فِيْهَا لَكَ قَالَ كَذَبْتَ وَلٰكِنَّكَ فَعَلْتَ لِيُقَالَ هُوَ جَوَادٌ فَقَدْ قِيْلَ ثُمَّ أُمِرَ بِهٖ فَسُحِبَ عَلٰى وَجْهِهٖ ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ۔
(مشکوٰۃ عن مسلم)

ښودلے وو، او قرانِ پاک یے حاصل کړے وو هغه به را اُوغوښتلے شی په هغه چه کوم انعامات دُنیا کښې کړے شوی وُو هغه به ورته ښکاره کړے شی هغه به اقرار اُوکړی۔ دے نه پس به د هغهٔ نه هم تپوس اُوکړے شی چه په هغے نعمتونو کښې وخت څهٔ کاروونه کړی دی؟ دے به عرض اُوکړی چه ستا د رضا دپاره مے علم اُولوستهٔ او خلقو ته مے اُوخودلو، قرانِ پاک مے ستا رضا دپاره حاصل کړو۔ جواب به ورکړے شی دروغ وائے۔ تا عِلم دے دپاره لوستے وو چه خلق درته عالِم اُووائی او قران دِ دے دپاره حاصل کړے وو چه خلق درته قاری اُووائی پس اُووئیلے شُو او کوم غرض چه د لوستلو خودلو وو هغه پوره شو) دے نه پس به دهٔ ته هم حکم واورولے شی او دے به هم پړمخے راښکلے دوزخ کښې اُوغورزولے شی۔ دریم به هغه مالدار وی چه هغهٔ ته الله تعالیٰ دَ رِزق فراخی ورکړے وی او هر قِسمه مال یے ورکړے وی را اُوبه غوښتلے شی او په هغهٔ به د تیرو نعمتونو ښکاره کولو او د هغے د اقرار اخستلو نه پس بیا ترے تپوس اُوکړے شی چه په دے انعاماتو کښې وخت څهٔ کارگذاری کړے ده؟ دے به عرض اُوکړی چه هیڅ د مال خرڅ کولو بنهٔ ځائی داسے نهٔ وُو چه په هغے کښې لګول ستا د رضا سبب وُو او ما په هغے کښې لګولے نهٔ وی۔ ارشاد به اُوشی دروغ دی۔ دا ټول دِ دے دپاره کړے وُو چه خلق درته سخی اُووائی پس اُووئیلے شو۔ دے به هم د حکم موافق راښکلے په دوزخ کښې اُوغورزولے شی۔"

دے دپاره ډیره اَهمه او ضروری ده چه مُبلّغین حضرات دِ په خپله

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم، د هغه د دین خورول، د
تولو کار ګذارئ کښ د الله جل شانه رضا، د هغه د دین خورول، د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم
سنتونو تابعداری مقصود اولری - شهرت، عزت، تعریف له ذره برابر هم
په زړه کښ ځائې ورنه کړی. که خیال ئے راشی نو لاحول او استغفار سره د دے هغے
اصلاح اوکړی. الله جل شانه د په خپلے مهربانئ او د خپل محبوب په صدقے
او د محبوب د پاک کلام په برکت ما ګنهګار ته هم د اخلاص توفیق راکړی او
(تاسو) کتونکو ته هم - امین -

# شپږم فصل

د عامو مسلمانانو یو خاص کار طرف ته متوجه کول دی - هغه د اچه د دے
زمانه کښ په عالمانو بدګمانی، بے توجهی نه، بلکه د مقابلے او د سپکاوی
صورتونه عام طور اختیارولے شی - دا کار د دین په لحاظ ویر سخت خطرناک
دے. په دے کښ هیڅ شک نشته چه د دنیا په هره پله کښ څنګه چه په ښو
کښ بد هم وی د غسے د عالمانو په پله کښ هم دا سے بلکه د دے نه زیات
دروغژن په ریښتنو کښ شامل دی او بد عالمان په ښو عالمانو کښ ګډ دی. بیا
هم دوه خبرے بے حده د لحاظ قابلے دی -

اول دا چه ترڅو د چا عالِم د بدئ تحقیق او ثبوت نه وی په هغه
هیڅ کله څه حکم لګول پکار نه دی -

| | |
|---|---|
| وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ؕ اِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ اُولٰٓئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُوْلًا ○ | او د کومے خبرے چه تا ته تحقیق نه وی په هغے عمل مه کوه - د غوږ او د سترګے او د زړه د هر یو نه به د دے ټولو پوښتنه کیږی. (بیان القرآن) |

او صرف په دے بدګمانئ چه وئیلے شی شاید بد و عالمانو کښ وی د هغه
خبرو بے تحقیقه رد کول نور هم زیات ظلم دے -

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په دے کښ دومره احتیاط فرمائیلے دے چه یهودیانو به
د تورات مضامین په عربئ کښ نقل کړل (او خلقو ته به ئے) اورول - نبی صلی الله علیه وسلم

ارشاد اُوفرمایهٔ چه تا سو ورته مهٔ ریښتیا وایئ اومهٔ دروغ بلکه داوایئ چه کوم څهٔ الله تعالیٰ نازل کړی دی په هغې یو لو زمونږ ایمان دے۔ یعنی دا چه د کافرانو د نقل متعلق یے هم بغیر تحقیقه ریښتیا اودروغ ګنړلو نه منع اُوکړه خو څمونږ د خلقو دا حالت دے چه کله څوک څهٔ قسمه خبره څمونږ د رائے خلاف اُوائي نو د هغهٔ د خبرے اعتبار غور ز ولو د پاره د ویونکی په ذات حملے کولے شی اګرچه مونږ ته دا معلومه شی چه دے د اَهلِ حقّ نه دے۔

دویمه ضروری خبره داده چه عُلمائے حقّانی، عُلمائے رُشد، علمائے خیر هُم د بَشَرِیَت نه خالی نهٔ دی۔ بے ګناه کیدل دانبیاء علیهم الصلوٰة والسلام شان دے۔ په دے وجه د دغے عالمانو د غلطو، د هغوی د کمزورو، د هغوی د قصور کمزوری هم په هغوی ده۔ او الله تعالیٰ سره د هغوی مُعَامله ده۔ سزا ورکوی که مُعاف کوی یے۔ بلکه غالب ګُمَان دادے چه د هغوی غلطئ به انشاء الله مُعاف کړے شی ځکه چه کریم اٰقا خپل هغه غلام ته کوم چه خپل ذاتی کاروبار پریږدی او د اٰقا په کارکښ مشغول شی او پوره طور په هغه کښ لګیا اُوسی، اکثر د هغهٔ د غلطو نه سترګے پټول او معافی ورته کوی۔ بیا د الله جل شانهٔ په شان څوک کریم کیدے نهٔ شی۔ که د عدل په تقاضا ئے نیول هُم اُوکړی، دا د هغهٔ خپله معامله ده۔ دَ دے کارونو په وجه عالمانو ته خلق بدګُمانه کول، نفرت پیدا کول، لرے ساتلو کوشش کول د خلقو د پاره به دبد دینئ سبب شی۔ او دا ئے کونکو د پاره لوئ وبال دے۔

د نبی کرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مُبارک دے:۔

| | |
|---|---|
| اِنَّ مِنْ اِجْلَالِ اللّٰهِ تَعَالٰی اِکْرَامُ ذِی الشَّیْبَةِ الْمُسْلِمِ وَحَامِلِ الْقُرْاٰنِ غَیْرِ الْغَالِیْ فِیْهِ وَلَا الْجَافِیْ عَنْهُ وَاِکْرَامُ ذِی السُّلْطَانِ الْمُقْسِطِ (ترغیب عن ابی داؤد) | د دریو کسانو عزت د الله تعالیٰ عزت دے یو بوډا مسلمان۔ دویم هغه د قرآن حافظ چه د ریاتی کښې نه خالی وی۔ دریم انصاف کونکے حاکم۔ |

دویم حدیث کښ ارشاد دے۔

| | |
|---|---|
| لَیْسَ مِنْ اُمَّتِیْ مَنْ لَّمْ یُبَجِّلْ | هغه څوک چه څمونږ د مشرانو عزت نهٔ کوی |

كَبِيْرَنَا وَ يَرْحَمْ صَغِيْرَنَا وَيَعْرِفْ عَالِمَنَا (ترغیب عن احمد والحاکم وغیرهما)

ځمونږ په کشرانو رحم نهٔ کوی، ځمونږ د عالمانو قدر نهٔ کوی هغه ځمونږ د اُمت نه نهٔ دے۔

یو بل حدیث کښې راغلی دی۔

عَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ رضی الله عنه عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ قَالَ ثَلٰثٌ لَا يَسْتَخِفُّ بِهِمْ إِلَّا مُنَافِقٌ ذُو الشَّيْبَةِ فِي الْإِسْلَامِ وَذُو الْعِلْمِ وَإِمَامٌ مُقْسِطٌ (ترغیب عن الطبرانی)

د نبي اکرم ﷺ ارشاد دے چه درے کسان داسے دی چه د هغوی سپک کنړلو والا صرف مُنافق کیدے شی (نهٔ چه مُسلمان۔ هغه درے کسان دا دی) یو بوډا مسلمان۔ دویم عالِم۔ دریم انصاف کوونکے حاکِم۔

بعضو روایتونو کښې د نبي اکرم ﷺ ارشاد نقل کړے شوے دے چه ما ته په خپل اُمت د ټولو څیزونو نه زیات د درېو څیزونو ویره ده۔ یو دا (اول) چه په دوی به دُنیوی فتوحات زیات اُوکړے شی چه د هغے له وجے به یے یو بل سره حسد پیدا اشی۔ دویم دا چه قرآن شریف به خپل مینځ کښې دومره عام شی چه هر څوک به د هغے په مطلب دَ پوهیدو کوشش کوی۔ حال دا دے چه د هغے معانی او مطلبونه ډیر داسے دی چه د الله تعالیٰ نه سوا هیڅوک پرے نهٔ پوهیږی۔ او څوک چه په عِلم کښې پاخهٔ دي هغوی هم دا وائی چه مونږ په دے یقین لرو ټول ځمونږ له پروردګار له طرفه دی۔ (بیان القرآن) یعنی په عِلم کښې پاخهٔ خلق هم د تصدیق نه سِوا د وړاندے تیریدو هِمّت نهٔ کوی۔ بیا عوامو ته د بحث و تکرار څهٔ حق دے۔ دریم دا چه د عالمانو حق ضائع کوونکے به وُکړے شی او هغوی سره به د بے پرواهئ معامله اُوکړے شی۔ ترغیب کښې یے دا حدیث د طبرانی په روایت نقل کړے دے۔ د دے قسمه روایتونه ډیر د حدیث په کتابونو کښې موجود دی۔

کوم قِسم الفاظ په دے زمانه کښې د عالمانو او دینی عِلمونو متعلق اکثر استعمالولے شی۔ فتاوی عالمګیری کښې د هغے نه ډیر الفاظ د کفر یے شمارلے دی، خو خلق د خپلے ناپوهئ په وجه د دے حکم نه ناخبره دی۔ پدے وجه ډیره ضروری ده چه د دے قسمه الفاظو په استعمال کښې ډیر زیات احتیاط اُوکړے شی۔ فرض کړو که چرے اُومنلے شی چه حقّانی عالمان دا وخت نهٔ دی پاتے شوے او دا ټولے ډلے کومو ته چه عالمان ویلے شی بَد عالمان دی، بیا هم تاسو حضرات صِرف هغے عالمانو ته بَد

عالمان وېلو سره نه خلاصیږي بلکه د اسې حالت کښې د ټولې دُنیا په ذمه راځي کیږي چه د حقّاني نیکانو عالمانو یوه ډله پیدا کړي، هغوی ته عِلم اُوخودلې شي ځکه چه د عالمانو وُجود فرضِ کِفایه دے. که چرې یوه ډله دے د پاره موجوده وي نو دا فرض د ټولو نه ادا کیږي کنې ټوله دُنیا ګُنهګاره ده۔

یو عام اعتراض دا کولې شي چه دې عالمانو اختلاف عوام تباه و برباد کړل۔ کیدے شي چه په څه درجه کښې صحیح وي خو حقیقت دا دے چه د عالمانو دا اختلاف د نن نه دے، د سلو پنځوسو کالو نه دے۔ خَیرُ القُرُون بلکه په خپله د نبي اکرم ﷺ د زمانې نه دے۔

نبي اکرم ﷺ حضرت ابُو هُرَیره رضی الله عنه ته خپلې پَنړې مُبارکې د نښې په طور ورکړې او ورته اعلان د پاره یې اُولیږه چه کلمه (لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ) وېونکے به جنت کښې ضرور داخلیږي۔ په لاره کښې حضرت عُمر رضی الله عنه سره ملاوېږي د معاملې پوښتنه ترې کوي۔ حضرت ابوهُریره رضی الله عنه خپل ځان د نبي علیه الصّلوٰة قاصد ښائي۔ بیا هم حضرت عُمر رضی الله عنه یې داسې په زوره په دواړو لاسونو په سینه وهي چه هغه غریب د ګناتو په شا په زمکه پریوزي خو نه د حضرت عُمر رضی الله عنه خلاف اشتهار چهاپ کیږي او نه څه جلسه کښې اِحتجاجي تجویز پاس کیږي۔

حضرات صحابهٔ کِرام رضی الله عنهم کښې په زرګونو مسئلې اختلافي دي او د څلورو امامانو رحمهم الله په نزد شاید د فقهې څه حصه داسې وي چه پکښې اختلاف نهٔ وي. څلور رکعته مونځ کښې د نیت ترلو نه تر سَلام ه جارباسلو پورې تقریباً دوه سوه مسئلې د څلورو امامانو په نزد داسې اختلافي دي چه حماد کمزوري نظر نه هم تیرې شوې دي۔ او دې نه زیات نهٔ ده معلومه، څو مره به وي. خود رَفعِ یَدَین او اٰمین بالجهر وغیره دوه درې مسئلو نه سوا به مُوکله په غوږونو کښې نهٔ وي پریوتې. نهٔ د هغې د پاره اشتهارات شائع شوي دي او نهٔ جلسې او مُناظرې کیدونکې به چا لیدلې وي. راز (پکښې) دا دے چه د عوامو غوږونه د دې مسئلو نه آشنا نهٔ دي. عالمانو کښې اختلاف رحمت دے او دا ښکاره خبره ده چه کله څوک عالِم په شرعي دلیل فتوٰی ورکړي، د بل په نزد که چرې هغه دلیل صحیح نهٔ وي نو هغه

شرعاً په اختلاف کولو مجبور دے۔ که چرے اختلاف اُونه کړی نو حق پټوونکے او
ګناهګار دے۔

حقیقت دا دے چه خلق د کار نه کولو دپاره دا بیهوده حیلے بهانے جوړوی کنی
همیشه طبیبانو کښې اختلاف وی۔ دوکیلانو په رائے کښې اختلاف کیږی۔ خو
هیڅوک علاج کول نه پریږدی او د مقدمے کولو نه نه منع کیږی۔ بیا څه مصیبت
دے چه په دینی کارونو کښې د عالمانو اختلاف حیله جوړوله شی۔ یقیناً ښتنی
عمل کوونکو دپاره ضروری ده چه کوم عالِم هغه ښه ګڼړی، د سنتو تابعدار ئے
ګڼړی د هغهٔ په وینا دِ عمل اُوکړی او په نورو دِ بے فائدے حملو او بد ردویلو نه
منع اُوسی۔ د کوم سړی ذهن چه په دلیل نه پوهیږی او په هغے کښې فرق
نشی کولے، هغهٔ ته حق نِشته چه په هغے کښې دخل اُوکړی۔

د نبی اکرم ﷺ نه نقل کړے شوی دی چه عِلم د دا سے خلقو نه نقل کول کوم
چه د هغے اهل نه وی د هغے ضائع کول دی۔ خو کوم غلطی چه بے دینی ترد ے
حده وی چه الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول ﷺ په ارشاداتو باندے خلهٔ پرانستل
د هر سړی حق ګڼړلے شی هلته غریبانان عالمان په څهٔ شمار کښې دی۔ خو مره
الزامات چه پرے اُولګوی کم دی۔ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ
الظّٰلِمُوْنَ ۝۔ (پاره ۲)

# اُووم فصل

ګویا دشپږم فصل تکمِله او تتمه ده۔ په دیکښې د کتونکو په خدمت کښې یو اهم
درخواست دے، هغه دا چه اکثرد الله تعالیٰ دوستانو سره تعلق د هغوی په خدمت
کښې ډیره حاضری په دینی کارونو کښې د مضبوطیا او د خیر و برکت سبب ګرزی۔
د نبی کریم ﷺ ارشادِ مبارک دے۔

اَلَا اَدُلُّكَ عَلٰی مِلَاكِ هٰذَا الْاَمْرِ الَّذِیْ تُصِیْبُ بِهٖ خَیْرَ الدُّنْیَا وَ الْاٰخِرَةِ عَلَیْكَ بِمَجَالِسِ

آیا څهٔ تا ته د دین د مضبوطیا خبر اُونه ښایم چه
په هغے ته د دین او دنیا دواړو کامیابئ ته اُورسیږے
هغه دا الله تعالیٰ د ذِکر کوونکو مجلسونه دی او کله

اَهْلِ الذِّكْرِ - الحدیث -
(مشکوٰة)

چه ته یو اځے شے نو خپل ځان د الله تعالیٰ په یاد رَطْبُ اللِّسَان یعنی ژبه لونده ساته.

دا دے تحقیق ډیر ضروری دے چه اَهْلُ الله کوم خلق دی. د اَهْلُ الله د پیژندګلو نښه د سُنتو تابعداری ده چه الله جل شانه خپل محبوب نبی اکرم ﷺ له د اُمت د هدایت د پاره نمونه جوړ کړے رالیږلے دے او خپل کلامِ پاک کښ یے ارشاد فرمایلے دے.

قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِىْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ ۚ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (پ۳ - ع۱۲)

ته اُوایه (اے نبی ﷺ) که چرے تاسو الله تعالیٰ سره محبت ساتئ نو زما تابعداری وکړئ، الله تعالیٰ به تاسو سره محبت وکړی او ستاسو تول ګناهونه به معاف کړی او الله تعالیٰ بخښونکے مهربانه دے. (بیان القرآن)

نو چه څوک د نبی اکرم ﷺ کامل تابعداروی هغه په حقیقت کښ الله والا دے او چه څوک د سُنتو د تابعداریٔ نه څومره لرے وی هغومره هغه د قُرْبِ الٰهی نه هم لرے دے. مُفتَرِیْنو لیکلی دی چه څوک د الله تعالیٰ د محبت دعوٰی کوی او د رَسُول ﷺ د سُنتو مخالفت کوی هغه درواغژن دے ځکه چه د محبت قاعده او د عشق قانون دا دے، چا سره چه د چا محبت وی د هغهٔ کور، دیوال، آنګړ، باغ اَن تر دے چه د هغهٔ سپی او خر سره هم محبت کوی.

اَمُرُّ عَلَى الدِّيَارِ دِيَارِ لَيْلٰى ✤ اُقَبِّلُ ذَا الْجِدَارَ وَذَا الْجِدَارَا
وَمَا حُبُّ الدِّيَارِ شَغَفْنَ قَلْبِىْ ✤ وَلٰكِنْ حُبُّ مَنْ سَكَنَ الدِّيَارَا

ترجمه:- (مجنون) وائی چه څهٔ د لیلیٰ په ښهر تیریږم نو دا دیوال هغه دیوال ښکلوم څهٔ د ښهرونو محبت زما زړهٔ عاشق کړے نهٔ دے بلکه د هغه چا د محبت له خاطره دا کوم، کوم چه په ښهرونو کښ اوسی (یعنی لیلیٰ) بل شاعر وائی.

تَعْصِى الْاِلٰهَ وَاَنْتَ تُظْهِرُ حُبَّهٗ ✤ وَهٰذَا لَعَمْرِىْ فِى الْفِعَالِ بَدِيْعٌ
لَوْ كَانَ حُبُّكَ صَادِقًا لَّاَطَعْتَهٗ ✤ اِنَّ الْمُحِبَّ لِمَنْ يُّحِبُّ مُطِيْعٌ

ترجمه:- ته د الله تعالیٰ د محبت دعوٰی کوے او د هغهٔ نافرمانی کوے، که چرے ته په خپله دعوٰی کښ رښتینے وے نو هیڅکله به د نافرمانی نهٔ کوله ځکه چه عاشق

همیشه د معشوقے تابعدار وی۔

د نبی اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه ټول اُمت به جنت کښې داخلیږی خو چا چه انکار اُوکړو۔ اصحابو رضی الله عنهم عرض اُوکړو "چا چه انکار اُوکړو" د دے نه څوک مراد دی؟ نبی علیه السلام اُوفرمایل څوک چه زما اطاعت کوی هغه به جنت کښې داخل شی او څوک چه نافرمانی کوی هغه انکار کونکے دے۔

یو ځائے ارشاد دے چه تاسو نه څوک تر هغه وخته (کامل) مسلمان نشی کیدے ترڅو چه د هغه خواهش د هغه دین تابع نشی کوم چه ما راوړے دے۔ (مشکوٰة)

د حیرانتیا خبره ده چه یو کس د اسلام او د مسلمانانو د ترقئ خیرخواهئ دعویدار وی او د الله تعالیٰ او د هغه د رسول (ﷺ) د اطاعت نه بِالکل وی اوګڼه خبرے باره کښې د غے مدعیانو ته اُویلے شی چه (د اخبره) د دستو او د نبی اکرم ﷺ د طریقے نه خلاف ده نو لګه چه په نیزه دِ اُووهه۔ ؎

خلافِ پیمبر کسے رہ گزید ✽ کہ ہرگز بمنزل نخواہد رسید

"د پیغمبر علیه السلام د طریقے خلاف که څوک بله لار اختیار کړی، نو هیڅ کله منزلِ مقصود ته نه شی رسیدے"۔

خلاصه دا ده، د دے ټول تحقیق نه پس (که دا معلومه شی) چه دا مرے د الله تعالیٰ د دوستانو نه د هغوی سره تعلق زیاتول، د هغوی په خدمت کښې بیر بیر حاضریدل د هغوی د علومو نه فائده اخستل د دین د ترقئ سبب دے او د نبی اکرم ﷺ حکم هم دے۔

یو حدیث کښې ارشادِ عالی دے چه کله تاسو د جنت په باغونو تیریږئ نو څه حاصلوئ هم۔ اصحابو رضی الله عنهم عرض اُوکړو اے د الله رسوله ﷺ د جنت باغونه څه څیز دے؟ نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایه عِلمی مجلسونه۔

بل حدیث کښې د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه لقمانِ (حکیم) خپل ځوئ ته نصیحت کړے وو چه د عالمانو په خدمت کښې تاسته ضروری اُوکړه او د حکمائے اُمت ارشادات په غور سره اُورَه، چه الله جل شانه د حکمت په رڼرا مړه زړونه داسے ژوندی لوی لکه څنګه چه مړه زمکه د شیبو په باران (ژوندی کیږی)

حُکمُو د دین پیژندونکی دی نه چه نورخلق۔

یو بل حدیث کښی راغلی دی چه نبی اکرم ﷺ نه چا پوښتنه اُوکړه چه بهترین همنشین څوک دے، خلقو دپاره څوک دے؟ نبی علیه السلام اُوفرمایل چه دچا په لیدو سره د الله تعالیٰ یاد پیدا شی۔ د چا په خبره چه علم کښی ترقی کیږی، د چا په عمل سره چه آخرت رایاد شی۔ ترغیب کتاب کښی دا روایتونه یے ذکر کړی دی.

یو حدیث کښی دی چه د الله تعالیٰ بهترین بندګان هغه خلق دی چه د هغوی په لیدو سره الله تعالیٰ رایاد شی۔ په خپله د الله جل شانهٔ ارشاد دے۔

| | |
|---|---|
| یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَکُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِیْنَ ﴿پ۱۱ - ع۴﴾ | اے ایماندارو! د الله نه اُویرېږئ او رېښتنو سره شئ۔ (بیان القرآن) |

مُفسّرینو لیکلی دی چه د رېښتنو نه مُراد په دے ځائی کښی مشائخ صوفیه دی هرکله چه څوک د هغوی د دَر په خادمانو کښی داخل شی، نو د هغوی د تربیت او د قوت ولایت په برکت لویو لویو مرتبو ته ترقی کوی۔

شیخ اکبر رحمه الله لیکلی دی "که چرے ستا کارونه دېل د مرضئ نه تابع کیږی نو ته هیڅ کله هم د خپل نفس د خواهشاتو نه وتلے نه شے اګرکه ټول عمر مجاهده کوے۔ په دے وجه کله که تا څوک داسے سرے مِلاو شو چه د هغهٔ عزت ستا په زړهٔ کښی وی، د هغهٔ خدمت کوه او د هغهٔ د وړاندے (لکه د مړی) اُوسه چه هغه تا څهٔ قسم چه غواړی استعمال کړی او ستا خپل هیڅ خواهش هم پاتے نه شی۔ د هغهٔ حُکم منلو کښی جلتی کوه او د څهٔ څیز نه چه منع کوی د هغے نه ځان ساته۔ که د کسب کولو حُکم درته کوی، کوه یے خو د هغهٔ په حُکم سره، نهٔ په خپلے رائے سره۔ که د کیناستو حُکم درته اُوکړی نو کینه۔ په دے وجه ضروری ده چه د شیخ کامل په تلاش کښی کوشش کوه، د دے دپاره چه ستا ذات الله تعالیٰ سره مِلاو کړی"۔

د نبی کریم ﷺ ارشاد مُبارک دے که څهٔ خلق په یو مجلس کښی کینی، د الله تعالیٰ ذکر کوی نو ملائکے د دوی نه چاپیره شی، رحمت پرے اُوغوړیږی او الله جل جلالهٔ په خپل پاک مجلس کښی د دغے خلقو ذکر کوی۔ یو زړهٔ بائیلی عاشق دپاره د دے نه

زیات بل څهٔ نعمت کیدے شی چه د محبوب په مجلس کښ د دهٔ ذکر اوشی. یو بل حدیث کښ ارشاد دے چه د الله یادونکو خلقو ته چه په اخلاص الله تعالیٰ یادوی یو آواز کونکے آواز کوی چه الله تعالیٰ ستاسو بخښنه اوکړه او ستاسو بدئ یې په نیکو سره بدلے کړے. بل ځائې کښ ارشاد دے چه په کوم مجلس کښ د الله تعالیٰ یاد نهٔ وی (هغه په رسول ﷺ دَرُود نهٔ وی). د غسے مجلس والو ته به د قیامت په ورځ افسوس وی.

د حضرت داؤد علیه السلام دعا ده چه اے الله! کهٔ چرے ته ما د ذاکرینو د مجلس نه تیریدُونکے د غافلینو مجلس ته تلونکے اووینے نو خپه ما تے کړے. ؎

جب اس کی شکل وصورت سے بے محرمی تو بہتر ہے ❖ مرے کانوں کا کر ہونا اور آنکھیں کور ہو جانی

"هر کله چه د محبوب د آواز آوریدو او شکل لیدو نه محرومی وی نو دے نه ښهٔ غوږونه کاڼهٔ او سترګے ړندے بنے دی".

حضرت ابُوهُرَیرَه رضی الله عنه فرمائی چه په کومو مجلسونو کښ د الله تعالیٰ یاد کیږی هغه آسمان والو ته داسے ځلیږی لکه زمکے والو ته ستوری.

حضرت ابُوهُرَیرَه رضی الله عنه یو وارے بازار ته تشریف یوړو او خلقو ته ئے اووئیل چه تاسو دلته ناست یئ او په جمات کښ د رَسُول الله ﷺ میراث تقسیمیږی. خلق په منډه جمات ته ورغلل. هلته هیڅ هم نه تقسیمیدل، واپس لاړل عرض ئے اوکړهٔ چه هلته خو هیڅ هم نه وو. ابُوهُرَیرَه رضی الله عنه تپوس اوکړو چه آخر څهٔ کیدل؟ خلقو اووے چه څهٔ خلق د الله تعالیٰ په ذکر کښ مشغول وُو او څهٔ په تلاوت کښ. دوی اوفرمائیل چه هم دا خو د رَسُول الله ﷺ میراث دے

امام غزالی رحمة الله علیه د دے قسمه روایتونه په کثرت ذکر فرمائیلی دی د دے تولونه زیات دا چه بخپله نبی اکرم ﷺ ته حکم دے.

وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ وَلَا تَعْدُ عَيْنَاكَ عَنْهُمْ تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَلَا تُطِعْ مَنْ

(او تاسو خپل ځان مخے خلقو سره (رناستے) پابند کړئ کوم چه صبا او بیګاه د خپل رب عبادت صرف د هغهٔ رضا حاصلولو د پاره کوی، او د دُنیوی ژوند د رونق په خیال خپلے سترګے له دوی نه مه اړَوَه او د داسے کس خبره

| | |
|---|---|
| أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ أَمْرُهُ فُرُطًا ۝ (پ ۱۵ - ع ۱۶) | مه منه چه دهغه زړه مونږ د خپل یاد نه غافله کړے دے او د خپل نفسانی خواهش تابعداری کوی او د هغه حال د حد نه تیر شوے دے ۔ |

په ګڼړو روایتونو کښ راغلي دی چه نبی اکرم ﷺ به د الله جل جلاله په دے شکر اوا کولو چه زما په اُمت کښ یے داسے خلق پیدا کړه چه دهغوی په مجلس کښ ما ته د ناستے حکم اوشو۔ او په دے آیتِ شریفه کښ د دویمے ډلے حکم هم ارشاد فرمایلے دے چه دهغوی زړونه د الله تعالی د یاد نه غافله دی، د خپلو خواهشاتو تابعداری کوی، د (الله تعالیٰ) حکمونو نه اوړی۔ دهغوی د تابعدارئ نه منع کړے شوے ده۔

اوس هغه حضرات چه په هره ورځ او کار کښ، د دین او د دُنیا په کارونو کښ کافران او فاسقان مشران جوړوی۔ د مشرکانو او نصاری (عیسایانو) په هره ورځ او کار باندے ځان قربانوی په خپله دغور اوکړی چه په کومه لار روان دی ۔ ـــه

| | |
|---|---|
| ترسم نرسی بکعبه اے اعرابی | کین ره که تو می روی بترکستان است |
| ویریږم اُو په نه رسے کعبے ته بانډی چیه | دا لار چه پرے روان یے تیغه تلے ترکستان ته |
| مُرادِ ما نصیحت بود کردیم | حوالت با خدا کردیم ورفتیم |
| مُراد څما وو نصیحت اُوم کړو | حواله په الله مِ کړے څه لاړم درنه |

وَمَا عَلَى الرَّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ

| | |
|---|---|
| حُکم منونکے<br>محمّد زکریا کاندهلوی<br>مُقیم مدرسه مظاهرِ علوم سهارنپور<br>۵ صفر ۱۳۵۰ھ موافق<br>(۲۱ جون ۱۹۳۱ء) په شپه دګل (پیر) | ترجمه کونکے<br>میاں محمّد شفیق غفرله (چارسده)<br>دار الشفقة چارسده - پوسٹ کوډ : ۲۴۴۳۰<br>فون : ۵۱۲۴۸ - تاریخ دختمیدو نظرِثانی<br>۳ شعبان ۱۴۱۶ھ موافق ۲۶ دسمبر ۱۹۹۵ء پشپه دجمعے |

کُتب خانه فیضی لاهور پاکستان ۔

شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِیْ اُنْزِلَ فِیْهِ الْقُرْاٰنُ

ترجمه

میاشت د رمضان هغه مبارکه میاشت ده چه په هغې کښې قرآن نازل کړے شوے دے

پښتو

# فضائلِ رمضان

لیکونکے:

شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد زکریا صاحب نور الله مرقده

ترجمه کونکے:

میاں محمد شفیق (غفرله چارسده)

خور ونکے

کتب خانه فیضی لاهور پاکستان

# فهرست د مضامینو د فضائل رمضان پښتو

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ حَامِدًا وَّمُصَلِّيًا وَّمُسَلِّمًا

د الله جَلَّ شَانُهٗ نه د وصفت او نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندے د درود و سلام نه پس دا یو خو حدیثونو ترجمه ده چه د رمضانُ المبارك په باره کښ راغلي دي. د نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحْمَةٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ذات د مسلمانانو د پاره په هر مضمون کښ څنګو مره فضیلتونه او ترغیبونه ارشاد فرمائیلي دي د هغې أصل شکریه او قدر دانی خو دا وه چه مونږ پرے ځان قربان کړے وے. خو زمونږ کمزورئ او دین نه بے رغبتئ دو مره زیاتے شوي دي چه په هغې عمل خو لا پریږده. هغې طرف ته پام او توجُه هم نه ده پاتے شوے. تر دے چه اوس خلقو ته د هغې علم هم ډیر کم شوے دے.

د دے پانړو مقصد دا دے که چرے د جماتونو امامانو صاحبانو او د تراویحو حافظانو هغه لوستونکي لیکونکي حضرات نچاچه دین سره څه نه څه د رجه کښ مینه ده، د رمضان د میاشتے په اولنو ورځو کښ دا رساله په جماتونو او مجمعو کښ خلقو ته اوروي، نو د الله جَلَّ شَانُهٗ د رحمت نه اُمید دے چه د خپل محبوب (نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د کلام په برکت سره مونږ ته د دے مبارکے میاشتے څه قدر او د هغې برکتونو طرف ته څه توجه پیدا شي. او د نیکو عملونو د زیاتوالي او د بدو عملونو د کموالي ذریعه موجوده شي.

د نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد مبارک دے که چرے الله جَلَّ شَانُهٗ ستا په وجه یو کس ته هم هدایت نصیب کړي، نو ستا د پاره د سرو اوښانو نه بهتر دے (أُونبانو نه بهتر هم دا بنه مال شمارولے شي) خو نه او بهتر دے.

د روژے میاشت د مسلمانانو د پاره د الله جَلَّ شَانُهٗ ډیر لوئے اِنعام دے خو هله چه د دے اِنعام قدر هم اوکړے شي. ګنی مونږ په شان محرومه کسانو د پاره خو د دے میاشتے پوره رمضان د لوږے او تندے نه علاوه نور څه نه حاصلیږي.

په یو حدیث شریف کښ دي که چرے خلقو ته دا معلومه شي چه رمضان څه شے دے، نو زما اُمت به دا آرزو اوکړي چه کال ټول رمضان وي. هر څوك پو هیږي چه کال ټول روژے نیول آسان کار نه دے، خو د رمضانُ المبارك د ثواب په مقابله کښ د نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دے چه خلق به د دے آرزو کولے اوکړي.

په يو حديث کښې دي چه د رمضان المبارک روژے او هره مياشت کښې درې روژے نيول د زړه خيرے او وسوسے لرے کوي. الغرض څنګه خبره خوره کنه چه صحابه کرامو رضي الله عنهم به د روژے په مياشت کښې د جهاد په سفر کښې روژے نيولے. سره د دے چه نبي اکرم ﷺ د روژے ماتولو يا بيا د اجازت ورکړے وو. خوشحوئ به روژے نيولے تر د دے چه بيا به يے پرے حکماً منع کړے.

د مسلم شريف په يو حديث کښې دي چه صحابه کرام رضي الله عنهم د يو غزا په سفر کښې په يو منزل کښې پړاؤ اوکړو، ډيره سخته ګرمي وه. د غريبئ په وجه ټولو سره دومره کپړې هم نه وې چه د نمر د ګرمئ نه يے پرے ځان بچ کړے وے. ډيرو کسانو په خپلو لاسو د نمر تاؤ نه ځان بچ کولو. په دے حالت کښې هم ډيرو روژے نيولے وے چه د اودريدو طاقت يے او نه لرلے شو او پرېوتل. صحابه کرامو رضي الله عنهم يو ډے بلکه چه هميشه کالو سر روژے نيولے.

د نبي اکرم ﷺ نه په سوونو روايتونو کښې د مختلفو قسمونو فضيلتونه نقل کړے شوے دي چه د هغے راجمع کول حما په شان ګنهګار د پاره د وس نه بهر خبره ده، خو البته دے که چرے هغه په تفصيل سره ليکم نو کتونکي به ستوماته شي. ولے چه په دے زمانه کښې په ديني کارونو کښې چه څومره بے توجهي کيږي، هغه د بيان محتاجه نه ده علم او عمل دواړو کښې چه څومره بے پرواهي د دين په باره کښې زياتيږي هغه هر يو کس په خپل حالت باندے غور کولو سره معلومولے شي. د دے د پاره په يو کم (۲۱) حديثونو بس ولے کوم او دا په درے فصلونو تقسيموم.

**اول فصل** د رمضان المبارک په فضيلتونو کښې چه په دے کښې لس (۱۰) حديثه دي.

**دويم فصل** د شب قدر په بيان کښې چه په دے کښې اووه (۷) حديثه دي.

**دريم فصل** کښې د اعتکاف ذکر دے. په دے کښې درے (۳) حديثه دي. د دے نه پس خاتمه کښې يو اوږد حديث باندے به دا رساله ختمه کړم. الله جل شانه دے د خپل کريم ذات او د خپل محبوب ﷺ په خاطر قبوله کړي، او ما ګنهګار له هم د دے د برکتونو نه د نفع اخستلو توفيق را کړي. فَإِنَّهُ بَرٌّ جَوَادٌ كَرِيمٌ.



# اول فصل

## د رمضان شریف په فضیلتونو کښې

① عَنْ سَلْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَطَبَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اٰخِرِ يَوْمٍ مِّنْ شَعْبَانَ فَقَالَ يٰاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ اَظَلَّكُمْ شَهْرٌ عَظِيْمٌ مُّبَارَكٌ شَهْرٌ فِيْهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِّنْ اَلْفِ شَهْرٍ شَهْرٌ جَعَلَ اللهُ صِيَامَهٗ فَرِيْضَةً وَّقِيَامَ لَيْلِهٖ تَطَوُّعًا مَنْ تَقَرَّبَ فِيْهِ بِخَصْلَةٍ مِّنَ الْخَيْرِ كَانَ كَمَنْ اَدّٰى فَرِيْضَةً فِيْمَا سِوَاهُ وَمَنْ اَدّٰى فَرِيْضَةً فِيْهِ كَانَ كَمَنْ اَدّٰى سَبْعِيْنَ فَرِيْضَةً فِيْمَا سِوَاهُ وَهُوَ شَهْرُ الصَّبْرِ وَالصَّبْرُ ثَوَابُهُ الْجَنَّةُ وَشَهْرُ الْمُوَاسَاةِ وَشَهْرٌ يُّزَادُ فِيْ رِزْقِ الْمُؤْمِنِ فِيْهِ مَنْ فَطَّرَ فِيْهِ صَائِمًا كَانَ مَغْفِرَةً لِّذُنُوْبِهٖ وَعِتْقَ رَقَبَتِهٖ مِنَ النَّارِ وَكَانَ لَهٗ مِثْلُ اَجْرِهٖ مِنْ غَيْرِ اَنْ يَّنْقُصَ مِنْ اَجْرِهٖ شَيْءٌ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ كُلُّنَا يَجِدُ مَا يُفَطِّرُ الصَّائِمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي اللهُ هٰذَا الثَّوَابَ مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا عَلٰى تَمْرَةٍ اَوْ شَرْبَةِ مَاءٍ اَوْ مَذْقَةِ لَبَنٍ وَهُوَ

حضرت سلمان رضی الله عنه فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د شعبان په آخری ورځ مونږ ته وعظ اوفرمایه چه اے خلقو! په تاسو باندے یوه میاشت راروانه ده چه ډیره لویه مبارکه میاشت ده، په دے کښې یوه شپه ده (شپ قدر) چه د زرو میاشتو نه زیاته ده الله تعالیٰ د دے میاشتے روژے فرض کړیدی او د دے د شپے قیام یعنی تراویح یے د ثواب شیز کرزولے دے خوک چه په دے میاشت کښې په یوه نیکئ د الله تعالیٰ نزدیکت حاصل کړی هغه داسے دے لکه چه په غیر رمضان کښې یے فرض ادا کړه او خوک چه په دے میاشت کښې یو فرض ادا کړی هغه داسے دے لکه چه په غیر رمضان کښې اویا فرض ادا کړی. دا میاشت د صبر ده او د صبر بدله جنت دے. او دا میاشت خلقو سره د غمخوارئ کولو ده، په دے میاشت کښې د مؤمن رزق زیاتولے شی خوک چه د یو روژه دار روژه ماتے وکړی نو د هغه د پاره به د ګناهونو معاف کیدو او د اور نه خلاصیدو سبب وګرزی او د روژه دار د ثواب په شان به د ده ثواب اوشی خو د روژه دار نه به هیڅ نه کمولے شی صحابو رضی الله عنهم عرض اوکړو چه اے د الله رسوله (صلی الله علیه وسلم) مونږ کښې هر یو کس خو دومره طاقت نه لری چه د روژه دار روژه ماتے اوکړی

شَهْرٌ اَوَّلُهٗ رَحْمَةٌ وَّاَوْسَطُهٗ مَغْفِرَةٌ وَّاٰخِرُهٗ عِتْقٌ مِّنَ النَّارِ مَنْ خَفَّفَ عَنْ مَمْلُوْكِهٖ فِيْهِ غَفَرَ اللّٰهُ لَهٗ وَاَعْتَقَهٗ مِنَ النَّارِ فَاسْتَكْثِرُوْا فِيْهِ مِنْ اَرْبَعِ خِصَالٍ خَصْلَتَيْنِ تُرْضُوْنَ بِهِمَا رَبَّكُمْ وَخَصْلَتَيْنِ لَا غِنَاءَ بِكُمْ عَنْهُمَا فَاَمَّا الْخَصْلَتَانِ اللَّتَانِ تُرْضُوْنَ بِهِمَا رَبَّكُمْ فَشَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَتَسْتَغْفِرُوْنَهٗ وَاَمَّا الْخَصْلَتَانِ اللَّتَانِ لَا غِنَاءَ بِكُمْ عَنْهُمَا فَتَسْئَلُوْنَ اللّٰهَ الْجَنَّةَ وَتَعُوْذُوْنَ بِهٖ مِنَ النَّارِ وَمَنْ سَقٰى صَائِمًا سَقَاهُ اللّٰهُ مِنْ حَوْضِيْ شَرْبَةً لَا يَظْمَأُ حَتّٰى يَدْخُلَ الْجَنَّةَ۔ (رواه ابن خزيمة في صحيحه ثم قال صح الخبر ورواه من طريقه البيهقي ورواه ابو الشيخ بن حيان في الثواب باختصار عنهما وفي اسانيدهم علي بن زيد بن جدعان ورواه ابن خزيمة ايضا والبيهقي باختصار عنه من حديث ابي هريرة وفي اسناده كثير بن زيد كذا في الترغيب ص ۲۳) قلت علي بن زيد

نو نبی ﷺ اُو فرمایل چه دا یو میاشت کیږه خوړ وُلو یا نیږنهٔ دهٔ ) دا ثواب خو الله جَلَّ شَانُهٗ په یوه کهجوره روژه ماتولو یا په یو گوټ اوبو یا په یو گوټ شی څکولو هم ورکوی. دا یو داسے میاشت ده چه د دے اَوَّلَه حصه د الله تعالیٰ رحمت دے، او مینځنئ حصه یے مغفرت دے او روستئ حصه یے د اُورنه ازادی ده. څوک چه په دے میاشت کښ د خپل غلام (او خادم نه) بوجو سپک کړی، الله جَلَّ شَانُهٗ د هغهٔ مغفرت فرمائی، او د اُورنه ازادی ورکوی. او د څلورو څیزونو په دے کښ ډیر والے کوئ چه په هغے کښ دوه څیزونه خو د الله تعالیٰ د رضا د پاره دی، او دوه څیزونه د لپاره دی چه د هغے نه بغیر ستاسو خلاصے نشته رومبنی دوه څیزونه چه په هغے تاسو خپل رب راضی کړئ، هغه د کلمے طیبے او د استغفار ډیروالے دے. او نور دوه څیزونه دا دی چه د جنت طلب کوئ او د اُورنه پناه غواړئ. څوک چه یو روژه دار اوبهٔ اُو څکوی الله جَلَّ شَانُهٗ به (د قیامت په ورځ) خپل د حوض نه په هغهٔ داسے اُوبهٔ اُو څکوی چه د هغے نه پس به جنت کښ تر داخلید و پورے نهٔ ترږے کیږی.

لے واستکثروا کښ وا و نشته دے فا ده ۔ سه وقال ان د واو په ځائے ثمّ دے او اِن یکښ نشته. من طریقه ترے پاتے شوے وُو یکښ مو او لیکه ۔ سه دلته ابن حبان په یا سره دے او دغسے حدیث ۲ او د فصل ثالث حدیث نمبر ۷ کښ هم په یا سره دے . البته د فصل اوّل حدیث ۳ کښ ابن حبان په با سره دے . ز مے خیال ساتئ څکه چه کاتبانو غلط لیکلے دے۔

مشد جامعہ وقال الترمذی صدوق وفی الترغیب حسن الترمذی والنسائی حدیث کذا فی الترغیب وضعفہ النسائی وغیرہ وقال ابن معین ثقۃ وقال ابن مسلم الجہنی ثبات واخرج بحدیثہ ابن خزیمۃ فی صحیحہ کذا فی رجال المنذری وفی الحمل قال العینی الخبر المنکر فتامل۔

**فائدہ:** محدثینو رحمہم اللہ د دے پہ بعضے راویانو کښې بحث کړے دے، ولے اول خو پہ فضائلو کښې د دومرہ قدر بحث قابل برداشت دے۔ دوم دا چہ اکثرو مضامینو نورو روایتونو تائید کړے دے، د دے حدیث نہ یو څو خبرے معلومیږی. اول د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم اهتمام چہ د شعبان پہ رُ ستی ورځ ئے پہ خاص طور د دے وعظ اُو فرمایہ، او خلقو تہ ئے خبردارے ورکړو چہ د رمضان المبارک یوہ لحظہ هم پہ غفلت کښې تیرہ نہ شی. بیا ئے پہ دے وعظ کښې د ټولے میاشتے د فضیلت بیانولو نہ پس یو څو ضروری خبرو تہ پہ خصوصیت سرہ خلق مُتَوَجِّہ کړل۔ د ټولو نہ اول ئے شب قدر تہ توجُّہ اُوګرځولہ چہ دا پہ حقیقت کښې ډیرہ اہمہ شپہ دہ. پہ دے باره کښې بہ د دے بیان پہ دوہم فصل کښې مستقل راشی۔ لہ دے نہ پس ارشاد دے چہ اللہ پاک د دے روژے فرض کړے، او د دے قیام یعنی تراویح ئے سُنت کړے. لہ دے نہ معلومہ شوہ چہ د تراویح ارشاد هم پخپلہ د اللہ جل شانہ لہ طرفہ دے۔ بیا پہ کومو روایتونو کښې چہ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم خپل ځان تہ د دے نسبت کړے دے چہ ما سُنت کړی دی، د هغے نہ مُراد تاکید او پوښتنہ ده چہ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم بہ د دے پوښتنہ ډیرہ کولہ. لہ دے وجہ نہ ټولو امامانو رحمہم اللہ د دے پہ سُنت کیدو اتفاق دے. پہ برہان نومے کتاب کښې ئے لیکلی دی چہ پہ مسلمانانو کښې د روافضو نہ علاوہ بل څوک د دے منکر نشتہ۔

حضرت مولانا الشاہ عبد الحق صاحب محدث دهلوی رحمۃ اللہ علیہ ما ثبت بالسنۃ نومے کتاب کښې د فقہے بعضے کتابونو نہ نقل کړے دے چہ کہ د یو ښار خلق تراویح پریږدی نو بادشاہ وقت د ورسرہ جنګ اُوکړی۔ دلتہ پہ خصوصیت سرہ د یو خبرے لحاظ ساتل ضروری دی، هغہ دا چہ د ډیرو خلقو خیال دا دے چہ پہ جلتئ سرہ بہ یو جُمات کښې پہ اتو لسو ورځو کښې قرآن شریف پہ تراویحو کښې واورو نو لس چُھټی شوہ، د دے خبرے خیال ساتل پکار دی چہ دا دوہ سُنتہ جدا جدا دی. ټول قرآن شریف پہ تراویحو کښې لوستل یا اوریدل دا مستقل ځان لہ سُنت دی، او پورہ رمضان شریف کښې

تراویح کول مستقل ځان له سنت دی. پس دغه شان په دواړو سنتو عمل اوشو، او دواړه پلي شو. البته کوم کسان چې په رمضان المبارک کښې د سفر وغیره یا په بل څه وجه په یو ځائے تراویح کول ګران وی، نو د هغوی دپاره مناسبه دا چې اول دی په یو څو ورځو کښې ټول قرآن شریف واوری چې قرآن شریف یې پوره کړے شي، بیا دې چې کوم ځائې وخت بیا مونده او موقع وه هلته دې تراویح کوی په دے حالت کښې به یې نه قرآن شریف پوره کړے شي، نه به یې کار کښې نقصان راشي.

نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم د روژے او د تراویح د ذکر کولو نه پس د علمو فرضونو او نفلی عبادتونو اهتمام طرفته توجه اوګرځوله چې په دې میاشت کښې د یو نفل ثواب د نورو میاشتو د فرضونو برابر دے او د یو فرض ثواب د نورو میاشتو د اویا فرضونو برابر دے د اغائې مونږ خلقو ته خپلو عبادتونو طرفته هم لږ د فکر کولو ضرورت دے چې په دے مبارکه میاشت کښې مونږ د فرائضو څومره اهتمام کوو، او د نوافلو کښې څومره زیادت کوو. په فرائضو کښې خو مونږ د اهتمام حالت خو دا دے چې د پیشمنی کولو نه پس چې اوده شي نو اکثر د سحر مونځ قضا شي کنې د جمع مونځو د دیرونه فوت شي، ګویا د پیشمنی شکریه مو دا ادا کړه چې د الله جل شانه د ټولونه زیات اهم فرض مو یا بالکل قضا کړه، یا مو کم نه کم ناقصه کړه. ځکه چې بغیر د جمع نه مونځ کول تمام علماء اصولو ادا ناقص وائي. او د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم یو ځائي ارشاد دے چې د جمات نه د نزدے اوسیدونکو خو (ګویا) مونځ بغیر د جماعته کیږی نه.

په مظاهرِ حق نومے کتاب کښې یې لیکلی دی چې څوک بغیر د عذره بے جمع ځان له مونځ کوی د هغه نه په دے سره فرض خو ساقط شو خو د مونځ ثواب ورته نه ملاویږي. د غشے د نورو مونځو نوحال دے. د ماښام د جمع مونځ خو په روژه ماتی کښې لاړشي د رومبی رکعت یا د تکبیرِ اولی به یې څه ذکر کوے. او ډیر کسان د ماسخوتن مونځ د تراویحو د راحت په بدله کښې د وخت نه مخکښې کوی، دا خو په رمضان المبارک کښې خو مونږ د مونځو نو حال دے چې په فرائضو کښې د ټولونه اهمه فریضه ده چې د یو فرض په بدله کښې د درې فرضه یې ضائع کړه. دا درې خو اکثر دی کنې د ماسپخین مونځ د غرمے په خوب کښې او د مازیګر د جمع مونځ د روژه ماتی دپاره

سامان اخستلو کښې تیرانول په سترګو لیدلے شوے دی. دغه شان په نورو فرائضو تاسو په خپله غور اوکړئ چه په رمضان شریف کښې څومره کوشش کیدلے شی.

هر کله چه د فرضو داحال دے نو د نوافلو به ئے څه پوښتنه کوے، د اشراق او د څاښت نفل خو په خوب کښې لاړ شی، او د اوابینو اهتمام څنګه کیدے شی چه اوس خو په لا روژه ماته کړے ده او څنګښې پړے د تراویحو ویره پرته ده او د تهجد د وخت خو د پیشمنی د خوراک وخت دے نو د نفلو نو د پاره وخت کوم ځائی پکښې شو.

خو د اتو له خبرے د دے توجهئی او د نه کولو دی خکه. ع

تو ہی اگر نہ چاہے تو باتیں ہزار ہیں

"چه تمیے نه غواړے نو خبرے په زرګونو دی"

څومره د الله تعالیٰ بندګان دی چه د هغوی د پاره هم په دے وختونو کښې د تهولو څیزونو وخت راوُزی.

ما خپل استاذ او پیر مولانا خلیل احمد صاحب رحمة الله علیه په دیرو رمضانونو کښې لیدلے وو چه سره د بوډا والی او کمزورتیا د ماښام مانځه نه پس نفلو کښې به ئے یو نیم پاره قرآن شریف لوستو، بیا به ئے اوریده. د دګڼه پس نیم ګهنټه خوراک او نور ضروریاتو وغیره نه پس د هندوستان په قیام کښې تقریباً دوه پاو باندے دوه ګهنټے به ئے په تراویحو لګیدلے. او د مدینے منورے په قیام کښې تقریباً درے ګهنټو کښې به د ماسخوتن مونځ او د تراویحو نه فارغیدلو. د دے نه پس د موسم د اختلاف مطابق به ئے دوه درے ګهنټے آرام کولو. بیا به ئے تهجد وکښې تلاوت فرمایئ او د سحر نه نیمه ګهنټه مخکښې به ئے پیشمنے کولو. د دګڼه پس د سحر مانځه پورے کله به ئے په یاد د تلاوت فرمایئ، کله به اورادو او وظائفو کښې مشغول او سیدلو. په اِسفار یعنی رڼا اینی) کښې به ئے د سحر مونځ اوکړو. بیا به تر اشراقه پورے مراقبه کښې ورو او د اشراق نه پس تقریباً یو ګهنټه به ئے آرام کولو. د دګڼه پس تقریباً دولس بجو پورے او د ګرمئی په موسم کښې تر یو بجے پورے به ئے بَذلُ المَجهُود لیکلو. او ډاک وغیره به ئے کتلو او د هغے جواب به ئے لیکلو. د دے نه پس به ئے د ماسپښین مونځ پورے آرام ن اراو د ماسپښین نه تر ماښامه پورے به ئے تلاوت کولو.

دَ مازیگر نه تر ماښامه پورې به تسبیحاتو کښې مشغول وُو. او حاضرینو سره به یې خبرې اترې کولې. دَ بَذْلُ الْمَجْهُود دَ ختمید و نه پس یې دَ سحر څهٔ حصه په تلاوت کښې او څهٔ حصه دَ کتابونو په مُطالعه کښې تیروله. دغه وخت دَ بَذْلُ الْمَجْهُود او کتاب وَفَاءُ الْوَفَا مطالعه به یې زیاته کوله. دَ رمضانُ الْمُبَارَك په معمولاتو کښې څهٔ خاص بدلون نه وُو. دَ نوافلو دا معمول همیشه وو. او دومره تیر و ذکر شوو نفلونو به یې کالو سر ټول اهتمام کُولو. البته دَ رکعتونو اُوردوالی کښې به یې په رمضانُ الْمُبَارَك کښې زیادت کُولو. کښې دَ کومو بزرګانو چه په رمضانُ الْمُبَارَك کښې خپل کوم خاص مستقل معمولات وُو نو هغې پښتنول خو دَ هرکس دَ پاره ګرانه ده.

حضرت شیخُ الْهِند مولانا مَحْمُودُ الْحَسَن رحمة الله عليه به دَ تراویحو نه پس دَ سحر دَ مانځه پورې په نفلونو کښې مشغول اُوسیدلو. او پرله پسې دَ جُدا جُدا حافظانو نه به یې قرآن شریف اوریدلو. او حضرت مولانا شاه عَبْدُ الرَّحِیم صاحب رائپوری رحمة الله عليه به دَ رمضانُ الْمُبَارَك ټوله میاشت شپه او ورځ بس دَ تلاوت ده. ډاك به یې بند وُو، او مُلاقات ګر هم نهٔ خوښوُو. بعضې خاصو خادمانو ته صرف دومره اجازت به وُو چه دَ تراویحو نه پس څو مره ساعت کښې چه حضرت دَ ساده چایو دوه پیالئ څکی، دو مره ساعت خدمت کښې حاضریدے شی. دَ بزرګانو دَ معمولاتو لیکلو مقصد دا دے چه په سرسری نظر لوستلو سره شی یا دَ تفریح څهٔ الفاظ پرے اُووئیلے شی بلکه دَدے دپاره دی چه دَ خپل همت موافق په هغې عمل اُوکړے شی. او دَ طاقت مُناسب یې دَ پوره کولو اهتمام اُوشی. ځکه چه هر یوه طریقه په خپلو مخصوصو امتیازاتو کښې په نورو باندے اُوچته ده. کوم خلق چه دَ دُنیا په لانجو کښې مجبورنه دی څومره به ښهٔ وی چه یوُلس میاشتے ضائع کولو نه پس دَ یوه میاشت کښې دَ ځان قُربانولو کوشش اُوکړی. نوکر پیشه حضرات چه دَ لس بجو نه تر څلورو بجو پورے په دَ فتر کښې پابند وی. که چرے دَ سحر نه تر لس بجو پورے کم نه کم دَ رمضانُ الْمُبَارَك دا مُبَارَکه میاشت په تلاوت کښې تیره کړی نو څهٔ ګرانه ده. آخر دَ دُنیوی کارونو دپاره دَ دفتر نه علاوه وختونو کښې خو وخت اُوباسلے شی او زمیندارانو خو دَ چا نوکران دی او نهٔ دَ وختونو په بدلیدو کښې څهٔ داسے پابندی چه بدلولے یې نشی. په پټی کښې په ناسته ناسته تلاوت کولے شی. دغسے دَ تاجرانو دپاره هم

اَو څهٔ تکلیف نشته چه په دے مُبارکه میاشت کښې دَ دوکان وخت څهٔ لږکم کړی یا کَم نه کَم په دوکان کښې تجارت سره تلاوت هَم کوی ځکه چه دَ دے مُبارکے میاشتے دَ الله پاک دَ کلام سره دیر خاص مُناسبت دے.

هم دغه وجه ده چه عموماً دَ الله جَلَّ شَانُهٗ ټول کتابونه په دے میاشت کښې نازل شوی دی. چُنانچه قرآن شریف دَ لوحِ محفوظ نه دَ دُنیا په آسمان ټول په ټول په دے میاشت کښې نازل شوے دے اوبیا دَ دغه ځائ نه دَ موقع مُطابق لږ لږ په درویشت کاله کښې نازل شو. دَ دے نه علاوه حضرت اِبراهیم عَلَیْهِ السَّلَام ته صحیفے هم دے میاشتے په اَول یا دریم تاریخ ورکړے شوے. او حضرت داؤد عَلَیْهِ السَّلَام ته زبُور په دولسم یا اَتلسم دَ رمضان ورکړے شو. او حضرت مُوسیٰ عَلَیْهِ السَّلَام ته تورات په شپږم رمضان ورکړے شو. او حضرت عیسیٰ عَلَیْهِ السَّلَام ته انجیل په دولسم یا دیارلسم رمضان المُبارک ورکړے شو. دَ دے نه معلومه شوه چه دَ دے میاشتے دَ الله تعالیٰ کلام سره خاص مُناسبت دے. په دے وجه دَ تلاوت دیروالے په دے میاشت کښې نقل کړے شوے او دَ بزرګانو پرے عمل دے. حضرت جبریل عَلَیْهِ السَّلَام به هر کال په رمضان مُبارک کښې ټول قرآن شریف نبی اکرم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم ته اَوروُلو. او بعضے روایتونو کښې راغلی دی چه نبی عَلَیْهِ السَّلَام نه به یے اَوریدلو. عالمانو دَ دے دواړو حدیثونو دَ یوځائے کولو نه دا خبره راوویستله چه دَ قرآنِ پاک دَوَر (یعنی یو بل ته یے اَورَوُل) چه کوم عام طور باندے کیږی مستحب دے.

خلاصه دا چه دَ تلاوت خاص اِهتمام څومره چه درنه کیدے شی کوئ. او چه کوم وخت دَ تلاوت نه پاتے شی، دَ هغے ضائع کول هم مُناسب نهٔ دی. ځکه چه نبی اکرم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم دَ دے حدیث په آخر کښې څلورو څیزونو طرف ته خاص طور توجُه گرزولے ده او په دے میاشت کښې یے دَ هغے دَ دیروالی حکم کړے دے. کلمه طیبه او استغفار او دَ جنت حاصلول او دَ دوزخ نه دَ بچ کیدو دُعا. نو څومره وخت چه درته مِلاؤ شی په دے څیزونو کښې یے لګول نیک بختی اُوګڼئ. او هم دا دَ نبی اکرم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم دَ اِرشادِ مُبارک قدر دے او په دے کښې څهٔ تکلیف دے چه په دُنیوی کاروبار کښې مشغول یے او ورسره په ژبه درود شریف یا کلمه طیبه وایے چه صبا درته دَ دے څیزونو لګول باقی پاتے شی. ؎

میں گو رہا رہینِ ستمہائے روزگار — لیکن تمہاری یاد سے غافل نہیں رہا

خدا گرچه په روزگار کښې ومه کښېږ ◆ ستا د یاد نه نه وم غافله او نه ام هیر

دے ته پس نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم د دے میاشتے څهٔ خصوصیات او آداب ارشاد اوفرمایل

اول دا چه دا د صبر میاشت ده یعنی په روژه نیولو کښې که څهٔ تکلیف وی نو په ذوق شوق سره یے برداشت کول پکار دی، نهٔ دا چه وَهل ټکول چغے سورے وی لکه څنګه چه د اکثرو خلقو د ګرمئ په رمضان کښې عادت وی۔ دغه شان که چرے اتفاق ترے پیشمنے پاتے شو، نو اَن د مازیګر نه د روژے ژړا فریاد شروع شی۔ دغسے که د شپے په تراویحو کښې څهٔ تکلیف وی نو په ډیر خوشحالئ یے برداشت کول پکار دی۔ د آفت او مُصیبت مهٔ ګنړئ۔ دا د ډیرے زیاتے محرومئ خبره ده چه مونږ خلق د دُنیا د معمولی غرضونو په وجه خوراک، څښل، راحت او آرام ټول پریږدُو، نو د الله تعالیٰ د رضا حاصلولو په مقابله کښې د دے ټولو څیزونو څهٔ حیثیت کیدے شی۔

بیا ارشاد دے چه دا د غمخوارئ میاشت ده یعنی غریبانو مسکینانو سره نیکره کول، که لس څیزونه د ځان د روژه ماتی د پاره تیار کړی وی نو دوه څلور خو د غریبانو د پاره هم پکار دی۔ کنی اَصل خو دا وه چه د هغوی د پاره که د خپل ځان نه زیات نهٔ وی نو چه برابر خو وی۔ غرض دا چه څومره قدر دے د همت کیدے شی د خپل روژه ماتی او د پیشمنی په خوراک کښې د غریبانانو حِصه هُم ضرور کول پکار دی۔

صحابه کرام رضی اللہ عنہم اُمت د پاره عَملی نمونه وُو او هغوی د دین هره یوه خبره په خپل عَمل دا سے واضحه پیښے ده چه اُوس د هر یو نیک کار د پاره د هغوی د عمل لاره آزاده ده۔ د ایثار او غمخوارئ په سلسله کښې د دے بزرګانو تابعداری کول هُم د لوئی زړهٔ د خاوندانو کار دے۔ په سوونو زرګونو واقعات دی چه د هغے په کتلو د حیرانتیا نه بغیر څهٔ نشی ویلے کیدے۔

یوه واقعه د مثال په طور لیکم۔ ابوجهم رضی اللہ عنہ فرمائی چه د یرموک په جنګ کښې زهٔ د خپل تره خوی په تلاش کښې روان شوم، او په خیال مِ د اُوبو مشکیزه هم ځان سره واخسته چه که چرے څهٔ ساه په کښې باقی وی نو چه اُوبهٔ پرے اُوڅکوم، او مخ لاس به ورله اُوپرېځم۔ هغه اِتفاقاً (زخمی) پروت وو۔ ما ورته د اُوبو اُووے، هغه په اشاره اُوویل چه هو په دیکښې د هغه په څنګ کښې یو بل زخمی آه اوکړهٔ، د تره خوئ مِ په خپله د اُوبو څکلو نه منکښې هغهٔ ته د ورکولو اشاره اُوکړه۔ هغهٔ ته ورغلم او په اُوبو ئے مِ ترے اُوکړه

معلومه شوه چه دے هم تږے دے او اوبه غواړي، چه ګېنې د هغهٔ په خوا کښې هل
ملګري اشاره اوکړه. دغه هم په خپله اوبو څکلو نه مخکښې هغه ته د ورتلو اشاره اوکړه.
خوزه چه هغه له رسيدم نو د هغهٔ روح وتلے وو. چه واپس دويم صاحب ته اورسيدم نو
هغه هم ختم شوے وو. چه واپس د خپل تره ځوئ ته راغلم، نو اوم ليده چه هغه هم
په حق رسيدلے وو. دا خونړ دَ شرانو ايثار وُو چه په خپله تږي مړهٔ شو خو د خپل
مسلمان رورنه يے مخکښې اوبهٔ څکل خوښ نهٔ کړل. رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وَ أَرْضَاهُمْ
وَ رَزَقَنَا اِتِّبَاعَهُمْ. آمين.

رُوحُ الْبَيَان کښې د سُيُوطي رحمة الله عليه د جَامِعُ الصَّغِير نه او د سخاوي رحمة الله عليه د مقاصد
نه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په روايت د نبي اکرم صلي الله عليه وسلم اِرشاد نقل کړے دے چه زما
په اُمت کښې به هر وخت پنځهٔ سوه (۵۰۰) خاص خوښ بندګان او څلويښت (۴۰) ابدال وي.
هر کله چه د هغوي نه څوک مړ شي نو فوراً ابدل کښې د هغهٔ ځائ اخلي. صحابو رضي الله عنهم
عرض اوکړو چه د دغے خلقو خصوصي عملونه څهٔ دي؟ نو نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمايل چه
ظالمانو ته به مُعافي کوي او د بَد معامله کوونکو سره به هم د اِحسان معامله کوي. او
د الله تعالي په ورکړے شوي رزق کښې به خلقو سره همدردي او غمخواري کوي.

يو بل حديث کښې دي چه څوک په اوږي وږي اوخوړوي يا بربنډ ته جامے
ورواغوندي، يا مُسافر ته د شپے تيرولو ځائ ورکړي نو الله جلّ شانهٔ به د قيامت
د سختونه هغه ته پناه ورکړي.

يَحْيي بَرمَکِي رحمة الله عليه به حضرت سُفيان ثوري رحمة الله عليه باندے هره مياشت کښې
يو زر درهمه خرچ کول. نو حضرت سُفيان رحمة الله عليه به په سجده کښې د هغهٔ د پاره دُعا
کوله، چه يا الله! يحيي زما د دُنيا ضرورتونه پوره کړل ته په خپله مهربانئ د هغهٔ د
آخرت ضرورتونه پوره کړے. چه يحيي رحمة الله عليه وفات شو نو خلقو په خوب کښې ترے پوښتنه
اوکړه چه په تا څهٔ تير شو؟ هغه اوويل چه د سُفيان رحمة الله عليه د دُعا په برکت م بخښنه اوشوه.

د دے نه پس نبي اکرم صلي الله عليه وسلم د بل روژه دار د روژه ماتي فضيلت ارشاد
اوفرمايه. په يو روايت کښې راغلي دي چه څوک د حلالے ګټے نه په رمضان کښې
روژه دار له د روژه ماتي د پاره څهٔ ورکړي نو د رمضان په شپو کښې فرښتے په هغهٔ

رَحمت لیږی، او شپِ قدر کښې جبرئیل علیه السلام دَ هغهٔ سره مُصافحه (یعنی لاس ملاوَول) کوی. او چا سره چه جبرئیل علیه السلام مُصافحه کوی (دَ هغې نخه داده چه) دَ هغهٔ په زړهٔ کښې نرمی پیدا کیږی او دَ سترګو نه یې اوښکې بهیږی. حَمّاد بن سلمه رحمه الله یو مشهور مُحدِّث دے هغهٔ به روزانه دَ پنځوس کسانو دَ روژه ماتی بند وبست کولو (روح البیان)

دَ روژه ماتی فضیلت بیانولو نه پس یې اُوفرمایل چه دَ دے میاشتے اُوله حِصه رحمت دے یعنی دَ الله جَلّ شَانُهٗ انعام متوجه وی، او دا عام رحمت دَ ټولو مُسلمانانو دپاره وی. درے نه پس چه کوم کسان درے شکریه ادا کوی نو هغوی له په دَ غه رحمت کښې زیاتوالے کیږی. لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَاَزِیْدَنَّكُمْ. او دَ دے میاشتے مینځنی حِصے نه مغفرت شروع کیږی ځکه چه دَ روژو څهٔ حصه تیره شوه نو دَ دے بدله او اِکرام په مغفرت سره شروع کیږی او آخری حِصه ئے خو بالکل دَ اُور نه خلاصے دے.

نورو ډیرو روایتو کښې دَ رمضان په ختمیدو دَ اُور نه دَ خلاصی زیری راغلی دی. دَ پورتنی مضمون نه معلومه شوه چه رمضان درے حصے کړے شوے دے. دَ بنده عاجز (یعنی شیخ الحدیث رحمه الله) په خیال کښې درے حصے رحمت او مغفرت او اُور نه دَ خلاصی په مینځ کښې فرق دا دے چه خلق درے قسمه وی. یَو هغه خلق چه هغوی باندے دَ ګناهونو بوج نه وی، دَ هغوی دپاره اُول نه دَ رحمت باران شروع شی. دویم هغه خلق دی چه لږ ګناهګاران دی، هغوی دپاره څهٔ حِصه روژے نیولو نه پس دَ هغے روژو په برکت او بدله کښې مغفرت او دَ ګناهونو مُعافی کیږی. دریم هغه خلق دی چه زیات ګناهګاران دی، هغوی دپاره زیاته حِصه روژے نیولو نه پس دَ اُور نه خلاصے کیږی او دَ کوم خلقو دپاره چه دَ شروع نه رحمت وُو او ګناهونه یې بخښلے شوی وُو د هغوی به څهٔ تپوس کوے، چه دَ هغوی دپاره به دَ رحمتو نو څومره انبارونه وی. وَاللهُ اَعْلَمُ وَعِلْمُهٗ اَتَمُّ.

درے نه پس نبی صلی الله علیه وسلم یو بل څیز طرف ته ترغیب ورکړے دے چه مالکان دِ په خپلو نوکرانو چاکرانو باندے په دے میاشت کښې دَ کار کمولے کوی ځکه چه آخر هغوی هم روژه داردی. دَ کار په زیاتوالی به هغوی ته په روژه کښې تکلیف وی. البته که چرے کار زیات وی نو په دے کښې څهٔ حرج نشته چه دَ رمضان دپاره دیو عارضی نوکر بل زیات کړی، خو دا هغه چه نوکر روژه دار هم وی کنی هغوی دپاره بیا

رمضان او غیر رمضان برابر دے۔ او دا ظلم او بے غیرتی به څه ذکر کوو چه ځینې
خوروڑه خوری او بے شرمه د روژه دارو نوکرانو نه کار اخلی، او چه هغوی غریبانان
د ما الخد روژے په وجه څه ذلیږ په کار کښ سُستیا اوکړی نو دے پرے غصه کوی۔
وَسَيَعْلَمُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اَيَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ ۝ (ترجمه) زر دے چه ظالمانو خلقو ته به
معلومه شی چه هغوی څنګه (د مُصیبت) ځائی ته واپس کیږی (مُراد ترے دوزخ دے)
دے نه پس نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د څلورو څیزونو د یروالی حُکم اوفرمایه۔ او ل
کلمه طیبه، په حدیثونو کښ یے دے ته اَفْضَلُ الذِّکر (یعنی بهترین ذکر) فرمائیلے دے۔
مشکوٰة شریف کښ د اَبُوْ سَعِيْد خُدرِی رضی الله عنه په روایت کښ نقل کړی دی چه
حضرتِ موسیٰ علیه السلام یو وارے د الله جلّ جلاله په دربار کښ عرض اوکړو چه یا الله!
ما ته یو داسے دُعا اوښایه چه په هغے سره څهٔ تا یا دَوَمه، او دُعا اوکومه۔ الله پاک ورته
لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اوخودله۔ حضرتِ موسیٰ علیه السلام عرض اوکړو چه دا کلمه خو ستا ټول
بندګان وائی، څهٔ خو څهٔ خاصه دُعا او ذکر غوارم۔ هلته نه ارشاد اوشو چه اے موسیٰ
(علیه السلام) که چرے اووهٔ واړه آسمانونه او د دے آباد ونکی ما نه سوا یعنی ملائکے او اووهٔ
واړه زمکے د تلے په یو چابړی کښ کیښودلے شی او په بل چابړی کښ کلمه طیبه
کیښودلے شی، نو د کلمے طیبے چابړے به دروند اوځکته شی۔
په یو حدیث کښ راغلی دی چه څوک په اخلاص دا کلمه اووائی نو د آسمان
دروازے د هغهٔ د پاره سمدستی لرے شی او عرش ته رسید وکښ ورته هیڅ قسمه
بندیزنهٔ وی خو په شرط د دے چه وئونکے یے د کبائرو یعنی غټو ګناهونو نه ځان ساتی۔
د الله جلّ شانهٔ عادت داسے جاری دے چه د عام ضرورت څیز ډیر پیدا کوی۔
دُنیا کښ فکر کولو سره به درته معلومه شی چه یو څیز څومره ضروری وی هغه هومره
عام وی۔ مثلاً اوبهٔ دی چه د عام ضرورت څیز دے نو د الله جلّ شانهٔ بے حسابه
رحمت دا څومره عامے کړیدی او ګیما په شان فضول او بیکاره څیزے نایابه کړے دے۔
د غسے کلمه طیبه اَفْضَلُ الذِّکر دے۔ په کنزو حدیثونو کښ د دے په ټولو ذکرونو
بهتر والے معلومیږی۔ دا یے د ټولو نه عامه کړے ده چه څوک ترے محرومه پاتے
نشی۔ بیا هم که ترے څوک محرومه پاتے شی نو دا د هغهٔ بدبختی ده۔ خُلاصه دا چه

ډیر حدیثونه دي په فضیلت کښې راغلی دی چه دَ مختصر والی په وجه پرېښودے شو.

(۲) دوئیم څیز چه په پورتنی حدیث کښې دَ ښځې دَ ډیروالی ارشاد شوے دے هغه استغفار دے. په حدیثونو کښې دَ استغفار هم ډیر فضیلتونه راغلی دی. په یو حدیث کښې راغلی دی چه څوک ډیر ډیر استغفار کوی الله جَلَّ شَانُهٗ ورله په هره تنګیا کښې لاره اُوباسی او دَ هر غم نه خلاصے ورکوی او په داسے طریقه ورته روزی رسوی چه دَ هغه په وَهم ګمان کښې هم نه وی.

یو حدیث کښې راغلی دی چه بنیادم ګناهګار خو وی خو بهترین ګنهګار هغه څوک دی چه توبه اُوباسی. یو حدیث نزدے راتلونکے دے چه کله مؤمن ګناه اُوکړی نو یو تور ټکے دَ هغه په زړهٔ اُولګی، که توبه اُوباسی نو هغه اُووینځلے شی کنی باقی پاتے شی.

دَدے نه پس نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دَ دوه څیزونو غوښتلو حُکم اُوکړو چه دَ هغے نه بغیر خلاصے نشته، دَ جنّت حاصلول او دَ دوزخ نه په امن کیدل. الله پاک دَ په خپل فضل سره مونږ هم نصیب کړی او ستاسو هم.

(۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اُعْطِیَتْ اُمَّتِیْ خَمْسَ خِصَالٍ فِیْ رَمَضَانَ لَمْ تُعْطَهُنَّ اُمَّةٌ قَبْلَهُمْ خُلُوْفُ فَمِ الصَّائِمِ اَطْیَبُ عِنْدَ اللهِ مِنْ رِیْحِ الْمِسْكِ وَتَسْتَغْفِرُ لَهُمُ الْحِیْتَانُ حَتّٰی یُفْطِرُوْا وَیُزَیِّنُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ كُلَّ یَوْمٍ جَنَّتَهٗ ثُمَّ یَقُوْلُ یُوْشِكُ عِبَادِیَ الصّٰلِحُوْنَ اَنْ یُّلْقُوْا عَنْهُمُ الْمَؤُنَةَ وَیَصِیْرُوْا اِلَیْكِ وَتُصَفَّدُ فِیْهِ مَرَدَةُ الشَّیٰطِیْنِ فَلَا یَخْلُصُوْا فِیْهِ اِلٰی مَا كَانُوْا یَخْلُصُوْنَ اِلَیْهِ فِیْ غَیْرِهٖ ۔ ک

حضرت ابُو هُرَیرَه رضی الله عنه دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه زما اُمّت ته په رمضان شریف کښې پنځه څیزونه په خاص طور ورکړے شوی دی چه پخوانی اُمتونو ته نه دی ورکړے شوی. اَوّل دا چه دَ روژه دار دَ خُلے بُوی دَ الله تعالیٰ په نزد دَ مشکو دَ خوشبوئی نه زیاته خوښه ده. دوئیم چه دَ روژه دار دپاره دَ دریاب کبانو پورے دُعا کوی او دَ روژه ماتی تر وخته پورے یې کوی. درئیم دا چه جنّت هره ورځ دَ هغوی دپاره ښائسته کولے شی بیا الله جَلَّ شَانُهٗ فرمائی چه نزدے ده چه زما نیک بندګان به (دَ دُنیا) مشقتونه دَ خپل ځان نه اُوغورزوی، او ستا طرف ته به راشی. څلورم په رمضان کښې سرکش شیطانان قید کړے شی چه هغوی په

ډیر حدیثونه دي په فضیلت کښې راغلي دي چه دَ مختصر والی په وجه پریښودې شو.

(٢) دوئیم څیز چه په پورتني حدیث کښې دَ ﷺ دَ ډیروالي ارشاد شوی دي هغه استغفار دي. په حدیثونو کښې دَ استغفار هم ډیر فضیلتونه راغلي دي. په یو حدیث کښې راغلي دي چه څوك ډیر ډیر استغفار کوي الله جَلَّ شَانُهٗ ورله په هره تنګیا کښې لاره اوباسي او دَ هر غم نه خلاصي ورکوي او په داسې طریقه ورته روزي رسوي چه دَ هغهٔ په وَهم ګمان کښې هَم نهٔ وي.

یو حدیث کښې راغلي دي چه بنیادم ګناهګار خو وي خو بهترین ګنهګار هغه څوك دي چه توبه اوباسي. یو حدیث نزدې راتلونکي دي چه کله مؤمن ګناه اوکړي نو یو تور ټکي دَ هغهٔ په زړهٔ اولګي، که توبه اوباسي نو هغه اوړیځلي شي کنی باقي پاتې شي.

دَدې نه پس نبي اکرم ﷺ دَ دوه څیزونو غوښتلو حکم اوکړو چه دَ هغې نه بغیر خلاصې نشته، دَ جنّت حاصلوَل او دَ دوزخ نه په امن کیدل. الله پاك د په خپل فضل سره ځما هَم نصیب کړي او ستاسو هَم.

(٢) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُعْطِيَتْ اُمَّتِيْ خَمْسَ خِصَالٍ فِيْ رَمَضَانَ لَمْ تُعْطَهُنَّ اُمَّةٌ قَبْلَهُمْ خُلُوْفُ فَمِ الصَّائِمِ اَطْيَبُ عِنْدَ اللهِ مِنْ رِيْحِ الْمِسْكِ وَتَسْتَغْفِرُ لَهُمُ الْحِيْتَانُ حَتّٰى يُفْطِرُوْا وَيُزَيِّنُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ كُلَّ يَوْمٍ جَنَّتَهٗ ثُمَّ يَقُوْلُ يُوْشِكُ عِبَادِيَ الصّٰلِحُوْنَ اَنْ يُّلْقُوْا عَنْهُمُ الْمَؤُنَةَ وَيَصِيْرُوْا اِلَيْكِ وَتُصَفَّدُ فِيْهِ مَرَدَةُ الشَّيٰطِيْنِ فَلَا يَخْلُصُوْا فِيْهِ اِلٰى مَا كَانُوْا يَخْلُصُوْنَ اِلَيْهِ فِيْ غَيْرِهٖ ؞ ق

حضرت ابُو هُریرَه رضي الله عنه دَ نبي اکرم ﷺ نه نقل کوي چه ځما اُمت ته په رمضان شریف کښې پنځه څیزونه په خاص طور ورکړې شوي دي چه پرومبني امتونو ته نهٔ وُو ورکړې شوي. اوّل دا چه دَ روژه دار دَ خُلې بوی دَ الله تعالی په نزد دَ مشکو دَ خوشبوئي نه زیات خوښ دي. دوئیم چه دَ روژه دار دپاره دَ دریاب ګبانونه پورې دعا کوي او دَ روژماتي تر وخته پورې یې کوي. دریم دا چه جنّت هره ورځ دَ هغوي دپاره بنائسته کولي شي بیا الله جَلَّ شَانُهٗ فرمائي چه نزدې دي چه ځما نیك بندګان به (دَ دنیا) مشقتونه دَ خپل ځان نه اوغورځوي، او ستا طرف ته به راشي. څلورم په رمضان کښې سرکش شیطانان قید کړې شي چه هغوي په

وَيُغْفَرُ لَهُمْ فِيْ اٰخِرِ لَيْلَةٍ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ أَهِيَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ قَالَ لَا وَلٰكِنَّ الْعَامِلَ إِنَّمَا يُوَفّٰى أَجْرَهٗ إِذَا قَضٰى عَمَلَهٗ.

(رواه احمد والبزار والبيهقي ورواه ابو الشيخ بن حيان في كتاب الثواب الا ان عنده وتستغفر لهم الملٰئكة بدل الحيتان كذا في الترغيب.)

رمضان کښې هغه بدکاروته طرف ته نشي رسيدلے کوم ته چه بغير د رمضان نه رسيدلے شي. پنځم د رمضان په اخري شپه کښې د روژه دارو مغفرت کيږي. صحابو رضي الله عنهم عرض اوکړو چه دا د مغفرت شپه شبِ قدر ده؟ نبي ﷺ ورته اوفرمايل نه بلکه قاعده دا ده چه مزدور ته د کار ختميدو په وخت کښې مزدوري ورکولے شي.

**فائده:** نبي اکرم ﷺ په دے حديث کښې پنځه خاص خيزونه ارشاد فرمايلي دي کوم چه د دے امت دپاره د الله جل شانهٗ له خوا خاص انعامات دي، چه د مخکني امت روژه دارو ته نه دي ورکړے شوي. ارمان! چه مونږ سره د دے نعمت قدروے او د دے خاصو انعامانو د حاصلولو کوشش موکولے.

**اول** دا چه د روژه دار د خلے بدبوئي چه د لوږے په حالت کښې پيدا کيږي د الله جل شانهٗ په نزد د مشکو د خوشبوئي نه هم زياته خوښه ده. د حديث شرح کونکو د دے لفظ په مطلب کښې اته قوله دي چه د موطا په شرح کښې ما ذکر کړي دي خو زما په نزد په هغے کښې درے قوله قوي دي.

اول دا چه الله جل شانهٗ به په اخرت کښې د دے بدبوئي بدله او ثواب په خوشبوئي سره ورکوي چه هغه به د مشکو د خوشبوئي نه زياته خوشبويه او دماغ تازه کونکے وي. دا مطلب خو ښکاره دے او په دے کښې څه لرے والے هم نشته. سره د دے د دُر منثور په يو روايت کښې د دے وضاحت هم شته، نو دا مطلب په شان د متعين شو (يعني چه هم دا ترے مراد دے.)

دوئيم دا چه د قيامت په ورځ به کله چه خلق د قبرونو نه راپاسي نو دا نښه به يه وي چه د روژه دار د خلے نه به يو قسم خوشبوئي، چه د مشکو د خوشبوئي نه به زياته بهتره وي، راوزي.

دريئم مطلب دا چه خداے په نزد د دے دنيا نه به دے هغه دا ده چه

اَنْ په دُنیاکښې دَ الله تعالیٰ په نزد دَدے بوئ قدر دَ مشکو دَ خوشبوئ نه زیات خوښ دے۔ او دا کار دَ زړهٔ جیفے سره تعلق لری چه څوک په چا عاشق وی نو دَ هغهٔ بَد بوئي هم دَ عاشق دپاره دَ زرګونو خوشبوګانو نه بهتره وی۔ ؎

اے حافظ مسکین چه کنی مشک ختن را ⁂ از گیسوئے احمد بستان عطر دهن را

اے حافظ مسکینه څهٔ به کړې مشک ختن ⁂ واخله دَ احمد دَ زلفو عطر دَ غلا

مقصود دَ روژه دار کامل نزدیکت دے چه په شانِ دَ محبوب جوړ شی۔ روژه دَ الله تعالیٰ ډیرو خوښو عبادتونو نه ده۔ په دے وجه ارشاد دے چه دَ هر نیک عمل بدله فرښتے ورکوی خو دَ روژے بدله به څهٔ پخپله ورکوم ځکه چه روژه خالصه زما دپاره ده۔ دَ بعضے عالمانو نه نقل کړے شوے ده چه د الفظ اُجْزٰی په دے معنی دے چه بدله کښې به څهٔ پخپله خپل ځان ورکوم او دَ محبوب دَ حاصليدو نه زیاته اُوچته بدله څهٔ کیدے شی۔ په یو حدیث کښې ارشاد دے چه دَ ټولو عبادتونو دَروازه روژه ده یعنی دَ روژے په وجه زړهٔ روښانه کیږی چه دَ هغے دَ برکته هر عبادت ته شوق پیدا کیږی۔ خو دا هله چه روژه هم روژه وی، صِرف اُوږے اُوسیدل ترے مُراد نهٔ وی، بلکه په کښې دَ روژے دَ آدابو رعایت اُوساتلے شی۔ چه دَ هغے بیان به دَ نهم نمبر حدیث دَ لاندے په تفصیل سره راځی۔

دے ځائ کښې یوه ضروری مَسئله دَ خبردارئ قابله داده چه دَ دے خولے دَ بَد بوئي دَ حدیثونو په وجه بعضے اِمامان دَ روژه دار دَ پاره دَ ماښام په وخت کښې مسواک کول مَنع کوی، او دَ حنفیانو په نزد مسواک هر وخت مُستحب دے، ولے چه په مسواک کولو دَ غاښونو بوئ ورکیږی او په حدیث کښې چه دَ کومے بوئ ذکر دے هغه دَ معدے دَ خالی کیدو په وجه دے نهٔ چه دَ غاښونو دے۔ دَ حنفیانو دلیلونه په خپله موقع دَ فقهٔ او دَ حدیثونو په کتابونو کښې موجود دی۔

**دوئیم** خصوصیت دَ کبانو دَ استغفار کولو دے، دَ دے نه مقصود په کثرت سره دَ دُعا کولو بیان دے۔ په کمزورو روایتونو کښې دا مضمون راغلے دے بعضے روایتونو کښې دی چه فرښتے دَ هغهٔ دپاره بخښنه غواړی۔ زما دَ نزدهٔ (یعنی حضرت مولانا محمد الیاس رحمة الله علیه) ارشاد دے چه دَ کبانو خصوصیت په ظاهره

په دے وجه دے چه د الله جلّ شانهٗ فرمان دے. إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَٰنُ وُدًّا (ترجمه) بے شکه هغه کسان چه ایمان یے راوړے دے او نیک عملونه کوی الله جلّ شانهٗ هغوی ته (هم په دُنیاکښ) محبوبیت ورکوی. او حدیث پاك کښ راغلی دی چه کله الله جلّ شانهٗ چا بنده سره محبّت کوی نو جبرئیل علیه السلام ته ارشاد اُو فرمائی چه خما فلانکے بنده خوښ دے ته هُم هغهٔ سره محبت کوه. هغه ورسره په خپله محبت کوی، او په آسمان کښ آواز کوی چه فلانکے بنده د الله تعالیٰ خوښ دے، تاسو ټول ورسره محبت اُوکړئ، پس دغه آسمان والا هغهٔ سره محبّت کوی. بیا د هغهٔ دپاره په ځمکه کښ قبولیت کیخودے شی. او عامه د قاعدے خبره ده چه د هر کس سره محبت د هغهٔ په خواکښ اُوسیدونکی کوی خو دلته د دهٔ محبت دومره عام شو چه یواځے په خواکښ د اُسیدونکو ورسره نهٔ بلکه د دریاب د اُسیدونکو ځناورو ورسره هم محبت پیدا شی چه هغوی ورته هُم دُعا ګانے کوی، ګویا د اُوچے نه لوندے ته رسیدل د محبوبیت انتها یعنی آخری حد دے. او د دے نه علاوه د ځنګل د ځناورو دُعا کول اول درجه کښ په خپله معلومه شوه.

**درییم** خصوصیت د جنّت ښائسته کیدل دا هُم په ډیرو روایتونو کښ راغلی دی. بعضے روایتونو کښ راغلی دی چه د کال د شروع نه د رمضان دپاره د جنّت ښائسته کول شروع شی. او د قاعدے خبره ده چه د چا د راتلو خومره اهتمام وی هغه هومره د هغهٔ دپاره د ځمکښ نه انتظام کیږی. د واده انتظام په میاشتو د مخکښ نه کولے شی.

**څلورم** خصوصیت د سرکش شیطانانو قیدول دی چه د هغے په وجه د ګناهونو زور کم شی. په رمضان المبارك کښ د نحست د جوش او د عبادت د ډیروالی تقاضا داوه چه شیطانانو د خلقو په غلولو کښ ډیر زیات کوشش کولے او خپل پوره زور یے خښولے او په دے وجه د ګناهونو زیاتوالے په دے میاشت کښ دومره کیدے چه څهٔ حد یے نهٔ وے، خو سره د دے نیدے کښلے او ثابته شوے خبره ده چه مجموعی طور ګناهونو کښ ډیر کمے کیږی. ډیر شرابیان

کبابیان داسے دی چه په رمضان شریف کښې په خصوصیت سره شراب نه څکلې او دغې نورو ګناهونو کښې هم ښکاره کمے کیږی. خو سره د دے ګناهونه خامخا ضرور کیږی. خو د دے ګناهونو د کیدو په وجه په حدیث کښې څو هیڅ شک نشته، ځکه چه د حدیث مضمون هم دا دے چه سرکش شیطانان قید ولے شی. نو که د دے ګناهونو وجه د غیر سرکشه شیطانانو اثرات وی نو بیا خو خبره صفا ده. البته نورو روایتونو کښې د سرکش قید نه بغیر د عامو شیطانانو قیدَ دلو ارشادات هم موجود دے. نو که د دے روایتونو نه هم صرف د سرکشو شیطانانو قیدیدل مراد وی، ځکه چه ډیر ځله لفظ عام استعمال شی خو د بل ځائے نه د هغې تائید معلوم شی، بیا هم څه شک پاتے نه شو. پس که چرے د دے روایتونو نه د ټولو شیطانانو قیدیدل وی، بیا هم د دے ګناهونو په کیدو څه پریشانه کیدل نه دی پکار. د دے کبله چه ګناهونه عام طور د شیطانانو د اثره کیږی، خو تر کالونو سره د هغوی د ګډون او ملګرتیا او د زهریله اثر د پاتے کیدو په وجه ورسره نفس دومره بلد شوے او د اثر د لاندے راغلے دے چه د شیطان لږه پیره غیر حاضری ورته نه محسوسیږی، بلکه هغه خیالات یے خپل طبیعت جوړ شی. او دغه وجه ده چه د رمضان نه ماسوا د کومو خلقونه چه ډیر ګناهونه کیږی، په رمضان کښې هم اکثر هغوی نه ګناهونه کیږی. او دغا نفس خو هر څه رسیدلی نو هغه هم اثر وی. دویمه خبره دا بله هم ده چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه هر کله بنده یو ګناه اوکړی نو د هغه په زړه یو تور ټکے اولګی، که په ریښتیا توبه اوباسی نو هغه اووینځلے شی کنی لګیدلے وی. او که چرے دویم وارے ګناه اوکړی، نو دویم ټکے اولګی، تردے چه د هغه زړه بیخی تک تور شی، بیا د خیر خبره د هغه زړه ته نه رسی. هم دے ته الله جل شانه په خپل پاک کلام کښې كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ ارشاد فرمائیلے دے چه د هغوی زړونه زنګین شو، په داسے حالت کښې دغه زړونه دغے ګناهونو طرف ته په خپله متوجه کیږی. هم دغه وجه ده چه ډیر خلق یو قسم ګناه بیباکئ سره کوی خو چه د هغې په شان څه بله ګناه ورله مخے له راشی نو زړه یے کوَل نه غواړی. مثلاً کوم خلق چه شراب څکی هغوی که د خنزیر د غوښې د خوړلو اوویلے شی نو د هغوی طبیعت ترے نفرت کوی.

حال داچه په ګناه کښې دواړه برابردي، نودغه شان دَ رمضان نه ماسواچه دوی دغه ګناهونه کوی نوزړهٔ ورسره بَلَد شی ،بیا دَ هغې په مجه په رمضان المبارک کښې ورته دَ هغې ګناه په کولوکښې دَ شیطانانو ضرورت نهٔ پاتے کیږی.

خلاصه داچه کهٔ چرے په حدیث پاک کښې دَ ټولو شیطانانو قید یدال مُرادوی نوبیاهم په رمضان المبارک کښې ګناهونو کولوکښې څهٔ شک نشته. اوکهٔ چرے دَ سرکښو اودَ خبیثو شیطانانو قیدوَل مُرادوی نوبیاخوپکښې اَدودَ سَره څهٔ شک شبه نشته. اوحُمایه نزد داوجه بهتره ده. هرڅوک په دے غور اوتجربه کولے شی چه په رمضان المبارک کښې دَ نیکئی کولویا دَ ګناه نه بچ کیدلو دپاره دومرهٔ زور نګول نهٔ غواړی څومره چه په غیر رمضان کښې لګول غواړی، لږ غوندے همت اوتوجهٔ هُم کافی کیږی.

دَ حضرت مولاناشاه محمّد اِسحاق رحمۃ اللہ علیہ رائے داده چه دادواړه حدیثونه دَ بَد اَجد اخلقو په اعتبار سره دی یعنی دَ فاسقانو په حق کښې صرف متکبّر شیطانان قیدیږی اودنیکانو په حق کښې مُطلقًا عام هرقسمه شیطانانان قیدَوُلے شی.

پنځم خصوصیت داده چه دَ رمضان المبارک په آخره شپه کښې دَ ټولوروژه دارو بخښنه کولے شی. دا مضمون په مختلفو روایت کښې هُم تیر شوے دے. چونکه دَ رمضان المبارک په شپوکښې شب قدر دَ ټولو نه بهتره شپه ده نودَ دے کبله صحابهٔ کرامو رضی اللہ عنہم داخیال اوکړوچه دا دومره لوئ فضیلت دَ دغے شپے دپاره کیدے شی. خونبی علیہ السلام اوفرمایل چه دَ هغې فضیلتونه مستقل ځان له شیزدے. دلته خودا انعام دَ رمضان دَ ختمید ودے.

④ عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِیَ اللہُ عَنْہُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ اُحْضُرُوا الْمِنْبَرَ فَحَضَرْنَا فَلَمَّا ارْتَقٰى دَرَجَةً قَالَ اٰمِيْنَ فَلَمَّا ارْتَقٰى الدَّرَجَةَ الثَّانِيَةَ قَالَ اٰمِيْنَ فَلَمَّا ارْتَقٰى الدَّرَجَةَ الثَّالِثَةَ

حضرت کعب بن عُجره رضی اللہ عنہ وائی چه یوواړے نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم اوفرمایل چه منبرته رانزدے شئ، مونږ ورنزدے شو. چه نبی صلی اللہ علیہ وسلم دَ منبر په اَوَله پوړئ قدم مُبارک کیخودهٔ نووے فرمایل آمین. چه کله په دویمه پوړئ یے قدم کیخودهٔ نوبیایے اوفرمایل آمین. اوچه په دریمه

قَالَ اٰمِیْنَ فَلَمَّا نَزَلَ قُلْنَا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ (صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ) لَقَدْ سَمِعْنَا مِنْكَ الْیَوْمَ شَیْئًا مَا كُنَّا نَسْمَعُهٗ قَالَ اِنَّ جِبْرِیْلَ (عَلَیْهِ السَّلَامُ) عَرَضَ لِیْ فَقَالَ بَعُدَ مَنْ اَدْرَكَ رَمَضَانَ فَلَمْ یُغْفَرْ لَهٗ قُلْتُ اٰمِیْنَ فَلَمَّا رَقِیْتُ الثَّانِیَةَ قَالَ بَعُدَ مَنْ ذُكِرْتَ عِنْدَهٗ فَلَمْ یُصَلِّ عَلَیْكَ قُلْتُ اٰمِیْنَ فَلَمَّا رَقِیْتُ الثَّالِثَةَ قَالَ بَعُدَ مَنْ اَدْرَكَ اَبَوَیْهِ الْكِبَرُ عِنْدَهٗ اَوْ اَحَدُهُمَا فَلَمْ یُدْخِلَاهُ الْجَنَّةَ قُلْتُ اٰمِیْنَ۔

(رواه الحاکم وقال صحیح الاسناد کذا فی الترغیب وقال السخاوی رواه ابن حبان فی ثقاته وصححه والطبرانی فی الکبیر والبخاری فی بر الوالدین له والبیهقی فی الشعب وغیرهم ورجاله ثقات وبسط طرقه وروی الترمذی عجزه الی آخره بمعناه وقال ابن حجر وغیره کذا فی المرقاة)

پورئ یے قدم کیخودهٔ، نو بیا یے اُوفرمایل اٰمین چه کله وخت نبی صلی الله علیه وسلم د خطبے نه فارغ شو لاندې راکوز شو نو مونږ عرض اُوکړهٔ چه مونږ نن تاسو نه (منبر ته د ختلو په وخت کښې) داسے خبره واؤریدله چه مخکښې مو چرته نهٔ وه اَوریدلے۔ نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایهٔ چه په هغه وخت جبرئیل علیه السلام ما ته راغلے وو (کله چه ما په اوله پوړئ قدم کیخودهٔ نو هغهٔ اُووَیل چه هغه خوك دِ هلاك شی چه چا دَ رمضان مُبارکه میاشت بیا موندله بیا هُم دَ هغهٔ مغفرت اُونهٔ شو، ما اُووَیل، اٰمین۔ بیا چه دویمے پوړئ ته اُوخَتم نو هغهٔ اُووَیل، هلاك دِ شی هغه خوك چه دَ هغهٔ دَ وړاندے ستا ذِکرِ مُبارك اُوشی، او په تاسو دُرود شریف اُونهٔ وائی، ما اُووَیل، اٰمین۔ کله چه څهٔ په دریمه پوړئ اُوخَتم نو هغهٔ اُووے هلاك دِ شی هغه خوك چه چا مور پلار دواړه یا یَو دَ دوی نه دَ بوډاوالی په حالت کښې بیا موندل او هغوی دے جنت ته ورداخل نهٔ کړو، ما اُووے اٰمین۔

**فائده:**۔ په دے حدیث کښې حضرت جبرئیل علیه السلام درے خیرے کړی دی[1]. او نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په هغے درے واړو اٰمین ویلے دے۔ اول خو حضرت جبرئیل علیه السلام په شان دَ مقرب فرشتے خیرخبره کیدے وَ چه بیا په دے دپاسه دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اٰمین ویلو خو مُرکے څخه خیر جوړ کړے هغه ښکاره ده۔ الله تعالیٰ دِ په خپل فضل وکرم مونږ له دَ دے درے واړو خیرو نه دَ بچ کیدلو توفیق راکړی او دَ دے بدکارو نه مونږ محفوظ اُوساتی کنی (بیا خو مونږ)

[1] بضم العین ای عن الخیر وبکسرها ای هلك قاله السخاوی، هذا الهامش من الشیخ

هلاکت کښې څۀ شک شُبه ده. دَ دُرِّ منثور دَ بعضے روایتونو نه معلومیږی
چه په خپله حضرت جبرئیل علیہ السلام نبیِ اکرم صلی الله علیه وسلم ته اَوویل چه آمین اُووایه
نبی علیہ السلام اُوویل امین. چه دَ دے نه نور هم زیات اِهتمام معلومیږی.

اَوَّل هغه کس چه دَ رمضانُ المُبارک میاشت پرے تیره شی او دَ هغهٔ
بخښنه اُونشی. یعنی دَ رمضانُ المُبارک په شان دَ خیر او برکت زمانه هم په
غفلت او گناهونو کښې تیره شی چه په رمضانُ المُبارک کښې مغفرت او دَ الله
جَلَّ شَانُهٗ رحمت دَ باران په شان وَریږی. نو چه په چا دَ رمضانُ المُبارک
میاشت هم داسے تیره شی چه دَ هغهٔ دَ بدو عملونو او سُستئ په وجه دَ مغفرت
نه محرومه پاتے شی نو دَ هغهٔ دَ مغفرت دپاره به بل کوم وخت وی او دَ هغهٔ
په هلاکت کښې بیا څۀ شک دے. او دَ مغفرت شکل یے دادے چه دَ رمضانُ
المُبارک کارونه دی یعنی روژه، تراویح. دا په ډیر اهتمام سره ادا کولو نه پس
هر وخت ډیر ډیر دَ خپلو گناهونو نه توبه او استغفار کوی.

دویم چه دَ چا دپاره خیرے شوی دی هغه کس دے چه دَ هغهٔ دَ وړاندے دَ
نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ذکر مبارک اُوشی او هغه دُرود شریف اُونه وائی. نور هم ډیر
روایتونو کښې دا مضمون راغلے دے. په دے وجه دَ بعضے عالمانو په نزد کله چه
دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ذکر مبارک اُوشی نو په اَوریدونکو باندے دُرود شریف ویل
واجب دی. دَ پورتنی حدیث نه علاوه نورے هم ډیرے سزا گانے دَ هغے کس دپاره
کښې راغلی دی چه دَ چا دَ وړاندے دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم تذکره اُوشی او هغه دُرود
شریف اُونه وائی. بعضے حدیثونو کښې هغه بد بخته او ډیر و بخیلانو خلقو کښې
شمار کړے شوے دے. دا رنگے بے وفا او دَ جنّت لاره هیروونکے اَو تردے چه په
دوزخ کښې داخلیدونکے او بے دینه پورے ورته ویلے شوی دی. دا هم راغلی
دی چه هغه به دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم مخ مبارک اُونه وینی. محققینو کونکو علمانو د
داسے روایتونو اگرچه تاویل کړے وی خو دے نه څوک انکار کولے شی چه دُرود
شریف نه وَیُونکو دپاره دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ظاهری ارشادات دومره سخت
دی چه دَ هغے زغمل گران دی. او ولے به نه وی چه دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم احسانات

په اُمت باندے دَدې نه هُم ډیر زیات دی چه په وئیلو او لیکلو کښې نه شی راتلے. دَدے نه علاوه دَ نبی اکرم ﷺ حقونه په اُمت باندې دومره زیات دی چه هغه نه کورونو دَ درود شریف نه وَیونکو په حق کښې هره سزا او زورنه په ځائ او مُناسب معلومیږی. په خپله دَ دُرود شریف فضائل دومره دی چه دَ هغې نه محرومتیا یو مُستقله بَد نصیبی ده. دَدې نه په زیات بل څهٔ فضیلت دی چه څوک نبی اکرم ﷺ باندے یو وارے دَرود شریف اُووائی نو الله جَلَّ شَانُهٗ په هغهٔ باندې لَس وارے رَحمت لیږی. دَدے نه علاوه دَ ملائکو دَ هغهٔ دپاره دُعا کوُل، دَ گُناهو نو مُعاف کیدل، دَ درجو اُوچتیدل، دَ اُحد دَ غر برابر ثواب مِلاؤ شفاعت ورله واجب کیدل وغیره وغیره پرے دَپاسه دی. بل دَ الله جَلَّ شَانُهٗ رضا، دَ هغهٔ رحمت، دَ هغهٔ دَ غُصے نه اَمان، دَ قیامت دَ مصیبتونه خلاصے، دَ مرلونه وراندے په جنت کښې خپل ځائ لیدل وغیره ډیرے وعدے دَ دُرود شریف په خاص خاص مقدار باندے مقرر کړے شوے دی. دَدې نه علاوه په دُرود شریف دَ ژوند تنگسیا او غریبی لرے کیږی. دَ الله جَلَّ جَلَالُهٗ او دَ هغهٔ دَ رسول ﷺ په دربار کښې نزدیکت، په دُشمنانو مدد نصیب کیږی. او زړهٔ دَ نفاق او زنگ نه صفا کیږی، دَ خلقو ورسره محبت پیدا کیږی. نور هُم ډیر زیری دی چه دَ دُرود شریف په ډیر ډیر ویلو حدیثونو کښې راغلی دی. دَ فقهے عالمانو دَ هغې وضاحت کړے دے چه په ټول عُمر کښې یو وارے دُرود شریف ویل عملاً فرض دی. په دے دَ مذهب دَ عالمانو اتفاق دے. البته اِختلاف په دې کښې دے چه کله دَ نبی اکرم ﷺ ذکر مُبارك کیږی نو هر وارے دُرود ویل واجب دی کهٔ نه. دَ بعضے عالمانو په نزد هر وارے دُرود شریف واجب دی او دَ نورو بعضو په نزد مستحب دی.

**دریم** هغه کس چه دَ چا بوډا اکان مور پلار دواړه یا یو دَ هغوی نه موجود وی او دے یے دومره خدمت اُونه کړی چه دَ هغې په وجه دَ جنت حقدار شی. دَ مور پلار دَ حقونو هُم په ډیر و حدیثونو کښې تاکید راغلے دے. عالمانو دَ دوی په حقونو کښې لیکلی دی چه رَوا کارونو کښې دَ دوی مَنل ضروری دی. او دا لیکلی دی چه دَ هغوی بے اَدبی دِ نهٔ کوی. دَ تکبُّر سلوك دِ ورسره نهٔ کوی اگر که

مشرکان وی. خپل آواز د دَهغوی د آواز نه نه اُوچتوی. په نامه د نه بَلی. په څه کار کښی د دَهغوی نه نه وړاندے کیږی. اَمْرٌ بِالْمَعْرُوْف اونَهِی عَنِ الْمُنْکَر کښی د ورسره نرمی کوی کنه چرے قبول نه کړی نو ښه سلوك د ورسره کوی او د هدایت دُعا د ورته کوی. غرض دا چه په هر خبره کښی د دَهغوی د پیر عزت کوی. یو روایت کښی راغلی دی چه جنت په دروازو کښی بهترینه دروازه پلار دے، ستا زړه غواړی حفاظت یے اوکړه، یا یے ضائع کړه. یو صحابی رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه اُوکړه چه د مور پلار حق څهٔ دے؟ نبی علیه الصلوٰة والسلام ورته اُوفرمائیل چه هغوی ستا جنت دی یا دوزخ. یعنی دَهغوی رضا جنت دے او دَهغوی ناراضتیا دوزخ دے. په یو حدیث کښی راغلی دی چه د فرمانبردار خوئی په محبت او شفقت سره یو نظر پلار ته کول د یو مقبول حج ثواب لری. په یو حدیث کښی ارشاد دے چه الله تعالیٰ د شرك نه ماسوا نور ټول گناهونه څومره یے چه خوښه وی معاف کوی خو د مور پلار نافرمان ته مرگ نه وړاندے په دُنیا کښی هم نقصان رَسَوِی. یو صحابی رضی الله عنه عرض اُوکړهٔ چه ما څهٔ جهاد ته د تلو اراده لرم. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ترے پوښتنه اُوکړه چه ستا مور ژوندی ده؟ عرض یے اُوکړهٔ چه ژوندئ ده. نبی صلی الله علیه وسلم ورته اُوفرمائیل چه د هغے خدمت کوه، د هغے د قدمونو لاندے ستا د پاره جنت دے. په یو حدیث کښی راغلی دی چه د الله تعالیٰ رضا د پلار په رضا کښی ده، او د الله تعالیٰ ناراضتیا د پلار په ناراضتیا کښی ده. نور هم د پیرو روایتونو کښی د دے اهتمام او فضیلت راغلے دے. کوم خلقو چه په څهٔ غفلت دے کښی کوتاهی کړے ده او اوس یے مور پلار موجود نه دی (یعنی مړهٔ شوی دی) نو په شریعت کښی د هغے پوره والے هم شته. یو حدیث کښی ارشاد دے چه د چا مور پلار په دا سے حالت کښی مړهٔ شوی وی چه خوئی یے نا فرمانی کوله نو دَهغوی د پاره د پیره د پیره دُعا او استغفار کوی، نو فرمانبردارو کښی به شمار شی. په یو حدیث کښی راغلی دی چه بهترینه نیکی د پلار د وفات نه پس دَهغهٔ دوستانو سره ښهٔ سلوك کول دی.

(۴) عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رضی الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم

حضرت عُبادَه رضی الله عنه وائی چه یو واره نبی اکرم صلی الله علیه وسلم رَمضَانُ الْمُبَارَك ته نزدے ارشاد

قَالَ يَوْمًا وَحَضَرَنَا رَمَضَانُ أَتَاكُمْ رَمَضَانُ شَهْرُ بَرَكَةٍ يَغْشَاكُمُ اللهُ فِيْهِ فَيُنْزِلُ الرَّحْمَةَ وَيَحُطُّ الْخَطَايَا وَيَسْتَجِيْبُ فِيْهِ الدُّعَاءَ يَنْظُرُ اللهُ تَعَالَىٰ إِلَىٰ تَنَافُسِكُمْ فِيْهِ وَيُبَاهِيْ بِكُمْ مَلَائِكَتَهُ فَأَرُوا اللهَ مِنْ أَنْفُسِكُمْ خَيْرًا فَإِنَّ الشَّقِيَّ مَنْ حُرِمَ فِيْهِ رَحْمَةَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ.

اُو فرمایه چه رمضان راغلو چه د لوئی برکت میاشت ده. الله جَلَّ شَانُهٗ په دې کښې ستاسو طرف ته متوجه کیږی، او خپل خاص رحمت نازلوی او خطا گانے معاف کوی، دُعا قبلوی ستاسو تنافس (سیالئ) ته گوری او په ملائکو فخر کوی. پس الله تعالیٰ ته خپله نیکی اُوښایئ. بد نصیبه دے هغه کس چه په دے میاشت کښې هم د الله تعالیٰ د رحمته محروم پاتے شی.

(رواه الطبرانی ورواته ثقات الا ان محمد بن قیس لا یحضرنی فیه جرح ولا تعدیل کذا فی الترغیب)

**فائده:** تنافس دے ته وائی چه د بل په حرص کښې کار اُوکړے شی او په مقابله کښې د بل نه زیات کار اُوکړے شی. د فخر او مقابلے کولو دعوید ار د راشی او د لته د خپل خپل جوهر اُوښایئ، د فخر خبره نه ده د تحدیث بالنعمة (یعنی د نعمت د شکریے) په طوریے لیکم. د خپل نا اهلیت د کبله اگرچه څخپله څه نه شم کولے خو چه د خپلے کورنئ زنانه اُوویینم نو خوشحاله شم چه د اکثرو دا اهتمام وی چه د یو بل نه په تلاوت کښې وړاندے شی. د کور کار و بار سره پخپله شل سپارے روزانه بے تکلیفه پوره کوی. الله جَلَّ شَانُهٗ دِ په خپل رحمت قبول کړی، او د زیاتی توفیق دِ ورله ورکړی.

⑤ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلّٰهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَىٰ عُتَقَاءَ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ يَعْنِيْ فِيْ رَمَضَانَ وَإِنَّ لِكُلِّ مُسْلِمٍ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ دَعْوَةً مُسْتَجَابَةً.

حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه وائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه د رمضان المبارک په هره شپه او ورځ کښې د الله تعالیٰ له طرفه د دوزخ قیدیان پریخودے شی او د هر مسلمان د پاره په هره شپه او ورځ کښې یوه دُعا ضرور قبلیږی.

(رواه البزار کذا فی الترغیب)

فائده:- په ډيرو روايتونو کښې د روژه دار دُعا قبليدل راغلی دی. بعضې روايتونو کښې راځی چه د روژه ماتی په وخت کښې دُعا قبليږی، خو مونږ خلق په خوراک داسې ورپريوځو چه د دُعا غوښتلو وخت را ته چرته وی بلکه د روژه ماتی دُعا را ته هم نه يا ديږی. د روژه ماتی مشهوره دُعا دا ده. اَللّٰهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَبِكَ اٰمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَعَلٰى رِزْقِكَ اَفْطَرْتُ. (ترجمه) اے الله! هم تا دپاره م روژه اونيوله او هم په تا م ايمان راوړے دے او هم په تا باندے توکل کوم او ستا په رزق روژه ماتوم.

د حديث په کتابونو کښې دا دُعا مختصره ده. حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه به د روژه ماتی په وخت کښې دا دُعا کوله: اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ بِرَحْمَتِكَ الَّتِیْ وَسِعَتْ كُلَّ شَیْءٍ اَنْ تَغْفِرَلِیْ. (ترجمه) "اے الله! ستا د هغې رحمت په صدقه چه هر څيز ته شامل دے دا غوارم چه ته ما بخښنه اوکړے". بعضې کتابونو کښې په خپله د نبی اکرم صلی الله عليه وسلم نه دا دُعا نقل شوې ده. يَا وَاسِعَ الْفَضْلِ اغْفِرْلِیْ (ترجمه) "اے د لوئی فضل خاونده! ما بخښنه اوکړے". نورے هم ډيرے دُعا گانے په روايتونو کښې راغلی دی خو څه د يوے دُعا خاص والے نشته. دا د دُعا قبليدو وخت دے، د خپل خپل ضرورت دپاره دُعا اوغواړئ. که درته ريا د شی نو ما گنهگار په کښې هم شامل کړئ ځکه چه سوال کرے يم او د سوال کړی حق وی.

چشم فيض سے گر ايک اشاره ہو جائے ✦ لطف ہو آپ کا اور کام ہمارا ہو جائے

د فيض د چيغے نه که يوه اِشاره اُوشی ✦ مهربانی به ستا وی او کار به ځمونږ اوشی

⑥ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَةٌ لَا تُرَدُّ دَعْوَتُهُمُ الصَّائِمُ حَتّٰى يُفْطِرَ وَالْاِمَامُ الْعَادِلُ وَدَعْوَةُ الْمَظْلُوْمِ يَرْفَعُهَا اللهُ فَوْقَ الْغَمَامِ وَتُفْتَحُ لَهَا اَبْوَابُ السَّمَآءِ وَيَقُوْلُ الرَّبُّ وَعِزَّتِیْ لَاَنْصُرَنَّكَ وَلَوْ بَعْدَ

حضرت ابی هريره رضی الله عنه وائی چه نبی اکرم صلی الله عليه وسلم اوفرمايل چه د دريو کسانو دُعا نه رد کيږی. يو د روژه دار (دُعا) د روژه ماتی په وخت کښې. دويم د عادل بادشاه دُعا. دريم د مظلوم دُعا چه هغه الله تعالیٰ د وريځو نه پورته اوچتوی او د آسمان دروازے ورته پرانستے شی او ارشاد اوشی چما دِ په خپل عزت قسم دی چه څه به

حِبَّان. (رواه احمد فی حدیث والترمذی وحسنه و ابن خزیمة وابن حبان فی صحیحهما کذا فی الترغیب)

ضرور ستا مدد کوم، اګر که (دَ څه مصلحت دَ کبله) په کښې څه وخت اُولګی.

**فائده ۱ :-** دَرِّمنثور نوم کتاب کښې دَحضرت عائشې رضی الله عنها نه نقل دے چه کله به دَرمضان میاشت راتلله نو دَنبی اکرم صلی الله علیه وسلم رنګ به بدل شو. او په مونځ کښې به یې زیاتوالے کولو. او دُعا کښې به یې ډیره عاجزی کوله، او ویره به پرے غالبه شوه. په دویم روایت کښې فرمائی چه دَرمضان تر ختمیدو پورے به یې بستر نه تشریف نۀ راوړه. په یو روایت کښې دی چه الله جل شانهٗ په رمضان کښې عرش اُچتونکو فرښتو ته حکم فرمائی چه خپل خپل عبادت پریږدئ او دَروزه دارو په دُعا آمین وایئ. دَ ډیرو روایتونو نه دَرمضان دُعا په خصوصیت سره قبلیدل معلومیږی. او دا بے شکه خبره ده چه هرکله دَ الله تعالیٰ وعده ده، او دَهغهٔ دَ رِښتنی رسول صلی الله علیه وسلم نه نقل شوے ده، نو دَهغے په پوره کیدلو کښې هیڅ شک شبه نشته. خو دَدے نه پس هم بعضے خلق دَ څهٔ غرض دپاره دُعا کوی خو هغه کار یے کیږی نه. نو دَدے نه دا نۀ دی ګڼړل پکار چه دُعا قبوله نۀ شوه. دَ دُعا قبلیدلو په معنیٰ ځان پوهول پکار دی.

دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه کله مسلمان دُعا کوی په شرط دَدے چه دَخپلوئی پرېخودو یا دَ څهٔ ګناه دُعا نهٔ کوی، نو دَ الله جل شانهٗ دَ طرفه دَ دریو څیزونو نه ورته یو ضرور ملاویږی. یا په خپله هغه څیز ورته ملاویږی چه دَ څهٔ دُعا یے کړے وی یا دَ هغے په بدله کښې څهٔ شر یا مُصیبت ترے لرے کړے شی. یا په آخرت کښې هغه هومره ثواب دَ هغهٔ په حصه کښې اُولګولے شی.

یو حدیث کښې راغلی دی چه دَ قیامت په ورځ به الله جل شانهٗ بندګانو ته اُوبلی، ورته به اُوفرمائی، اے زما بندهٔ! ما تاته دَ دُعا غوښتلو حکم درکړے وو، او دَ هغے دَ قبلولو وعده کړے وه. آیا تا ما نه دُعا غوښتلے وه؟ هغه به عرض اُوکړی چه غوښتلے مې وه. ورته به اُوفرمائی، تا چه څو دُعا ګانے کړے چه هغه ما قبوله کړے نهٔ وی. تا فلانی دُعا غوښتلے وه چه فلانے تکلیف دِ رانه لرے کړے شی، ما هغه په دُنیا کښې پوره کړے وه، او دَ فلانی غم لرے کولو دُعا دِ غوښتلے وه خو دَهغے

اُترتاته معلوم شوے نه وو. ما دَ هغې په بدله کښې فلانے اَجر وثواب ستا دپاره مقرر کړو. نبي اکرم ﷺ فرمائي چه دَ هغه هر يوه دُعا به ورپه ياد کړے شي او دَ هغې په دُنيا کښې پوره کيدل يا به په آخرت کښې دَ هغې بدله ورته ورکولے شي. دا دومره ډير اَجر وثواب چه بنده اُووينى نو اَرزو به اُوکړي چه اَرمانه! په دُنيا کښې څما هيڅ يوه دُعا پوره شوے نه وے چه اُوس راله دلته دَ هغې دومره بدله راکړے شوے وے. غرض دا چه دُعا ډير زيات اَهم څيز دے. ددے نه غفلت کوَل لوئ نقصان او دَ تاوان خبره ده. په ظاهر کښې که چرے دَ قبليدو نښے اُونهٔ وينئ نو همّت بائيلل نهٔ دي پکار.

ددے رسالے په ختميدو چه کوم اُوږد حديث راروان دے دَ هغې نه دا اهَم معلوميږي چه په دے کښې الله جَلّ شَانُهٗ دَ بنده په مصلحتونو نظر فرمائي، که چرے دَ هغهٔ دپاره دَ دغے څيز ورکوَل مصلحت وي نو ورکوي يے کني نه. دا هُم دَ الله تعالىٰ لوئ احسان دے چه مونږ خلق ډير کله دَ خپلے ناپوهتيا په وجه داسے څيزونه غواړو چه هغه څمونږ دپاره مناسب نهٔ وي.

دے سره يوه بله ضروري او دَ لحاظ قابله خبره دا ده چه ډير نارينه او زنانه خو خاص طور په دے مرض کښې اَخته دي چه اکثر دَ غُصے او دَ غم په وختونو کښې اَولاد وغيره ته خيرے کوي. ياد ساتئ چه دَ الله جَلّ شَانُهٗ په عالي دربار کښې بعضے وختونه داسے خاص دَ قبليدو وي چه څهٔ اُوغواړے نو ملاويږي. دا ناپوهه په غُصه کښې اولاد ته خيرے کوي چه هغه مړشي يا په څهٔ مُصيبت کښې کير شي نو بيا ژاړي، او دا يے خيال ته نهٔ راځي چه دا مصيبت يے په خپله په خپلو خيرو سره غوښتلے دے.

دَ نبي اکرم ﷺ ارشاد دے چه خپلو ځانونو او اولاد، مال او خادمانو ته خيرے مهٔ کوئ، هسے نهٔ چه دَ الله تعالىٰ په څهٔ داسے وخت کښې خيرے اُوشي چه کوم دَ قبليدو وي، خصوصاً دَ رمضانَ المُبارَك ټوله مياشت خو ډيرزيات خاص وخت دے. په دے کښې په اهتمام سره دَ خيرونه دَ بچ کيدو کوشش ډير ضروري دے.

حضرت عُمر رضي الله عنه دَ نبي اکرم ﷺ نه نقل کوي چه په رمضانَ المُبارَك کښې دَ الله ياد کوونکے بنده بخښلے شوے دے او دَ الله تعالىٰ نه غوښتونکے نامُراده نهٔ پاتے کيږي.

حضرت ابنِ مسعود رضی اللہ عنہ دَ یو روایت نه په ترغیب نومے کتاب کښې نقل کړے دے چه دَ رمضان په هره شپه کښې یو آواز کوونکے آواز کوی، اے دَ خیر تلاش کوونکیه! متوجه شه او را مخکښې شه. او اے دَ بدئ طلب کار ره! بس که او ستړے او غوره دے نه پس هغه فرشته وائي، څوك بخښنه غوښتونکے شته چه دَ هغهٔ بخښنه اوشي. څوك توبه ایستونکے شته چه دَ هغهٔ توبه قبوله شي، څوك دُعا کوونکے شته چه دَ هغهٔ دُعا قبوله کړے شي، څوك غوښتونکے شته چه دَ هغهٔ سوال پوره کړے شي دے نه پس دا خبره هُم ډیره ضروری او دَ لحاظ قابله ده چه دَ دُعا قبلیدو دپاره څهٔ شرطونه هُم راغلی دی چه دَ هغے په پاتے کیدو ډیر ځله دُعا نهٔ قبلیږی چه یو دَ هغے نه حرام خوراك دے چه دَ دے په وجه هُم دُعا نهٔ قبلیږی. دَ نبی کرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه ډیر پریشان حاله آسمان طرف ته لاسونه اُوچت کړی دُعا غواړی او اے رَبه! اے رَبه! کوی، خو خوراك ئے حرام، څښاك ئے حرام، جامه ئے دَ حرامو وی، په دا سے حالت کښې دُعا چرته قبلیږی.

دَ تاریخ لیکونکو لیکلی دی چه په کوفه کښې دَ مستجاب الدعوات (یعنی دَ دُعا قبلیدونکو) خلقو یوه ډله وه، چه کله به څوك ظالم حاکم په هغوی مقرر کړے شو، هغوی به ورته خیرے اُوکړے نو هغه به هلاك شو. کله چه حجاج ظالم هلته مقرر شو نو هغه یو دعوت اُوکړهٔ، او په هغے کښې ئے دَ غه حضرات په خاص طور شریك کړل. کله چه دَ خوراك نه فارغ شول، نو حجاج اُووئیل چه اُوس زهٔ دَ دے خلقو دَ خیرو نه بچ شوم، ځکه چه حرامه روزی ئے ګیډے ته لاړه. دَ دے سره څنګه دَ زمانے په حلاله روزئ دَ هُم یو نظر واچولے شي، کوم ځائ چه تر سوده پورے ډهاړ کولو کوششونه جاری دی. نو کرپیشه رشوت او سود اګر دهوکه ورکول بنه ګڼړی

⑦ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى الْمُتَسَحِّرِيْنَ.

حضرت ابنِ عمر رضی اللہ عنہ وائي چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه په خپله الله تعالیٰ او دَ هغهٔ فرښتے په پیشمنی کوونکو باندے رحمت نازلوی.

(رواه الطبرانی فی الاوسط وابن حبان فی صحیحه کذا فی الترغیب)

**فائده:-** دَ الله جل شانهٔ څومره انعام او احسان دے چه دَ روژے دَ برکته یے دَ هغے نه مخکښ خوراک چه ورته پیشمنے ویلے شی، دَ اُمت دپاره دَ ثواب څیز اُوګرځولو - او په دے کښ هم مسلمانانو له ثواب ورکولے شی - په ډیرو حدیثونو کښ دَ پیشمنی دَ فضیلت او دَ ثواب ذکر دے.

علامه عینی رحمة الله علیه دَ اُولسو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه دَ دے دَ فضیلت حدیثونه نقل کړی دی، او دے په مستحب کیدو باندے اِجماع یعنی دَ عالمانو اتفاق نقل کړے دے. ډیر خلق دَ سستیا په وجه دَ دے فضیلت نه محرومه پاتے کیږی - او بعضے خلق دَ تراویحو نه پس خوراک اُوکړی اُوده شی، او دَ دے دَ ثواب نه محرومه پاتے شی. ځکه چه په عربی لغت کښ سحر هغے خوراک ته وائی چه صبا ته نزدے اُوخوړلے شی لکه چه قاموس نومے کتاب لیکلی دی. بعضو ویلی دی چه دَ نیمے شپے نه دَ دے وخت شروع کیږی (مرقاة) صاحب کشاف رحمة الله علیه، دُ شپږ مه حصه خودلے ده. یعنی ټوله شپه چه په شپږو حصو تقسیم کړے نو اخری حصه. مثلاً که چرے دَ نمر پریوتو نه دَ صبح صادق تر ختلو پورے دولس ګینټے وی نو اخری دوه ګینټے دَ پیشمنی وخت دے او دے کښ هم روستو والے بهتر دے خو دومره روستو والے هم نه چه روژه شکی شی. دَ پیشمنی فضیلت په ډیرو حدیثونو کښ راغلے دے.

دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه زمونږ او دَ اهل کتابو (یعنی یهودو او نصارٰی وَ) په روژه کښ فرق په پیشمنی کولو دے چه هغوی پیشمنے نه کوی. یو ځائے ارشاد دے چه پیشمنے کوئی، په دے کښ برکت دے. یو ځائی ارشاد دے چه په دریو څیزونو کښ برکت دے. جَمَعَ کښ او ثرید کښ او دَ پیشمنی خوراک کښ. په دے حدیث کښ دَ جمع نه عام مراد دے. دَ مونځ جمع یا هر هغه کار چه دَ مسلمانانو جماعت یعنی ډله یے یو ځائی اُوکړی چه دَ الله پاک مدد هغوی سره وی. او ثرید په پخه غوښه کښ روټئ چوری کولو ته وائی. دا ډیره خوندناکه روټئ وی. دریم پیشمنے. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم چه به کله یو صحابی رضی الله عنه خان سره پیشمنی خوړلو ته رابللو نو ورته به یے فرمایل چه راشه دَ برکت خوراک اُوخوره. په یو حدیث کښ ارشاد دے چه دَ پیشمنی په خوراک په روژه قوت حاصل کړئ. او دَ غرمے په خوب سره

په اٰخره شپه کښې دَ پاسيدو دپاره مدد حاصل کړئ.

حضرت عبدُ الله بن حارث رضی الله عنه دَ يو صحابي رضی الله عنه نه نقل کوی چه زهٔ دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې په داسے وخت کښې حاضر شوم چه نبی صلی الله علیه وسلم پيشمنے کولو، نو وے فرمايل چه دا اَيو دَ برکت څيز دے چه الله تعالیٰ تاسو له درکړے دے، دا مهٔ پريږدئ. نبی صلی الله علیه وسلم په ګڼړو روايتونو کښې دَ پيشمنئ ترغيب فرمايلے دے. تردے چه ارشاد دے چه کهٔ نور څهٔ نهٔ وی نو يوه چواره دِ وخوری، يا يو ګوټ اوبهٔ دِ اوڅکی. دے کبله روژه دار له دَدے "هُم خُرما هُم ثواب" په خاص طور اهتمام کول پکار دی، چه خپل راحت او خپله نفع او دَ مُفتو ثواب (هُم ورسره) خو دومره ضروری ده چه اِفراط تَفريط (يعنی زيات کمے) په هر څيز کښې نقصانی دے. مهٔ دومره کم خورئ چه عبادتونو کښې درته کمزوری محسوسه شی او مهٔ دومره زيات خورئ چه تول ورځ تراوِه اَګرَمی درته راځی. خپله هُم دَ حديثونو کښې دَدے اشاره ده کهٔ يوه چواره وی يا يو ګوټ اوبهٔ. بله دا چه مستقل ځان له حديثونو کښې هُم دَ ډير خوراک نه منع راغلے ده. حافظ ابن حجر رحمۃ الله علیه دَ بخاری په شرح کښې ليکلی دی چه دَ پيشمنئ دَ برکتونو ډيرے وجے دی. دَ سُنتو تابعداری، دَ اَهلِ کتابو مخالفت، چه هغوی پيشمنے نهٔ کوی، او مونږ ته ترخپله وَسه دَ هغوی په مخالفت حکم شوے دے. دغه شان په عبادتو قوت او په عبادت کښې زړهٔ لګيدو زياتوالے. دَ سره دَ ډيرے مخنے لوږے نه اَکثريَدْ اَخلاقئ هُم پيدا کيږی. ددے نه دَ ځيدو شکل دا دے چه دغه وخت څوک ضرورتمند سوالګر راشی، نو دَ هغهٔ مدد کول، په کاونړ کښې څوک غريب وی دَ هغهٔ هُم مدد کول، دا وخت په خصوصيت سره دَ دُعا قبليدو دے. دَ پيشمنئ دَ برکته دَ دُعا توفيق نصيب کيږی. دغه وخت کښې دَ ذِکر توفيق هُم ملاويږی. وغيره وغيره.

ابن دقيق العيد رحمۃ الله علیه وائي چه صوفيانو دَ پيشمنئ په مسئله کښې بحث کړے دے. چه پيشمنے دَ روژے دَ مقصد نه خلاف دے ځکه چه دَ روژے مقصد دَ ګيډے او دَ شرمګاه شهوت ماتول دی، او دَ پيشمنئ خوراک ددے مقصد نه خلاف دے. خو صحيح خبره دا ده چه دا په مقدار کښې دومره خوړل چه دا مصلحت يعنی فوت شی، دا

خو بهتره نۀ ده۔ د دې نه علاوه د حیثیت او ضرورت مطابق مختلف کیدې شي۔ د بنده په ناقص خیال په دې باره کښې د فیصلې خبره هم داده چه پیشمنی او روژه ماتي کښې بُنیادي خېز د خوراک کم والے دے۔ خو د ضرورت مطابق دیکښې بدلیدل کیدې شي۔ مثلاً د دین طالبعلمان که خوراک کم کړي نو د روژے فائدے په حاصلے شي خو د علم حاصلولو کښې به نقصان راشي۔ د دے کبله دوی د پاره بهتره داده چه کم خوراک و نه کوی ځکه چه د علوم دین اهمیت په شریعت کښې ډیر زیات دے۔ دغه شان د ذکر کونکو د پاره هم ده۔ دغه رنګې هغه نورے هم دلے چه د کم خوراک د وجے په څۀ دینی کار کښې په اهمیت سره نۀ شی مشغولیدلے (نو خوراک د نه کموی)

نبی اکرم ﷺ یو وارے جهاد ته تشریف اوړلو نو اعلان ئے اوکړو چه په سفر کښې روژه نیول نیکی نۀ ده حال دا چه د رمضان المبارک روژے دے۔ خو دلته د روژے جهاد سره مقابله راغلې وه۔ البته کوم ځائ چه څۀ داسے دینی کار وی چه د روژے نه اهم وی او کمزوری او سستیا پکښې نۀ پیدا کیږی نو هلته د خوراک کموالے مناسب دے۔

شرح اقناع کښې د علامه شعرانی رحمة الله علیه نه نقل کړے دے چه مونږ نه په دے باندے وعدے اخستلے شوے دی چه په مړه ګیډه به خوراک نه کوو۔ خصوصاً د رمضان المبارک په شپو کښې۔ بهتره داده چه د رمضان المبارک په خوراک کښې د غیر رمضان نه څۀ کمے اوکړی ځکه چه په روژه ماتی او پیشمنی کښې چه څوک په مړه خیټه خوراک اوکړی د هغۀ به څۀ روژه وی۔

عالمانو ویلی دی چه څوک په رمضان کښې د لوږے عادت پیدا اوکړی، (اتلولی) رمضان پورے به ټول کال د شیطان د زور نه محفوظ اوسی۔ د نورو عالمانو نه هم په دے سلسله کښې تحقیق نقل شوے دے۔ شرح احیاء کښې د عوارف نومے کتاب نه نقل کړے دے چه سهل بن عبدالله تستری رحمة الله علیه به په پنځلس ورځو کښې یو وارے خوراک کولو، او په رمضان المبارک کښې صرف یوه نوړئ به ئے خوړله۔ البته روزانه به ئے د سنتو د تابعداری په وجه صرف په اوبو روژه ماتوله۔ حضرت جنید رحمة الله علیه به همیشه روژے نیولے، خو که (الله والو) دوستانو کښې به څوک راغے، نو د هغۀ د وجے به

یے روژه ماته کړه - او فرمایل به یے چه (دا ئے) دوستانو سره د خوراك کولو فضیلت

څه د روژے د فضیلت نه کم نه دے - نورهم د تیر شوو بزرګانو په ژګونو واقعات

د دے ګواهی ورکوی - چه ځکه به د کم خوراك په سبب د نفس تربیت کولو خو شرط

هم هغه د کچه د هغے په وجه نورو اهم دینی کارونو کښ نقصان نه وی -

⑧ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رُبَّ صَائِمٍ لَیْسَ لَهٗ مِنْ صِیَامِهٖ اِلَّا الْجُوْعُ وَ رُبَّ قَائِمٍ لَیْسَ لَهٗ مِنْ قِیَامِهٖ اِلَّا السَّهَرُ - (رواه ابن ماجه واللفظ له والنسائي وابن خزيمة في صحيحه والحاكم وقال صحيح على شرط البخاري ذكر لفظها المنذري في الترغيب بمعناه)

حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه ډیر روژه نیونکی داسے دی چه هغوی ته د روژے فائده کښ سوا د اوږی پاتے کیدو نه نور هیڅ نه ملاویږی او ډیر شپه ژوندی کونکی داسے دی چه هغوی ته د شوګیرے د مشقت نه سوا هیڅ هم ملاو نه شو -

**فائده** :- د عالمانو د حدیث په شرح کښ یو څو قوله (یعنی وینا ګانے) دی.

اول دا چه د دے نه هغه څوک مراد دے چه تول ورځ روژه اونیسی او بیا یے په حرام مال ماته کړی، نو څومره ثواب چه یے د روژے شوے وو، د هغے نه زیاته ګناه یے د حرام مال په خوړلو اوشوه، نو تول ورځ اوږی پاتے کیدو نه سوا نور ورته هیڅ ملاو نه شو.

دویم دا چه د دے نه هغه کس مراد دے چه روژه نیسی خو بیا غیبت کښ لګیا اوسی چه د هغے بیان مخکښ راروان دے.

دریم قول دا دے چه روژه کښ د ګناه وغیره نه ځان نه ساتی . د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشادات جامع یعنی هر څه پکښ شامل دی - دا تول شکلونه پکښ داخل دی، او د دے نه علاوه نور هم (پکښ داخل دی) همدغے حال د شوګیره دے چه تول شپه یے ژوندے کړه خو د زړه خوشحالولو دپاره یے لږ شان غیبت یا څه بل څه کم عقل توب هم اوکړو، نو تول شوګیره یے بے کاره شوه. مثلاً د سحر مونځ یے قضا کړو، یا صرف خودنے او مشهورتیا دپاره ویخ پاتے شو، نو شوګیره بے کاره ده.

⑨ عَنْ عُبَیْدَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه روژه د روژه دار دپاره ډهال دے ، ترڅو پورے یے

| اَلصِّيَامُ جُنَّةٌ مَّالَمْ يَخْرِقْهَا | چه اُونه شلوی۔ |
| --- | --- |

(رواه النسائي باسناد حسن وابن ماجة وابن خزيمة والحاكم وصححه على شرط البخاري والفاظهم مختلفة
كذا في المنذري في الترغيب)

**فائده:-** دَ ډهال کيدو مطلب دا دے چه لکه څنګه بنيادم په ډهال خپل حفاظت کوی، دغسے روژه دار هم په روژه دَخپل دُشمن يعنی شيطان نه حفاظت کوی۔ په يو روايت کښ راغلی دی چه روژه دَ الله تعالیٰ دَعذاب نه حفاظت دے۔ په بل روايت کښ دی چه روژه دَ دوزخ نه حفاظت دے۔ بل روايت کښ راغلی دی چه چا عرض اُوکړو، اے دَ الله رسوله (صلی الله علیه وسلم) روژه په څه څيز شليږی؟ نبی علیه السلام اُوفرمايل چه په دَروغو او په غيبت۔ په دے دوه وُ روايتونو کښ او دغسے په نورو کښ وروايتونو کښ هم ددے قِسمه کارونو نه دَبچ کيدو تاکيد راغلے دے، اوګويا دَ روژے صائم کوَل يے ورته ويلی دی۔ څمونږ په دے زمانه کښ دَروژه نيولو دپاره مشغولا داګرځولے شی چه اَخوا ديخوا اخبار اوستا خبرے شروع کړے شی۔ دَ بعضے عالمانو په نزد په دروغو او غيبت روژه ماتيږی۔ دا دواړه څيزونه ددے حضراتو په نزد داسے دی لکه څنګه خوړل څکل وغيره تول روژه ماتونکی څيزونه دی۔ دَ اکثرو عالمانو په نزد اګرچه روژه ماتيږی نه خو د روژے دَ برکتونو په تلو کښ خو دَهيچا هم انکار نشته

عالمانو دَ روژے په ادابو کښ شپږ کارونه ليکلی دی چه دَ روژه دار دپاره دَهغے اهتمام ضروری دے۔

اوّل دَ نظر حفاظت چه چرته په بے ځايه ځائی اُونه لګی تر دے واپورې چه بی بی ته هم دَ شهوت په نظر اُونه ګوری۔ بيا دَ پردئ زنانه به څه وايے او همدغه شان دَلوبو تو تو فضولو او ناجائزو ځايونو باندے نظر اُونه لګی۔ دَ نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه نظر دَ شيطان دَغشونه يو غشے دے۔ څوک چه دَ دے نه دَ الله تعالیٰ دَ ويرے دَوجے نه بچ پاتے شی، الله جلّ شانهٗ به ورته داسے ايمانی رڼا نصيب کوی چه دَهغے خوږوالے او مزه به په زړه کښ محسوسوی۔ صوفيانو دَ بے ځايه ځائی تفسير داکړے دے چه هر هغه څيز نه کتل په ديکښ داخل دی چه زړه دَ

الله جَلَّ شَانُهٗ نه واردی او څه بل طرف ته یې متوجه کړي.

دویم څیز د ژبې حفاظت دے. دروغ، چغلي، فضول بکواس، غیبت، بده وینا، بدے خبرے، جھگړه وغیره ټول څیزونه په دیکښې داخل دي. د بخاري شریف په روایت کښې دي چه روژه د روژه دار دپاره ډهال دے. په دے وجه روژه دار له پکار دي چه په ژبه د غلطه خبره یا د جهالت خبره مثلاً چاپوړے توقے مسخرے، جهگړه وغیره نه کوي. که بل څوک ورسره جهگړه کوي نو ورته د اُووایي چه څما روژه ده، یعنې بل ورسره خُلهٔ ګډ وي نو هُم دِ ورسره نهٔ نښلي. که هغه د پوهے خاوند وي نو ورته دِ اُووایي چه څما روژه ده، او که کم عقل ناپوهه وي نو خپل زړهٔ دِ پوهه کړي چه ستا خو روژه ده. تا له د داسے فضولیا تو جواب مناسبهٔ نه دے. خصوصاً د غیبت او دروغو نه خو ډیر زیات ځان ساتل ضروري دي، ځکه چه د بعضے عالمانو په نزد په دے روژه ماتیږي، لکه څنګه چه مخکښې تیر شوي دي.

د نبي اکرم ﷺ په زمانه کښې دوه ښځو روژه اُونیوله، په روژه کښې دومره سخته لوږه ورته اُولګیده چه ویے نه زغملے شوه، مرګ ته نزدے شوے. صحابه کرامو رضي الله عنهم د نبي اکرم ﷺ نه پوښتنه اُوکړه، نو نبي ﷺ یوه پیاله دوي ته اُولیږله او حکم یے اُوکړو چه دے کښې دِ دواړه قے اُوکړي. دواړو قے اُوکړو، نو په هغے کښې د غوښو ټکړے او تازه خوړلے شوے وینه را اُوتله. خلقو ته حیرانتیا اُوشوه، نبي اکرم ﷺ اُوفرمایل چه دوي د الله تعالیٰ په حلاله روزئی سره روژه اُونیوله خو حرام څیزونه یے اُوخوړل ځکه چه دواړو ښځو د خلقو غیبت کولو. د دے حدیث نه یو بل مضمون هُم راؤزي چه د غیبت په وجه روژه ډیره اُوږده معلومیږي. تردے چه هغه دواړه ښځے د روژے د وجے مرګ ته نزدے شوے. دغه شان د نورو ګناهونو حال دے. او تجربه ددے مرسته کوي چه په روژه کښې اکثر په متقیانو ذره هُم اثر نه وي. او د فاسقانو خلقو اکثر بد حالت وي. ددے کبله که چرے دوي داغواړي چه روژه پرے اُونه لګي، نو ددے بهترینه طریقه دا ده چه په دے حالت کښې دِ ګناهونو نه ځان ساتي. خصوصاً د غیبت نه کوم چه خلق د روژے لنډولو مشغولا جوړه کړے ده. الله جَلَّ شَانُهٗ په خپل

پاک کلام کښې غیبت دَ خپل مسلمان رور مُردار په غوښې سره برابر کړے دے او په حدیثونو کښې هم ډیر د دے قِسمه واقعات راغلی دی چه دَ هغې نه صَفا معلومیږی چه نچا غیبت اُوکړے شو، نو په حقیقت کښې دَ هغه غوښه خوړلے شی.

نبی اکرم ﷺ یو وار یو خو کسان اُولیدل، ورته یې اُوفرمایل چه په غاښونو کښې دې اُووهَئ. هغوی عرض اُوکړو چه مونږ خو نن غوښه څکلے هم نه ده. نبی اکرم ﷺ ورته اُوفرمایل چه دَ فلانی کس غوښه ستاسو په غاښونو کښې اِنښتے ده. معلومه شوه چه دَ هغه غیبت یې کړے وو. الله تعالیٰ دِ مونږ په خپل حفاظت کښې اُوساتی. چه مونږ خلق دَ دې نه ډیر زیات غافله یو. دَ عامو خلقو به څه وایې خواص پکښې هم اَخته دی. هغه خلق خو پریږدئ دَ کوم ته چه دُنیا دار ویلے شی، دَ دیندارو مجلسونه هم عام طور دَ غیبت نه ډیر کم خالی وی او دَ دې نه زیاته داده چه دے ته خلک غیبت هم نه وائي. که خپل یا دَ بل په زړه کښې څهٔ ویره ترهه پیدا هم شی نو دا پرده پرے واچولے شی چه دا خو دَ واقعے اظهار دے (یعنې حقیقت لو ریښتیا دی).

دَ نبی اکرم ﷺ نه چا تپوس اُوکړو چه غیبت څهٔ څیز دے. نبی ﷺ ورته اُوفرمایل چه دَ چا پَسے شا دا سے خبره کول چه هغه ئے بَد ګنړی. سوال کوُنکی پوښتنه اُوکړه. که چرے په هغهٔ کښې په ریښتیا هغه خبره موجوده وی کومه چه ویلے شوے وی. نبی ﷺ اُوفرمایل نو څکه خو غیبت دے. او که پکښې واقعی موجوده نهٔ وی نو بیا خو بهتان (یعنې تهمت) دے.

یو وارے نبی اکرم ﷺ په دوو قبرونو تیریدهٔ، نو ارشاد یې اُوفرمایهٔ چه دے دواړو ته دَ قبر عذاب ورکړے کیږی. یو ته دَ خلقو دَ غیبت په وجه، بل ته دَ وروبولو نه ځان نهٔ ساتلو په وجه.

دَ نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه دَ سُود دَ اَویا وُنه زیاتے درجے دی. دَ تولو نه کمه درجه خپلے مور سره دَ زنا کولو برابره ده. او دَ سُود یو درهم دَ پنځه دیرش زنا کانو نه زیات سخت دے. او بَدترین سُود او دَ ټولو نه زیات ډیر خبیث سُود دَ مسلمان بے عزتی کول دی. په حدیثونو کښې دَ غیبت او دَ مسلمان دَ بے عزتی کولو سخت نه سخت سزاګانے راغلی دی. ځما زړهٔ غوښتله چه دَ هغې نه بنهٔ ډیر

روایتونه جمع کړم، خکه چه څمونږ مجلسونه ددے نه ډیر زیات ډک وی، خو مضمون جُدا دے، ددے وجه په دومره قدر بس والے کوم. الله پاک دمونږ دے بَلا نه محفوظ اُوساتی. او دَ بزرګانو او دوستانو دَ دُعا په برکت دِ ما ګنهګار ترے هُم محفوظ اُوساتی چه باطنی مرضونو کښ ډیر مبتلا یم. ـــه

کبر و نخوت جہل و غفلت حقد و کینہ بد ظنی ، ✦ کذب و بد عہدی ریا و بغض و غیبت دشمنی

کون بیماری ہے یارب جو نہیں مجھ میں ہوئی ✦ عَافِنِیْ مِنْ کُلِّ دَآءٍ وَّاقْضِ عَنِّیْ حَاجَتِیْ

اِنَّ لِیْ قَلْبًا سَقِیْمًا اَنْتَ شَافٍ لِّلْعَلِیْلِ

ترجمه:- تکبر، لوپی، ناپوهتیا، غفلت، حسد، کینه، بدګمانی، دروغ، وعده خلافی، ریا، بغض، غیبت، دُشمنی. کوم مرض دے اے ربه چه په ما کښ نشته، دَ هر مرض نه صحت راکړے او څما حاجت پوره کړے. څما زړهٔ ناروغه دے، ته مریضانو له شفا ورکوونکے یے؟

دریم[۳] چه روژه دار له دَ هغے اهتمام پکار دے، دَ غوږونو حفاظت دے د هر مکروه څیز نه چه دَ هغے ویل او دَ ژبے نه ویستل ناجائز دی. هغے ته غوږ ګنیښودل او اوریدل هم ناروا دی. دَ نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه غیبت کوونکے او اوریدونکے دواړه په ګناه کښ شریک دی.

څلورم[۴] څیز دَ بدن باقی اندامونه مثلاً لاس دَ ناروا څیز دَ نیولو نه او خپے ناروا څیز طرفته تللو نه منع کول. او دغه شان دَ بدن نور اندامونه هم د ناروا کارونو نه منع کول. هم دغه شان دَ روژه ماتی په وخت کیږه د شک شبهے دَ څیز نه محفوظه ساتل. څوک چه روژه اُونیسی او په حرام مال یے ماته کړی، د دهٔ مثال د هغے کس په شان دے چه دَ څهٔ مرض دارو کوی خو په هغے کښ لږ شان سنکهیا (یعنی زهر) هم ګډ کړی. نو که دارو دَ هغے مرض دپاره فائده مند شی، خو دا زهر به یے ورسره هلاک هم کړی.

پنځم[۵] څیز دَ روژه ماتی په وخت کښ دَ حلال مال نه هم دومره زیاته نه خوړل چه ګیډه پړسیدلے شی. ځکه چه په دے دَ روژے غرض فوت کیږی. دَ روژے نه مقصود دَ شهوت او دَ حیوانیت قوت کمول دی، نورانی قوت او دَ

فرښتو صفت زیاتوَل دی. یوازې میاشتو پورې مو ډیر څه خوړلے دی که چرے په میاشت کښې کمے اُوکړے شي نو ولے ساه به مو اُوزي، ولے خو موږ دَ خلقو د اعمال دے چه د روژه ماتی په وخت کښې دَ تیرے لوږے کمے پوره کوُل او په پیشمنی په وخت کښې دَ راتلونکے لوږے نه بچ کیدو دپاره دومره زیات مقدار کښې خوراک اُوکړو چه بغیرِ دَ رمضان او بغیرِ دَ روژے دَ حالت په کښې دَ دومره مقدار د خوراک وارنه راځي. رمضان المبارک هم خو موږ خلقو دپاره دَ خپلو یعنی دَ کُنیاء کار را کوی۔

علامه غزالی رحمة الله عليه لیکی چه د روژے غرض دَ ابلیس قهر او د نفس شهوت ماتوَل په څنګه حاصل شي، چه بنده د روژه ماتی په وخت دَ هغے مقدار د خوراک اُوېاسی کوم چه نوت شوے وی. په حقیقت کښې موږ خلق بغیر د دے نه چه دَ خپل خوراک وختونه بدل کړو، نور هیڅ کمے نه کوُو، بلکه نور زیاتولے پکښې دَ قسما قسم خوراکونو اُوکړو چه بغیرِ دَ رمضان نه (په آسانه) نه حاصلیږی. دخلقو عادتونه څهٔ داسے جوړ شوی دی چه بنهٔ بنهٔ څیزونه د رمضان دپاره ساتی۔ او نفس توله ورځ دَ لوږے نه پس چه په هغې ورپریوزی نو بنهٔ زیات په مزه کیږی او خوری. نو په ځائ د دے چه دَ شهوت قوت کمزورے شي، نور را اُوچت شي په جوش کښې راشي او دَ مقصد خلاف اُوشي۔

په روژه کښې مختلف غرضونه او فائدے او د هغے د فرض کولو نه مختلفے فائدے چه کومے مقصود دی هغه هله پورے هله حاصلیدے شي چه څهٔ نه څهٔ اُوږے پکښې هم پاتے شي. لویه فائده خو هُم دغه ده کومه چه معلومه شوه یعنی دَ شهوتونو زور ماتوَل. دا هله کیدے شي چه څهٔ وخت دَ لوږے په حالت کښې تیر شي۔

د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه شیطان دَ بنیادم په بدن کښې د وینے په شان ګرزی. د دهٔ لارے په لوږه سره بندے کړئ. دَ ټولو اندامونو مړیدن د نفس په لوږه منحصر دی چه نفس اُوږے وی نو ټول اندامونه مارهٔ وی او چه نفس موړ شي نو ټول اندامونه اُوږی وی۔

دویم غرض دَ روژے نه دَ غریبانانو سره مُشابهت او دَ هغوی په حال باندے نظر دے. دا هُم هله حاصلیدے شي چه په پیشمنی کښې معدے په ښیو او غلو تو دومره دکه

نهٔ کړے شی چه ترما بنامه پورے اُوږے کیږی نه - دَ غریبانانو سره مشابهت خو هله کیدے شی چه څهٔ وخت دَ لوږے په بے قرارئ کښ هُم تیر شی.

بِشر حَافِی رحمة الله علیه ته یو کَس ورغے، وے لیدهٔ چه هغه دَ یخنئ نه ریږدهٔ او جامے ورسره خواکښ پرتے وے. دهٔ ترے تپوس اُوکړو چه دا وخت د جامو ویستو دے؟ وے فرمایل چه غریبانان ډیر دی او ما کښ هغوی سره دَ همدردئ طاقت نشته. دومره همدردی خو اُوکړم چه څهٔ هُم دَ هغوی په شان شم. مشایخو صوفیانو عام طور په دے خبردارے کړے دے او فقهاؤ هُم د دے وضاحت کړے دے. صاحب مَرَاقِی الْفَلَاح لیکلی دی چه دَ پیشمنی په خوراک کښ ډیر زیاتے شکمی ځکه چه د مالدارو خلقو عادت دے ځکه چه دا دَ روژے مقصد ختموی. علامه طحطاوی رحمة الله علیه د دے په شرح کښ لیکی چه د روژے مقصد دا دے چه دَ لوږے تکلیف ورته څهٔ محسوس شی، چه د زیات ثواب سبب شی او مسکینانو غریبانانو باندے رَحم راشی. په خپله د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه الله جَلَّ شَانُهٗ ته دَ هیڅ یو لوښی ډکیدل دومره ناخوښ نهٔ دی څومره چه دَ ګیډے ډکیدل ورته ناخوښ دی. یو ځائے د نبی کرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه د بنی آدم دپاره یو څو نورئ کافی دی چه ملا یے برابره ساتی. که څوک خامخا په خوراک راشی نو دے نه زیات نهٔ خوری چه دَ ګیډے دریمه حصه د خوراک دپاره اُوساتی، او دریمه حصه دَ څښاک دپاره او دریمه حصه دِ خالی پریږدی. آخر څهٔ خبره خو وه کنه چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به څو څو ورځے پرله پسے روژے نیولے چه په مینځ کښ به یے هیڅ هُم نهٔ خوړل. ما خپل شیخ او اُستاد حضرت مولانا خلیل احمد صاحب الله تعالیٰ دے پهٔ کور نُور کړی په اوّل رمضانَ الْمُبَارَك کښ لیدلے دے چه دَ روژه ماتی او پیشمنی دواړو وختونو مقدار به تقریباً دَ یو نیم چپاتی نه زیات نهٔ وو. که چا خادم به عرض هُم اُوکړو نو اُو به یے فرمایل چه لوږه م نهٔ وی د دوستانو دَ خاطره کینم. او دَدے نه زیات م دَ حضرت مولانا شاه عَبْدُ الرَّحِیم صاحب رائپوری رحمة الله علیه په باره کښ اوریدلی دی چه څو څو ورځے به پرله پسے داسے تیریدلے چه د تمامے شپے مقدار به یے د پیشمنی او روژه ماتی د یو څو پیالو بے پَیُو چایو نه ما سوا نور هیڅ نهٔ وو. یو وارے

دَ پیښو نهر دَ غرونه کښتل هم گران نه وی. خو دا خبره دَ چا پیژار سمو لونه بغیر په مشکله حاصلیږی. ــه

تمنا درد دل کی ہے تو کر خدمت فقیروں کی ✦ نہیں ملتا یہ گوہر بادشاہوں کے خزینہ میں

که دَ زړه د درد آرزو دی، کوه خدمت دَ فقیرانو ✦ مونده نشی دا گوهر په خزانو دَ بادشاهانو

اخر ځهٔ خبره خو وه چه حضرت عمر رضی الله عنه به دَ ماسخوتن دَ مانځه نه پس کورته تشریف یوړو، او تر صبا پورے به یے مانځه کښی شپه تیروله. حضرت عثمان رضی الله عنه به توله ورځ روژه او توله شپه مانځه کښی تیروله. صرف دَ شپے په اوله حِصه کښی به لږ شان اوده کیدهٔ. دَ شپے په یو یو رکعت کښی به یے پوره قرآن لوستلو. شرح احیاء کښی ابوطالب مکی رحمة الله علیه نه نقل کړے دے چه دَ څلویښتو تابعینو نه دَ تواتر په طریقه یعنی پرله پسے دا خبره ثابته ده چه هغوی به دَ ماسخوتن په اودس دَ سحر مونځ کولو. حضرت شداد رضی الله عنه چه به دَ شپے سملاستو نو توله شپه به یے اړخونو بدلولو کښی صبا کړه او ویل به یے، یا الله! دَ دوزخ دَ اور ویرے خما خوب اوتختولو. اسود بن یزید رحمة الله علیه به په رمضان کښی دَ ماښام او ماسخوتن ترمینځه لږ شان اوده کیدهٔ او بس. دَ سعید بن المسیب رحمة الله علیه متعلق راغلی دی چه تر پنځوسو کالو پورے دَ ماسخوتن په اودسه دَ سحر مونځ کړے دے. صِله بن اشیم رحمة الله علیه به توله شپه مونځ کولو او سحر به یے دا دعا کوله چه یا الله! زهٔ دَ دے قابل خو نه یم چه جنت اوغوارم، صرف دومره درخواست دے چه دَ اور نه م اوساتے. حضرت قتاده رحمة الله علیه به دَ تول رمضان په هرو دریو شپو کښی یو ختم دَ قرآن شریف کولو سخو اخری لسو کښی به یے هره شپه یو قرآن شریف ختم کولو. دَ امام ابوحنیفه رحمة الله علیه نه څلویښتو کالو پورے دَ ماسخوتن په اودسه دَ سحر مونځ کول دومره مشهوره او معلومه خبره ده چه دَ هغے نه انکار دَ تاریخ باور اوچتوی. او چه هغوی نه تپوس اوکړے شو چه تاسو ته دا قوت څنګه حاصل شو، نو هغوی اوفرمایل چه ما دَ الله تعالی دَ نومونو په وسیله په یوه خاصه طریقه دُعا کړے ده. صرف دَ غرمے به لږ شان اوده کیدهٔ او فرمایل به یے چه په حدیث کښی دَ قیلولے ارشاد دے یعنی دَ غرمے به اوده کیدو کښی یے هم دَ سنتو دَ تابعدارئ اراده وه. دَ قرآن لوستلو په

دحضرت مخلص خادم حضرت مولانا شاه عبدالقادر رحمة الله عليه په ډیرے عاجزئ عرض اوکړو چه ډیر به کمزوری شئ. تاسو خو اوږخه خوړئ نه. نو حضرت اوفرمايل چه الحمد لله د جنت مزه راته حاصليږی. که الله جل شانهٔ مونږ ګنهګاروته هم ددے پاکو هستو تابعداری نصیب کړی نو دا به خمونږ خومره خوش قسمتی وی.

مولانا سعدی رحمة الله عليه فرمائی ہے

نه دارند تن پروران آگہی ✤ کہ پُر معده باشد ز حکمت تهی

ګیډه ورکسان ددے دی ناخبره ✤ چه معده ډکه حکمت نه دی خالی

شپږم (۶) څيز چه دهغے لحاظ د روژه دار دپاره ضروری فرمائی، دا دے چه د روژے نیولو نه پس ددے نه ویریدل هم ضروری دی چه معلومه نهٔ ده چه دا روژه د قبليدو قابله ده او کهٔ نه. او دغه شان د هر عبادت په ختميدو ویره پکار ده. معلومه نه ده چه څه داسے غلطی راته پکښ شوی وی چه د هغے په وجه دا عبادت راته په مخ را اوویشتلے شی. د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه ډیر قرآن لوستونکی داسے دی چه قرآن پاک په هغوی لعنت کوی. بل د نبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه د قیامت په ورځ د کومو کسانو چه اولنی خل کښ کومے فیصله کیږی. په هغے کښ به یو شهید وی چه هغه به راوبللے شی او د الله تعالیٰ چه کوم کوم انعامونه په دُنیا کښ په هغهٔ باندے شوی وُو هغه به ورته وریه یاد کړے شی. هغه به دغے ټولو نعمتونو اقرار اوکړی. ددے نه پس به د هغهٔ نه تپوس اوشی چه دے نعمتونو تا څهٔ حق ادا کړے دے؟ هغه به عرض اوکړی چه ستا په لار کښ م جنګ اوکړو، تردے چه شهید شوم. ارشاد به اوشی چه دروغ دی، بلکه جنګ د ددے دپاره کړے وو چه خلق درته بهادر اووائی، نو درته اووئیلے شو. ددے نه پس به حکم اوشی نو پړمخے به راښکلے شی او په دوزخ کښ به اوغورزولے شی. دغسے به یو عالِم راوبللے شی. هغهٔ ته به هم دغسے د الله تعالیٰ انعامات وریه یاد کړے شی، او تپوس به ترے اوشی چه ددے انعاماتو په بدله کښ تا څهٔ کړی دی؟ هغه به عرض اوکړی چه علم م زده کړهٔ او نوروته م اوخودلو او ستا د رضا دپاره م تلاوت اوکړو. ارشاد به اوشی چه دروغ دی. دا خو ددے دپاره کړے شوی وُو چه خلق د ته

عَلَامه اُووائی نو درته اُوویلے شُو۔ ددهٔ باره کښ به هُم حکم اوکړے شی او پرځ به راښکلے دوزخ کښ اُوغورزولے شی۔ هُم دغه شان یو دولت منډ به راُبللے شی دهغهٔ نه به دَخپلو انعاماتو وریادلو او دهغے اقرار اخستلو نه پس تپوس اُوکړے شی چه د الله تعالیٰ په دے نعمتونوکښ تا څهٔ عمل کړے دے؟ هغه به اُووائی چه هیڅ یو دَخیر لاره بہ داسے نهٔ ده پرېخے چه په هغے کښ ما خرچ نهٔ وی کړے۔ ارشاد به اُوشی چه دروغ دی۔ داخوتا ددے دپاره کړی وُو چه خلق درته سخی اُووائی نو درته اُوویلے شُو۔ دَدهٔ باره کښ به هُم حکم اُوشی، او پرځ راښکلے دوزخ کښ به اُوغورزولے شی۔ الله تعالیٰ دِ ترے مونږ محفوظ کړی۔ داتولے دَ بد نیتونو نتیجے دی۔ ددے قِسمه ډیر واقعات حدیثونوکښ راغلی دی، توځکه د روژه دار دپاره دخپل نیت دَحفاظت سره دے نه هُم ویریدل پکار دی، او دُعا هُم کول پکار دی چه الله جَلَّ شَانُهٗ دا دَخپلے رضا سبب اُوګرزوی۔ خودے سره دا خبره هُم دَلحاظ قابله ده چه خپل عَمل دَقبلیدو قابل نهٔ ګڼړل بُجد اکاردے او دکریم آقا یعنی الله تعالیٰ په مهربانئی نظر بُجد اکاردے۔ دهغهٔ دَمهربانو طریقے بالکل عجیبه دی۔ په ګناه هُم کله ثواب ورکوی، نوبیا عَمل کښ دکوتاهئی څهٔ ذکر دے۔ ؎

خوبی ہمیں کرشمہ و ناز و خرام نیست ❁ بسیار شیوه ہاست بتاں راکہ نام نیست

"دَمحبوب خوبئ اوصفتونه یواځے کرشمے او ناز او انداز نهٔ دی بلکه دَهغهٔ ډیر هغه صفتونه او کمالات هُم دی چه په عامه ویناکښ دَهغے نوم نشته۔

دا شپږ څیزونه دعاموصالحانو دپاره ضروری خودلے شی۔ دَخواصو اُو مُقَرَّبینئو یعنی الله تعالیٰ ته دَنزدے خلقو دپاره دِے سره یو اُووم څیز هُم زیاتوی چه زړهٔ دِ دَ الله تعالیٰ نه بغیر بل هیڅ څیز طرفته نهٔ مُتَوَجّه کوی۔ تردے چه دَروژے په حالت دا خیال او ته بیرچه د روژه ماتی دپاره څهٔ څیز شته یا نشته، دے فکر کولو ته هُم خطا وائی۔ بعضے عالمانو لیکلی دی چه په روژه کښ دَماښام د د روژه ماتی دپاره دڅهٔ څیز حاصلولو اراده هُم خطا ده ځکه چه دا دَالله تعالیٰ د رزق په وعده دَیقین کمے دے۔

په شرح اِحیاء کښ یے دَ بعضے مشایخو قِصه لیکلے ده چه کهٔ د روژه ماتی دَوخت

نه به مُخکښې څۀ څیز دَ چرته نه راځي، نو هغه به یې بل چا له ورکړو. هغه نۀ چه زړۀ هغې طرف ته مُتَوَجِّه شي، او په توکل کښې څۀ قِسمه کمي راشي. خو دا کارونه دَ لویو بزرګانو خلقو دپاره دي. څونږ خلقو دپاره ددے کارونو حرص کول به خایه دے. او ددے حالت ته رسیدلو نه بغیر دَ اِختیار دَ ول خپل ځان په هَلاکت کښې اَچول دي. مُفَسِّرینو لیکلي دي چه كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ کښې دَ بنیادم په هرجُز روژه فرض کړے شوے ده. پس دَ ژبے روژه دَ دروغو وغیره نه بچ کیدل دي. او دَ غوږ روژه ناروا څیزونو اَوریدو نه ځان ساتل دي. دسترگے روژه دَ لهو ولعب (یعنی دَ فضول او عَبَث) څیزونو ته دکتلو نه ځان ساتل دي او هُم دغه شان دَ باقي اندامونو (حال دے)، تردے چه د نفس روژه دَ حرص او شهوتونو نه بچ کیدل، دَ زړۀ روژه زړۀ دَ دُنیا د محبت نه خالي ساتل، او دَ رُوح روژه دَ آخرت دَ لذتونو نه ځان ساتل دي او الله تعالىٰ سره دَ رازدارو خلقو روژه دَ الله تعالىٰ دغیرنه هُم ځان ساتل دي.

(۱۰) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَفْطَرَ يَوْمًا مِنْ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ رُخْصَةٍ وَلَا مَرَضٍ لَمْ يَقْضِهِ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهِ وَإِنْ صَامَهُ.

حضرت اَبُوهُرَیْرَه رضي الله عنه فرمائي چه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څوك (قصداً) بغیر د شرعي عُذر نه یوه ورځ هُم د رمضان روژه اُوخوري د غیر رمضان روژه خو اګر ټول عُمر روژے اُونیسي، د هغې بدله نشي کیدے.

(رواه احمد و الترمذي و ابوداؤد و ابن ماجة و الدارمي و البخاري في ترجمة باب كذا في المشكوٰة قلت و بسط الكلام على طرقه العيني في شرح البخاري.)

فائده: ددے حدیث په بُنیاد دَ بعضے عالمانو مذهب هم په هغوی کښې حضرت علی کرم الله وجهه وغیره حضرات هُم دي، دا دے که څوك د رمضان المُبارك روژه بے وجے اُوخوري، د هغې قضا ادا کیدے نشي. خو اګر ټول عُمر روژے اُونیسي. خو دَ عامو فُقَهَاؤ په نزد که د رمضان روژه یے او نه نیولے وي نو دَ یوے روژے په بدله کښې به یوه روژه نیولو قضا اُوشي او که روژه یے نیولے وه ماته یے کړه نو دَ قضا دَ یوے روژے نه علاوه دوه میاشتے دَ کفارے روژے نیولو سره دَ فرضو

نہ غاړہ خلاصیږی. البتہ ھغہ برکت او فضیلت چہ کوم د رمضان المبارک دے، ھغہ پہ لاس نہ شی راتلے. او د دے حدیث مطلب ھم دا دے چہ ھغہ برکت پہ لاس نشی راتلے، کوم چہ رمضان شریف کښ روژے نیولو سرہ حاصلیدۂ. دا ھر څۂ پہ ھغہ حالت کښ دی چہ روستو قضا ھم راوړی او کۂ چرے څوک سړے د روژہ اُونۂ نیسی. نو شک چہ پہ دے زمانہ کښ د بعضے فاسقانو حالت دے نو دھغے گمراھئ پہ څۂ تپوس کوے. روژہ د اِسلام د ارکانو نہ یو رکن دے. نبی اکرم ﷺ د اِسلام بنیاد پہ پنځو څیزونو ارشاد فرمائیلے دے. د ټولو نہ اول د توحید او د رسالت اقرار. د دے نہ پس د اِسلام څلور مشهور رکنونہ مونځ، روژہ، زکوٰۃ، حج دی. څومرہ مسلمانان دی چہ پہ مردم شمارئ کښ مسلمانان شمیرلے شی خو پہ دے پنځو رکنونو کښ یو رکن ھم نۂ ادا کوی. پہ سرکاری کاغذاتو کښ کۂ ھغوی مسلمانان اُولیکلے شی، مگر د اللہ تعالیٰ پہ فهرست کښ ھغوی مسلمانان نشی شمارکیدے. تردے چہ د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ پہ روایت کښ دی چہ د اِسلام بنیاد پہ درے څیزونو باندے دے. کلمۂ شهادت، مونځ او روژہ. څوک چہ پہ دیکښ یو ھم پریږدی ھغہ کافر دے. د ھغۂ قتلول روا دی. عالمانو د دے قسمہ روایتونہ اگرچہ پہ انکار سرہ مُقید کړی دی (چہ د اِسلام پہ ارکانو کښ د یو رکن نہ انکار اُوکړی نو د ھغۂ دا حکم دے) یا ئے څۂ تاویل کړے وی، خو د دے نہ انکار نشتہ چہ د نبی اکرم ﷺ ارشادات د د اشخاصو پہ بارہ کښ د سخت نہ سخت راغلی دی. فرائض ادا کولو کښ کوتاھی کونکو د پارہ د اللہ تعالیٰ د قهر او غضب نہ ډیر زیات ویریدل ضروری دی. ځکہ چہ د مرگ نہ د ھیچا خلاصے نشتہ. د دُنیا عیش وعشرت ډیر زر پاتے کیدونکے څیز دے. پہ کار راتلونکے څیز صرف د اللہ تعالیٰ اطاعت دے. ډیر نا پوھہ پہ دے بس والے کوی چہ روژہ نہ نیسی، ولے بعضے بد نصیبہ خو د پہ نہ ھم د اسے قسمہ الفاظ اُوباسی چہ کفر تہ ئے رسوی مثلاً روژہ بہ ھغہ څوک نیسی چہ د چا پہ کور کښ د خوراک څۂ نہ وی. یا ځمونږ پہ لوږے سرہ پہ وږلو اللہ تعالیٰ تہ څۂ پہ لاس ورځی وغیرہ وغیرہ. د دے قسمہ الفاظونہ د ډیر زیات احتیاط ضرورت دے، پہ یو مسئلہ باندے بہ پہ غور او فکر ځان پوھہ کړل

پکاردی چه دَ دین وَړے نه وړے خبرے پورې خندل، توقے مسخرے کول دکفر سبب جوړیږی. که څوک ټول عُمر مونځ اُونهٔ کړی، چرے هم روژه اُونهٔ نیسی، دغه شان بل یو فرض اَدا نهٔ کړی، په شرط دے چه مُنکر تړے نهٔ وی هغه کافر نهٔ دے. کوم فرض چه نهٔ اداکوی په هغے گنهگار کیږی. ادکوم اعمال چه اداکوی دهغے ثواب به ورکیږی. خو د دین اَدنیٰ نه اَدنیٰ خبرے پورے مسخرے کول کفر دے چه په دے سره دَ ټول عُمر مونځ روژے نیک عملونه ضائع کیږی، ددے ډیر زیات خیال ساتل پکاردی. ددے کبله دَ روژے متعلق داسے الفاظ دَ خُلے نه هرگز اُونه باسئ اوکه مسخرے ټوقے وغیره ورپورې نهٔ کوئ، بیا هم بغیر دَ عذاره روژه خوړونکے فاسق دے. تردے چه فقهاؤ وضاحت کړے دے چه څوک په رمضان کښې ښکاره په څرگنده بغیر عُذره روژه خوری، هغه دِ قتل کړے شی. څوک چرے په قتلولو باندے ددے وجه نه طاقت نهٔ وی چه اسلامی حکومت نشته، اوداکار دَ امیرالمؤمنین دے، نو ددے فرضونه خو هیڅوک هم خلاص نهٔ دے چه په دے ناپاک حرکت دِ دَ نفرت اظهار اُوکړی. او ددے نه کمه خو دَ ایمان هیڅ درجه هم نشته چه په زړه دِ بد اُوگنړی. الله جلّ شانهٔ دِ دَ خپلو فرمانبردارو بندګانو په برکت ماته هم دنیکو اعمالو توفیق نصیب کړی چه دَ ټولونه زیات کوتاهی کوونکو کښې یم (اوتاسو دِهم)

اول فصل کښې دا لسَ احادیثو نه کافی گڼړم. دَ منونکی دپاره یو هم کافی دے. او بیا چه تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ وی. او دَ نهٔ منونکی دپاره څومره چه اُو لیکلے شی بے کاره دی. الله جلّ شانهٔ دِ ټولو مُسلمانانو ته دَ عمل کولو توفیق ورنصیب کړی.

# دویم فصل

## دَ شبِ قدر په بیان کښې

درمضان المُبارک په شپو کښې یوه شپه ته شبِ قدر ویلے شی چه ډیره زیاته دَ خیر او برکت شپه ده. قرآن پاک کښې یے داد زرو میاشتو نه بهتره خودلے ده. دَ زرو میاشتو نه دَ ترے اَتیا کاله څلور میاشتے جوړیږی. خوش نصیبه دے

هغه کس چا ته چه د دغې شپې عبادت نصیب شی. چه څوک د غه یوه شپه په عبادت کښې تیره کړی هغه گویا چه د ړې[۸۳] آتیا کاله څلور میاشتو نه زیات زمانه عبادت کښې تیره کړه، او د دې زیاتئ حال هُم مَعلوم نهٔ دے چه د زرو میاشتو نه څومره میاشتې زیاتې بهتره ده. دَ الله جَلَّ شَانُهٗ په حقیقت کښې دا یوَ ډیر لوئی انعام دے چهٔ قدر کوُنکو د پاره یې دا یوَ بے حَده لوئی نعمت ورکړهٔ.

دُرِّ مَنثُور کښې حضرت اَنَس رَضِیَ اللهُ عَنهُ د نبی اَکرَم ﷺ دا ارشاد نقل کړے دے چه شبِ قدر الله جَلَّ شَانُهٗ څما اُمت ته ورکړے ده، د مخکښنو اُمتونو ته نهٔ ده ورکړے شوے. دے باره کښې مختلف روایات دی چه د دے انعام سبب څهٔ اُوشهٔ بعضے روایتونو کښې راغلی دی چه نبی اکرَم ﷺ د مخکِنو اُمتونو عُمرونه اُوکتل چه ډیر ډیر دِوُ او دَ نبی ﷺ دَ اُمت عُمرونه ډیر لږ دی، نو که دوی په نیک عملونو کښې د هغوی برابرے کول غواړی نو نا مُمکنه ده. په دے د الله تعالیٰ نیازبین نبی ﷺ سره غم شو. د دے کمی پُوره کولو د پاره دا شپه ورکړے شوه. که چرے چا خوش قِسمته ته لس شپې هُم نصیب شی، نو گویا اَته سوه دَرې ډیر شو کالو څلور و میاشتو نه هم زیاته زمانه کامل عبادت کښې تیره کړه. بعضے روایاتو نه معلومیږی چه نبی اکرَم ﷺ د بنی اسرائیلو دیو کَس ذکر اُوکړهٔ چه زرو میاشتو پورے یې دَ الله تعالیٰ په لار کښې جهاد کولو. صحابه کرام رَضِیَ اللهُ عَنهُم ورته اُوبخیدل، نو الله جل شانهٗ د هغې کمی پوره کولو د پاره دا شپه نازله کړه. یو روایت کښې دی چه نبی اکرم ﷺ بنی اسرائیلو کښې د څلورو حضراتو ذکر اُوکړو، دَ حضرت اَیُّوب، حضرت زَکَرِیَّا، حضرت حِزقِیل، حضرت یُوشَع علیهم السلام چه اَتیا اُتیا کالو پورے د الله تعالیٰ په عبادت کښې مشغول وُو او دَ سترگے دَ رَپ برابرے دَ الله تعالیٰ نافرمانی نهٔ وه کړے. په دے صحابه کرام رَضِیَ اللهُ عَنهُم حیران شول نو حضرت جبرئیل علیه السلام خدمت کښې حاضر شو او سورةِ قدر یې واورَوُو. د دے نه علاوه نور هُم روایتونه شته دے. د دَ قِسمه روایتونو دَ اِختلاف اَکثر وجه دا دی چه هُم په یوه زمانه کښې چه کله د مختلف واقعاتو نه پس یو آیت نازل شی نو هرے واقعه طرف ته یې نِسبت کیدے شی. بهرحال دَ نازلیدو سبب یې هرڅهٔ چه وی خو اُمتِ محمدیه

دپاره دا ذ الله جلّ شانهٔ ویر زیات لوئ انعام دے. دا شپه هَم دالله تعالیٰ عطیه (یعنی ورکړه) ده. او په دیکښ عَمل هَم دهغهٔ په توفیق سره کیدے شی کنی سے

تهیدستانِ قسمت راچه سود از رهبر کامل ✦ کہ خضر از آبِ حیوان تشنه می آرد سکندر را

"ذکم نصیبو دپاره دکامل رهبر نه څهٔ فائده ده چه خضر علیه السلام سکندر دَ آبِ حیات نه تږے راو ستو."

څومره دَ پَسخید و قابل دی هغه بزرګان چه فرمائی چه بالغ کیدو نه پس مونږ نه دَ شپِ قدرعبادت هیڅ کله نهٔ دے پاتے شوے. البته دَ دغے شپے په تَعَیّنِ (یعنی مقررتیا) کښ دَ اُمت دعالمانو ترمینځه ویر زیات اختلاف دے. تقریباً پنځوس شوپوے اقوال (یعنی وینا گانے) دی. دټولو راجمع کول ګران دی، البته دَ مشهورو اقوالو ذکر نزدے راروان دے.

دَ اَحادیثو په کتابونو کښ د دغے شپے فضیلت په مختلفو قسمونو اوګنړو روایتونو کښ راغلے دے چه په هغے کښ دَ بعضو ذکر راځی. خو څونکه د دغے شپے فضیلت په خپله قرآنِ پاک کښ هَم ذکرکړے شوے دے او مُستقل یو سُورت دے باره کښ نازل شوے دے. په دے وجه مُناسبه ده چه اول د دغے سورت تفسیر اُولیکلے شی. ترجمه د حضرت حَکِیْمُ الاُمَّت مولانا اَشرَف علی تهانوی رحمة الله علیه دَ تفسیر بیانُ القرآن نه او فوائد د نورو کتابونو نه اخستلے شوے دی.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ○ اِنَّاۤ اَنْزَلْنٰهُ فِیْ لَیْلَةِ الْقَدْرِ ○ شروع کوم په نامه دَ الله تعالیٰ چه بخښونکے مهربانه دے. بے شکه مونږه قرآنِ پاک دَ قدر په شپه کښ نازل کړے دے.

**فائده:-** یعنی قرآنِ پاک د لوح محفوظ نه دَ دُنیا په آسمان په دے شپه کښ نازل شو. هَم دا یوه خبره د دے شپے دَ فضیلت دپاره کافی وه چه د قرآنِ پاک په شان د عظمت څیز په دے کښ نازل شو. او چه لا په دے کښ نور هَم ویر برکتونه او فضیلتونه شامل شوی وی. وړپسے د شوق زیاتولو دپاره ارشاد فرمائی وَمَاۤ اَدْرٰىكَ مَا لَیْلَةُ الْقَدْرِ ○ تا ته څهٔ معلومه ده چه شپِ قدر څومره لوئ څیز دے؟ یعنی د دغے شپے دلوئیٔ او فضیلت تا ته څهٔ علم هَم شته چه په دے کښ څومره خوبئ

او فضیلتونه دی. دد ے نه پس یو څو فضیلتونه ذکر فرمائی. لَیۡلَةُ الۡقَدۡرِ خَیۡرٌ مِّنۡ
اَلۡفِ شَهۡرٍ ﴿۳﴾ شپه دَ قدر د زرو میاشتو نه بهتره ده یعنی د زرو میاشتو د عبادت نه په
څومره ثواب دے دَ هغې نه زیات شپ قدر کښې د عبادت کولو ثواب دے او دا دے
زیاتوالی علم هم نشته چه څومره زیات دے. تَنَزَّلُ الۡمَلٰٓئِکَةُ په دغې شپه
کښې فرښتې راکوزیږی. علامه رَازی رحمة الله علیه لیکی چه فرښتو په اول ځل کښې ته
اُولیدے، نو ستا نه یے کرکه ښکاره کړے وه، او د الله په دربار کښې یے عرض کړے وو
چه تاسو داسے څیز پیدا کوئ چه په دُنیا کښې به فساد کوی او وینے به بهَیوی. دد ے
نه پس چه ته مور پلار اول لیدلے وے کله چه ته دَ منی څاڅکے وے نو ستا نه یے
کرکه کړے وه. تر دے چه جاے سره به اُولګید ه نو د جاے وینځلو ضرورت پېښیده.
خو هر کله چه الله جَلَّ شَانُهٗ دغې څاڅکی له بهترین شکل ورکړو، نو د مور پلار
ورسره هم د شفقت او د مینے وخت راغلو او نن چه د الله تعالیٰ په توفیق ته شپ قدر
کښې دَ الله تعالیٰ په مَعرِفت او اطاعت کښې مشغول یے نو فرښتے هم دَ خپلے هغې
وینا د معذرت کولو دپاره راکوزیږی. وَالرُّوۡحُ فِیۡهَا او په دے شپه کښې رُوحُ الۡقُدُس
یعنی جبرئیل علیه السلام هم راکوزیږی. دَ رُوح په معنیٰ کښې دَ مُفَسِّرِینُو څو قوله دی.
اول دَ جمهورو هم دغه قول دے کوم چه یو رته اُولیکلے شو چه دد ے نه جبرئیل علیه السلام
مُراد دے. علامه رازی رحمة الله علیه لیکلی دی چه هم دغه قول زیات صحیح دے او د حضرت
جبرئیل علیه السلام دَ اَفضَلیّت د کبله یے دَ فرښتو د ذکر نه پس خاص طور د ده ذکر اُوکړه.

دویم د بعضو وینا ده چه د رُوح نه مُراد یوه ډیره لویه فرښته ده چه ټول
اسمانونه او زمکے د هغې وړاندے دَ یوے نمړئ برابر دی. دریم دَ بعضو وینا ده چه
دد ے نه مُراد دَ فرښتو یوه خاصه ډله ده چه نورو فرښتو ته هم صِرف لَیۡلَةُ الۡقَدۡر
کښې په نظر راځی. څلورم قول دا دے چه دا دَ الله تعالیٰ خاص مخلوق دے چه
خوراک څښاک کوی، خو نه فرښتے دی او نه انسانان. پنځم دا چه دے نه حضرت
عیسیٰ علیه السلام مُراد دے چه دَ مُحَمَّد صلی الله علیه وسلم اُمت کارنامو لیدلو دپاره فرښتو سره
راکوزیږی. شپږم قول دا دے چه دا دَ الله تعالیٰ خاص رحمت دے یعنی په دغې
شپه کښې فرښتے نازلیږی او دَ الله تعالیٰ خاص رحمت نازلیږی. دد ے نه علاوه

نورهم بعضے اقوال دی، ولے مشهور قول اُولنے دے. په سُنَنِ بَیْهَقِی کښ حضرت اَنَس رضی الله عنه په واسطه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم اِرشاد نقل دے چه په شبِ قدر کښ حضرت جبرئیل علیه السلام د فرښتو د یوے ډلے سره راکوزیږی او څوک چه په ذِکر وغیره کښ مشغول اُووینی د هغوی دپاره د رحمت دُعا کوی. بِاِذْنِ رَبِّهِمْ مِّنْ كُلِّ اَمْرٍ د خپل پروردګار په حکم هر اَمرِ خیر را اَخلی او زمکے طرفته راکوزیږی. مَظاهِرِحق کښ یے لیکلی دی چه هم په دغه شپه د فرښتو پیدائش اُوشو. او هم په دغه شپه کښ د آدم علیه السلام ماده جمع کیدل شروع شوه. هم په دغه شپه په جنّت کښ وَنے اُولګولے شوے. او دُعا وغیره قبلیدل خو په ډیر رِوایتونو کښ راغلی دی. د دُرِّ منثور په یو روایت کښ دی چه هم په دغه شپه کښ عیسیٰ علیه السلام اسمان ته اُوچت کړے شوے وو، او هم په دغه شپه کښ د بنی اسرائیلو توبه قبوله شوے وه. سَلٰمٌ هِیَ دغه شپه سَراسر سلام دے. یعنی ټوله شپه د ملائکو له طرفه په مؤمنانو باندے سلام کیږی چه یو فوج راځی او بل ځی. لکه څنګه چه په بعضے روایتونو کښ د دے وضاحت دے. یا دا مُراد دے چه دا شپه سَراسر سلامتیا ده، د شر فساد وغیره نه اَمن دے. حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ دغه شپه د دے برکتونو سره) تر صُبا پورے وی. دانه ده چه د شپے څه خاصه حِصه کښ دا برکت وی او په څه کښ نه وی. بلکه د صبا کیدو پورے د دے برکتونه ظاهریږی. د دے سورت شریف د ذِکر نه پس چه په خپله الله جل شانُه په قرآنِ پاک کښ د دے شپے ډیر قِسمه فضیلتونه ارشاد فرمائیلی دی نو د حدیثونو ذِکر کولو ضرورت نه پاتے کیږی. خو حدیثونو کښ هم د دے فضیلتونه ډیر راغلی دی د هغے نه یو څو حدیثونه ذِکر کولے شی.

(۱) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَامَ لَیْلَةَ الْقَدْرِ اِیْمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

حضرت اَبُوهُرَیرَه رضی الله عنه فرمائی چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه څوک په شبِ قدر کښ د ایمان سره او د ثواب په نیت (عبادت دپاره) اُودریږی د هغه ټول رُوستنی ګناهونه به اُوبخښلے شی.

(کذا فی الترغیب عن البخاری و مسلم)

**فائده:-** دَ احدیثو مطلب دا دے چه روژه کوی او په دے حکم کښ دا هم دی چه څه بل عبادت تلاوت، ذکر وغیره کښ مشغول وی. دَ ثواب اُمید ساتلو مطلب دا دے چه ریا وغیره په څهٔ بد نیتیٔ ولاړ نهٔ وی بلکه په اخلاص صرف د الله د رضا او ثواب حاصلولو په نیت ولاړ وی. خطّابی رحمۃ اللہ علیہ فرمائی چه دے مطلب دا دے چه دَ ثواب په یقین او دَ زړهٔ په خوشحالئی سره ولاړ دی. بوجھ یے نهٔ گنړی، او په ناخوالئی نهٔ وی. او ښکاره خبره ده چه څومره دَ ثواب یقین او ایمان یے مضبوط وی، هغه هومره به عبادت کښ مشقت برداشت کول اسان وی. دغه وجه ده چه څوک په قُربِ الٰهی (یعنی الله تعالیٰ ته ورنزدے کیدو) کښ څومره ترقی کوی، هغه هومره یے عبادت کښ شوق زیاتیږی.

بلهٔ دا معلومیدل هم ضروری دی چه پورتنی حدیث او دَ دے په شان نورو حدیثونو کښ دَ گناهونو نه مُراد دَ عالمانو په نزد صغیره (یعنی واړهٔ) گناهونه دی. ځکه چه په قرآن کښ کوم ځائی دکبیره (یعنی لویو) گناهونو ذکر راځی، هغه یے اِلَّا مَنْ تَابَ سره ذکر کړے دے. په دے وجه دَ عالمانو اتفاق دے چه کبیره گناه بغیر دَ توبے نه نهٔ مُعاف کیږی. پس کوم ځائی چه په حدیثونو کښ دَ گناه معاف کیدو ذکر راغلے دے عالمان هغه سره دَ صغائرو (وړو) گناهونو قید لگوی. څما دَ والد صاحب رحمۃ اللہ علیہ ارشاد دے چه په حدیثونو کښ دَ صغائرو قید دَ دوه وجهو نه نهٔ ذکر کیږی. اوّلهٔ خو دا چه دَ مسلمان دا شان نهٔ دے نه چه دَ هغهٔ په ذمّه کبیره گناه وی، ولے چه کله کبیره گناه دَ هغه نه اُوشی نو دَ مسلمان اصل شان دا دے چه هغهٔ له به تر هغې وخته آرام نهٔ ورځی، تر څو پورے چه د هغې نه توبه اُونهٔ باسی. دویمه وجه دا ده چه کله د دے قسمه موقعے وی مثلاً په شپِ قدر کښ چه څوک دَ ثواب په اُمید عبادت کوی نو په خپلو بدعملو باندے پښیمانتیا دَ دهٔ دپاره گویا ضروری ده. او کیږی هم دَ غسے. د دے کبله توبه پکښ په خپله راشی. ولے چه دَ توبے حقیقت په تیرو گناهونو پښیمانتیا او د راتلونکی وخت دپاره دَ نهٔ کولو پخنه اراده ده. دَ دے وجه کهٔ چرته کبائر (یعنی غټ) گناهونه شوی هم وی، نو دَ هغهٔ دپاره ضروری ده چه کهٔ لیلۃ القدر وی یا بله دَ دعا قبلیدو موقع وی، دَ خپلو

بَدعملونه په ریښتیني زړه او په پخه اراده د زړه او ژبې سره توبه هم اُباسي چه د الله تعالیٰ کامل رحمت د ورته متوجه شي او صغیره کبیره (وارهٔ لوی) ټول ګناهونه معاف شي. که د ورته رایاد شي نو ما ګنهګار هم خپلو د اخلاص (نه ډکو) دعاګانو کښې یاد کړئ.

۲ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ دَخَلَ رَمَضَانُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ هٰذَا الشَّهْرَ قَدْ حَضَرَكُمْ وَفِيْهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ مَنْ حُرِمَهَا فَقَدْ حُرِمَ الْخَيْرَ كُلَّهُ وَلَا يُحْرَمُ خَيْرَهَا إِلَّا مَحْرُوْمٌ.
(رواه ابن ماجة واسناده حسن ان شاء الله تعالیٰ كذا في الترغيب وفي المشكوة عنه الا كل محروم)

حضرت انس رضی الله عنه وائي چه یو ځل د رمضان المبارك میاشت راغله نو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمایل چه په تاسو باندې یوه میاشت راغلې ده چه په دې کښې یوه داسې شپه ده چه د زرو میاشتو نه بهتره ده. څوك چه د دې شپې نه محروم پاتې شو ګویا د ټول خیر نه محرومه پاتې شو، او د دې خیر نه محرومه نه پاتې کیږي خو هغه کس چه په حقیقت کښې محرومه وي.

**فائده:-** په حقیقت کښې د هغه په محرومۍ کښې څه شك دے چه دومره لوی نعمت د لاسه ضائع کړي. ډیر ملازمان د یو څو پیسو په خاطر ټوله شپه ویښ وي. که د اُتیا کالو څلورو میاشتو د عبادت په خاطر څوك یوه میاشت د شپې ویښ پاتې شي نو څه ګرانه ده. اصل خبره دا ده چه په زړه کښې درد او عشق نشته. او که لږ غوندې خوند بیا مومي نو بیا یوه شپه څه په سوونو شپې روڼ تیریدلې شي. ـــه

الفت میں برابر ہے وفا ہو کہ جفا ہو ✦ ہر چیز میں لذت ہے اگر دل میں مزا ہو

محبت کښې برابر دی وفا وي که جفا وي ✦ په هر څیز کښې لذت دے خو چه زړه کښې مزا وي

اُخر څه خبره خو به وه چه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم سره د ټولو بشارتونو او وعدو چه د هغوی پرې پوره یقین ؤ، بیا یې دومره اُږدهٔ اُږدهٔ مونځونه کول چه خپې مبارکې به یې اُپړسیدلې. د هغوی نوم اُخستونکي او اُمتیان اخر مونږ هم یا دیږو. کومو خلقو چه د دې قدر اُوکړو، هغوی هر څه اُوکړل او نمونه یې اُمت ته اُوخودله. ورېږونکو ته دا موقع هم پاتې نه شوه چه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په شان (د عباداتو) څوك کونکے شي او د چا نه کیدے شي. په زړه کښې د کینولو خبره ده. محبت کوونکو ته د

دَ پېغُونِهو دَ غرونه کښَستل هُم گران نه وی، خو دا خبره دَ چا پېژار سمُولو نه بغیر
په مشکله حاصلیږی . ــه

تمنا درد دل کی ہے تو کر خدمت فقیروں کی ✤ نہیں ملتا یہ گوہر بادشاہوں کے خزینہ میں

که د زړه د درد آرزو دی کړه خدمت دَ فقیرانو ✤ موندے نشی دا گوهر په خزانو دَ بادشاهانو

اخر دغه خبره خو وه چه حضرت عمر رضی اللہ عنہ به د ماسخوتن د مانځه نه پس کورته تشریف یوړو، او تر صبا پورے به یے مانځه کښې شپه تیروَله. حضرت عثمان رضی اللہ عنہ به توله ورځ روژه او توله شپه مانځه کښې تیروَله . صِرف د شپے په اوّله حِصه کښې به لږ شان اُوده کیدهٔ . د شپے په یو یو رکعت کښې به یے پوره قرآن لوستلو. شرح احیاء کښې ابُوطالِب مکی رحمۃ اللہ علیہ نه نقل کړے دے چه د څلویښتو تابعینو نه د تَواتُر په طریقه یعنی پرله پسے دا خبره ثابته ده چه هغوی به دَ ماسخوتن په اَودس د سحر مونځ کوَلو . حضرت شَدَّاد رضی اللہ عنہ چه به د شپے سملاستو نو توله شپه به یے اړخونه بدلولو کښې صبا کړه اَو ویل به یے ، یا الله ! دَ دوزخ دَ اَور ویرے خما خوب اُوتختَولو . اَسوَد بن یَزید رحمۃ اللہ علیہ به په رمضان کښې د ماښام او ماسخوتن تر مینځه لږ شانْ اُوده کیدهٔ او بس . د سَعید بن المُسَیَّب رحمۃ اللہ علیہ متعلق راغلی دی چه تر پنځوسو کالو پورے د ماسخوتن په اَودَاسهٔ د سحر مونځ کړے دے . صِلَه بن اَشیَم رحمۃ اللہ علیہ به توله شپه مونځ کوَلو او سحر به یے دا دُعا کوَله چه یا الله ! زهٔ دَ دے قابل خو نهٔ یم چه جنّت اُوغوارم ، صِرف دومره درخواست دے چه دَ اور نه م اُوساتے . حضرت قَتَادَه رحمۃ اللہ علیہ به دَ توَل رمضان په هرو دریو شپو کښې یو ختم دَ قرآن شریف کوَلو ، خو اخری لسو کښې به یے هره شپه یو قرآن شریف ختم کوَ لو . د اِمام اَبُوحَنیفَه رحمۃ اللہ علیہ نه څلویښتو کالو پورے د ماسخوتن په اَوَدَاسهٔ د سحر مونځ کوَل دومره مشهوره او معلومه خبره ده چه د هغے نه انکار د تاریخ نه باور اُوچتوی . او چه هغوی نه تپوس اُوکړے شو چه تاسو ته دا قوت څنګه حاصل شو، نو هغوی اُوفرمایل چه ما دَ الله تعالیٰ د نومونو په وسیله په یوه خاصه طریقه دُعا کړے وه . صِرف د غرمے به لږ شان اُوده کیدهٔ اُوفرمایل به یے چه په حدیث کښې دَ قیلُولے ارشاد دے ، گویا دَ غرمے به اُوده کیدو کښې یے هُم دَ سُنتو دَ تابعداری اراده وه . د قرآن لوستلو به

وخت به یے دومره ژړل چه دَ کاونډیانو به پرے رَحم راتلو. یو وارے تول شپه یے دا یوه آیت په ویلو په ژړا کښ تیره کړه، بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَ السَّاعَةُ أَدْهٰى وَأَمَرُّ (سورۂ قمر. ع۳) ابراهیم بن ادهم رحمۃ اللہ علیہ به د روژے په میاشت کښ نه د ورځے اُوده کیدهٔ او نهٔ د شپے. امام شافعی رحمۃ اللہ علیہ به په رمضان کښ د شپے او ورځے په مونځونو کښ شپیته ځله قرآن شریف ختمولو. دے نه علاوه دَ سوونو خلقو واقعات دی چه هغوی په وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَ الْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ۝ (سورة الذاريات. ع۳) باندے عمل اُوکړو، او خلقو ته یے اُوخودله چه دَ کوُنکو دپاره هیڅ مشکله نه ده. دا دَ تیرشوُو بزرګانو واقعات دی. اُوس هم کوُنکی موجود دی. کهٔ هغه هومره مُجاهده نهٔ وی خو دَ خپلے زمانے موافق او دَ خپل طاقت او وَس موافق دَ تیرشوُو بزرګانو نمونے اُوس هم شته دے. دَ نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم په ریښتنی اقتدا کوُنکی دے فساد په زمانه کښ هم شته. نهٔ یے راحت او آرام په عبادت کښ د مشغولتیا نه منع کوُلے شی او نهٔ یے دَ دُنیا کاروبار ددے لارے منع کوُنکی کیدے شی. نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم فرمائی چه دَ الله تعالیٰ ارشاد دے چه اے دَ آدم ځویه! ته خپل ځان دَ عبادت دپاره اُوزګار کړه زهٔ به ستا سینه دغناګانو نه ډکه کړم. او ستا غریبی به بنده کړم کنی ستا لاسونه به د کاروبار نه ډک کړم او غریبی به دِ نهٔ بندَ وم. روزانه لیدلی کتلی واقعات ددے ریښتنی ارشاد انصاف ګواهان دی.

﴿۳﴾ عَنْ أَنَسٍ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم إِذَا كَانَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ نَزَلَ جِبْرِيْلُ علیہ السلام فِيْ كَبْكَبَةٍ مِّنَ الْمَلٰئِكَةِ يُصَلُّوْنَ عَلٰى كُلِّ عَبْدٍ قَائِمٍ أَوْ قَاعِدٍ يَذْكُرُ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ عِيْدِهِمْ يَعْنِيْ يَوْمَ فِطْرِهِمْ بَاهٰى بِهِمْ مَلٰئِكَتَهٗ فَقَالَ يَا مَلٰئِكَتِيْ مَا جَزَاءُ أَجِيْرٍ

حضرت انس رضی اللہ عنہ وائی چه د نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ارشاد دے چه شپِ قدر کښ جبریل علیہ السلام دَ ملائکو یوے ډلے سره راځی او د هغه کس دپاره چه په ولاړه یا په ناسته دَ الله تعالیٰ ذکر کوی (او عبادت کښ مشغول وی) د رحمت دُعا کانے غواړی. او چه کله دَ وړکوټی اختر ورځ شی نو الله جل شانهٔ دخپلو فرښتو مخکښ دَ بندګانو په عبادت فخر کوی (ځکه چه هغوی په بنیادَم اعتراض کړے وو)

یعنی، او هغه دا دو چه فرښتو الله تعالیٰ ته عرض اُوکړو چه آیا دا هغه مخلوق پیدا کوے چه په زمکه کښ به فتنه او فساد اوکړی

وَفِي عَمَلِهٖ قَالُوْا رَبَّنَا جَزَاؤُهٗ اَنْ
يُّوَفّٰى اَجْرَهٗ قَالَ مَلَائِكَتِيْ عَبِيْدِيْ
وَاِمَائِيْ قَضَوْا فَرِيْضَتِيْ عَلَيْهِمْ
ثُمَّ خَرَجُوْا يَعُجُّوْنَ اِلَى الدُّعَاءِ وَ
عِزَّتِيْ وَجَلَالِيْ وَكَرَمِيْ وَعُلُوِّيْ
وَارْتِفَاعِ مَكَانِيْ لَاُجِيْبَنَّهُمْ فَيَقُوْلُ
ارْجِعُوْا قَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ وَبَدَّلْتُ
سَيِّاٰتِكُمْ حَسَنَاتٍ قَالَ فَيَرْجِعُوْنَ
مَغْفُوْرًا لَّهُمْ (رواه البيهقي في شعب
الايمان كذا في المشكوٰة)

او دهغوی نه پوښتنه کوی چه اے فرښتو! دهغه مزدور چه خپله مزدوری پوره پوره اُکړی څۀ بدله ده. هغوی عرض کوی، اے څمونږ ربه! دهغوی بدله داده چه هغوی ته مزدوری پوره ورکړے شی. نو ارشاد اُوشی چه فرښتو! زما غلامانو او وینځو زما فریضه پوره اَدا کړه، بیا په چغو چغو دُعا سره (عیدګاه طرف ته) اُووتل. زما دِ په خپل عزت قسم وی، او زما دِ په خپل جلال قسم وی، زما دِ په خپل لوئی شان قسم وی، او زما دِ په خپلے اُوچتے مرتبے قسم وی چه زۀ به دَدغے خلقو دُعا ضرور قبلوم. بیا دغے خلقو ته خطاب اُوکړی اِرشاد فرمائی چه واپس شئ، ستاسو ګناهونه مې معاف کړل او ستاسو بدئ مې په نیکو سره بدلے کړے. پس دا خلق دعیدګاه نه په داسے حال کښې واپس کیږی چه دهغوی ګناهونه معاف شوی وی.

**فائده:-** دحضرت جبرئیل علیه السلام ملائکو سره راتلل په قرانِ پاک کښې هم ذکرشوی دی لکه مخکښې تیرشو، او په ډیرو حدیثونو کښې هم دَدے وضاحت شته. ددے رسالے په اخری حدیث کښې ددے په تفصیل سره ذکر راروان دے چه حضرت جبرئیل علیه السلام تولو ملائکو ته فرمائی چه د هر ذاکر شاغل کور ته لاړ شئ او هغه سره لاس ملاؤ کړئ.

غالیة المواعظ کښې دحضرت شیخ عبد القادر جیلانی رحمة الله علیه دکتاب غنیه نه نقل کړے دے چه اِبنِ عباس رضی الله عنهما په حدیث کښې دی چه ملائکے دَحضرت جبرئیل علیه السلام په وینا خورے شی او هیڅ یو کور، ودکوټے او لوئ څنګل یا کشتئ داسے نۀ وی چه په هغے کښې مؤمن وی او دغه فرښتے دَمصافحے دپاره هلته نۀ ځی، خو په هغے کور کښې نۀ داخلیږی کوم کښې چه سپے یا خنزیر یا دَحرام کارئ په وجه جُنبی یا تصویروی. دَمسلمانانو څومره کورونه داسے دی چه په هغے کښې صرف دخیالی زینت په خاطرے تصویرونه اُویزان کړی وی او د الله تعالیٰ ددے دومره لوئ نعمت

نه دخپله لاسه ځان محرومه کوي. تصوير اوېزان کوونکے په کښ يو دی خو د
حضه په وجه ټول کور د رحمت د فرښتو داخليدو نه د منع کولو سبب اوګرزي
او ځان سره ټول کور محرومه کړي.

④ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحَرَّوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْوِتْرِ مِنَ الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ. (مشكوٰة عن البخاري)

حضرت عائشه رضي الله عنها د نبي اکرم صلی الله عليه وسلم نه نقل فرمائي چه لَيْلَةُ الْقَدْر د رمضان اخري لسو طاقو (يعني ناتکو) شپو کښ تلاش کوئ.

فائده:- د جمهورو عالمانو په نزد اخري عشره يو ويشتمې شپې نه شروع کيږي خواه که مياشت د يوکم ديرشو وي يا د ديرشو. په دے حساب د پورتني حديث مطابق د شپِ قدر تلاش يو ويشتمه درويشتمه پنځويشتمه اوويشتمه يوکم ديرشمه شپو کښ کول پکار دي. که مياشت د يوکم ديرشو وي بيا هم اخري عشره هم د دے نه وېلے کيږي. خو د اِبنِ حَزَم رحمة الله عليه رائے ده چه د عشرے معنٰی لس ده. که د رمضان المبارك مياشت د ديرشو وي نو بيا خو داده، ولے که چرے مياشت د يوکم ديرشو وي نو په دے حالت کښ اخري عشره د شلمے شپے نه شروع کيږي. په دے حالت کښ به ناتکي شپې دا وي. شلم، دوه ويشتم، څلير ويشتم، شپږ ويشتم، اته ويشتم. خو نبي اکرم صلی الله عليه وسلم به د ليلة القدر په تلاش کښ د رمضان المبارك اعتکاف کولو، او هغه به بالاتفاق د يو ويشتمې شپې نه شروع کيده. بيا د جمهورو عالمانو قول د يو ويشتمې شپې نه په ناتکي شپو کښ قوي ښکاريږي او زيات نزدے دے اګر چه اميد په نورو شپو کښ هم شته او په دواړو قولونو تلاش هله کيدے شي چه د شلمے شپے نه تر اختر شپے پورے هره شپه کښ ويښ وي او د شپِ قدر په فکر کښ لګيا وي، لس يولس شپې ويښ پاتے کيدل يعني ځوکيدار کول د هغه چا د پاره هيڅ ګرانه نه ده چه څوک د ثواب اميد لري ؎

مژه اګر به ګريه ميتر شده وصال ✤ صد سال ميتوان به تمنا ګريستن

که په ژړا باندے وصال حاصليدلے شي ✤ نو تر سل کالو ژړيدل عمل (ګران) به کړے

⑤ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عُبَادَه رضي الله عنه فرمائي چه نبي اکرم صلی الله عليه وسلم د معدي پاره بهر تشريف راوړلو چه مونږ ته د

لِيُخْبِرَنَا بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَقَالَ خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى فُلَانٌ وَفُلَانٌ فَرُفِعَتْ وَعَسَىٰ اَنْ يَّكُوْنَ خَيْرًا لَّكُمْ فَالْتَمِسُوْهَا فِي التَّاسِعَةِ وَالسَّابِعَةِ وَالْخَامِسَةِ. (مشكوٰة عن البخاري)

دَشبِ قدر خبر راکړی خو دوه مسلمانانو جګړه کوله . نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایه چه څهٔ درے دپاره راغلے وم چه تاسو ته دشبِ قدر خبر درکړم خو فلانکی فلانکی په خپل مینځ کښې جهګړه کوله دهغوی په وجه د هغے مقرر تیا اُوچته کړے شوه . کیدے شی چه دا اُوچتوالے دَ الله تعالیٰ په علم کښې بهتروی . اُوس دغه شپه په نهمه ، او اُوومه ، او پنځمه شپه کښې تلاش کوئ .

**فائدہ :-** په دے حدیث کښې درے خبرے دَغور قابلے دی .

**اَوّل** خبره چه هغه دټولونه اَهمه ده هغه جهګړه ده چه دومره زیات بد خیز دے چه دهغے په وجه همیشه دپاره دشبِ قدر مقرر تیا اُوچته کړے شوه . او صرف دغه نهٔ بلکه جهګړه همیشه دپاره دبرکتونو نه دَمحرومئ سَبب ګرزی . دنبی کرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه تاسو ته دَمونځ ، روژے ، صدقے وغیره نه بهتر څیز اُونبایم ؟ صحابه رضی الله عنهم عرض اُوکړهٔ ضرور . نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه په خپل مینځ کښې ښهٔ سلوک دټولونه بهتر دے او په خپل مینځ کښې جنګ جهګړه کول دَدین خروُنکے ده . یعنی څنګه چه په چاړهٔ دَسَر ویښتهٔ زر صفا شی ، په خپل مینځ کښې جنګ سره دین هُم دغسے صفا کیږی ، دَدُنیادار و اودین نه بے خبرو خلقو یه څهٔ وایے چه دَ دیرو اُودرو اُږدو تسپو اړوُنکی ددین دعوید ارهُم هروخت په خپل مینځ کښې په جهګړه کښې اَخته اُوسی . اُول خو دنبی کرم صلی الله علیه وسلم ارشاد په غور سره اُوګورئ ، بیا دے خپل دین فکر اُوکړئ چه دهغے په غرور کښې دَصلح دمنلو توفیق نهٔ کیږی . په اول فصل کښې دروژے په آدابو کښې تیرشوی دی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دمسلمانانو بے عزتئ کولو ته بد ترین او خبیث ترین سُود ارشاد فرمایلے دے خو مونږ خلق دجنګ په زور کښې نهٔ دمسلمانانو دعزت پروا کوؤ او نهٔ د الله تعالیٰ او دهغهٔ دریښتنی رسول صلی الله علیه وسلم د ارشاد اتو خیال ساتو . په خپله د الله جل شانهٔ ارشاد دے وَلَا تَنَازَعُوْا فَتَفْشَلُوْا اَلْاٰيَة . او جهګړے مهٔ کوئ کنی کم همته به شئ او قوت به مو

لرشي. (بيان القرآن) نن هغه خلق چه د نورو د عزت کمولو په فکر کښ اوسي، خاص له ډکيني خوره اوکړي چه په خپله هغه خپل عزت ته څومره نقصان رسوي، او دے ناپاکه کمينه حرکتونو په وجه د الله تعالیٰ په نظر کښ څومره ذليله کيږي. او بيا د دُنيا ذلت خو بشکاره دے. د نبي کريم صلی الله عليه وسلم ارشاد دے چه څوک مسلمان رورسره د درے ورځو نه زيات تعلق پريږدي که په دے حالت کښ مړ شولو نيغ به دوزخ ته ځي. په يو حديث کښ راغلي دي چه د هرگل او د زيارت په ورځ د الله تعالیٰ په حضور کښ د بندګانو عملونه پيش کيږي او د الله جل شانهٗ په رحمت (د نيکو عملونو په برکت) د مُشرکانو نه علاوه د نورو بخښنه کيږي، خو د کومو دوه وکسانو په مينځ کښ چه جهګړه وي د هغوي د بخښنے متعلق ارشاد کيږي چه دوي پريږدئ ترڅو پورے چه صلح اونه کړي. په يو حديثِ پاک کښ ارشاد دے چه د هرگل او زيارت په ورځ د عملونو پيشي کيږي په هغه کښ د توبه کونکو توبه قبليږي او د استغفار کونکو استغفار قبلولے شي، خو په خپل مينځ کښ جهګړه کونکي په خپل حال پريښودلے شي. يو ځاے ارشاد دے چه شبِ برات يعني د شوقدر د مياشتے په پنځلسمه شپه کښ د الله تعالیٰ عام رحمت مخلوق طرف ته متوجه کيږي او د يو لړ ډير بهانه) د مخلوق مغفرت کولے شي خو د دوه کسانو مغفرت نه کيږي يو کافر، دويم د هغه چا چه چا سره کينه ساتي. يو ځاے ارشاد دے چه درے کسان دي چه د هغوي مونځ د قبوليت د پاره د هغوي د سر نه يو لويشت هم پورته نه ځي چه په هغوي کښ يے په خپل مينځ کښ جهګړه کونکي هم فرمايلي دي. دا ځاے د هغے ټولو روايتونو د نقل کولو نه دے. دا يو څو روايتونه م دے د پاره اوليکل چه په مونږ خلقو کښ (د عوامو ذکر نه دے) په خواصو کښ او په هغے خلقو کښ چه شريفان دي او دينداره ګڼړلے شي، د هغوي مجلسونه او د راجمع کيد ځايونه (يعني حجرے بيټهکونه) د هغوي غم بنادئ د دے کمينه حرکت نه ډک دي. فَإِلَى اللهِ الْمُشْتَكَىٰ وَاللهُ الْمُسْتَعَانُ.

خو د دے ټولو نه پس دا هم معلومېدل ضروري دي چه دا ټولے دشمنئ او جهګړے د دُنيا په وجه وي که د چا د فسق په وجه يا خدائ ديني فائده رسولو په وجه چا سره

تعلق پریږدی نو جائز دے. حضرت اِبنِ عُمر رضی اللہ عنہ یو واریے د نبی کرم ﷺ
ارشاد نقل کړو، نو هغه خوئ په هغے دا سے یو لفظ اُو وئیلو چه په ظاهرکښ په
حدیث اعتراض ؤو. نو حضرت اِبنِ عُمر رضی اللہ عنہ ترمرګه پورے هغه سره خبرے اُونه کړے.
نور هم ډیرے قسمه واقعات دَ صحابه کرامو رضی اللہ عنہم نه ثابت دی خو الله تعالیٰ چه
اولید وئکے، د زړه نو حال په بنه شان پیژنی او بنه ترے خبردار دے چه کوم
تعلق پرے غورول د دین له خاطره دے اوکوم دخپلے دبدبے او شان دکموالی او دلوئی
په وجه دے. داسے خو هر سړے دَ خپلے کینے او بغض دین طرف ته نسبت کولے شی.
دویمه خبره چه د پورتنی حدیث نه معلومیږی هغه دَ حِکمتِ اِلٰهی په
مخکښ رضا او قبلول او منل دی. سره د دے چه شب قدر مُقرّرتیا پټیدل ئے ظاهره
دو یرلوئ خیر اُو چتیدل دی. خو چه د الله تعالیٰ د طرفه دی نو ځکه د نبی کرم ﷺ
ارشاد مصحه کیدے شی خو دا پاره همدغه بهتره دی. ډیر د عبرت او غور
مُقام دے، د الله جلّ شانهٗ رحیم او کریم ذات په بنده هر وخت مهربانه دے
که چرے بنده دخپلو بد عملو په وجه په څهٔ مُصیبت کښ ګیر شی بیا هم الله
جلّ شانهٗ طرف ته لږه غوندے توجه او دخپلے عاجزئ اقرار کولو ته پس دالله
تعالیٰ کرم شاملِ حال کیږی او هغه مُصیبت یے هم دلوئ خیر سبب اُوګرزولے
شی او د الله تعالیٰ دپاره هیڅ څیز هم ګران نهٔ دے.
عالمانو دلیلةُ القدر په پټوالی کښ یو څو مصلحتونه ارشاد فرمائیلی دی.
اوّل داکهٔ چرے مقررتیا یے په حال پاتے شوے وے نو ډیر نا راست طبیعتو
به داسے وے چه د نورو شپو عبادت به یے بالکل پریخے وے، او بس دغے به یے
کولو. او چه پټه شوه نو په دے اُمید کښ چه کیدے شی نن شپه دَ قدر روی نو د
طلب خاوندانو ته دډیرو شپو دَ عبادت کولو توفیق نصیب کیږی.
دویم داچه ډیر داسے خلق دی چه بغیر د ګناه کولو نه پاتے کیږی، نو که
دا شپه معلومه وے، او بیا یے په کښ په ګناه زړه ورتیا کولے، نو دا به ډیره
خطرناکه خبره وه. نبی کرم ﷺ یو ځلے جمات ته تشریف راوړهٔ، یو
صحابی رضی اللہ عنہ اُوده ؤو، نو نبی ﷺ حضرت علی کرم اللہ وجهه ته اُو فرمائیل دے ویخ کړه

چه اُودس اُوکړی . حضرت علی کرّم الله وجهه ویښ کړو ، خو دَ نبی اکرم ﷺ نه یې تپوس اُوکړو چه تاسو خو دَ خیر کارونو خواته ویر کړندی تلونکی یئی ، نو تاسو په خپله ولے ویښ نه کړو ؟ نبی اکرم ﷺ ورته اُوفرمایل ، څوک نه چه انکار یې کړے وے نو خدا دَوینا په انکار به کافر شوے وُو ، او ستاذ ویلو په انکار باندے نه کافر کیدلو . نو دغه شان د الله جلّ شانهٗ رحمت دا اُوغوښتله چه دَ دغه بزرگه شپے دَ معلومیدو نه پس څوک دَ ګناه کولو زړه ورتیا اُوکړی .

دریم دا چه دَ مقرر تیا په حالت کښې که چرے دچا نه دغه شپه اِتفاقاً پاتے کیدے نو په راتلونکو شپو کښې به دَ غم وغیره په وجه بیا دَ هیڅ یو شپے هم ویښول ورته نصیب کیدل . او اوس خو د رمضان یو دوه شپے کم نه کم هر چا ته شو کیږه نصیب کیږی .

څلورم دا چه څومره شپے په طلب کښې تیریږی د دے ټولو مستقل ثواب ورته جُدا جُدا ورکولے شی .

پنځم دا چه د رمضان په عبادت کښې الله جَلّ شانهٗ په ملائکو فخر کوی ، لکه څنګه چه تیرشوو روایتونو کښې معلومه شوے ده . په دے حالت کښې د فخر کولو زیاته موقعه ده چه بندګان سره دَ نا معلومتیا صِرف په شک او خیال ټوله شپه رُوښږدِی او عبادت کښې مشغول اُوسی . چه هر کله په اُمید دومره کوشش کوی ، نو که چرے ورته خودلے شوے وے چه دا دَ قدر شپه ده نو چه بیا به د دوی دکوششونو څهٔ حال وے . د دے نه علاوه نورهم مَصلحتونه کیدے شی . هم د داسے کارونو دکبله د الله تعالیٰ دا عادت جاری دے چه د دے قِسمه اَهَم څیزونه یې پټ ساتلی دی لکه څنګه چه اِسمِ اعظم یې پټ ساتلے دے . همدغسے دَ جُمعے په ورځ یو خاص وخت چه دُعا قبلیدو دے ، پټ یې ساتلے دے . نورهم ډیر څیزونه په دے کښې شامل دی . دا هم مُمکنه ده چه دَ جګړے په وجه یې دِ دے خاص رمضان المبارک کښې مقرر تیا هیره کړے شوے وی ، او د دے نه پس د نورو تیرو شوو مَصلحتونو په وجه یې دَ همیشه دپاره مقرر تیا لرے کړے شوے وی .

دریمه خبره چه په دے حدیثِ پاک کښې راغلی ده چه د شپِ قدر دَ تلاش دپاره د درے شپو ارشاد دے نهمه ، اُووَمه ، پنځمه . دَ نورو روایتونو شاملولو سره

دومره خبره خو ثابته شوه چه دا دے وارہ شپے دَ اخری عشرے دی۔ خو د دے نه پس بیا یو څو اُمیدونه دی چه اخری عشره کښ که چرے د اول نه شمیر کړے شی نو د حدیث نه مُراد یوکم دیرشمه، اوه ویشتمه، پنځه ویشتمه شپه کیږی۔ او که چرے د اخرنه شمار کړے شی لکه څنګه چه د بعضو الفاظونه معلومیږی، نو بیا دیوکم دیرشو ورځو میاشتے په حالت کښ یو ویشتمه، درویشتمه، پنځه ویشتمه کیږی۔ او د دیرشو ورځو میاشتے په حالت کښ دوه ویشتمه، څلیرویشتمه شپږ ویشتمه کیږی۔ د دے نه علاوه په مقررتیا کښ روایتونه ډیر مختلف دی۔ او په دے وجه د عالمانو په مینځ کښ په دے باره کښ ډیرځه اختلاف دے۔ لکه څنګه چه پروړاندے یے ذکر تیر شوے دے چه پنځوشو ته نزدے د عالمانو اقوال دی، د ډیرو روایتونو په بُنیاد دَ محققینو په نزد د اختلاف وجه دا ده چه دا شپه یو تاریخ پورے خاصه نهٔ ده بلکه مختلف کلونو کښ په مختلفو شپو کښ راځی په دَ هغے دوجے روایتونه مختلف دی چه هرکال نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د هغه کال متعلق په مختلفو شپو کښ د تلاش کولو حکم فرمایلے دے، او په بعضے کلونو کښ په مقرر طور هم ارشاد فرمایلے دے لکه چه د اَبُو هُرَیْرَه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په یو روایت کښ دی چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په مجلس کښ یو ځلے د شپ قدر ذکر راغے نو نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل چه نن کوم تاریخ دے؟ عرض اُوکړے شو چه دوه ویشتم دے۔ وِے فرمایل چه په نن شپه کښ یے تلاش کړئ۔ حضرت اَبُو ذَر رضی الله عنه فرمایی چه ما نبی اکرم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه شپ قدر دَ نبی د زمانے سره خاص وی یا رُستو به هم وی؟ وِے فرمایل چه ترقیامته پورے به وی۔ ما عرض اُوکړو چه د رمضان په کومه حصه کښ ده؟ وے فرمایل چه عشرهٔ اوّل (یعنی رومبنو لسو شپو کښ) یا عشرهٔ اٰخر (یعنی رُستنو لسو شپو) کښ تلاش کوئ۔ بیا نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په نورو خبرو کښ مشغول شو۔ ما چه موقعه بیا مُونده، عرض مِ اُوکړو چه دا خو اُبنا یئ چه دَ عشرے په کومه حِصه کښ به وی۔ نو نبی صلی الله علیه وسلم دومره ناراضه شو چه نهٔ د دے نه وړاندے ما نه دومره خفه شوے وُو نهٔ رُستو، او وِے فرمایل که الله جل شانهٔ ته دا خودنه مقصود وے نو ولے خودلے به یے نهٔ وه۔ رُستنو اُوو شپو کښ یے تلاش کوئ۔ دد دے

نه پس نور تپوس مه کوئ. یو صحابی رضی الله عنه ته نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د[٢٣] درویشتمه شپه په مقرر طور اُخودله. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه زهٔ اُوده وم، ماته په خوب کښ چا اُووے چه پاسه، نن شپ قدر دے. زهٔ په تلوار پاسیدم، د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم خدمت کښ حاضر شوم، نو هغوی د مانځه نیت تړلے وُو، او دا د[٢٣] درویشتمه شپه وه. بعضے روایتونو کښ مقرر طور سره[٢٤] څلیرویشتمه شپه کیدل هم معلومیږی.

د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ارشاد دے چه څوک کالوسر د شپے ویښ وی هغه شپ قدر بیامُوندے شی (یعنی شپ قدر په ټول کال کښ گردش کوی. چا اُبی بن کعب رضی الله عنه ته دا خبره اُوکړه نو هغوی اُوفرمایل چه د ابن مسعود رضی الله عنه غرض دا دے چه چرته په یوه شپه صبر اُونه کړی. بیا یے قسم اُوخوړه او وئے فرمایل چه هغه د اُوویشتم رمضان په شپه وی. دغسے د ډیرو صحابو رضی الله عنهم او د تابعینو رحمهم الله رائے ده چه شپه د قدر د اُوویشتم رمضان شپه ده. د اُبی بن کعب رضی الله عنه تحقیق هم دا دے. کنی د ابن مسعود رضی الله عنه تحقیق هغه دے چه کالوسر د شپے څوک ویښ پاتے شی هغه یے معلوموَلے شی. او د دُرِّ منثور ټیو روایت نه معلومیږی چه هغه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه هم د انقل کوی. په اماما نو کښ د حضرت امام ابو حنیفه رحمة الله علیه مشهور قول هم دا دے چه شپه د قدر په ټول کال کښ گردش کوی. دویم قول د امام اعظم رحمة الله علیه دا دے چه دا په ټول رمضان کښ گردش کوی. د صاحبینو رحمهما الله قول دا دے چه په ټول رمضان کښ یوه شپه ده چه هغه مقرره ده خو معلومه نهٔ ده. د امام شافعی رحمة الله علیه د مذهب راجح قول دا دے چه په یو[٢١] ویشتمه شپه کښ لیدل یے زیات نزدے دی. د امام مالک او امام احمد بن حنبل رحمهما الله قول دا دے چه د رمضان آخری عشرے په طاقو (یعنی ناتکو) شپو کښ گردش کوی، یو کال کښ په یوه شپه کښ او بل کال کښ په بله شپه کښ وی. د جمهورو عالمانو رائے دا ده چه زیات اُمید یے په اُوویشتمه[٢٧] شپه کښ دے. شیخ العارفین محی الدین ابن عربی رحمة الله علیه فرمائی چه زما په نزد د هغه خلقو وینا زیاته صحیح ده چه څوک دا وائی چه په ټول کال کښ گردش کوی. ځکه چه ما دوه واره په شعبان کښ لیدلے ده. یو واره په پنځلسمه[١٥] یو واره په نولسمه او دوه واره د رمضان په مینځنی

عشره کښې دیارلسمه او اتلسمه شپه کښې. او د رمضان په اخری عشره کښې هره طاقه شپه کښې ېې هم لیدلے ده. نو ځکه ځما دا یقین دے چه د کال په شپو کښې گرځي راګرځي. خو د رمضان المبارک په میاشت کښې اکثر موندلے کیږي. ځمونږ حضرت شاه ولی الله رحمة الله علیه ارشاد فرمائي چه شب قدر په کال کښې دوه وارے وي. یوه هغه شپه ده چه په هغې کښې د الله تعالیٰ حکمونه نازلیږي او په هغې شپه کښې قرآن شریف د لوح محفوظ نه د دُنیا آسمان ته نازل شوے دے. دا شپه رمضان سره خاصه نه ده په ټول کال کښې گردش کوي، خو په کوم کال کښې چه قرآن پاک نازل شو په هغې کال رمضان المبارک کښې وه او اکثر په رمضان المبارک کښې وي. او دویم شب قدر هغه دے چه په هغې کښې د روحانیت یو خاص خوریدل وي او ملائکې ډیرے په زمکه راکوزیږي او شیطانان لرے لرے اوسي. دُعاګانے او عبادتونه قبلیږي. دا په هر رمضان کښې وي او د اخری عشرے په طاقو شپو کښې وي او بدلیږي رابدلیږي. ځما والد صاحب رحمة الله علیه دا قول غوره ګنړلو.

په هر حالت کښې شب قدر یو وي او که دوه، هر چا له د خپل همت او طاقت موافق په ټول کال کښې د دې په تلاش کښې کوشش پکار دے. که دا نشي کولے نو په ټول رمضان کښې یے لټول پکار دي. که دا هم مشکله وي نو اخری عشره غنیمت ګنړل پکار دي. که دومره هم نشي کیدے نو د اخری عشرے طاق شپے د لاسه نه ورکول غواړي. الله تعالیٰ د نه کړي که دا هم نشي کیدے نو او ویشتمه شپه خو په هر حال کښې لوئ غنیمت ګنړل پکار دي. که چرے د الله پاک تائید شاملِ حال شي، او چا خوش نصیبه دا شپه بیاموندله، نو بیا د ټولے دُنیا نعمتونه او راحتونه د دے په مقابله کښې هیڅ هم نه دي. که بیا یے نه موندله، بیا هم د ثواب نه خالي نه ده. خصوصاً د ماښام د ماسخوتن مونځ جمع سره په جماعت کښې د ادا کولو اهتمام خو هر چا له ټول کال ډیر زیات ضروري کول پکار دي. که خوش قسمتۍ سره په شب قدر کښې دا دواړه مونځونه د جمع سره اوکړے شو نو څومره ډیر د جمع د مونځونو ثواب به بیاموي. دا الله تعالیٰ څومره لوئ اِنعام دے که په یو دیني کار کښې کوشش اوکړے شي نو د ناکامیابۍ په حالت کښې هم د دے کوشش ثواب ورته ضرور

وَرکیږی۔ خوسره دې ګڅومره د همت خاوندان دي چه دین پسې لګیا لے دي او د دین د پاره ډیرې او کوششونه کوی، او د دې په مقابله کښې د دُنیوی غرضونو د پاره کوشش نه پس که نتیجه یې را اُونه ځي نو هغه کوشش یې بے کاره او ضائع شو۔ ولے سره د دے بیا هم څومره خلق دي چه د دُنیوی اغراضو، فضول او بے کاره کارونو حاصِلولو د پاره خان او مال دواړه برباد وی۔ ع

ببین تفاوتِ رہ از کجاست تا بہ کجا

"اُوګوره د لارے فرق د کوم ځائی نه کوم ځائی پورے دے"

⑥ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَأَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ فَقَالَ فِيْ رَمَضَانَ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ فَإِنَّهَا فِيْ لَيْلَةِ وِتْرٍ فِيْ إِحْدٰى وَعِشْرِيْنَ أَوْ ثَلَاثٍ وَّعِشْرِيْنَ أَوْ خَمْسٍ وَّعِشْرِيْنَ أَوْ سَبْعٍ وَّعِشْرِيْنَ أَوْ تِسْعٍ وَّ عِشْرِيْنَ أَوْ اٰخِرِ لَيْلَةٍ مِّنْ رَمَضَانَ مَنْ قَامَهَا إِيْمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ وَمِنْ أَمَارَاتِهَا أَنَّهَا لَيْلَةٌ بَلْجَةٌ صَافِيَةٌ سَاكِنَةٌ سَاجِيَةٌ لَا حَارَّةٌ وَّلَا بَارِدَةٌ كَأَنَّ فِيْهَا قَمَرًا سَاطِعًا وَّلَا يَحِلُّ لِنَجْمٍ أَنْ يُّرْمٰى بِهٖ تِلْكَ اللَّيْلَةَ حَتَّى الصَّبَاحِ وَمِنْ أَمَارَاتِهَا أَنَّ الشَّمْسَ تَطْلُعُ صَبِيْحَتَهَا لَا شُعَاعَ لَهَا مُسْتَوِيَةً كَأَنَّهَا الْقَمَرُ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَحَرَّمَ اللّٰهُ عَلٰى

حضرت عُبَادَه رضی الله عنه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه د شبِ قدر په باره کښې پوښتنه اُوکړه نو نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمائیلو چه د رمضان د آخری عشرے په ناتاکې شپو کښې ده۔ یو ویشتمه، درویشتمه پنځه ویشتمه، اُووه ویشتمه، یو کم دیرشمه۔ یا د رمضان په آخری شپه کښې ده۔ څوک چه د ایمان سره او د ثواب په نیت په دې شپه کښې عبادت اُوکړی، د هغه د رُستی تول ګناهونه معاف کړے شی۔ د دے شپے د هغے نورو نښونه یوه دا ده چه دغه شپه به روښانه او فراخه وی، صفا سُتره، نه به ډیره ګرمه نه به ډیره یخه بلکه میانه معتدله، ګویا په هغے کښې د رڼا او د ډیر والی په وجه لکه چه) سپوږمۍ ښکاره راختلے ده او په دغه شپه کښې تر سحره پورے د اسمان په ستورو شیطانان نه ویشتلے کیږی۔ او د هغے د نښونه دا هم ده چه د دې نه پس به د سحر نمر بغیر د پلوشو راخیژی، داسے بالکل هموار د ګلوری په شان به وی لکه څنګه چه د څوارلسمے شپے سپوږمۍ وی۔ الله جل شانه

الشَّيْطٰنِ اَنْ يَّخْرُجَ مَعَهَا يَوْمَئِذٍ.
(در منثور عن احمد والبیہقی ومحمد بن نصر وغیرہم)

د مځې ورځې نمر ختلو په وخت کښې شیطان د هغه سره د راوتلو نه منع کړې (په خلاف د نورو ورځو چه د نمر راختو په وخت کښې شیطان هغه خائې ظاهرېږي.)

فائده :- د دے حدیث اول نے مضمون خو تېر شو او روایتونو کښې ذکر شوې دې چه د هغې مطلب صفا دے. په آخر کښې یې د شبِ قدر یو څو نښې ذکر کړي دي چه د هغې مطلب صفا دے. په بعضې نښې روایتونو کښې د څه وضاحت محتاج نه دے. د دے نه علاوه نورے هم بعضې نښې روایتونو کښې اود هغې خلقو په کلام کښې ذکر کړے شوې دي چا ته چه د دے شپې دولت نصیب شوے دے. خصوصًا د دے نه پس چه د سحر نمر راخیژي نو بغیر د پلوشونه راخیژي. دا نښه د حدیثونو په ډیرو روایتونو کښې راغلې ده او همیشه مونده شي. د دے نه علاوه نورے نښې لازمي او ضروري نه دي. عَبْدَةُ بنِ اَبِي لُبَابَه رضی الله عنه فرمائي چه ما د رمضانُ المُبارَك په اووېشتمه شپه د سمندر اوبه او څکلې نو بالکل خوږے وے. اَيُّوبَ بنِ خَالِد رحمۃ اللہ علیہ فرمائي چه ما ته د لمبلو ضرورت پېښ شو ما د سمندر په اوبو غسل اوکړو، نو بالکل خوږے وے او دا د درویشتمې شپې قصه ده. عالمانو لیکلي دي چه په شبِ قدر کښې هر یو څیز سجده کوي تردے چه وَنے په زمکه راپرېوزي، او بیا په خپل ځائې اودرېږي. خو د دے څیزونو تعلق کشف سره دے، هر چا ته نه محسوسېږي.

⑦ عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم اَرَاَيْتَ اِنْ عَلِمْتُ اَيُّ لَيْلَةٍ لَيْلَةُ الْقَدْرِ مَا اَقُوْلُ فِيْهَا قَالَ قُوْلِيْ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّيْ. (رواہ احمد وابن ماجۃ والترمذی وصححہ کذا فی المشکوٰۃ)

حضرت عائشه رضی الله عنها د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړو چه اے د الله رسوله! (صلی الله علیه وسلم) که ما ته د شبِ قدر پته اولګي، نو څه دُعا اوغوارم؟ نبی علیه السلام ورته د اَللّٰهُمَّ نه تر اٰخره پورے دُعا اوخودله چه د هغې ترجمه دا ده. اے الله! ته بیشکه معاف کونکے یې او معاف کول خوښوې. پس ما ته هم معافي اوکړې.

فائده :- ډېره ښه جامع دُعا ده. الله جل شانهٔ په خپل لطف وکرم د آخرت

رمطالبے نه معافي اُوكړي، نو دے نه زيات نورځهٔ پكار دی. ے

من نه گويم كه طاعتم بپذير ❁ قلم عفو بر گناهم كش

مُنه وايم چه طاعت مِ كړه قبول ❁ قلم دَعفو په گُناه مِ كړه راكش

يعنې را كاگه او بخښنه راته اُوكړه.

حضرت سُفيان ثوري رحمة الله عليه فرمائي چه په دغے شپه كښې دنورو عبادتونو په نِسبت په دُعا كښې مشغوليدل زيات بهتر دي.

اِبنِ رَجَب رحمة الله عليه فرمائي چه صِرف دُعا دِ نهٔ غواړي بلكه مختلف عبادتونه جمع كول ورته غوره دي. مثلاً تلاوت، مونځ، دُعا او مُراقبه وغيره. ځكه چه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه د اتول كارونه ثابت دي. هُم دا قول زيات نزدے دے چه په تيرو شوو حديثونو كښې دَمونځ، ذكر وغيره څيزونو فضيلت تير شوے دے.

# دریم فصل

## داعتكاف په بيان كښې

په جُمات كښې د اِعتكاف په نيت ايسار يدو ته اعتكاف وائي. د حنفيانو په نزد دے درے قسمه دي. يو واجب دے چه دَ نذر يعني منتے د وجے وي لكه چه داسے اُووائي كه چرے فلانكے كار مِ اُوشو، نو د ومره ورځے اعتكاف به اُوكړم. يا په څهٔ كار دَشرط لګولو نه بغير داسے اُووائي چه ما د ومره ورځے اعتكاف په ځان لازم كړو. دا (اعتكاف) واجب شي. او د څومره ورځو نيت چه يے كړے وي، د هغے پوره كول ضروري دي. دويم قسم سُنت دے چه د روژے د مياشتے د اخري لسو ورځو دے چه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم عادتِ مُباركه په دے ورځو كښې د اِعتكاف كولو وو. دريم اعتكاف نفل دے چه د هغے د پاره نهٔ څهٔ وخت شته او نهٔ دَ ورځو مقدار. څومره ورځے چه زړهٔ غواړي اُودِ كړي. تر دے چه كهٔ څوك ټول عُمر د اِعتكاف نيت اُوكړي، بيا هُم جائز دے. البته په كمي كښې يے اِختلاف دے. د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد د يوے ورځے نه كم جائز نهٔ دے. خو د امام محمد رحمة الله عليه په نزد

دلبر، ساعت هم جائز دے او په دے فتوٰی ده. په دے وجه هرچا ته دا مناسبه ده
چه کله جماعت ته داخلیږی نو د اعتکاف نیت دِ کوی. چه ترڅو پورے په مانځه
کښې مشغول وی د اعتکاف ثواب به ورته هم ملاویږی. ماخپل والد صاحب
رحمه الله لیدلے وُو چه هغهٔ به همیشه د دے اهتمام کولو، چه کله به جماعت ته
داخلیدهٔ نو د ښئی خپه د ننه کولو سره به یې د اعتکاف نیت کولو. ډیر ځله به
یې زَ خادمانو د تعلیم په غرض په زوره نیت کولو. د اعتکاف ډیر زیات ثواب
دے او د دے فضیلت به د دے نه زیات نور څهٔ وی چه نبی اکرم ﷺ به همیشه
د دے اهتمام کولو. د اعتکاف کونکی مثال د هغه چا په شان دے چه څوک د چا په دَرکښې
پریوزی، چه ترڅو پورے هم درخواست نه وی قبول شوے، زَ خوزیدونه یم. ـــ

گل جائیں دم تیرے قدموں کے نیچے ✦ یہی دل کی حسرت یہی آرزو ہے

ساه دِ م ستا د قدمونو لاندے اُوزی ✦ دا د زړهٔ م دے ارمان دا م آرزو ده.

که په حقیقت کښې د احال وی نو د سخت نه سخت زړهٔ خاوند به هم نرم شی.
(د الله جَلَّ شَانُهٗ کریم ذات خو د بخشش د پاره بهانے لټوی، بلکه بے بهانو یے ورکوی. ـــ

تو وه داتا ہے کہ دینے کے لئے ✦ در تری رحمت کے ہیں ہر دم کھلے

ته دورکړے هغه ذات یې چه د پاره ستا دورکړے ✦ دَ رَوُنه د رحمت دِ پرانستلی هر یو دَم

خدا کی دین کا موسیٰ سے پوچھئے احوال ✦ کہ آگ لینے کو جائیں پیمبری مل جائے

د الله دورکړے د موسٰی نه اُوپوښتئ احوال ✦ تلے اُور پسے وُو پیغمبری ورته ملاؤ شوله

په دے وجه څوک چه دُنیا پریږدی، د الله جَلَّ شَانُهٗ په دروازه کښې پریوزی،
نو بیا هغهٔ ته په ورکولو کښې څهٔ وخت لګی، او الله جل شانهٔ چه په چا باندے انعام
اُوکړی د هغهٔ د پوخزانو بیان څوک کولے شی. وے نه پس دَ وینا نه عاجزیم ځکه
چه نامرد دَ بلوغ کیفیت څهٔ بیانولے شی. خو البته چه دا کلکه اراده اُوکړی. ـــ

جس گل کو دل دیا ہے جس پھول پر فدا ہوں ✦ یا وه بغل میں آئے یا جان قفس سے چھوٹے

کوم گل ته م زړهٔ ورکړو کوم گل باندے فدا یم ✦ یا هغه م خواته راشی یا م رُوح د تن جدا شی

اِبنِ قیّمؒ رحمه الله فرمائی چه د اعتکاف مقصد او د هغے رُوح زړهٔ د الله تعالٰی
پاک ذات سره تړل دی چه د ټولو طرفو نو نه لرے صرف الله تعالٰی سره پیوست

شي او دَ ټولو مشغولا کانو په بدله کښې هغې پاک ذات سره مشغول شي، او د هغهٔ نه ماسِوا تعلق قطع کړي. او دا سے پکښې اُولګي چه د ټولو خيالونو فکرونو په ځائ د هغهٔ پاک ذکر او د هغهٔ مُحبت پکښې کيني، تر دے چه مخلوق سره د مينې په بدله کښې الله تعالىٰ سره مينه پيدا شي چه دا مينه به د قبر په وَحشت (يعني ويره) کښې په کار راشي. چه په دغه ورځ به د الله تعالىٰ د پاک ذات نه سِوا نهٔ څوک مينه کونکے ملګرے اونهٔ د زړهٔ خوشحالونکے وی. کهٔ زړهٔ الله تعالىٰ سره بُلد شوے وی نو څومره به په خوند وَخت تيريږی. ـــه

جی ڈھونڈتا ہے پھر وہی فرصت کہ رات دن ✦ بيٹھا رہوں تصوّرِ جاناں کئے ہوئے

زړهٔ م لټوی هغه شپے ورځے دَ فرصت ✦ تصوّر د خپل جانان چه پکښې ناست يمه کومه

د مَرَاقِي الفَلَاح مُصَنِّفْ رحمة الله عليه فرمائي چه اعتکاف کهٔ چرے په اخلاص دی نو دا دَ بهترينو عملونو نه دے. د دے خصوصيات د شمير دَ حَد نه بهَر دی ځکه چه په دے کښې زړهٔ دَ دُنيا او څهٔ چه په دُنيا کښې دی د هغې نه يو طرف ته کړل دی او نفس الله پاک ته سپارل دی او د هغهٔ په دَرشل باندے پرتوتل دی. ـــه

پھر جی میں ہے کہ در پہ کسی کے پڑا رہوں ✦ سر زیر بارِ منت درباں کئے ہوئے

زړهٔ م غواړی چه د چا په دَر کښې پروت وے ✦ سَرم لاندے په مِنت د دربانې وے

دغه شان په اعتکاف کښې هر وخت په عبادت کښې مشغولتيا ده چه د بنده خوب او ويښه هر وخت عبادت کښې شماريږی او الله تعالىٰ ته نزديکت دے. حديث (قدسی) کښې راغلی دی (الله تعالىٰ فرمائي) چه څوک ما طرف ته يو لويشت را نزدے کيږی نو زهٔ ورته يو لاس ورنزدے کيږم او چه څوک ما طرف ته يو لاس را نزدے کيږی نو زهٔ ورته دوه لاسه ورنزدے کيږم. او چه څوک ما طرف ته (روان) را روان شی نو زهٔ هغهٔ طرف ته په منډه ورځم (يعنی خپله رحمت ورځی) دغه شان په دے (اعتکاف) کښې د الله تعالىٰ په کور کښې ديره کيدل دی. او مِهربان کوربه هميشه کور ته دراتلونکی کس قدر او عزت کوی. او دغه شان مُعتکِف د الله تعالىٰ په قلعه کښې محفوظ وی چه دَ دُشمن رسيدل هلته پورے نشی کيدے وغيره وغيره. ډير زيات فضيلتونه او خاصيتونه د دے اَهَم عبادت دی.

**مسئله:-** د سړي د اعتکاف دپاره د ټولو نه غوره ځائې د مکے مکرمے جماعت دے، بیا د مدینے منورے جماعت، بیا د بیت المقدس جماعت دے. دد ے نه پس جامع مسجد، بیا خپل جماعت دے. د امام اعظم رحمة الله علیه په نزد د اهم شرط دے چه په کوم جماعت کښ اعتکاف کوی په هغے کښ د پنځه وخته د جمع مونځ کیږی. او د صاحبینو (یعنی امام ابویوسف او امام محمد) رحمهما الله په نزد شرعی جماعت کیدل کافی دی، اګرچه په کښ د جمع مونځ نه کیږی. او زنانو له د خپل کور د مانځه ځائې کښ اعتکاف کول پکار دی. که چرے په کور کښ د مانځه دپاره ځائې مقرر ځائې (یعنی ګونګچه یا تخته پوش) نه وی نو یو کوټ دِ ورله خاص کړی. زنانو دپاره اعتکاف د نارینو په نسبت زیات آسان دے. چه په کور کښ په ناسته ناسته د کور کارونه دِ هم د جینکو وغیره نه اخلی او د مفتو ثواب دِ هم ګټی خو سره د دے زنانه د دے سنتو نه ګویا بالکل محرومے اوسی.

① عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِعْتَكَفَ الْعَشْرَ الْأَوَّلَ مِنْ رَمَضَانَ ثُمَّ اعْتَكَفَ الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ فِيْ قُبَّةٍ تُرْكِيَّةٍ ثُمَّ أَطْلَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ إِنِّيْ اعْتَكَفْتُ الْعَشْرَ الْأَوَّلَ أَلْتَمِسُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ اعْتَكَفْتُ الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ ثُمَّ أُتِيْتُ فَقِيْلَ لِيْ إِنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ فَمَنْ كَانَ اعْتَكَفَ مَعِيَ فَلْيَعْتَكِفِ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ فَقَدْ أُرِيْتُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ أُنْسِيْتُهَا وَقَدْ رَأَيْتُنِيْ أَسْجُدُ مِنْ مَاءٍ وَّطِيْنٍ مِنْ صَبِيْحَتِهَا فَالْتَمِسُوْهَا فِي الْعَشْرِ

حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه وائی چه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د رمضان المبارک په اولنی عشره کښ (رومبو لسو ورځو کښ) اعتکاف اوکړو. بیا یې په دویمه عشره کښ هم. بیا یې د ترکی خیمے نه کومه کښ چه یې اعتکاف کولو، سر بهر راکښلو ارشاد یې اوفرمایه چه ما د اولنی عشرے اعتکاف د شپ قدر د تلاش او اهتمام د کبله کړے وو، بیا م هم د هغے وجه په دویمه عشره کښ اوکړو، بیا ما ته چا خبر ورکړو (یعنی فرشتے) او خودله چه هغه شپه آخری عشره کښ ده. د دے کبله کوم خلق چه ما سره اعتکاف کوی، هغوی دِ د آخری عشرے اعتکاف هم اوکړی. ما ته دا شپه خودلے شوے وه بیا رانه هیره کړے شوه (د هغے نښه دا ده) چه ما خپل ځان د دغے

الْاَوَاخِرِ وَالْتَمِسُوا فِیْ کُلِّ وِتْرٍ قَالَ فَمَطَرَتِ السَّمَاءُ تِلْکَ اللَّیْلَةَ وَکَانَ الْمَسْجِدُ عَلٰی عَرِیْشٍ فَوَکَفَ الْمَسْجِدُ فَبَصُرَتْ عَیْنَایَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ وَعَلٰی جَبْهَتِهٖ اَثَرُ الْمَاءِ وَالطِّیْنِ مِنْ صَبِیْحَةِ اِحْدٰی وَعِشْرِیْنَ۔

شپے نه پس سحر په ختو کښ سجده کوَلکے اولیدهٔ نوځکه یے اوس تاسو د اخری عشرے په طاقو (ناتکنی) شپو کښ لټوئ۔ راوی وائی چه په دغه شپه باران اوشو او جُمات دخَپَر وو، هغه اوڅڅیدهٔ، ما په خپلو سترګو د نبی اکرم ﷺ تندی مُبارک باندے د خټو اثر د یوویشتے شپے په سحر اولیدهٔ۔

(مشکوٰة عن المتفق علیه باختلاف اللفظ)

**فائده:**۔ د نبی اکرم ﷺ عادت مُبارک همیشه د اعتکاف کولو وو خو په دے میاشت کښ یے ټوله میاشت اعتکاف اوکړو۔ او په کوم کال چه د دُنیا نه یے تشریف اوړلو، په هغه کال یے شل ورځے اعتکاف کړے وُو۔ خو اکثر عادتِ شریفه یے په اخری عشره کښ د اعتکاف پاتے شوے دے۔ نوځکه د عالمانو په نزد سُنتِ مؤکده هم دا دے۔ پورتنی حدیث نه دا هُم معلومه شوه چه د اعتکاف لوئ غرض د شبِ قدر تلاش دے او په حقیقت کښ اعتکاف دے د پاره زیات مُناسب دے۔ که د اعتکاف په حالت کښ سړے اوده هم وی بیا هم په عبادت کښ شمارېږی۔ بله دا چه په اعتکاف کښ تلل راتلل اخوا دیخوا کارونه هُم نه وی نو د عبادت او د الله تعالیٰ د یاد نه علاوه به بله مشغله هم نه پاتے کیږی۔ نوځکه د شبِ قدر د قدر کوونکو د پاره د اعتکاف نه بهتر بل شکل نشته۔ نبی اکرم ﷺ اول خو به په ټول رمضان کښ د عبادت ډیر زیات اهتمام او کثرت کولو خو په اخری عشره کښ به یے څه حد نه وو۔ په خپله به ټوله شپه ویښ وُو او د کور د خلقو د ویخولو به یے هُم اهتمام کولو۔ لکه څنګه چه د صحیحینو د ګڼرو روایتونو نه معلومیږی۔ د بخاری او مُسلم په یو روایت کښ حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه اخری عشره کښ به نبی اکرم ﷺ لنګ مضبوط اوتړلو او شپے به یے روښانه کړلے، او د خپل کور خلق به یے هُم ویخول۔ د لنګ مضبوط تړلو مطلب مُراد په عبادت کښ زیات کوشش کول هم کیدے شی او بیا نو نه بالکل ځان ساتل هم مُراد کیدے شی۔

(۲) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِی الْمُعْتَکِفِ هُوَ یَعْتَکِفُ الذُّنُوْبَ وَ یُجْرٰی لَهٗ مِنَ الْحَسَنَاتِ کَعَامِلِ الْحَسَنَاتِ کُلِّهَا (مشکوٰة عن ابن ماجة)

حضرت اِبْنِ عَبَّاس رضی الله عنهما وائی چه نبیِ کَرِیم صلی الله علیه وسلم د مُعْتَکِف (یعنی اعتکاف کونکی) بارہ کښ ارشاد اُوفرمایهٔ چه هغه د ګناهونو نه محفوظ اُوسی. او د هغهٔ دپاره نیکئی د ومره لیکلے شی، لکه څومره چه د کونکی دپاره (لیکلے شی)

**فَائِدَه:-** د اعتکاف دوه خاصے فائدے په دے حدیث کښ ارشاد شوی. یَوَه دا چه د اِعتکاف په وجه د ګناهونو نه حفاظت کیږی. کنی ډیر ځلے د کوتاهئی او د غلطئی په وجه داسے اسباب پیدا شی چه په هغے کښ بنده په ګناه کښ خامخا اَخته شی. او دا سے مُبارك وخت کښ د ګناه کیدل څومره لوئ ظُلم دے. د اعتکاف په وجه د هغے نه اَمَن او حفاظت کیږی. دویمه دا چه ډیر نیک عملونه لکه په جَنازه کښ شریکیدل، د مریض پوښتنه کول وغیره داسے کارونه دی چه په اعتکاف کښ د کیناستلو په وجه مُعْتَکِف نشی کولے. د دے دپاره د اعتکاف په وجه چه د کوم عبادتونو نه پاتے شو د هغے ثواب به ورته بغیر د کولو ورکولے شی. اَللّٰهُ اَکْبَرُ. څومره د الله جَلَّ جَلَالُهٗ رحمت او سخاوت دے چه یو عبادت بنده کوی او د لسو عبادتونو ثواب ورته ورکیږی. په حقیقت کښ د الله پاك رحمت بهانے لټوی او په لږ شان توَجُّه او غوښتنه په شیبو وریږی.

به بہانہ می دہد نہ بہانہ دہد "په بهانه ورکوی او په قیمت نهٔ ورکوی"

خو مونږ خلقو سره د سَرَه د دے قدر نشته، ضرورت یے نهٔ ګنړو، توَجُّه څوك اُوکړی، او و لے اُوکړی چه د دِین قدر زمونږ په زړونو کښ نشته. ؎

اُس کے الطاف تو ہیں عام شہیدی سب پر ✤ تجھ سے کیا ضد تھی اگر تو کسی قابل ہوتا

د هغهٔ مهربانئی شهیدی عامے دی په ټولو ✤ تا سره یے څهٔ ضد وُو خو که ته څه قابل وَے

(۳) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهٗ کَانَ مُعْتَکِفًا فِیْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَاَتَاهُ رَجُلٌ فَسَلَّمَ عَلَیْهِ ثُمَّ جَلَسَ فَقَالَ لَهُ ابْنُ

حضرت اِبْنِ عَبَّاس رضی الله عنهما یو ځل مسجدِ نبوی کښ مُعْتَکِف وُو، یو سړے ورله راغے اَسلام یے واچوو او (بیا چپ چاپ) کیناستو. حضرت ابنِ عَبَّاس رضی الله عنهما ورته اُوفرمایل راے فلانکیه!

عَبَّاسٍ رضي الله عنه يَا فُلَانُ اَرَاكَ مُكْتَئِبًا حَزِيْنًا قَالَ نَعَمْ يَا ابْنَ عَمِّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم لِفُلَانٍ عَلَيَّ حَقٌّ وَلَا وَحُرْمَةِ صَاحِبِ هٰذَا الْقَبْرِ مَا اَقْدِرُ عَلَيْهِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنه اَفَلَا اُكَلِّمُهُ فِيْكَ قَالَ اِنْ اَحْبَبْتَ قَالَ فَانْتَعَلَ ابْنُ عَبَّاسٍ ثُمَّ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ قَالَ لَهُ الرَّجُلُ اَنَسِيْتَ مَا كُنْتَ فِيْهِ قَالَ لَا وَلٰكِنِّيْ سَمِعْتُ صَاحِبَ هٰذَا الْقَبْرِ صلى الله عليه وسلم وَالْعَهْدُ بِهٖ قَرِيْبٌ فَدَمَعَتْ عَيْنَاهُ وَهُوَ يَقُوْلُ مَنْ مَشٰى فِيْ حَاجَةِ اَخِيْهِ وَبَلَغَ فِيْهَا كَانَ خَيْرًا لَّهٗ مِنْ اِعْتِكَافِ عَشْرِ سِنِيْنَ وَمَنِ اعْتَكَفَ يَوْمًا اِبْتِغَاءَ وَجْهِ اللّٰهِ جَعَلَ اللّٰهُ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ النَّارِ ثَلٰثَ خَنَادِقَ اَبْعَدَ مِمَّا بَيْنَ الْخَافِقَيْنِ۔ (رواه الطبراني في الاوسط والبيهقي واللفظ له والحاكم مختصرا وقال صحيح الاسناد كذا في الترغيب وقال السيوطي في الدر صححه الحاكم وضعفه البيهقي)

چه څهٔ تا غمژن او پریشانه وینم څهٔ خبره ده؟ هغهٔ اُووے، اے د رسول الله صلى الله عليه وسلم د تره ځویه! بے شکه پریشانه یم چه د فلانکی په ما باندے حق دے او (د نبی کریم صلى الله عليه وسلم قبر مبارك طرف ته یے اشاره اُوکړه اُووے ویل چه) د دے قبر د خاوند په عزت مې قسم وی چه څهٔ د دغے حق اداکولو وَس نهٔ لرم۔ حضرت ابن عباس رضي الله عنه اُوفرمایل چه آیا څهٔ هغهٔ ته ستا سفارش اُوکړم؟ هغهٔ عرض اُوکړو څنګه چه تا سو مناسب ګنړئ۔ ابن عباس رضي الله عنه چه د اخبره واؤریده، نو پیزار یے په خپو کړهٔ، د جُمات نه یے بهر تشریف یوړهٔ۔ هغهٔ سړی عرض اُوکړو چه تا سو خپل اعتکاف هیر کړو۔ وے فرمایل، هیر کړے مې نهٔ دے بلکه ما د دے قبر د صاحب (صلى الله عليه وسلم) نه اُوریدلی دی او لا څهٔ زیاته زمانه نهٔ ده تیره شوے (د دے لفظ په ویلو سره) د ابن عباس رضي الله عنه د سترګو نه اوښکے روانے شوے چه نبی صلى الله عليه وسلم فرمایل چه څوك د خپل رورپه حاجت کښې اُوزی او کوشش کوی۔ د ا هغهٔ د پاره د لسو کالو د اعتکاف نه ډیر بهتر دے۔ او څوك چه یو ورځ د الله تعالی د رضا د پاره اعتکاف اُوکړی نو الله د ده او د دوزخ تر مینځه درے خندقونه حائل کړی چه د هغے فاصله به د آسمان او زمکے تر مینځه فاصلے نه زیاته پلنه وی۔ (او چه د یوے ورځے د اعتکاف دا فضیلت دے نو د لسو کالو د اعتکاف به څومره ښهٔ مقدار وی)۔

فائده: د دے حدیث نه دوه مضمونونه معلوم شول۔

له فقلت في النسخة التي بايدينا بلفظ حرف النفي وهو الصواب عندي لو جوده ولعله في بعض النسخ بلفظ واو بالهمزة او مغيرة وهو تصحيف عندي من الكاتب وعليه كذا ذكرنا هو تحت شرحه الشيخ رحمه الله تعالی۔

اول دا چه دیوے ورځے د اعتکاف ثواب دا دے چه الله جَلَّ شَانُهٗ د هغهٔ او دوزخ ترمینځه درے خندقونه جوړ کړی او هر یو خندق به د ومره لوئ وی څومره چه تول جهان - او دیوے ورځے نه زیات څومره چه د زیاتو ورځو اعتکاف وی، هغه هومره به ثواب زیات وی. علّامه شعرانی رحمة الله علیه په کَشْفُ الْغُمَّة کښ دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړے دے چه څوک د رمضان د آخری عشرے اعتکاف اوکړی هغهٔ ثواب دَ دوؤ حجونو او د دوؤ عُمرو دے - او چه څوک په داسے جمات کښ چه د اِمامتٔ موقع پکښ کیږی، د ماښام نه تر ماسخوتنه پورے اعتکاف اوکړی چه د موقع او د قرآن د تلاوت نه علاوه چا سره خبرے نهٔ کوی الله جَلَّ شَانُهٗ به هغهٔ د پاره په جنّت کښ یوه ماڼئ جوړه کړی۔

دویمه خبره چه هغه د دے نه هُم زیاته اَهَمه ده هغه د مسلمانانو ما خستونه پورے کول دی چه د لسو کالو د اعتکاف نه یے بهتر ارشاد فرمائیلے دے. د دے وجه اِبن عبّاس رضی الله عنه د خپل اِعتکاف پرواۂ نهٔ ساتله چه د دے پوره ولے بیا هُم کیدے شی او قضا یے مُمکنه ده. د دے کښله د صوفیانو وینا ده چه د الله جَلَّ شَانُهٗ په نزد چه د مات شوی زړهٔ څومره قدر دے هغه هومره د بل څیز نشته. هُم دا وجه ده چه د مظلوم دَ خبرونه په حد یثونو کښ دیر ویرول شوی دی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به چه څوک حاکم جوړ کړو، او لیږو به یے نو د نورو نصیحتونو سره به یے ورته دا هُم فرمایل، وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ چه د مظلوم دَ خیرونه ځان ساته. ے

بترس از آهِ مظلوماں کہ ہنگامِ دُعا کردن ✦ اجابت از درِ حق بہرِ استقبال مى آید

د او د مظلومانو نه یرېږه چه خیرے کړی ✦ قبلید لے د الله نه استقبال سره راځی

د دے ځائے کښ دیوے مَسئلے خیال ساتل ضروری دی چه د چا مسلمان د حاجت پوره کولو د پاره هُم جمات نه په وتلو اعتکاف ماتیږی، او که چرے اعتکاف واجب وی نو د هغے قضا واجب ده. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به د ضرورتِ بشری نه علاوه د بل څهٔ ضرورت د پاره د جمات نه نهٔ وتلو. د حضرت اِبنِ عبّاس رضی الله عنه دا ایثار چه د بل په وجه یے خپل اعتکاف مات کړو، دا هُم دَ داسے خلقو د پاره مُناسب ده چه د نورو په خاطر په خپله د تندے د لاسه اُوتر تیږی مرهٔ شی، خو د اُوبو آخری قطره یے څکه

اُو نه شکله چه بل د زخمي ورسره پروت دے، هغه څمانه ورانده ږي. دا هم ممکن ده چه دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا اِعتکاف نفلي وُو. په داسې حالت کښې خو بيا، آو وخځه اشکال نشته. په خاتمه کښې يو اوږد حديث چه په هغې کښې تمام قسم فضائل ارشاد فرمايلي دي، ذِکر کولو نه پس دا رِساله ختموَلے شي۔

# خاتمه

(۴۳) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ الْجَنَّةَ لَتُبَخَّرُ وَتُزَيَّنُ مِنَ الْحَوْلِ اِلَى الْحَوْلِ لِدُخُوْلِ شَهْرِ رَمَضَانَ فَاِذَا كَانَتْ اَوَّلُ لَيْلَةٍ مِّنْ شَهْرِ رَمَضَانَ هَبَّتْ رِيْحٌ مِّنْ تَحْتِ الْعَرْشِ يُقَالُ لَهَا الْمُثِيْرَةُ فَتَصْفِقُ وَرَقُ اَشْجَارِ الْجِنَانِ وَحِلَقُ الْمَصَارِيْعِ فَيُسْمَعُ لِذٰلِكَ طَنِيْنٌ لَّمْ يَسْمَعِ السَّامِعُوْنَ اَحْسَنَ مِنْهُ فَتَبْرُزُ الْحُوْرُ الْعِيْنُ حَتّٰى يَقِفْنَ بَيْنَ شُرَفِ الْجَنَّةِ فَيُنَادِيْنَ هَلْ مِنْ خَاطِبٍ اِلَى اللّٰهِ فَيُزَوِّجَهُ ثُمَّ يَقُلْنَ الْحُوْرُ الْعِيْنُ يَا رِضْوَانَ الْجَنَّةِ مَا هٰذِهِ اللَّيْلَةُ فَيُجِيْبُهُنَّ بِالتَّلْبِيَةِ ثُمَّ يَقُوْلُ هٰذِهِ اَوَّلُ لَيْلَةٍ مِّنْ شَهْرِ رَمَضَانَ فُتِحَتْ اَبْوَابُ الْجَنَّةِ لِلصَّائِمِيْنَ مِنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَيَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ يَا رِضْوَانُ افْتَحْ

حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دے چه هغوی د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم نه دا اِرشاد په فرمايلو واوريدو چه جنت ته د رمضان شريف د پاره د خوشبو يولوګي ورکولے شي، د کال د شروع نه د کال اخره پورے د رمضان په خاطر ښائسته کولے شي. پس هر کله چه د رمضان المبارک اوله شپه وي نو دَ عرش د لاندے نه يوه هوا اُوچليږي چه دَ هغې نوم مُثيره دے (چه د هغې د چپو په وجه) دَ جنت د وُنو پانړے او د دروازو حلقے يو بل سره جنګيږي او د هغې نه داسے ښکلے زړه راښکونکے سُرناک آواز راأوځي چه اوريدونکو به د هغې نه به آواز چرے نه دي اوريدلے. پس دښائسته سترګو ميرمنے حورے د خپلو کورونو نه راأوځي او دَ جنت د بالاخانو په مينځ کښې اودريدي او آواز کوي چه څوک دالله تعالیٰ په دربار کښې مونږ سره کوږدن کوونکي شته چه الله تعالیٰ يې مونږ سره جوړه کړي. بيا هغه حورے د جنت دارُوغه رضوان نه تپوس کوي چه دا څنګه شپه ده؟ هغه په لبيک ويلو سره جواب ورکوي چه د رمضان المبارک

أَبْوَابَ الْجِنَانِ وَيَا مَالِكُ أَغْلِقْ
أَبْوَابَ الْجَحِيْمِ عَنِ الصَّائِمِيْنَ
مِنْ أُمَّةِ أَحْمَدَ ﷺ وَيَا جِبْرَئِيْلُ
اهْبِطْ إِلَى الْأَرْضِ فَاصْفِدْ مَرَدَةَ
الشَّيٰطِيْنِ وَغُلَّهُمْ بِالْأَغْلَالِ ثُمَّ
اقْذِفْهُمْ فِي الْبِحَارِ حَتّٰى لَا يُفْسِدُوْا
عَلٰى أُمَّةِ مُحَمَّدٍ حَبِيْبِيْ ﷺ صِيَامَهُمْ
قَالَ وَيَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ فِيْ كُلِّ
لَيْلَةٍ مِّنْ شَهْرِ رَمَضَانَ لِمُنَادٍ
يُنَادِيْ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ هَلْ مِنْ
سَائِلٍ فَأُعْطِيَهُ سُؤْلَهُ هَلْ مِنْ
تَائِبٍ فَأَتُوْبَ عَلَيْهِ هَلْ مِنْ
مُسْتَغْفِرٍ فَأَغْفِرَ لَهُ مَنْ يُّقْرِضُ
الْمَلِيَّ غَيْرَ الْعَدُوْمِ وَالْوَفِيَّ غَيْرَ
الظَّلُوْمِ قَالَ وَلِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ فِيْ
كُلِّ يَوْمٍ مِّنْ شَهْرِ رَمَضَانَ عِنْدَ
الْإِفْطَارِ أَلْفُ أَلْفِ عَتِيْقٍ مِّنَ النَّارِ
كُلُّهُمْ قَدِ اسْتَوْجَبُوا النَّارَ فَإِذَا كَانَ
آخِرُ يَوْمٍ مِّنْ شَهْرِ رَمَضَانَ أَعْتَقَ
اللّٰهُ فِيْ ذٰلِكَ الْيَوْمِ بِقَدْرِ مَا أَعْتَقَ
مِنْ أَوَّلِ الشَّهْرِ إِلٰى آخِرِهِ وَإِذَا
كَانَتْ لَيْلَةُ الْقَدْرِ يَأْمُرُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ
جِبْرَئِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَيَهْبِطُ فِيْ كَبْكَبَةٍ
مِّنَ الْمَلٰئِكَةِ وَمَعَهُمْ لِوَاءٌ أَخْضَرُ
فَيَرْكُزُ اللِّوَاءَ عَلٰى ظَهْرِ الْكَعْبَةِ وَلَهُ

اول شپه ده. د جنت دروازے محمد ﷺ
د امت روژه دارو دپاره (ټن) پرانستے شوے.
نبی ﷺ اوفرمایل چه الله جل شانه رضوان
ته فرمائی چه د جنت دروازے پرانیزه. او مالك
(یعنی د دوزخ داروغه) ته فرمائی چه د احمد
ﷺ د امت په روژه دارو د دوزخ دروازے
بندے کړه او جبرئیل علیه السلام ته حکم کیږی چه
زمکے ته کوز شه او سرکش شیطانان قید کړه او په
غاړه کښ ورله زنځیرونه واچوه، او په دریاب
کښ یے اوغورزوه چه زما د محبوب محمد ﷺ
د امت روژے خرابے نه کړی. نبی اکرم ﷺ
دا هم ارشاد اوفرمایه چه الله جل شانه د رمضان
په هره شپه کښ یو آواز کونکی ته حکم کوی چه درے
ځله د آواز اوکړه چه څوك غوښتونکے شته چه هغه
ته ورکړم. څوك توبه کونکے شته چه د هغه توبه قبوله
کړم. څوك بخښنه غوښتونکے شته چه د هغه بخښنه
اوکړم. څوك دے چه داسے غنی ته قرض ورکړی چه
نادار نه دے، او داسے پوره پوره ادا کونکے دے چه
یوه ذره هم کمے نه کوی. نبی ﷺ اوفرمایل چه
الله جل شانه رمضان شریف کښ هره ورځ د
روژه ماتی په وخت کښ داسے لس لکهه کسان د
دوزخ نه آزادوی چه کوم د دوزخ مستحق شوی وو،
او کله چه د رمضان آخری ورځ شی نو الله پاك په
دغه ورځ هغه هومره کسان آزادوی څومره چه
د رومبئ ورځے د رمضان نه ترننه پورے یے د دوزخ

بِاَنَّ جَنَاحَ وَّمِنْهَا جَنَاحَانِ لَا يَنْشُرُهُمَا اِلَّا فِيْ تِلْكَ اللَّيْلَةِ فَيَنْشُرُهُمَا فِيْ تِلْكَ اللَّيْلَةِ فَيُجَاوِزَانِ الْمَشْرِقَ اِلَى الْمَغْرِبِ فَيَحُثُّ جِبْرَئِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ الْمَلٰٓئِكَةَ فِيْ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ فَيُسَلِّمُوْنَ عَلٰى كُلِّ قَائِمٍ وَّقَاعِدٍ وَّمُصَلٍّ وَّذَاكِرٍ وَّيُصَافِحُوْنَهُمْ وَيُؤَمِّنُوْنَ عَلٰى دُعَآئِهِمْ حَتّٰى يَطْلُعَ الْفَجْرُ فَاِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ يُنَادِيْ جِبْرَئِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ مَعَاشِرَ الْمَلٰٓئِكَةِ الرَّحِيْلَ الرَّحِيْلَ فَيَقُوْلُوْنَ يَا جِبْرَئِيْلُ فَمَا صَنَعَ اللّٰهُ فِيْ حَوَائِجِ الْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اُمَّةِ اَحْمَدَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُ نَظَرَ اللّٰهُ اِلَيْهِمْ فِيْ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ فَعَفَا عَنْهُمْ وَغَفَرَ لَهُمْ اِلَّا اَرْبَعَةً فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ هُمْ قَالَ رَجُلٌ مُّدْمِنُ خَمْرٍ وَّعَاقٌّ لِّوَالِدَيْهِ وَقَاطِعُ رَحِمٍ وَّمُشَاحِنٌ قُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْمُشَاحِنُ قَالَ هُوَ الْمُصَارِمُ فَاِذَا كَانَتْ لَيْلَةُ الْفِطْرِ سُمِّيَتْ تِلْكَ اللَّيْلَةُ لَيْلَةَ الْجَائِزَةِ فَاِذَا كَانَتْ غَدَاةُ الْفِطْرِ بَعَثَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ الْمَلٰٓئِكَةَ فِيْ كُلِّ بِلَادٍ فَيَهْبِطُوْنَ اِلَى الْاَرْضِ فَيَقُوْمُوْنَ عَلٰى

نه ازاد کړی شوی وو . او چه کومه شپه دَ قدر روی نو الله جَلَّ شَانُهٗ جبرئیل علیه السلام ته حُکم اُوکړی . هغه د فرښتو یو لوئی لښکر سره په زمکه را کوزیږی . هغوی سره یو ه شنه جهنډا وی . هغه دَ کعبې په چهت نخښه کړی او د جبرئیل علیه السلام سل وزرې دی . په هغې کښ د وه وزرې صرف په دغه شپه کښ پرانیزی چه دَ مشرق نه تر مغربه پورې خورې کړی . بیا جبرئیل علیه السلام فرښتو ته ترغیب ورکوی چه کوم مسلمان په نن شپه کښ ولاړ دی یا ناست وی . مونځ کوی یا ذکر کوی هغوی ته سلام اُوکړئی او مُصافحه ورسره اُوکړئی ، او دَ هغوی په دُعا کانو آمین اُووایئی ، تر سحره پورې دا حالت وی . چه سحر شی نو جبرئیل علیه السلام آواز ورکړی . اے د فرښتو ډلګیه ! کوچ کوئی او ځئی . فرښتې د جبرئیل علیه السلام نه تپوس اُوکړی چه الله تعالیٰ دَ احمد صلی الله علیه وسلم دَ اُمت مؤمنانو حاجتونو او ضرورتونو کښ څهٔ معامله اُوکړه . هغه ورته اُووائی چه الله تعالیٰ په هغوی په دِے شپه کښ توجُه اُوفرمایله او دَ څلورو کسانو نه علاوه ے ټول معاف کړل او بخښنه یے ورته اُوکړه . صحابه رضی الله عنهم تپوس اُوکړو ، اے د الله رسوله صلی الله علیه وسلم هغه څلور کسان څوک دی ؟ وے فرمایل یو هغه کس دَ چه مدام شرابی وی . دویم هغه چه د مور پلار نافرمانی کوی . دریم هغه دے چه خپلوانو سره خپلولی پریکړې کړې وی . څلورم هغه کس چه کینه ساتی ،

أَفْوَاهِ السِّكَكِ فَيُنَادُوْنَ بِصَوْتٍ يَسْمَعُ مَنْ خَلَقَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا الْجِنَّ وَالْإِنْسَ فَيَقُوْلُوْنَ يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ أُخْرُجُوْا إِلٰى رَبٍّ كَرِيْمٍ يُعْطِي الْجَزِيْلَ وَيَعْفُوْ عَنِ الْعَظِيْمِ فَإِذَا بَرَزُوْا إِلٰى مُصَلَّاهُمْ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ لِلْمَلٰٓئِكَةِ مَا جَزَاءُ الْأَجِيْرِ إِذَا عَمِلَ عَمَلَهٗ قَالَ فَتَقُوْلُ الْمَلٰٓئِكَةُ إِلٰهَنَا وَسَيِّدَنَا جَزَآءُهٗ أَنْ تُوَفِّيَهٗ أَجْرَهٗ قَالَ فَيَقُوْلُ فَإِنِّيْ أُشْهِدُكُمْ يَا مَلٰٓئِكَتِيْ أَنِّيْ قَدْ جَعَلْتُ ثَوَابَهُمْ مِنْ صِيَامِهِمْ شَهْرَ رَمَضَانَ وَقِيَامِهِمْ رِضَآئِيْ وَمَغْفِرَتِيْ وَيَقُوْلُ يَا عِبَادِيْ سَلُوْنِيْ فَوَعِزَّتِيْ وَجَلَالِيْ لَا تَسْأَلُوْنِي الْيَوْمَ شَيْئًا فِيْ جَمْعِكُمْ لِآخِرَتِكُمْ إِلَّا أَعْطَيْتُكُمْ وَلِدُنْيَاكُمْ إِلَّا نَظَرْتُ لَكُمْ فَوَعِزَّتِيْ لَأَسْتُرَنَّ عَلَيْكُمْ عَثَرَاتِكُمْ مَا رَاقَبْتُمُوْنِيْ وَعِزَّتِيْ وَجَلَالِيْ لَا أُخْزِيْكُمْ وَلَا أَفْضَحُكُمْ بَيْنَ أَصْحَابِ الْحُدُوْدِ وَانْصَرِفُوْا مَغْفُوْرًا لَكُمْ قَدْ أَرْضَيْتُمُوْنِيْ وَرَضِيْتُ عَنْكُمْ فَتَفْرَحُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَتَسْتَبْشِرُ بِمَا يُعْطِي اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ

او په کورنئ کښې تعلق پریکونکے وی۔ او بیا چه دوړکوټې اختر شپه شی نو د دے نوم (په آسمانونو کښې) لَیْلَةُ الْجَائِزَة (یعنی د انعام په شپه) اخستے شی۔ او چه د اختر سحر شی نو الله جَلَّ شَانُهٗ فرښتے ټولو ښهرونو ته اولیږی هغوی زمکے ته راکوزے شی، په ټولو کوڅو او د لارو په سرونو اودریږی او په داسے آواز چه پیریانو او بنیادمونه علاوه به یے هر یو مخلوق اوری، آواز ونه کوی او وائی چه اے د محمد ﷺ امته! د هغه کریم رب (د درګاه) طرف ته روان شئ چه ډیر زیات ورکونکے دے، او لوئ نه لوئ قصور معاف کونکے دے، بیا چه کله خلق عیدګاه طرف ته اوزی نو الله جَلَّ شَانُهٗ د فرښتونه پوښتنه اوکړی چه د هغه مزدور څهٔ بدله ده چه خپل کار یے پوره کړے وی۔ هغوی عرض اوکړی چه خمونږ معبوده! خمونږ مالکه! د هغه بدله همدغه ده چه هغهٔ ته مزدوری پوره پوره ورکړے شی۔ نو الله جَلَّ شَانُهٗ ارشاد فرمائی چه اے فرښتو! تاسو ګواه کوم، ما دوی ته د رمضان د روژو او د تراویحو په بدله کښې خپله رضا او مغفرت ورکړو او بندګانو ته الله جَلَّ شَانُهٗ خطاب کوی او فرمائی چه اے خما بندګانو! ما نه اوغواړئ. خما د په خپل عزت قسم وی، خما د په خپل جلال قسم وی چه نن ورځ په دے اجتماع کښې ما نه د خپل آخرت په باره کښې چه کوم سوال کوئ ورکوم به، او د

هٰذِهِ الْأُمَّةِ إِذَا أَفْطَرُوْا مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ (كذا في الترغيب وقال رواه أبو الشيخ بن حيان في كتاب الثواب والبيهقي واللفظ له وليس في اسناده من أجمع على ضعفه قلت قال السيوطي في التدريب قد التزم البيهقي ان لا يخرج في تصانيفه حديثا يعلمه موضوعا الخ وذكر القاري في المرقاة بعض طرق الحديث ثم قال فاختلاف طرق الحديث يدل على ان له اصلا اهـ)

دَنیا په باره کښې چه کوم سوال کوئی په هغې کښې به ستاسو مصلحت ته کورم ـ خما دَعزت قَسَم، ترڅو پورے چه تاسو خما خیال ساتئ ځۀ به ستاسو په غلطو پَردہ اَچَوم (او هغه به پټوم) خما دعزت قَسم، خما دجلال قَسم، ځۀ به تاسو دَ مجرمانو (او کافرانو) په مخکښې رَسوا او شرمنده نۀ کړم ـ اُوس تاسو مخښلی شوی کورونو ته والپس لاړشئ ـ تاسو ځۀ راضی کړم او ځۀ تاسو نه راضی شومه ـ پس فرښتے چه دا اَجرو ثواب اُووینی چه کوم دے اُمت ته دَ اَخترپه ورځ وَرکیږی، خوشحالئ کوی، او ډیرے ته زیری ورکوی ـ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِنْهُمْ ـ

**فائده:-** ددے حدیث اکثر مضامین ددے رسالے په تیرو شوو پانړو کښې بیان شوی دی ـ البته یو څو خبرے دَغور قابلے دی چه په هغې کښې دَ ټولو نه اَوّله او اَهَمه خبره دَادہ چه ډیر محرومه خلق د رمضان دعام مغفرت نه مُستثنیٰ (یعنی ایستلے شوی) دی، لکه څنګه چه مخکښې روایتونو نه معلومه شوے ده ـ هغوی دَ اَختر ددے عام مغفرت نه هم مُستثنیٰ کړے شو چه په هغې کښې په خپل مینځ کښې جهګړه کوونکی او دمور پلار نافرمانه هم دی ـ دَدوی نه دِ څوک تپوس اُوکړی چه تاسو الله پاک ناراضه کړو نو ځان له مو د اَستوګنے کوم ځائ ګټلے دے ـ په تاسو هم اَفسوس او ستاسو په هغې عزت هم چه دهغې دعا صلوٰلو غلط خیال کښې تاسو دنبی اکرم ﷺ خیرے برداشت کوئی ـ دجبرئیل علیه السلام خیرے اَخلئی ـ دَالله تعالیٰ درحمت او عام مغفرت نه هم ایستلے کیږئ ـ ځۀ تپوس کوم چه نن تاسو خپل دُشمن ته ملتے ورکړه، خپل برییت مو پرے اُوچت کړه، دا ترڅو مره ورځو پورے تاسو سره پاتے کیدے شی ـ هرکله چه دَالله تعالیٰ خوږ رسول ﷺ په تاسو باندې لعنت کوی ـ دَالله تعالیٰ مُقَرّبه فرښته تاسو ته دِ هلاکت خیرے کوی ـ الله جل شانه تاسو دِ خپل مغفرت او رحمت نه اُوباسی ـ دَالله تعالیٰ دپاره فکر اُوکړئ او بَس کړئ ـ

دمحرومۍ ورك شوے كه ما ښام كورته راشي هغهٔ ته ورك نشي ويلے. نن وخت دے كنے يے پوره كړه، كيدے شي اوس باهركله چې ووځۍ آگاه مړ پيښې ته تلل دي چه هلته نهٔ دعزت او نهٔ د رُعب تپوس شته، او نهٔ مال او سامان پكار راځي. هلته صِرف ستاسو دعملونو تپوس دے، او هرحركت به مو ليك ليكلے مخكښې وي. الله جَلَّ شَانُهٗ په خپلو حقونو كښې مُعافي كوي خو دبندګانو په خپل مينځ كښې ديو بل حقونه بغير بدلے وركولو نهٔ پريږدي. دنبي اكرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه خما په اُمت كښې مُفلس هغه څوك دے چه دقيامت په ورځ دنيكو عملونو سره راشي، او مونځونه روژے، صدقے هرڅهٔ راوړي خو چاته يے كنځل كړے وي، په چا يے تُهمت لګولے وي، څوك يے وهلے ټكولے وي. پس دا ټول دعويدار به راشي او دهغهٔ نيك عملونو كښې به ددے حركتونو بدله وصول كړي. او چه هغهٔ سره نيك عملونه ختم شي نوځپلے بدئ به دغے حركتونو په بدله كښې په هغهٔ باندے واچوي. او بيا دے اَمبار په وجه به دوزخ كښې واچولے شي. نو دخپلو ډيرو عملونو باوجود دَ افسوس او نا اُميدئ چه كوم حال دي هغه دبيان محتاج نهٔ دے. ؎

وه مايوس تمنا كيوں نه سوئے آسماں ديكھے ❁ كه جو منزل به منزل اپني محنت رائيگاں ديكھے

نا اُميده ارزو به ولے نه ګوري اسمان ته ❁ چه عَبَثه خپل محنت ګوري منزل په منزل ويني

دويمه خبره دغور قابله دا ده چه په دے رساله كښې يو څو موقعے دمغفرت ذكر كړے شوے دي، او ددے نه علاوه نور هم داسے كارونه دي چه هغه دمغفرت سبب جوړيږي او ګناهونه پرے مُعاف كيږي. په دے باندے يو اعتراض كيږي او هغه دا چه هركله يو وارے ګناهونه مُعاف شو نو دهغے نه پس دويم وارے دَ مُعافئ څهٔ معنٰی؟ ددے جواب دا دے چه دَ مغفرت قاعده دا ده چه هركله دا بندګا طرف ته مُتوجه شي كهٔ په هغهٔ څه ګناه وي نو هغه بخښلے شي. او كهٔ څهٔ ګناه پرے نهٔ وي نو دهغے په مقدار به هغهٔ باندے دَ رحمت او دِ انعام نيا تولے اوشي.

دريمه خبره دا ده چه په ډيرو شوو حديثونو كښې هم بعضے ځايونو كښې او په دے حديث كښې هم الله جَلَّ شَانُهٗ خپل مغفرت كولو باندے فرښتے ګواه كړے دي. ددے وجه دا ده چه دقيامت دعدالت معاملے په قانون قاعدو ايښودلے شوے دي. دَ

انبیاء علیهم السلام نه به د هغوی د تبلیغ باره کښې هم گواهان طلب کولے شي. لکه چې
دخوېشو په کتابونو کښې په ډیرو موقعو نبي کریم ﷺ ارشاد فرمایلے دے چه
تاسو نه به زما باره کښې سوال کیږي نو تاسو گواه اوسئ چه ما درته پیغام
رسولے دے. بخاري شریف وغیره کښې روایت دے چه حضرت نوح علیه السلام
به د قیامت په ورځ را اوبللے شي او پوښتنه به ترے اوکړے شي چه تا د خپل
رسالت حق ادا کړے دے؟ او زما احکام دې رسولي دي؟ هغه به عرض اوکړي
رسولي مې وو. بیا به د هغه د امت نه تپوس اوشي چه تاسو ته یې احکام رسولي وو؟
هغوی به اووائي مَا جَاءَنَا مِنْ بَشِيْرٍ وَّلَا نَذِيْرٍ "چه مونږ ته نه څوک زیرے ورکوونکے
راغلے وو او نه ویروونکے". نو حضرت نوح علیه السلام نه به تپوس اوشي چه خپل گواهان
پیش کړه. هغه به محمد ﷺ او د هغه امت پیش کړي. امتِ محمدیه به را اوبللے
شي او گواهي به اوکړي. بعضے روایتونو کښې راځي چه په هغوی به جرحه اوشي چه
تاسو څنگه خبریږئ؟ چه نوح علیه السلام خپل امت ته احکام رسولي دي. هغوی به عرض
اوکړي چه مونږ رسول (محمد ﷺ مونږ ته خبر راکړے دے) څمونږ رسول ﷺ
باندے چه کوم ربیني کتاب نازل شوے دے په هغے کښې خبر ورکړے شوے دے. دغه
شان به د نورو انبیاء علیهم السلام امت سره هم کیږي. د دے متعلق د الله تعالیٰ ارشاد
دے. وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ أُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ۔

امام فخر الدين رحمة الله عليه ليکي چه په قيامت کښې به گواهي څلور قسمه دي. يوه
د ملائکو چه د هغے متعلق په لاندینو ایتونو کښې ذکر شوے دے. مَا يَلْفِظُ مِنْ
قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيْبٌ عَتِيْدٌ. وَجَاءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَائِقٌ وَّشَهِيْدٌ. وَإِنَّ
عَلَيْكُمْ لَحٰفِظِيْنَ. كِرَامًا كَاتِبِيْنَ. يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ. دويمه گواهي به د انبياء
عليهم السلام وي چه د هغے متعلق ارشاد دے. وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ. فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا
مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰؤُلَاءِ شَهِيْدًا. دريمه به د امتِ محمديه گواهي وي چه د هغے متعلق ارشاد
دے. وَجِايْءَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَاءِ. څلورمه به د بنیادم د خپلو اندامونو گواهي ده چه د هغے متعلق ارشاد دے
يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيْهِمْ الآية. و اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰى أَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيْهِمْ الآية.
د اختصار په خاطر مې د دے ایتونو ترجمه اونه لیکله. د ټولو ایتونو حاصل د قیامت په ورځ

د هغه څیزونو کوا هغې ورکولو ذکر دے چه د هغه بیان ﷺ د ایت په شروع کښې اوشو.

څلورمه خبره په پورتنۍ حدیث کښې دا ارشاد مبارک دے چه خُدایه تاسو دَ کافرانو مخکښې رسوا او شرمنده نه کړم. دا د الله جَلَّ شَانُهٗ انتهائی درجه مهربانی او کرم او د مسلمانانو په حالت غیرت دے چه د الله تعالیٰ د رضا لټونکو د پاره د اهم لطف او انعام دے چه د هغوی په غلطو او ګناهونو باندې هلته هم معافی او پرده اچولے شی.

عَبْدُ الله بن عُمَر رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ نه نقل کوی چه د قیامت په ورځ به الله جَلَّ شَانُهٗ یو مومن خپل نزدے را اوغواړی او په هغه باندے به پرده واچوی. چه بل څوک ئے نهٔ وینی. هغهٔ ته به خپلے غلطۍ او ګناهونه ورپه یاد کړی، او د هر یوے ګناه اقرار به ترے اوکړی او هغه به د خپلو ګناهونو په ډیروالی او اقرار دا اوګنړی چه اوس د هلاکت وختم رانزدے شو. الله جَلَّ شَانُهٗ به ورته اوفرمائی ما په دنیا کښې په تا پرده اچولے وه، نو نن هم په هغے پرده ده او معاف دی. د دے نه پس به د هغهٔ د نیکو عملونو دفتر هغهٔ ته حواله کړے شی.

نور هم په سوونو روایتونو نه دا مضمون معلومیږی چه د الله تعالیٰ رضا تلاش کوونکو او د هغهٔ د احکاماتو پابندی کوونکو غلطۍ معاف کولے شی. د دے وجے په ډیر اهمیت سره په یو مضمون ځان پوهول پکار دی چه کوم خلق د نیکانو بندګانو په کوتاهو د هغوی په غیبت کښې اخته اوسی، هغوی د دے خیال ساتی چه هسے نه د قیامت په ورځ د هغوی د نیکو عملونو په برکت د هغوی غلطۍ خو معاف کړے شی، او پرده پرے واچولے شی. خو ستاسو خلقو عملنامے دَ غیبت نه ډکے د هلاکت سبب اوګرزی. الله جَلَّ شَانُهٗ دِ په خپل فضل سره ځمونږ د ټولو ګناهونه معاف کړی.

پنځمه خبره ضروری دا ده چه په پورتنۍ حدیث کښې د اخترشپه د انعام په شپه یاده شوے ده چه په دغے شپه د الله جَلَّ شَانُهٗ له طرفه خپلو بندګانو ته انعام ورکولے شی. په دے وجه بندګانو له هم د دغے شپے ډیر زیات قدر کول پکار دی. ډیر زیات خلق، د عوامو به څهٔ پتپوس کوے، خواص هم د رمضان ستړی ستومانه په دغے شپه په خوب خوب اوده شی. حال دا دے چه دا شپه هم خصوصیت سره

په عبادت کښې د مشغولېدو وده. د نبي اکرم ﷺ ارشاد مبارک دے چه څوك د دواړو اخترونو شپې د ثواب په نيت ژوندۍ کړي (او عبادت کښې مشغول اوسي) د هغه زړه به په هغه ورځ نه مړي، په کومه ورځ چه به د ټولو زړونه مړه شي. (يعني د فتنې او فساد په وخت چه د خلقو زړونه مړغېږن وي، د ده زړه به ژوندے وي او ممکنه ده چه د شپيلۍ پوك وهلو ورځ ترے مراد وي چه د ده روح به نه بے هوشه کيږي) يو حديث کښې ارشاد دے چه څوك پنځو شپو کښې (عبادت د پاره) ويښ پاتے شي هغه د پاره به جنت واجب شي. لَيْلَةُ التَّرْوِيَه (يعني د اتمے ذي الحجې شپه)، لَيْلَةُ الْعَرَفَه (يعني د نهم ذي الحجې شپه)، لَيْلَةُ النَّحَر (يعني د لسمے ذي الحجې شپه)، د وړکوټي اختر شپه او شبِ برات يعني د پنځلسم شعبان شپه.

فقهاؤ هم د اخترونو په شپه کښې شوکيره مستحب ليکلے ده. کتاب مَا ثَبَتَ بِالسُّنَّة کښې د امام شافعي رحمه الله نه نقل کوي چه پنځه شپې د دعا قبليدو دي. د جمعے شپه، د دواړو اخترونو شپې، د رجب (يعني بزرګے) مياشتے اوله شپه، د شعبان (يعني شوقدر) د مياشتے پنځلسمه شپه.

## تنبيه (خبرداري)

د بعضے بزرګانو ارشاد دے چه په رمضان المبارك کښې د جمعے د شپے هم په خصوصيت اهتمام کول پکار دي چه جمعه او د دے شپه ډير متبرك وختونه دي. په حديثونو کښې د دے ډير فضيلت راغلے دے. خو د دے وجے چه بعضے روايتونو کښې د جمعے شپه د عبادت د پاره خاص کولو باندے ممانعت هم راغلے دے، نو بهتره خبره داده چه يو دوه شپے ورسره نورے هم شاملے کړے شي.

په آخر کښې د دے رسالے کتونکو ته په عاجزۍ درخواست دے چه د رمضان المبارك په خاص وختونو کښې کله چه د خپل ځان د پاره دعا کوي نو دے ګنهګار (يعني حضرت شيخ الحديث رحمه الله) هم په دعا کښې شامل کړي. کيدے شي چه ستاسو د مخلصانه دعا په برکت ما ته هم الله جَلَّ شَانُهٗ خپله رضا او محبت نصيب کړي.

# مناجات

گرچہ میں بدکار و نالائق ہوں اے شاہِ جہاں پر تیرے در کو بتا اب چھوڑ کر جاؤں کہاں
کون ہے تیرے سوا مجھ بے نوا کے واسطے

اے دجهان بادشاه! اگرچه ځه بدکار او نالائق یم، ستا د دَرچه پرېږدم، سما ته اوښایه کوم خوا ته په ځمه. ستا نه ما سوا ځما بے اسرے دپاره څوک دی.

کشمکش سے ناامیدی کی ہواؤں میں تباہ دیکھو مت میرے عمل، کر لطف پر اپنی نگاہ
یارب اپنے رحم و احسان و عطا کے واسطے

دَ نا اُمیدئ په کش مکش کښ ځه تباه شوم. ځما عملونه مه گوره، په خپله مهربانۍ نظر اوکړه، اے رَبه! دخپل رحم و احسان او عطا په واسطے سره.

چرخِ عصیاں سر پہ ہے زیرِ قدم بحرِ الم چار سو ہے فوجِ غم، کر جلد اب بہرِ کرم
کچھ رہائی کا سبب اس مبتلا کے واسطے

په سرم دگناه اسمان دے او د قدم لاندے م دغم دریاب دے. شلور واړو طرفه دغم فوج دے. ډیر زر را باندے خپل کرم اوکړه چه دَ دے مُبتلا دپاره ځه دخلاصی سَبب اُوشی.

ہے عبادت کا سہارا عابدوں کے واسطے اور تکیہ زُہد کا ہے زاہدوں کے واسطے
ہے عصائے آہ مجھ بے دست و پا کے واسطے

دعابد انو دپاره دعبادت تکیه ده او زاهد انو دپاره دزُهد تکیه ده او ما بےلاسو خپو (یعنی بے وَسَه) دپاره دآه همسا ده.

نے فقیری چاہتا ہوں نے امیری کی طلب نے عبادت نے وَرَع نے خواہشِ علم و ادب
دردِ دل پر چاہئے مجھ کو خدا کے واسطے

نه فقیری غوارم او نهٔ م دَ امیرئ طلب شته او نهٔ م دعبادت، پرهیزگارئ دعِلم و ادب خواهش دے، خو د زړهٔ درد دَ الله تعالیٰ دپاره ماله پکار دے.

عقل و ہوش و فکر اور نعمائے دنیا بے شمار کی عطا تُو نے مجھے، پر اب تو اے پروردگار
بخش وہ نعمت جو کام آئے سدا کے واسطے

عقل، هوش، فکر او د دُنیا نعمتونه بے شمیره دی تا ماته راکړی، اُوس اے پروردِگاره! هغه نعمت راته راکړه چه د همیشه دپاره م پکار راشی.

حدسے ابتر ہوگیا ہے حال مجھ ناشاد کا
کر مری امداد، اللہ وقت ہے امداد کا
اپنے لطف ورحمتِ بے انتہا کے واسطے

خما غمګین حال د حد نه زیات خراب شوے دے، اے الله! خما امداد اوکړه د امداد وخت دے، دخپل بے انتها لُطف ورحمت په واسطے سره.

گو میں ہوں ایک بندۂ عاصی غلامِ پُرقصور
جُرم میرا حوصلہ ہے نام ہے تیرا غفور
تیرا کہلاتا ہوں میں جیسا ہوں اے ربِّ شکور
اَنْتَ شَافٍ اَنْتَ کَافٍ فِیْ مُہِمَّاتِ الْاُمُوْرِ
اَنْتَ حَسْبِیْ اَنْتَ رَبِّیْ اَنْتَ لِیْ نِعْمَ الْوَکِیْل

اګرچه زهٔ یو بنده ګنهګار د قصورنه ډک یم. خما جُرم حوصله ده او ستا نوم غفور دے. اے ربه شکوره! هر څهٔ چه یم خوستا بللے شم (یعنی تا طرفته م نسبت کیږی) ته شِفا ورکونکے یے، او ته خما په اهم کارونو کښ کفایت کونکے یے. ته ما لره بَس یے. ته خما رب یے، ته خما ښهٔ وکیل یعنی کارساز یے.

ترجمه کونکے

میاں محمد شفیق غفرلهٗ

دار الشفاء چارسده. ملا تیلی مرکز
ڈاکخانہ شوګر ملز تحصیل وضلع چارسده.

تاریخ دختمید ونظرِ ثانی

۶ ربیع الاول ۱۴۱۵ھ موافق
۱۴ اګست ۱۹۹۴ء په دریم اتوار

لیکونکے

محمد زکریا کاندهلوی

مقیم مظاهر العلوم
سهارنپور
(وارد نظام الدین دهلی)
دلیکلو تاریخ:
۲۷ رمضان المبارک ۱۳۴۹ھ

قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰی

وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيعًا

او ټول يو ځاى شئ د الله تعالىٰ دين مضبوط ونيسئ

پښتو ژبه کښ

# د مسلمانانو

# د موجوده پستئ واحد علاج

تجويز کړے

حضرت مولانا شاه محمد الياس صاحب قدس سرهٔ

اردو کښ مرتب کړے

حضرت مولانا محمد احتشام الحسن صاحب رحمة الله عليه

پښتو کښ ترجمه کړے

مياں محمد شفيق غفرلهٔ (چارسده)

خور ونکے

کتب خانه فيضى لاهور پاکستان

# دحقیقت اظهار

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّیْ عَلٰی رَسُوْلِهِ الْکَرِیْمِ

سَیِّدِیْ وَمَوْلَانِیْ زُبْدَةُ الْفُضَلَاءِ قُدْوَةُ الْعُلَمَاءِ حضرت مولانا **محمد الیاس** صاحب قدّس سرّهٗ خاص کمالِ محبت او مشغولتیا او د نور و دولت د بزرګانو او د اُمت دعالمانو توجُه او برکت او عملی کوشش سره څهٔ مودے راسے په مخصوص انداز کښ د تبلیغِ دین او د اسلام د خوروَلو سلسله جاری ده چه د هغے نه خبر داره طبقه په ښهٔ شان خبر ده - ما بے عِلمه او ګنهګار ته د دے پاکو هستو حُکم اُوشو چه د دے تبلیغ طرز او ضرورت او اَهمیت اُولیکلے شی چه پوهید و او پوهَولو کښ اسانی شی - او فائده یے عامه شی -

د ارشاد په مَنلو کښ دا څو کلمے په کاغذ لیکلے شی چه د دے پاکو هستو د علومو معارف د دریاب نه څو څاڅکی او د دینِ محمّدیٰ د باغیچے څو غنچے دی چه د یرے په جلتئ جمع کړے شوی دی - که چرے څهٔ غلطی یا کمے د رته په کښ ښکاره شی نو څما د قلم غلطی او د بے عِلمیٔ نتیجه ده - د مهربانئ او د کرم په نظر سره یے اصلاح اُوفرمایئ نو د شکر او د احسان سبب به شی -

الله جلّ شانهٗ د په خپل فضل او کرم څما په بد عملونو او ګناهونو پرده واچوی - او ما او تاسو ته د دے پاکو هستو په وسیله ښهٔ عملونه او ښهٔ طرز و طریق نصیب کړی او خپله رضا او محبت او د خپل خوښ دین خوروَلو او د خپل غوره رسول صلی الله علیه وسلم اطاعت او فرمانبرداری د دولت نه مو و سرفراز کړی -

د بزرګانو د خپو خاورے -

**محمد احتشام الحسن** مدرّس کاشف العلوم

بستی حضرت نظام الدین اولیاءؒ دهلی - ۱۰ ربیع الثانی سنه ۱۳۵۹ھ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الْاَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ خَاتَمِ الْاَنْبِيَآءِ وَالْمُرْسَلِيْنَ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهِ الطَّيِّبِيْنَ الطَّاهِرِيْنَ۔

دنن نه تقریباً دیارلس سوه کاله وړاندے کله چه دُنیا دکُفراودګمراهئ جهالت اود ناپوهئ په تیرو کښ ډوبه وه، دمکے مکرمے دکاڼړو غرونو نه درُشد وهدایت سپوږمئ راښکاره شوه اومشرق، مغرب، شمال، جنوب ترد ے چه دُنیا هریو کُټ یے په خپلے رڼړا سره روښانه کړه اود دروېشتو (۲۳) کالو لږه مُوده کښ هر یو انسان یے دترقئ هغے اُوچتے مرتبے ته اُورسوو چه دُنیا تاریخ دهغے مثال پیش کولو نه عاجزه دے۔ اودرُشد وهدایت، صلاح اوکامیابئ هغه مشال یے مسلمانانو ته په لاس کښ ورکړه چه دهغے په رڼړا کښ همیشه دترقئ په لویه لار باندے روان وُو اوترسوونو کالو په دانے شان اوشوکت سره یے په دُنیا حکومت اُوکړو چه دهر مخالف قوّت سره یے جګړه اُووَهله نو دزړے بیے یے کړو۔

دایو حقیقت دے چه انکار ترے نشی کیدے خو بیا هم یو پخوانئ قصئ ده چه د هغے بار بار ویل نه څهٔ تسلّی ورکوی اونهٔ څهٔ په کار راځی، اونهٔ څهٔ فائده لری څکه چه موجوده نظر راتلونکی حالات اوواقعات په خپله څمونږ په پخوانی ژوند اوڅمونږ دپخوانی مشرانو په کارنامو خراب داغ لګوی۔

دمسلمانانو دیارلس سوه کاله ژوند هر کله چه دتاریخ په پاڼړو کښ اُوکتلے شی نو معلومیږی چه مونږ دعزت اوعظمت، شان وشوکت، دَبدبه اوحشمت یوا لُغے مالکان اواجاره داروُو۔ خو هر کله چه ددغے پاڼړو نه نظر واړولے شی، موجوده حالات اُوکتلے شی نو مونږه پیرزیات ذلّت اوخوارئ، افلاس اونادارئ کښ اِ ښختی په نظر راځو۔ نهٔ زور اوقوّت شته، نهٔ زر اودولت شته، نهٔ شان اوشوکت شته، نهٔ په خپلو کښ زړورَلی اومحبت شته، نهٔ عادتونه ښهٔ نهٔ اخلاق ښهٔ، نه عملونه ښهٔ، نهٔ د ژوند طریقے سمے، هره بدی مونږ کښ موجوده اوده رے نیکئ نه په میلونو لرے یو۔ دُښمنان څمونږ په دے بد حالئ خوشحاله دی اوښکاره څمونږ کمزورئ بیانوی اومونږ پورے خندا کانے کوی۔ په دے بس نه بلکه

په خپله خموږ. دزړه ټکړے ،په نوي تهذيب مئين ځلمي د اسلام پاك اصولو پورے ټوقے كوي، په خبره خبره اعتراض كوي او دے پاك شريعت ته ناقابل عمل، لغوه (بے مقصد) او بے كاره وائي. عقل حيران دے چه كوم قوم دُدنيا تنده مړه كړے وه نن هغه ولے تږے دے؟ كوم قوم چه دُنيا ته دَ تهذيب او تمدن يعنى پاك صاف طرزِ معاشرت خودلے وُو هغه نن ولے غير مهذب او غير متمدن دے؟ دقوم رهنمايانو دنن نه ډير مخكښ خموږ. ددے بد حال اندازه اُولګوله او په مختلفو طريقو يے خموږ. داصلاح دپاره كوشش اُوكړو مخو. ـــه

مرض بڑھتا گیا جوں جوں دوا کی

"مرض زياتيدهٔ خومره خومره چه دارُو كيدل"

نن هركله چه حالت دبد نه ډيربد تر شوے دے او راتلونكے زمانه د پخوانۍ نه هم زياته دخطرے او تيرونه ډكه ښكارى. خموږ. چپ كيناستل او عملي كوشش نهٔ كول يو داسے جُرم دے چه دهغے بد له بيا نشي پوره كيدے خودے نه روميے چه موږ. څهٔ عملي قدم اُوچت كړو، ضروري ده چه په هغے اسبابو غور فكر اُوكړو چه دهغے په وجه موږ. ددے ذِلت او خوارۍ په عذاب كښ ګير كړے شوي يُو. خموږ. ددے پستئ او دَ زوال مختلف اسباب بيانولے شي او دهغے دلرے كولو دُپاره ګڼ شمير تد بيرونه اختيار كړے شو. خو هريو تد بير ناموافقه او ناكامه ثابت شو چه دهغے په وجه خموږ. رهبران هم په نااُميدئ او ويره كښ پراتهٔ ښكارى.

اصل حقيقت دا دے چه تر اُوسه پورے خموږ. دمرض معلومتيا اُو دپوره طور باندے شوے نه ده. دا هر څومره اسباب چه بيانولے شي اصل مرض نه دے بلكه دهغے نښے نښانے دي. پس تر كومه وخته پورے چه اصل مرض طرف ته توجه اُونه كړے شي او دحقيقي ما دے اصلاح اُونشي، د نښو نښانو اصلاح ناممكنه او ګرانه ده. نو تر كومه چه موږ. د اصل مرض صحيح معلومتيا او دهغے صحيح علاج معلوم نه كړو، خموږ. د اصلاح په باره كښ ځله پرانستل ډيره سخته غلطي ده.

خموږ. دا دعوىٰ چه خموږ. شريعت يو مكمل قانونِ الٰهي دے چه خموږ. دَ

دینی او دُنیوی فلاح و کامیابۍ تر قیامته پورے ضامن دے۔ بیا هیڅ وجه نشته چه مونږ په خپله د خپل مرض معلومتیا اُوکړو او په خپله د هغے علاج شروع کړو بلکه څمونږ دپاره ضروری ده چه مونږ د قراٰن شریف نه خپل اصل مرض معلوم کړو۔ او هم د دے مرکز رُشد و هدایت نه د علاج طریقه معلومه کړو۔ او په هغے عمل اُوکړو۔ هرکله چه قراٰن شریف تر قیامته پورے مکمّل دستُورُ العَمَل (قانون) دے نو هیڅ وجه نشته چه هغه په دے نازک حالت کښې څمونږ د رهبرۍ نه بچګرے راشی۔

د زمکو او اسمانونو مالِک الله جلّ جلاله د ښتنے وعده ده چه د مځکے بادشاهت او خلافت مؤمنانو دپاره دے:

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ (نور - ع ۷)

الله تعالیٰ وعده کړے ده هغے خلقو سره چه کوم له تاسو نه ایمان راوړی او نیک عملونه کوی چه هغوی به ضرور د مځکے خلیفه جوړ کړم۔

او دا یے هم تسلی ورکړے ده۔ چه مؤمنان به همیشه په کافرانو غالب وی او د کافرانو به هیڅوک یار و مددګار نه وی۔

وَلَوْ قٰتَلَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا (فتح - ع ۳)

او که چرے تاسو سره دا کافران جنګیدے نو ضرور به په شا تختیدلے وے بیا به یے هیڅوک یار او مددګار نه موندلے۔

او د مؤمنانو نصرت او مدد د الله تعالیٰ په ذمه دے او دوی به همیشه سربلند او سرفرازه وی۔

وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ (الروم)

او حق دے په مونږ باندے مدد د مؤمنانو۔

وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (آل عمران)

او تاسو همت مه بائیلئ او غم مه کوئ او غالب به هم تاسو یئ که چرے تاسو پوره مؤمنان یئ۔

وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ (منافقون - ع ۱)

او عزت هم د الله تعالیٰ دپاره دے او دپاره د هغه د رسُول او د مؤمنانو دے۔

پورته ذکر شوی ارشاداتو باندے غور و فکر کولو نه معلومیږی چه دَ

مسلمانانو عزت، شان او شوکت، سربلندي او سرفرازي، او هر فضيلت او خوبي دده د ايمان صفت سره تړلی دی. که چرې دده تعلق الله تعالی او رسول ﷺ سره مضبوط وي (کوم چه د ايمان مقصود دے) نو هر څه د دهٔ دي. او که چرې الله تعالی مهٔ کړه، په دے رابطه تعلق کښې کمے او کمزوري پيدا شوې وي نو بيا سراسر نقصان او ذلت و خواري ده. لکه څنګه چه په واضح طور څرګند شوے ده.

وَالْعَصْرِ ① اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِيْ خُسْرٍ ② اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ ۙ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ③ (سورة العصر)

قسم دے د زمانے چه انسان په لوئ نقصان کښې دے خو چه کوم خلقو ايمان راوړه او هغوي نيک عملونه اوکړه او يو بل ته يې د حق وصيت کوو او يو بل ته يې د صبر وصيت کولو (نو دوي نقصان کښې نهٔ دي)

څو نو پورې چه مونږ په تولو مشرانو د عزت منتها ته رسيدلي وو او مونږ انتهائي ذلت و خواري کښې ګير يو. نو معلومه شوه چه هغوي کښې کامل ايمان موجود وو او مونږ د دے نعمت نه محروم يو څنګه چه د الله تعالی رښتني رسول ﷺ خبر ورکړے دے.

سَيَاْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَبْقٰى مِنَ الْاِسْلَامِ اِلَّا اسْمُهٗ وَلَا مِنَ الْقُرْاٰنِ اِلَّا رَسْمُهٗ (مشکوٰة)

يعني نزدے دا سے زمانه راتلونکے ده چه د اسلام به بس نوم باقي پاتے شي او د قرآن به صرف نقشونه پاتے شي.

اوس د فکر خبره داده که چرے واقعي مونږ د دے حقيقي اسلام نه محروم شو کوم چه د الله تعالی او د رسول الله ﷺ په نزد مقصود دے او چه هغے سره ځمونږ د دين دُنيا کاميابي او ترقي تړلے ده نو بله کومه ذريعه ده چه په هغے سره هغه ضائع شوے نعمت واپس راشي؟ او هغه کوم اسباب دي چه د هغے په وجه د اسلام روح ځمونږ نه اووتلے شو او مونږ بے ساه بدن پاتے شو.

هر کله چه د قرآن شريف تلاوت اوکړے شي او د اُمتِ محمديه د فضيلت او د بلندئ اخري وجه تلاش کړے شي نو معلوميږي چه دے اُمت ته يو اعلیٰ او لوئ کار سپارلے شوے وو چه د هغے په وجه د "خَيْرُ الْاُمَمِ"

(یعنی د بهترین اُمت) عزت مند خطاب د ۀ ته ورکړے شو۔ د دُنیا پیدا کید و
اصلی مقصد د الله تعالیٰ وَحْدَهٗ لَا شَرِيكَ لَهٗ د ذات او د صِفاتو پیژند گلنه ده۔
او د اتر هغې وخته پورے ناممکنه ده ترڅو پورے چه هر یو انسان لره د بد و
اوګندګونه پاك نه کړے شی او نیکو او ښهٔ صفتونو سره ښائسته نه کړے شی۔ د
مقصد د پاره په زرګونو رسُولان او نبیان علیهم السلام را اُولیږلے شو او په آخر
کښې د دے مقصد د پوره کولو د پاره سَيِّدُ الْاَنْبِيَاءِ وَالْمُرْسَلِيْنَ یے را اُولیږهٔ
او د اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ زیرے ورته واؤرولو۔

اُوس چونکه مقصد پوره شوے وُو۔ هره نیکی ښکاره ښکاره بیان کړے شوے
وه۔ یو مکمّل د عمل نظام ورکړے شوے وو۔ په دے وجه د رسالت او د نبوت
سلسله ختمه کړے شوه او کوم کار چه به پرومبے نبی او د رسول نه اخستے شو
هغه تر قیامته پورے اُمتِ محمّدیه ته اُوسپارلے شو۔

كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ تَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ (آل عمران۔ ع ۱۲)

اے اُمتِ محمّدیه! تاسو بهترین اُمت یئ۔ تاسو د خلقو د فائدے د پاره لیږلے شوی یئ۔ تاسو ښے خبرے په خلقو کښې خورَوئ او د بدُ خبرو نه یے منع کوئ او په الله تعالیٰ ایمان ساتئ۔

وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ يَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ○ (آل عمران۔ ع ۱۱)

او پکار دی چه تاسو کښې یو داسے ډله وی چه خلق خیر طرف ته رابلی او د ښو خبرو حکم کوی او د بد و خبرو نه منع کوی او صِرف دغه خلق کامیاب دی۔ (خوك چه دا کار کوی)

پرومبی آیت کښې د خَيْرِ اُمَمْ کید و وجه یے دا اُوښودله چه تاسو نیکی خورو ی
او د بد و نه منع کوئ۔ په دویم آیت کښې یے په خصوصیت سره اُوفرمایل چه
کامیابی او ترقی صرف هغې خلقو د پاره ده چه څوك دا کار کوی په دے بَس نه
بلکه بل ځائ کښې یے په صفا طور بیان اُوکړے شو چه دا کار نهٔ کول د لعنت
او د ملامتیا سبب د ے۔

لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

بنی اسرائیلو کښې چه کوم خلق کافران وُو، په هغوی

عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّ كَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ○ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ ؕ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ○

(مائده - ع ١١)

لعنت کړے شوے وو داؤد او د عیسیٰ بن مریم علیهما السلام په ژبه سره - د العنت له دے سببه اُوشو چه هغوی د حکم مخالفت اُوکړه او د حَدَه اُووتل کوم بَد کار چه هغوی کولو، د هغے نه به نه منع کیدل - واقعی د هغوی دا کار بے شکه ناکاره وُو -

د دے آخری آیت زیات وضاحت د لاندینی حدیثونو نه کیږی -

(١) وَفِي السُّنَنِ وَالْمُسْنَدِ مِنْ حَدِيْثِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم إِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ كَانَ إِذَا عَمِلَ الْعَامِلُ فِيْهِمْ بِالْخَطِيْئَةِ جَاءَهُ النَّاهِيْ تَعْزِيْرًا فَقَالَ يَا هٰذَا اتَّقِ اللّٰهَ فَإِذَا كَانَ مِنَ الْغَدِ جَالَسَهُ وَاٰكَلَهُ وَشَارَبَهُ كَأَنَّهُ لَمْ يَرَهُ عَلٰى خَطِيْئَةٍ بِالْأَمْسِ فَلَمَّا رَأَى عَزَّ وَجَلَّ ذٰلِكَ مِنْهُمْ ضَرَبَ قُلُوْبَ بَعْضِهِمْ عَلٰى بَعْضٍ ثُمَّ لَعَنَهُمْ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهِمْ دَاوٗدَ وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَتَأْخُذُنَّ عَلٰى يَدِ السَّفِيْهِ وَلَتَأْطُرُنَّ عَلَى الْحَقِّ

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اُوفرمایه چه د تاسو نه پرومبنی اُمتونو کښ چه به کله چا گناه اُوکړه نو منع کونکی به هغه ویرولو - او ورته به یے ویل چه د الله تعالیٰ نه اُوویریږه بیا صبا ته به یے هغه سره ناسته پاسته خوراک څښاک کولو، گویا پرون یے هغه په گناه کولو اُولیدلے نه وو - هرکله چه الله جل شانهٗ د هغوی دا معامله اُولیدله نو د بعضو زړونه ئے د بعضو سره گډ کړل او د هغوی د نبی داؤد او عیسیٰ بن مریم علیهما السلام په ژبه یے په هغوی لعنت اُوکړهٔ او دا د دے د پاره چه هغوی د الله تعالیٰ نافرمانی اُوکړه او د حَد نه اُووتل - قسم دے په هغه پاك ذات چه د چا په قبضه کښ د محمد (صلی الله علیه وسلم) ساه ده، تاسو ضرور د ښو خبرو حکم کوئ او د بدو خبرو نه منع کوئ او پکار دی چه د بے وقوفه نادان لاس وُنیسئ - هغه په حقه خبره مجبوره

أَطْرًا أَوْ لَيَضْرِبَنَّ اللّٰهُ قُلُوْبَ بَعْضِكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ثُمَّ يَلْعَنُكُمْ كَمَا لَعَنَهُمْ۔

(۲) وَفِيْ سُنَنِ أَبِيْ دَاوُدَ وَابْنِ مَاجَةَ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رضي الله عنه قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُوْنُ فِيْ قَوْمٍ يَعْمَلُ فِيْهِمْ بِالْمَعَاصِيْ يَقْدِرُوْنَ عَلٰى أَنْ يُغَيِّرُوْا عَلَيْهِ وَلَا يُغَيِّرُوْنَ إِلَّا أَصَابَهُمُ اللّٰهُ بِعِقَابٍ قَبْلَ أَنْ يَمُوْتُوْا۔

(۳) وَرَوَى الْأَصْبَهَانِيُّ عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ لَا تَزَالُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ تَنْفَعُ مَنْ قَالَهَا وَتَرُدُّ عَنْهُمُ الْعَذَابَ وَالنِّقْمَةَ مَا لَمْ يَسْتَخِفُّوْا بِحَقِّهَا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا الْاِسْتِخْفَافُ بِحَقِّهَا قَالَ يَظْهَرُ الْعَمَلُ بِمَعَاصِي اللّٰهِ فَلَا يُنْكَرُ وَلَا يُغَيَّرُ۔

(ترغیب)

(۴) عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ ﷺ فَعَرَفْتُ فِيْ وَجْهِهٖ أَنْ قَدْ حَضَرَهٗ شَيْءٌ فَتَوَضَّأَ وَمَا كَلَّمَ أَحَدًا فَلَصِقْتُ بِالْحُجْرَةِ أَسْتَمِعُ مَا يَقُوْلُ

کړئ کنی الله جل شانهٗ به ستاسو زړونه هم ګډ وډ کړی او بیا به په تاسو هم لعنت اوشی لکه چه په ړومبنو اُمتونو لعنت شوے دی۔

حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ کهٔ چرې په یوه ډله او قوم کښ څوک ګناه کوی او دغه قوم سره د طاقته هغه نهٔ منع کوی نو په دوی به د مرګ نه وړاندے الله جل شانهٗ خپل عذاب راولیږی یعنی په دنیا کښ به هغوی په قسما قسم مصیبتونو کښ ګرفتار کړے شی۔

حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دے چه نبی اکرم ﷺ ارشاد اُوفرمایهٔ چه همیشه کلمه د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ خپل وَیُونکی ته نفع ورکوی او د هغهٔ نه عذاب او بلا لرے کوی تر څو پورې چه د دے د حقونو نه بے پرواهی اُونهٔ کړے شی۔ صحابه رضی الله عنهم عرض اُوکړهٔ چه د دے د حقونو نه بے پرواهی څهٔ ده؟ نبی علیه السلام ارشاد اُوفرمایهٔ چه د الله جل شانهٗ نافرمانی ښکاره طور کیږی بیا نهٔ د هغے نه انکار وکړے شی او نهٔ د هغے د بندولو کوشش وکړے شی۔

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه نبی اکرم ﷺ ما کره تشریف راوړهٔ نو ما یے په مخ مبارک یو خاص اثر اُولیدهٔ محسوس مے کړه چه څهٔ ضروری خبره پیښه شوے ده نبی علیه الصلوٰة والسلام هیچا سره څهٔ خبرے اُونهٔ کړے او اودس یے اُوکړهٔ جمات

فَقَعَدَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَاَثْنٰى عَلَيْهِ وَقَالَ يَاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى يَقُوْلُ لَكُمْ مُرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ قَبْلَ اَنْ تَدْعُوْا فَلَا اُجِيْبَ لَكُمْ وَتَسْئَلُوْنِىْ فَلَا اُعْطِيَكُمْ وَتَسْتَنْصِرُوْنِىْ فَلَا اَنْصُرَكُمْ فَمَا زَادَ عَلَيْهِنَّ حَتّٰى نَزَلَ۔

ته یې تشریف یوړه. ځه د جماعت دیوال سره نږدې شومه چه څه ارشاد فرمائی هغه واورم نبی اکرم ﷺ په منبر تشریف فرما شو او د حمد وثنا نه پس یې اوفرمایل، خلقو! دالله تعالی حکم دے چه د ښو کارونو حکم کوئ او د بدو کارونو نه منع کوئ هسې نه چه هغه وخت راشی چه تاسو دعا غواړئ او زه یې نه قبلوم، او تاسو مانه مدد غواړئ او زه ستاسو مدد نه کوم۔ نبی ﷺ ابس دا کلمے ارشاد اوفرمایلے او د منبر نه راکوز شو۔

(ترغيب)

⑤ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا عَظَّمَتْ اُمَّتِىْ الدُّنْيَا نُزِعَتْ مِنْهَا هَيْبَةُ الْاِسْلَامِ وَاِذَا تَرَكَتِ الْاَمْرَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْىَ عَنِ الْمُنْكَرِ حُرِمَتْ بَرَكَةَ الْوَحْىِ وَاِذَا تَسَابَّتْ اُمَّتِىْ سَقَطَتْ مِنْ عَيْنِ اللّٰهِ۔

(كذا فى الدر عن الحكيم الترمذى)

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دے چه سردار دوجهان ﷺ ارشاد اوفرمایه چه کله زما امت دنیا لره قابله د عزت او د عظمت اوګڼړی نو د اسلام عزت او هیبت به د دوی د زړونو نه اوزی او کله چه اَمْرٌ بِالْمَعْرُوْف او نَهْیٌ عَنِ الْمُنْكَر پریږدی نو د وحی د برکتونو نه به محروم شی او کله چه په خپلو کښې یو بل ته کنځل بد رد ویل اختیار کړی نو د الله جل شانه د نظر (د رحمت) نه به پریوزی۔

ذکر شوی حدیثونو باندے غور کولو نه دا خبره معلومه شوه چه اَمْرٌ بِالْمَعْرُوْف او نَهْیٌ عَنِ الْمُنْكَر پریخودل د الله تعالی وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ د لعنت او د غضب سبب دے۔ او هر کله چه اُمَّتِ مُحَمَّدِيَه دا کار پریږدی نو سختو مصیبتونو او تکلیفونو او ذلت وخوارئ کښې به اخته کړے شی او د هر قسمه غیبی مدد او نصرت نه به محرومه شی او د اتول هر څه به دے د پاره کیږی چه د خپل فرضِ منصبی او نه پیژندو (یعنی د امت په ذمه چه کوم کار ضروری او فرض و د هغے فکر نه کړه) او د کوم کار سرته د رسولو

زمه واری وه د هغې نه غافله شو. هم دا وجه ده چه نبی اکرم ﷺ اَمْرٌ بِالْمَعْرُوْفِ او نَهْیِ عَنِ الْمُنْکَر د ایمان خاصیت او لازمی حصه گرزولے ده. او د دے پریخودل یے د ایمان د ضعف او د کمزورتیا نښه ښودلے ده.

د اَبُوْ سَعِیْد خُدْرِی رضی الله عنه حدیث کښې دی:

مَنْ رَاٰی مِنْکُمْ مُنْکَرًا فَلْیُغَیِّرْهُ بِیَدِهٖ فَاِنْ لَّمْ یَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهٖ فَاِنْ لَّمْ یَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهٖ وَذٰلِكَ اَضْعَفُ الْاِیْمَانِ۔ (مسلم)

یعنی په تاسو کښې چه کله څوک بدی اُو وینی نو بکار دی چه د خپلو لاسو نو نه کار واخلی هغه لرے کړی او که د دې طاقت یے نه وی نو په ژبه سره. او که چرے د دې یے هم طاقت نه وی نو په زړه سره یے بد اُوګڼی او دا اخری حالت د ایمان ډیره کمزورے درجه ده.

پس څنگه چه اخری درجه اَضْعَفُ الْاِیْمَان (یعنی د ټولو نه د کمزوری ایمان) شوه. د غسے رومبۍ درجه د کمالِ دعوت او د کمالِ ایمان شوه. د دے نه هم زیات واضح حدیث د ابنِ مَسْعُوْد رضی الله عنه دے.

مَا مِنْ نَّبِیٍّ بَعَثَهُ اللّٰهُ قَبْلِیْ اِلَّا کَانَ لَهٗ فِیْ اُمَّتِهٖ حَوَارِیُّوْنَ وَاَصْحَابٌ یَاْخُذُوْنَ بِسُنَّتِهٖ وَیَقْتَدُوْنَ بِاَمْرِهٖ ثُمَّ اِنَّهَا تَخْلُفُ مِنْ بَعْدِهِمْ خُلُوْفٌ یَقُوْلُوْنَ مَا لَا یَفْعَلُوْنَ وَیَفْعَلُوْنَ مَا لَا یُؤْمَرُوْنَ فَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِیَدِهٖ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِلِسَانِهٖ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِقَلْبِهٖ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَیْسَ وَرَاءَ ذٰلِكَ مِنَ الْاِیْمَانِ حَبَّةُ خَرْدَلٍ۔ (مسلم)

یعنی د الله جل شانه طریقه دا ده چه هر یو نبی د خپلو ملگرو او د تربیت شوو یارانو یوه ډله پریږدی. دا اهله د نبی سُنت قائم ساتی او صمیم صمیم د هغې تابعداری کوی. یعنی شریعتِ الٰهی چه په کوم حال او په کوم شکل کښې نبی پریخودلے وی هغه هم هغه شان محفوظ ساتی او په هغې کښې ذره برابر فرق هم نه راولی. خو د نه پس به د شر او د فتنو زمانه راشی او دا سے خلق به پیدا شی چه د نبی د طریقے نه به لرے کیږی، د هغوی کار به د هغوی د دعوے نه خلاف وی او د هغوی کارونه به دا سے وی چه د هغې به شریعت

حکمرانه وي وکړے۔ نو دا ئے خلقو خلاف چه څوک د حق او د سنت قائمولو په لاره کښې د خپل لاس نه کار واخلي هغه مؤمن دے او کۀ څوک دا ئے او نه کړي خو د ژبے نه کار واخلي هغه هم مؤمن دے او کۀ دا هم نۀ کیږي او د زړۀ عقیده او د نیت مضبوطي ئے د هغۀ خلاف په کار کښې راوسته هغه هم مؤمن دے خو د دے اخري درجے نه پس د ایمان هیڅ درجه نشته۔ په دے د ایمان حد ختمیږي، تر دے چه اوس د اوړي د دانے برابر هم ایمان نۀ شي پاتے کیدے۔

د دے کار اهمیت او ضرورت امام غزالي رحمة الله عليه دا رنګے ښکاره کړے دے۔

"په دے کښې هیڅ شک نشته چه اَمْرٌ بِالْمَعْرُوْف او نَهْيٌ عَنِ الْمُنْکَر د دین یو دا ئے زبردست رکن دے چه د دے سره د دین ټول څیزونه تړلي دي۔ د دے د کولو د پاره الله جل شانه ټول اَنْبِیَاءِ کرام علیهم السلام رالیږلي دي۔ الله مکړه د دے نه بے پرواهي اوکړے شي او د دے علم او عمل پریخودے شي نو اَلْعِیَاذُ بِاللّٰهِ (په الله تعالیٰ سره پناه) د نبوت به بے کاره کیدل لازم شي۔ دینداري چه د انساني شرافت خاصیت دے کمزورے او مړاوے به شي۔ سستي به عامه شي، د ګمراهۍ او ضلالت لارے به پرانستلے شي، جهالت به ټوله دنیا کښې خور شي۔ په ټولو کارونو کښې به خرابي راشي۔ په خپلو کښې به بے اتفاقي د شمني پریوزي اباديۍ به خرابے شي۔ مخلوق به تباه او برباد شي او د دے تباهۍ او بربادۍ به هغه وخت پته اولګي چه کله د محشر په ورځ د الله جل شانه مخکښې پیشي او تپوس اوشي۔"

افسوس صد افسوس چه کومه خطره وه مخکښې راغله، کومه ویره وه سترګو اولیده۔ کَانَ اَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَّقْدُوْرًا۝ فَاِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رٰجِعُوْنَ۝

د دغے ستنے د علم او عمل نښے ورانے شوے۔ د هغے حقیقت او د رسم نوم برکتونه فنا شول۔ د خلقو سپکولو او ذلیل کولو مهر په زړونو اولګیده۔ د الله پاک سره د زړۀ تعلق ختم شو او د نفساني خواهشاتو په تابعدارۍ کښې د ځناورو په شان بے باکه شول۔ په مخ د زمکے د دا ئے زینتني مؤمن

مونږ ل ګران او کمزوری نه بلکه اړ وشته نه چه دحق بنکاره کولو په وجه ټوا ملامتیا برداشت کړی. که څوک مرد مؤمن دد ے تباهئ او بربادئ لرے کولو اراده اوکړی او دد ے سنت په ژوندی کولو کښ کوشش کوی او د امبارک پیتی و اخلی وګړ ریږی، او لستوڼړی را اونغاړی، دد ے سنت ژوندی کولو کښ میدان ته راشی نو یقینًا دغه کس به په ټول مخلوق کښ دیو امتیازی حیثیت او د بنکاره هستئ مالک وی.

امام غزالی رحمة الله علیه چه په کوموالفاظو دد ے کار اهمیت او ضرورت بیان کړے د ے هغه ځمونږ دبیدارولو دپاره کافی د ے.

ځمونږ دد ے دومره ضروری فریضے نه دغافلیدو څو وجے معلومیږی.

**اوله** وجه دا ده چه مونږ دا فریضه عالمانو پورے خاص کړے ده. حال دا چه دقرانِ پاک خطابات عام دی چه دا امّتِ محمّدیّه هر هر فرد ته شامل دی. او دصحابه کرامو رضی الله عنهم او دخَیرُ القُرُونِ ژوند دد ے دپاره انصاف دار ګواه د ے.

دتبلیغ فریضه او اَمر بِالمَعرُوف او نَهی عَنِ المُنکَر عالمانو پورے خاص کول او بیا دهغوی په دا دا ضروری کار پریخودل ځمونږ سخته ناپوهتیا ده. دعالمانو کار حقه او نیغه لاره ښودل دی بیا دهغے موافق عمل کول او دالله تعالیٰ مخلوق په هغه روانول دا دنورو خلقو کار د ے. دد ے طرفته په دے حدیث شریف کښ خبر داری کړے شوے د ے.

اَلَا کُلُّکُم رَاعٍ وَّکُلُّکُم مَسئُولٌ عَن رَّعِیَّتِهٖ فَالاَمِیرُ الَّذِی عَلَی النَّاسِ رَاعٍ عَلَیهِم وَهُوَ مَسئُولٌ عَنهُم وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلٰی اَهلِ بَیتِهٖ وَهُوَ مَسئُولٌ عَنهُم وَالمَرأَۃُ رَاعِیَۃٌ عَلٰی بَیتِ بَعلِهَا وَوَلَدِهٖ وَهِیَ مَسئُولَۃٌ عَنهُم وَالعَبدُ

بے شکه تاسو ټول په ټول نګهبانان یئ او تاسو نه به دخپل رعیت په باره کښ سوال کولے شی پس بادشاه په خلقو نګهبان د ے دهغه نه به دخپل رعیت په باره کښ سوال کولے شی. او سړے دخپل کور په خلقو نګهبان د ے او دهغه نه به دد ے باره کښ سوال کولے شی او ښځه دخپل خاوند په کور او بچه اولاد نګهبانه ده

رَاعٍ عَلٰى مَالِ سَيِّدِهٖ وَهُوَ مَسْئُوْلٌ عَنْهُ فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ (بخاری ومسلم)

هغه نه به د دے باره کښ سوال کولے شی۔ او غلام دخپل مالک په مال نګهبان دے، هغه نه به د دے باره کښ سوال کولے شی۔ پس تاسو ټول نګهبانان يئ او تاسو ټولو نه به دخپل رعيت باره کښ سوال کولے شی۔

او هم دا بے پوره په وضاحت دا رنګے بيان کړے دے۔

قَالَ الدِّيْنُ النَّصِيْحَةُ قُلْنَا لِمَنْ قَالَ لِلّٰهِ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِاَئِمَّةِ الْمُسْلِمِيْنَ وَعَامَّتِهِمْ (مسلم)

نبی اکرم ﷺ او فرمايل دين سراسر نصيحت دے (صحابو رضی الله عنهم) عرض اوکړو چا باره کښ؟ وفرمايل الله تعالیٰ د پاره او د الله تعالیٰ د رسول د پاره او د مسلمانانو د مشرانو د پاره او د عامو مسلمانانو د پاره۔

که فرض کړو دا اومنلے هم شی چه دا د عالمانو کار دے بيا هم دا وخت د زمانے د ماحول ضرورت دا دے چه هر څوک په دے کار کښ اولګی۔ او د اِعلاءِ کَلِمَةُ الله او د دين اسلام د حفاظت د پاره ملا اوتړی۔

**دويمه** وجه دا ده چه مونږ دا ګڼړو، که چرے مونږ په خپل ايمان کښ مضبوط يو نو د نورو ګمراهی څمونږ د پاره نقصانی نه ده لکه څنګه چه د دے آيت شريفه مفهوم (مطلب) دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ ضَلَّ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ (مائده-رع ۱۴)

اے ايمان والو! خپل فکر کوئ هر کله چه تاسو په لار روان يئ نو چه څوک ګمراه دے هغه نه تاسو ته هيڅ نقصان نشته (بيان القرآن)

خو په حقيقت کښ د آيت نه مقصود دا نه دے کوم چه په ظاهره ترے معلوميږي څکه چه دا معنی حکمت الٰهيه او تعليمات شرعيه نه بيخی خلاف ده۔ اسلامی شريعت اجتماعی ژوند او اجتماعی اصلاح او اجتماعی ترقی اصل بنودلے ده او اُمتِ مُسلمه يے په شان د يو بدن ګرزولے دے که چرے په يو اندام کښ درد شی نو ټول بدن بے ارامه شی۔

خبره په اصل کښ دا ده چه هر يو انسان خواه هر څومره ترقی اوکړی۔

اوکمال ته اُورسي، په دې کښې دا دے خلقو موجوده کيلے هم ضروري دي چه
بنيغه لار پرېږدي گمراهئ کښې اخته شي. نو ايت کښې مؤمنانو د پاره تسلي ده
چه کله تاسو هدايت او صراطِ مستقيم باندے قائم يئ نو تاسو ته د هغې خلقو نه
د ضرر رسيدو نشته کوم چه بے لارے شوي بنيغه لار يې پريخوده.

دغسے اصل هدايت دا دے چه انسان شريعتِ محمديه لره سره د ټولو احکامو
قبول کړي او د هغې ټولو احکاماتِ الٰهي نه يو امر بالمعروف او نهي عن المنکر هم دے.
خو نن دد قول مرسته د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د ارشاد نه کيږي.

عَنْ اَبِيْ بَكْرِ ﹰالصِّدِّيْقِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَيُّهَا النَّاسُ اِنَّكُمْ تَقْرَءُوْنَ هٰذِهِ الْاٰيَةَ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ ضَلَّ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ النَّاسَ اِذَا رَاَوُا الْمُنْكَرَ فَلَمْ يُغَيِّرُوْهُ اَوْشَكَ اَنْ يَّعُمَّهُمُ اللّٰهُ بِعِقَابِهٖ.

حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اوفرمايل، اے خلقو! تاسو دا ايت يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ ضَلَّ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ پيش کوئ او ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا ارشاد اوريدلے دے چه هر کله خلق د شريعت نه خلاف څه څيز اووينې او هغه بدل نه کړي. نو نزدے ده چه الله جل شانه دغه خلق په خپل عمومي عذاب کښې گرفتار کړي.

تحقيق کونکو عالمانو د دے ايت هم دا معنیٰ اخستې ده. امام نووي رحمة الله عليه په شرح مسلم کښې فرمائي.

د تحقيق کونکو عالمانو صحيح مذهب د دے ايت په معنیٰ کښې دا دے چه کله تاسو هغه څيز ادا کړئ چه د کوم تاسو ته حُکم درکړے شوے دے نو د نورو خلقو کمزوري به تاسو ته نقصان نه رسوي څنګه چه د الله تعالیٰ ارشاد دے. وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰي. او هر کله چه دا به ده نو د هغې ټولو څيزونو نه چه د کوم حُکم ورکړے شو، اَمر بالمعروف نهي عن المنکر دے. پس کله چه چا دا حُکم پوره کړو او مخاطب د دے تعميل اُونه کړو نو اوس په نصيحت کوونکي هيڅ ملامتيا او اِلزام نشته ځکه چه کوم څه د ده په ذمه واجب وُو هغه اَمر

اونهٔ دی هغه دهٔ اداکړل، دنورو قبلول ددهٔ په ذمه نهٔ دی". وَاللّٰهُ اَعْلَم.

**دریمه** (۳) وجه دا ده چه عوام او خواص، عالِم او جاهِل هرکَس د اصلاح نه نا اُمیده شوی دے او دَ دوی دا یقین جوړ شوے دے چه اُوس دمسلمانانو ترقی او دَ دوی اُوچتوالے نامُمکن او ګران دے . هرکله چه دچا مخکښ څهٔ اصلاحی نظام پیش کړے شی نو دا جواب ورکوی چه دمُسلمانانو ترقی اُوس څنګه کیدے شی چه نهٔ ورسره سلطنت او حکومت شته، نهٔ مال او زَرشته، نهٔ دجنګ سامان اونهٔ مرکزی حیثیت. نهٔ دمتحو قُوت اونهٔ خپل مینځ کښې اتفاق او اِتحا د.
خصوصاً دینداره طبقے خو په خپل ګمان دا فیصله کړے ده چه اُوس څوارلسمه صدی ده. د زمانے دَرسالت نه لرے شوے یو. اُوس دَاِسلام او دمسلمانانو زَوال یو لازمی خیز دے. نو دِے دپارهٔ کوشش کول عَبث او بے کاره دے.
دا صحیح ده چه څومرهٔ قدرے د نبوّت د زَمانه لرے وا لے کیږی، دحقیقی اسلام شغلے به کمیږی. خو دِے دا مطلب هیڅ کله نهٔ دے چه دشریعت د دباقی پاتے کیدو او دَ دِینِ محمّدی دحفاظت دپارهٔ محنت او کوشش نشی کیدے. ځکه که چرے داسے وے او څمونږ مخوانو مشرانو هُم الله مهٔ کړه داسے کړے وے نو نن به مونږ پورے دے دین رارسیدو هیڅ لاره نهٔ وه. البته چه زمانه ناموافقه ده نو د زمانے رفتار ته دِ اُوکتلے شی او په زیات همّت او استقلال سره دا کارا خستلے د کولو ضرورت دے.

دحیرانتیا خبره ده چه دکوم مذهب بُنیاد سراسر عمل او په قربانئ باندے جوړ شوے وو، نن د هغه مذهب منونکی دعمل نه سراسر خالی دی. حال دا چه قرآن مجید او حدیث کښې ځائی په ځائی دعمل او دقربانئ سَبَق لوَلوَلے او بَنودلے شوے دے. چه یو عبادت ګذار، تول شپه نفل کوَنکے، تول وَرځ روژه نیوَنکے، الله الله کوَنکے هیڅ کله د هغے کَس برابر نهٔ شی کیدے څوک چه دنورو د اصلاح او د هدایت په فکر کښې بے آرامه وی.

قرآن کریم ځائی په ځائی دجهاد فی سَبِیلِ الله تاکید او د مجاهد فضیلت او اُوچتوالے ښکاره کړے دے.

لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۹۵﴾ دَرَجٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَّرَحْمَةً وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۹۶﴾

(النسا... ع ۱۳)

برابر نه دي هغه مسلمانان چه بغير د څه عذره كورونو كښې ناست وي او هغه خلق څوك چه د الله تعالىٰ په لاركښې خپل مال او جان سره جهاد كوي. الله تعالىٰ د دغے خلقو درجه ډيره زياته اوچته كړے ده كوم چه په خپل مال و ځان سره جهاد كوي په نسبت كوركښې د ناستو خلقونه او ټولو سره الله تعالىٰ د ښه كور وعده كړے ده. او الله تعالىٰ مجاهدينو ته په مقابله كوركښې د ناستو خلقو اجرِ عظيم وركړے دے يعنې ډيرے درجے به د الله تعالىٰ له طرفه وركړے شي او مغفرت او رحمت هم. او الله تعالىٰ د لوئ مغفرت او رحمت مالك دے.

اگرچه آيت كښې جهاد نه مراد د كفارو په مقابله كښې ښكلك او مضبوط او دريدل دي د پاره د دے چه د اسلام خبره اوچته وي او كفر و شرك لاندے او كمزورے وي. خو كه چرے بد قسمتئ سره نن مونږ د دے لوئ نيك بختئ نه محرومه يو، نو د دے مقصد د پاره چه څومره قدرے كوشش او قربانى څمونږ وس او طاقت كښې وي په هغے كښې خو هر گز كمے نه دے كول پكار. بيا څمونږ د معمولى حركت، عمل او كوشش كښې به مونږ په راتلونكو وختونو كښې اورسوي.

وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا د يعنې كوم خلق چه څمونږ د دين په لاركښې كوشش كوي مونږ هغوى د پاره خپلے لارے پرانزو.

دے كښې شك نشته چه د دين محمدى د باقى ساتلو او د حفاظت كولو الله تعالىٰ وعده كړے ده. خو د د دے د وچتوالى او ترقئ د پاره څمونږ عمل او كوشش هم ضرورى دے. صحابهٔ كرامو رضى الله عنهم چه د دے د پاره څومره ډير كوشش اوكړو هغه هومره يے د هغے فائدے هم اوليدے او غيبى امداد سره سرفرازه شو. مونږ هم د هغوى نوم اخستونكى يو. كه چرے اوس هم د هغوى په

په نقش قدم د تللو کوشش اوکړو او د إعلاء کَلِمَةُ الله او د اسلام خورولو دپاره ملا اوتړو نو یقیناً مونږ به هم د الله تعالیٰ غیبی امداد سره سرفرازه شو. إِنْ تَنْصُرُوا اللهَ يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ (سورة محمد ۷) که چرے تاسو د الله تعالیٰ د دین مدد او کړئ نو الله تعالیٰ به ستاسو مدد اوکړی او ستاسو قدمونه به مضبوط کړی (په مقابله د دُشمن کښ چه شیطان او کافر دے)

**شلورمه** وجه داده چه مونږ د اکثرو چه هر کله مونږ په خپله د دے خبرو پابند نه یو او د دے مرتبے اهل نه یو، نو نورو ته په کومه خُله نصیحت اوکړو. خو دا د نفس ښکاره دهوکه ده. هر کله چه یو کار د کولو دے او د الله تعالیٰ له طرفه مونږ ته د دے حکم شوے دے نو بیا مونږ ته په دے کښ د رستو پاتے کیدلو گنجائش نشته. مونږ له دا د الله تعالیٰ حکم گڼړلو سره کار شروع کول پکار دی. بیا انشاء الله د کوشش به حمونږ د طاقت محکم والی او د استقامت سبب شی او د غسے په همیشه کوو، یوه ورځ به د الله تعالیٰ د نزدیکت سعادت را ته نصیب شی. دا خو کیدے نشی چه مونږ د الله تعالیٰ په کار کښ کوشش کوو او هغه رحمٰن او رحیم د حمونږ طرف ته د مهربانئ نظر نه کوی. حما د دے قول مرسته د دے حدیث نه کیږی.

عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ لَا نَأْمُرُ بِالْمَعْرُوفِ حَتَّى نَعْمَلَ بِهِ كُلِّهِ وَلَا نَنْهَى عَنِ الْمُنْكَرِ حَتَّى نَجْتَنِبَهُ كُلَّهُ فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ مُرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَإِنْ لَمْ تَعْمَلُوا بِهِ كُلِّهِ وَانْهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ وَإِنْ لَمْ تَجْتَنِبُوهُ كُلَّهُ.

(رواه الطبرانی فی الصغیر والاوسط)

حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دے چه مونږ عرض اوکړو اے د الله رسوله! مونږ د نیکو حکم نه کوو ترخو پورے چه په ټولو په خپله عمل اونه کړو. او د بدو نه منع کول نه کوو ترخو پورے چه په خپله د ټولو بدو نه بچ نه شو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمایل، نه بلکه تاسو د ښو خبرو حکم کوئ اگر که تاسو په خپله د هغے ټولو پابند نه یئ. او د بدو نه منع کوئ اگر که تاسو په خپله د هغے ټولو نه بچ کیږئ.

**پنځمه** وجه داده چه مونږ د اکثرو چه ځائ په ځائ د دینی مدرسو

قائمیدل، د عالمانو وعظ او نصیحت کول، د خانقاهو اباديدل، د مذهبي کتابونو تصنیف کیدل، د رسالو جاري کیدل دا د اَمْرٌ بِالْمَعْرُوْف او نَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَر ښاخونه دي او د دے په ذریعه د دے فریضے اداګي کیږي. په دے کښې شک نشته چه د دے ټولو ادارو قائمول او باقي ساتل ډیر ضروري دي او دے طرف ته توجه کول د ضروري کارونو نه د ه ځکه چه د دین څه لږ ډیر رڼړا چه ښکاري، دا هم د دے ادارو مبارك اثرات دي. خو بیا هم که چرے په غور سره اوکتلے شي نو څومره د موجوده ضرورت د پاره دا ادارے کافي نه دي او په دے بس والے کول څومره ښکاره غلطي ده ځکه چه د دے ادارو نه مونږ ته هغه وخت فائده اخستلے شو چه هر کله مونږ کښې د دین شوق او طلب موجود وي او د مذهب عزت او عظمت وي. د اوس نه پنځوس کاله وړاندے مونږ کښې شوق او طلب موجود وو. او ایماني رڼړا ښکاریدله. د دے کبله د دے ادارو قیام څومره د پاره کافي وو. خو نن د غیر قومونو ډیر زیات کوششونو څومره اسلامي جذبات بیخي فنا کړل او د طلب او رغبت په ځائے نن مونږ د مذهب نه تختیدونکي او بیزاره ښکارو. په داسے حالت کښې مونږ د پاره ضروري ده چه مونږ مستقل څه تحریک داسے شروع کړو چه په هغے عوامو کښې د دین سره تعلق، شوق او رغبت پیدا شي او ورک شوي جذبات بیدار شي. بیا به مونږ ته د دے ادارو نه د هغے د شان مطابق فائده حاصلولے شو. که دا نه وي او د دین نه بے رغبتي او بے توجهي په زیاتیدو وي نو د دے ادارو نه فائده اخستل خو یو خواته، د دے باقي پاتے کیدل به هم ګران شي.

شپږمه وجه دا ده چه هر کله مونږ دا کار واخلو نورو ته ورځو، نو هغوي ډیر په بد ه طریقه ملاویږي او په سختئ جواب راکوي او څومره سپکاوے بے عزتي کوي خو مونږ ته معلومیدل پکار دي چه دا کار د انبیاءِ کرامو عَلَیْهِمُ السَّلَامُ د نیابت دے او د دے مصیبتونو او تکلیفونو کښې ګیریدل د دے کار خاصیت دے. او دا ټول مصیبتونه او تکلیفونه بلکه د دے نه هم زیات انبیاءِ کرامو عَلَیْهِمُ السَّلَامُ په دے لار کښې برداشت کړي دي. د الله جَلَّ شَانُهٗ ارشاد دے.

| مونږ به لیږلی دی رسولان تا نه مخکښې د زړو مېنو خلقو په ډلو کښې. او دوی ته به هیڅ یو رسول نه راتلو خو دوی به هغوی پورې خندا کوله. | وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِیْ شِیَعِ الْاَوَّلِیْنَ ۝ وَمَا یَاْتِیْهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا كَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ ۝ (حجر. ع۱) |
|---|---|

دنبی اکرم ﷺ ارشاد دے چه د دعوتِ حق په لار کښې څومره قدر رې ځهٔ په مُصیبتونو تکلیفونو کښې اچولے شوے یم. هیڅ یو نبی او رسول نهٔ دے اچولے شوے.

پس هر کله چه سردارد دوارو جهانو او څمونږ آقا او مولا دا مصیبتونه او مُشقتونه په صبر سره برداشت کړل نو مونږ هم دهغوی تابعدار یو او هم دهغوی کارموا ختلے دے او دریدلے یو. مونږ له هم په د مصیبتونو پریشانه کیدل نهٔ دی پکار او په صبر سره دا برداشت کول پکار دی.

د تیرشوی بیان نه دا خبره په ښهٔ شان معلومه شوه چه څمونږ اصل مرض د اسلامی رُوح او د ایمانی حقیقت ضُعف او کمزورتیا ده. څمونږ اسلامی جذبات فنا شوی دی. او څمونږ ایمانی طاقت زائل شوے دے. او هر کله چه اصل خیز اُوغورزیدهٔ نو دے سره چه څومره صِفتونه او نیکئ تړلے وے د هغے غورزیدل هُم لازمی او ضروری وُو او د دے ضُعف او زوال سبب د هغے اصل خیز پریخودل دی چه په هغے د ټول دین بَاقی پاتے کیدل دارومدار دے او هغه اَمْرٌ بِالْمَعْرُوْف دے. ښکاره خبره ده چه هیڅ یو قوم تر هغے وخته پورے ترقی نهٔ شی کولے تر څو چه د هغے افراد ښهٔ صفتونو او کمالاتو سره ښائسته نهٔ شی.

پس څمونږ علاج صرف دا دے چه مونږ د تبلیغ فریضه په دا سے رنګے واخلو وُدریږو چه په هغے سره مونږ کښې ایمانی طاقت زیات او اسلامی جذبات رابیدار شی. مونږ الله تعالیٰ او د هغهٔ رسُول ﷺ اُو پیژنو او د الله تعالیٰ حکمونو ته سرخلته کړو او د دے د پاره به مونږ ته هغه طریقه اختیارول پکار دی کومه چه سَیِّدُ الْاَنْبِیَاءِ وَالْمُرْسَلِیْن د عرب د مُشرکینو د اِصلاح د پاره اختیار کړے وه.

| لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ۔ (احزاب ۳۰) | بے شکه ستاسو دپاره رسول الله ﷺ کښې نمونه ده (دتابعدارئ) ۔ |
|---|---|

هم دے طرف ته امام مالك رحمته الله اشاره فرمائی۔ لَنْ يُصْلِحَ اٰخِرَ هٰذِهِ الْاُمَّةِ اِلَّا مَا اَصْلَحَ اَوَّلَهَا۔ یعنی د دے امتِ محمدیه آخرکښې راتلونکو خلقو هیڅ کله اصلاح نشی کید لے، ترڅو چه هغه طریقه اختیار نهٔ کړے شی په کومه چه په ابتداءکښې اصلاح شوے وه۔

کوم وخت چه نبی اکرم ﷺ دحق دعوت دپاره اُودریدو، دوی یواځې وُو۔ څوك یے ملګرے او همخیال نه وو۔ دنیوی هیڅ طاقت ورسره نهٔ وو۔ د دوی په قوم کښې ضد او سرکشی انتهائی درجے ته رسید لے وه۔ په هغوی کښې څوك حق خبرے اُوریدو او منلو ته تیار نهٔ وُو۔ خصوصًا کومے حق کلمے دتبلیغ دپارهٔ چه نبی ﷺ اُودریدلے وو، د هغے نه دټول قوم زړونه کرکه کوونکی او بیزاره وُو۔ په دے حالاتوکښې کوم طاقت وو چه په هغے سره یو مفلس او نادار، بے یار او مددګار انسان ټول قوم خپل ځان طرف ته راښکلو۔ اُوس غور اُوکړئ چه آخر هغه څهٔ څیز وو چه هغه طرف ته نبی ﷺ مخلوق راُوبلهٔ۔ کوم کس چه دغه څیز بیامونده، هغه بیا دهمیشه دپاره ددوی شو۔ دُنیا ته پته ده چه هغه صرف یو سبق وو چه ددوی دنظر مرکز او اصلی مقصود وو چه هغه یے دخلقو مخکښې پیش کړو۔

| اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۔ (آل عمران ۔ ع ۷) | سوا د الله تعالیٰ نه به مونږ د بل چا عبادت نهٔ کوو او الله تعالیٰ سره به څوك شریك نهٔ جوړوُو، او مونږ نهٔ څوك بل چاله ربانځور دی، (چه الله تعالیٰ پریږدُی ۔) |
|---|---|

د الله تعالیٰ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ نه سوا د هر څیز دعبادت او اطاعت او فرمانبرداری نه یے منع اُوکړه او د دُشمنانو ټول بند یزونه او غلط رسمی تعلقات یے ختم کړهٔ او یو دعمل نظام یے مقرر کړهٔ او وے خودله چه د دے نه لرے نشی بل طرف ته مخ نهٔ کړئ

| اِتَّبِعُوْا مَا اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ | تاسو خلق د هغے تابعداری کوئ کوم چه تاسو ته |
|---|---|

رَبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۭ (اعراف - ع ۱)

ستاسو د رب له طرفه راغلې دی او الله تعالیٰ نه سوا د نور و خلقوتابعداري مه کوئ۔

هم دا هغه اصل تعليم وو چه د دے د خوروَلو دپاره نبي عليه السلام ته حُکم ورکړے شو.

اُدْعُ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ۭ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝ (نحل - ع ۱۶)

اے محمد! دا او بله خلق دخپل رب لارے ته په حِکمت او نیک نصیحت سره ، او هغوی سره بحث کوه څه رنګ چه بهتروی . بیشکه چه ستا رب ډیر ښه پیژنی هغه خوك چه ګمراه وی د هغهٔ د لارے نه او هغه ډیر ښه پیژنی په لاره تلونکو لره۔

او دا هغه لويه لاره وه چه نبي عليه السلام د پاره او د دوی د هر یو تابعدار دپاره مقرر کړے شوه۔

قُلْ هٰذِهٖ سَبِيْلِيْٓ اَدْعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ ۣ عَلٰي بَصِيْرَةٍ اَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِيْ ۭ وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ (یوسف - ع ۱۲)

او وايه! دا زما لاره ده را بلم الله تعالیٰ طرفته به په پوره يقين ، څه او چه څوک زما تابعدار دی هغوی هم - الله تعالیٰ لره پاکی ده او څهٔ د شرك کوونکو نه نه يم۔

وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَآ اِلَى اللّٰهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ اِنَّنِيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ۝ (حم سجده - ع ۵)

او د هغهٔ نه بهتره د چا خبره کیدے شی څوك چه الله تعالیٰ طرف ته رابلی او نیك عمل کوی او وائی څهٔ د مسلمانانو نه یم۔

پس الله تعالیٰ طرف ته د هغهٔ مخلوق رابلل ، لاره ورکول ، شوُوته حقه لاره ښودل ، ګمراهانو ته د هدايت لاره ښودل د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د ژوند وظيفه او د هغوی اصل مقصد وو ، او د دے مقصد د ترقۍ او تازګۍ دپاره په زرګونو نبيان او رسولان راليږلے شوی دی۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ ۝

او موږ نه دی لیږلی د تا نه وړاندے څوك رسول خو هغهٔ طرف ته موږ وحی لیږلے وه چه هیڅوك معبود نشته سوا زما نه۔ پس

(انبیاء - ع ۲) - | خپل عبادت کوئ -

د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په پاک ژوند او د اَنْبِیَاءِ کِرَامو علیهم السلام د ژوند په پاکو ساعتونو چه نظر واچولے شي نو معلومیږي چه د ټولو په نظرکښې مقصد او نَصْبُ الْعَيْن صرف یو وو - او هغه د الله رَبُّ الْعٰلَمِیْن وَحْدَهٗ لَاشَرِیْكَ لَهٗ د ذات او صِفتونو یقین کول - هَم دا د ایمان او د اسلام مَفْهُوم و مطلب دے او هُم دے دپاره اِنسان په دُنیا کښې را اُولیږلے شو - وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنَ ○ یعني مونږ پیریان او انسانان صرف د دے دپاره پیدا کړي دي چه د عبادت ژوند تیر کړي -

اُوس هر کله چه د ژوند مقصد واضح شو او د اَصل مرض او د هغې د علاج طریقه معلومه شوه، نو د علاج طریقه تجویز کولو کښې به زیات مُشکلات نهٔ پیښیږي او د دے نظرئے لاندے چه کومه د علاج طریقه اختیار کړے شي - اِنْشَاءَ الله فائده مند او سودمند به وي -

مونږ د خپلے ناپوهۍ مطابق د مسلمانانو د کامیابۍ او د فائدے دپاره یو د عمل نظام تجویز کړے دے چه هغې ته په حقیقت کښې اسلامي ژوند یا د پخوانو مشرانو د ژوند نمونه ویلے شي چه د هغې مختصره نقشه ستاسو په خدمت کښې وړاندے کوو -

د ټولو نه ضروري او اهم خبره دا دے چه هر یو مُسلمان د ټولو غرضونو او د دُنیوي مقصدونو نه نظر واړوي او د اِعْلَاءِ کَلِمَةِ الله او د اسلام د خورولو او د احکامِ اِلٰهي رواج او ترقي خپل مقصد او غرض جوړ کړي او د دے خبرے پخه وعده اُوکړي چه د الله تعالیٰ هر حکم به منم او په هغې به د عمل کولو کوشش کوم او هیڅ کله به د الله تعالیٰ نافرماني نهٔ کوم - او د دے مقصد د تکمیل دپاره به په دے قاعده کار کوم -

(۱) کلمه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ به صحیح الفاظو سره یاد کول او د دے په معنیٰ او مطلب ځان پوهول او په ذِهن کښې د کینولو کوشش کول او خپل پوره ژوند د دے موافق د جوړولو فکر کول -

(۲) د مونځ پابند کیدل چه د دے د ادابو او د شرطونو لحاظ اُوساتلے شي - او

خشوع خضوع سره ادا كوئ او په هر هر ركن كښې د الله تعالىٰ د عظمت او د بزرګئ او د خپلې بندګئ او بے وسئ خيال كوئ. غرض دا چه په دے كوشش كښې لګيدل چه مونځ داسې ادا شي چه د الله رَبُّ الْعِزَّتْ د دربار د حاضرئ د شان مناسب وي. د دا سے مونځ د كوشش كوي او د الله تعالىٰ نه دِ د دے توفيق غواړي كه چرے د مانځه طريقه معلومه نه وي نو زده دِ كړي او په مانځه كښې د لوستلو توكل څيزونه دِ ياد كړي.

(۳) قرآن شريف سره ځان تړل او د زړهٔ تعلق او محبت پيدا كوئ چه د هغې دوه طريقے دي:-

(الف) څهٔ وخت روزانه په ادب او احترام سره د معنىٰ او مطلب خيال ساتلو سره تلاوت كوئ. كهٔ چرے عالم نهٔ وي او په معنىٰ او مطلب نهٔ پوهيږي. بيا هُم بغير معنىٰ پوهيدو دِ د قرآن شريف تلاوت كوي او د اِدګنړي چه ځما كاميابي او فائده په ديكښې پټه پرته ده. صِرف د الفاظو لوستل هُم لوئ سعادت دے او سبب د خير او بركت دے. خو كهٔ الفاظ هُم نشي لوستلے نو لږ وخت روزانه د قرآن شريف په تعليم كښې لګوئ.

(ب) د خپلو بچو او د خپلے محلے او د كلي د هلكانو جينكو د قرآن مجيد او د مذهبي تعليم فكر كوئ او په هر كار باندِ دے لره وړاندے ساتئ.

(۴) څهٔ وخت د الله تعالىٰ په ياد او ذكر او فكر كښې تيروئ، د څهٔ لوستلو د پاره د چا پيرِ طريقت، مُتّبعِ سُنّت نه پوښتنه اوكړئ، كنې دريمه كلمه سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ او دُرود شريف او د استغفار يوه يوه تسبيح (يعنى سل سل وارے) سحر او يوه يوه تسبيح ماښام دِ كوي. خو د معنے توجُه د زړهٔ محبت او اطمينانِ قلب سره دِ لولي. په حديث كښې د دے ډير زيات فضيلت راغلے دے.

(۵) هر مُسلمان خپل رُور ګنړل، هغهٔ سره د همدردئ او د غم خوارئ معامله كول او د صِفتِ اسلام په وجه د هغهٔ ادب او عزت كول او د دے نه خبر ونه يم كيدل چه د چا مسلمان رُور د تكليف او د ضرر رسولو سبب وي.

دا دے خبرو په خپله هُم پابند شی او کوشش کوئ چه هر یو مُسلمان دا دے پابند جوړشی چه د هغه طریقه داده چه په خپله هُم څهٔ وخت د دین دخدمت دپاره فارغ کړئ او نورو ته هم ترغیب ورکړئ او دَ دین دَ خدمت او داسلام دخورَولو دپاره یے تیار کړئ۔

دکوم دین دخورَولو دپاره چه اَنبیاءِ کِرام علیهم الصلاة والسلام مشقتونه برداشت کړل قسما قِسم مُصیبتونو کښ مُبتلا شول۔ صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم او څومره څومره مشرانو خپل عُمرونه په دے کښ اُولګول او لهٔ دے خاطره یے د الله تعالیٰ په لار کښ خپل ځانونه قُربان کړل، نو دد ے دین دخورَولو او باقی ساتلو دپاره لږ وخت هُم نهٔ فارغول لویه بد نصیبی او نقصان دے او هُم دا هغه ضروری فریضه ده چه دَکوم دپریخودو په وجه نن مونږ تباه او برباد یږو۔

رُومبے په دمسلمانانو مطلب دا ګنړلے شو چه خپل ځان او مال، عزت او آبرو دَ اسلام خورَولو او د اِعلاءِ کَلِمَةُ الله په لار کښ اُولګوی۔ او چا چه به په دے کښ کمے کولو هغه به لوئ ناپوهه ګنړلے شو۔ خو افسوس نن مونږ ته مُسلمان ویلے شی او دَ دین خبرے په خپلو سترګو وَرانے وینو۔ بیا هم دد ے دین دخورَولو او باقی ساتلو دپاره کوشش نهٔ کوو۔ غرض دا چه د اِعلاءِ کَلِمَةُ الله او دَ دینِ اسلام خورَول کوم چه دمسلمان د ژوند مقصد او اصلی کار وُو۔ او دکوم سره چه زمونږ دَ دوارو جهانو کامیابی او ترقی تړلے وه۔ او دکوم په پریخودو چه مونږه ذلیله او خوار یږو۔ اُوس بیا مونږ ته خپل اصلی مقصد اختیارول پکار دی او دا کار دخپل ژوند حصه او حقیقی مشغله جوړول پکار دی۔ چه بیا رحمتِ اِلٰهی په جوش کښ راشی او مونږ ته دَ دُنیا او دا آخرت سُرخ روئی او تازګی نصیب شی۔ دد ے دا مطلب هرګز نهٔ دے چه خپل ټول کاروبار پریږدو یعنی په دے کار کښ اُولګو۔ بلکه مقصد دا دے چه څنګه نور دُنیوی ضرورتونه انسان سره لګید لی دی او هغه سرته رَسوی دا کار هُم ضروری او اهم اُوګنړی او دے دپاره وخت فارغ کړے شی۔ هر کله چه یو څو سړی دے مقصد دپاره تیار شی نو په هفته کښ څو ګهنټے خپله محله، او میاشت کښ درے ورځے نزدے

دکاونړ ځایونو کښې، او په کال کښې یوه چِلّه (څلویښت ورځې) لرے ځایونو کښې
دا کار کوئي او کوشش کوئي چه هر یو مُسلمان مالدار وي که غریب، تاجر
وي که مُلازم، زمیندار وي که کاشتکار، عالِم وي که جاهل، په دے کار
کښې شریک شي او د دے کارونو پابند جوړ شي۔

**دکار کولو طریقه** کم نه کم د لسو سړو جماعت دِ تبلیغ د پاره اُوزي۔ اول دِ په خپلو
کښې یو کَس امیر جوړ کړي او بیا دِ ټول په جُمات کښې جمع شي او
اُودا سه نه پس دوه رکعته نفل دِ اُوکړي۔ (په شرط د دے چه مکروه وخت
نه وي. دعا نه پس دِ د الله تعالیٰ په دربار کښې مِنت زاري اُوکړي۔ او
نصرت و کامیابي او تائید الٰهي او توفیقِ الٰهي دِ طلب کړي او د خپلے مضبوطیا
او ثابت قدمئ دُعا دِ اُوغواړي۔ دُعا نه پس په قلار او عزت رو رو د الله تعالیٰ
ذِکر سره دِ روان شي۔ او فضول خبرے دِ نه کوي۔ هر کله چه هغه ځای ته
اُورسي کوم ځای کښې چه تبلیغ کول وي نو بیا دِ ټول راغونډ شي الله تعالیٰ
نه دِ دُعا اُوغواړي او په ټوله محله یا کلي کښې دِ ګشت اُوکړي۔ اول دِ پرے مونځ
اُوکړي او بیا دِ ترے د دغے کارونو د پابندئ وعده واخلي او په دے طریقه
کارکولو د پاره دِ تیار کړي۔ او دغه خلق دِ ځان سره واخلي، د نورو کورونو دروازو
ته دِ لاړ شي په زنانو دِ هم مونځ اُوکړي او د پابندئ تاکید دِ ورته اُوکړي۔
کوم خلق چه دے کار کولو ته تیار شي د هغوی دِ یو جماعت جوړ کړے شي
او په هغوی کښې دِ یو تَن د هغوی امیر مُقرر کړے شي او په خپله نګرانئ
کښې دِ په هغوی کار شروع کړي او بیا دِ د هغوی د کار خیال ساتي۔ هر تبلیغ
کوُنکی له پکار دي چه د خپل امیر خبره به مَنئ۔ او امیر له پکار دي چه د
خپلو ملګرو خدمت کولو، راحت رَسَوُلو، همت زیاتولو او همدردئ
کښې دِ کمے نه کوي۔ او د مشورے قابل خیرو کښې دِ د ټولو نه مشوره اخلي
د هغے موافق دِ عمل کوي۔

**د تبلیغ آداب** دا کار د الله جلّ شانه یو اَهم عبادت او لوئي سعادت دے
او د انبیاؤ علیهم السّلام نیابت دے۔ کار چه څومره لوئي وي هغه هومره

اداپ لحواړي. ددے کارنه مقصد دنور وهدايت نهٔ دے بلکه په خپله دخپلے اصلاح او دعَبْدِيَت (بندګی) اظهار او دالله تعالیٰ حکمونه په ځای راوړل او دالله تعالیٰ رضا لټول دي. پس پکار دي چه لاندے ليکلي شوی کارونه په ښهٔ شان ذهن کښ کينوئ او ددے پابندی کوئ.

① خپل تول خرڅ دخوړلو څکلو کرايه وغيره څومره پورے چه طاقت وی په خپله برداشت کوئ اوکه چرے طاقت او فراخي وی نو خپل نادار غريب ملګرو پاندے هم خرڅ کوئ.

② دخپلو ملګرو او دے پاك کارکونکو خدمتګذاري او همت افزائی خپل سعادت اوګنړی اودهغوی ادب او احترام کښ کمے مهٔ کوئ.

③ عامو مسلمانانو سره ډير په تواضع او عاجزئ مُعامله سائئ. خبره کولو کښ نرمه لهجه او دخوشامندئ اړخ اِختيار روئ. هيڅ يو مسلمان ته دسپکاوی او دنفرت په نظر مهٔ ګورئ. خصوصاً ددين دعالمانو عزت او عظمت کښ کمے مهٔ کوئ. ځکه چه په مونږ دقرآن او حديث عزت او عظمت، ادب او احترام واجب او ضروری دے. دغسے ددے پاکو هستو عزت او عظمت، ادب او احترام هم ضروری دے کوم چه الله تعالیٰ خپل دے لوئ نعمت سره سرفرازه کړی دی. دعُلماءِ حق سپکوالے ددين دسپکوالی برابر دے چه دالله تعالیٰ دقهر وغضب سبب دے.

④ دفُرصت خالی وختونه په ځائ ددروغو، غيبت، جنګ، فساد، لوبو او تماشو مذهبی کتابونو لوستلو او دمذهب پابند خلقو سره ناسته کښ تيروئ. چه په دے سره به درته دالله تعالیٰ او دهغهٔ درسول ﷺ خبرے معلومے شی. خصوصاً دتبليغ په ورځو کښ د فضولو خبرو او دفضولو کارونو نه ځان سائئ. او خپل فارغ وختونه دالله تعالیٰ په ياد او ذکر وفکر او دُرود و استغفار او زده کړه او خودنه کښ تيروئ.

⑤ په جائز وطريقو حلاله روزی حاصلوئ. کم خرڅ کوئ او دخپل بال بچ او دنورو خپلوانو شرعی حقوق اداکوئ.

⑥ څهٔ اختلافي مسئله او فروعي (خلافِ اصل) خبره مهٔ چيړئ بلکه صِرف اصل توحيد طرف ته دعوت ورکوئ او د ارکانِ اسلام تبليغ کوئ۔

⑦ خپل ټول کارونه او وينا په خلوصِ نيّت سره مُزَيّن او ښائسته کوئ په اخلاص سره لږ عمل هم سبب دخير او برکت او د ښو فائدو ذريعه جوړيږي او بغير اخلاصه يے نهٔ په دُنيا کښې څهٔ فائده راوُزي نهٔ په آخرت کښې ورته اجر و ثواب ورکوُلے شي۔ حضرت مُعاذ رضي الله عنه چه کله نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ديمن حاکم جوړ کړهٔ ، ليږلو يے ۔ نو هغوي درخواست اُوکړهٔ چه ما ته نصيحت اُوکړئ ۔ نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ارشاد اُوفرمايهٔ چه دَ دِين په کارونو کښې دِ اخلاص اهتمام سا ته چه اخلاص سره (لږ) عمل هُم کافي دے۔

يوبل حديث کښې ارشاد دے چه الله جل شانهٔ په عملونو کښې صِرف هغه عمل قبلوي چه خاص د هغهٔ دپاره کړے شوے وي ۔ بل ځائے کښې ارشاد دے چه الله جل شانه ستاسو شکلونو او ستاسو مالونو ته نهٔ گوري بلکه ستاسو زړونو او ستاسو عملونو ته گوري ۔ پس د ټولونه ضروري او اصل څيز داد ے چه داکار په اخلاص سره اُوکړے شي دَريا و نمُود په دے کښې دخل نهٔ وي خومره چه اخلاص وي هغه هومره به په کار کښې ترقي او تازگي وي ۔ د دے دَستُورُ العَمَل مُختصره نقشه ستاسو وړاندے راغله او د دے ضرورت او اهميّت بانديے هُم کافي رڼړا واچولے شوه ۔ خو کتل دا دي چه موجوده تکليف او پريشانئ او بے آرامئ کښې دا طريقه کار کوم حده پورے زمونږ رهبري کولے شي ۔ او ترکومه ځمونږ مشکلات لرے کولے شي ۔ دِے دپاره به بيا مونږ له قرآن شريف طرف ته رجُوع کول وي ۔ قرآن کريم ځمونږ دا کوشش يو سُودمند تجارت ښودلے دے ۔ او د دے طرف ته يے د ارگے ترغيب ورکړے دے۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ۝ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ

اے ايمان والو! آيا څهٔ تاسو ته داسے تجارت اُوښايم کوم چه تاسو يو دَردناک عذاب نه بچ کړي ۔ تاسو خلق الله تعالیٰ او د هغهٔ رسُول

وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ۝ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ۚ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ۝ وَأُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا ۖ نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ۝

(صف- ع ۲)

صلی الله علیه وسلم باندے ایمان راوړئ او د الله تعالیٰ په لارکښ تاسو خپل مال او ځان سره جهاد کوئ. دا تاسو دپاره ډیره بهتره ده که چرے تاسو څه پوهه لرئ. الله تعالیٰ به ستاسو ګناهونه معاف کړی او تاسو به داسے باغونو کښ داخل کړی چه د هغے د لاندے به ویالے بهیږی. او ښه مکانونو کښ چه همیشه د اوسیدو باغونو کښ به وی. دا لویه کامیابی ده او یوه بله هم ده چه تاسو یے خوښوئ، د الله تعالیٰ له طرفه مدد او زر فتح موندل. او تاسو مؤمنانو ته زیرے ورکړئ.

دے ایت کښ دیو تجارت تذکره ده چه د هغے په ومبئ فائده دا ده چه هغه د دردناک عذاب نه خلاصے ورکوونکے دے. هغه تجارت دا دے چه مونږ په الله تعالیٰ او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم باندے ایمان راوړو، او د الله تعالیٰ په لارکښ خپل مال او ځان سره جهاد اوکړو. دا هغه کار دے چه مونږ دپاره په کښ سراسر خیر دے که چرے مونږ کښ څه هم عقل او پوهه موجود وی. چه په دے اسان کار به مونږ ته څۀ نفع راکړے شی چه څمونږ ټولے غلطئ او کمزورئ به یو دم معاف کړے شی او اخرت کښ به لویو لویو نعمتونو سره سرفرازه کړے شو. هم دا ډیره لویه کامیابی او سرفرازی ده. خو په دے بس نۀ دے. څمونږ د خوښے خیز به هم مونږ ته راکړے شی او هغه د دنیا خوشحالی او نصرت و کامیابی او په دشمنانو غلبه او حکومت کول دی:

الله جل شانهٗ مونږ نه دوه څیزونو مطالبه اوکړه. اول دا چه مونږ په الله تعالیٰ او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم باندے ایمان راوړو. دویم دا چه په خپل مال او ځان سره د الله تعالیٰ په لارکښ جهاد اوکړو. او د دے په بدله کښ د دوه څیزونو څمونږ سره یے ضمانت اوکړه. اخرت کښ جنت او همیشه

آرام او راحت او په دُنیا کښې نصرت او کامیابي. رُومبے خیز چه څمونږ نه غوښتونکے دے هغه ایمان دے. ښکاره خبره ده چه څمونږ د دے طریقے مَنشاء او مطلب هُم دا دے چه مونږ ته دحقیقي ایمان دولت نصیب شي. دوئیم خیز چه څمونږ نه غوښتونکے دے هغه جهاد دے. دجهاد اصل اگرچه کافرانو سره جنګ او مُقابله ده خو په حقیقت کښې دجهاد غرض هُم إعلاءِ كَلِمَةُ الله او دالله تعالیٰ دَ احکامو چالو کوَل او جاري کوَل دي. او هُم دا څمونږ دتحریك اَصلي مقصد دے.

پس معلومه شوه چه څنګه دَمرګ نه پس د ژوند ښهٔ کیدل او دجنت دَ نعمتونو نه سَرفرازه کیدل، الله تعالیٰ او دهغهٔ رَسُول ﷺ باندے ایمان راوُړلو او دهغهٔ په لارکښې کوشش باندے مُنحصره ده. دغسے ددُنیوي ژوند ښهٔ کیدل او ددُنیا دنعمتونو نه فائده اخستل هُم دے باندے مُنحصره ده چه مونږ په الله تعالیٰ او دهغهٔ رَسُول ﷺ باندے ایمان راوُړو او خپل ټول کوشش او قربانۍ دهغهٔ په لارکښې اُولګوُو.

اوګله چه مونږ دا کار سَرته اُورَسوُو. یعني الله تعالیٰ او دهغهٔ رَسُول ﷺ باندے ایمان راوُړو او دهغهٔ په لارکښې کوشش او قُرباني اُوکړو. او خپل ځان په نیکو عملونو سره ښائسته جوړکړو نو بیا به مونږ دَمخ د زمکے دَ بادشاهت او دخلافت حَقدار جوړ شُو. او سُلطنت او حُکومت به مونږ ته راکړے شي.

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۖ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِيْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰى لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِّنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ اَمْنًا ۚ يَعْبُدُوْنَنِيْ لَا يُشْرِكُوْنَ بِيْ شَيْئًا ۚ

(نور - ع ۷)

په تاسو کښې چه کوم خلق ایمان راوُړي او نیک عَمل اُوکړي. هغوی سره الله تعالیٰ وعده کوي چه دوی ته به په زمکه کښې حکومت ورکړي لکه څنګه چه دوی نه مخکنو خلقو ته یے حُکومت ورکړے وُو. او کوم دین چه یے هغوی دپاره خوښ کړے دے هغه به دوی ته قوت ورکړي او دهغوی دَ ویرے نه پس به هغه په اَمن سره بَدَله کړي په شرط ددے چه څما عبادَت کوي او ما سره څوك شریك نهٔ جوړوي.

په دے ایت کښې ټول اُمت سره وعده ده ایمان او نیک عمل باندے د حکومت ورکولو چه د هغے ښکاره کیدل د نبی اکرم ﷺ د زمانے نه تر خلافت راشده پورے پیوست دی - لکه جزیرهٔ عرب د نبی علیه الصلوٰة والسلام زمانه کښې او نور ملکونه په زمانه د خلفاءِ راشدینو کښې فتح شول او رستو پکښې وخت په وخت اگرچه اتصال نه وو خو نورو نیکانو بادشاهانو او خلیفه گانو په حق کښې د دے وعدے ظاهریدل کیدل او د بیا دپاره به هم کیږی څنګه چه بل ایت کښې دی-

اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ○ وَنَحْوِهٖ (بیان القرآن)

پس معلومه شوه چه په دے دُنیا کښې هم آرام و راحت او اطمینان و سکون او عزت و آبرو ژوند تیرولو دپاره د دے نه علاوه بله طریقه نشته چه مونږ د دے طریقه باندے په مضبوطیا سره عمل کوونکی شو او خپل اجتماعی او انفرادی هر قسمه قوّت د دے مقصد د کامل کولو دپاره وقف کړو-

| وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِیْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا (آل عمران ۱۱) | تاسو ټول دین مضبوط اُونیسئ او ټکړے ټکړے مه جوړیږئ- |
|---|---|

دا یو مختصر د عمل نظام دے چه په حقیقت کښې د اسلامی ژوند او د پخوانی مشرانو د ژوند نمونه ده- مُلک "میوات" کښې یو مودے نه په دے طرز کار کولو کوشش جاری دے او د دے نامکمل کوشش نتیجه دا ده چه هغه قوم ورځ په ورځ ښکاره ترقی کوی- د دے کار برکتونه او فائدے په دے قوم کښې اولیدلے شوے کوم چه کتلو سره تعلق لری- که چرے ټول مسلمانان په اجتماعی طور د ژوند دا طریقه اختیار کړی نو د الله جل شانهٗ د ذات نه اُمید دے چه د دوی ټول مُصیبتونه او مُشکلات به لرے شی او د عزت او آبرو او د اطمینان و سکون ژوند به بیا مومی او خپل ضائع شوے شان شوکت او عزت به بیا حاصل کړی- وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِیْنَ ○

هر څو مره چه ما د خپل مقصد پوهولو کوشش اُوکړو خو دا د یو تجویز نه مجموعه ده بلکه د یو عملی نظام خاکه ده چه د کړه د الله تعالیٰ یو خوښ بنده (سَیِّدِی وَمَوْلَائِی مَخْدُوْمِی وَمَخْدُوْمُ الْعَالَم مولانا محمد الیاس صاحب رحمه الله)

واخستهٔ اُودرپسې لو اوخپل ژوندیے دے پاک کار د پاره وقف کړهٔ۔ پهٔ دے وجه تاسو دپاره ضروری ده چه تاسو دِے بے رَبطه کړښو لوستلو او پوهیدلو باندے هرگز بسوالے مهٔ کوئ بلکه دا کار زده کړئ او د دے کار عملی نمونه اُوګوری۔ دهغے نه سبق حاصل کړئ او خپل ژوند په دے سانچه کښې د اچولو کوشش اُوکړئ۔ هم دے طرف ته متوجه کول زما مقصود دے نور بس۔ ہے

میری قسمت سے الٰہی پائیں یہ رنگِ قبول ✦ پھول کچھ میں نے چُنے ہیں ان کے دامن کیلئے

زما قسمت سرهٔ دِالله بیا مومی دا رنگ د قبول
کلونه مِ خهٔ تهول کړی دهغهٔ لمن دپاره

وَاٰخِرُ دَعْوٰنَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی رَسُوْلِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِیْنَ ط بِرَحْمَتِكَ یَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِیْنَ ط

---

مُرَتِّب
محمد احتشام الحسن
۱۸ ربیع الثانی ۱۳۵۸ھ
موافق
۷ رجون ۱۹۳۹ء۔
چهارشنبه

مُتَرجِم
میاں محمد شفیق غفرلهٗ
دارالشفاء چارسده محله تبلیغی مرکز
تاریخ دختمید و نظرِ ثانی۔
۱۳ شعبان ۱۳۱۶ھ موافق ۳ جنوری ۱۹۹۶ء
چهارشنبه۔

کتب خانه فیضی لاهور پاکستان

